# كشف البارى

## عما فى

# صحيح البخارى

## كتاب التفسير


**تاليف** ← صدر وفاق المدارس مولانا سليم الله خان مدظله العالى
شيخ الحديث جامعه فاروقيه كراچى

**ترتيب وتحقيق** ← مولانا ابن الحسن عباسي استاذ جامعه فاروقيه كراچى

**ترجمه** ← مولانا شاه فيصل فاضل وفاق المدارس، امداد العلوم


**خصوصيات**

**جلد ۱۱**

① داحاديثو تخريج
② د تعليقات بخارى تخريج كول
③ د اسماء الرجال مختصر تعارف
④ د گرانو لغاتو لغوى صرفى او نحوى حل
⑤ ماقبل باب سره د ربط په باره كښې پوره تحقيق
⑥ د شرحې د هرې خبرې په حاشيه كښې حواله وركول
⑦ د ترجمة الباب مقصد په بيانولو كښې پوره تحقيق
⑧ د مختلفو مذاهبو تحقيقى بيان او بيا د مذهب حنفى ترجيح
⑨ دحديث اطراف بيانول چه په بخارى كښې داحديث په كوم كوم ځائې كښې دې.


خورونكى: فيصل كتب خانه محله جنگى پيښور
موبائل:- ۰۳۲۱۹۰۹۱۸۳۵

دکتاب نوم:- کشف الباری عما فی صحیح البخاری

جلد: کتاب التفسیر

شارح: صدر وفاق المدارس شیخ الحدیث مولانا سلیم الله خان مدظله العالی

ترتیب وتحقیق: مولانا ابن الحسن عباسی استاذ جامعه فاروقیه کراچی

پښتو مترجم: مولانا شاه فیصل فاضل امداد العلوم و وفاق المدارس
ایم اے اسلامیات وعربی پیښو ریونیورستی



د ملاویدو پتې د فیصل کتب خانه پېښور څخه علاوه

- رشیدیه کتب خانه اکوړه خټک
- علمیه کتب خانه اکوړه خټک ۰۹۲۳۶۳۰۵۹۴
- مکتبه رشیدیه کوئټه ۰۸۱۲۶۶۲۲۶۳
- مکتبه عثمانیه کانسی روډ کوئټه ۰۳۰۱۳۷۳۷۰۳۰
- مکتبه یوسفیه کانسی روډ کوئټه ۰۳۲۱۰۸۲۸۹۳۰
- راشد کتب خانه چمن ۰۳۰۰۳۸۹۶۳۵۳
- مکتبه عمریه تاج میر روډ چمن بلوچستان
- مکتبه علوم اسلامیه تاج میر روډ چمن بلوچستان ۰۳۳۳۷۹۵۸۶۹۶
- مکتبه حقانیه چمن ۰۳۳۳۷۷۵۲۲۱۹
- صداقت کتب خانه قندهار افغانستان ۰۷۸۷۷۴۲۳۲۱
- مکتبۀ رحمانیه قندهار افغانستان ۰۷۹۷۷۳۵۲۸۱
- مکتبه عبدالحي قندهار افغانستان ۰۷۰۰۸۲٤۳۳٤
- اسدالله کتب خانه قندهار افغانستان ۰۷۰۷٤۷۷٦۲۷
- مکتبۀ غفاریه قندهار افغانستان ۰۷۰۰۳٤۱۷٤۹
- مکتبۀ رشیدیه قندهار افغانستان ۰۷۷۲۲۱۰۷۰۹
- مکتبۀ حبیبیه قندهار افغانستان ۰۷۹۹٤٤۷٤۱۳
- مکتبۀ القدس قندهار افغانستان ۰۷۰۷۹٤۸۵۵۹
- قدرت کتب خانه کابل افغانستان ۰۷۹۹۲۱۹۲۰۳
- عبدالمجید کتب خانه جلال آباد ۰۷۰۸۱۹۷۷٤۹
- شاهین کتب خانه خوست افغانستان
- بلال کتب خانه خوست افغانستان
- اسلامی کتب خانه خوست افغانستان ۰۷۹۹۳۱۰۲٤۷

# فهرست مضامين

| شميره | مضمون | صفحه |
|---|---|---|



## كتاب التفسير



## تفسير سورة البقرة

## تفسير سورة آلِ عِمْرَانَ

## تفسیر سورة الْمَائِدَةِ

## تفسیر سورة الأعراف



## تفسیر سورة الأنفال

## تَفْسِيرُ سُورَةُ بَرَاءَةٌ



## تفسیر سورة یونس

| شمیره | مضمون | صفحه |
|---|---|---|



تفسیر سورة هود



تفسیر سورة یُوسُف



تفسیر سورة الحِجْر

| شمیره | مضمون | صفحه |
| --- | --- | --- |

## تفسیر سُورَةُ طٰهٰ



## تفسیر سُورَةُ الْأَنْبِيَاءِ



## تفسیر سُورَةُ الْحَجِّ



## تفسیر سُورَةُ الْمُؤْمِنُونَ



## تفسیر سُورَةُ النُّورِ

## تفسیر سورة سبأ



## تفسیر سورة يس



## تفسیر سورة الصافات



## تفسیر سورة ص

| شمیره | مضمون | صفحه |
|---|---|---|



## تفسیرسورة الزمر



## تفسیرسُورَةُ الْمُؤْمِنِ (غافر)



## تفسیرسورة حٰم السّجدة (فُصّلت)



## تفسیرسُورَةُ حٰم عسق (الشورٰی)



## تفسیرسُورَةُ حٰم الزُّخْرُف



## تفسیرسورة حٰم (الدّخان)

| شميره | مضمون | صفحه |
| --- | --- | --- |

| شميره | مضمون | صفحه |
| --- | --- | --- |

تفسير سورة الطلاق



تفسير سورة التحريم



تفسير سورة الملك



تفسير سورة ن والقلم



تفسير سورة الحاقة



تفسير سورة المعارج "سال سائل"

تفسير سورة نوح "انا ارسلنا"



تفسير سورة الجن "قل أوحي إلي"



تفسير سورة المزمل

تفسير سورة المدثر

# عرض د مرتب

باسمه الكريم حمدًا ومصليًا: د حضرت شيخ الحديث زيد مجدهم د اخلاص ،او په نيمې صدۍ باندې مشتمل د هغوى د اوږد تدريسي ژوند د بركته او د ټولو نه زيات د الله جل شانه په فضل او كرم سره . كشف البارى. ته چه په علمي حلقو كښې كوم مقبوليت حاصل شو په دې سره زمونږ حوصله اوچته او د محنت جذبه تازه شوه.،د كتاب المغازى نه تقريبا درې كاله پس كتاب التفسير ستاسو په خدمت كښې پيش كولې شي ،د ترتيب او تدوين او تحقيق او مراجعت مرحله تقريبا په كال يا ددې نه په زياته موده كښې مكمل كيږي.خو ددې نه پس د كتابت تصحيح او نور طباعتي لوازمات هم دومره موده اخلي ،د كومو حضراتو چې د كشف البارى جلدونو ته ډير انتظار دې.مونږ ته د هغې پوره احساس دې خو د تاخير څه وجوهات څه داسې دى چه د معيار برقرار ساتلو په صورت كښې ددې نه بغير بله لار نشته،خو بيا هم زمونږ كوشش اراده او د الله جل شانه نه هم دا دعا ده چه د دوو جلدونو په مينځ كښې د انتظار دا وقفه كم نه كمه شي.

د كشف البارى په دې جلد كښې د ترتيب او تحقيق هم هغه انداز دې كوم چې په كتاب المغازى كښې ذكر شوې وو .البته څو څيزونه داسې دى كوم چې د كتاب التفسير ددې جلد سره مخصوص دى.او د كتابت د مطالعې نه وړاندې هغه د نظر وړاندې ساتل پكار دى.

① امام بخارى رحمه الله په كتاب التفسير كښې د قرانى الفاظو انتخاب كوى خو پوره آيت نه ذكر كوى مونږ چې د متن په طور كومه نسخه اختيار كړې ده په هغې كښې د هر قرانى لفظ ته مخامخ د هغې لفظ آيت نمبر مو ليكلې دې ،او ددې نه پس د امام بخارى رحمه الله تشريح ليكلې شوې ده. بيا وړاندې هغه قرانى لفظ چې په كوم آيت كښې واقع شوې وو ،نو د هغه پوره آيت يا د هغې ضرورى حصه او د هغې ترجمه ليكلې شوې ده،كومه چې زياته د بيان القران نه اخستې شوې ده. ددې نه پس امام بخارى رحمه الله چې ددغه لفظ كومه معنى بيان كړې وى د هغې تشريح شوې ده ،ددې سره عام طور د دغه آيت سره متعلق تفسير عثمانى رحمه الله فوائد هم د فائدې پوره كولو د پاره ليكلې شوې دى.

② امام بخارى د هر آيت تفسير نه دې كړې بلكه د خپل مخصوص مزاج مطابق ئې د منتخب آياتونو او الفاظو تفسير كړې دې.په دې كښې چې كوم الفاظ او ايتونه گران وو يا د هغې په تفسير كښې د مفسرينو رائې گانې مختلف دى هلته په خصوصيت سره په هغې كښې اهمو رائې گانو او قول راجح جمع كولو كوشش شوې دې

③..امام بخارى كه چرته مرجوع تفسير كړې وى نو هغه هم په نښنه كړې شوې دې،

④..كوم احاديث چه تير شوې دى د هغې د تشريح التزام نه دې كړې شوې او اكثر خودلې شوې دى چې دا حديث په فلانكى خانې كښې تير شوې دې .

⑤..يو اهم كار دا كړې شوې دې (كوم چه په كتاب المغازى كښې نه دې كړې شوې) چه په كتاب التفسير كښې امام بخارى رحمه الله كوم حديث په اول ځل ذكر كړې وى،او په صحيح بخارى كښې وړاندې د هغې ذكر نه وى راغلې نو مونږ په حاشيه كښې د هغه حديث تخريج

کړې دي او دا مو خوړلې دی چې دا حدیث په صحیح بخاری کښې کوم کوم ځائې کښې موجود دي، او په اصحابو سته کښې نورو کومو حضراتو دا ذکر کړې دې ،که په اصحاب سته کښې د امام بخاری نه سوا بل چا دا نه وی ذکر کړې صرف امام بخاری ذکر کړې وی.نو د هغې هم وضاحت کړې شوې دې.

⑥ په ابتداء کښې د امام بخاری رحمه الله په کتاب التفسیر باندې یو نظر .په عنوان سره احقر د کتاب التفسیر یو تعارف لیکلې دې.په کوم کښې چې د کتاب التفسیر په مآخذ او اسلوب او انداز باندې رڼړا اچولې شوې ده

د شیخ الحدیث دامت برکاتهم وجود باسعادت زمونږ د پاره ددې کار ګرانې لارې روښانه کوی .لوستونکو ته د حضرت شیخ د صحت او عافیت او د عمر اوږدوالی د پاره د خصوصی دعاګانو درخواست دې چې دا کار ددوی د شفقت او د سیوری لاندې مکمل شی.د خپل مستقبل نه هر وخت بې خبره انسان د همت او دعا نه سوا نور څه کولې شی .عزم او همت او د رب العزت په دربار کښې د توفیق دعا کول د انسان د پاره د یو کار د تکمیل سرمایه او په فانی ژوند کښې د امید د رڼړاګانو آواز جوړیدې شی چه...

ہمیں خبر ہے کہ ہم ہیں چراغ آخر شب ہماری بعد اندھیرا نہیں اجالا ہے

ابن الحسن عباسی ۲۵شوال۱۳۱۸

.........................

## د امام بخاری په کتاب التفسیر باندې یو نظر[ازمرتب]

د حدیث په کتابونو کښې د صحیح بخاری یو منفرد انداز دې ،امام بخاری رحمه الله په خپل صحیح کتاب کښې دکتاب التفسیر دپاره یو لویه حصه خاص کړې ده،او په یو خاص اسلوب او مخصوص انداز کښې ئې د قرانی آیاتونو او د کلماتو مفرداتو تفسیر او تشریح ئې کړې ده.مونږ دلته د امام بخاری رحمه الله د کتاب التفسیر په څو اړخونو باندې یو تعارفی نظر اچوو.

① د امام بخاری د کتاب التفسیر ماخذ څه دې؟

② په فن تفسیر کښې ددې حیثیت او مرتبه څه ده؟ ③ د امام اسلوب او انداز څه دې؟

**د امام بخاری د کتاب التفسیر ماخذ:** د امام بخاری د کتاب لوئې ماخذ احادیث صحیحه دی.امام ته چې د خپلو شرطونو مطابق د قرانی آیتونو او تفسیر متعلق کوم احادیث میلاؤ شوې دی امام هغه په کتاب التفسیر کښې ذکر کړې دی. او څه احادیث ئې د خپل عادت مطابق د معمولی مناسبت سره هم ذکر کړې دی. د صحیح البخاری په کتاب التفسیر کښې پنځه سوه اته څلویښت مرفوع احادیث دی .په دې کښې څلورسوه او پنځه شپیته احادیث موصول او باقی تعلیقات دی.په دې کښې څلور سوه اته څلویښت احادیث مکرر دی.او سل حدیثونه هغه دی کوم چې په اول ځل راغلې دی .د امام بخاری د کتاب التفسیر د احادیثو په ذخیره کښې شپږ شپیته احادیث متفق علیها دی.یعنی امام بخاری هم د هغې تخریج کړې دې او د صحابو او تابعینو وغیره پنځه سوه او اتیا آثار په دې کښې راغلې دی.[1]

[1]) فتح البخاری(۷٤۳/۸)-

تر څو چې د قرانی الفاظو د تشریح او د کلمات مفرده د تفسیر تعلق دې .نو په دې حصه کښې ددوی زیات تر ماخذ د دویمې او دریمې صدئی مشهور امام لغت ابوعبیده معمر بن المثنی کتاب مجاز القران دې.

مولانا انورشاه کشمیری رحمه الله فرمائی: «کان عنده مجاز القران لابی عبیدة معمربن المثنی فاخذ منه تفسیر المفردات وذلك ایضا بدون ترتیب وتهذیب فصار کتابه ایضا علی وزن کتاب ابی عبیدة فی سؤ الترتیب، والرکة، والاتیان بالاقوال المرجوحة و الانتقال من مادة الی مادة ومن سورة الی سورة فصعب علی الطالبین فهمه، ومن لایدری حقیقة الحال یظن ان المصنف اتی بها اشارة الی اختیاره تلك الاقوال المرجوحة مع انه رتب کتاب التفسیر کله من کلام ابی عبیدة، ولم یعرج الی النقد اصلا»[1]

تقریبا دا خبره مولانا د بدر عالم میرټهی په ،ترجمان السنة، کښې لیکلې ده هغوی لیکی امام بخاری چې په کتاب التفسیر کښې چې کوم لغات نحو او تراکیب نحویه نقل کړې دی په خپله د هغوی د طرف نه نه دی بلکه د هغوی د طرفه هغه حصه ده کوم چې هغوی په خپلو اسنادو سره روایت کړې دی.اصلی خبره داده چې امام بخاری سره د ابوعبیده کتاب التفسیر موجود وو .امام موصوف دا ټول کتاب التفسیر د څه تنقید او انتخاب نه بغیر بجنسه راوچت کړو او په خپل کتاب کښې ئې ذکر کړو .نو څومره اقوال مرجوحه چې په اصل کتاب کښې موجود وو نو هغه هم ټول دلته نقل شو.اهل علمو ته ښه معلومه ده چې په کتاب التفسیر کښې په ډیر مقاماتو کښې په حل لغات کښې تسامح هم شوې دې اقوال مرجوحه هم نقل شوې دی.او ددې په ترتیب کښې هم ډیر اختلاف واقع شوې دې ،خو امام بخاری په خپله ددې جمله تناقضو نه بری دې که په هغوی باندې ذمه واری راځی نو په ابوعبیده باندې راځی .د امام بخاری د کتاب د علو صحت په باره کښې چه کومه دعوی ده.دا د هغه احادیث مرفوعه متعلق ده کوم چه په دې کښې په اسناد سره امام پخپله روایت کړې دی، د هغه اقوالو متعلق نه ده کوم چه د اسناد نه بغیر د یو طرف نه په کتاب کښې نقل شوې دی۔

[ترجمان السنة۳/۵۵۸،۵۵۷]

دې دواړو عبارتونو حاصل دا راووتلو چې امام بخاری د کلمات مفرده په تفسیری حصه کښې بعینه د ابوعبیده کتاب ..مجاز القران.. اخستې دې .خو دا خبره د وضاحت محتاج ده .ددې وضاحت نه وړاندې مناسب معلومیږی چې د ابوعبیده معمر بن المثنی په کتاب ..مجاز القران.. باندې یو نظر واچولې شی.

**ابوعبیده معمر بن المثنی او د هغوی تفسیر،،مجازالقران** د ابو عبیده پیدائش په ۱۱۰ هـ کښې په هغه شپه شوې وو په کومه شپه چې د حضرت حسن بصری رحمه الله وفات شوې وو،[2] یعنی په کومه شپه چې د علم او زهد مایه فخر یو عظیم انسان دنیا ته الوداع اووئیل.هم هغه

[1] فیض الباری (۴/۱۴۹)۔
[2] سیر اعلام النبلاء ۹/۴۴۵)۔

شپه د علم او لغت يو بل لوي انسان د راتلو مطلع جوړا شوه، د الوداع او استقبال دا نظام ددې فاني دنيا هغه ربښتيني او ابدي حقيقت دې کوم چې هميشه د پاره د انسانو د سترګو نه پټ وی، د رجالو په کتابونو کښې د ابوعبيده نسب «معمر بن المثنى ابوعبيده التيمي البصرى النحوى العلامة مولى بنى تيم بن مرة» [۱]

د ابوعبيده په شيوخو کښې هشام بن عروة، روبه بن العجاج او ابى عمر بن العلاء داخل دى او على بن المدينى ابو عبيد قاسم بن سلام او عمر بن شبه د ابوعبيده نه روايت اخستې دې [۲] ابو عبيده معمر مقدم دې، او ابو عبيده قاسم د دوى نه مؤخر دې [۳] د حضرت کشميرى رحمه الله په تقرير ،،فيض البارى،، کښې ابوعبيد قاسم ليکلې شوې دې [۴] دا تسامح دې، په فيض البارى کښې څه تسامحات دى ددې تصحيح ددې مرتب مولانابدر عالم ميرټهي رحمه الله کول غوښتل خو هغه د تصحيح نه وړاندې د آخرت په مسافرو کښې شامل شو [۵]۔

د ابوعبيده معمر بن مثنى په علم او فضل کښې شک نشته خو په علم حديث کښې هغوى ته څه اوچت مقام نه دې حاصل، علامه ذهبى رحمه الله په ،،سير اعلام النبلاء،، کښې ددوى تذکره کړې ده او ورسره ئې دا هم ليکلې دى چې «لم يكن صاحب حديث وانما اوردته لتوسعه فى علم اللسان وايام الناس» [۶]

يعنى ابوعبيده محدث نه وو ما دده تذکره ددې وجه اوکړه چې دوى په لغت او د خلقو په تاريخ کښې وسيع علم لرلو.

علامه جاحظ ددوى په باره کښې فرمائى «لم يكن فى الارض جماعى ولا خارجى اعلم بجميع علوم من ابى عبيدة» [۷] يحيى بن معين فرمائى ليس به باس [۸]

---

[۱] تهذيب الكمال (۳۱۷، ۳۱/۲۷) وسير اعلام النبلاء (۴۴۵/۹) وفيات الاعيان (۲۳۵/۵)۔

[۲] سير اعلام النبلاء (۴۴۵/۹ و ۴۴۶)۔

[۳] د ابوعبيده قاسم بن سلام پيدائش په ۱۵۰ هـ انظر وفيات الاعيان ۶۲/۴) د ابوعبيده د پيدائش کال ۱۱۰ هجرى دې)۔

[۴] فيض البارى (۱۴۹/۴)۔

[۵] مولانا محمد منظور نعمانى رحمه الله ليکى، راقم مسطور ته ذاتى طور معلوم دې چې په خپله حضرت مولانا بدر عالم رحمه الله ته ددې احساس وو چې په دې کښې تسامحات دى، او هغوى د مدينې طيبې د قيام په زمانه په دې باندې د نظر ثانى د اصلاح او تصحيح کار شروع کړې ووخو لا کار يې کړې وو چې په دې کښې د آخرت کور طرف ته منتقل شو، اوګورئى شيخ محمد عبد الوهاب او د هندوستان علمائې حق (۱۱۱)

[۶] سير اعلام النبلاء (۴۴۵/۹)۔

[۷] تاريخ بغداد ۲۵۲/۱۳) وسير اعلام النبلاء (۴۴۶/۹) وتهذيب الكمال (۳۱۸/۲۸) والبيان والتبيين (۳۳۱/۱)

[۸] ميزان اعتدال ۱۵۵/۴ وفى السير ۴۴۸/۹، وقيل كان يميل الى المرد، وفى حاشية بغية الوعاة ۲۹۵/۲ قال الاصمعى دخلت انا وابوعبيدة يوما المسجد فاذا على السنوانة التى يجلس...[بقيه حاشيه په راروانه صفحه..

دارقطني فرمائي .لا بأس به الا انه يتهم بشئ من رأى بالخوارج ويتهم بالاحداث (۱)
ابوالعباس مبرد فرمائي .ابوعبيده د خوارجو نظريه لرله (۲)
ابوحاتم سجستاني فرمائي .ابو عبيده به په ما باندې خاص نظر كولو چې هغه څه د سجستان خارجي ګڼړلم (۳)
علي بن مديني ددوى د روايت صحت منل (۴) او ابن حبان په كتاب الثقات كښې ددوى ذكر كړې دې (۵)
د جرح او تعديل تله كښې ددوى تله خو درنه نه ده البته ددوى تبحر .علمي وسعت .معلومات او لغوى مهارت باندې د ټولو اتفاق دې علامه ذهبى ددوى د تذكرې په آخر كښې ليكلي دى .

قلت قد كان هذا المرء من بحور العلم ومع ذلك فلم يكن بالماهر بكتاب الله ولا العارف بالسنة رسول الله ﷺ ولا البصير بالفقه ،واختلاف ائمة الاجتهاد بلى وكان معانى معرفة حكمة الاوائل والمنطق واقسام الفلسفة (۶)
په عربئ كښې ددوى مهارت منلې شوې وو خو عجيبه داده چې په خپل خان باندې د اعتماد په وجه به ئې بعضې وخت قران كريم او شعر غلط لوستل .وئيل يې (نحو محدوده) (۷)
د عربو سره ددوى څه محبت نه وو .چا دده نه تپوس اوكړو چې ته د هر چا په نسب كښې خبرې كوې نو ستا پلار څوك وو .؟نو وئيل ئې چې زما پلار به وئيل چې د هغوى پلار د باجروان (۸) يهودي وو (۹) د ابوعبيده په طبيعت كښې سختى دومره زياته وه چې ددوى اكثر معاصرين

---

...بقيه ازحاشيه ګذشته] عليها ابوعبيدة مكتوب على نحو من سبعة اذرع:

صلى الاله على لوط وشيعته اباعبيدة قل بالله امينا

فقال لى يا اصمعى امح هذا فركبت ظهره ومحوته بعد ان اثقلته الى ان قال اثقلتنى وقطعت ظهرى فقلت له قد بقى..لوط..فقال من هذا نفر به ثم قلت قد بقيت الطاء هى شر الحروف هذا البيتوكان الذى كتب هذا ابونواس .بعده بيت ثان: فانت عندى بلا شك بقية منذ احتملت وقد جاوزت سبعينا)-

(۱) وانظر وفيات الاعيان (۲۴۲/۵)-
(۲) فهرست ابن نديم (۵۹)-
(۳) سير اعلام النبلاء (۴۴۷/۹) وانباه الرواة (۲۸۱/۳)-
(۴) تاريخ بغداد (۲۵۷/۱۳)_.
(۵) (۱۹۶/۹)-
(۶) سير اعلام النبلاء (۴۴۸/۹) -
(۷) فهرست ابن نديم ۵۹ وفيات الاعيان (۲۳۵/۵).
(۸) باجروان قرية من ديار مضر بالجزيره من اعمال البليخ .باجروان ايضا مدينة من نواحى باب الابواب قرب شيروان عندها عين حياة التى وجدها الخضر عليه السلام وقال هى قرية التى استطعم موسى والخضر عليهما السلام اهلها (وانظر معجم البلدان (۳۱۳/۱) -
(۹) تهذيب الكمال ۳۱۷/۲۸ والفهرست لابن النديم ۵۹ وبغية الوعاة (۲۹۵/۲)-

ددوى نه خفه وو او چې كله ددوى وفات اوشو نو ددوى په هم عصرو كښې څوک دده جنازې ته لاړل[1] ددوى په تاريخ وفات كښې مختلف اقوال دى كال ۲۱۳، ۲۱۱، ۲۱۰، ۲۰۹ هجرى[2] او د تصنيفاتو شمير ئې تقريبا دوه سوه دې[3] ابن النديم په ،،الفهرست،، كښې د يو سل پنځوؤ كتابونو نومونه شمارلې دى[4]

**مجاز القران:** په مجاز القران كښې هغوى د قران كريم د الفاظو مفرده تشريح او لغوى معنى بيان كړې دى.په دې باره كښې هغوى لغت او عربى تعبيراتو بنياد جوړ كړې دې ددې وجه ددوى د زمانې څه اهل علمو دا په تفسير بالرائى كښې داخل گنړل .د اصمعى ،ابوحاتم و زجاج او ازهرى وغيره هم دا موقف وو[5]

علامه ابن خلكان په وفيات الاعيان كښې ليكلې دى چې امام اصمعى به د ابوعبيده په باره كښې فرمائيل چې دا كس د كتاب الله تفسير بالراى كوى يو ځل ابوعبيده د اصمعى مجلس ته حاضر شو او وې وئيل چې (خبز) څه شې دې؟ اصمعى جواب وركړو **هو الذى تخبزه وتاكله** يعنى څه چې ته خورې او هغه خبز دې .ابو عبيده اووئيل چې تاسو د كتاب الله تفسير په رائې باندې كړې دې په قران كريم كښې دې (انى ارانى احمل فوق راسى خبزا) كښې تا د خبز تشريح په خپلې رائې سره كړې دد اصمعى اوفرمائيل چې دا تفسير بالرائې نه دې بلكه زما په نيز يو څيز ښكاره وو كوم چې ما بيان كړې دې.ابوعبيده اوفرمائيل تا چې په مونږ باندې د تفسير بالرائې كوم عيب لګولې هغه هم زمونږ په نيز يو ښكاره څيز وى كوم چه مونږ بيان كوو[6]

د معاصرينو د تنقيد باوجود په دې كښې شک نشته چې د ابوعبيده ،،مجاز القران،، د اول نه مصدر او مرجع پاتې شوې دې، هم دا وجه ده چې ابن قتيبه په ،،مشكل القران،، كښې طبرى په ،،تفسير،، كښې ،ابن النحاس په ،،معانى القران،، كښې ،ابن دريد په ،،الجمهرة،، كښې ،جوهرى په ،،صحاح،، كښې او امام بخارى په كتاب التفسير كښې د ،،مجاز القران،، نه استفاده كړې ده.

**يو غلط فهمى** د مجاز القران،، په نوم باندې څه خلقو ته دا غلط فهمى كيږى چې په دې كښې د قران كريم هغه مقامات بيان شوې دې په كومو كښې چې الفاظ د حقيقى معنى په ځائې په مجازى معنى كښې مستعمل دى[7] خو دا صحيح نه ده بلكه ابوعبيده د قرانى اياتونو تفسير كوى او داسې الفاظ استعمالوى (مجازه كذا) تفسيره كذا ،،معناه كذا) نو د

---

[1] شرح مقامات لشريشى (۲)-

[2] وفيات الاعيان ۲۴۶/۵ وبغية الوعاة ۲۹۶/۲)-

[3] وفيات الاعيان ۲۳۸/۵)-

[4] فهرست ابن النديم ۵۹-۶۰)-

[5] مقدمة جاز القران ۱۶-۱۷)-

[6] وفيات الاعيان (۲۳۷/۵)-

[7] تاريخ تفسير ومفسرين ،انظر صفحه ۶۲)-

مجاز د کلمې نه د لفظ مورد استعمال ،طریقه تعبیر او د هغې مصداق مراد دې د متاخرینو په نیز د مجاز اصطلاحی معنی مراد نه ده هم دا وجه ده چې حضرت کشمیری رحمه الله فرمائی

ثم ان المجاز فی مصطلح القدماء لیس هو المجاز المعروف عندنا بل هو عبارة عن موارد استعمالات اللفظ ومن ههنا سمی ابوعبیدة تفسیره بمجاز القران[1]

په مجاز باندې د تحقیق او تعلیق کار کونکی د ترکی علامه فواد لیکلی:

وان کلمة المجاز عنده عبارة عن الطرق التی یسلکها القران فی تعبیراته وهذا المعنی اعم بطبیعة الحال من المعنی الذی حدده علماء البلاغة لکلمة المجاز فیما بعد[2]

## د ابوعبیده په مجاز القران او د بخاری په کتاب التفسیر کښې وجوه فرق

①: قرانی الفاظو د تشریح او کلمات مفرده په تفسیر کښې د امام بخاری زیات تر ماخذ هم دا "مجاز القران" دې خو ددې مطلب هر گز دا نه دې چې امام د ابوعبیده د "مجاز القران" نه سوا د بل څه نه استفاده نه ده کړې، امام بخاری د کلمات مفرده په تفسیری حصه کښې د حضرت ابن عباس ،سعید بن المسیب، مجاهد، عکرمه، ابوالعالیه، زید بن اسلم، ابومیسره، حضرت حسن بصری وغیره اقوال هم ذکر کړې دی،دلته ددې صرف یو مثال اوگورئی په سوره هود کښې د کلمات مفرده په تشریح کښې امام بخاری لیکی:

قال ابن عباس رضی الله عنه عصیب: شدید..وقال مجاهد (فلا تبتئس) تحزن ،وقال ابومیسرة (لاواه) الرحم بالحبشیة، وقال الحسن (انك لانت الحلیم الرشید) یستهزؤن به، قال ابن عباس رضی الله عنه (اقلعی) امسکی و (وفار التنور) نبع الماء وقال عکرمة وجهه الارض)

② دابوعبیده په مجاز القرآن کښې په استشهاد کښې کثرت سره اشعار کوی لیکن امام بخاری په استشهاد کښې صرف یوڅو ځایونو کښې اشعار ذکر کړی دی.

③ د ډیرو کلماتو تشریح امام بخاری کړې ده خو ابو عبیده نه ده کړې او څه الفاظ ابو عبیده بیان کړې دی خو امام بخاری هغه نه دی اخستې،مثلاً په سورة هود کښې (من لدن حکیم) کښې د (لدن) تشریح په "مجاز القران" کښې شته خو په بخاری کښې نشته،ددې په عکس هم په سورة عد کښې په آیت نمبر ۱۲ کښې د (السحاب الثقال) تشریح په بخاری کښې شته خو په مجاز القران کښې نشته. د سورة ابراهیم د آیت نمبر ۷ کښې (واذکرو نعمت الله علیکم) امام بخاری د ابن عیینه نه نقل کړې دی او په آیت ۳۴ د (من کل ما سالتموه) تفسیر ئې د مجاهد نه نقل کړې دې خو په مجاز القران کښې دا دواړه نشته.

[1]) فیض الباری(۶/۱۶۹)-
[2]) مقدمة مجاز القران ..۱۹)-

④ د مجاز القران او کتاب التفسیر په تعبیراتو کښې هم څو خایه فرق موجود یږي. د طوالت د وجه نه مثالونه پریښودلې شي.
د فرق ددې وجوه په وجه څو دا وئیل محل د نظر دې چه امام بخاری د ابوعبیده ..مجاز القران،، بعینه راوچت کړې دې البته دا وئیلې شي چې امام بخاری زیاته استفاده د ابوعبیده د مجاز القران نه کړې ده هم دا وجه ده چې په څو ځایونو کښې د ابوعبیده په تقلید کښې د امام بخاری نه هم د لغات په حل کښې تسامح شوې دې.

په سورة بنی اسرائیل کښې دی (ان قتلهم کان خطا کبیرا) په دې کښې د لفظ (خطا) تشریح کوی ،امام بخاری لیکی (خطئا اثما وهو اسم من خطئت الخطاء، مفتوح مصدر ه،، من الاثم بمعنی اخطات) امام دلته درې خبرې د ابوعبیده په اتباع کښې کړې دی او په درې واړو کښې غلطی شوې ده
①(خطا) دخا کسرې سره دې ته دوی اسم مصدر وئیلې دی حالانکه دا مصدر دې ②(خطا) د خا فتحې سره دې ته دوی مصدر وئیلې دی حالانکه دا اسم مصدر دې ③ او خطئت ته هم دوی د (خطآت) معنی ورکړې ده ،حالانکه د اولنی معنی په قصد سره د گناه کولو .او د دویم معنی بغیر د قصد سره گناه کولو راځی.([1])

په سورة یوسف کښې (واعتدت لهن متکا) کښې په لفظ د (متکا) کښې یو قراءت د حضرت مجاهد نه د تاء د سکون سره (متکا) منقول دې ددې معنی اترج او وره سنگتره ده. امام بخاری د ابوعبیده په اتباع کښې ددې قراءت تردید کړې دې او فرمائی چې د (متکا) معنی د عربو کلام کښې وره سنگتره نه راځی حالانکه حقیقت دادې چې ددې معنی سنگتره راځی ،علامه عینی رحمه الله په دې باندې تبصره کوی او فرمائی (وقلد اباعبیدة والافة من التقلید) امام بخاری د ابوعبیده تقلید کړې دې او د غلطئ دا آفت د تقلید د وجه راغلې دې([2])

**د امام بخاری د کتاب التفسیر اسلوب او انداز:** ① دصحیح بخاری د کتاب التفسیر مجموعی اسلوب څه داسې دې چې په شروع کښې عام طور امام د سورة د منتخب کلمات مفرده تشریح او لغوی معنی کوی بیا د مختلف آیات کریمه لاندې بابونه قائموی او احادیث ذکر کوی خو په دې کښې ددوی څه متعین اصول نشته،د کلمات مفرده تشریح کله څنگه چې په ابتدا کښې کوی دغه شان د څو بابونو او احادیثو ذکر کولو نه پس هم کوی.
② د قرانی کلماتو په تشریح کښې د آیاتو د ترتیب خیال نه کوی بلکه بغیر د څه ترتیب نه کلمات ذکر کوی نو د روستو آیاتونو د کلماتو تشریح وړاندې او د وړاندې آیاتونو تشریح روسته راځی.
③ داسې هم کیږی چې د یو سورة د کلماتو مفرده په تشریح کښې د بل سورة کلماتو ته منتقل شی په دې انتقال کښې بیا دوه قسمه الفاظ میلاویږی یو هغه په کوم کښې چې د

[1]) عمدة القاری (۱۸/۳۱۰)-
[2]) عمدة القاری ۱۹/۲۰)-

منتقل كيدو څه وجه او مناسبت موجود وى او بل هغه چې په هغې كښې څه مناسبت او وجه په پوهه كښې نه راځى د دواړو مثالونه اوګورئ:

(الف) د سورة مائده په تفسير كښې د سورة آل عمران د آيت نمبر ۵۵ كښې واقع لفظ (متوفيك) معنى بيانوى.د سورة مائده د ايت نمبر ۱۱۷ كښې دى (فلما توفيتنى فكنت انت الرقيب عليهم) په دې كښې د (توفيتنى) مناسبت سره امام د سورة ال عمران لفظ (متوفيك) طرف ته منتقل شوې دې،

په سورة انعام كښې (فان استطعت ان تبتغى نفقا فى الارض) په دې لفظ د (نفقا) تشريح امام بخارى په سورة نساء كښې ذكر كړې ده ،ځكه چې په سورة نساء كښې دى (ان المنافقين فى الدرك الاسفل من النار) چونكه (نفق) د منافقين مشتق منه دې ،په دې مناسبت سره سورة نساء نه سورة انعام طرف ته منتقل شوې دې

په سورة حجر كښې دى (كما انزلنا من المقتسمين) د (المقتسمين) تشريح كوى او په دې كښې د سورة اعراف د آيت (وقاسمهما انى لكما لمن الناصحين) كښې د لفظ (قاسمهما) تشريح كوى ،هم په دې مناسبت سره بيا د سورة نمل آيت (قالو تقاسموبالله) كښې د (تقاسموا) كلمه راوړى.

په (تبت يدا ابى لهب وتب) د (تبت) معنى بيانوى بيا فرمائى (تباب: خسران، وتتبيب: تدمير) تباب د سورة غافر په ايت كښې واقع شوې دې (وما كيد فرعون الافى تباب) او تتبيب د سورة هود په ايت نمبر ۱۰۱ كښې دې (ومازادوهم غيرتتبيب) غرض دا چې امام بخارى د كلمات مفرده په تشريح كښې د يو سورة نه بل سورة ته په مختلفو مناسبتونو سره منتقل كيږى خو څه مقامات داسې هم دى چې هلته د منتقل كيدو مناسب او څه وجه په پوهه كښې نه راځى.

(ب) مثلا د سورة انعام تفسير كوى (سرمدا) دائما حال دا چه دا د سورة قصص آيت ۷۱ كښې واقع دې (قل ارايتم ان جعل الله عليكم النهار سرمدا الى يوم القيامة) د سورة قصص دا الفاظ چه ئې په سورة انعام كښې راوړې دى ،د دې متعلق علامه عينى فرمائى (لا مناسبة لذكر هذا ههنا لانه لم يقع هذا الا فى سورة القصص)[1]

په سورة نحل كښې دى (شاكلته ناحيته) حال دا چه دا لفظ د سورة بنى اسرائيل په ايت ۸۴ كښې دې (قل كل يعمل على شاكلته) په سورة نحل كښې د دې ذكر كولو وجه او مناسبت ښكاره نه دې ،هم دا وجه ده چه په بعضې نسخو كښې دا لفظ نشته.

د كلمات مفرده تشريح چه كوى نو كله كله د جمهورو د قراءت په ځائې بل قراءت ذكر كوى په سورة اعراف ايت نمبر ۵۷ (هو الذى يرسل الرياح بشرا بين يدى رحمته) كښې د جمهورو قراءت

---

[1] عمدة القارى (۳۲۱/۱۸)-

(بشرا) دي د امام بخاری د (نشرا) قراءت نقل کړي دي هم ددي سورة په آیت نمبر ۲۴ کښې (قد انزلنا لباسا يواری سوٰاتكم وريشا) دي، امام د (ريشا) قراءت منتقل کړي دي[1]

⑤په بعضې رواياتو کښې شاذ اقوال هم راغلي دی د حضرت حسن بصری رحمه الله نه ئې د سورة علق په ابتدا کښې يو قول نقل کړي دي (عن الحسن قال اكتب في المصحف في اول الامام بسم الله الرحمن الرحيم، واجعل بين السورتين خطا) يعنی د سورة فاتحې په شروع کښې بسم الله اوليکه او د باقی سورتو په مينځ کښې صرف يو خط راکاږه، دا قول شاذ دي[2]

دا خو د الفاظ مفرده د تشريح په باره کښې د امام اسلوب او انداز وو ترکومې پورې چه د بابونو او احاديثو تعلق دي نو په دې کښې د امام بخاری هم هغه طريقه ده کومه چه په ټول صحيح بخاری کښې ده، امام په کتاب التفسير کښې په مختلفو آياتونو او سورتونو باندې ۷۷۳ بابونه قائم کړي دی، د احاديثو او رواياتو شمار په ماقبل کښې مونږ ليکلي دی.

**په فن تفسير کښې ددې حيثيت او مرتبه:** پاتې شوه دا خبره چه په فن تفسير کښې د امام بخاری د کتاب التفسير څه مرتبه او حيثيت دې ؟نو په دې باره کښې چه ترڅو پورې د تفسير په باره کښې کوم تعلق دې نو د امام بخاری په احاديثو کښې چاته شک کيدې شی ځکه چه د صحيح بخاری احاديث د ټولو نه زيات صحيح دی او د حديث په کتابونو کښې د اوچت معيار په وجه هم صحيح بخاری ته (د اصح الكتب بعد كتاب الله) اعزاز حاصل دې ،ددې وجې د بخاری د کتاب التفسير دا حصه د فن تفسير صحيح ترينه سرمايه ده.

البته هغه حصه په کومو کښې چه د الفاظو لغوی تشريح شوې ده په دې حصه کښې امام بخاری چونکه زيات اعتماد د ابوعبيده په ، ،مجاز القران باندې کړې دې دې وجې دلته هغه اوچت معيار برقرار نه دې پاتې شوې او په دې حصه کښې بعض تسامحات او مرجوح اقوال راغلې دی د کوم چې څه نمونې په ماقبل کښې تاسو اوکتلې .

د ابوعبيده مجاز القران هم چاپ شوې دې د قاهره مشهور اشاعتی اداره مکتبه خانجی د يو ترکی عالم محمد فواد سزکين تحقيق سره په دوو جلدونو کښې شائع کړې دی،محمد فواد پنځه مخطوطه نسخې ځان ته کيخودې دی او مرتب کړې دی، او د تحقيق او مراجعت سره سره ئې د الفاظو په تشريح کښې چه کومه بې ترتيبی شوې ده، هغه ئې هم ختمه کړې ده،او د الفاظو لغوی تشريح ئې د آياتونو د ترتيب مطابق کړې ده.

---

[1] عمدة القاری ۳۳۱/۲۸)-

[2] عمدة القاری ۳۰۳/۱۹)-

بسم اللّٰہ الرحمٰن الرّحیم

# کتاب التفسیر

الرحمٰن الرحیم: اسمان من الرحمة،،الرحیم والراحم بمعنی واحد،، کالعلیم والعالم

## کتاب التفسیر:

په اصحاب صحاح کښې امام بخاری ،امام ترمذی امام ابوداود او امام مسلم کتاب التفسیر پیش کړي دي، په مسلم کښې دکتاب التفسیر حصه ډیره کمه ده ددې وجې بعضې حضراتو دا په جوامع کښې نه دې داخل کړي امام ابوداود د کتاب الحروف په نوم باندې یو بحث کړې دې او د هغې تعلق هم د تفسیر سره دې [1] امام ترمذی کتاب التفسیر مفصل پیش کړې دې [2] امام بخاری د امام ترمذی نه هم زیات تفصیل سره کتاب التفسیر بیان کړې دې.

**د تفسیر لغوی معنی** : تفسیر د فسر نه مشتق دې چه معنی ئې ده پرانستل ،په تفسیر کښې چونکه د الفاظو مغلقاتو او د قران کریم مفهوم واضحه بیانولې شی ددې وجې دې ته تفسیر وئیلې شی.

بعضې حضرات وائی چه دا د (سفر) نه ماخوذ دې ددې قلب ئې کړې دې او (فسر) ترې جوړ کړې شوې دې بیا ددې نه تفسیر مشتق دې د سفر معنی هم د پرانستلو راځی سفر ته سفر ددې وجې وائې چه دا د ډیرو پټو کارونو د پاره کاشف وی[3]

**د تفسیر اصطلاحی معنی** :علامه زرکشی د علم تفسیر تعریف کړې دې (علم یعرف به فهم کتاب الله المنزل علی نبیه محمد ﷺ وبیان معانیه واستخراج احکامه وحکمه)[4]

علم تفسیر هغه علم دې چه په کوم سره د قران کریم فهم حاصلیږی، ددې د معانو وضاحت او ددې احکامو او حکمتونو استنباط کولې شی.

علامه آلوسی په روح المعانی کښې د علم تفسیري تعریف کړې دې

(علم یبحث فیه عن کیفیة النطق بالفاظ القران مدلولاتها واحکامها الافرادیة والترکیبیة ومعانیها التی تحمل علیها حالة الترکیب وتتمات لذالك کمعرفة النسخ وسبب النزول وقصة توضح ما ابهم فی القران)[5]

علم تفسیري هغه علم دې په کوم کښې چه د قران د الفاظو دا ادا کولو کیفیت ددې مفهوم

---

[1] سنن ابی داود (٣١/٤) کتاب حروف القراءات)-

[2] سنن ترمذی کتاب التفسیر (١٩٩/٥-٤٥٤)-

[3] قال السیوطی فی الاتقان التفسیر تفعیل من الفسر و هو البیان و الکشف و یقال: هو مقلوب السفر تقول اسفر الصبح : اذا ضاء وانظر الاتقان فی علوم القران (٢٢١/٢) ورح المعانی ٦/١)-

[4] البرهان (١٣/١)-

[5] روح المعانی (٦/١)-

ددې افرادي او ترکيبي احکام او ددې د معانيو نه بحث کولې شي کوم چه ددې الفاظو نه په ترکيبي حالت کښې مراد اخستې شي، دغه شان ددې معانيو د تتمې نه بحث کيږي. لکه ناسخ او منسوخ ،شان نزول او د قران د هغه مبهمو قصو معرفت د کومو چه وضاحت نيې نه وي شوې ـ

**په تفسير او تاويل کښې فرق:** د متقدمينو په نيز په تفسير او تاويل کښې څه فرق نشته امام ابوعبيده تصريح کړې ده چه دا دواړه الفاظ بيخي مترادف دی [1] خو روستو عالمانو په دې دواړو کښې فرق کړې دې او د دواړو په مينځ کښې فرق بيانولو کښې ئې مختلف رائيګانې ظاهرې کړې دی،مثلاً څو اقوال دا دی.

① تفسير نوم دې د بيان المراد بالفظ او تاويل نوم دې بيان المراد بالمعنی [2]

② د تفسير تعلق د نقل او روايت سره دې او د تاويل تعلق د عقل او درايت سره دې [3]

③ تفسير د هغه لفظ د تشريح نوم دې په کوم کښې چه د يو نه زياتومعنو احتمال نه وی او تاويل وائې په لفظ کښې چه کوم مختلف معانی محتمل دی د قرائنو او دلائلو په ذريعه په کښې يو اختياروليې شی [4]

④ تفسير په يقين سره تشريح کولو ته وئيلې شی او تاويل په تردد سره تشريح کولو ته وئيلې شی [5] ⑤ تفسير د الفاظو د مفهوم نوم دې او تاويل ددې مفهوم نه د راوتلو نتيجو د وضاحت نوم دې [6]

ددې نه پس پوهه شئ چه د ټولو نه اولنې مفسر د قران رسول الله ﷺ دې او بيا د دوی نه پس په حضراتو صحابه کرامو کښې مفسرين تير شوې دی په صحابه کرامو رضی الله عنهم کښې د ټولو نه مشهور مفسر حضرت عبدالله بن عباس(رض) دې چه رئيس المفسرين ورته وئيلې شی، تابعينو هم په خپلو دورونو کښې تفسيرونه کړې دی او د هغوی نه تفسيری اقوال منقول دی او بيا د دوی نه پس راتلونکی امامان.

د نحو امامانو خاص کر د قران پاک لوې خدمت کړې دې ابو عبيده معمر بن مثنی او فراء وغيره د قران پاک په معانيو باندې کتابونه ليکلې دی ابوعبيده ،،مجاز القران،، او فراء ،،معانی القران،،تاليف کړې دی.

دغه شان حضراتو محدثينو کرامو د قران په تفسير باندې مشتمل کتابونه ليکلې دی او د آياتونو د تفسير متعلق چه کوم روايات مرفوعا اوموقوفا منقول دی هغه ئې يو ځائې کړې دی،

---

[1] الاتقان فی علوم القران ۲۲۱/۲(وروح المعانی ۶/۱ وفتح الباری ۱۵۵/۸)-
[2] فتح الباری ۱۵۵/۸)-
[3] روح المعانی ۶/۱) والاتقان فی علم القران ۲۲/۲)-
[4] الاتقان ۲۲۱/۲)-
[5] علوم القران (۳۲۶)-
[6] علوم القران ۳۲۶)-

په دې سلسله کښې دننه د ټولو نه جامع او مستند تفسير د ابو جعفر بن جرير طبرى دې په يو زمانه کښې په ديرش جلدونو کښې چهاپ شوې وو.

**په کتاب التفسير کښې د امام بخارى رحمه الله انداز:** امام بخارى په کتاب التفسير کښې د ابن جرير طبرى طريقه نه ده اختيار کړې بلکه دوى د ابوعبيده معمر بن مثنى کتاب مجاز القرآن خان ته ايخودې دې او تفسير ئې کړې دې امام بخارى د مفرداتو معانى هم ددې نه نقل کوى او چونکه ابوعبيده په مجاز القرآن کښې د يوې مادې تشريح کوى او دې سره د بلې ماده تشريح شروع کوى د يو سورة نه بل سورة طرف ته منتقل کيږى دغه شان په دې کښې اقوال مرجوحه هم دى ددې وجې د سوء ترتيب او اقوال مرجوحه په وجه د امام بخارى په کتاب التفسير کښې د امام بخارى مختلف انداز دې.

که څه مشکل لفظ وى نو اکثر د هغې تشريح کوى

که د آيت شان نزول او پس منظر څه واقعه سره متعلق وى نو هغه واقعه بيانوى

که د څه ايت فضيلت په روايت سره ثابت وى نو د هغې ايت لاندې هغه روايت ذکر کوى.

بعضې وخت داسې کيږى چه په ايت قرانيه کښې څه لفظ راغلې وى او بعينه هم هغه لفظ په حديث کښې هم راغلې وى نو امام بخارى دغه حديث ددې ايت لاندې ذکر کوى ځکه چه بعضې وخت د حديث د پوره کلام نه د ايت مراد او د هغې د معنى تعيين کيږى

رسول اکرم ﷺ که د يو سورة په اختتام باندې د بعضې کلماتو د وئيلو تلقين کړې وى نو امام بخارى د هغه سورة ذکر کولو نه پس هغه کلمات بيانوى

دغه شان د امام بخارى يو عادت دا هم دې کهٔ د يو شان نزول په وخت ګڼړ آيتونه هم په يو وخت کښې نازل شوې وى نو امام بخارى په دغه اياتونو کښې د هر لاندې هغه روايت په کوم کښې چه شان نزول مذکور وى بار بار مکرر اسانيدو سره ذکر کوى، لکه څنګه چه د سورة بقره په آيت ۱۴۳ (وما جعلنا القبلة التى كنت عليها) نه واخله تر د ايت ۱۵۰ (ومن حيث خرجت فول وجهك شطر المسجد الحرام) پورې د هر يو لاندې ئې د قبلې روايت کوم چه د حضرت ابن عمر او حضرت براء بن عازب نه منقول دې ذکر کړې دې.

**قوله:** الرحمن الرحيم اسمان من الرحمة الرحيم والراحم بمعنى واحد كالعليم والعالم: امام بخارى فرمائى چه رحمان او رحيم دواړه اسمونه دى د رحمت نه مشتق دى په رحمن او رحيم دواړو کښې د معنى په اعتبار سره فرق دې رحمن د رحيم نه ابلغ دې ځکه چې قاعده ده (زيادة المبنى تدل على زيادة المعنى) په رحمان کښې الفاظ د رحيم نه زيات دى ددې وجې د رحمن نه د الله تعالى هغه صفت مراد دې کوم چه د ټول مخلوق د پاره عام وى او د رحيم نه هغه صفت د رحمت مراد دې کوم چه صرف مومنانو سره خاص دې[1]

بعضو وئيلې دى چې د رحمن نه مراد عام معنى الرحمة او د رحيم معنى تام الرحمة دې ، د

[1]) عمدة القارى (۷۹/۱۷)-

عام الرحمة مطلب دادې چه هغه ذات د چا رحمت چه ټول عالم او ټولو کائناتو باندې حاوی او شامل دې او د تام الرحمة مطلب دادې چه دده رحم کامل او مکمل دې او بعضې حضراتو وئیلې دی (الرحمن من تعم الدنیا والاخرة، والرحیم من تخص رحمته بالاخرة)[1]

مبرد او ثعلب وئیلې دی چه رحمان د عبرانې لفظ دې او رحیم د عربئ لفظ دې خو ابن الانباری او زجاج وغیره ددې تردید کړې دې ([2])او حقیقت هم دادې چې د رحیم په شان رحمان هم د رحمت نه مشتق دې په ترمذی شریف کښې د رسول الله ﷺ ارشاد دې چه الله تعالی فرمائی (انا الرحمن خلقت الرحم وشققت لها من اسمی فمن وصلها وصلته ومن قطعها بتته)[3]

امام بخاری چه دا کوم فرمائیلې دی چه (الرحیم والراحم بمعنی واحد) یعنی رحیم او راحم په یو معنی دی ددې نه مقصد دادې چه د دواړو ماده یوه ده ،او نفس معنی د دواړو یوه ده، یعنی رحمت کښې رحیم د مبالغې یا د صفت مشبه صیغه ده او راحم اسم فاعل دې او د مبالغې صیغه د معنې په زیادت باندې دلالت کوي دغه شان د صفت مشبه صیغه په ثبوت اودوام باندې دلالت کوی او د اسم فاعل د په نفس حدوث فعل باندې دلالت کوی ددې وجې د صیغې په اعتبار سره په رحیم او راحم کښې فرق شته البته نفس معنی په دواړو کښې یوه ده او امام بخاری په دې اعتبار سره دواړو ته بمعنی واحد وئیلې دی ([4])

## ١ - بَاب: مَا جَاءَ فِي فَاتِحَةِ الْكِتَابِ

وَسُمِّيَتْ أُمَّ الْكِتَابِ أَنَّهُ يُبْدَأُ بِكِتَابَتِهَا فِي الْمَصَاحِفِ، وَيُبْدَأُ بِقِرَاءَتِهَا فِي الصَّلَاةِ. وَالدِّينُ الْجَزَاءُ فِي الْخَيْرِ وَالشَّرِّ، كَمَا تَدِينُ تُدَانُ. وَقَالَ مُجَاهِدٌ بِالدِّينِ بِالْحِسَابِ (مَدِينِينَ) مُحَاسَبِينَ.

**سورة فاتحه ته ''ام الکتاب،، ولې وائی؟:** امام بخاری فرمائی چه سورة فاتحې ته ،،ام الکتاب،، هم وائی یو خو ددې وجې چه دا د مصاحف په ابتداء کښې لیکلې شی دویم ددې وجې چه په مانځه کښې هم ددې د قراءت نه ابتدا کیږی د امام بخاری د بیان کړې ذکر شووو دواړو وجوهو نه په ظاهره د فاتحة الکتاب وجه تسمیه معلومیږی ،ام الکتاب نه خو حقیقت دادې چه د دواړو وجه تسمیه ده ،د فاتحه الکتاب وجه تسمیه خو ښکاره ده او د ام الکتاب وجه ددې وجې ده چه مور هم د بچی نه وړاندې وی او د ولد مبداء وی ([5])

---

[1]) قال ابن فتیبه فی المحرر الوجیز ٩٧/١ ان اباسعید وابن مسعود رویا ان الرسول قال الرحمان رحمان الدنیا والرحیم رحیم الاخرة وانظر مجمع البحرین ٢١/١ و تفسیر النسفی ٥/١)-

[2]) فتح الباری ١٥٥/٨)-

[3]) بحواله بالا

[4]) حاشیة لامع الدری ٣/٩)-

[5]) عمدة القاری ٨٠/١٨)-

بعضي حضراتو وئيلي دی چه د ام الشئ معنی اصل الشئ او سورة فاتحه هم اصل الكتاب ده، د قران ټول بنيادی مضامين په دې کښې اجمالا جمع دی[۱]

علامه ابن سيرين او تقی الدين بن مخلد فرمائيلي دی چه دفاتحة الكتاب ته ام الكتاب وئيل مکروه دی، ځکه چې ام الكتاب لوح محفوظ ته وائی په قران کريم کښې دی «وعنده ام الكتاب»[۲]، «وانه فی ام الكتاب»[۳] په دې ايتونو کښې د ام الكتاب نه لوح محفوظ مراد دې دغه شان د يو حديث نه هم دوی استدلال کوی «لايقولن احدكم بام الكتاب وليقل فاتحة الكتاب»[۴]

خو حقيقت دادې چه سورة فاتحه نوم ،،ام الكتاب،، په صحيح حديث کښې مروی دې دار قطنی صحيح حديث نقل کړې دې «اذا قراتم الحمد فاقرؤا بسم الله الرحمن الرحيم انها ام القران وام الكتاب والسبع المثاني»[۵]

باقی ابن سيرين او تقی الدين چه په استدلال کښې کوم حديث پيش کړې دې هغه صحيح نه دې ،علامه سيوطی رحمه الله ددې متعلق فرمائی «هذا لا اصل له فی شئی من كتب الحديث»[۶]

**د سورة فاتحه نومونه:** د سورة فاتحه څو نومونه دی علامه سيوطی په الاتقان کښې د سورة فاتحه پنځويشت نومونه نقل کړې دی

(۱) فاتحة الكتاب (۲) فاتحة القران (۳) ام الكتاب (۴) ام القران (۵) القران العظيم، (۶) السبع المثاني، (۷) الوافية، (۸) الكنز ، (۹) الكافية ،(۱۰) الاساس، (۱۱) النور، (۱۲) سورة الحمد، (۱۳) سورة الشكر، (۱۴) سورة الحمد الاولی، (۱۵) سورة الحمد القصری، (۱۶) الراقية، (۱۷) الشفاء، (۱۸) الشافية، (۱۹) سورة الصلاة، (۲۰) سورة الدعاء، (۲۱) سورة السوال، (۲۲) سورة تعليم المسئلة، (۲۳) سورة المناجاة، (۲۵) سورة التفويض[۷]

**قوله: الصَّلَاةِ. وَالدِّينُ الْجَزَاءُ فِي الْخَيْرِ وَالشَّرِّ، كَمَا تَدِينُ تُدَانُ:**

**د لفظ ``دين،، معنی:** يعنی په مالك يوم الدين کښې ددين معنی جزاء او بدله ده که د خير وی او که د شر وی، دين دواړو ته شامل دې لکه چې وئيلي شی كما تدين تدان چې څنګه کوې هغه

---

[۱] الاتقان فی علوم القران (۸٤/۱)-

[۲] الرعد ۳۹)-

[۳] الرحرف : ٤ كل اية (وانه فی ام الكتاب لدينا لعلی حكيم)-

[۴] الاتقان فی علوم القران (۷۰/۱)-

[۵] الاتقان فی علوم القران ۷۰/۱ وسنن دارقطنی كتاب الصلاة باب وجوب قراتم بسم الله الرحمن الرحيم فی الصلاة ۳۱۲/۱)-

[۶] الاتقان فی علوم القران (۷۰/۱)-

[۷] الاتقان فی علوم القران (۷۱،۷۰/۱)-

شان به بیا مومي، دا حدیث مرسل دي عبدالرزاق ذ ابوقلابه نه مرسلا نقل کړي دي[1] په کما تدین تدان کښې کاف د مثل په معنی کښې دي او ما تدین د مصدر په معنی کښې دي ددي نه وړاندې (دینا) محذوف دي کوم چې د تدان د پاره مفعول مطلق واقع شوي دي اصل عبارت دادې (تدان دینا مثل دینك) یعنی ته چې څنګه عمل کوې هم هغه شان جزا به تاته درکولې شي.

**قوله:** وقال المجاهد بالدین (الماعون: ١) بالحساب مدینین (الواقعه ٨٦) محاسبین: امام بخاری د سورة فاتحې نه د سورة ماعون او سورة انفطار ایت (أَرَءَيْتَ الَّذِي يُكَذِّبُ بِالدِّينِ) او (كَلَّا بَلْ تُكَذِّبُونَ بِالدِّينِ) طرف ته منتقل شوي دي ځکه چې په دي دواړو ایتونو کښې د دین معنی حساب ده ،دغه شان د سورة واقعه په ایت (فَلَوْلَا إِن كُنتُمْ غَيْرَ مَدِينِينَ) [2] کښې د مدینین معنی (محاسبین) ده

ددین د لفظ نورې هم څو معاني راځی ،عادت، عمل ، حکم ، حال، حق ، طاعت ،قهر ،ملت، شریعت ،ورع ، سیاست،[3]

[۴۲۰۴] حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا يَحْيَى عَنْ شُعْبَةَ قَالَ حَدَّثَنِي خُبَيْبُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ عَنْ حَفْصِ بْنِ عَاصِمٍ عَنْ أَبِي سَعِيدِ بْنِ الْمُعَلَّى قَالَ: كُنْتُ أُصَلِّي فِي الْمَسْجِدِ فَدَعَانِي رَسُولُ اللَّهِ-صلى الله عليه وسلم- فَلَمْ أُجِبْهُ، فَقُلْتُ يَا رَسُولَ اللَّهِ إِنِّي كُنْتُ أُصَلِّي. فَقَالَ «أَلَمْ يَقُلِ اللَّهُ (اسْتَجِيبُوا لِلَّهِ وَلِلرَّسُولِ إِذَا دَعَاكُمْ) ثُمَّ قَالَ لِي لأُعَلِّمَنَّكَ سُورَةً هِيَ أَعْظَمُ السُّوَرِ فِي الْقُرْآنِ قَبْلَ أَنْ تَخْرُجَ مِنَ الْمَسْجِدِ». ثُمَّ أَخَذَ بِيَدِي، فَلَمَّا أَرَادَ أَنْ يَخْرُجَ قُلْتُ لَهُ أَلَمْ تَقُلْ «لأُعَلِّمَنَّكَ سُورَةً هِيَ أَعْظَمُ سُورَةٍ فِي الْقُرْآنِ». قَالَ «(الْحَمْدُ لِلَّهِ رَبِّ الْعَالَمِينَ) هِيَ السَّبْعُ الْمَثَانِي وَالْقُرْآنُ الْعَظِيمُ الَّذِي أُوتِيتُهُ.»[۴۷۲۰، ۴۴۲۶، ۴۳۷۰]

**قوله:** فَقَالَ «أَلَمْ يَقُلِ اللَّهُ (اسْتَجِيبُوا لِلَّهِ وَلِلرَّسُولِ إِذَا دَعَاكُمْ):

**د نبی کریم ﷺ په اواز باندې د لبیک ویونکی مونځ کونکی مونځ به فاسد وی یا نه؟** په دې خبره خو اتفاق دې که نبی ﷺ یو کس راوبلی او هغه د مانځه په حالت کښې وی نو د نبی ﷺ د بلنې اجابت پکار دې خو په دې لبیک سره به د دغه کس مونځ باطلیږی که نه ؟ په دې کښې د احنافو ،مالکیانو او حضراتو شوافعو دوه قولونه دی ،د مالکیانو او شوافعو په نیز راجع قول عدم فساد دې او د احنافو په نیز مشهورقول د فساد دې،امام بخاری هم دا اختیارکړې دې[4]

[1] عمدة القاری ٨٠/١٨)-
[2] سورة الواقعه ٨۶)-
[3] عمدة القاری ٨٠/١٨)-
[4] اوجز المسالک(٨٨/٢) باب ما جاء فی القران)-

بعضې حضرات وائي چه مونځ نه فاسيد يږي(۱)

**قوله: هِيَ السَّبْعُ الْمَثَانِي وَالْقُرْآنُ الْعَظِيمُ الَّذِي أُوتِيتُهُ:**

**سورة فاتحه ته د ''سبع مثاني،، وئيلو وجوه:** سورة فاتحې ته سبع مثاني هم وائي ،سبع خو ورته ددې وجه وائې چې د سورة فاتحې اووه اياتونه دى ،په اووه اياتونو كيدو كښې خو څه اختلاف نشته،البته ددې په تعين كښې اختلاف دې د احنافو په نيز «صراط الذين انعمت عليهم» يو آيت دې او بسم الله د سورة فاتحې آيت نه دې.

د شوافعو په نيز «صراط الذين انعمت عليهم» مستقل يو ايت نه دې بلكه «صراط الذين» نه واخله تر «ولا الضالين» پورې اووه اياتونه دې او د سورة فاتحې اولنې ايت «بسم الله» دې (۲)

مثاني د مثنى جمع ده د مثنى معنى ده دوه دوه ،د مثاني مختلف وجوه تسميه بيان شوې دى

① ددې نزول دوه ځله شوې دې يو ځل په مكه كښې او په دويم ځل مدينه كښې

② «لانها تثنى فى كل ركعة اى تعاد» يعنى په هر ركعت كښې ددې اعاده كولې شى.

③ «لانها يثنى بها على الله تعالى» يعنى په دې كښې د الله تعالى تعريف ثناء بيان شوې وى.

④ «لانها استثنيت له الامة لم تنزل على من قبلها» يعنى دا سورت امت محمديه ته استثنائى او خصوصى طور وركړې شوې دې (۳)

خو حقيقت دا دې ،برابره ده كه د ثناء نه ماخوذ وى يا د تثنيه نه ماخوذ وى يا د استثناء نه ماخوذ وى ،نو په دې كښې څه تعارض نشته ددې ټولو وجوهو په بنياد باندې دې سورت ته مثاني وائي.

**سورة فاتحه ته د ''قران عظيم،، وئيلو وجه:** سورة فاتحې ته قران عظيم هم وائي ځكه چې د قران بنيادى مضامين په دې سورت كښې اجمالا راغلې دى ددې وجې د عظمت او اهميت ښكاره كولو د پاره «تسمية الكل باسم الجزء» په طور سورة فاتحې ته القران العظيم وائي.

د قران بنيادى مضامين د مبدا او معاد سره متعلق دى په مبدا كښې د الله تعالى ذات، صفات او احكام راځى په معاد كښې حشر نشر جزاء او سزا راځى،د سورة فاتحې په اولنى دوو آيتونو كښې د الله تعالى د ذات او صفاتو ذكر دې په اياك نعبد كښې احكامو طرف ته اشاره ده،نو د مبداء ذكر راغلو ،او په «اهدنا الصراط..» د حشر نشر او جزاء سزا تذكره ده.كوم چې د معاد سره متعلق دى ـ

---

(۱) قال العينى فى شرح البخارى :قال صاحب التوضيح : صرح اصحابنا ،فقالو ،من خصائص النبى ﷺ لو دعا انسانا وهوفى الصلاة وجب عليه الاجابة ولا تبطل صلاته وانظر اوجز المسالك الى موطا الامام مالک (۸۱/۲)-

(۲) عمدة القارى ۸۱/۱۸)-

(۳) الاتقان فى علوم القران ۷۱/۱)-

## ⑵ باب (غَيْرِ الْمَغْضُوبِ عَلَيْهِمْ وَلَا الضَّالِّينَ)

[۴۲۰۵] حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ يُوسُفَ أَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنْ سُمَيٍّ عَنْ أَبِي صَالِحٍ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ- رضي الله عنه- أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ- صلى الله عليه وسلم- قَالَ «إِذَا قَالَ الإِمَامُ (غَيْرِ الْمَغْضُوبِ عَلَيْهِمْ وَلَا الضَّالِّينَ) فَقُولُوا آمِينَ. فَمَنْ وَافَقَ قَوْلُهُ قَوْلَ الْمَلَائِكَةِ غُفِرَ لَهُ مَا تَقَدَّمَ مِنْ ذَنْبِهِ»

د (غير المغضوب عليهم) مصداق یهودیان دی او د (الضالین) مصداق نصاری دی.

**ترجمة الباب سره د روایت باب مناسبت:** ددې روایت تعلق د تفسیر سره نه دې، تفسیر خو ددې هغه دې کوم چه امام ترمذی بیان کړې دې چه د (المغضوب علیهم) نه یهود او د (الضالین) نه نصاری مراد دی، (۱) علامه عینی ددې روایت په دې ځائې کښې ذکر کولو باندې اعتبار کړې دې چې ددوی د تفسیر سره څه تعلق نشته، دا د فضائل القران په بابونو کښې ذکر کول پکار وو، (۲) خو لکه څنګه چې بیان شوې دی چې امام بخاری د ادنی مناسبت په وجه هم روایت ذکر کوی.

## تفسیر سورة البقرة

**بقره طرف ته د سورة اضافت کولوکې اختلاف او قول راجح:** ددې نه دا معلومه شوه چې سورة بقره طرف ته اضافت کولو کښې څه حرج نشته، بیهقی په شعب الایمان کښې یو روایت نقل کړې دې په هغې کښې دی (لا تقولوا: سورة بقرة ولا سورة عمران ولا سورة نساء ولكن قولوا السورة التي تذكر فيها البقرة والسورة التي يذكر فيها آل عمران)

خو دا روایت صحیح نه دې ددې روایت کښې یحیی بن میمون خواص یو ضعیف راوی دې په صحیحینو کښې د حضرت عبد الله بن مسعود نه یو روایت منقول دې په هغې کښې دی (هذا المقام الذي انزلت عليه سورة البقرة) دغه شان حضرت عائشه رضي الله عنها نه بیهقی یو روایت نقل کړې دې په هغې کښې دی (كنت اقوم مع رسول الله ﷺ في الليل، فيقرأ بالبقرة وآل عمران والنساء) دغه شان امام ترمذی په شمائل کښې د عوف بن مالک نه روایت نقل کوی چه په هغې کښې (قمت مع رسول الله ﷺ ليلة فقام، فقرأ سورة البقرة ولا يمر بآية رحمة الا وقف)

ددې احادیثو نه معلومه شوه چې سورة بقره او سورة نساء وغیره وئیل صحیح دی (۳)

سورة بقره مدنی دې په دې کښې څلویښت رکوع ګانې، دوه سوه شپږ اتیا آیتونه، شپږ زره او یو سل یوویشت کلمات، او پنځویشت زره پنځه سوه حروف دی، په سورة بقره کښې پنځلس

---

(۱) سنن الترمذی کتاب تفسیر القران رقم الحدیث (۲۸۵۴)-

(۲) عمدة القاری ۱۸/۸۱)-

(۳) فتح القدیر (۱/۲۹۲۸)-

امثال ،پنځه سوه حکمتونه او درې سوه شپیته رحمتونه دی.(۱)

## ③ باب قَوْلِ اللَّهِ (وَعَلَّمَ آدَمَ الأَسْمَاءَ كُلَّهَا)

**حضرت ادم علیه السلام ته د کومو څیزونو نومونه ښودلی شوی وو؟:** په دې کښې اختلاف دې چې دغه نومونه د کومو څیزونو وو ،بعضې حضراتو وئیلې دی چې د ادم علیه السلام د اولاد نومونه وو ،بعضو وئیلې دی چې د فرشتو نومونه وو ،بعضو وئیلې دی چه د اجناس اشیاء نومونه وو. او بعضو وئیلې دی چې د اشیاء مافی الارض نومونه وو(۲)مولانا انور شاه کشمیری رحمه الله فرمائیلې دی چې ددې نه د هغه څیزونو نومونه مراد دی د کومو علم چې ضروری دې.(۳)

**یو اشکال او د هغې جواب:** دلته اشکال کیږی چې الله تعالی د امتحان اخستلو په وخت حضرت ادم علیه السلام په فرشتو باندې د غلبې دا صورت ښکاره کړو چې دوی ته ئې نومونه اوښودل، او د فرشتو نه ئې سوال اوکړو نو هغوی اووئیل (لاعلم لنا الا ما علمتنا) چې د حضرت ادم علیه السلام نه ئې سوال اوکړو نو هغوی نومونه اوخودل،الله تعالی فرشتو ته اوفرمائیل (قال الم اقل لکم انی اعلم غیب السموات والارض واعلم ما تبدون وما کنتم تکتمون) سوال دا دې چه حضر ت ادم علیه السلام ته الله تعالی تعلیم ورکړې وو او فرشتو ته ئې ددې نومونو تعلیم نه وو ورکړې ،نو د فرشتو دا امتحان پاس کول به څنګه ممکن وو؟ که فرشتو ته ئې دغه نومونو خودنه کړې ده نو هغوی به هم بیان کړې وو.

ددې جواب دادې چه ددې سوال او جواب نه مقصود په فرشتو باندې دا حقیقت ښکاره کول وو چه د خورې په دې قالب کښې دومره لوئې صلاحیت او استعداد موجود دې که مونږ اوغواړو نو دد ته به په دنیا کښې په تاسو باندې فوقیت ورکړو او بعضې داسې علوم به ورته اوښایو چې د هغې تاسو ته هم علم نشته نو په دې امتحان کښې د حضرت ادم علیه السلام علمی صلاحیت ښکاره شو(۴)

[۴۲۰۶] حَدَّثَنَا مُسْلِمُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ حَدَّثَنَا هِشَامٌ حَدَّثَنَا قَتَادَةُ عَنْ أَنَسٍ - رضى الله عنه - عَنِ النَّبِيِّ - صلى الله عليه وسلم - . وَقَالَ لِي خَلِيفَةُ حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ زُرَيْعٍ حَدَّثَنَا سَعِيدٌ عَنْ قَتَادَةَ عَنْ أَنَسٍ - رضى الله عنه - عَنِ النَّبِيِّ - صلى الله عليه وسلم - قَالَ «يَجْتَمِعُ الْمُؤْمِنُونَ يَوْمَ الْقِيَامَةِ فَيَقُولُونَ لَوِ اسْتَشْفَعْنَا إِلَى رَبِّنَا فَيَأْتُونَ آدَمَ فَيَقُولُونَ أَنْتَ أَبُو النَّاسِ ، خَلَقَكَ اللَّهُ بِيَدِهِ وَأَسْجَدَ لَكَ مَلاَئِكَتَهُ ، وَعَلَّمَكَ أَسْمَاءَ كُلِّ شَىْءٍ ، فَاشْفَعْ لَنَا عِنْدَ رَبِّكَ حَتَّى يُرِيحَنَا مِنْ مَكَانِنَا هَذَا . فَيَقُولُ لَسْتُ هُنَاكُمْ - وَيَذْكُرُ ذَنْبَهُ فَيَسْتَحِى - ائْتُوا نُوحًا فَإِنَّهُ أَوَّلُ رَسُولٍ بَعَثَهُ

(۱) عمدة القارى ۸۱/۱۸)-
(۲) عمدة القارى ۸۳/۱۸) وفتح البارى ۱۲۰/۸)-
(۳) فيض البارى ۱۵۵/٤)-
(٤) روح المعانى ۲۲۵.۲۲۷/۱)-

اللَّهُ إِلَى أَهْلِ الأَرْضِ. فَيَأْتُونَهُ فَيَقُولُ لَسْتُ هُنَاكُمْ. وَيَذْكُرُ سُؤَالَهُ رَبَّهُ مَا لَيْسَ لَهُ بِهِ عِلْمٌ فَيَسْتَحِي، فَيَقُولُ ائْتُوا خَلِيلَ الرَّحْمَنِ. فَيَأْتُونَهُ فَيَقُولُ لَسْتُ هُنَاكُمْ، ائْتُوا مُوسَى عَبْدًا كَلَّمَهُ اللَّهُ وَأَعْطَاهُ التَّوْرَاةَ. فَيَأْتُونَهُ فَيَقُولُ لَسْتُ هُنَاكُمْ. وَيَذْكُرُ قَتْلَ النَّفْسِ بِغَيْرِ نَفْسٍ فَيَسْتَحِي مِنْ رَبِّهِ فَيَقُولُ ائْتُوا عِيسَى عَبْدَ اللَّهِ وَرَسُولَهُ، وَكَلِمَةَ اللَّهِ وَرُوحَهُ. فَيَقُولُ لَسْتُ هُنَاكُمْ، ائْتُوا مُحَمَّدًا - صلى الله عليه وسلم - عَبْدًا غَفَرَ اللَّهُ لَهُ مَا تَقَدَّمَ مِنْ ذَنْبِهِ وَمَا تَأَخَّرَ. فَيَأْتُونِي فَأَنْطَلِقُ حَتَّى أَسْتَأْذِنَ عَلَى رَبِّي فَيُؤْذَنُ {لِي} فَإِذَا رَأَيْتُ رَبِّي وَقَعْتُ سَاجِدًا، فَيَدَعُنِي مَا شَاءَ اللَّهُ ثُمَّ يُقَالُ ارْفَعْ رَأْسَكَ، وَسَلْ تُعْطَهْ، وَقُلْ يُسْمَعْ، وَاشْفَعْ تُشَفَّعْ. فَأَرْفَعُ رَأْسِي فَأَحْمَدُهُ بِتَحْمِيدٍ يُعَلِّمُنِيهِ، ثُمَّ أَشْفَعُ، فَيَحُدُّ لِي حَدًّا، فَأُدْخِلُهُمُ الْجَنَّةَ، ثُمَّ أَعُودُ إِلَيْهِ، فَإِذَا رَأَيْتُ رَبِّي - مِثْلَهُ - ثُمَّ أَشْفَعُ، فَيَحُدُّ لِي حَدًّا، فَأُدْخِلُهُمُ الْجَنَّةَ {ثُمَّ أَعُودُ الثَّالِثَةَ} ثُمَّ أَعُودُ الرَّابِعَةَ فَأَقُولُ مَا بَقِيَ فِي النَّارِ إِلاَّ مَنْ حَبَسَهُ الْقُرْآنُ وَوَجَبَ عَلَيْهِ الْخُلُودُ». قَالَ أَبُو عَبْدِ اللَّهِ «إِلاَّ مَنْ حَبَسَهُ الْقُرْآنُ». يَعْنِي قَوْلَ اللَّهِ تَعَالَى (خَالِدِينَ فِيهَا).

**قوله: فَيَقُولُونَ أَنْتَ أَبُو النَّاسِ، خَلَقَكَ اللَّهُ بِيَدِهِ:**

**په ``خلقک الله بيده،، کې د ``يد،، نه څه مراد دي؟**: بعضو وئيلي دی چې دلته د (يد)نه مراد قدرت دې که قدرت مراد وی نو بيا د حضرت ادم عليه السلام فضيلت څه شو ابليس هم الله تعالی په خپل قدرت پيدا کړې دې ددې وجې اکثر عالمان فرمائی چې د يد نه مراد د الله تعالی صفت ذاتيه دې الله تعالی د حضرت ادم عليه السلام په تخليق کښې خپل خاص صفت ذاتيه داسې استعمال کړو چې په دې کښې نی څه قسمه واسطه حائله نکړه[1]

**قوله: وَأَسْجَدَ لَكَ مَلاَئِكَتَهُ:**

**د سجود ادم نه کومه سجده مراد ده؟**: دلته دوه خبرې دی يو دا چې ددې سجدې نه کومه سجده مراد ده .دويمه دا چې سجده ټولو فرشتو کړې وه که بعضو.؟

د سجود په باره کښې خو د بعضې رائې داده چې ددې نه خضوع او تذلل مراد دې حقيقی سجده (وضع الجبهة على الارض)مراد نه ده[2]

خو مشهوره هم داده چې ددې نه حقيقی سجده مراد ده[3]

بيا ددې په نوعيت کښې اختلاف دې شيخ الاسلام حافظ ابن تيميه اوحافظ ابن کثير رحمهما الله

---

[1] قال ابی فی شرح المسلم//۳۵۵)قوله خلق الله بيده..ای بقدرته وهو تنبيه على ان خلقه ليس كخلق بنيه سن تقلبهم فی الرحام وغير ذلک من الوسائط ولا فکل شئ بقدرته عزوجل..وفی فتح الملهم ۳۶۲/۱) خلقک الله بيده ای بلا واسطة او بقدرته الکاملة او ارادته الشاملة)-

[2] ) الجامع الاحکام القران۱/۲۹۳)-

[3] ) !لجامع لاحکام القران (۱/۲۹۳)-

فرمائي چې دا سجده تحيه او سجده د تعظيم وه او حضرت ادم علیه السلام حقيقت کښې مسجود وو[۱] او بعضې عالمان فرمائي چې سجده د عبادت وه معبود برحق الله تعالى ذات کرامي وو د حضرت ادم علیه السلام حيثيت د قبلې وو، مجدد الف ثاني رحمه الله دا اختيار کړې ده.

**دا سجده ټولو ملائکو کړې وه يا بعضو؟** : د دويمې خبرې په باره کښې ابن حزم او حافظ ابن کثير فرمائي چې دا سجده ټولو فرشتو کړې وه[۲] او بعضو وئيلې دي چې صرف هغه فرشتو سجده کړې وه چې د کومو تعلق د زمکې سره وو[۳]

**قوله:** قَوْلِ اللّٰهِ (وَعَلَّمَ آدَمَ الْأَسْمَاءَ كُلَّهَا): ددې روايت نه دادې مقصود بالترجمه.

**قوله:** ائتوا نوحا فانه اول رسول بعثه الله الى اهل الارض:

**حضرت نوح ''اول رسول،، په کوم حيثيت سره دې؟** : اولنې رسول خو حضرت ادم علیه السلام دې حضرت نوح علیه السلام ته اول رسول د طوفان نوح نه پس حيثيت سره وئيلې شوې دې چې د طوفان نه پس هم نوح علیه السلام په مخ د زمکې د ټولو نه اولنې رسول وو.

**قوله:** فَيَقُولُ لَسْتُ هُنَاكُمْ): زه ددې درجې سړې نه يم حضرت ادم علیه السلام دا خبره د عاجزئى د وجې کړې وه ګنې هغه د الله تعالى نبي ﷺ دې او ددې خبرې يقينا قابل او لائق دې چې د رب العزت په دربار کښې سفارش اوکړې.

او ددې معنى دا هم کيدې شي چې دا کار د بل چا د پاره مقرر دې ،الله تعالى د وړاندې نه دا فيصله کړې ده چه دا سفارش به څوک کوى نو زه دا کار نشم کولې[۴]

**قوله:** فانه رايت ربي مثله:

**د کلماتو تشريح**: يعنى (افعل مثل ما سبق من السجود ورفع الراس وغيره) يعنى دوباره به د وړاندې په شان سجده او دعا دغيره اوکړم ،په بعضې روايتونو کښې دى چې ددې سجدې موده به يو هفته وى[۵]

## ۴ - باب

قَالَ مُجَاهِدٌ (إِلَى شَيَاطِينِهِمْ) أَصْحَابِهِمْ مِنَ الْمُنَافِقِينَ وَالْمُشْرِكِينَ (مُحِيطٌ بِالْكَافِرِينَ) اللّٰهُ جَامِعُهُمْ (عَلَى الْخَاشِعِينَ) عَلَى الْمُؤْمِنِينَ حَقًّا . قَالَ مُجَاهِدٌ (بِقُوَّةٍ) يَعْمَلُ بِمَا فِيهِ. وَقَالَ أَبُو الْعَالِيَةِ (مَرَضٌ) شَكٌّ ، (وَمَا خَلْفَهَا) عِبْرَةٌ لِمَنْ بَقِيَ . (لَا شِيَةَ) لَا

[۱] تفسير ابن كثير ۷۸/۱)-
[۲] تفسير قرطبى ۲۹۳/۱)-
[۳] تفسير ابن كثير ۲۳۸/۱)-
[۴] فتح البارى ۴۳۳/۱۱) كتاب الرقاق باب صفة الجنة والنار واكمال اكمال المعلم ۳۵۵/۱) ومكمل اكمال الاكمال ۳۵۵/۱)_
[۵] فتح البارى ۴۳۷/۱۱) كتاب الرقاق باب صفة الجنة والنار)-

بَيَاضٌ. وَقَالَ غَيْرُهُ (يَسُومُونَكُمْ) يُولُونَكُمْ. (الْوَلَايَةُ) مَفْتُوحَةٌ مَصْدَرُ الْوَلَاءِ، وَهِيَ الرُّبُوبِيَّةُ، إِذَا كُسِرَتِ الْوَاوُ فَهِيَ الإِمَارَةُ. وَقَالَ بَعْضُهُمُ الْحُبُوبُ الَّتِي تُؤْكَلُ كُلُّهَا فُومٌ. وَقَالَ قَتَادَةُ (فَبَاءُوا) فَانْقَلَبُوا. وَقَالَ غَيْرُهُ (يَسْتَفْتِحُونَ) يَسْتَنْصِرُونَ. (شَرَوْا) بَاعُوا. (رَاعِنَا) مِنَ الرُّعُونَةِ إِذَا أَرَادُوا أَنْ يُحَمِّقُوا إِنْسَانًا قَالُوا رَاعِنَا. (لَا يَجْزِي) لَا يُغْنِي. (خُطُوَاتِ) مِنَ الْخَطْوِ، وَالْمَعْنَى آثَارَهُ.

**قوله:** قَالَ مُجَاهِدٌ (إِلَى شَيَاطِينِهِمْ): يعنی په ﴿وَإِذَا خَلَوْا إِلَى شَيٰطِينِهِمْ﴾ کښې د شياطين نه مراد منافقين او مشرکان دی، چې دا خلق هم د شيطانانو پشان حرکات کوی او خلق د ايمان نه د لرې ساتلو کوششونو کښې لګيدلی دی.

**قوله:** مُحِيطٌ بِالْكَافِرِينَ) اللّٰهُ جَامِعُهُمْ): د سورة بقرة ايت دې ﴿أَوْ كَصَيِّبٍ مِّنَ السَّمَآءِ فِيهِ ظُلُمٰتٌ وَرَعْدٌ وَبَرْقٌ ۚ يَجْعَلُونَ أَصٰبِعَهُمْ فِيٓ ءَاذَانِهِم مِّنَ الصَّوٰعِقِ حَذَرَ الْمَوْتِ ۚ وَاللّٰهُ مُحِيطٌ بِالْكٰفِرِينَ﴾ مجاهد د ﴿مُحِيطٌ بِالْكٰفِرِينَ﴾ تفسير کړې دې (الله جامعهم) الله ددې ټولو جمع کونکې دې، د الله د رانيولو نه دوی نشی بچ کيدې.

**قوله:** صبغة: دين: يعنی ﴿صِبْغَةَ اللّٰهِ ۚ وَمَنْ أَحْسَنُ مِنَ اللّٰهِ صِبْغَةً﴾ کښې د ﴿صِبْغَةً﴾ نه مراد دين دې د ﴿صِبْغَةَ اللّٰهِ﴾ معنی دا، د الله دين مضبوط اونسئ، د مجاهد نه د ﴿صِبْغَةَ اللّٰهِ﴾ تفسير په (فطرة الله) سره هم منقول دې [1]

**قوله:** عَلَى الْخَاشِعِينَ) عَلَى الْمُؤْمِنِينَ حَقًّا: يعنی ﴿وَاسْتَعِينُوا بِالصَّبْرِ وَالصَّلٰوةِ ۚ وَإِنَّهَا لَكَبِيرَةٌ إِلَّا عَلَى الْخٰشِعِينَ﴾ کښې د خاشعين نه حقيقی مومنان مراد دی په دې کښې دې خبرې طرف ته اشاره ده چه په حقيقی مومن کښې به خشوع وی، د خاشعين تفسير په خائفين او متواضعين سره هم شوې دې [2]

**قوله:** قَالَ مُجَاهِدٌ (بِقُوَّةٍ) يَعْمَلُ بِمَا فِيهِ: د سورة بقرة په ايت ﴿خُذُوا مَآ ءَاتَيْنٰكُم بِقُوَّةٍ﴾ کښې د قوت نه مراد عمل دې په دې قوت سره د نيولو مطلب دادې چه په دې باندې عمل کونی بعضې حضراتو د (قوت) نه مراد طاعت او بعضو کوشش اومحنت هم مراد اخستې دې [3]

**قوله:** وَقَالَ أَبُو الْعَالِيَةِ (مَرَضٌ) شَكٌّ: ابوا العاليه فرمائی چه په ﴿فِي قُلُوبِهِم مَّرَضٌ﴾ کښې د مرض نه مراد شک دې. ددې نه معلومه شوه چه دلته د مرض نه روحانی مرض مراد دې، جسمانی مرض نه دې.

**قوله:** وَمَا خَلْفَهَا) عِبْرَةٌ لِمَنْ بَقِيَ: د ﴿فَجَعَلْنٰهَا نَكٰلًا لِّمَا بَيْنَ يَدَيْهَا وَمَا خَلْفَهَا وَمَوْعِظَةً لِّلْمُتَّقِينَ﴾

[1]) عمدة القاری (۸۳/۱۸)-
[2]) عمدة القاری (۸۳/۱۸)-
[3]) عمدة القاری (۸۳/۱۸) روح المعانی (۲۸۱/۱)-

معنی بیان کړې ده «عبرة لمن بقی» یعنی دا واقعه مونږ عبرت جوړ کړو، د هغه خلقو د پاره کوم چه روسته باقي پاتې کیدونکې وی او د راروانو د پاره، مراد ددې نه د بنی اسرائیلو نه د شادوګانو جوړولو واقعه ده.

**قوله:** (لَا شِيَةَ) لَا بَيَاضَ: «إِنَّهَا بَقَرَةٌ لَّا ذَلُولٌ تُثِيرُ الْأَرْضَ وَلَا تَسْقِي الْحَرْثَ مُسَلَّمَةٌ لَّا شِيَةَ فِيهَا» تفسیر ئې د «لا بیاض» سره کړې دې، یعنی چه په کومه کښې سپینوالې نه وی «شیة» مصدر دې، «وشی یشی» ددې معنی ده، د یو رنګ سره بل رنګ ملاوول، منقش کول. مطلب دا دې، چه د غوا رنګ خالص زیړ وی چه په هغې کښې څه قسم سپینوالې او داغ نه وی.

**قوله:** وَقَالَ غَيْرُهُ: د غیره ضمیر ابوالعالیه طرف ته راجع دې یعنی د ابوالعالیه نه غیر ونیلې دی، ددې نه ابوعبید قاسم بن سلام او ابوعبیده معمر بن المثنی مراد دې [1] د امام بخاری رحمه الله مقصد دا دې چه تردې خائې پورې د الفاظو تفسیر ابوالعالیه نه منقول وو، راروان تفسیر د نورو حضراتو نه منقول دې.

**قوله:** يَسُومُونَكُمْ) يُولُونَكُمْ): «يَسُومُونَكُمْ سُوءَ الْعَذَابِ» «سام فلانا الامر» پابند جوړول، مکلف جوړول، «سام الشیئ» د یو څیز په طلب کښې تلل، دلته دا تولې معانی کیدې شی یعنی هغه به تاسو د سخت عذاب مکلف جوړولو یا هغه به د سخت عذاب په طلب او لټون کښې تاسو ته راتلو، بعضې حضراتو د «یسومونکم» ترجمه په «یذیقونکم» سره کړې ده یعنی هغه به تاسو ته سخت عذاب درکولو [2]

دلته د په بخاری کښې د «يَسُومُونَكُمْ تفسیر په «یولونکم» سره شوې دې، «یولونکم: اولی، یولی ایلاءً» نه د جمعې صیغه ده «اولی فلانا الامر» په کار باندې والی مقرر کول، په دې صورت کښې به د «يَسُومُونَكُمْ سُوءَ الْعَذَابِ» ترجمه وی، هغه به تاسو ته د سخت عذاب درکولو د پاره والی مقرر کولو چونکه د «یولونکم» ماده «ولی» دې، ددې وجې امام بخاری سورة کهف طرف ته منتقل شوې دې او فرمائی:

**قوله:** (الْوَلَايَةُ) مَفْتُوحَةٌ مَصْدَرُ الْوَلَاءِ، وَهِيَ الرُّبُوبِيَّةُ، إِذَا كُسِرَتِ الْوَاوُ فَهِيَ الْإِمَارَةُ: په سورة کهف کښې دی، «هُنَالِكَ الْوَلَايَةُ لِلَّهِ الْحَقِّ» [3] امام فرمائی چې د «ولایة» د واو په فتحې سره دې د «ولاء» مصدر دې، ددې معنی ربوبیت ده او «ولایة» د واو په کسرې سره هم مصدر دې، خو ددې معنی امارت او سیادت راځی. د امام بخاری دا تشریح خو د ابوعبیده معمر بن المثنی د کلام نه ماخوذ ده، هغوی په سورة کهف کښې ددې ایت لاندې لیکلې دی «الولایة

[1] عمدة القاری ۸۵/۱۸)-
[2] فتح الباری ۱۶۲/۸)-
[3] (سورة کهف ٤٤)-

بالفتح مصدر الولی وبالکسر مصدر ولیت الامر والعمل تلیه) [1])

**قوله:** وَقَالَ بَعْضُهُمُ الْحُبُوبُ الَّتِي تُؤْكَلُ كُلُّهَا فُومٌ: د بعضو نه عطاء او قتاده مراد دی. هغوی وئیلي دی چې په ایت (فَادْعُ لَنَا رَبَّكَ يُخْرِجْ لَنَا مِمَّا تُنْبِتُ الْأَرْضُ مِنْ بَقْلِهَا وَقِثَّائِهَا وَفُومِهَا وَعَدَسِهَا وَبَصَلِهَا) کښې د (فوم) نه هغه ټوله غله او دانې مراد دی کومې چه دخوراک د پاره استعمالیږی .لکه چنړه. اوربشې .ویزې وغیره .حضرت ابن عباس رضی الله عنهما او مجاهد نه منقول شوې دی چې د (فوم) نه غنم مراد دی [2])

**قوله:** وَقَالَ قَتَادَةُ (فَبَاءُوا) فَانْقَلَبُوا: (فَبَآءُوْ بِغَضَبٍ عَلٰى غَضَبٍ) هغه خلق بیا راغلل په شوی غضب کښې د پاسه غضب .قتاده فرمائی چه (فباءوا) په معنی د (انقلبوا) دی

**قوله:** فادارأتم اختلفتم: (وَإِذْ قَتَلْتُمْ نَفْسًا فَادّٰرَءْتُمْ فِيهَا) [3]) طرف ته اشاره ده یعنی کله چه تاسو کښې یو کس قتل کړو او بیا مو اختلاف کړو.او په یو بل باندې مو الزام لګولو.

**قوله:** ) يَسْتَفْتِحُونَ ) يَسْتَنْصِرُونَ : (وَكَانُوا مِنْ قَبْلُ يَسْتَفْتِحُونَ عَلَى الَّذِينَ كَفَرُوا [4]) په دې کښې (یستفتحون)د مدد په طلب کولو په معنی کښې دې.یعنی د رسول الله ﷺ د بعثت نه وړاندې یهودو به نبی ﷺ وسیله جوړولو او د الله تعالی نه به ئې مدد غوښتلو (اللهم انا نسالك بحق نبيك الذی وعدتنا ان تبعثه فی آخر الزمان ان تنصرنا اليوم على عدونا) [4])

**قوله:** (شَرَوْا) بَاعُوا : اشاره ده (وَلَبِئْسَ مَا شَرَوْا بِهِ أَنْفُسَهُمْ) طرف ته چه دې کښې (شروا) د (باعوا) په معنی کښې دې

**قوله:** (رَاعِنَا) مِنَ الرُّعُونَةِ إِذَا أَرَادُوا أَنْ يُحَمِّقُوا إِنْسَانًا قَالُوا رَاعِنَا : [5])

**د راعنا معنی او په دې کې مختلف قراءتونه:** امام بخاری فرمائی چه په دې آیت کښې (راعنا) تنوین سره د رعونیت نه مشتق دې .د رعونیت معنی حماقت دې.راعن د اسم فاعل صیغه ده په معنی د بیوقوف [6]) یهودو چه به کله څوک حماقت طرف ته منسوب غوښتل نو راعنا به

---

[1]) فتح الباری (۱۶۲/۸) عمدة القاری (۸۵/۱۸)_

[2]) عمدة القاری ۸۵/۱۸)-

[3]) فاداراتم فيها اصله تداراتم من الدر وهو الدفع فاجتمعت التاء والدال مع تقارب مخرجيها واريد الادغام فقلبت التاء دالاء وسكنت للادغام فاجتلبت همزة الوصل للتوصل للابتداء بها وهذا مطرد فی كل فعل على تفاعل او تفعل فاؤه : تاء او طاء او ظاء او صاد، او ضاد، والتدارو، اما مجاز عن الاختلاف والاختصام ..او مستعمل فی حقيقته اعنی التدافع بان طرح قتلها كل عن نفسه الى صاحبه(وانظر روح المعانی (۳۲۰/۱)-

[4]) روح المعانی ۳۲۰/۱)-

[5]) سورة البقرة ۱۰۴)-

[6]) روح المعانی ۳۴۹/۱)-

ئې وئيل يعنی «قال قولا راعنا» هغه د بيوقوف توب خبره اوکړه يهود به راتلل د حضورپاکﷺ په مجلس کښې به کيناستل.چې کومې خبرې به ئې مکرر تحقيق کولو نو راعنا به ئې وئيل او ددې نه به ئې غلطه معنی مراد اخستله چه معاذالله رسول الله احمقانه خبره اوکړه.صحابو کرامو ګنړل چې د مراعاة نه ماخوذ دې او د امر صيغه ده.د «نا» ضمير مفعول به منصوب متصل دې.يعنی زمونږ رعايت اوکړه زمونږ خيال اوساته نوهغوی هم چه يهود اوکتل دا لفظ استعمالولو شروع کړو.حضرات صحابه کرأموته د الفاظو ادب اوخودلې شو چې داسې لفظ چې د غلطې معنې وهم پکښې پيدا کيږی.نه دی وئيل پکار.(راعنا)مه وايئ(انظرنا) وايئ.

**قوله:** (لَا تَجْزِي) لَا تُغْنِي : «وَاتَّقُوْا يَوْمًا لَّا تَجْزِيْ نَفْسٌ عَنْ نَّفْسٍ شَيْئًا» کښې د «لاتجزی» معنی ده «لاتغنی» يعنی فائده به ورنکړی هيڅ نفس ته بل نفس د هيڅ څه؟

**قوله:**: ابتلی اختبر : «وَاِذِ ابْتَلٰٓى اِبْرٰهٖمَ رَبُّهٗ بِكَلِمٰتٍ فَاَتَمَّهُنَّ» په ايت کريمه کښې د ابْتَلٰى معنی د «اختبر» ده يعنی امتحان واخستلو اوزمائيلې شو.

**قوله:**: (خُطُوَاتِ) مِنَ الْخَطْوِ، وَالْمَعْنَى آثَارَهُ : «يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوا ادْخُلُوْا فِي السِّلْمِ كَآفَّةً وَّلَا تَتَّبِعُوْا خُطُوٰتِ الشَّيْطٰنِ» په ايت کريمه کښې «خُطُوٰتِ» د «خطو» نه ماخوذ دې او دا مصدر دې «خطاء يخطو» چې معنی ئې ده د قدمونو مينځنۍ حصه ارتول او تلل، د «خطوا» معنی ده قدم.ددې جمع «خطوا» راځی «ولاتتبعوا خطوات الشيطن»معنی شوه .د شيطان په نقش قدم باندې مه ځئ.

## ۵- باب : قَوْلُهُ تَعَالَى : فَلَا تَجْعَلُوْا لِلّٰهِ أَنْدَادًا وَأَنْتُمْ تَعْلَمُوْنَ

[۴۲۰۷] حَدَّثَنِي عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ حَدَّثَنَا جَرِيرٌ عَنْ مَنْصُورٍ عَنْ أَبِي وَائِلٍ عَنْ عَمْرِو بْنِ شُرَحْبِيلَ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ سَأَلْتُ النَّبِيَّ - صلى الله عليه وسلم - أَيُّ الذَّنْبِ أَعْظَمُ عِنْدَ اللّٰهِ قَالَ «أَنْ تَجْعَلَ لِلّٰهِ نِدًّا وَهُوَ خَلَقَكَ». قُلْتُ إِنَّ ذٰلِكَ لَعَظِيمٌ، قُلْتُ ثُمَّ أَيُّ قَالَ «وَأَنْ تَقْتُلَ وَلَدَكَ تَخَافُ أَنْ يَطْعَمَ مَعَكَ». قُلْتُ ثُمَّ أَيُّ قَالَ «أَنْ تُزَانِيَ حَلِيلَةَ جَارِكَ».

**د حديث د الفاظو تشريح:** «انداد» د «ند» جمع ده په معنی د نظير يعنی الله سره تاسو څوک مه شريکوئ په داسې حال کښې چه تاسو پوهيږئ

**قوله:** قُلْتُ ثُمَّ أَيُّ قَالَ «وَأَنْ تَقْتُلَ وَلَدَكَ تَخَافُ أَنْ يَطْعَمَ مَعَكَ : ما تپوس اوکړو بيا کومه ګناه لويه ده نو حضورپاکﷺ اوفرمائيل چې خپل ځوئې قتل کړې ددې وجې نه چه هغه به تاسره خوراک کوی .دا ګناه په حقيقت کښې په څو ګناهونو باندې مشتمله ده ،اول بې ګناه قتل کول، او بيا قتل کول د خپل ځوئی،دريمه دداسې کس قتل کول چې مدافعت نشی کولې .څلورم ددې ويرې نه قتل کول چې زمونږ سره به خوراک کوی.لکه چې ته روزی رسان ئې .د الله په روزئی رسولو باندې دې اعتماد او توکل نشته

**قوله:** قُلْتُ ثُمَّ أَيُّ قَالَ «أَنْ تُزَانِيَ حَلِيلَةَ جَارِكَ: «ان تزانی» فرمائی چې «تزانی د مزاناة»

نه ماخوذ دې کوم چې باب مفاعله مصدر دې چې معنی ئې مشارکت دې .مطلب دادې چې د خپل گاونډی ښځه په دهوکه په زنا باندې آماده کړی،دا یو گناه په اصل کښې په څو گناهونو باندې مشتمل ده ،اولنې گناه زنا کول دی ،دویمه گناه د بل ښځه دهوکه کول.دریمه گناه دخپل گاونډی سره خیانت کول. حال دا چې گاونډی ددې خبرې امید ساتی چې ده به د خپل گاونډ نه راحت میلاوۇ شی،څلورم گناه په دې کښې د هغه نسب خرابول دی.

## ۶- باب: وَقَوْلُهُ تَعَالَى (وَظَلَّلْنَا عَلَيْكُمُ الْغَمَامَ وَأَنْزَلْنَا عَلَيْكُمُ الْمَنَّ وَالسَّلْوَى كُلُوا مِنْ طَيِّبَاتِ مَا رَزَقْنَاكُمْ وَمَا ظَلَمُونَا وَلَكِنْ كَانُوا أَنْفُسَهُمْ يَظْلِمُونَ).(۲)

وَقَالَ مُجَاهِدٌ الْمَنُّ صَمْغَةٌ. وَالسَّلْوَى الطَّيْرُ.

**قوله:** وَقَالَ مُجَاهِدٌ الْمَنُّ صَمْغَةٌ. وَالسَّلْوَى الطَّيْرُ:

د ''من'' **تفسير:** د مجاهد په نیز (من) د (صمغة) نه ماخوذ دې صمغة گوند ته وائی ،مراد د گوند سره مشابه څه څیز دې،بعینه گوند مراد نه دې،ځکه چې گوند د ونې نه اوخی،او دا څیز د ونې نه نه راوخی. او د گوند په شان په اونه باندې جام کیږی[۱]

اردو کښې د (مَنّ) ترجمه په ترنجبین سره کوی او سلوی د یوې مرغۍ نوم دې چه په پښتو کښې ورته مرز وائی.

[۴۲۰۸] حَدَّثَنَا أَبُو نُعَيْمٍ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ عَبْدِ الْمَلِكِ عَنْ عَمْرِو بْنِ حُرَيْثٍ عَنْ سَعِيدِ بْنِ زَيْدٍ-رضی الله عنه- قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ- صلى الله عليه وسلم- «الْكَمْأَةُ مِنَ الْمَنِّ، وَمَاؤُهَا شِفَاءٌ لِلْعَيْنِ»

نبیﷺ فرمائیلې دی چه (کماة) یعنی د مار چترئی د (من) د قسم څنی ده اوددې اوبه د سترگو د بیمارئی د پاره شفا دی.

(الكماة) د کاف په فتحه د میم په سکون او همزه په فتحې سره، جمع ده ددې مفرد (کما) دې (په وزن د قلب) سیبویه وئیلې دی چې (الکماة) جمع نه ده بلکه اسم جمع ده[۲] دې ته خرېړې او د مارچترئی وائی. دا د باران په موسم کښې راټوکیږی، او د اگۍ په شان سپین وی.

**یو اشکال او د هغې جواب:** دلته په روایت کښې (الكماة من المن) وئیلې شوې دې سوال دا پیدا کیږی چې بنی اسرائیلو ته خو دا مارچترئی د خوراک د پاره نشو ورکولو کیدې ، ددې

---

[۱] وفي الامع ۷۰۶/۹) قوله المن صمغة اى شبهة بها فى انجمادها على اغصان الشجر وان لم يكن عين الصمغة فان الصمغة تخرج من نفس الشجر وليس.الترنجبين بهذا المثابة فانه شئ يحصل بانجماد ما ينزل من الطل على شجرة مخصوصة لا توجد فى ديارنا هذه)-

[۲] عمدة القارى ۸۸/۱۸)-

وجې علامه خطابی اعتراض کړې دې چې دا روایت د ترجمة الباب سره مطابقت نه لری ځکه چې په ترجمة الباب کښې د هغه (من) ذکر دې کوم چې الله تعالی په بنی اسرائیلو باندې د اسمان نه نازلولو، او مارچترئی خو ئې د اسمان نه نازل کړې نه ده بلکه دا په زمکه کښې پيدا کيږی؟[1]

ددې جواب دادې چه امام مسلم په کتاب الاشربة کښې دا حديث ذکر کړې دې، د هغې الفاظ دی (الكماة من المن الذی انزل الله تبارك وتعالى على بنى اسرائيل وماؤها شفاء للعين)[2]

د مسلم شريف ددې روايت نه معلوميږی چې د حديث باب د ترجمة الباب سره تعلق شته چونکه د علامه خطابی نظر د مسلم شريف روايت ته نه وو تلې ددې وجې هغوی د ترجمة الباب سره د حديث د عدم مطابقت اشکال کړې دې.

خو دا سوال هم په خپل ځائې باقې دې چې مارچترئی په هر حال د هغه منزل من الله مصداق خو نه دې.

ددې جواب دادې چه دلته په اصل کښې تشبيه ده لکه څنګه چې دا د مارچترئی د باران په موسم کښې بغير د څه مشقت او تدبير نه الله تعالی پيدا کوی نو دغه شان هغه (من) ووکوم چې الله تعالی حضرت موسی عليه السلام او د هغه قوم ته ورکول ددې د پاره هم هغوی ته د څه محنت او مشقت زغمل نه وو[3] بعضې حضراتو وئيلې دی (الكماة من المن يعنى مما من الله على عباده بانعامه ذلك عليهم)[4]

**قوله: وَمَاؤُهَا شِفَاءٌ لِلْعَيْنِ :**

**د مار د چترئ اوبه سترګې دپاره مفيد دی:** د مار د چترئی اوبه د سترګو د پاره ډيرې فائده مند دی عالمانو ليکلې دی که په سترګو باندې امراض حاره (ګرم مرضونه) راشی نو صرف د مار د چترئی د سترګو د پاره بنيګړه کونکې او فائده مندې دی او که ګرم مرضونه نه وی نو بيا ددې اوبه د نورو دوايانو سره شاملول د سترګو د پاره استعمالولې شی او دا مفيد وی[5]

حافظ ابن حجر ليکلې دی چې مونږ سره يو پرهيزګار عالم وو .د هغه نظر ختم شو نو هغه د مارچترئی د علاج په توګه استعمال کړو الله تعالی د هغه د سترګو نظر واپس راوستلو[6]

---

[1] عمدة القاری ۱۸/۸۸)-
[2] کتاب الاشربة باب فضل الكماة ومداومة العين بها ۳/۱۶۳)-
[3] عمدة القاری ۱۸/۸۹)-
[4] حواله بالا
[5] عمدة القاری ۱۸/۸۸)-
[6] فتح الباری ۹)-

## ۷- باب (وَإِذْ قُلْنَا ادْخُلُوا هَذِهِ الْقَرْيَةَ فَكُلُوا مِنْهَا حَيْثُ شِئْتُمْ رَغَدًا وَادْخُلُوا الْبَابَ سُجَّدًا وَقُولُوا حِطَّةٌ نَغْفِرْ لَكُمْ خَطَايَاكُمْ وَسَنَزِيدُ الْمُحْسِنِينَ). (٥٨)

**قوله: رَغَدًا وَاسِعٌ كَثِيرٌ:** او کله چې مونږ اوونیل چې داخل شئ دې ښار ته او خوراک کوئی او په دې کښې د کوم ځائې نه چې مو خوښه وی په پراخئی سره ، او داخل شئی دروازې ته سجده کونکې او وایئ چې معاف کړه ،نو معاف به کړو مونږ ستاسو قصور. او زیاتی به هم ورکړو نیکانو ته.

دا واقعه د وادی تیه د زمانې ده بنی اسرائیلو چې کله من او سلوی خوړل نو ستومانه شول او د خپل معمولی خوراک درخواست ئې اوکړو نو هغوی ته یو ښار ته د داخلیدو حکم اوشو، بعضو ونیلې دی چې دغه ښار بیت المقدس وو او بعضو ونیلې دی چې د شام په ملک کښې اریحا ښار وو[1]

[۴۲۰۹] حَدَّثَنِي مُحَمَّدٌ حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ مَهْدِيٍّ عَنِ ابْنِ الْمُبَارَكِ عَنْ مَعْمَرٍ عَنْ هَمَّامِ بْنِ مُنَبِّهٍ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ -رضي الله عنه- عَنِ النَّبِيِّ -صلى الله عليه وسلم- قَالَ « قِيلَ لِبَنِي إِسْرَائِيلَ (ادْخُلُوا الْبَابَ سُجَّدًا وَقُولُوا حِطَّةٌ) فَدَخَلُوا يَزْحَفُونَ عَلَى أَسْتَاهِهِمْ، فَبَدَّلُوا وَقَالُوا حِطَّةٌ، حَبَّةٌ فِي شَعَرَةٍ»

**د حدیث باب تشریح:** بنی اسرائیلو د الله د احکامو سره ټوقې اوکړې هغوی ته ونیلې شوی وو تاسو دروازې ته د سجدې په حالت کښې داخل شئی او «حطة» وایئ، «حطة» یا خو خبر دې او ددې مبتداء محذوف ده یعنی «شانك حطة» ستاسو شان د گناهونو ساقط کونکې او معاف کونکې دې، د «حط یحط» معنی ساقط کول راځی، او یا دا منصوب دې د مفعول مطلق کیدو په وجه . یعنی «حط عنا ذنوبنا حطة» اې الله زمونږ گناه ساقط کړه.

بنی اسرائیلو د سجدې په حالت کښې د داخلیدو په ځائې کوناټی راښکونکې په زمکه باندې تلیدو تلیدو باندې داخل شو او د «حطة» ونیلو په ځائې ئې د ټوقو په ډول «حطة فی شعرة» (په ویختو کښې دانه ده) ونیل شروع کړل.په بعضې کښې د «حبة» په ځائې د «حنطة» لفظ راغلې دې.[2]

## ۶- باب: قَوْلُهُ (مَنْ كَانَ عَدُوًّا لِجِبْرِيلَ). (٩٧)

وَقَالَ عِكْرِمَةُ جَبْرَ وَمِيكَ، وَسَرَافِ عَبْدٌ. إِيلْ اللَّهُ.

**د جبرئیل او میکائیل معنی:** عکرمه فرمائی چې د جبر ،میک او سراف معنی د عبد او بنده ده، او د ایل معنی ده الله، نو د جبرائیل ،میکائیل او اسرافیل معنی شوه عبدالله.

---

[1] عمدة القاری ۸۹/۱۸)-

[2] روح المعانی ۲۶۶/۱)-

[۴۲۱۰] حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مُنِيرٍ سَمِعَ عَبْدَ اللَّهِ بْنَ بَكْرٍ حَدَّثَنَا حُمَيْدٌ عَنْ أَنَسٍ قَالَ سَمِعَ عَبْدُ اللَّهِ بْنُ سَلَامٍ بِقُدُومِ رَسُولِ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - وَهُوَ فِي أَرْضٍ يَخْتَرِفُ، فَأَتَى النَّبِيَّ - صلى الله عليه وسلم - فَقَالَ إِنِّي سَائِلُكَ عَنْ ثَلَاثٍ لَا يَعْلَمُهُنَّ إِلَّا نَبِيٌّ فَمَا أَوَّلُ أَشْرَاطِ السَّاعَةِ وَمَا أَوَّلُ طَعَامِ أَهْلِ الْجَنَّةِ وَمَا يَنْزِعُ الْوَلَدَ إِلَى أَبِيهِ أَوْ إِلَى أُمِّهِ قَالَ «أَخْبَرَنِي بِهِنَّ جِبْرِيلُ آنِفًا». قَالَ جِبْرِيلُ قَالَ «نَعَمْ». قَالَ ذَاكَ عَدُوُّ الْيَهُودِ مِنَ الْمَلَائِكَةِ. فَقَرَأَ هَذِهِ الْآيَةَ (مَنْ كَانَ عَدُوًّا لِجِبْرِيلَ فَإِنَّهُ نَزَّلَهُ عَلَى قَلْبِكَ) أَمَّا أَوَّلُ أَشْرَاطِ السَّاعَةِ فَنَارٌ تَحْشُرُ النَّاسَ مِنَ الْمَشْرِقِ إِلَى الْمَغْرِبِ، وَأَمَّا أَوَّلُ طَعَامِ أَهْلِ الْجَنَّةِ فَزِيَادَةُ كَبِدِ حُوتٍ، وَإِذَا سَبَقَ مَاءُ الرَّجُلِ مَاءَ الْمَرْأَةِ نَزَعَ الْوَلَدَ، وَإِذَا سَبَقَ مَاءُ الْمَرْأَةِ نَزَعَتْ». قَالَ أَشْهَدُ أَنْ لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ، وَأَشْهَدُ أَنَّكَ رَسُولُ اللَّهِ. يَا رَسُولَ اللَّهِ إِنَّ الْيَهُودَ قَوْمٌ بُهُتٌ، وَإِنَّهُمْ إِنْ يَعْلَمُوا بِإِسْلَامِي قَبْلَ أَنْ تَسْأَلَهُمْ يَبْهَتُونِي. فَجَاءَتِ الْيَهُودُ فَقَالَ النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - «أَيُّ رَجُلٍ عَبْدُ اللَّهِ فِيكُمْ». قَالُوا خَيْرُنَا وَابْنُ خَيْرِنَا، وَسَيِّدُنَا وَابْنُ سَيِّدِنَا. قَالَ «أَرَأَيْتُمْ إِنْ أَسْلَمَ عَبْدُ اللَّهِ بْنُ سَلَامٍ». فَقَالُوا أَعَاذَهُ اللَّهُ مِنْ ذَلِكَ. فَخَرَجَ عَبْدُ اللَّهِ فَقَالَ أَشْهَدُ أَنْ لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ، وَأَنَّ مُحَمَّدًا رَسُولُ اللَّهِ. فَقَالُوا شَرُّنَا وَابْنُ شَرِّنَا. وَانْتَقَصُوهُ. قَالَ فَهَذَا الَّذِي كُنْتُ أَخَافُ يَا رَسُولَ اللَّهِ.

## ۷- باب: قَوْلِهِ (مَا نَنْسَخْ مِنْ آيَةٍ أَوْ نُنْسِهَا)

[۴۲۱۱] حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ عَلِيٍّ حَدَّثَنَا يَحْيَى حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ حَبِيبٍ عَنْ سَعِيدِ بْنِ جُبَيْرٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ قَالَ عُمَرُ - رضى الله عنه - أَقْرَؤُنَا أُبَيٌّ، وَأَقْضَانَا عَلِيٌّ، وَإِنَّا لَنَدَعُ مِنْ قَوْلِ أُبَيٍّ، وَذَاكَ أَنَّ أُبَيًّا يَقُولُ لَا أَدَعُ شَيْئًا سَمِعْتُهُ مِنْ رَسُولِ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - وَقَدْ قَالَ اللَّهُ تَعَالَى (مَا نَنْسَخْ مِنْ آيَةٍ أَوْ نُنْسِهَا)

حضرت عمر رضی اللہ عنہ فرمائی چې مونږ کښې د ټولو نه اولنې قاری ابی ابن کعب دې او د ټولو نه لوئې قاضی او فیصله کونکې حضرت علی رضی اللہ عنہ دې خو ددې باوجود مونږ د ابی ابن کعب یوه خبره پریږدو او هغه نه منو او هغه دا چې ابی وائی چه ما د رسول الله نه اوریدلې دی څه په آیتونو کښې هیڅ یو آیت نه پریږدم، حال دا چه الله سبحانه وتعالی فرمائیلې دی (ما ننسخ من آية او ننسها) یعنی الله تعالی پخپله بعضې آیاتونه منسوخ کړې دی، نو بیا د ابی ابن کعب دا وئیل چې زه هیڅ نه پریږدم ، دهغه دا خبره مونږ نه منو.

**د نسخ لغوی او اصطلاحی معنی** : د نسخې معنی په لغت کښې زائل کول نقل کول او لیکل راځی وائی (نسخت الشمس الظل) یعنی نمر سیوری زائله کړو او وائی (نسخت الکتاب) ما کتاب اولیکلو په اصطلاح کښې د نسخ مختلف تعریفونه شوی دی.

① هو الخطاب الدال على ارتفاع الحكم الثابت بالخطاب المتقدم على وجه لولاه لكان ثابتا مع تراخيه عنه یعنی نسخ هغه خطاب ته وائی کوم چه په اولنی خطاب سره د ثابت شوی حکم ختمیدو باندې

دلالت کوی دغه شان دا دویم خطاب (کوم چې د اولنی حکم نه پس راغلې وو) نو د اولنی خطاب حکم به ثابت او برقرار وو.

④ يو تعريف دا هم شوې دې (هوالخطاب الدال على ان مثل الحكم الثابت بالنص المتقدم زائل على وجه لولاه لكان ثابتا) ④ هوالخطاب الدال على ظهور انتفاء شرط دوام الحكم الاول)

④ الخطاب الدال على انتهاء امد الحكم الشرعى مع التاخر عن مورده

صاحب د کشف الاسرار دا څلور تعريفونه نقل کړې دی او ددې نه پس فرمائی چه دا ټول تعريفونه د ناسخ دی د نسخ نه دی، ددې نه پس هغوی د نسخ تعريفونه نقل کړې دی.

⑤ هو ازالة مثل الحكم الثابت بقول منقول عن الله تعالى او عن رسوله عليه السلام مع تراخيه عنه على وجه لولاه لكان ثابتا) ⑥ په متاخرينو کښې بعضې عالمانو دا تعريف کړې دې (انه عبارة عن الرفع الحكم الشرعى بدليل شرعى متاخر)[1]

**د نسخ په مفهوم کښې د متقدمينو او متاخرينو په اصطلاحاتو کښې فرق:** د متقدمينو په نيز د نسخ د اصطلاح دائره وسيع ده، يو حکم د بل حکم په ذريعه بيخى منسوخ کول يا د دويم حکم په ذريعه په وړاندې‌نی حکم کښې تخصيص کول، څه قيد يا شرط لګول. دا ټول په نسخ کښې داخل دی[2]

او د متاخرينو په نيز نسخ صرف د هغه تبديلئ نوم دې کوم چې اولنې حکم بيخى منسوخ کړی. هم دا وجه ده چې د متقدمينو په نيز د قران په آياتونو کښې د نسخ شمار تقريبا پنځه سوره دې. او د متاخرينو په نيز تعداد کم دې، علامه سيوطى رحمه الله صرف شل آياتونه منسوخ ګرځولې دی[3]

او حضرت شاه ولى الله رحمه الله صرف پنځه اياتونه منسوخ ګرځولې دی[4]

**د شريعت په احکامو کښې د نسخ کيدل څه عيب نه دې:** د يهوديانو خيال دې چه د شريعت په احکامو کښې نسخ بيخى جائز نه ده. دوی وائی چه په اسمانی شريعتونو کښې د نسخ تسليمولو سره (بداء) لازميږی او بداء مستلزم ده جهل لره، او الله تعالى د جهل نه پاک او منزه دې بداء وائی (حدوث رائى لم يكن) يعنى اول نه هغه رائې نه وه روستو هغه رائې قائمه کړې شی.

[1]) انظر كشف الاسرار (۱۵۵،۱۵۶/۳) و شرح الكوكب المنير(۵۲۶) والاعتبار للحازمى(۸)-

[2]) قال الزركشى فى البرهان (۳۳/۲) اعلم ان سورة القران تنقسم بحسب ما دخله النسخ وما لم يدخل الى اقسام احدها ما ليس فيه ناسخ ولا منسوخ وهى ثلاث واربعون سورة الثانى ما فيه ناسخ وليس فيه منسوخ وهى ست سور، الثالث: ما فيه منسوخ وليس فيه ناسخ : وهى اربعون : الرابع ما اجتمع فيه ناسخ والمنسوخ وهى احدى وثلاثون سورة)-

[3]) الاتقان ۳۰/۲)-

[4]) الفوز الكبير(۴۰)-

ددې نه معلومېږي چه د اول د رائې علم نه وو، روسته د هغې علم حاصل شو او دا جهالت لره مستلزم دې.[1]

خو د اسلام د امامانو په نیز نسخ بالاجماع په احکام سماویه کښې جائز ده.فخر الاسلام بزدوی رحمه الله ليکی: «والنسخ فی احکام الشرع جائز صحيح عند المسلمين اجمع»[2]

باقی د يهوديانو دا وينا چه نسخ جهالت لره مستلزم ده ،بيخى غلطه ده ځکه چې يو حکم منسوخ کول او د هغې په ځائې بل حکم نافذ کول دا مطلب نه دې چې د دويم حکم دوراندې نه علم نه وو، او اوس د هغې علم حاصل شو، بلکه يو حکم د يو خاصې مودې پورې د څه خاص زمانې د پاره د څه خاص مصلحت په بنياد باندې مفيد وو، هم د هغه مودې پورې هغه برقرار پاتې کړې شو ددغه مودې نه پس د مصلحت په تقاضا سره هغه حکم منسوخ کړې شو او بل حکم جارى کړې شو ددې مثال ټيک هم داسې دې چې يو حکيم يا ډاکټر د مريض موجوده حالات اوګورى او يوه دوائى ورته ورکړې هغه ته معلومه وى چه دوه ورځې ددې دوائى استعمال سره به د مريض په حالت کښې فرق راشى او بيا به بله دوئى خودل وى، دا هر څه پيژندى او هغه په اوله ورځ يوه دوائى تجويز کړى کومه چه د دغه ورځې مناسب وى ،او دوه ورځې پس د حالاتو په بدليدو باندې دويمه دوائى تجويز کړى[3]

په مسلمانانو کښې ابو مسلم اصفهانى ته دا قول منسوب دې چې په قران او احکام الهية کښې د نسخ امکان خو شته خو په ټول قران کښې د نسخې وقوع چرته نه ده شوې[4] خو د اهل سنت عالمانو د دوى په دې قول باندې انکار کړې دې او دا ئې نه دې تسليم کړې .علامه قرطبى رحمه الله ليکى:

معرفة هذا الباب اکيدة وفائدته عظيمة لا تستغنى عن معرفته العلماء ولا ينکره الا الجهلة الاغبياء[5]

**د نسخ قسمونه** :د نسخ څلور قسمونه دى:

① نسخ القران بالقران ② نسخ السنة بالسنة ③ نسخ القرآن بالسنة ④ نسخ السنة بالقران

**بيا د نسخ القران بالقران درې صورتونه دى:**(الف)اولنې صورت دادې چه تلاوت او حکم دواړه منسوخ وى د حضرت عائشې رضى الله عنها روايت دې «کان فيما انزل عشر رضعات معلومات فنسخن بخمس

---

[1]) الاتقان فى علوم القران (٢٧/٢) وفى شرح الكوكب ٥٣٦: قال ابن الزاغونى : البداء هو ان يريد شئيا دائما ثم ينتقل عن الدوام لامر حادث لا يعلم سابقا)-

[2]) اصول فخر الاسلام على هامش الاسرار(١٥٧/٣)-

[3]) وفى اصول فخر الاسلام البزدوى (١٥٦/٣١) وهو فى حق صاحب الشرع محض لمدة الحكم المطلق الذى كان معلوما عند الله تعالى الا انه اطلقه فصار ظاهرة البقاء فى حق البشر مكان تبديلا فى حقنا بيانا محضا فى حق صاحب الشرع)-

[4]) روح المعانى (٣٥٢/١)-

[5]) تفسير قرطبى (٥٥/١)-

معلومات فتوفي رسول الله ﷺ وهن مما يقراء من القران»[1]
يعنى په ابتدا کښې په لس رضعاتو حرمت رضاعت د ثبوت حکم وو بيا په پنځو رضعاتو سره ددې د ثبوت حکم اوشو .حضرت عائشه رضي الله عنها فرمائي چې د رسول الله ﷺ وفات ته نزدې پورې د هغې تلاوت کيدلو. خو اوس د لسو او پينځو رضعاتو حکم او تلاوت دواړه منسوخ دې .د قران کريم ايت «وامهاتكم الاتى ارضعنكم»[2] سره.
(ب) دويم صورت دا چې حکم خو باقى وى خو تلاوت منسوخ شى لکه درجم په باره کښې دا ايت منسوخ التلاوة دې خو حکم ئې باقې دې «الشيخ والشيخة اذا زنيا فارجموهما البته نكالا من الله والله عزيز حكيم»[3]
(ج) دريم صورت دادې چې تلاوت باقى وى او حکم منسوخ شى لکه «وَعَلَى الَّذِينَ يُطِيقُونَهُ فِدْيَةٌ طَعَامُ مِسْكِينٍ»[4] د حضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنهما او نورو عالمانو رائې ددې ايت په باره کښې دا ده چې ددې حکم منسوخ شوې دې البته ددې تلاوت باقې دې.ددې ايت د پاره ناسخ يو بل آيت دې «فَمَنْ شَهِدَ مِنْكُمُ الشَّهْرَ فَلْيَصُمْهُ» البته بعضې حضراتو دا ايت منسوخ نه دې منلې ،وائى چې «يطيقونه» د «لا يطيقونه» په معنى کښې دې[5]
دغه شان د متوفى عنها زوجها د عدت موده په يو روايت کښې يو کال بيان شوې ده.«وَالَّذِينَ يُتَوَفَّوْنَ مِنْكُمْ وَيَذَرُونَ أَزْوَاجًا وَصِيَّةً لِأَزْوَاجِهِمْ مَتَاعًا إِلَى الْحَوْلِ غَيْرَ إِخْرَاجٍ»[6] خو بل ايت دا حکم منسوخ کړو او د عدت موده ئې څلور مياشتې او لس ورځې بيان کړې «وَالَّذِينَ يُتَوَفَّوْنَ مِنْكُمْ وَيَذَرُونَ أَزْوَاجًا يَتَرَبَّصْنَ بِأَنْفُسِهِنَّ أَرْبَعَةَ أَشْهُرٍ وَعَشْرًا»[7]
② دويم قسم دې «نسخ السنة بالسنة» بيا ددې څلور قسمونه دى.
(الف) نسخ المتواتر بالمتواتر: يعنى د يو متواتر حديث حکم په بل حديث متواتر باندې منسوخ کول .دا په اتفاق سره جائز دى.
(ب) نسخ الاحاد بالمتواتر: دا هم بالاتفاق جائز دې[8]

---

[1] الاتقان فى علوم القران ٢٨/٢)-
[2] النساء ٢٣)-
[3] الاتقان فى علوم القران ٣٢/٢)-
[4] البقرة ٢٤٠)-
[5] روح المعانى ٨٣/٢)فى علوم القران ٢٩٠/٢)-
[6] البقيرة ٢٣٤)-
[7] حواله بالا
[8] يرقم مولانا عبدالحق بعد ذكر اقسام الثلاثة (تلك الاقسام جائزة بالاتفاق) النامى شرح الحسامى(١٨٣)-

(د) نسخ المتواتر بالاحاد: په دې کښې اختلاف دې بعضې اهل ظاهر ددې د جواز قائل دی خو د جمهورو په نيز دا جائز نه دی

③ د نسخ دريم قسم (نسخ القرآن بالسنة): د احنافو په نيز دا جائز ده ،د جمهورو فقهاؤ او اکثرو متکلمينو هم دا مذهب دې،د امام شافعی اکثرو محدثينو او امام احمد بن حنبل په نيز دا صورت جائز نه دې[1]

دا حضرات وائی چې سنت د قران شرح او تفسير دې .دا د قران د پاره څنګه ناسخ کيدې شی.
دويمه دا چې د ناسخ د پاره ضروری ده چه هغه د منسوخ سره کم ازکم برابر وی او ښکاره ده چه سنت د قران برابر نه دې

دريمه خبره دا ده چې په قران مجيد کښې فرمائيلې شوی دی (قُلْ مَا يَكُوْنُ لِيْٓ اَنْ اُبَدِّلَهٗ مِنْ تِلْقَآءِ نَفْسِيْ) که تاسو سنت د قران د پاره ناسخ تسليم کړئ نو ددې معنی به دا سې شی چې نبی ﷺ د خپل طرف نه تبديلی کوی،او ددې ايت په رڼا کښې دا جائز نه ده
دغه شان دا حضرات د دارقطنی ددې روايت نه دا استدلال (کلامی لاينسخ کلام الله، وکلام الله ينسخ کلامی، کلام الله ينسخ بعضه بعضا)[2]

ددې مفهوم د يو بل حديث نه هم دا حضرات استدلال کوی ،روايت دې (اذا روی لکم عنی حديث فاعرضوه علی کتاب الله تعالی فان وافق الکتاب فاقبلوه والا فردوه)[3]
احناف حضرات فرمائی چې په قران کښې د رسول الله ﷺ په باره کښې فرمائيلې شوی دی (وَمَا يَنْطِقُ عَنِ الْهَوٰى ۝ اِنْ هُوَ اِلَّا وَحْيٌ يُّوْحٰى ۝)[4] ددې نه ښکاره معلوميږی چې د شريعت يو حکم کله نبی ﷺ بيانوی نو نبی ﷺ هغه د خپل طرف نه نه بيانوی ،هغه په حقيقت کښې د الله تعالی د طرف نه وی نو د وحی غير متلو په ذريعه د قران يو حکم منسوخ کيدې
ترکومې چې د ايت کريمه نه د استدلال خبره ده ددې جواب دادې چې ددې ايت په رڼا کښې سنت د قران د پاره په هغه وخت کښې ناسخ نشی کيدې شی کله چې نبی ﷺ د خپل طرف نه څه تبديلی اوکړی د ايت کريمه معنی دا ده چې نبی ﷺ په خپل اختيار سره د قران مجيد په څه حکم کښې څه تبديلی نشی کولې،خو که دوی ته وحی غير متلو راشی او د نبی ﷺ د اختيار په هغې کښې څه دخل نه وی نو بيا د ايت په رڼا کښې د حديث ناسخ جوړولو کښې څه اشکال کيدې شی[5]

[1]) کشف الاسرار علی اصول فخر الاسلام ۱۷۷/۳) باب تقسيم الناسخ)-
[2]) انظر الکامل فی ضعفاء الرجال ۱۸/۲)-
[3]) اصول فخر الاسلام البزدوی علی هامش الکشف ۱۷۷/۳)-
[4]) النجم ۳-۴)-
[5]) قال الزرکشی فی البرهان (۳۱/۲)السنة اذا کان من امر الله من طريق الوحی نسخت وان کان بالاجتهاد فلا تنسخه. حکاه ابن احبيب النيسابوری فی تفسيره)-

باقى د دار قطنى په كوم روايت سره كوم استدلال شوې دې دا روايت بعضو حضراتو موضوع بعضو منكراو بعضو ډير ضعيف ګرځولې دې، ددې وجې په هغې باندې استدلال نشى كولې[1]
دغه شان په استدلال كښې چې هغوى كوم دويم حديث پيش كړې وو عالمانو دا ضعيف ګرځولې دې هغه قابل استدلال او قابل اعتبار نه دې
احناف حضرات فرمائى چه په قران شريف كښې فرمائيلې شوې دى ﴿لَا يَحِلُّ لَكَ النِّسَآءُ مِنْ بَعْدُ﴾ او حضرت عائشه رضي الله عنها فرمائى ﴿ما قبض رسول الله حتى اباح الله تعالى له من النساء ما شاء﴾ معلومه شوه چې وحى غير متلو د سنت په ذريعه د قران دغه حكم منسوخ او ګرځولې شو[2]

④ څلورم قسم ﴿نسخ السنة بالقران﴾ دې دا د احنافو په نيز جائز دې البته د امام شافعى رحمه الله په نيز دا صورت هم جائز نه دې
احناف وائى چې په ابتدا كښې رسول كريم ﷺ بيت المقدس طرف ته متوجه مونځ كولو ،نو د بيت المقدس طرف ته دا توجه په سنت سره ثابت شو، ، خو قران دا منسوخ كړه او ايت نازل شو ﴿فَوَلِّ وَجْهَكَ شَطْرَ الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ﴾ دې ايت د سنت حكم منسوخ كړو[3]

## ١٠- باب: وَقَالُوا اتَّخَذَ اللَّهُ وَلَدًا سُبْحَانَهُ

[٤٢١٢] حَدَّثَنَا أَبُو الْيَمَانِ أَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ أَبِي حُسَيْنٍ حَدَّثَنَا نَافِعُ بْنُ جُبَيْرٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ -رضى الله عنهما- عَنِ النَّبِيِّ -صلى الله عليه وسلم- قَالَ «قَالَ اللَّهُ كَذَّبَنِي ابْنُ آدَمَ وَلَمْ يَكُنْ لَهُ ذَلِكَ، وَشَتَمَنِي وَلَمْ يَكُنْ لَهُ ذَلِكَ، فَأَمَّا تَكْذِيبُهُ إِيَّاىَ فَزَعَمَ أَنِّي لاَ أَقْدِرُ أَنْ أُعِيدَهُ كَمَا كَانَ، وَأَمَّا شَتْمُهُ إِيَّاىَ فَقَوْلُهُ لِي وَلَدٌ، فَسُبْحَانِي أَنْ أَتَّخِذَ صَاحِبَةً أَوْ وَلَدًا».
دا ايت د هغه يهوديانو او نصارى او مشركانو په باره كښې نازل شوې دې څوک چې د الله تعالى د پاره د ځوئى يا د لور قائل وو.

## ١١- باب: وَاتَّخِذُوا مِنْ مَقَامِ إِبْرَاهِيمَ مُصَلًّى

**د مقام ابراهيم نه څه مراد دې؟**: د مقام ابراهيم په تفسير كښې مختلف اقوال دى ،بعضې

---

[1] الكامل فى ضعفاء الرجال لابن عدى ١٤٠/٢)رقم الترجمة ٣٦٨/٧٣) ميزان الاعتدال ٣٨٨/١)رقم الترجمة ١٤٣٥)-

[2] اصول فخر الاسلام البزدوى ١٨٢/٣) ولكن ضعف صاحب كشف الاسرار هو يقول انْ ناسخ لاية المذكورة (انا احللنا لک ازواجک الاتى اتيت اجورهن .فهذا نسخ القران بالقران. لا يصح الاستدلال نسخ القران بالسنة بهذا. كشف الاسرار ٨٣/٣)-

[3] اخرجه البخارى فى كتاب التفسير باب: وقالو اتخذ الله سبحانه. رقم الحديث ٤٢١٢. والحديث من افراده قاله العينى فى العمدة ٩١/١٨)-

وائى چې ټول حرم مقام ابراهيم دې، څوک وائى چې مشاهد حج، خو مشهوره دا ده چې ددې نه مراد هغه کاڼړې دې په کوم باندې چې حضرت ابراهيم عليه السلام ولاړ ووا و کعبه ئې جوړه کړې وه او کوم چې تر اوسه پورې موجود دې[1]

**قوله:** مثابة [١٢٥] يثوبون يرجعون: ﴿وَإِذْ جَعَلْنَا الْبَيْتَ مَثَابَةً لِّلنَّاسِ﴾ مَثَابَةً وائى (الموضع الذى يرجع اليه مرة بعد اخرى) يعنى هغه ځاى کوم طرف ته چې بار بار واپس کيدل کولى شى، د (ثاب، يثوب) معنى ده ،واپس کيدل، د ايت ترجمه ده (مونږ بيت الله د خلقو د پاره بار بار د راتلو ځائې جوړ کړې دې)

[٤٢١٣] حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ عَنْ يَحْيَى بْنِ سَعِيدٍ عَنْ حُمَيْدٍ عَنْ أَنَسٍ قَالَ قَالَ عُمَرُ وَافَقْتُ اللَّهَ فِي ثَلَاثٍ - أَوْ وَافَقَنِي رَبِّي فِي ثَلَاثٍ - قُلْتُ يَا رَسُولَ اللَّهِ، لَوِ اتَّخَذْتَ مَقَامَ إِبْرَاهِيمَ مُصَلًّى وَقُلْتُ يَا رَسُولَ اللَّهِ يَدْخُلُ عَلَيْكَ الْبَرُّ وَالْفَاجِرُ، فَلَوْ أَمَرْتَ أُمَّهَاتِ الْمُؤْمِنِينَ بِالْحِجَابِ فَأَنْزَلَ اللَّهُ آيَةَ الْحِجَابِ قَالَ وَبَلَغَنِي مُعَاتَبَةُ النَّبِيِّ - صلى الله عليه وسلم - بَعْضَ نِسَائِهِ، فَدَخَلْتُ عَلَيْهِنَّ قُلْتُ إِنِ انْتَهَيْتُنَّ أَوْ لَيُبَدِّلَنَّ اللَّهُ رَسُولَهُ - صلى الله عليه وسلم - خَيْرًا مِنْكُنَّ. حَتَّى أَتَيْتُ إِحْدَى نِسَائِهِ، قَالَتْ يَا عُمَرُ، أَمَا فِي رَسُولِ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - مَا يَعِظُ نِسَاءَهُ حَتَّى تَعِظَهُنَّ أَنْتَ فَأَنْزَلَ اللَّهُ (عَسَى رَبُّهُ إِنْ طَلَّقَكُنَّ أَنْ يُبْدِلَهُ أَزْوَاجًا خَيْرًا مِنْكُنَّ مُسْلِمَاتٍ وَقَالَ ابْنُ أَبِي مَرْيَمَ أَخْبَرَنَا يَحْيَى بْنُ أَيُّوبَ حَدَّثَنِي حُمَيْدٌ سَمِعْتُ أَنَسًا عَنْ عُمَرَ.

**قوله:** إِحْدَى نِسَائِهِ: د بعضې (نسائه) مصداق حضرت زينب بنت جحش رضي الله عنها ده، د (احدى نسائه) مصداق حضرت ام سلمه رضي الله عنها ده[2]

## ١٢: باب: - باب قَوْلُهُ تَعَالَى (وَإِذْ يَرْفَعُ إِبْرَاهِيمُ الْقَوَاعِدَ مِنَ الْبَيْتِ وَإِسْمَاعِيلُ رَبَّنَا تَقَبَّلْ مِنَّا إِنَّكَ أَنْتَ السَّمِيعُ الْعَلِيمُ).(١٠)

**قوله:** الْقَوَاعِدُ أَسَاسُهُ، وَاحِدَتُهَا قَاعِدَةٌ، وَالْقَوَاعِدُ مِنَ النِّسَاءِ وَاحِدُهَا قَاعِدٌ:

قواعد د بنياد په معنى کښې استعماليږى په دغه وخت ددې مفرد قاعده راځى او قواعد د هغه ښځو د پاره هم استعماليږى کومې چې د حيض وغيره په وجه ناستې وى په دغه وخت کښې ددې مفرد (قاعد) راځى لکه څنګه چې په سورة نور کښې دى ﴿وَالْقَوَاعِدُ مِنَ النِّسَاءِ اللَّاتِي لَا يَرْجُونَ نِكَاحًا﴾

---

[1] تصريحه من هذا الحديث(حتى اذا اتينا البيت معه استلم الركن فرمل ثلاثا ومشى اربعا ثم تقدم الى مقام ابراهيم، وقرا(واتخذوا من مقام ابراهيم مصلى) صحيح مسلم كتاب الحج باب حجة النبى ﷺ ٣٩٤/١) علم ان مقام ابراهيم ليس كل الحرم)-

[2] عمدة القارى ٩٢/٨)-

[٤٢١٤] حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ قَالَ حَدَّثَنِي مَالِكٌ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ سَالِمِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ أَنَّ عَبْدَ اللَّهِ بْنَ مُحَمَّدِ بْنِ أَبِي بَكْرٍ أَخْبَرَ عَبْدَ اللَّهِ بْنَ عُمَرَ عَنْ عَائِشَةَ -رضي الله عنها- زَوْجِ النَّبِيِّ -صلى الله عليه وسلم- أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- قَالَ «أَلَمْ تَرَيْ أَنَّ قَوْمَكِ بَنَوُا الْكَعْبَةَ وَاقْتَصَرُوا عَنْ قَوَاعِدِ إِبْرَاهِيمَ». فَقُلْتُ يَا رَسُولَ اللَّهِ أَلاَ تَرُدُّهَا عَلَى قَوَاعِدِ إِبْرَاهِيمَ قَالَ «لَوْلاَ حِدْثَانُ قَوْمِكِ بِالْكُفْرِ».
فَقَالَ عَبْدُ اللَّهِ بْنُ عُمَرَ لَئِنْ كَانَتْ عَائِشَةُ سَمِعَتْ هَذَا مِنْ رَسُولِ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- مَا أُرَى رَسُولَ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- تَرَكَ اسْتِلاَمَ الرُّكْنَيْنِ اللَّذَيْنِ يَلِيَانِ الْحِجْرَ، إِلاَّ أَنَّ الْبَيْتَ لَمْ يُتَمَّمْ عَلَى قَوَاعِدِ إِبْرَاهِيمَ.

نبی علیه السلام حضرت عائشه رضي الله عنها ته اوفرمائيل :ولې تا نه دی کتلې چې ستا قوم قريشو د کعبې تعمير کړې دې، او د حضرت ابراهيم علیه السلام د بنيادونو نه ئې دا ابادې ورکوټې کړې دې،حضرت عائشه رضي الله عنها فرمائی چې ما رسول اکرم صلی الله علیه وسلم ته عرض اوکړو چې يا رسول الله:تاسو دا د حضرت ابراهيم علیه السلام په بنيادونو باندې ولې دوباره نه جوړوئی،نو نبی کريم صلی الله علیه وسلم اوفرمائيل (لولا حدثان قومك بالكفر) يعنی که ستا قوم د کفر نه اوس نوې نه وی راوتلې نو ما به دا د حضرت ابراهيم علیه السلام په بنيادونو باندې جوړ کړې وو،مطلب دا دې چې قريش اوس اوس مسلمانان شوی دی ،او ددوی د کفر د زمانې سره اوس تعلق ختم شوکه د کعبې موجوده ابادې بدل کړو ،او د حضرت ابراهيم علیه السلام په بنيادونو باندې دا اباد کړې شی نو په دې سره د دوی په ذهنونو کښې شکوک او شبهات پيدا شی.

حضرت عبدالله ابن عمر رضي الله عنهما فرمائی که عائشې رضي الله عنها دا خبره د رسول الله صلی الله علیه وسلم نه اوريدلې وی (او يقينی چې اوريدلې به وی) نو خه دا گنړم چې ددې وجې نه د حجر يعنی د حطيم سره متصل د رکنينو عراقيينو استيلام پريخودې دې،حطيم سره متصل چې د عراق او شام طرف ته د کعبې ديوالونو سرد د کوم گوټونه دی دهغې استيلام نبی کريم صلی الله علیه وسلم نه کولو ځکه چې دا دواړه گوټونه د حضرت ابراهيم علیه السلام د جوړ کړې آبادئ د گوټونو په ځائې باندې نه دی او بل طرف ته د رکن يمانی او حجر اسود استيلام به ئې کولو ځکه چې د حضرت ابراهيم علیه السلام د آبادئ مطابق وو.د ابراهيم علیه السلام په آبادئ کښې حطيم په کعبه کښې داخل وو،قريشو د حلال مال د کمی په وجه د خانه کعبې تعمير مختصر کړو او حطيم ئې د خانه کعبې نه بهر کړو.

## ١٣ - باب: قُولُوا آمَنَّا بِاللَّهِ وَمَا أُنْزِلَ إِلَيْنَا

[٤٢١٥] حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ عُمَرَ أَخْبَرَنَا عَلِيُّ بْنُ الْمُبَارَكِ عَنْ يَحْيَى بْنِ أَبِي كَثِيرٍ عَنْ أَبِي سَلَمَةَ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رضي الله عنه قَالَ كَانَ أَهْلُ الْكِتَابِ يَقْرَءُونَ التَّوْرَاةَ بِالْعِبْرَانِيَّةِ، وَيُفَسِّرُونَهَا بِالْعَرَبِيَّةِ لأَهْلِ الإِسْلاَمِ، فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صلى الله عليه وسلم «لاَ تُصَدِّقُوا أَهْلَ الْكِتَابِ وَلاَ تُكَذِّبُوهُمْ، وَقُولُوا (آمَنَّا بِاللَّهِ وَمَا أُنْزِلَ) الآيَةَ».

امام بخاري هم دا حديث هم په دې سند سره او متن سره په كتاب الاعتصام او كتاب التوحيد كښې تخريج كړې دې.[1]

اهل كتابو به تورات په عبراني ژبه كښې لوستلو او په عربي ژبه كښې به ئې د هغې تفسير كولو، رسول الله اوفرمائيل تاسو مه ددوى تصديق كوئى او مه ددوى تكذيب كوئى، ځكه چې معلومه نه ده چې هغوى په عربي كښې صحيح تفسير كوى او كه نه، كيدې شى چې غلط تفسير اوكړى او تاسو ئې تصديق اوكړئى نو غير كلام به په كلام الله اومنئى، او ممكن ده چې هغوى صحيح تفسير اوكړى او تاسو ئې تكذيب اوكړئ نو د كلام الله تكذيب به لازم شى، ددې وجې تاسو وائې (امنا بالله وما انزل الينا)

## ۱۴- باب: قوله تعالى: (سَيَقُولُ السُّفَهَاءُ مِنَ النَّاسِ مَا وَلَّاهُمْ عَنْ قِبْلَتِهِمُ الَّتِي كَانُوا عَلَيْهَا قُلْ لِلَّهِ الْمَشْرِقُ وَالْمَغْرِبُ يَهْدِي مَنْ يَشَاءُ إِلَى صِرَاطٍ مُسْتَقِيمٍ) [۱۴۲]

اوس به بې وقوف خلق خامخا وائى چې مسلمانان څه څيز واړولو د دې قبلې نه (يعنى بيت المقدس) په كوم چې دوى وو، تاسو ورته اوفرمائې چې مشرق او مغرب ټول هم د الله په ملك كښې دې هغه چې څوک غواړى نيغه لار ورته ښائى.

**قوله: السُّفَهَاءُ:** السفهاء د (سفيه) جمع ده، ددې معنى ده كم عقل، بيوقوف

**د سفهاء نه څوک مراد دى؟** د (من الناس) نه يهود مراد دى، ځكه چې د قبلې په تحويل باندې د ټولو نه زيات هغوى هنګامه جوړه كړې وه او د يهوديانو خيال وو چې د بيت المقدس قبله كله هم منسوخ كيدې نشى، د بعضو په نيز منافقان مراد دى، ځكه چې هغوى به هميشه د پاره په مسلمانانو باندې د اعتراضونه كولو په فكر كښې وو، او بعضې مبصرينو ددې مصداق مشركان ګرځولې دى ځكه چې د قبلې په تحويل باندې هغوى وئيلې وو چه د محمد ﷺ عجيبه معامله ده چې خپل د مور پلار قبله يعنى د ابراهيم او اسماعيل (عليهما السلام) قبله بيت الله ئې پرخودې ده، او بيا هم دې خپلې د مور پلار قبلې ته دوباره راوړيلو، ددې نه معلوميږى چه زر ده، چې دې به د خپل مور پلار دين ته هم راواوړى.

[۴۲۱۶] حَدَّثَنَا أَبُو نُعَيْمٍ سَمِعَ زُهَيْرًا عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ عَنِ الْبَرَاءِ رضى الله عنه أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - صَلَّى إِلَى بَيْتِ الْمَقْدِسِ سِتَّةَ عَشَرَ شَهْرًا أَوْ سَبْعَةَ عَشَرَ شَهْرًا، وَكَانَ يُعْجِبُهُ أَنْ تَكُونَ قِبْلَتُهُ قِبَلَ الْبَيْتِ، وَإِنَّهُ صَلَّى - أَوْصَلَّاهَا - صَلَاةَ الْعَصْرِ، وَصَلَّى مَعَهُ قَوْمٌ، فَخَرَجَ رَجُلٌ مِمَّنْ كَانَ صَلَّى مَعَهُ، فَمَرَّ عَلَى أَهْلِ الْمَسْجِدِ وَهُمْ رَاكِعُونَ قَالَ أَشْهَدُ بِاللَّهِ لَقَدْ صَلَّيْتُ مَعَ النَّبِيِّ - صلى الله عليه وسلم - قِبَلَ مَكَّةَ، فَدَارُوا كَمَا هُمْ قِبَلَ الْبَيْتِ، وَكَانَ

[1] عمدة القارى (۹۵/۱۸) واخرجه النسائى فى التفسير ايضا عن محمد بن المثنى عمدة القارى ۹۴۹/۱۸)۔

الَّذِي مَاتَ عَلَى الْقِبْلَةِ قَبْلَ أَنْ تُحَوَّلَ قِبَلَ الْبَيْتِ رِجَالٌ قُتِلُوا لَمْ نَدْرِ مَا نَقُولُ فِيهِمْ، فَأَنْزَلَ اللّٰهُ (وَمَا كَانَ اللّٰهُ لِيُضِيعَ إِيمَانَكُمْ إِنَّ اللّٰهَ بِالنَّاسِ لَرَءُوفٌ رَحِيمٌ)

## ١٥٠ - باب: قوله تعالى: وَكَذٰلِكَ جَعَلْنَاكُمْ أُمَّةً وَسَطًا لِتَكُونُوا شُهَدَاءَ عَلَى النَّاسِ وَيَكُونَ الرَّسُولُ عَلَيْكُمْ شَهِيدًا

[٤٢١٧] حَدَّثَنَا يُوسُفُ بْنُ رَاشِدٍ حَدَّثَنَا جَرِيرٌ وَأَبُو أُسَامَةَ - وَاللَّفْظُ لِجَرِيرٍ - عَنِ الْأَعْمَشِ عَنْ أَبِي صَالِحٍ وَقَالَ أَبُو أُسَامَةَ حَدَّثَنَا أَبُو صَالِحٍ عَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ - صلى الله عليه وسلم -: «يُدْعَى نُوحٌ يَوْمَ الْقِيَامَةِ فَيَقُولُ لَبَّيْكَ وَسَعْدَيْكَ يَا رَبِّ. فَيَقُولُ هَلْ بَلَّغْتَ فَيَقُولُ نَعَمْ. فَيُقَالُ لِأُمَّتِهِ هَلْ بَلَّغَكُمْ فَيَقُولُونَ مَا أَتَانَا مِنْ نَذِيرٍ. فَيَقُولُ مَنْ يَشْهَدُ لَكَ فَيَقُولُ مُحَمَّدٌ وَأُمَّتُهُ. فَتَشْهَدُونَ أَنَّهُ قَدْ بَلَّغَ». (وَيَكُونَ الرَّسُولُ عَلَيْكُمْ شَهِيدًا) فَذٰلِكَ قَوْلُهُ جَلَّ ذِكْرُهُ (وَكَذٰلِكَ جَعَلْنَاكُمْ أُمَّةً وَسَطًا لِتَكُونُوا شُهَدَاءَ عَلَى النَّاسِ وَيَكُونَ الرَّسُولُ عَلَيْكُمْ شَهِيدًا) وَالْوَسَطُ الْعَدْلُ.

د يوسف بن راشد دلته دوه أستاذان دي جرير او اسامه، په حديث كښې د جرير الفاظ نقل كړې شوي دی او جرير د ابوصالح نه په (عن) سره نقل كړې دي، او اسامه په (حدثنا ابوصالح) سره روايت نقل كړې دې د ابوصالح نوم ذكوان دې [1]

په روايت كښې دي چې د حضرت نوح عليه السلام قوم به انكار اوكړی او اوبه وائی چې مونږ ته څوک ويرونكې نه وو راغلې .د حضرت محمد ﷺ امت به د حضرت نوح عليه السلام په حق كښې ګواهی وركړی چې دوی خپل قوم ته د الله تعالى پيغام رسولې وو .او نبی ﷺ به په خپل قوم ګواه وی چې دې خلقو رښتينې ګواهی وركړه .(وَسَطًا لِتَكُونُوا شُهَدَاءَ عَلَى النَّاسِ وَيَكُونَ الرَّسُولُ عَلَيْكُمْ شَهِيدًا) هم دا مطلب دې.

بعضې حضراتو ددې آيت نه د نبی كريم ﷺ په حاضرناضر باندې استدلال كړې دې، خو ددې استدلال ضعف ښكاره واضح دې چې د نبی ﷺ او ددوی د امت دا ګواهی د وحی الهی په بنياد باندې ده ،الله تعالى د وحی په ذريعه نبی ﷺ او د نبی ﷺ ته خودلې ده چې حضرت نوح عليه السلام تبليغ كړې وو ،په دې بنياد باندې به ذا ګواهی وركولې شی.

كه ددې څوک د نبی ﷺ په حاضر ناضر باندې استدلال كوی نو بيا صرف نبی ﷺ حاضر ناضر نه دې بلكه پكار ده چې ټول امت حاضر ناضر تسليم كړې شی.

[1] عمدة القاری ١٨/٩٥)-

## ۱۶-باب: قوله تعالى: (وَمَا جَعَلْنَا الْقِبْلَةَ الَّتِي كُنْتَ عَلَيْهَا إِلَّا لِنَعْلَمَ مَنْ يَتَّبِعُ الرَّسُولَ مِمَّنْ يَنْقَلِبُ عَلَى عَقِبَيْهِ وَإِنْ كَانَتْ لَكَبِيرَةً إِلَّا عَلَى الَّذِينَ هَدَى اللَّهُ وَمَا كَانَ اللَّهُ لِيُضِيعَ إِيمَانَكُمْ إِنَّ اللَّهَ بِالنَّاسِ لَرَءُوفٌ رَحِيمٌ) (۱۴۳)

[۴۲۱۸] حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا يَحْيَى عَنْ سُفْيَانَ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ دِينَارٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ رضى الله عنهما بَيْنَا النَّاسُ يُصَلُّونَ الصُّبْحَ فِي مَسْجِدِ قُبَاءٍ إِذْ جَاءَ جَاءٍ فَقَالَ أَنْزَلَ اللَّهُ عَلَى النَّبِيِّ صلى الله عليه وسلم قُرْآنًا أَنْ يَسْتَقْبِلَ الْكَعْبَةَ فَاسْتَقْبِلُوهَا. فَتَوَجَّهُوا إِلَى الْكَعْبَةِ

امام بخاری ددې ايت نه واخله تر ايت كريمه (وَمِنْ حَيْثُ خَرَجْتَ فَوَلِّ وَجْهَكَ شَطْرَ الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ) پورې اياتونو باندې جدا جدا تراجم قائم كړې دى او ددې لاندې ئې هم دغه د قبلې د تحويل روايت د حضرت ابن عمر، د حضرت ابراءابن عازب او حضرت انس رضی اللہ عنہ نه نقل كړې دى په دې كښې دې طرف ته اشاره ده چې ددې ټولو اياتونو تعلق قبلې سره دې او د ټولو شان نزول يودې. د تحويل قبلې سره متعلق بحث په كتاب الصلاة (باب ماجاء فى القبلة) لاندې تير شوې دې.

## ۱۷-باب: قوله تعالى: قَدْ نَرَى تَقَلُّبَ وَجْهِكَ فِي السَّمَاءِ) إِلَى (عَمَّا تَعْمَلُونَ)

[۴۲۱۹] حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ حَدَّثَنَا مُعْتَمِرٌ عَنْ أَبِيهِ عَنْ أَنَسٍ - رضى الله عنه - قَالَ لَمْ يَبْقَ مِمَّنْ صَلَّى الْقِبْلَتَيْنِ غَيْرِي.

د حضرت انس رضی اللہ عنہ نه روايت دې چې په هغه صحابو كښې چا چې دواړو قبلو ته مونځ كړې وو ، خما نه سوا بل څوک باقى پاتې نه دى ،مطلب دادې چې په مهاجرينو او انصارو كښې اوس په بصره كښې صرف څه باقى يم ،نور ټول وفات شوى ،د حضرت انس رضی اللہ عنہ عمر د سلوكالو نه زيات وو او په كال ۹۰ يا ۹۱ هجرئى كښې دوى وفات شوى وو.

## ۱۸.باب: قوله تعالى: وَلَئِنْ أَتَيْتَ الَّذِينَ أُوتُوا الْكِتَابَ بِكُلِّ آيَةٍ مَا تَبِعُوا قِبْلَتَكَ) إِلَى قَوْلِهِ (إِنَّكَ إِذًا لَمِنَ الظَّالِمِينَ) (۱۴۵)

[۴۲۲۰] حَدَّثَنَا خَالِدُ بْنُ مَخْلَدٍ حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ حَدَّثَنِي عَبْدُ اللَّهِ بْنُ دِينَارٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ- رضى الله عنهما- بَيْنَمَا النَّاسُ فِي الصُّبْحِ بِقُبَاءٍ جَاءَهُمْ رَجُلٌ فَقَالَ إِنَّ رَسُولَ اللَّهِ- صلى الله عليه وسلم - قَدْ أُنْزِلَ عَلَيْهِ اللَّيْلَةَ قُرْآنٌ ، وَأُمِرَ أَنْ يَسْتَقْبِلَ الْكَعْبَةَ أَلَا فَاسْتَقْبِلُوهَا . وَكَانَ وَجْهُ النَّاسِ إِلَى الشَّأْمِ فَاسْتَدَارُوا بِوُجُوهِهِمْ إِلَى الْكَعْبَةِ.

## ١٩. باب قوله تعالى: الَّذِينَ آتَيْنَاهُمُ الْكِتَابَ يَعْرِفُونَهُ كَمَا يَعْرِفُونَ أَبْنَاءَهُمْ وَإِنَّ فَرِيقًا مِنْهُمْ لَيَكْتُمُونَ الْحَقَّ) إِلَى قَوْلِهِ (مِنَ الْمُمْتَرِينَ) [١٤٦، ١٤٧]

[٤٢٢١] حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ قَزَعَةَ حَدَّثَنَا مَالِكٌ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ دِينَارٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ بَيْنَا النَّاسُ بِقُبَاءٍ فِي صَلَاةِ الصُّبْحِ إِذْ جَاءَهُمْ آتٍ فَقَالَ إِنَّ النَّبِيَّ -صلى الله عليه وسلم- قَدْ أُنْزِلَ عَلَيْهِ اللَّيْلَةَ قُرْآنٌ، وَقَدْ أُمِرَ أَنْ يَسْتَقْبِلَ الْكَعْبَةَ فَاسْتَقْبِلُوهَا . وَكَانَتْ وُجُوهُهُمْ إِلَى الشَّأْمِ فَاسْتَدَارُوا إِلَى الْكَعْبَةِ.

## ٢٠ - باب: وَلِكُلٍّ وِجْهَةٌ هُوَ مُوَلِّيهَا فَاسْتَبِقُوا الْخَيْرَاتِ أَيْنَمَا تَكُونُوا يَأْتِ بِكُمُ اللَّهُ جَمِيعًا إِنَّ اللَّهَ عَلَى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ

[٤٢٢٢] حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنَّى حَدَّثَنَا يَحْيَى عَنْ سُفْيَانَ حَدَّثَنِي أَبُو إِسْحَاقَ قَالَ سَمِعْتُ الْبَرَاءَ -رضي الله عنه- قَالَ صَلَّيْنَا مَعَ النَّبِيِّ -صلى الله عليه وسلم- نَحْوَ بَيْتِ الْمَقْدِسِ سِتَّةَ عَشَرَ -أَوْ سَبْعَةَ عَشَرَ- شَهْرًا، ثُمَّ صَرَفَهُ نَحْوَ الْقِبْلَةِ.

## ٢٠ - باب: قوله تعالى: (وَمِنْ حَيْثُ خَرَجْتَ فَوَلِّ وَجْهَكَ شَطْرَ الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ وَإِنَّهُ لَلْحَقُّ مِنْ رَبِّكَ وَمَا اللَّهُ بِغَافِلٍ عَمَّا تَعْمَلُونَ) [١٤٩]

شَطْرُهُ تِلْقَاؤُهُ.

[٤٢٢٣] حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيزِ بْنُ مُسْلِمٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ دِينَارٍ قَالَ سَمِعْتُ ابْنَ عُمَرَ -رضي الله عنهما- يَقُولُ بَيْنَا النَّاسُ فِي الصُّبْحِ بِقُبَاءٍ إِذْ جَاءَهُمْ رَجُلٌ فَقَالَ أُنْزِلَ اللَّيْلَةَ قُرْآنٌ، فَأُمِرَ أَنْ يَسْتَقْبِلَ الْكَعْبَةَ، فَاسْتَقْبِلُوهَا . وَاسْتَدَارُوا كَهَيْئَتِهِمْ، فَتَوَجَّهُوا إِلَى الْكَعْبَةِ وَكَانَ وَجْهُ النَّاسِ إِلَى الشَّأْمِ.

## ٢١ - باب: قوله تعالى: (وَمِنْ حَيْثُ خَرَجْتَ فَوَلِّ وَجْهَكَ شَطْرَ الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ وَحَيْثُمَا كُنْتُمْ) إِلَى قَوْلِهِ (وَلَعَلَّكُمْ تَهْتَدُونَ).

[٤٢٢٤] حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ عَنْ مَالِكٍ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ دِينَارٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ بَيْنَمَا النَّاسُ فِي صَلَاةِ الصُّبْحِ بِقُبَاءٍ إِذْ جَاءَهُمْ آتٍ فَقَالَ إِنَّ رَسُولَ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- قَدْ أُنْزِلَ عَلَيْهِ اللَّيْلَةَ، وَقَدْ أُمِرَ أَنْ يَسْتَقْبِلَ الْكَعْبَةَ، فَاسْتَقْبِلُوهَا . وَكَانَتْ وُجُوهُهُمْ إِلَى الشَّأْمِ فَاسْتَدَارُوا إِلَى الْقِبْلَةِ. الْكَعْبَةِ

۲۲. باب قوله تعالى: إِنَّ الصَّفَا وَالْمَرْوَةَ مِنْ شَعَائِرِ اللَّهِ فَمَنْ حَجَّ الْبَيْتَ أَوِ اعْتَمَرَ فَلَا جُنَاحَ عَلَيْهِ أَنْ يَطَّوَّفَ بِهِمَا وَمَنْ تَطَوَّعَ خَيْرًا فَإِنَّ اللَّهَ شَاكِرٌ عَلِيمٌ [۱۵۸].
شَعَائِرُ عَلَامَاتٌ، وَاحِدَتُهَا شَعِيرَةٌ. وَقَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ الصَّفْوَانُ الْحَجَرُ. وَيُقَالُ الْحِجَارَةُ الْمُلْسُ الَّتِي لَا تُنْبِتُ شَيْئًا، وَالْوَاحِدَةُ صَفْوَانَةٌ بِمَعْنَى الصَّفَا، وَالصَّفَا لِلْجَمِيعِ. ۶/۲۸
د شعائر مفرد شعیرة دې زمونږ په هندوستانی نسخو کښې شعرة لیکلې دې،او د شعیرة معنی علامت راخی.

[۴۲۲۵] حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ يُوسُفَ أَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ عَنْ أَبِيهِ أَنَّهُ قَالَ قُلْتُ لِعَائِشَةَ زَوْجِ النَّبِيِّ - صلى الله عليه وسلم - وَأَنَا يَوْمَئِذٍ حَدِيثُ السِّنِّ أَرَأَيْتِ قَوْلَ اللَّهِ تَبَارَكَ وَتَعَالَى (إِنَّ الصَّفَا وَالْمَرْوَةَ مِنْ شَعَائِرِ اللَّهِ فَمَنْ حَجَّ الْبَيْتَ أَوِ اعْتَمَرَ فَلَا جُنَاحَ عَلَيْهِ أَنْ يَطَّوَّفَ بِهِمَا) فَمَا أُرَى عَلَى أَحَدٍ شَيْئًا أَنْ لَا يَطَّوَّفَ بِهِمَا. فَقَالَتْ عَائِشَةُ كَلَّا لَوْ كَانَتْ كَمَا تَقُولُ كَانَتْ فَلَا جُنَاحَ عَلَيْهِ أَنْ لَا يَطَّوَّفَ بِهِمَا، إِنَّمَا أُنْزِلَتْ هَذِهِ الآيَةُ فِي الأَنْصَارِ، كَانُوا يُهِلُّونَ لِمَنَاةَ، وَكَانَتْ مَنَاةُ حَذْوَ قُدَيْدٍ، وَكَانُوا يَتَحَرَّجُونَ أَنْ يَطُوفُوا بَيْنَ الصَّفَا وَالْمَرْوَةِ، فَلَمَّا جَاءَ الإِسْلَامُ سَأَلُوا رَسُولَ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - عَنْ ذَلِكَ فَأَنْزَلَ اللَّهُ (إِنَّ الصَّفَا وَالْمَرْوَةَ مِنْ شَعَائِرِ اللَّهِ فَمَنْ حَجَّ الْبَيْتَ أَوِ اعْتَمَرَ فَلَا جُنَاحَ عَلَيْهِ أَنْ يَطَّوَّفَ بِهِمَا

[۴۲۲۶] حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ يُوسُفَ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ عَاصِمِ بْنِ سُلَيْمَانَ قَالَ سَأَلْتُ أَنَسَ بْنَ مَالِكٍ - رضى الله عنه - عَنِ الصَّفَا وَالْمَرْوَةِ. فَقَالَ كُنَّا نَرَى أَنَّهُمَا مِنْ أَمْرِ الْجَاهِلِيَّةِ، فَلَمَّا كَانَ الإِسْلَامُ أَمْسَكْنَا عَنْهُمَا، فَأَنْزَلَ اللَّهُ تَعَالَى (إِنَّ الصَّفَا وَالْمَرْوَةَ) إِلَى قَوْلِهِ (أَنْ يَطَّوَّفَ بِهِمَا)

**قوله:** حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ يُوسُفَ: دا روایت په کتاب الحج کښې تیر شوې دې[۱] حضرت عروه رضی الله عنه د حضرت عائشه رضی الله عنها نه ددې ایت په باره کښې تپوس اوکړو ﴿إِنَّ الصَّفَا وَالْمَرْوَةَ مِنْ شَعَائِرِ اللَّهِ فَمَنْ حَجَّ الْبَيْتَ أَوِ اعْتَمَرَ فَلَا جُنَاحَ عَلَيْهِ أَنْ يَطَّوَّفَ بِهِمَا﴾ خضرت عروه رضی الله عنه اوفرمائیل خما خیال دې که څوک د صفا او مروه طواف او ددې په مینځ کښې سعی اونکړی نو په ده باندې به څه ګناه نه وی ځکه چې په ایت کښې فرمائیلې شوی دی چه چا د صفا اومروه طواف اوکړو په هغه باندې څه ګناه نشته.رفع د جناح د اباحت دلیل دې ځکه چې کوم څیز مباح وی د هغې په نه کولو کښې څه ګناه نه وی.
حضرت عائشه رضی الله عنها ورته ډیر عجیبه جواب ورکړو وې فرمائیل هرګز نه ، که مسئله داسې وه لکه څنګه چه ته وائې نو ﴿فَلَا جُنَاحَ عَلَيْهِ أَنْ يَطَّوَّفَ بِهِمَا﴾ رفع د جناح په ځائې دلیل د اباحت نه وی

[۱]) صحیح البخاری کتاب الحج باب وجوب الصفاء والمروة (۲۲۲/۱)-

كه يو كس د فعل تارک شي او دا اوونيلې شي چه په دې ترک باندې گناه نشته نو بيا اباحت ثابتيږي، خو كه د فاعل په باره كښې كه دا اوونيلې شي چه كوم كس دا فعل اوكړي په هغه باندې څه گناه نشته،ددې اباحت نه ثابتيږي مثلا اووائي،كوم كس چې د ماسخوتن مونځ اوكړي په هغه باندې گناه نشته په دې سره د ماسخوتن د مانځه اباحت نه ثابتيږي،مباح كيدل به هله ثابيتږي چه كله اوونيلې شي كوم كس چه د ماسخوتن مونځ اونكړي په هغه باندې گناه نشته.

حضرت عائشې رضي الله عنها اوفرمائيل چه د قران مجيد په ايت كښې په تارک سعى باندې د گناه نه نفى نه ده شوې،سعى كونكى ته وئيلې شي چه ده د پاره څه گناه نشته.

اوس سوال دا پيدا كيږي چه د سعى كونكى نه دگناه د نفى ضرورت ولې پيښ شو؟ ددې جواب دا وركولې شي چه د انصارو يوه ډله وه،دا واقعه په اولنى روايت كښې بيان شوې ده،او بله ډله د قريشو وه، دا واقعه په دريم روايت كښې بيان شوې ده،د انصارو ډلې خلقو به د منات بت په نوم باندې احرام تړل او د صفا مروه سعى به ئې نه كوله بلكه دا به ئې گناه گڼله،كله چې اسلام راغلو او د حاجى او معتمر د پاره د صفا او مروه په مينځ كښې د سعى مسئله پيښه شوه نو اوفرمائيلې شو«فَلَا جُنَاحَ عَلَيْهِ أَنْ يَطَّوَّفَ بِهِمَا» په دې عنوان سره انصارو ته بيان شو چه د صفا او مروه په مينځ كښې سعى څه قباحت نه دې او نه په دې باندې د جاهليت د زمانې خيال كوئى چه د صفا اومروه سعى گناه ده ،دا غلطه ده.

بل طرف ته د قريشو معامله دا وه چه هغوى به په صفا او مروه باندې د كيخودې شوې بتانو د وجې سعى كوله كله چه اسلام هم د سعى حكم وركړو نو هغوى ته تنگى محسوس شوه چه دا خو زمونږ د جاهليت رسم وو. كوم چې به مونږ د بتانو د پاره كولو.اوس خو مونږ بت پرستى پرخودې ده نو آيا اوس به هم مونږ د جاهليت دا رسم برقرار ساتو.قران د «فَلَا جُنَاحَ عَلَيْهِ أَنْ يَطَّوَّفَ بِهِمَا» تعبير اختيار كړو او هغوى ته ئې اوونيل چه تنگى مه محسوسوئى. بهرحال د انصارو او قريشو ددې پس منظر په بنيادباندې قران دا اسلوب اختيار كړې دې. خو ددې نه د فعل اباحت نه لازميږي بلكه سعى بين الصفا والمروة واجب ده .

كه د يو كار د فعل اوترک طرفونه دواړه سره برابر وى نو هغه كار به مباح وى او كه د فعل طرف مطلوب وى او د ترک طرف غير مطلوب وى نو بيا به كتلې شي چه د فعل د طرف د مطلوبيت څه حيثيت لرى؟كه هغه په دې اعتبار سره مطلوب وى چه اولى او افضل دې او طرف د ترک غير مطلوب دې.په دې معنى چه هغه خلاف اولى او افضل دې او طرف د ترک غير مطلوب دې،په دې معنى چه هغه خلاف اولى او ناخوښه دې نو په داسې صورت كښې به دفعل د طرف استحباب اوسنت ثابتيږي او كه د ترک طرف مكروه وى او د فعل طرف مطلوب وى په دې طريقه چه دهغې د كولو تاكيد هم وى او طرف د ترک غير مطلوب وى.

په دې طريقه چې په هغې باندې وعيد راغلې وى نو په داسې صورت كښې به د فعل طرف فرض يا واجب وى او طرف د ترک به حرام يا مكروه تحريمى وى.[1]

[1] توضيح تلويح ۱/۳۶-

د سعی بين الصفا والمروة هم دا نوعيت دې چه د فعل طرف مطلوب بالتاکيد دې او د ترک طرف ممنوع دې،نو په دې باندې وعيد راغلې دې.

**قوله: قُدَيْد:** د مدينې منورې نه مکې طرف ته د تلو په لاره کښې د يو ځائې نوم دې.

## ۲۴-باب: قوله تعالى: (وَمِنَ النَّاسِ مَنْ يَتَّخِذُ مِنْ دُونِ اللَّهِ أَنْدَادًا)

(۲۲)أَضْدَادًا،وَاحِدُهَا نِدٌّ

[۴۲۲۷] حَدَّثَنَا عَبْدَانُ عَنْ أَبِي حَمْزَةَ عَنِ الأَعْمَشِ عَنْ شَقِيقٍ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ -صلى الله عليه وسلم- كَلِمَةً وَقُلْتُ أُخْرَى قَالَ النَّبِيُّ -صلى الله عليه وسلم- «مَنْ مَاتَ وَهْوَ يَدْعُو مِنْ دُونِ اللَّهِ نِدًّا دَخَلَ النَّارَ» . وَقُلْتُ أَنَا مَنْ مَاتَ وَهْوَ لاَ يَدْعُو لِلَّهِ نِدًّا دَخَلَ الْجَنَّةَ. [ر: ۱۱۸۱]

نبی کريم ﷺ فرمائيلي دی(من مات وهو يدعو من دون الله ندا دخل النار) کوم کس چې د الله تعالی نه سوا بل څوک رابلي او د الله سره شرک کوی هغه به اور ته داخليږي، حضرت عبدالله بن مسعود د نبی کريم ﷺ دا دې حديث نقل کولو نه پس دا جمله اوونيله (من مات وهو لا يدعو الله ندا دخل الجنة) (وهو لا يدعو الله ندا) د مسلمان کيدو نه کنايه ده،مطلب دا دې چه کورونه بس دوه دی،يو جنت او يو دوزخ، شرک کونکې به دوزخ ته ليږلې شی.ددې نه دا خبره پخپله په پوهه کښې راځی،چه څوک مشرک نه وی او مسلمان او مومن وی هغه به جنت ته ځی.

## ۲۵. باب: قوله تعالى: يَاأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا كُتِبَ عَلَيْكُمُ الْقِصَاصُ فِي الْقَتْلَى الْحُرُّ بِالْحُرِّ) إِلَى قَوْلِهِ (عَذَابٌ أَلِيمٌ) (۱۷۸)

عفي،[۱۷۸] ترك

**په قصاص کې د نفس په بدله کې نفس دې د ازاد او غلام هيڅ تفريق په دې کې نشته:** په دې ايت کښې د آزاد مقابله د ازاد سره او د غلام مقابله د غلام سره ده، ددې تقابل تقاضه دا ده که ازاد غلام لره قتل کړی نو دده نه به قصاص نشی اخستې او هم دا مذهب دې د امام مالک او امام شافعی ([1])

د احنافو مذهب دا دې چه د نفس په بدله کښې د نفس اعتبار دې په قصاص کښې د ازادئی او غلامئ څه اعتبار نشته نو د غلام په بدله کښې به ازاد قتل کولې شی ([2])

ترکومې پورې چې د ايت کريمه تعلق دې په دې کښې صرف دومره خبره بيان شوې ده چه دازاد په مقابله کښې به ازاد او غلام په مقابله کښې به غلام قتل کولې شی،دغه شان د ښځې

[1]) احکام القران للجصاص (۱۳۵/۱)-
[2]) حواله بالا

په مقابله کښې به ښځه قتل کولې شي باقي دا چه غلام به ازاد په مقابله کښې قتل کولې شي یا آزاد به د غلام په مقابله کښې قتلولې شي که نه؟ ایت ددې نه چپ دې.

بل طرف ته په سورة مائده کښې د نفس په مقابله کښې د نفس تصریح ده ﴿وَكَتَبْنَا عَلَيْهِمْ فِيهَا أَنَّ النَّفْسَ بِالنَّفْسِ﴾ ..

دغه شان د نبی کریم ﷺ ارشاد دې «المسلمون تتکافا دماؤهم»[1] چه د مسلمانانو وینه په خپل مینځ کښې برابر ده.

باقي په ذکر شوی ایت کریمه کښې ازادد ازاد او غلام د غلام په مقابله کښې راوړلې شوې دې. ددې وجې په حقیقت کښې ددې د شان نزول هغه واقعه ده کومه چې حافظ ابن کثیر او علامه آلوسی رحمه الله په خپل تفسیرونو کښې بیان کړې ده.چه په جاهلیت کښې د دوو قبیلو په مینځ کښې د وینې تویولو او قتل او قصاص مسئله راروانه وه،په دې کښې یوه قبیله دشان او شوکت خاونده وه، هغې وئیلې وو چې مونږ به د غلام په بدله کښې ازاد او د ښځې په بدله کښې سړې قتل کوو،کله چې اسلام راغلو نو دادوړه قبیلې د خپلې فیصلې د پاره د نبی کریم ﷺ په خدمت کښې حاضرې شوې نو الله تعالی دا ایت کریمه نازل کړو په دې کښې وئیلې شوی دی ،چې د ازاد په مقابله کښې به ازاد او غلام په مقابله کښې به غلام قتل کولې شی، د غلام په مقابله کښې څوک بې قصوره ازاد یا د ښځې په قصاص کښې څوک بې ګناه سړې قتل کول ټیک نه دی[2] د ایت دا مطلب نه دې که د ښځې قاتل سړې وی یا د غلام قاتل ازاد وی نو قاتل به نشی قتلولې، والله اعلم

[۴۲۲۸] حَدَّثَنَا الْحُمَيْدِيُّ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ حَدَّثَنَا عَمْرٌو قَالَ سَمِعْتُ مُجَاهِدًا قَالَ سَمِعْتُ ابْنَ عَبَّاسٍ -رضي الله عنهما- يَقُولُ كَانَ فِي بَنِي إِسْرَائِيلَ الْقِصَاصُ، وَلَمْ تَكُنْ فِيهِمُ الدِّيَةُ فَقَالَ اللَّهُ تَعَالَى لِهَذِهِ الأُمَّةِ (كُتِبَ عَلَيْكُمُ الْقِصَاصُ فِي الْقَتْلَى الْحُرُّ بِالْحُرِّ وَالْعَبْدُ بِالْعَبْدِ وَالأُنْثَى بِالأُنْثَى فَمَنْ عُفِيَ لَهُ مِنْ أَخِيهِ شَيْءٌ) فَالْعَفْوُ أَنْ يَقْبَلَ الدِّيَةَ فِي الْعَمْدِ (فَاتِّبَاعٌ بِالْمَعْرُوفِ وَأَدَاءٌ إِلَيْهِ بِإِحْسَانٍ) يَتَّبِعُ بِالْمَعْرُوفِ وَيُؤَدِّي بِإِحْسَانٍ ، (ذَلِكَ تَخْفِيفٌ مِنْ رَبِّكُمْ) وَرَحْمَةٌ مِمَّا كُتِبَ عَلَى مَنْ كَانَ قَبْلَكُمْ. (فَمَنِ اعْتَدَى بَعْدَ ذَلِكَ فَلَهُ عَذَابٌ أَلِيمٌ) قَتَلَ بَعْدَ قَبُولِ الدِّيَةِ.

حضرت ابن عباس رضی الله عنهما فرمائی چې په بنی اسرائیلو کښې د قصاص حکم وو او دیت نه وو. او د حضرت عیسی (ع) په شریعت کښې د دیت حکم وو او د قصاص نه وو. الله تعالی ددې امت د پاره قصاص او دیت دواړه مشروع اوګرځول .په قتل عمد کښې قصاص او د قتل په نورو قسمونو کښې دیت، په ایت کریمه کښې د ﴿فَمَنْ عُفِيَ لَهُ مِنْ أَخِيهِ شَيْءٌ﴾ مطلب دادې چې په قتل

---

[1]) حواله بالا

[2]) تفسیر ابن کثیر (۲۰۹/۱) وروح المعانی ۴۹/۲)-

عمد كښې قصاص معاف كړي او ديت قبول كړي (كه د مقتول وارثان قصاص او ديت دواړه معاف كول اوغواړي نو دواړه معاف كيږي.

[۴۲۲۹] حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ الأَنْصَارِي حَدَّثَنَا حُمَيْدٌ أَنَّ أَنَسًا حَدَّثَهُمْ عَنِ النَّبِي -صلى الله عليه وسلم- قَالَ «كِتَابُ اللَّهِ الْقِصَاصُ».

دا روايت ثلاثي دې ددې نه وړاندې پنځلس ثلاثي روايات تير شوي دي.

[۴۲۳۰] حَدَّثَنِي عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مُنِيرٍ سَمِعَ عَبْدَ اللَّهِ بْنَ بَكْرٍ السَّهْمِي حَدَّثَنَا حُمَيْدٌ عَنْ أَنَسٍ أَنَّ الرُّبَيِّعَ عَمَّتَهُ كَسَرَتْ ثَنِيَّةَ جَارِيَةٍ، فَطَلَبُوا إِلَيْهَا الْعَفْوَ فَأَبَوْا، فَعَرَضُوا الأَرْشَ فَأَبَوْا، فَأَتَوْا رَسُولَ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- وَأَبَوْا إِلاَّ الْقِصَاصَ، فَأَمَرَ رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- بِالْقِصَاصِ، فَقَالَ أَنَسُ بْنُ النَّضْرِ يَا رَسُولَ اللَّهِ، أَتُكْسَرُ ثَنِيَّةُ الرُّبَيِّعِ لاَ وَالَّذِي بَعَثَكَ بِالْحَقِّ لاَ تُكْسَرُ ثَنِيَّتُهَا. فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صلى الله عليه وسلم «يَا أَنَسُ كِتَابُ اللَّهِ الْقِصَاصُ» فَرَضِيَ الْقَوْمُ فَعَفَوْا، فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- «إِنَّ مِنْ عِبَادِ اللَّهِ مَنْ لَوْ أَقْسَمَ عَلَى اللَّهِ لأَبَرَّهُ».

**د حضرت ربيع د يوې جينۍ د غاښ ماتولو واقعه:** د حضرت انس ﷺ ترور (د پلار خور) ربيع د يوې جينۍ غاښ مات كړو خلقو ددغه جينۍ نه معافي اوغوښتله خو د جينۍ كسانو نه منله .ديت ئې ورته پيش كړو نو دديت اخستلو نه ئې انكار اوكړو رسول الله ﷺ ته راغلل او د قصاص مطالبه ئې اوكړه.نبي كريم ﷺ د قصاص حكم اوكړو په دې باندې د ربيع ورور حضرت انس بن النضر اوونيل ،يا رسول الله ﷺ آيا څما د خور ربيع غاښ به ماتولې شي نو په هغه ذات مې دې قسم وی چې ته ئې راليږلې ،ددې غاښ به نشي ماتولې،انس ابن نضير د الله په بهروسه باندې قسم اوكړو ،ددې مطلب دادې چې څما د الله په ذات باندې كامل يقين دې چې هغه به د غاښ ماتولو نوبت نه راولي ،او هم دا اوشوه چې د جينۍ كسان په ديت باندې راضي شول او قصاص ئې معاف كړو، په دې باندې رسول الله ﷺ اوفرمائيل د الله داسې بنديګان دی كه د الله په نوم باندې قسم اوكړي نو الله به د هغوی قسم پوره كړي.

امام مسلم په كتاب القسامة كښې د ثابت بن انس په طريقه سره دا روايت نقل كړې دې چه الفاظ يې دا دی (ان اخت الربيع ام حارثة جرحت انسانا فاختصموا الى النبى ﷺ فقال رسول الله: القصاص القصاص.فقالت ام الربيع :يا رسول الله ايقتص من فلانة؟ والله لا يقتص منها فقال النبى ﷺ سبحان الله،يا ام الربيع القصاص كتاب الله قالت: فقال لا والله لا يقتص منها ابدا[۱]قال فما زالت حتى قبلوا الدية فقال رسول الله ان من عباد الله من لو اقسم على الله لابره.

**د رواياتو تعارض او دهغې حل:** د امام بخارى په حديث باب او د امام مسلم په ذكر شوی

[۱] واستشكل هذا الانكار منهامع ما سمعت من رسول الله ﷺ من الامر بالقصاص واجابوا عنه بوجوده احسنها عندى انه لم يكن اعتراضا على الحكم وانما كان على طريق الثقة بالله تعالى والتوكل عليه تكملة فتح الملهم ۳۵۳/۲)

روایت کښې په څو ځیزونو کښې تعارض دې.
①اولنې تعارض دادې چې د مسلم په روایت کښې جنایت کونکې د ربیع خور وه او د بخاری په روایت باب کښې جانې پخپله ربیع ده.
②دویم تعارض دادې چې د مسلم په روایت کښې قسم خوړونکې د ربیع مور ده او د بخاری په روایت کښې خالف حضرت انس بن النضر دې.
امام نووی فرمائیلې دی چه دا دواړه جدا جدا واقعات دی [1] نو د تعارض اشکال صحیح نه دې، د علامه عینی او د مسلم د شارح ابی رحمه الله میلان هم دې طرف ته دې [2]
خو مولانا ظفر احمد عثمانی په اعلاء السنن کښې په دې خبره باندې جزم کړې دې چې داجدا جدا واقعات نه دی بلکه هم یوه واقعه ده [3]
په اصل کښې د امام مسلم د ذکر شوی روایت د راوی ته وهم شوې دې، اصل عبارت دادې (عن انس عن اخته الربیع جرحت انسانا) یعنی د انس خور ربیع یو انسان زخمی کړې وو په غلطی سره عبارت داسې شو (عن انس ان اخت الربیع جرحت انسانا) د ربیع خور یو سړې زخمې کړې وو، کاتب (اخته الربیع) نه (اخت الربیع) جوړ کړې دې د دې وجې تعارض پیدا شوې دې [4]
باقې پاتې شو دویم تعارض چه د حالف د تعیین په باره کښې د مسلم په روایت کښې تصحیح طرف ته د حافظ ابن حجر میلان معلومیږی [5]
بهرحال د نومونو د تعیین په باره کښې بعضې وخت د روایاتو نه یو قسم وهم واقع کیږی خو په دې سره د اصل حدیث په ثبوت باندې څه اشکال نه راځی.

## ۲۶-باب: قوله تعالی: يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا كُتِبَ عَلَيْكُمُ الصِّيَامُ كَمَا كُتِبَ عَلَى الَّذِينَ مِنْ قَبْلِكُمْ لَعَلَّكُمْ تَتَّقُونَ (۱۸۳)

د ایت کریمه متعلق مفسرینو دا بحث کړې دې چه دلته کومه تشبیه ورکړې شوې ده دا تشبیه په نفس صیام کښې ده، یا په موده د صیام کښې راجح او ظاهر هم دا ده چې دا تشبیه په نفس صیام کښې ده، د بعضې حضراتو رائې داده چې دا په مودې او مقدار کښې تشبیه ده.
د یوې میاشتې روژې لکه څنګه چې په دې امت باندې فرض شوې دی دغه شان په یهودو او نصارو باندې هم فرض کړې شوې وې. یهودیانو د دیرشو ورځو په ځائې په پوره کال کښې صرف یوه روژه نیول شروع کړله او نصارو دا زیاتې کړې، پنځوس ورځې روژې ئې نیول شروع

[1]) انظر شرح مسلم للنووی (۵۹/۲) صحیح مسلم ۵۹۱/۲) کتاب القسامة باب اثبات القصاص فی الاسنان وما فی معناها)-
[2]) عمدة القاری ۲۰۳/۱۱) وشرح المسلم للابی ٤١٧/٠٤)-
[3]) اعلاء السنن ۱۱۰/۱۸)-
[4]) تکملة فتح الملهم ۳۵۵/۲)-
[5]) فتح الباری ۲۱۵/۱۲)-

كړل بيا كله چې په ګرمئ كښې د پنځوس روژو نيول ګران شو نو نصارو د روژو وخت بدل كړلو ، د ګرمئ په ځائې به ئې په معتدل موسم كښې روژې نيولې (١)

[۴۲۳۱] حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا يَحْيَى عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ قَالَ أَخْبَرَنِي نَافِعٌ عَنِ ابْنِ عُمَرَ - رضى الله عنهما - قَالَ كَانَ عَاشُورَاءُ يَصُومُهُ أَهْلُ الْجَاهِلِيَّةِ، فَلَمَّا نَزَلَ رَمَضَانُ قَالَ «مَنْ شَاءَ صَامَهُ، وَمَنْ شَاءَ لَمْ يَصُمْهُ».

[۴۲۳۲] حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا ابْنُ عُيَيْنَةَ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ عُرْوَةَ عَنْ عَائِشَةَ - رضى الله عنها - كَانَ عَاشُورَاءُ يُصَامُ قَبْلَ رَمَضَانَ، فَلَمَّا نَزَلَ رَمَضَانُ قَالَ «مَنْ شَاءَ صَامَ، وَمَنْ شَاءَ أَفْطَرَ».

[۴۲۳۳] حَدَّثَنِي مَحْمُودٌ أَخْبَرَنَا عُبَيْدُ اللَّهِ عَنْ إِسْرَائِيلَ عَنْ مَنْصُورٍ عَنْ إِبْرَاهِيمَ عَنْ عَلْقَمَةَ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ قَالَ دَخَلَ عَلَيْهِ الأَشْعَثُ وَهُوَ يَطْعَمُ فَقَالَ الْيَوْمُ عَاشُورَاءُ. فَقَالَ كَانَ يُصَامُ قَبْلَ أَنْ يَنْزِلَ رَمَضَانُ، فَلَمَّا نَزَلَ رَمَضَانُ تُرِكَ، فَادْنُ فَكُلْ.

[۴۲۳۴] حَدَّثَنِي مُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنَّى حَدَّثَنَا يَحْيَى حَدَّثَنَا هِشَامٌ قَالَ أَخْبَرَنِي أَبِي عَنْ عَائِشَةَ رضى الله عنها قَالَتْ كَانَ يَوْمُ عَاشُورَاءَ تَصُومُهُ قُرَيْشٌ فِي الْجَاهِلِيَّةِ، وَكَانَ النَّبِيُّ صلى الله عليه وسلم - يَصُومُهُ، فَلَمَّا قَدِمَ الْمَدِينَةَ صَامَهُ وَأَمَرَ بِصِيَامِهِ، فَلَمَّا نَزَلَ رَمَضَانُ كَانَ رَمَضَانُ الْفَرِيضَةَ، وَتُرِكَ عَاشُورَاءُ، فَكَانَ مَنْ شَاءَ صَامَهُ، وَمَنْ شَاءَ لَمْ يَصُمْهُ.

**په دې سلسله كې د رواياتو تعارض او ددې حل:** په ذكر شوې څلور واړه رواياتو كښې دا خبره بيان شوې ده چه د رمضان د فضيلت نه وړاندې د عاشورې يعنى د لسم محرم روژه به خلقونيوله كله چې رمضان راغلو نو د عاشورې روژه پريخودې شوه اوس اختيار دې كه څوك غواړي نو نيسي دې او كه څوك غواړي نو نه دې نيسي.

**د رمضان د فرضيت نه مخكې د عاشورې د ورځې د روژې حيثيت:** په دې خبرو باندې خو د ټولو عالمانو اتفاق دې چه د عاشورې روژه اوس واجب نه ده خو په دې كښې اختلاف دې چه د رمضان نه وړاندې د عاشورې روژه فرض وه كه مستحب؟ د شوافعو نه خو په دې باره كښې دوه روايتونه راغلي دى خو د هغوى مشهور روايت دادې چه د عاشورې روژه فرض نه ده احناف وائى چې د رمضان نه وړاندې د عاشورې روژه فرض وه. (٢)

د احاديثو نه د احنافوتائيد كيږي دلته په حديث كښې دى «كان النبى ﷺ يصومه فلما قدم المدينة

---

(١) روح المعانى ٢/٧٩،٨٠) اخرجه البخارى كتاب التفسير باب (يا ايها الذين آمنوا كتب عليكم الصيام كما كتب على الذين من قبلكم) رقم حديث ٤٢٣٤. واخرجه مسلم فى كتاب الصيام باب صوم يو عاشوراء رقم الحديث ١١٢٦)-

(٢) عمدة القارى ١٨/١١) باب صيام يوم عاشوره)-

صام وامر بصیامه فلما نزل رمضان کان رمضان الفریضة وترک عاشوراء) ددي نه معلومیږي چه وړاندي د عاشورې روژه فرض وه کله چه د رمضان د روژو حکم راغلو نو د عاشورې روژه پرېښودلې شوه. امام بخاری په کتاب الصوم کښې هم یو روایت نقل کړې دې (صام النبی ﷺ عاشوراء وامر بصیامه فلما فرض رمضان ترکه) (۱)

ددې روایت نه هم د رمضان نه وړاندې د صوم عاشوره فرضیت معلومیږي. ددې سره متعلق نور مباحث په کتاب الصوم کښې د (باب صیام یوم العاشوراء) لاندې تیر شوی دی.

**قوله: دَخَلَ عَلَيْهِ الْأَشْعَثُ:**

**اشعث بن قیس:** دلته په دریم روایت کښې دی چې عبدالله بن مسعود ته اشعث راغلو دا اشعث بن قیس بن معدی کرب بن معاویه بن جبله دې، په کال ۱۰ هجرئی کښې د وفد کنده سره د رسول الله په خدمت کښې حاضر شوې وو، علامه عینی لیکی (وکان فی الجاهلیة رئیسا مطاعا فی کندة وکان فی الاسلام وجیها فی قومه الا انه کان ممن ارتد عن الاسلام بعد النبی ﷺ ثم راجع الاسلام فی خلافة ابی بکر) (۲)

حضرت ابوبکر صدیق رضی الله عنه د خپلې خور دذه سره واده کړې وو، په جنګ صفین کښې دې د حضرت علی رضی الله عنه سره وو، په کال ۴۰ هجرئی کښې د حضرت علی رضی الله عنه د وفات نه څلوېښت ورځې پس په کوفه کښې دوی وفات شول. حضرت حسن بن علی رضی الله عنه ددوی د جنازې مونځ وزکړو (۳)

## باب قوله تعالى: أَيَّامًا مَعْدُودَاتٍ فَمَنْ كَانَ مِنْكُمْ مَرِيضًا أَوْ عَلَى سَفَرٍ فَعِدَّةٌ مِنْ أَيَّامٍ أُخَرَ

وَعَلَى الَّذِينَ يُطِيقُونَهُ فِدْيَةٌ طَعَامُ مِسْكِينٍ فَمَنْ تَطَوَّعَ خَيْرًا فَهُوَ خَيْرٌ لَهُ وَأَنْ تَصُومُوا خَيْرٌ لَكُمْ إِنْ كُنْتُمْ تَعْلَمُونَ [۱۸۳]

وَقَالَ عَطَاءٌ يُفْطِرُ مِنَ الْمَرَضِ كُلِّهِ كَمَا قَالَ اللَّهُ تَعَالَى. وَقَالَ الْحَسَنُ وَإِبْرَاهِيمُ فِي الْمُرْضِعِ وَالْحَامِلِ إِذَا خَافَتَا عَلَى أَنْفُسِهِمَا أَوْ وَلَدِهِمَا تُفْطِرَانِ ثُمَّ تَقْضِيَانِ. وَأَمَّا الشَّيْخُ الْكَبِيرُ إِذَا لَمْ يُطِقِ الصِّيَامَ، فَقَدْ أَطْعَمَ أَنَسٌ بَعْدَ مَا كَبِرَ عَامًا أَوْ عَامَيْنِ كُلَّ يَوْمٍ مِسْكِينًا خُبْزًا وَلَحْمًا وَأَفْطَرَ. قِرَاءَةُ الْعَامَّةِ (يُطِيقُونَهُ) وَهُوَ أَكْثَرُ.

---

(۱) عمدة الباری ۱۱۹/۱۱ باب صیام یوم عاشوره)-

(۲) عمدة القاری ۱۰۳/۱۸)-

(۳) سیر اعلام النبلاء ۳۷.٤۷/۲) واسد الغابة ۱۱۸/۱) وتهذیب التهذیب ۳۵۹/۱، والاصابة ۷۹/۱)-

[۴۲۳۵] -۴۵۰۵ حَدَّثَنِي إِسْحَاقُ أَخْبَرَنَا رَوْحٌ حَدَّثَنَا زَكَرِيَّاءُ بْنُ إِسْحَاقَ حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ دِينَارٍ عَنْ عَطَاءٍ سَمِعَ ابْنَ عَبَّاسٍ يَقْرَأُ (وَعَلَى الَّذِينَ يُطَوَّقُونَهُ فِدْيَةٌ طَعَامُ مِسْكِينٍ). قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ لَيْسَتْ بِمَنْسُوخَةٍ، هُوَ الشَّيْخُ الْكَبِيرُ وَالْمَرْأَةُ الْكَبِيرَةُ لاَ يَسْتَطِيعَانِ أَنْ يَصُومَا، فَلْيُطْعِمَانِ مَكَانَ كُلِّ يَوْمٍ مِسْكِينًا.

**قوله:** أَيَّامًا مَعْدُودَاتٍ: نه مراد رمضان المبارک دې نو دا منصوب دې دفعل مقدر د (صوموا) د وجې.[1]

**قوله:** وَقَالَ عَطَاءٌ يُفْطِرُ مِنَ الْمَرَضِ كُلِّهِ كَمَا قَالَ اللَّهُ تَعَالَى:

**د معمولي مرض په وجه د روژې ماتولو متعلق د امام بخاري اود جمهورو مسلک:** د عطاء ابن ابی رباح ابن سیرین او اهل ظاهر مذهب دادې که څوک معمولي غونډې بیمار هم وی هغه افطار کولې شی ددوی دلیل دا دې چې (فَمَنْ كَانَ مِنْكُمْ مَرِيضًا) مطلق دې په دې کښې قید نشته چه مرض سخت وی ، ددې وجې که مرض سخت وی او که معمولی ، مریض ته د افطار اجازت دې.[2]

هم دا مذهب د امام بخاری هم دې حافظ بن حجر د فتح الباری په مقدمه کښې د ابوحیان په حوالې سره نقل کړې دی چه یو ځل امام بخاری په نیشاپوری کښې معمولي غونډې بیمار شو نو ددوی استاد اسحق بن راهویه د خپل شاګردانو د یوې ډلې په ملګرتیا کښې ددوی بیمار پرسئ له لاړل چې وئې کتل نو امام بخاری روژه ماته کړې ده او مرض ئې څه سخت نه وو، اسحق بن راهویه چې کله په دې باره کښې خبرې اوکړې نو امام بخاری رحمه الله هغوی ته د عطاء بن ابی رباح ذکر شوې تعلیق واورولو، د اسحق ابن راهویه سره دا تعلیق موجود نه وو،[3] عبدالرزاق دا تعلیق موصولا ذکر کړې دې[4] هم دا مذهب د ابن سیرین هم دې .یو ځل هغوی ته څه کسان راغلل نو هغوی د ګوتې د تکلیف په وجه روژه نه وه نیولې.[5]

خو د جمهورو فقهاؤ په نیز د مرض نه سخت مرض مراد دې. یا دا چه د روژې نیولو سره د مرض د زیاتیدو ویره وی.وړاندې په (ولایرید بکم العسر) کښې دې طرف ته اشاره موجود ده.

**قوله:** وَقَالَ الْحَسَنُ وَإِبْرَاهِيمُ فِي الْمُرْضِعِ وَالْحَامِلِ:

**د مرضعه او حامله د روژو نه نیولو متعلق د ائمه ؤ مذاهب:** د حضرت حسن بصری ،ابراهیم نحغی او احنافو رحمهم الله دا مذهب دې که مرضعې یا حاملې ته په خپل ځان یا په خپل بچی

[1] روح المعانی (۸۱/۱)-
[2] حواله بالا
[3] مقدمة فتح الباری(۶۷۳)-
[4] عمدة القاری ۱۰۴/۱۸)-
[5] روح المعانی(۸۱/۱)-

باندې د هلاکت ویره وی نو روژه پریښودلې شي خو روسته به دهغې قضا راوړی او په دې باندې کفاره نشته،

امام شافعي او امام احمد بن حنبل رحمهما الله فرمائی که د دوی په خپل ځان باندې ویره وی نو افطار نه پس به قضا روارې خو که دې ته په خپل بچی باندې ویره وه نو د قضا سره سره به د کفارې په ډول فدیه هم ورکوی.

امام مالک رحمه الله فرمائي که مرضعه په خپل بچی باندې د هلاکت د ویرې د وجې افطار اوکړی نو دقضا سره به فدیه ادا کول وی خود حاملې په باره کښې د دوی مذهب د احنافو سره دې[1]

**قوله: قِرَاءَةُ الْعَامَّةِ (يُطِيقُونَهُ) وَهُوَ أَكْثَرُ:** د سورة بقرة په آیت ﴿وَعَلَى الَّذِيْنَ يُطِيْقُوْنَهٗ فِدْيَةٌ طَعَامُ مِسْكِيْنٍ﴾[2] کښې مختلف قراءتونه شوی دی:

① مشهور او د جمهورو قراءت ﴿وَعَلَى الَّذِيْنَ يُطِيْقُوْنَهٗ﴾ دې، د ایت کریمه مطلب دادې چه کم کسان د روژې نیولو استطاعت او طاقت لری خو روژه نه نیسی د هغوی په ذمه د فدیه ادا کول واجب دی ښکاره دا چې دا مذهب اوس د چا هم نه دې، ددې وجې ددې قراءت مختلف توجیهات شوی دی.

(الف) د حضرت سلمه بن الاکوع، عبدالله بن عمر رضي الله عنهم او جمهورو قول دادې چه دا ایت منسوخ دې وړاندې د حضرت سلمه بن الاکوع رضي الله عنه روایت راخې چه کله دا ایت نازل شو نو چه کوم کس به غوښتله روژه به نې نیوله او چا چه به افطار کول غوښتل نو د روژې نه نیولو فدیه به ئې ورکوله خو چه کله ددې نه روسته ایت ﴿فَمَنْ شَهِدَ مِنْكُمُ الشَّهْرَ فَلْيَصُمْهُ﴾ نازل شو نو د ﴿وَعَلَى الَّذِيْنَ يُطِيْقُوْنَهٗ فِدْيَةٌ طَعَامُ مِسْكِيْنٍ﴾ حکم منسوخ شو.

(ب) بعضې حضرات وائی چې (یطیقونه) د باب افعال نه دې او د باب افعال یو خاصیت سلب ماخذ دې دلته هم دا خاصیت موجود دې نو په دې صورت کښې به د ایت کریمه دا مطلب وی چه کوم کسان د روژې نیولو طاقت نه لری د هغوی نه طاقت سلب شوې دې داسې کسان به فدیه ادا کوی[3]

(ج) بعضې حضرات فرمائی چې دلته لا نافیه محذوف ده بلکه د حضرت حفصه رضي الله عنها نه د ﴿وَعَلَى الَّذِيْنَ يُطِيْقُوْنَهٗ﴾ قراءت مروی دې[4].

(د) بعضې عالمانو ددې قراءت یو بله نفیس توجیه کړې ده چې دلته د یطیقونه صیغه استعمال شوې ده او طاقت وائی (القدرة مع المشقة والشدة) یعنی د مشقت او تکلیف سره په یو

---

[1]) الجامع لاحکام القران ۱۸۰/۱)-

[2]) سورة بقرة ۱۸٤)-

[3]) روح المعانی ۸۲،۸۳/۱)-

[4]) حواله بالا

څېز باندې طاقت لرلو ته ،نو د ﴿وَعَلَى الَّذِيْنَ يُطِيْقُوْنَهٗ فِدْيَةٌ طَعَامُ مِسْكِيْنٍ﴾ نو ددې مطلب دا شو(وعلى الذين يصومونه مع الشدة المشقة) هغه خلق چې په مشقت او تكليف سره روژې نيسى په اسانئ سره هغوى روژه نشى نيولې هغوى ته اجازت دې چې فديه ادا كړى او روژه اونه نيسى،او دا كيفيت د شيخ كبير وى ،او د شيخ كبير د پاره هم دا حكم دې چه هغه به د روژې په بدله كښې فديه وركوى ،ددې توجيه مطابق هم دا ايت منسوخ نه دې[1]

۲: حضرت ابن عباس رضي الله عنه قراءت په روايت باب كښې ذكر شوې دې ﴿وَعَلَى الَّذِيْنَ يُطِيْقُوْنَهٗ﴾ دباب تفعيل نه د جمع غائب مجهول صيغه ده په دې صورت كښې به معنى وى چې په هغه كسانو چې د روژې د وجې په تكليف كښې اخته وى،نو فديه ده، د تطويق معنى ده د څه كار تكليف وركولو دې.

حضرت ابن عباس رضي الله عنه فرمائى چه دا ايت منسوخ نه دې په ايت كښې داسې بوډاګانو سړو او بوډيګانو ښځو ذكر دې كومې چې د روژې ساتلو طاقت نه لرى، د هغوى د پاره هم دا حكم دې چې هغوى به فديه وركوى.

د حضرت مولانا انورشاه كشميرى رحمه الله هم دا رائې ده چې دا ايت بالكليه منسوخ نه دې هغوى فرمائى چې د څلور واړو امامانو په نيز د فديې كوم احكام په بعضې صورتونو كښې موجوديږى د هغې اصل هم دا ايت دې كه دا ايت بيخى منسوخ كړې شى نو بيا به په قران كښې د فديې څه بنياد پاتې نه شى ددې ايت تلاوت باقى ساتلو كښې هم دا راز معلوميږى[2]

امام ابوداود په سنن ابى داود كښې دوه بابونه قائم كړې دى يو باب دې ﴿باب نسخ قوله وَعَلَى الَّذِيْنَ يُطِيْقُوْنَهٗ فِدْيَةٌ﴾ په دې كښې هغوى د حضرت سلمه بن اكوع رضي الله عنه روايت نقل كړې دې كوم چې دلته په باب كښې موجود دې او دويم باب هغوى قائم كړې دې ﴿باب من قال هى مثبتة للشيخ والحبلى﴾ او په دې كښې هغوى د حضرت عبدالله بن عباس رضي الله عنه روايت نقل كړې دې [3]امام ابوداود هم چې دا دوه بابونه قائم كړې دې نو اشاره ئې كړې ده چې ذكر شوې ايت بلكليه منسوخ نه دې.

صاحب د تفسير مظهرى فرمائيلې دى چې په ابتداء د اسلام كښې د روژې او فديې دواړو اختيار وو كم كس چې د روژې نيولو طاقت نه لرلو نو د ﴿وَعَلَى الَّذِيْنَ يُطِيْقُوْنَهٗ﴾ ايت د هغوى په حق كښې د عبارة النص په ډول دال دې، دوى ته اختيار حاصل دې كه غواړى نو روژه دې اونيسى او كه غواړى نو د روژې نيولو په ځاې دې فديه ادا كړى.

البته كوم كسان چې د روژې نيولو طاقت نه لرى نو ذكر شوې ايت د هغوى په حق كښې د

---

[1] حواله بالا)-

[2] فيض البارى ٤/١٦٠،١٥٩)-

[3] سنن ابى داود ٢/٢٩٦) كتاب الصوم)-

دلالة النص په ډول دلالت کوي چې دوی ته په روژه او فدیه کښې اختیار دې ،ځکه چې کله طاقت لرونکو ته اختیار ورکړې شوې دې نو چې په چا کښې طاقت نه وی نو هغوی ته خو به په طریق اولی سره اختیار وی.
بیا چې کله روستنی ایت ﴿فَمَنْ شَهِدَ مِنْكُمُ الشَّهْرَ فَلْيَصُمْهُ﴾ نازل شو نو کومو ته چې په آسانئ سره د روژې نیولو طاقت وی د هغوی په حق کښې د فدیې حکم منسوخ شو، د روژې نیولو طاقت برابره ده که فی الحال وی لکه صحتمند یا مقیم، او یا فی المال وی لکه مریض او مسافر.
خو هغه کسان چې د روژې نیولو طاقت نه فی الحال لری او نه فی المال لکه شیخ فانی ، نو د هغوی په حق کښې د فدیې حکم اوس هم باقی دې ،
حاصل دا چې مذکوره ایت د بعضو خلقو په حق کښې په وړاندنی ایت سره منسوخ دې او د بعضې آفرادو په حق کښې ددې حکم اوس هم باقی دې منسوخ نه دې.
ددې نه تاسو په نورو الفاظو کښې داسې تعبیر کولې شئ چې د وړاندنی ایت سره ددې ایت په حکم سره تخصیص اوشو.
مطلق لره مقید کول یا عام کښې تخصیص کول د بعضې متقدمینو په اصطلاح کښې نسخ ده او متاخرین ورته نسخ نه وائی، دغه شان عبدالله بن عباس رضي الله عنهما او بعضې حضرات کوم چې د عدم نسخ قائل دی د هغوی قول د هغه حضراتو قول سره متعارض نه دې ځوک چه ایت ته منسوخ وائی ځکه چه دا د اصطلاح فرق دې ﴿ولا مشاحة فی الاصطلاح﴾

## ۲۸-باب: قوله تعالی: فَمَنْ شَهِدَ مِنْكُمُ الشَّهْرَ فَلْيَصُمْهُ [۱۸۵]

[۴۲۳۶] -حَدَّثَنَا عَيَّاشُ بْنُ الْوَلِيدِ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْأَعْلَى حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللَّهِ عَنْ نَافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ-رضى الله عنهما-أَنَّهُ قَرَأَ (فِدْيَةٌ طَعَامُ مَسَاكِينَ) قَالَ هِيَ مَنْسُوخَةٌ.
[۴۲۳۷] حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ حَدَّثَنَا بَكْرُ بْنُ مُضَرَ عَنْ عَمْرِو بْنِ الْحَارِثِ عَنْ بُكَيْرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ عَنْ يَزِيدَ مَوْلَى سَلَمَةَ بْنِ الْأَكْوَعِ عَنْ سَلَمَةَ قَالَ:
لَمَّا نَزَلَتْ (وَعَلَى الَّذِينَ يُطِيقُونَهُ فِدْيَةٌ طَعَامُ مِسْكِينٍ) كَانَ مَنْ أَرَادَ أَنْ يُفْطِرَ وَيَفْتَدِيَ حَتَّى نَزَلَتِ الْآيَةُ الَّتِي بَعْدَهَا فَنَسَخَتْهَا. مَاتَ بُكَيْرٌ قَبْلَ يَزِيدَ.
دا روایت بکیر بن عبدالله د یزید نه کوی امام بخاری فرمائی چې د بکیر وفات وړاندې شوې وو ، دبکیر وفات په ۱۲۰ هجرئی کښې شوې وو او د یزید وفات په ۱۴۲ کښې شوې دې،
حضرت گنگوهی رحمه الله فرمائیلی دی دا د ﴿روایة الاکابر عن الاصاغر﴾ د قبیلې څخه دې.[1]
خو حضرت شیخ الحدیث فرمائی چې ځوک وړاندې وفات شی ددې نه دا نه لازمیږی چې هغه به په عمر کښې هم مشر وی نو تر څو پورې چې ددوی د ولادت تاریخ معلوم نه وی تر هغه

[1] لامع الدراری ۹/۱۶)-

وخته پورې دې .دې لره ،روایة الاکابرعن الاصاغر، د قبیلې نه شی گرځولې.او حضرت شیخ الحدیث فرمائی چې د دوی تاریخ ولادت تر اوسه پورې ماته معلوم نشو[1]

**باب: قوله تعالى: أُحِلَّ لَكُمْ لَيْلَةَ الصِّيَامِ الرَّفَثُ إِلَى نِسَائِكُمْ هُنَّ لِبَاسٌ لَكُمْ وَأَنْتُمْ لِبَاسٌ لَهُنَّ عَلِمَ اللَّهُ أَنَّكُمْ كُنْتُمْ تَخْتَانُونَ أَنْفُسَكُمْ فَتَابَ عَلَيْكُمْ وَعَفَا عَنْكُمْ فَالْآنَ بَاشِرُوهُنَّ وَابْتَغُوا مَا كَتَبَ اللَّهُ لَكُمْ.**

او ستاسو د پاره جائز کړې شوی دی د روژو په شپو کښې د خپلو بیبیانو سره کوروالې . هغوی ستاسو د پاره او تاسو د هغوی د پاره جامې یئ الله تعالی ته معلومه ده چې تاسو خپل خان په خیانت کښې اخته کولو نو الله ستاسو توبه قبوله کړه او تاسو نې معاف کړئ نو اوس تاسو ددوی سره شپه تیروئی او څه چه ستاسو د پاره الله لیکلې دی هغه طلب کوئی

[۴۲۳۸] حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللَّهِ عَنْ إِسْرَائِيلَ عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ عَنِ الْبَرَاءِ. وَحَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ عُثْمَانَ حَدَّثَنَا شُرَيْحُ بْنُ مَسْلَمَةَ قَالَ حَدَّثَنِي إِبْرَاهِيمُ بْنُ يُوسُفَ عَنْ أَبِيهِ عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ قَالَ سَمِعْتُ الْبَرَاءَ - رضی الله عنه - . لَمَّا نَزَلَ صَوْمُ رَمَضَانَ كَانُوا لاَ يَقْرَبُونَ النِّسَاءَ رَمَضَانَ كُلَّهُ، وَكَانَ رِجَالٌ يَخُونُونَ أَنْفُسَهُمْ، فَأَنْزَلَ اللَّهُ (عَلِمَ اللَّهُ أَنَّكُمْ كُنْتُمْ تَخْتَانُونَ أَنْفُسَكُمْ فَتَابَ عَلَيْكُمْ وَعَفَا عَنْكُمْ).

**په روژه کې تدریجاً درې تبدیلئ اوشوې:** حضرت براء بن عازب رضی الله عنه فرمائی کله چې د رمضان شریف د روژو حکم نازل شو نو مسلمانان به په ټول رمضان کښې خپلو بیبیانو ته نه ورتلل .یعنی هغوی سره د جماع کولو اجازت نه وو.،خو د بعضې خلقو نه په دې باره کښې کوتاهی کیدله په دې باندې الله تعالی (عَلِمَ اللَّهُ أَنَّكُمْ كُنْتُمْ.....)ایت نازل کړو او په رمضان کښې د شپې د خپلو بیبیانو سره د مباشرت اجازت ورکړې شو.

دا روایت مختصر دې امام احمد بن حنبل رحمه الله د حضرت معاذ نه یو تفصیلی روایت نقل کړې دې د هغې نه د ذکر شوی ایت شان نزول او پس منظر ښکاره کیږی د هغه روایت حاصل دا دې چه په روژو کښې درې تبدیلئ شوی دی

① رسول الله ﷺ چې کله مدینې منورې ته تشریف یوړلو نو په هره میاشت کښې به ئې درې روژې نیولې او د عاشورې روژه به ئې هم نیوله.

② بیا د رمضان فرضیت نازل شو حکم دا وو چه روژه نیسئ یا فدیه ورکوئ ،په دې کښې اختیار ورکړې شوې وو خو د افطار نه پس دا اکل او شرب او جماع اجازت صرف په هغه وخت کښې وو تر څو چې به سړې اوده شوې نه وو. او د ماسخوتن مونځ ئې کړې نه وی، خو که اوده شو یا ئې د ماخستن مونځ اوکړو نو ددې نه پس بیا د اکل شرب او جماع اجازت نه وو، دا حکم ډیر گران او شاق وو.بعضې صحابه کرامو نه ددې پابندی نشوه کیدې او هغوی د

[1] تعلیقات لامع الدراری ۱۶/۹)-

ماخسوتن نه پس د خپلو بيبيانو سره جماع اوکړه، په ذکر شوی ايت کښې په ﴿عَلِمَ اللّٰهُ اَنَّكُمْ كُنْتُمْ تَخْتَانُوْنَ اَنْفُسَكُمْ﴾ سره دې ته اشاره اوکړه.

④دريمه تبديلئ کښې ذکر شوې حکم هم منسوخ کړې شو او الله په ذکر شوې ايت سره د شپې د اکل شرب او جماع اجازت ورکړو.

## ٣٠-باب: قوله تعالى: (وَكُلُوا وَاشْرَبُوا حَتَّى يَتَبَيَّنَ لَكُمُ الْخَيْطُ الأَبْيَضُ مِنَ الْخَيْطِ الأَسْوَدِ مِنَ الْفَجْرِ ثُمَّ أَتِمُّوا الصِّيَامَ إِلَى اللَّيْلِ وَلاَ تُبَاشِرُوهُنَّ وَأَنْتُمْ عَاكِفُونَ فِي الْمَسَاجِدِ) إِلَى قَوْلِهِ (تَتَّقُونَ).(٢٨)

الْعَاكِفُ الْمُقِيمُ [١٨٧] | [الحج: ٢٥]

[٤٢٣٩] حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ حَدَّثَنَا أَبُو عَوَانَةَ عَنْ حُصَيْنٍ عَنِ الشَّعْبِيِّ عَنْ عَدِيٍّ قَالَ أَخَذَ عَدِيٌّ عِقَالاً أَبْيَضَ وَعِقَالاً أَسْوَدَ حَتَّى كَانَ بَعْضُ اللَّيْلِ نَظَرَ فَلَمْ يَسْتَبِينَا، فَلَمَّا أَصْبَحَ قَالَ يَا رَسُولَ اللَّهِ، جَعَلْتُ تَحْتَ وِسَادَتِي. قَالَ «إِنَّ وِسَادَكَ إِذًا لَعَرِيضٌ أَنْ كَانَ الْخَيْطُ الأَبْيَضُ وَالأَسْوَدُ تَحْتَ وِسَادَتِكَ»

[٤٢٤٠] حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ حَدَّثَنَا جَرِيرٌ عَنْ مُطَرِّفٍ عَنِ الشَّعْبِيِّ عَنْ عَدِيِّ بْنِ حَاتِمٍ رضى الله عنه قَالَ قُلْتُ يَا رَسُولَ اللَّهِ مَا الْخَيْطُ الأَبْيَضُ مِنَ الْخَيْطِ الأَسْوَدِ أَهُمَا الْخَيْطَانِ قَالَ «إِنَّكَ لَعَرِيضُ الْقَفَا إِنْ أَبْصَرْتَ الْخَيْطَيْنِ». ثُمَّ قَالَ «لاَ بَلْ هُوَ سَوَادُ اللَّيْلِ وَبَيَاضُ النَّهَارِ».

[٤٢٤١] حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي مَرْيَمَ حَدَّثَنَا أَبُو غَسَّانَ مُحَمَّدُ بْنُ مُطَرِّفٍ حَدَّثَنِي أَبُو حَازِمٍ عَنْ سَهْلِ بْنِ سَعْدٍ قَالَ وَأُنْزِلَتْ (وَكُلُوا وَاشْرَبُوا حَتَّى يَتَبَيَّنَ لَكُمُ الْخَيْطُ الأَبْيَضُ مِنَ الْخَيْطِ الأَسْوَدِ) وَلَمْ يُنْزَلْ (مِنَ الْفَجْرِ) وَكَانَ رِجَالٌ إِذَا أَرَادُوا الصَّوْمَ رَبَطَ أَحَدُهُمْ فِي رِجْلَيْهِ الْخَيْطَ الأَبْيَضَ وَالْخَيْطَ الأَسْوَدَ، وَلاَ يَزَالُ يَأْكُلُ حَتَّى يَتَبَيَّنَ لَهُ رُؤْيَتُهُمَا، فَأَنْزَلَ اللَّهُ بَعْدَهُ (مِنَ الْفَجْرِ) فَعَلِمُوا أَنَّمَا يَعْنِي اللَّيْلَ مِنَ النَّهَارِ.

کله چې د قران دا ايت نازل شو په کوم کښې چې د اکل شرب او جماع اجازت ورکړې شوې دې ، تردې چې سپين مزې د تور مزى نه ښکاره نشى. په ايت کريمه کښې د خيط ابيض نه د ورځې سپينوالې او د خيط اسود نه د شپې تياره مراد ده، نو حضرت عدى بن حاتم ﷺ د خيط ابيض او خيط اسود حقيقى معنى مراد واخسته او د خپلې تکيه د لاندې ئې سپين او تور مزې کيخودو او ترڅو پورې چه هغه ښکاره په نظر رانغلو نو هغوى خوراک څښاک جارى اوساتلو ،چې صبا شو نو دنبى ﷺ په خدمت کښې حاضر شو او بيان ئې ورته اوکړو ،نبى ﷺ ورته په ټوقه کښې اوونيل ستا تکيه خو به ډيره پلنه وى چې ددې لاندې سپين او تور مزې راتلې شى.

**قوله: إِنَّ وِسَادَكَ إِذًا لَعَرِيضٌ:** علامه خطابی رحمه الله په معالم السنن کښې ددې جملې دوه مقصدونه بیان کړي دی.

① یو داچې ته ډیر کثیر النوم ئې. وساد، د خوب نه کنایه ده، په وساده باندې انسان سر کیږدی او اوده کیږی نو وساده د خوب ذریعه ده ،ددې وجې وساده ئې اوونیله او خوب ترې مراد اخستې شوې دې او یا دا مطلب دې چې بیا خو به ستا شپه ډیره اوږده وی چې ترڅو پورې سپین مزې د تور مزی نه جدا په نظر نه راځی، تر هغه وخته پورې به ته خوراک څښاک کوې.[1]

② دویم مطلب ئې دا بیان کړې دې چه دې جمله کښې نبی ﷺ د حضرت عدی کم فهمۍ طرف ته اشاره کړې ده دلته د باب په دویم روایت کښې د «انك لعريض القفا» الفاظ راغلې دی علامه خطابی فرمائی چه کله د یو کس د ذهن کمزوری او غفلت بیانول وی نو عرب وائی «فلان لعريض القفا» قفا څټ ته وائی «عرض القفا» هغه کس ته وائی چه د هغه څټ پلن وی او عام طور د پلن څټ سړی کم فهم وی.[2]

خو علامه قرطبی دا قول رد کړې دې هغوی فرمائیلې دی چه په دې کښې د ناپوهۍ څه خبره ده، د حضرت عدی په نیز د خیط ابیض اطلاق په بیاض نهار باندې او د خیط اسود اطلاق په ظلمت لیل باندې نه کیدل نو بیا به هغه څنګه پوهه شوې وو، نو ځکه دا په کم پوهۍ باندې حمل کول صحیح نه دی.[3]

بیا سوال کیږی چې نبی کریم ﷺ هغه ته «انك لعريض القفا» ووئیل نو ددې څه مطلب دې.؟
ددې مطلب دادې چې ته زیات اوده کیږې او د خوب غټه تکیه استعمالوې او دا قسم تکلفات عام طور سره هغه کسانو کوی څوک چې په بې فکرۍ سره اوده کیږی او دا وائی چه کله مو سترګې پرانستې شی نو پرانستې به وی. د څه نظام پابند نه وی، سپین مزې چې د تور مزی نه ترڅو پورې په نظر جدا نه وی راغلې تر هغه وخته پورې ته د روژې اهتمام نه کوې

۳۱- باب قوله تعالى: ﴿وَلَيْسَ الْبِرُّ بِأَنْ تَأْتُوا الْبُيُوتَ مِنْ ظُهُورِهَا وَلَكِنَّ الْبِرَّ مَنِ اتَّقَى وَأْتُوا الْبُيُوتَ مِنْ أَبْوَابِهَا وَاتَّقُوا اللَّهَ لَعَلَّكُمْ تُفْلِحُونَ﴾ [۱۸۹]

[۴۲۴۲] حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللَّهِ بْنُ مُوسَى عَنْ إِسْرَائِيلَ عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ عَنِ الْبَرَاءِ قَالَ كَانُوا إِذَا أَحْرَمُوا فِي الْجَاهِلِيَّةِ أَتَوُا الْبَيْتَ مِنْ ظَهْرِهِ، فَأَنْزَلَ اللَّهُ (وَلَيْسَ الْبِرُّ بِأَنْ تَأْتُوا الْبُيُوتَ

---

[1] ) قال الخطابی یرید ان نومک اذن لکثیر وکنی بالوساد عن النوم اذاکان النائم یتوسده او یکون اراد ان لیلک اذن لطویل :اذ کنت لا تمسک عن الاکل والشرب حتی یتبین لک سواد العقال من بیاضه: (وانظر معالم السنن)۳/۲۳۲)-

[2] ) معالم السنن ۳/۲۳۲ باب وقت السحور)-

[3] ) تعلیقات لامع الدراری ۹/۱۷)-

مِنْ ظُهُورِهَا وَلَكِنَّ الْبِرَّ مَنِ اتَّقَى وَأْتُوا الْبُيُوتَ مِنْ أَبْوَابِهَا).
په زمانه د جاهليت كښې عربو داسې رسم جوړ كړې وو چه كله به ئې د حج د پاره احرام اوتړلو نو كور يا خيمې ته به د دوازې نه د ننه داخليدو په خانې شاته په ديوال كښې كړكئ شان اوكړه او په هغې به داخليدل او يا به ئې ديوال اوكنستلو او داخليدل به او دا به ئې نيكى ګنړله ،الله تعالى په دې ايت كښې زورنه وركړه چه د خپل طرف نه مو دا كوم رسمونه جوړ كړې دى په دې كښې نيكى نشته.[1]

## ۳۲-باب: قوله تعالى: (وَقَاتِلُوهُمْ حَتَّى لَا تَكُونَ فِتْنَةٌ وَيَكُونَ الدِّينُ لِلَّهِ فَإِنِ انْتَهَوْا فَلَا عُدْوَانَ إِلَّا عَلَى الظَّالِمِينَ) [۱۹۳]

[۴۲۴۳] حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَهَّابِ حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللَّهِ عَنْ نَافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ - رضى الله عنهما - أَتَاهُ رَجُلَانِ فِي فِتْنَةِ ابْنِ الزُّبَيْرِ فَقَالَا إِنَّ النَّاسَ قَدْ ضُيِّعُوا، وَأَنْتَ ابْنُ عُمَرَ وَصَاحِبُ النَّبِيِّ - صلى الله عليه وسلم - فَمَا يَمْنَعُكَ أَنْ تَخْرُجَ فَقَالَ يَمْنَعُنِي أَنَّ اللَّهَ حَرَّمَ دَمَ أَخِي. فَقَالَا أَلَمْ يَقُلِ اللَّهُ (وَقَاتِلُوهُمْ حَتَّى لَا تَكُونَ فِتْنَةٌ) فَقَالَ قَاتَلْنَا حَتَّى لَمْ تَكُنْ فِتْنَةٌ، وَكَانَ الدِّينُ لِلَّهِ، وَأَنْتُمْ تُرِيدُونَ أَنْ تُقَاتِلُوا حَتَّى تَكُونَ فِتْنَةٌ، وَيَكُونَ الدِّينُ لِغَيْرِ اللَّهِ.

وَزَادَ عُثْمَانُ بْنُ صَالِحٍ عَنِ ابْنِ وَهْبٍ قَالَ أَخْبَرَنِي فُلَانٌ وَحَيْوَةُ بْنُ شُرَيْحٍ عَنْ بَكْرِ بْنِ عَمْرٍو الْمَعَافِرِيِّ أَنَّ بُكَيْرَ بْنَ عَبْدِ اللَّهِ حَدَّثَهُ عَنْ نَافِعٍ أَنَّ رَجُلًا أَتَى ابْنَ عُمَرَ فَقَالَ يَا أَبَا عَبْدِ الرَّحْمَنِ مَا حَمَلَكَ عَلَى أَنْ تَحُجَّ عَامًا وَتَعْتَمِرَ عَامًا، وَتَتْرُكَ الْجِهَادَ فِي سَبِيلِ اللَّهِ عَزَّ وَجَلَّ، وَقَدْ عَلِمْتَ مَا رَغَّبَ اللَّهُ فِيهِ قَالَ يَا ابْنَ أَخِي بُنِيَ الإِسْلَامُ عَلَى خَمْسٍ إِيمَانٍ بِاللَّهِ وَرَسُولِهِ، وَالصَّلَاةِ الْخَمْسِ، وَصِيَامِ رَمَضَانَ، وَأَدَاءِ الزَّكَاةِ، وَحَجِّ الْبَيْتِ. قَالَ يَا أَبَا عَبْدِ الرَّحْمَنِ، أَلَا تَسْمَعُ مَا ذَكَرَ اللَّهُ فِي كِتَابِهِ (وَإِنْ طَائِفَتَانِ مِنَ الْمُؤْمِنِينَ اقْتَتَلُوا فَأَصْلِحُوا بَيْنَهُمَا) (إِلَى أَمْرِ اللَّهِ) (قَاتِلُوهُمْ حَتَّى لَا تَكُونَ فِتْنَةٌ) قَالَ فَعَلْنَا عَلَى عَهْدِ رَسُولِ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - وَكَانَ الإِسْلَامُ قَلِيلًا، فَكَانَ الرَّجُلُ يُفْتَنُ فِي دِينِهِ إِمَّا قَتَلُوهُ، وَإِمَّا يُعَذِّبُوهُ، حَتَّى كَثُرَ الإِسْلَامُ فَلَمْ تَكُنْ فِتْنَةٌ.

قَالَ فَمَا قَوْلُكَ فِي عَلِيٍّ وَعُثْمَانَ قَالَ أَمَّا عُثْمَانُ فَكَأَنَّ اللَّهَ عَفَا عَنْهُ، وَأَمَّا أَنْتُمْ فَكَرِهْتُمْ أَنْ تَعْفُوا عَنْهُ، وَأَمَّا عَلِيٌّ فَابْنُ عَمِّ رَسُولِ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - وَخَتَنُهُ. وَأَشَارَ بِيَدِهِ فَقَالَ هَذَا بَيْتُهُ حَيْثُ تَرَوْنَ. [۴۳۷۳ ، ۴۳۷۴ ، ۶۶۸۲ ، وانظر :۸]

---
[1] تفسير مظهرى (۲۱۱/۱)-

په کال ۷۳ هجرئی کښې حجاج بن یوسف ثقفی د حضرت عبدالله بن زبیر رضی الله عنه محاصره اوکړه حضرت عبدالله بن عمر رضی الله عنه د چا سره نه وو او کناره کش وو.دوه سړي عبدالله بن عمر ته ورغلل او د هغوی نه ئې تپوس اوکړو چې تاسو ولې نه راوځئ ابن عمر رضی الله عنه اوفرمائیل خما د پاره دا څيز مانع دې چې الله تعالی د خپل مسلمان ورور وينه حرام کړې ده.په دې باندې هغوي دواړو د قران په دې ايت باندې استدلال اوکړو ﴿وَقٰتِلُوْهُمْ حَتّٰى لَا تَكُوْنَ فِتْنَةٌ﴾ حضرت ابن عمر رضی الله عنه جواب ورکړو چې مونږ خو د کافرانو سره جنګيدلي يو. تر دې چې فتنه باقي پاتې نه شوه او دين خالص د الله د پاره شو خو اوس تاسو په خپل مينځ کښې قتال کول غواړئ چې فتنه پيدا شي او دين د غيرالله شي.

عثمان بن صالح زيادت کړې دې چې يو سړې عبدالله بن عمر ته راغلو اودوی نه ئې تپوس اوکړو چې تاسو يو کال حج کوئی او يو کال عمره کوئی خو جهاد في سبيل الله تاسو پريخودې دې حال دادې چې د جهاد کوم ترغيب ورکړې شوې دې هغه تاسو ته معلوم دې. کله چې عبدالله بن عمر رضی الله عنه په جواب کښې اوفرمائيل چې د اسلام بنياد په پنځو څيزونو باندې دې،ايمان،مونځ، روژه، زکاة او حج، مطلب دا چې د جهاد فضيلت په خپل ځائې دې خو بهرحال دا د اسلام په بنيادی ارکانو کښې نه دې په دې باندې هغه کس د سوره حجرات ايت ﴿وَاِنْ طَآئِفَتٰنِ مِنَ الْمُؤْمِنِيْنَ﴾ او﴿وَقٰتِلُوْهُمْ حَتّٰى لَا تَكُوْنَ فِتْنَةٌ﴾ اولوستلو.

حضرت ابن عمر رضی الله عنه هم هغه جواب ورکړو چې مونږ د رسول الله ﷺ په زمانه کښې جهاد کړې وو تر دې چې اسلام غالب شو او فتنه باقي پاتې نشوه.

د حضرت ابن عمر رضی الله عنه د وئيلو مقصد دا دې چې د کوم جهاد ترغيب ورکړې شوې دې هغه جهاد مع الکفار دې او مونږ هغه کړې دې خو موجوده قتال جهاد مع الکفار نه دې.

په دې کښې شک نشته چې د باغيانو سره په قتال کولو کښې هم ثواب شته خو ترغيب چې کوم ورکړې شوې دې هغه جهاد مع الکفار دې نو بيا د باغيانو سره د قتال صورتحال غير واضح دې بعضې وخت دا پته نه لګی چې حق د چاسره دې د قتال کولو دنيت هم صحيح علم نه وی چې داقتدار حصول مقصود دې او که داسلامی نظام حکومت د قيام په لاره کښې رکاوټ ختمول مقصود دې په دې وجه د حضرت عبدالله بن عمر رضی الله عنه خيال وو چې عافيت هم په دې کښې دې چې چاسره هم ملګرتيا اونشي او د دين په بنيادی احکامو او خبرو باندې عمل اوشي.

**قوله: أَتَاهُ رَجُلَانِ فِي فِتْنَةِ ابْنِ الزُّبَيْرِ:** په دوو سړو کښې يو علاء بن عرار وو او بل حبان وو [1]

**قوله: أَخْبَرَنِي فُلَانٌ وَحَيْوَةُ بْنُ شُرَيْحٍ:**

**عبيدالله بن لهيعه ضعيف راوی دې:** علامه عينی ليکلې دی چې دفلان نه عبيد الله بن لهيعه

[1] ) فتح الباری ۸/۱۸٤)-

مراد دي كوم چې د مصر قاضي وو او په کال ۱۹۴ کښې وفات شوې وو ([1])
علامه بيهقي ليکلې دی چې دعبدالله بن لهيعه په ضعف باندې د عالمانو اجماع ده کله چې يو حديث هغه ځانله ذکر کړی نو د هغه حديث نه استدلال نشي کولې ([2])
چونکه دې ضعيف دې ددې وجې امام بخاري رحمه الله ددوی نوم ذکر نه کړلو او دده سره ئې حيوة بن شريح، ملاؤ کړو، حيوة بن شريح دوه دی. يو مصری دې اوبل حضرمی دې، دلته مصری مراد دې ([3])

**قوله:** اما عثمان فكان الله عفا عنه: يعني د احد په ورځ حضرت عثمان رضي الله عنه د ميدان نه تلونکې وو او د ميدان نه تلونکو په باره کښې الله تعالى دا ارشاد فرمائيلې دې «ولقد عفا الله عنه» ([4]) ددې ايت په رڼا کښې حضرت ابن عمر رضي الله عنه دا جمله اوفرمائيله.

## ۳۳-باب قوله: (وَأَنْفِقُوا فِي سَبِيلِ اللَّهِ وَلَا تُلْقُوا بِأَيْدِيكُمْ إِلَى التَّهْلُكَةِ وَأَحْسِنُوا إِنَّ اللَّهَ يُحِبُّ الْمُحْسِنِينَ) (۳۱)

التَّهْلُكَةُ وَالْهَلَاكُ وَاحِدٌ [۱۹۵]

[۴۲۴۴] حَدَّثَنَا إِسْحَاقُ أَخْبَرَنَا النَّضْرُ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ سُلَيْمَانَ قَالَ سَمِعْتُ أَبَا وَائِلٍ عَنْ حُذَيْفَةَ (وَأَنْفِقُوا فِي سَبِيلِ اللَّهِ وَلَا تُلْقُوا بِأَيْدِيكُمْ إِلَى التَّهْلُكَةِ) قَالَ نَزَلَتْ فِي النَّفَقَةِ.

## ۳۴-باب قوله: (فَمَنْ كَانَ مِنْكُمْ مَرِيضًا أَوْ بِهِ أَذًى مِنْ رَأْسِهِ) [۱۹۶]

[۴۲۴۵] حَدَّثَنَا آدَمُ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ الْأَصْبَهَانِيِّ قَالَ سَمِعْتُ عَبْدَ اللَّهِ بْنَ مَعْقِلٍ قَالَ قَعَدْتُ إِلَى كَعْبِ بْنِ عُجْرَةَ فِي هَذَا الْمَسْجِدِ -يَعْنِي مَسْجِدَ الْكُوفَةِ- فَسَأَلْتُهُ عَنْ فِدْيَةٍ مِنْ صِيَامٍ فَقَالَ حُمِلْتُ إِلَى النَّبِيِّ -صلى الله عليه وسلم- وَالْقَمْلُ يَتَنَاثَرُ عَلَى وَجْهِي فَقَالَ «مَا كُنْتُ أُرَى أَنَّ الْجَهْدَ قَدْ بَلَغَ بِكَ هَذَا، أَمَا تَجِدُ شَاةً». قُلْتُ لَا. قَالَ «صُمْ ثَلَاثَةَ أَيَّامٍ، أَوْ أَطْعِمْ سِتَّةَ مَسَاكِينَ، لِكُلِّ مِسْكِينٍ نِصْفُ صَاعٍ مِنْ طَعَامٍ، وَاحْلِقْ رَأْسَكَ». فَنَزَلَتْ فِيَّ خَاصَّةً وَهْيَ لَكُمْ عَامَّةً.

د احرام په حالت کښې داسې عذرونه که پيښ شی د کومو په وجه چې د حلق راس ضروري وی نو په شريعت کښې د حلق اجازت شته البته فديه ورکول به وی.

دا روايت په کتاب الحج کښې «باب الاطعام في الفدية» لاندې تير شوې دې.

---

[1]) عمدة القاری ۱۰۹/۱۸)-
[2]) حواله بالا)-
[3]) حواله بالا)-
[4]) ال عمران ۱۵۵)وهذا الحديث لم يخرجه احد من اصحاب السته سوى البخاری)-

## ۳۵- باب: قوله تعالى: فَمَنْ تَمَتَّعَ بِالْعُمْرَةِ إِلَى الْحَجِّ [۱۹۶]

[۴۲۴۶] حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا يَحْيَى عَنْ عِمْرَانَ أَبِي بَكْرٍ حَدَّثَنَا أَبُو رَجَاءٍ عَنْ عِمْرَانَ بْنِ حُصَيْنٍ رضى الله عنهما قَالَ أُنْزِلَتْ آيَةُ الْمُتْعَةِ فِي كِتَابِ اللّٰهِ فَفَعَلْنَاهَا مَعَ رَسُولِ اللّٰهِ صلى الله عليه وسلم، وَلَمْ يُنْزَلْ قُرْآنٌ يُحَرِّمُهُ، وَلَمْ يَنْهَ عَنْهَا حَتَّى مَاتَ قَالَ رَجُلٌ بِرَأْيِهِ مَا شَاءَ.

**قوله:** قَالَ رَجُلٌ بِرَأْيِهِ مَا شَاءَ: دا تعرض يا حضرت عمر رضی الله عنه باندې دې يا په حضرت عثمان رضی الله عنه باندې دې چې حضرت عمر او عثمان رضی الله عنهما په خپل خپل دور كښې د تمتع نه منع كړې وه (۱)

تفصيل ئې په كتاب الحج كښې تير شوې دې.

## ۳۶- باب: قوله تعالى: لَيْسَ عَلَيْكُمْ جُنَاحٌ أَنْ تَبْتَغُوا فَضْلًا مِنْ رَبِّكُمْ [۱۹۸]

[۴۲۴۷] حَدَّثَنِي مُحَمَّدٌ قَالَ أَخْبَرَنِي ابْنُ عُيَيْنَةَ عَنْ عَمْرٍو عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ - رضى الله عنهما - قَالَ كَانَتْ عُكَاظٌ وَمَجَنَّةُ وَذُو الْمَجَازِ أَسْوَاقًا فِي الْجَاهِلِيَّةِ فَتَأَثَّمُوا أَنْ يَتَّجِرُوا فِي الْمَوَاسِمِ فَنَزَلَتْ (لَيْسَ عَلَيْكُمْ جُنَاحٌ أَنْ تَبْتَغُوا فَضْلًا مِنْ رَبِّكُمْ) فِي مَوَاسِمِ الْحَجِّ.

مطلب دادې چې په زمانه د جاهليت كښې عكاظ. مجنه او ذوالمجاز نومې بازارونه لګيدل اوخلقو به په دې كښې لوئې لوئې كاروبارونه كول او د حج په لويه مجمع كښې به هم داسې قسم بازار لګيدلو خلقو ته سوچ پيدا شو چې چرته ددې تجارت حيثيت د جاهليت د زمانې د تجارت په شان نه وى. الله تعالى اجازت وركړو چې په ايام حج كښې په مجمع د حاجيانو كښې تجارت كولې شى د انسانو دضرورت خيال ئې اوساتلو.

دا حديث په كتاب الحج كښې د «باب التجارة ايام الموسم» لاندې تير شوې دې (۲)

## ۳۷- باب: قوله تعالى: ثُمَّ أَفِيضُوا مِنْ حَيْثُ أَفَاضَ النَّاسُ [۱۹۹]

[۴۲۴۸] حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ خَازِمٍ حَدَّثَنَا هِشَامٌ عَنْ أَبِيهِ عَنْ عَائِشَةَ - رضى الله عنها - كَانَتْ قُرَيْشٌ وَمَنْ دَانَ دِينَهَا يَقِفُونَ بِالْمُزْدَلِفَةِ، وَكَانُوا يُسَمَّوْنَ الْحُمْسَ، وَكَانَ سَائِرُ الْعَرَبِ يَقِفُونَ بِعَرَفَاتٍ، فَلَمَّا جَاءَ الْإِسْلَامُ أَمَرَ اللّٰهُ نَبِيَّهُ - صلى الله عليه وسلم - أَنْ يَأْتِيَ عَرَفَاتٍ، ثُمَّ يَقِفَ بِهَا ثُمَّ يُفِيضَ مِنْهَا، فَذٰلِكَ قَوْلُهُ تَعَالَى (ثُمَّ أَفِيضُوا مِنْ حَيْثُ أَفَاضَ النَّاسُ).

په زمانه د جاهليت كښې چه به عام عرب كله حج د پاره تلل نو عرفات ته به رسيدل او د هغه

---

(۱) عمدة القارى ۱۸/۱۱۱)-

(۲) صحيح البخارى كتاب الحج باب التجاره ايام الموسم ۱/۲۳۸)-

خائي نه به د مزدلفې په لاره واپس كيدل خو قريش به عرفات ته د تلو په ځاي هم مزدلفه كښې حصاريدل او وونيل به ئې چې مونږ چونكه د بيت الله او د حرم مجاور يو . ددې وجې د حرم د حدودو نه زمونږ د پاره بهر وتل مناسب نه دی.خپل ځان ته به ئې حمس وئيل. حمس د احمس جمع ده .احمس بهادر او متشدد ته وائی، ددې مطلب دا وو چې مونږ به په دين كښې متشدد او بهادر يو.ددې وجې د حدود حرم نه مونږ نه اوځو.چونكه عرفات د حدود نه بهر دې او مزدلفه دننه ده ددې وجې به قريش عرفات ته نه تلل.په حقيقت كښې د قريشو ددې نه مقصود د خپل امتياز او فخر او غرور مظاهره وه. الله تعالى دوی ته تنبيه وركړه چې هم هلته ځئ چرته چې ټول خلق ځئ.

**قوله: وَمَنْ دَانَ دِينَهَا :** يعنى كوم خلق چې په حج كښې د قريشو طريقه اختياروی او د هغوی اتباع كوی ددې نه بنو عامر. بنوثقيف او بنو خزاعه مراد دی.[1]

[۴۲۴۹] حَدَّثَنِي مُحَمَّدُ بْنُ أَبِي بَكْرٍ حَدَّثَنَا فُضَيْلُ بْنُ سُلَيْمَانَ حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ عُقْبَةَ أَخْبَرَنِي كُرَيْبٌ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ يَطَّوَّفُ الرَّجُلُ بِالْبَيْتِ مَا كَانَ حَلاَلاً حَتَّى يُهِلَّ بِالْحَجِّ، فَإِذَا رَكِبَ إِلَى عَرَفَةَ فَمَنْ تَيَسَّرَ لَهُ هَدِيَّةٌ مِنَ الإِبِلِ أَوِ الْبَقَرِ أَوِ الْغَنَمِ، مَا تَيَسَّرَ لَهُ مِنْ ذَلِكَ أَىَّ ذَلِكَ شَاءَ، غَيْرَ إِنْ لَمْ يَتَيَسَّرْ لَهُ فَعَلَيْهِ ثَلاَثَةُ أَيَّامٍ فِي الْحَجِّ، وَذَلِكَ قَبْلَ يَوْمِ عَرَفَةَ، فَإِنْ كَانَ آخِرُ يَوْمٍ مِنَ الأَيَّامِ الثَّلاَثَةِ يَوْمَ عَرَفَةَ فَلاَ جُنَاحَ عَلَيْهِ، ثُمَّ لِيَنْطَلِقْ حَتَّى يَقِفَ بِعَرَفَاتٍ مِنْ صَلاَةِ الْعَصْرِ إِلَى أَنْ يَكُونَ الظَّلاَمُ، ثُمَّ لِيَدْفَعُوا مِنْ عَرَفَاتٍ إِذَا أَفَاضُوا مِنْهَا حَتَّى يَبْلُغُوا جَمْعًا الَّذِي يُتَبَرَّرُ فِيهِ، ثُمَّ لِيَذْكُرُوا اللَّهَ كَثِيرًا، أَوْ أَكْثِرُوا التَّكْبِيرَ وَالتَّهْلِيلَ قَبْلَ أَنْ تُصْبِحُوا ثُمَّ أَفِيضُوا، فَإِنَّ النَّاسَ كَانُوا يُفِيضُونَ، وَقَالَ اللَّهُ تَعَالَى (ثُمَّ أَفِيضُوا مِنْ حَيْثُ أَفَاضَ النَّاسُ وَاسْتَغْفِرُوا اللَّهَ إِنَّ اللَّهَ غَفُورٌ رَحِيمٌ) حَتَّى تَرْمُوا الْجَمْرَةَ.

**قوله: ثُمَّ لِيَنْطَلِقْ حَتَّى يَقِفَ بِعَرَفَاتٍ مِنْ صَلاَةِ الْعَصْرِ إِلَى أَنْ يَكُونَ الظَّلاَمُ:**

دلته په (من صلاة العصر) كښې دوه احتمالات دی ،يو دا چې ددې نه اول وخت مراد دې او د مثل اول نه پس دمازيګر اول وخت شروع كيږی او د وقوف عرفه هم دا وخت مستحبه دې هسې خو د نمر د زوال نه پس د وقوف عرفه وخت شروع كيږی او دويم احتمال دا دې چې ددې نه د مازيګر نه پس وخت مراد دې.اګرچې په يوم عرفه كښې د ماسپښن او مازيګر مونځ د جمع تقديم په طريقه ادا كولې شی او ددې نه پس د وقوف عرفه ركن ادا كولې شی په اولنی صورت كښې دوخت د استحباب بيان دې اوپه دويم صورت كښې به د جواز دوخت بيان وی.[2]

**قوله: يطوف الرجل بالبيت ما كان حلالا حتى يهل بالحج:** د (ماكان حلالا) مطلب

[1] عمدة القارى ۱۱۲/۱۸)-

[2] عمدة القارى ۱۱۳/۱۸)-

دادې که څوک په مکه کښې د وړاندې نه مقيم وى نو ښکاره ده چې په احرام کښې نه وى . حلال وى يا د بهر نه راغلې وى او د عمرې کولو نه پس حلال شوې وى او تر اوسه پورې هغه د حج احرام نه وى تړلې او هغه دبيت الله شريف طواف کوى او بيا ده د حج احرام اوتړلو . نو په وړانديني حديث کښې د دې صورت بيان شوې دې.

## ۳۸-باب: قوله تعالى: وَمِنْهُمْ مَنْ يَقُولُ رَبَّنَا آتِنَا فِي الدُّنْيَا حَسَنَةً وَفِي الآخِرَةِ حَسَنَةً وَقِنَا عَذَابَ النَّارِ) [۲۰۱]

[۴۲۵۰] حَدَّثَنَا أَبُو مَعْمَرٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَارِثِ عَنْ عَبْدِ الْعَزِيزِ عَنْ أَنَسٍ قَالَ كَانَ النَّبِي صلى الله عليه وسلم يَقُولُ «اللَّهُمَّ رَبَّنَا آتِنَا فِي الدُّنْيَا حَسَنَةً وَفِي الآخِرَةِ حَسَنَةً وَقِنَا عَذَابَ النَّارِ».

دلته په روايت کښې (اللهم ربنا) دې او په آيت کښې (اللهم) نشته ،معلومه شوه که په دعا کښې د (اللهم) زيادت اوکړې شى نو څه باک او حرج نشته.

## ۳۹-باب: قوله تعالى: وَهُوَ أَلَدُّ الْخِصَامِ [۲۰۴]

وَقَالَ عَطَاءٌ النَّسْلُ الْحَيَوَانُ.

[۴۲۵۱] حَدَّثَنَا قَبِيصَةُ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنِ ابْنِ جُرَيْجٍ عَنِ ابْنِ أَبِي مُلَيْكَةَ عَنْ عَائِشَةَ تَرْفَعُهُ قَالَ «أَبْغَضُ الرِّجَالِ إِلَى اللَّهِ الأَلَدُّ الْخَصِمُ».

وَقَالَ عَبْدُ اللَّهِ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ حَدَّثَنِي ابْنُ جُرَيْجٍ عَنِ ابْنِ أَبِي مُلَيْكَةَ عَنْ عَائِشَةَ -رضى الله عنها- عَنِ النَّبِي -صلى الله عليه وسلم-.

د (وَهُوَ أَلَدُّ الْخِصَامِ) معنى ده (شديد الخصومة) سخت جګړالو

**قوله:** وَقَالَ عَطَاءٌ النَّسْلُ الْحَيَوَانُ : يعنى د قران شريف په ايت (وَيُهْلِكَ الْحَرْثَ وَالنَّسْلَ) کښې د نسل نه حيوان مراددې طبرى دعطاء دا تعليق د ابن جريج سره موصولاً نقل کړې دې[۱]

## ۴۰-باب: قوله تعالى: أَمْ حَسِبْتُمْ أَنْ تَدْخُلُوا الْجَنَّةَ وَلَمَّا يَأْتِكُمْ مَثَلُ الَّذِينَ خَلَوْا مِنْ قَبْلِكُمْ مَسَّتْهُمُ الْبَأْسَاءُ وَالضَّرَّاءُ) إِلَى (قَرِيبٌ) [۲۱۴]

[۴۲۵۲] حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ مُوسَى أَخْبَرَنَا هِشَامٌ عَنِ ابْنِ جُرَيْجٍ قَالَ سَمِعْتُ ابْنَ أَبِي مُلَيْكَةَ يَقُولُ قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ - رضى الله عنهما - (حَتَّى إِذَا اسْتَيْأَسَ الرُّسُلُ وَظَنُّوا أَنَّهُمْ قَدْ كُذِبُوا) خَفِيفَةً، ذَهَبَ بِهَا هُنَاكَ، وَتَلاَ (حَتَّى يَقُولَ الرَّسُولُ وَالَّذِينَ آمَنُوا مَعَهُ مَتَى نَصْرُ اللَّهِ أَلاَ إِنَّ نَصْرَ اللَّهِ قَرِيبٌ).

---

[۱] عمدة القارى ۱۸/ ۱۱۴)-

فَلَقِيتُ عُرْوَةَ بْنَ الزُّبَيْرِ فَذَكَرْتُ لَهُ ذٰلِكَ فَقَالَ قَالَتْ عَائِشَةُ مَعَاذَ اللّٰهِ، وَاللّٰهِ مَا وَعَدَ اللّٰهُ رَسُولَهُ مِنْ شَيْءٍ قَطُّ إِلَّا عَلِمَ أَنَّهُ كَائِنٌ قَبْلَ أَنْ يَمُوتَ، وَلٰكِنْ لَمْ يَزَلِ الْبَلَاءُ بِالرُّسُلِ حَتّٰى خَافُوا أَنْ يَكُونَ مَنْ مَعَهُمْ يُكَذِّبُونَهُمْ، فَكَانَتْ تَقْرَؤُهَا (وَظَنُّوا أَنَّهُمْ قَدْ كُذِّبُوا) مُثَقَّلَةً.

ابن ابى مليكه فرمائى چې ابن عباس رضي الله عنهما د سورة يوسف ايت (حَتّٰى إِذَا اسْتَيْئَسَ الرُّسُلُ وَظَنُّوا أَنَّهُمْ قَدْ كُذِبُوا) په تخفيف سره اولوستلو او د سورة يوسف دا ايت ئې د سورة بقره ايت طرف ته راوړلو او د بقره ددې (حَتّٰى يَقُولَ الرَّسُولُ وَالَّذِينَ آمَنُوا مَعَهُ مَتٰى نَصْرُ اللّٰهِ ۗ أَلَا إِنَّ نَصْرَ اللّٰهِ قَرِيبٌ) ايت تلاوت ئې اوكړو.

د ابن ابى مليكه د ارشاد مطلب دادې چې حضرت ابن عباس رضي الله عنهما د دواړو ايتونو مطلب يو ګرځولې دې دواړه ايتونه هم په يو مفهوم باندې دلالت كوى د سورة يوسف په ايت كښې د ياس او مايوسئ ذكر دې ،د سوره بقره په ايت كښې (متى نصر الله) استفهام استبعادى دې . په مايوسئ كښې هم استبعاد وى نو دواړه ايتونه د استعباد په معنى كښې دى.

**د سورة يوسف په ذكر شوى ايت كښې دوه قراتونه دى:** ① يو قرات د عائشې رضي الله عنها دې چې په (وَظَنُّوا أَنَّهُمْ قَدْ كُذِّبُوا) كښې (كذبوا) د ذال د تشديد سره دې د ايت مطلب دادې چې كله پيغمبرانو ته د الله په مددراتلو كښې د تاخير احساس اوشو نو هغوى مايوسه شول او ګمان ئې اوكړو چې ددوى تكذيب به اوشى ،مطلب دادې چې الله تعالى د مدد د تاخير په وخت كښې انبياءؑ ته دا ويره شوه كه د الله مدد رانغلو نو كومو كسانو چې ددوى تصديق كړې دې چرته هغوى ددوى تكذيب اونكړى.

ددې قراءت مطابق د ايت معنى بيخى ښكاره ده او بې غباره ده او څه قسم اشكال نه پاتې كيږى

② دويم قراءت د حضرت عبدالله بن عباس رضي الله عنهما دې په ذكر شوى ايت (وَظَنُّوا أَنَّهُمْ قَدْ كُذِبُوا) كښې (كُذِبُوا) په تخفيف سره دې ،په دې صورت كښې د ايت ظاهرى مطلب دا په پوهه كښې راځى چه كله د پيغمبرانو په نصرت كښې تاخير اوشو،تردې چې هغوى مايوسه شول او دا ګمان ئې اوكړو چې دوى ته دروغ ونيلې شوى وو يعنى دوى ته دا خيال راغلو چې د الله د نصرت وعده چې شوې وه هغه رښتونې نه وه او دوى ته دروغ ونيلې شوى وو.

خو د ايت په دې مطلب باندې دا اشكال دې چې پيغمبران دا بدګمانى چرته كولې شى چې الله تعالى د نصرت كومه دوى سره كړې وه هغه دروغ وه.

ددې وجې حضرت عائشې رضي الله عنها فرمائيلې دى چې قراءت (كذبوا) په تشديد سره دې ځكه چې د تخفيف په صورت كښې ذكر شوې اشكال نه لازميږى او دا مسلمه حقيقت دې چې الله تعالى د خپلو پيغمبرانو سره كومه وعده اوكړى نو پيغمبرانو ته كامل يقين وى چې هغه به د مرګ نه مخكښې ضرور پورا كيږى، ددې وجې ددغه وعدې په پورا كيدو كښې پيغمبرانو ته درد برابر تردد نه وى البته هغوى ته دا خيال راتلې شى كه نصرت رانغلو نو ددوى تصديق كونكى چرته د دوى تكذيب اونكړى نو دا (كُذِّبُوا) په تشديد سره دې ،دا په تخفيف سره

صحيح نه دي.

خو حضرت ابن عباس رضي الله عنه بهرحال رئيس المفسرين دي فرمائي چي ﴿كُذِبُوا﴾ په تخفيف سره دي ددې نه دا خبره په يقين سره مخامخ راځي چې هغوی هغه مطلب نه دي اخستې کوم چې حضرت عائشې رضي الله عنها ګنړلې دي ،او اعتراض کوی او د کوم په بنياد چه ئې د هغوی قراءت رد کړې دي،

اوس سوال دادې چې د حضرت ابن عباس رضي الله عنه د قراءت په صورت کښې به د ايت داسې کوم مطلب وی چې په هغې باندې د حضرت عائشې رضي الله عنها اشکال نه واردېږی . عالمانو ددې قرآءت په صورت کښې مختلف مطالب بيان کړې دی.

① علامه زمحشری فرمائی چې د ﴿ظَنُّوا﴾ نه د وسوسې معنی مراد ده .د وسوسې يو قسم (هاجس) دې بې اختياره خيال راځي او لاړشي پاتې کيږی نه، دلته د ظن نه د وسوسې هم دا قسم مراد دې ،او د بشريت په بناء که په نصرت کښې د تاخير د وجې داسې وسوسه راشی نو په دې کښې څه حرج نشته او نه په دې باندې څه موخذه شته([1])

② علامه خطابی رحمه الله فرمائی چه په ﴿وَظَنُّوا أَنَّهُمْ قَدْ كُذِبُوا﴾ کښې ﴿كُذِبُوا﴾ په خپله حقيقی معنی کښې نه دې دا د غلط په معنی کښې دې او مطلب دا دې چې انبياء عليهم السلام ته دا خيال راغلو چې مونږ ته چې الله تعالی د وحی او الهام په ذريعه د خپل نصرت يقين راکړې وو او هغه نصرت عنقريب راتلونکې دې کله چې د نصرت په راتلو کښې تاخير اوشو او د مايوسئ کيفيت پيدا شو نو زمونږ نفسونو مونږ ته غلط باور راکړې وو چې هغه الهام او وحی ده، نو کذب په معنی د غلط،ددې نسبت د الله تعالی وعدې طرف ته نه دې بلکه انبياء عليهم السلام خپلې نفسونو ته ددې نسبت کړې دې ([2])

خو د علامه خطابی په دې توجيه زړه نه مطمئن کيږی وجه داده چې د پيغمبرانو په باره کښې دا وئيل چې هغوی ته په وحی الهی کښې اشتباه شوې وه او د زړه خيال هغوی الهام خداوندی ګنړلو، مناسب نه دی.

حضرت انورشاه کشميری رحمه الله يو ډيره ښکلې توجيه کړې ده هغوی فرمائی چې د نصرت خداوندی د تاخير په صورت کښې تشويش اوشو او تشويش د علم اويقين سره جمع کيدې شی دا بيخی ممکن ده چې يو کس ته د يو څيز دواقع کيدو متعلق يقين وی خو د هغې د واقع کيدو نه وړاندې وړاندې د مختلفو حالاتو په بناء باندې د دهغه څيز د وقوع په باره کښې په ذهن کښې تشويش پيدا شی ، ټيک هم دغه شان پيغمبرانو عليهم السلام ته د نصرت خدواندی په واقع کيدو باندې يقين وو خو کله چې په هغې کښې روستوالې راغلو نو حالات سنګين او سخت شول او ورته تشويش او پريشانی لاحق شوه او چونکه د انبياؤ شان اوچت او شان ارفع وی نو ځکه دا تشويش او پريشانی د هغوی په حق کښې د کذب په منزله اوګرځولې

---

[1]) تفسير كشاف ۵۱۰/۲)-

[2]) البدر السارى الى فيض البارى ۱۶۲/۴)-

شوه د «تلقيا للمخاطب بما لا يترقب» اسلوب اختيار وى.
الله تعالى هغوى سره هغه خبره اوكړه كومه چې د هغوى په وهم او گمان كښې هم نه وه . الله تعالى اوفرمائيل چې آيا ستاسو دا گمان دې چې مونږ تاسو سره غلطه وعده كړې وه؟ حالانكه دا د هغوى گمان نه وو هغوى ته خو تشويش وو چې الله تعالى اوفرمائيل چې دا دومره پريشانى ولې ده مطلب دا دې چې تاسو څما وعده ولې صحيح نه گنړله
دا هم د محبوب سره د لطف او كرم يو انداز دې په دې باندې د مثال په رنړا كښې داسې پوهه شئ چې كله يو وفادار محب د خپل محبوب سره وعده اوكړى چې زه به صبا تاسره ميلاويږم او چې كله د ميلاويدلو د پاره لاړ شى نو هغه په انتظار كولو كښې پريشانه بيا مومى او هغه ته وائى چې تا په ما باندې د دروغژن گمان كړې وو چې زما د راتلو په انتظار كولو كښې پريشانه شوې حال دا چې هغه دروغژن نه وى گنړلې خو د هغه ذهن مشكوك شوې وو او محب د هغه د تشويش په منزله كښې دا تكذيب اوگرځوى او دا جمله ورته اووائى..
په قران شريف كښې د حضرت يونس عليه السلام په باره كښې راغلې دى «فَظَنَّ أَنْ لَنْ نَقْدِرَ» آيا څوك وئيلې شى چې د يونس عليه السلام به دا گمان وو چې د الله تعالى قدرت به په هغه باندې نه وى هرگز نشى وئيلې هغه د الله تعالى پيغمبر وو د هغه د خيال په يو طرف كښې هم دا خبره نه راتله چې هغه دالله د قدرت د دائرې نه بهر وى. هغوى د هغوى د طرز عمل په وجه هلته «تلقيا للمخاطب بما لا يترقب» اصول او اسلوب اختيار كړې شوې دې [1]
د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما ددې قراءت يو تفسير په خپله د هغوى نه امام نسائى نقل كړې دې ددې نه پس د بلې توجيه ضرورت نشته هغه دا دې چې «استياس الرسل من ايمان قومهم و ظن قومهم ان الرسل قد كذبوهم» يعنى پيغمبران دخپل قوم د ايمان راړو نه مايوسه شوې وو، او قوم دا گمان كړې وو چې پيغمبرانو (عليهم السلام) سره چې د نصرت كومه وعده كړې وه هغه صحيح نه وه، په دې وخت كښې د «وَظَنُّوا» ضمير قوم طرف ته راجح دې او د كذبوا ضمير پيغمبرانو ته . او په وړاندينى توجيهاتو كښې دواړه ضميرونه پيغمبران عليهم السلام ته راجع دى او د قوم په دې خيال كولو سره د پيغمبرانو په عظمت څه داغ نه لگى.
دا توجيه چونكه په خپله د ابن عباس رضي الله عنهما نه مروى ده. ددې وجه د ټولو نه زياته راجحه معلوميږى او په دې باندې اشكال هم نشته.

**قوله: حَتَّى يَقُولَ الرَّسُولُ وَالَّذِينَ آمَنُوا مَعَهُ مَتَى نَصْرُ اللَّهِ أَلَا إِنَّ نَصْرَ اللَّهِ قَرِيبٌ):**
په دې كښې درې احتمالات دى.
① يو دا چې «مَتَى نَصْرُ اللَّهِ» رسول او اهل ايمان ټولو وئيلې دى او الله فرمائيلې دى «أَلَا إِنَّ نَصْرَ اللَّهِ قَرِيبٌ»

---
[1] فيض البارى ٤/١٦٢،١٦١)-

② دویم دا چې اهل ایمان ونیلې دی (مَتٰى نَصْرُ اللّٰهِ ؕ) او رسول ونیلې دی (اَلَاۤ اِنَّ نَصْرَ اللّٰهِ قَرِیْبٌ﴿۲۱۴﴾)
③ دریم احتمال دادې چې دواړو ونیلې وی (مَتٰى نَصْرُ اللّٰهِ ؕ) بیا چې کله ورته هوش راغلې وی نو دواړو ونیلې وی (اَلَاۤ اِنَّ نَصْرَ اللّٰهِ قَرِیْبٌ﴿۲۱۴﴾)

**قوله: ذَهَبَ بِهَا هُنَاكَ**: يعنى حضرت ابن عباس رضی الله عنهما د سورة یوسف ایت هلته (د سورة بقره آیت باب طرف) ته اوړې دې ځکه چې د دواړو مفهوم او مصداق یو دې لکه څنګه چې تیرشو.

## ۴۱- باب: قوله تعالى: (نِسَاؤُكُمْ حَرْثٌ لَكُمْ فَأْتُوا حَرْثَكُمْ أَنَّى شِئْتُمْ وَقَدِّمُوا لِأَنْفُسِكُمْ)

[۴۲۵۳] حَدَّثَنَا إِسْحَاقُ أَخْبَرَنَا النَّضْرُ بْنُ شُمَيْلٍ أَخْبَرَنَا ابْنُ عَوْنٍ عَنْ نَافِعٍ قَالَ كَانَ ابْنُ عُمَرَ - رضی الله عنهما - إِذَا قَرَأَ الْقُرْآنَ لَمْ يَتَكَلَّمْ حَتَّى يَفْرُغَ مِنْهُ، فَأَخَذْتُ عَلَيْهِ يَوْمًا، فَقَرَأَ سُورَةَ الْبَقَرَةِ حَتَّى انْتَهَى إِلَى مَكَانٍ قَالَ تَدْرِي فِيمَا أُنْزِلَتْ. قُلْتُ لاَ. قَالَ أُنْزِلَتْ فِي كَذَا وَكَذَا. ثُمَّ مَضَى. وَعَنْ عَبْدِ الصَّمَدِ حَدَّثَنِي أَبِي حَدَّثَنِي أَيُّوبُ عَنْ نَافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ (فَأْتُوا حَرْثَكُمْ أَنَّى شِئْتُمْ) قَالَ يَأْتِيهَا فِي. رَوَاهُ مُحَمَّدُ بْنُ يَحْيَى بْنِ سَعِيدٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ عَنْ نَافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ.

[۴۲۵۴] حَدَّثَنَا أَبُو نُعَيْمٍ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنِ ابْنِ الْمُنْكَدِرِ سَمِعْتُ جَابِرًا - رضی الله عنه - قَالَ كَانَتِ الْيَهُودُ تَقُولُ إِذَا جَامَعَهَا مِنْ وَرَائِهَا جَاءَ الْوَلَدُ أَحْوَلَ. فَنَزَلَتْ (نِسَاؤُكُمْ حَرْثٌ لَكُمْ فَأْتُوا حَرْثَكُمْ أَنَّى شِئْتُمْ).

**ښځې سره د وطی فی الدبر مسئله**: د ایت کریمه سبب نزول په روایت کښې دا بیان شوې دې چې یهودیانو به ونیل چې سړې کله د خپلې ښځې د شاه طرف نه د هغې په فرج کښې جماع اوکړی نو بچې احول یعنی کاڼړې پیدا کیږی ،په دې باندې ذکر شوې ایت نازل شو. د ایت مطلب دادې چې ستاسو ښځې پټی دی نو تاسو خپل پټی ته څنګه چې مو خوښه وی نو راځئ.
په ایت کښې د (انی) لفظ راغلې دې. د (انی) لفظ د (این) (کیف) او (متی) په معنی کښې استعمالیږی. کله چې د (این) په معنی کښې استعمال وی نو په هغه وخت کښې به (من) ضرور وی برابره ده که ظاهر وی او که محذوف وی.
ضحاک فرمائیلې دی چې دلته (انی) د (متی) په معنی کښې دې یعنی (متی شئتم) مجاهد فرمائیلې دی چې د کیف په معنی کښې دې او قتاده او ربیع فرمائیلې دی چه د (من این) په معنی کښې دې [۱]
بعضې محققینو د (من این) معنی ته ترجیح ورکړې ده یعنی د کوم طرف نه چې تاسو غواړئ

---

[۱] روح المعانی ۱۷۷/۲ والجامع لاحکام القران ۹۳/۳)-

خپلو بیبیانو ته راځئ، د مخکښې نه ، شا نه، پورته نه، ښکته نه، ، البته وطی فی القبل پکار دی . دلته د جهت تعلیم مراد دی د مکان تعمیم مراد نه دی [1]

**ښځې سره په دبر کښې وطی کولو کښې د عالمانو اختلاف دی:** ①حضرت عبدالله بن عمر ، محمد بن کعب قرظی، سعید بن یسار، امام مالک او امام شافعی په قول قدیم کښې ،د اباحت قائل دی[2]

د امام مازری او ابن العربی رجحان هم دې طرف ته معلومیږی، ابوبکر جصاص په احکام القران کښې لیکلې دی چې د امام مالک مشهور قول د اباحت دې خو مالکیانو ددې قول تردید کړې دې ، صحیح خبره دا ده چه امام مالک نه د اباحت قول منقول دې [3]

البته ابویعلی خلیلی په (الارشاد) کښې د امام مالک نه ددې قول رجوع نقل کړې ده.

د امام شافعی رحمه الله په باره کښې منقول دی چې کله د هغوی نه ددې باره کښې تپوس اوشو نو هغوی اوفرمائیل چې په دې باره کښې څه صحیح حدیث راغلې نه دې البته د قیاس تقاضه داده چې دا حلال دی[4]حاکم او بیهقی وغیره د امام محمد او امام شافعی نه په دې مسئله کښې مناظره هم نقل کړې ده امام محمد فرمائی چې په موضع حرث کښې وطی کول جائز دی او په موضع فرث(د ګندګۍ ځائې) کښې وطی کول جائز نه دی ، په دې باندې امام شافعی د امام محمد نه تپوس اوکړو چې سړې د خپلې بی بی سره د هغې په پتون کښې وطی اوکړی نو دا جائزه ده؟ امام محمد اوفرمائیل او دا جائزه ده، نو امام شافعی اووئیل (**فکیف تحتج بما تقول به**)ځکه چې پتون وغیره هم د حرث ځائې نه دې [5]

خو د امام شافعی قول قدیم وو روستو هغه ددې د حرمت تصریح کړې ده او د شوافعو مذهب د تحریم دې[6]

①احناف، شوافع ،حنابله او جمهور امت د ښځې سره په دبر کښې وطی ته حرام وائی ځکه چې دا موضع حرث نه دې [7]

ابن حزیمه د رسول الله ﷺ نه روایت نقل کړې دې (**ان الله لا یستحی من الحق لا تاتوا النساء فی ادبارهن**)[8]

---

[1]) روح المعانی ۱۷۷/۲)-

[2]) تفسیری مظهری ۲۸۰/۱) والجامع ۹۳/۳) وعمدة القاری ۱۱۷/۱۸)-

[3]) احکام القران للجصاص ۳۵۲/۱)-

[4]) عمدة القاری ۱۱۷/۱۸) وتفسیر مظهری ۲۸۰،۲۸۱/۱)ورح المعانی ۱۷۸/۲)-

[5]) روح المعانی ۱۷۸/۲) وتفسیر مظهری ۲۸۱/۱)-

[6]) عمدة القاری ۱۱۷/۱۸)-

[7]) تفسیر مظهري ۲۸۰/۱)-

[8]) عمدة القاری ۱۱۷/۱۸)-

دغه شان دعمرو بن شعيب روايت دې (هي اللواطة الصغرى يعني وطي النساء في ادبارهن)___
امام طحاوى ـ امام محمد ـ او ابن شيبة روايت نقل كړې دې چې نبى ﷺ فرمائيلي دى (لاينظر الله تعالى الى رجل وطي امراة في دبرها)[1]
حضرت ابن عمر رضي الله عنه ته د اباحت نسبت هم مشكوك دې امام طحاوى روايت نقل كړې دې چې د ابن عمر رضي الله عنه نه د وطى فى الدبر په باره كښې تپوس اوشو نو هغوى اووئيل (اويفعله مسلم) ايا مسلمان داسې كولې شى ددې وجې هغوى طرف ته د جواز د قول نسبت صحيح نه دې[2]
علامه ابن القيم په زاد المعاد كښې تصريح كړې ده چې د سلفو نه په كوم كوم ځائې كښې د (اتيان في الدبر) جواز منقول دې نو د هغې نه (اتيان في القبل من جهة الدبر) مراد دې ـ بعضې راويان په دې مفهوم باندې بنه نه دى پوهه شوې او (اتيان فى نفس الدبر) ئې مراد اخستې دې ـ او ددې فعل شنيع د جواز قول ئې ذكر كړې دې[3] هم دا حق او صواب دې ـ او هم دا مقتضا د عقل اوشرع ده ـ او ددې نه خلاف ګنړل او وئيل تجاوز عن الحد دې.
اسماعيلى ديحيى ابن زاهد په طريق سره د سفيان نه روايت نقل كړې دې (باركة مدبرة في فرجها من ورائها) دلته (من ورائها) سره د (في فرجها) تصريح ده[4]
دغه شان په صحيح مسلم كښې دى (اذا اتى الرجل امراته من دبرها في قبلها)[5] او د روايت په الفاظو كښې (اذا اتى المراة من دبرها في قبلها ثم حملت)[6] حامله كيدل هله ممكن دى چې وطى فى القبل وى ـ ددې وجې به د (جماع من الوراء) نه مراد (وطي في القبل) وى.

**قوله:** يأتيها فى: دلته په باب كښې په دويم روايت كښې دا الفاظ راغلې دى (فى) د حرف جر ذكر دې خو د مجرور ذكر نشته.
ابن جرير په تفسير كښې د ابوقلابه په طريق سره دا روايت نقل كړې دې په دې كښې ئې د مجرور ذكر كړې دې (ياتيها في الدبر)[7]
حميدى په (الجمع بين الصحيحن) كښې د (ياتيها في الفرج) الفاظ نقل كړې دې[8]

---

[1]) حواله بالا)_
[2]) عمدة القارى ۱۱۷/۱۸)تفسير ابن كثير ۲۶۲،۲۶۳/۱) وشرح معانى الاثار ۲۲،۲۳/۲)كتاب النكاح باب وطى النساء فى ادبارهن)_
[3]) فيض البارى ۱۶۳/٤)-
[4]) فتح البارى كتاب التفسير ۱۹۲/۸)-
[5]) الصحيح المسلم ٤۶۳/۱)-
[6]) حواله بالا)_
[7]) عمدة القارى ۱۱۶/۱۸)-
[8]) حواله بالا)-

امام بخاري د مجرور ذکر نه دې کړې عام طور کله چې امام ته د څه لفظ متعلق اشکال کيږي نو هغه هلته بياض پريږدي چې روستو کله اطمينان اوشي نو ګوري به. خو بعضې وخت هغه بياض هم پاتې نه شي .دلته هم داسې ده (١)

## ۴۲-باب: قوله تعالى: وَإِذَا طَلَّقْتُمُ النِّسَاءَ فَبَلَغْنَ أَجَلَهُنَّ فَلَا تَعْضُلُوهُنَّ أَنْ يَنْكِحْنَ أَزْوَاجَهُنَّ [۲۳۲]

[۴۲۵۵] حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللَّهِ بْنُ سَعِيدٍ حَدَّثَنَا أَبُو عَامِرٍ الْعَقَدِيُّ حَدَّثَنَا عَبَّادُ بْنُ رَاشِدٍ حَدَّثَنَا الْحَسَنُ قَالَ حَدَّثَنِي مَعْقِلُ بْنُ يَسَارٍ قَالَ كَانَتْ لِي أُخْتٌ تُخْطَبُ إِلَيَّ. وَقَالَ إِبْرَاهِيمُ عَنْ يُونُسَ عَنِ الْحَسَنِ حَدَّثَنِي مَعْقِلُ بْنُ يَسَارٍ. حَدَّثَنَا أَبُو مَعْمَرٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَارِثِ حَدَّثَنَا يُونُسُ عَنِ الْحَسَنِ أَنَّ أُخْتَ مَعْقِلِ بْنِ يَسَارٍ طَلَّقَهَا زَوْجُهَا، فَتَرَكَهَا حَتَّى انْقَضَتْ عِدَّتُهَا، فَخَطَبَهَا فَأَبَى مَعْقِلٌ، فَنَزَلَتْ (فَلَا تَعْضُلُوهُنَّ أَنْ يَنْكِحْنَ أَزْوَاجَهُنَّ).

**د ايت کريمه نه په عبارة النساء سره په نکاح باندې استدلال:** ددې ايت نه امام ترمذی ،ابن جرير طبری اوقاضی ابن عربی وغيره په دې خبره باندې استدلال کړې دې چې دنکاح په معامله کښې د ښځو اعتبار نشته بلکه دا اولياؤ ته حواله دې ، ګنی که ښځو ته اعتبار وې نو بيا حضرت معقل بن يسار خپله خور د نکاح نه ولې منع کوله او ددوی په دې منع کولو باندې به (فَلَا تَعْضُلُوهُنَّ أَنْ يَنْكِحْنَ أَزْوَاجَهُنَّ)(٢)

خو کوم حضرات چې د نکاح بعبارة النساء د معتبر کيدو قائل دی هغوی وائی چې ايت خو زمونږ دليل دې ځکه چې حضرت معقل بن يسار د نکاح بعبارة النساء باندې نصيحت اوکړو او خپله خور ئې دنکاح نه منع کړه نو الله تعالی په دې باندې انکار اوکړو ،ددې نه معلومه شوه چې ښځې په خپله نکاح کولې شي .(٣)

## ۴۳-باب: قوله تعالى: (وَالَّذِينَ يُتَوَفَّوْنَ مِنْكُمْ وَيَذَرُونَ أَزْوَاجًا يَتَرَبَّصْنَ بِأَنْفُسِهِنَّ أَرْبَعَةَ أَشْهُرٍ وَعَشْرًا) إِلَى (بِمَا تَعْمَلُونَ خَبِيرٌ) [۴۱]

[۴۲۵۶] حَدَّثَنِي أُمَيَّةُ بْنُ بِسْطَامٍ حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ زُرَيْعٍ عَنْ حَبِيبٍ عَنِ ابْنِ أَبِي مُلَيْكَةَ قَالَ ابْنُ الزُّبَيْرِ قُلْتُ لِعُثْمَانَ بْنِ عَفَّانَ (وَالَّذِينَ يُتَوَفَّوْنَ مِنْكُمْ وَيَذَرُونَ أَزْوَاجًا) قَالَ قَدْ نَسَخَتْهَا الْآيَةُ الْأُخْرَى فَلِمَ تَكْتُبُهَا أَوْ تَدَعُهَا قَالَ يَا ابْنَ أَخِي، لَا أُغَيِّرُ شَيْئًا مِنْهُ مِنْ مَكَانِهِ.

[۴۲۵۷] حَدَّثَنَا إِسْحَاقُ حَدَّثَنَا رَوْحٌ حَدَّثَنَا شِبْلٌ عَنِ ابْنِ أَبِي نَجِيحٍ عَنْ مُجَاهِدٍ (وَالَّذِينَ

---

(١) حواله بالا)-
(٢) جامع الابيان فی تفسير القران ٢٩٩/٢.٣٠٠) وسنن ترمذی ٢١٦.٢١٧/٥) کتاب تفسير القران)-
(٣) التفسير المظهری ٣١٦-٣١٧)-

يُتَوَفَّوْنَ مِنْكُمْ وَيَذَرُونَ أَزْوَاجًا) قَالَ كَانَتْ هَذِهِ الْعِدَّةُ تَعْتَدُّ عِنْدَ أَهْلِ زَوْجِهَا وَاجِبٌ، فَأَنْزَلَ اللّٰهُ (وَالَّذِينَ يُتَوَفَّوْنَ مِنْكُمْ وَيَذَرُونَ أَزْوَاجًا وَصِيَّةً لِأَزْوَاجِهِمْ مَتَاعًا إِلَى الْحَوْلِ غَيْرَ إِخْرَاجٍ فَإِنْ خَرَجْنَ فَلَا جُنَاحَ عَلَيْكُمْ فِيمَا فَعَلْنَ فِي أَنْفُسِهِنَّ مِنْ مَعْرُوفٍ) قَالَ جَعَلَ اللّٰهُ لَهَا تَمَامَ السَّنَةِ سَبْعَةَ أَشْهُرٍ وَعِشْرِينَ لَيْلَةً وَصِيَّةً، إِنْ شَاءَتْ سَكَنَتْ فِي وَصِيَّتِهَا، وَإِنْ شَاءَتْ خَرَجَتْ، وَهُوَ قَوْلُ اللّٰهِ تَعَالَى (غَيْرَ إِخْرَاجٍ فَإِنْ خَرَجْنَ فَلَا جُنَاحَ عَلَيْكُمْ) فَالْعِدَّةُ كَمَا هِيَ وَاجِبٌ عَلَيْهَا. زَعَمَ ذَلِكَ عَنْ مُجَاهِدٍ. وَقَالَ عَطَاءٌ قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ نَسَخَتْ هَذِهِ الْآيَةُ عِدَّتَهَا عِنْدَ أَهْلِهَا، فَتَعْتَدُّ حَيْثُ شَاءَتْ، وَهُوَ قَوْلُ اللّٰهِ تَعَالَى (غَيْرَ إِخْرَاجٍ). قَالَ عَطَاءٌ إِنْ شَاءَتِ اعْتَدَّتْ عِنْدَ أَهْلِهِ وَسَكَنَتْ فِي وَصِيَّتِهَا، وَإِنْ شَاءَتْ خَرَجَتْ لِقَوْلِ اللّٰهِ تَعَالَى (فَلَا جُنَاحَ عَلَيْكُمْ فِيمَا فَعَلْنَ). قَالَ عَطَاءٌ ثُمَّ جَاءَ الْمِيرَاثُ فَنَسَخَ السُّكْنَى فَتَعْتَدُّ حَيْثُ شَاءَتْ، وَلَا سُكْنَى لَهَا. وَعَنْ مُحَمَّدِ بْنِ يُوسُفَ حَدَّثَنَا وَرْقَاءُ عَنِ ابْنِ أَبِي نَجِيحٍ عَنْ مُجَاهِدٍ بِهَذَا. وَعَنِ ابْنِ أَبِي نَجِيحٍ عَنْ عَطَاءٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ نَسَخَتْ هَذِهِ الْآيَةُ عِدَّتَهَا فِي أَهْلِهَا، فَتَعْتَدُّ حَيْثُ شَاءَتْ لِقَوْلِ اللّٰهِ (غَيْرَ إِخْرَاجٍ) نَحْوَهُ.

**قوله: يَعْفُونَ يَهَبْنَ :** يعنى (وَإِنْ طَلَّقْتُمُوهُنَّ مِنْ قَبْلِ أَنْ تَمَسُّوهُنَّ وَقَدْ فَرَضْتُمْ لَهُنَّ فَرِيضَةً فَنِصْفُ مَا فَرَضْتُمْ إِلَّا أَنْ يَعْفُونَ أَوْ يَعْفُوَ الَّذِي بِيَدِهِ عُقْدَةُ النِّكَاحِ) په دې ايت كښې يعفون په معنى د (يهبن) دې يعنى هبه كول.

د متوفى عنها زوجها (كونډې) عدت څلور مياشتې او لس ورځې دې.د عدت تيريدو نه وړاندې هغه نه نكاح كولې شى او نه د نكاح خبرې كولې شى نه به خوشبو لګوى او نه به ډول او سنګار كوى او نه به رنګينې جامې اغوندى.د زينت د اسبابو استعمال ددې د پاره ممنوع دې هم دا حكم د مطلقه بائنه دې كله چې د خاوند د پاره د رجوع حق نه وى[1]

د خاوند په كور كښې اوسيدل مطلقه بائنه د پاره هم ضرورى دى او د كونډې د پاره هم واجب دى ، خو دا وجوب من الجهة الاحداد (ماتم) دې ،ددې وجې نه نه دې چې ددې د پاره سكنى لازم ده ، خو د ميراث په ايت سره ساقطه شوې ده البته د ابن عباس رضي الله عنهما په نيز دمعمولى ضرورت د پاره هم وتل جائز دى .كه د خاوند وفات د سپوږمۍ په شپه كښې وى نود عدت مياشت به د سپوږمۍ د حساب نه پورا كولې شى برابره ده كه سپوږمۍ د يو كم ديرش وى او كه د ديرشو وى ،خو كه وفات د سپوږمۍ د شپې نه پس وى نو ټولې مياشتې به د ديرشو ورځو په حساب سره پوره كولې شى.په دې صورت كښې د څلورو مياشتو ١٢٠ ورځې شوې ، او چې نورې لس ورځې ورسره ملاؤ شى نو د عدت ټولې يو سل ديرش ورځې شوې.

[1] بدائع الصنائع ٢٠٨،٢٠٩/٣) البحرالرائق ١٦٢/٤) الباب ٨٥/٣) انلدر المختار.٨٤/٢) واعانة الطالبين للسيد البكرى ٤٣/٤)والمقنع ٢٩١/٣) والفقه الاسلامى وادلته ٦٥٣/٧) عند الاحناف لايحوز ان يخرج مطلقه من البيت فى الليل ولافى نهار،والمتوفى عنها يجوز ان يخرج فى النهار للحاجة ولا يجوز ان يخرج فى الليل)

**قوله:** حَدَّثَنِي أُمَيَّةُ بْنُ بِسْطَامٍ : دلته دوه آیاتونه دي﴿وَالَّذِينَ يُتَوَفَّوْنَ مِنكُمْ وَيَذَرُونَ أَزْوَاجًا يَتَرَبَّصْنَ بِأَنفُسِهِنَّ أَرْبَعَةَ أَشْهُرٍ وَعَشْرًا﴾دا ایت دتربص دي او ناسخ دي او په قرانی ترتیب کښې مقدم دي.
دویم ایت دي ﴿وَالَّذِينَ يُتَوَفَّوْنَ مِنكُمْ وَيَذَرُونَ أَزْوَاجًا وَصِيَّةً لِّأَزْوَاجِهِم مَّتَاعًا إِلَى الْحَوْلِ غَيْرَ إِخْرَاجٍ فَإِنْ خَرَجْنَ فَلَا جُنَاحَ عَلَيْكُمْ فِي مَا فَعَلْنَ فِي أَنفُسِهِنَّ مِن مَّعْرُوفٍ﴾نو دا ایت الحول منسوخ دي او په قرانی ترتیب کښې موخر واقع شوي دي.
ابن زبیر رضی الله عنه ته دا اشکال پیښ شوي دي، چې کله د وصیت ایت منسوخ شو نو دائې په قران کښې ولې لیکلې دي نو حضرت عثمان رضی الله عنه اوفرمائیل ددې ایت حکم منسوخ شوي دي تلاوت ئې نه دي منسوخ شوي ،ددې وجې دا باقي پریخودې شوې دي ،نبی صلی الله علیه وسلم دا باقي پریخودې دي او په مونږ باندې د نبی صلی الله علیه وسلم اتباع لازم ده ،ددې وجې زه په دې کښې څه تبدیلی نشم کولې.
پاتې شو دا سوال چې کله د ایت الحول حکم په ایت التربص باندې منسوخ شوې دې نو په تلاوت برقرار پاتې کولو کښې څه فائده ده؟
ددې جواب یو خو دادې چې په دې باندې ثواب میلاویږی ،دویم د نبی صلی الله علیه وسلم د تابعدارئی او اتباع ثواب به ملاویږی چې څنګه دا نبی صلی الله علیه وسلم په مصحف کښې برقرار پریخودې دي نو چې مونږ هم د هغوی په اتباع کښې هم داسې اوکړو.
**د ایت په باره کښې یو اشکال او د هغې جواب:** ددې نه پس دا سوال کیږی چې هر کله ایت الحول منسوخ دې نو پکار وه چې دا مقدم وې او ایت د تربص ددې د پاره ناسخ وې نو چې هغه مؤخر وی ځکه چې منسوخ همیشه د پاره مقدم وی او ناسخ مؤخر وی خو دلته قران کریم کښې په ترتیب کښې ایت د تربص چې ناسخ دې مقدم واقع شوې دې او ایت الحول منسوخ ایت په قران کریم کښې ورسته واقع شوې دې.
ددې اشکال جواب دادې چې یو ترتیب نزول دې په دې کښې خو هم دا وی چه منسوخ ایت مقدم وی او ناسخ مؤخر وی، ددې نه خلاف متصور نه دې نو د نزول ایت په ترتیب کښې یقینا د ایت الحول نزول وړاندې دې او د ایت تربص نزول روسته دې خو یو ترتیب هغه دې کوم چه دې وخت کښې په قران کریم کښې موجود دې دا ترتیب د لوح محفوظ د ترتیب مطابق دې او دا ترتیب توقیفی دې ، د رسول الله صلی الله علیه وسلم نه ترتیب د آیاتونو هم داسې منقول دې په دې کښې د تبدیلئ کولو چاته حق نشته ،په دغه ترتیب توقیفی کښې ایت د تربص کوم چې ناسخ دې مقدم دې او ایت الحول کوم چې منسوخ دې مؤخر دې (اګر چې عام طور باندې په دې توقیفی ترتیب کښې هم منسوخ مقدم او مؤخر دې ،خو دلته داسې نه ده)نو موجوده ترتیب چونکه توقیفی دې په دې وجه دغه په لوح محفوظ کښې په دې ترتیب سره د کیدو په وجه هم پابند یو چه ناسخ اول او منسوخ روستو اوګرځوو[1]

[1]) الاتقان فی علوم القران ۱۵۵)-

چې دا ترتيب نې اوکتلو نو مجاهد او عطاء دا دعوى اوکړه چې ايت الحول کوم چې مؤخر دې منسوخ نه دې ځکه چې منسوخ ايت خو د ناسخ نه وړاندې وى ځکه چې په ترتيب نزول کښې واقعى هم داسې وو خو د تلاوت په ترتيب کښې دا ضرورى نه دې .موجوده چې د اياتونو کوم ترتيب د تلاوت په وخت کښې ملحوظ ساتلې شى دا توقيفى دې .په دې کښې د رائې او قياس دخل نشته ،ددې وجه د جمهورو په دې باندې اتفاق دې چې ايت الحول منسوخ دې او ايت د تربص ددې د پاره ناسخ دې اول به ښځې د ګونډتوب په عدت کښې يو کال تيرولو .د جاهليت د زمانې طريقه هم دا وه بيا د رسول الله ﷺ تقرير دې ته حاصل شو.دغه شان د ايت الحول په ذريعه د بيبيانو د پاره حکم راغلو چې د مرګ د اثارو ښکاره کيدو په وخت کښې که دوى بيبيانې پريږدى او وفات کيږى نو د دوى د پاره دې د يو کال د نفقې او سکنى وصيت کوى ځکه چې اول په اسلام کښې د عدت يو کال ددې نه پس د تربص ايت نازل شو او د کال په ځائې څلور مياشتې او لس ورځې مقرر شوې.

مجاهد او عطاء د ابن عباس رضي الله عنهما نه ددې خلاف نقل کړې دى چې ايت الحول منسوخ نه دې د وصيت حکم په ايت الحول کښې د څلورو مياشتو او لسو ورځو عدت مقرر کيدو نه پس راغلې دې،بيا بيبيانو ته اختيار ورکړې شوې دې که هغوى غواړى ددې وصيت نه فائده واخلى او ياکه د دوى مرضى د استفادې نه وى نو نه دې اخلى. اوس دلته په دې پوهه شئ چه دلته درې څيزونه دى.

① متوفى عنها زوجها د پاره څلور مياشتې او لس ورځې عدت دې.
② د متوفى عنها زوجها د پاره د خاوند په کور کښې د سکونت لزوم
③ په خاوندانو باندې د وصيت وجوب

امام بخارى يو قول د مجاهد نه نقل کړې دې او يو قول د عطاء نه او دا دواړه د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما شاګردان دى لکه چې دوى د ابن عباس رضي الله عنهما پيش کړې ده ،حضرت مجاهد دا وئيلې دى «وَالَّذِيْنَ يُتَوَفَّوْنَ مِنْكُمْ وَيَذَرُوْنَ اَزْوَاجًا ۚ وَّصِيَّةً لِّاَزْوَاجِهِمْ» چې د څلورو مياشتو او لس ورځو د عدت سره څه تعلق نشته.

د ايت الحول د نزول نه پس د څلورو مياشتو او لسو ورځو عدت هم داسې واجب دې څنګه چې وړاندې وو.په ايت الحول کښې خاوندان ددې پابند کړې شوى دى، چه هغوى بيبيانو ته د نورو اووه مياشتو او شلوورځو وصيت اوکړى، د متاع او سکنى د پاره چه پوره کال شو او بيبيانو ته دا اختيار ورکړې شو که هغوى ددې وصيت مطابق د خاوند په کور کښې اوسيدل خوښوى نو اوسيږى دې او که نه خوښوى نه دې اوسيږى.

عطاء وائى چې په «وصية لازواجهم» ايت الحول کښې په امور ثلاثه کښې امرثانى منسوخ کړې شوې دې او د ښځې د پاره د خاوند په کور کښې عدت تيرول ضرورى نه دى پاتې شوې .عطاء فرمائى چې نه څلور مياشتې او لس ورځې د خاوند په کور کښې عدت تيرول ضرورى دى او نه په موده د وصيت کښې د خاوند په کور کښې سکونت اختيارول ضرورى دى،د عطاء په نيز د څلور مياشتو او لسو ورځو د عدت حکم په خپل ځائې باندې باقى دې د ايت الحول د

نزول سره د سکوت فی بیت الزوج وجوب ختم شو نه په موده د عدت کښې څلورمیاشتې او لس ورځو کښې دا وجوب باقی پاتې شو او نه په موده د وصیت کښې چې اووه میاشتې او شل ورځې دی.

مجاهد په موده د وصیت کښې خو د ښځې د اختیار ذکر کړې دې خو د عدت په موده څلور میاشتو او لس ورځو په باره کښې مجاهد سکوت اختیار کړې دې خو ظاهره دا ده چې د مجاهد په نیز هم لکه څنګه چې په موده د وصیت کښې د ښځې د پاره د خاوند په کور کښې سکونت واجب نه دې دغه شان د عدت په موده څلورمیاشتې او لسو ورځو کښې هم سکونت فی بیت الزوج واجب نه دې ،اګرچې هغوی ددې ذکر نه دې کړې خکه چې کله موده د وصیت کښې ډیره موده ده سکونت فی بیت الزوج ضروری نه دې نو په موده د عدت کښې چه څلور میاشتې او لس ورځې کومه موده ده .په هم سکونت ضروری نه وی. نو که دا اومنلې شی چه مجاهد هم سکونت فی بیت الزوج نه په موده د وصیت کښې ضروری ګنړی او نه په موده د عدت کښې نو بیا په عطاء او مجاهد کښې اختلاف باقی نه پاتې کیږی.

**د لامع الدراری په غلطئ باندې تنبیه:** دلته په (لامع الدراری) کښې غلطی واقع شوې ده په هغې کښې د مجاهد قول ددې عکس نقل کړې شوې دې چه هغه په موده د عدت څلورمیاشتې او لسو ورځو کښې د تخیر قائل د وصیت د مودې په باره کښې هغوی سکونت اختیار کړې دې [۱]حال دا چې حقیقت ددې په خلاف دې خکه چې هغوی د ښځې د اختیار ذکر د وصیت د مودې په باره کښې کړې دې او په موده د عدت کښې چه څورمیاشتې او لس ورځې دی په هغې کښې ئې د سکونت ذکر کړې دې.

ددې نه پس عطاء فرمائیلې دی چه د میراث د ایت د نزول نه پس د ښځې د پاره د خاوند په کور کښې د اوسیدو اختیار ختم شو ،نه هغه څلور میاشتې لس ورځې د عدت په موده کښې هلته حصاریدې شی او نه په موده د وصیت کښې چه اووه میاشتې او شل ورځې اوسیدې شی .که اوسیږی نو کرایه به ورکوی میراث دې ته ملاؤ شو .پیسې دې سره شته نو که اوسیدل غواړی کرایه دې ورکوی. بلکه د میراث د ایت نه پس خو دا وصیت هم جائز نه دې خکه چې میراث ایت الحول منسوخ کړې دې .په ایت د تربص سره هغه نه دې منسوخ شوې خکه چې ایت تربص په نزول کښې مقدم دې او ایت الحول مؤخر دې خو د میراث ایت ددې نه هم مؤخر دې ،نو د ایت الحول د پاره ناسخ شو.

په دې دریمه مسئله کښې هم چه ایت الحول په ایت د میراث سره منسوخ شوې دې د عطاء او مجاهد اختلاف نشته ،دواړه ددې نسخ قائل دی.

ددې تفصیل نه معلومه شوه چې د مجاهد او عطاء په بیان کښې د ابن عباس رضی الله عنهما د مذهب په بیانولو کښې اختلاف نشته خو د ابن عباس رضی الله عنهما په روایاتو کښې اختلاف واقع شوې دې د بعضې روایاتو نه عدم نسخ معلومیږی لکه څنګه امام بخاری نقل کړې دی او د هغې تفصیل

[۱]) لامع الدراری ۹/۲۶)-

ستاسو وروسته وړاندې پېش کړې شو او بعضې روایاتو نه نسخ معلومیږي علامه سیوطی په درمنثور کښې فرمائیلي دی (اخرج ابوداود والنسائي والبيهقي من طريق عكرمة عن ابن عباس رضي الله عنهما في قوله (وَالَّذِينَ يُتَوَفَّوْنَ مِنكُمْ وَيَذَرُونَ أَزْوَاجًا وَصِيَّةً لِّأَزْوَاجِهِم مَّتَاعًا إِلَى الْحَوْلِ غَيْرَ إِخْرَاجٍ) قال نسخ الله ذلك بآية الميراث بما فرض الله لهن من الربع والثمن ونسخ اجل الحول بان جعل اجلها اربعة اشهر وعشرا)[1]
د داسې قسم روایاتو نه د ابن عباس رضي الله عنهما رائې د جمهورو سره موافق معلومیږي چې هغوی عدت الحول په (أَرْبَعَةَ أَشْهُرٍ وَعَشْرًا) ایت باندې منسوخ منی.

**د متوفی عنها زوجها د نفقه او سکنی حکم:** د احنافو په نیز د متوفی عنها زوجها (کونډې) د پاره نه نفقه شته او نه سکنی .که حامله وی یا غیر حامله وی ځکه چه د زوج د وفات نه پس د هغه مالونه وارثانو ته منتقل شول نو دوارثانو د مال نه به نه نفقه ادا کولې شی او نه سکنی[2]
د علامه نووی مطابق د شوافعو په نیز نفقه خو واجب نه ده که حامله وی او که غیر حامله وی البته د سکنی د پاره امام نووی رحمه الله فرمائی (والاصح عندنا وجوب السكنى)[3] لکه چې په بل روایت کښې ددې د پاره د هغوی په نیز سکنی نشته.
د حنابله په نیز که هغه غیر حامله وی نو نه نفقه شته او نه سکنی شته. او که حامله وی نو دواړه روایتونه دی په یو روایت کښې د حاملې د پاره هم نفقه او سکنی شته او بل روایت کښې د حاملې د پاره نفقه او سکنی شته (وكذا قال الموفق)[4]
د مالیکانو په نیز د متوفی عنها زوجها د پاره نفقه نشته که حامله وی او که غیر حامله وی البته سکنی په دې صورت کښې شته چه کله کور د خاوند ملکیت وی یا د کرایه وی او خاوند د وفات نه وړاندې کرایه ادا کړې وی ګنی نشته (وكذا قال الباجي)[5]

**قوله: حَدَّثَنَا إِسْحَاقُ حَدَّثَنَا رَوْحٌ :** په دې حدیث کښې ئې د ایت تربص د نقل کولو نه پس وئیلې دی (قال كانت هذه العدة تعتد عند اهل زوجها واجب) ددې نه عدت د وفات څلور میاشتې او لس ورځې مراد دی او مطلب دا دې چه د آیت الحول د نزول نه پس په دې عدت کښې څه تبدیلی نه ده راغلې،دا عدت د ایت الحول نه پس هم هغه شان واجب دې ځنګه چې وړاندې وو البته په ایت الحول کښې خاوندانو ته د وصیت حکم ورکړې شوې وو او ښځو ته د

---

[1]) درمنثور (۳۰۹/۱) وتعليقات لامع الدرارى (۲۶/۹)-
[2]) بدائع الصنائع (۲۱۱/۳) واوجز المسالک (۱۸۵/۱۰)-
[3]) الصحيح المسلم مع شرحه الكامل للنووى (۴۸۲/۱)-
[4]) اوجز المسالک (۱۸۵/۱۰) والمقنع فى فقه الامام احمد كتاب النفقات ۳۱۱۹/۳ والعدة شرح العمدة للمقدسى(۴۳۳ باب نفقة المتعتدات والانصاف فى معرفة الراجح من الخلاف للمرداوى ۳۶۸،۴۶۹/۰۹)-
[5]) اوجز المسالک (۱۸۵/۱۰) والفقه الاسلامى وادلته (۶۵۹۹ والشرح الصغير للدردير ۶۸۶/۰۲) باب العدة والمنتقى شرح موطا للباجى(۱۳۶/۴،۱۳۴) وبلغة المسالک لاقرب المسلک للصاوى ۲۵۰/۱)-

وصیت مطابق عمل کولو او نه عمل کولو اختیار ورکړې شوې وو. وړاندې بیان وائی (قالعطاء كما هي واجب عليها) دلته هم هغه د څلورمیاشتو او لس ورځو عدت وجوب مراد دې.

**قوله: زَعَمَ ذَلِكَ عَنْ مُجَاهِدٍ:** یعنی ابن ابی نجیح د مجاهد نه هم دغه شان نقل کړې دی وړاندې د عطاء قول دې د کوم تشریح چه شوې ده، وړاندې بیا (وعن محمد بن يوسف قال حدثنا ورقاء عن ابن ابي نجيح عن مجاهد: بهذا) سره د مجاهد هم هغه ذکر شوې قول په بل سند سره بیانوی بیا (عن ابن ابي نجيح، عن عطاء، عن ابن عباس، قال نسخت هذا الاية عدتها في اهلها فتعتد حيث شاءت) سره ئې د ابن عباس رضی الله عنه قول نقل کړې دې چې په ایت الحول سره ایت التربص منسوخ شو خو عدت منسوخ نه دې څکه چې هغه خو (فتعتد حيث شاءت) کښې د عدت تیرولو ذکر کوی البته د بیت زوج لزوم ختم شو ددې وجې چه چرته غواړی عدت دې تیر کړی.

[۴۲۵۸] حَدَّثَنَا حِبَّانُ حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ أَخْبَرَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ عَوْنٍ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ سِيرِينَ قَالَ جَلَسْتُ إِلَى مَجْلِسٍ فِيهِ عُظْمٌ مِنَ الأَنْصَارِ وَفِيهِمْ عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ أَبِي لَيْلَى، فَذَكَرْتُ حَدِيثَ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُتْبَةَ فِي شَأْنِ سُبَيْعَةَ بِنْتِ الْحَارِثِ، فَقَالَ عَبْدُ الرَّحْمَنِ وَلَكِنَّ عَمَّهُ كَانَ لاَ يَقُولُ ذَلِكَ. فَقُلْتُ إِنِّي لَجَرِيءٌ إِنْ كَذَبْتُ عَلَى رَجُلٍ فِي جَانِبِ الْكُوفَةِ. وَرَفَعَ صَوْتَهُ، قَالَ ثُمَّ خَرَجْتُ فَلَقِيتُ مَالِكَ بْنَ عَامِرٍ أَوْ مَالِكَ بْنَ عَوْفٍ قُلْتُ كَيْفَ كَانَ قَوْلُ ابْنِ مَسْعُودٍ فِي الْمُتَوَفَّى عَنْهَا زَوْجُهَا وَهْيَ حَامِلٌ فَقَالَ قَالَ ابْنُ مَسْعُودٍ أَتَجْعَلُونَ عَلَيْهَا التَّغْلِيظَ، وَلاَ تَجْعَلُونَ لَهَا الرُّخْصَةَ لَنَزَلَتْ سُورَةُ النِّسَاءِ الْقُصْرَى بَعْدَ الطُّولَى. وَقَالَ أَيُّوبُ عَنْ مُحَمَّدٍ لَقِيتُ أَبَا عَطِيَّةَ مَالِكَ بْنَ عَامِرٍ.

**د حاملې متوفی عنها زوجها عدت:** حضرت ابن سیرین رحمه الله فرمائی چه زه په کوفه کښې په یو مجلس کښې ناست ووم په هغې کښې د انصارو لوئې خلق ناست وو، په هغوی کښې عبدالرحمان بن ابی لیلی هم وو. ما دسبیعه بنت الحارث متعلق د عبدالله بن عتبه حدیث نقل کړلو. د هغه حدیث مفهوم دادې چې د سبیعه بنت حارث خاوند وفات شو او دا حامله وه ،اوس لا څلورمیاشتې او لس ورځې نه وې تیرې شوې چه دا د حمل نه فارغه شوه نو د نبی صلی الله علیه وسلم په خدمت کښې حاضره شوه او د خپل عدت په باره کښې ئې تپوس اوکړو ،نبی صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل :په وضع د حمل سره عدت ختم شو.

دا حدیث چې ئې واوریدلو نو عبدالرحمن بن ابی لیله اوفرمائیل، ته د عبدالله بن عتبه بن مسعود په حوالې سره حدیث نقل کوې حالانکه چې دهغه تره عبدالله بن مسعود دابعد الاجلین قائل وو[1] د عبدالرحمن ابن ابی لیله مطلب دادې چې عبدالله بن عتبه د حضرت عبدالله بن

---

[1] ابن ابی لیلی د حضرت عبدالله بن مسعود هم دا مذهب اختیار کړې دې هغوی د ابعدالاجلین قائل وو خو دا صحیح نه ده لکه څنگه چې وړاندې راځی او دا هم ممکن ده چې اول کښې هغوی د ابعدالاجلین قائل وو.

مسعود وراره دي او شاګرد ئې هم دې هغه د خپل استاذ خلاف څنګه وئيلې شي عبدالرحمان بن ابی ليلی د ابن سيرين حديث باندې يو قسم د خپل عدم اطمينان اظهار اوکړو. په دې ابن سيرين اووئيل که ما په داسې کس باندې دروغ وئيلې وی کوم چې په کوفه کښې موجود دې نو بيا خو به زه ډير زړه ور يم ، مطلب دا دې چې عبدالله بن عتبه په کوفه کښې موجود دې او د هغه په حواله حديث بيانوم نو په هغې باندې دروغ او هغه ته د حديث غلط نسبت څنګه کولې شم.

**قوله: فَلَقِيتُ مَالِكَ بْنَ عَامِرٍ أَوْ مَالِكَ بْنَ عَوْفٍ :** حضرت ابن سيرين ددې مجلس نه پاسيدلو فرمائی بيا زه د مالک بن عامر سره ملاؤشوم. دلته راوی ته د مالک بن عامر او مالک بن عوف په باره کښې شک دې ، صحيح مالک بن عامر دې لکه وړاندې چې د ايوب په تعليق کښې تصريح ده.

چونکه مالک بن عامر هم د حضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه شاګرد وو نو ځکه د زيات اطيمينان حاصلولو د پاره ابن سيرين د هغه نه تپوس اوکړو چه حضرت عبدالله بن مسعود د هغه ښځې په باره کښې څه قول دې چې د چا خاوند مړ شی او هغه حامله وی. مالک بن عامر د عبدالله بن مسعود رضي الله عنه قول نقل کړو (اتجعلون عليها التغليظ، ولا تجعلون لها الرخصة) يعنی تاسو خو په دغه کونډه باندې سختی کوئی که موده د څلورمياشتو او لسو ورځو نه زياته هم وی نو بيا ښځې د پاره دا حکم دې چې د وضع حمل نه وړاندې د هغې عدت نه پوره کيږی ، برابره ده که موده د حمل نهه مياشتو پورې اوږده شی. او هغې ته رخصت نه ورکوی (که وضع د حمل د څلورومياشتو او لس ورځونه کمه موده کښې اوشی نو په وضع سره د هغې عدت پوره نه منی) مطلب دا چه د وضع حمل موده اوږده شی نو په دې صورت کښې تاسو ښځې ته د انتظار کولو حکم کوئی نو د وضع حمل موده مختصره شی په دې صورت کښې هم هغې ته د تخفيف حق ملاويدل پکار دی ، بيا اوفرمائيل چې سورة قصری يعنی سورة طلاق د سورة طولی يعنی سورة بقره نه پس نازل شوې دې مطلب دادې چې د سورة طلاق ايت (وَأُولَاتُ الْأَحْمَالِ أَجَلُهُنَّ أَنْ يَضَعْنَ حَمْلَهُنَّ) روستو نازل شوې دې ايت سره د سورة بقره ايت (وَالَّذِينَ يُتَوَفَّوْنَ مِنْكُمْ وَيَذَرُونَ أَزْوَاجًا يَتَرَبَّصْنَ بِأَنْفُسِهِنَّ أَرْبَعَةَ أَشْهُرٍ وَعَشْرًا) کښې تخصيص کړې دې. د سورة بقره د ايت حکم اوس صرف د غير حامله د پاره دې اوس درې صورتونه راوځی.

① يو صورت دادې چې ښځه متوفی عنها زوجها وی او حامله نه وی ددې عدت څلورمياشتې او لس ورځې دې.

② دويم شکل دادې چه ښځه حامله وی مطلقه وی او متوفی عنها زوجها نه وی، ددې عدت وضع د حمل ده.

③ دريم صورت دادې چې ښځه متوفی عنها زوجها هم وی او حامله هم وی. په دې کښې اختلاف دې چې ددې عدت ابعد الاجلين دې او که وضع د حمل؟

د حضرت علی رضی الله عنه نه منقول دی (تعتد بابعد الاجلين) [1]
ابن ابی لیلی هم دا قول د حضرت عبدالله بن مسعود رضی الله عنه طرف ته منسوب کړې دې خو دا نسبت صحیح نه دې جمهور فرمائی چې ددې عدت وضع د حمل دې [2]

## باب قوله تعالى: حَافِظُوا عَلَى الصَّلَوَاتِ وَالصَّلَاةِ الْوُسْطَى

[۴۲۵۹] حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا يَزِيدُ أَخْبَرَنَا هِشَامٌ عَنْ مُحَمَّدٍ عَنْ عَبِيدَةَ عَنْ عَلِيٍّ - رضى الله عنه - قَالَ النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - . حَدَّثَنِي عَبْدُ الرَّحْمَنِ حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ سَعِيدٍ قَالَ هِشَامٌ حَدَّثَنَا قَالَ حَدَّثَنَا مُحَمَّدٌ عَنْ عَبِيدَةَ عَنْ عَلِيٍّ - رضى الله عنه - أَنَّ النَّبِيَّ - صلى الله عليه وسلم - قَالَ يَوْمَ الْخَنْدَقِ « حَبَسُونَا عَنْ صَلاَةِ الْوُسْطَى حَتَّى غَابَتِ الشَّمْسُ مَلأَ اللَّهُ قُبُورَهُمْ وَبُيُوتَهُمْ أَوْ أَجْوَافَهُمْ - شَكَّ يَحْيَى - نَارًا ».

امام بخاری چې دلته کوم روایت پیش کړې دې ،ددې نه معلومیږی چه د امام بخاری په په نیز د صلاة وسطی نه دمازیګر مونځ مراد دې .
په روایت کښې د صلاة وسطی په باره کښې د اهل علمو مختلف اقوال دی حافظ شرف الدین دمیاطی ددې په باره کښې یو مستقله رساله (کشف العطاء عن الصلاة الوسطی) لیکلې ده [3]

**د صلاة وسطی په باره کښې د عالمانو اقوال:** ① د حضرت انس، حضرت جابر رضی الله عنهما او عکرمه او مجاهد وغیره رائې دا ده چې د صلاة وسطی نه د صبا مونځ مراد دې د امام مالک او امام شافعی رحمهما الله هم دا قول دې.

② د حضرت عائشې رضی الله عنها، حضرت زید بن ثابت او حضرت ابوسعید رضی الله عنه نه نقل دی چې ددې نه د ماسپخین مونځ مراد دې او د امام ابوحنیفه یو روایت هم دادې .

③ د حضرت ابن عباس رضی الله عنه نه نقل دی چې ددې نه د ماښام مونځ مراد دې .

④ د حضرت معاذ بن جبل او عبدالله بن عمر رضی الله عنه نه نقل دی چې ددې نه ټول مونځونه مراد دی.دا حضرات وائی چه په (حٰفِظُوْا عَلَى الصَّلَوٰتِ) کښې فرائض او نوافل ټول شامل دی او چه (وَالصَّلٰوةِ الْوُسْطٰى) ئې اووئیل نو د پنځو مونځونو تاکید ئې اوکړو علامه عبدالبر هم دا قول اختیار کړې دې.

⑤ د ابن حبیب مالک او ابواثامه رائې دا ده چه ددې نه د جمعې مونځ مراد دې

⑥ ابن التین او علامه قرطبی نقل کړې دی چې ددې نه دماسخوتن مونځ مراد دې.

---

[1]) احکام القران للجصاص ۱۵۹/۱-٤١٥.
[2]) احکام القران للجصاص ۱۸/۱-٤١٤،٤١٨)-
[3]) قال الحافظ فی الفتح۱۹۶۹/۸ وجمع الدمیاطی فی ذلک جزاء مشهورا اسماء کشف العطآء عن الصلاة الوسطی..بلغ تسعة عشرا قولا)-

⑦ بعضو ونیلي دی چې ددې نه د مازیګر مونځ مراد دې
⑧ د بعضو رائې ده چې ددې نه د صبا او ماسخوتن مونځونه مراد دی.
⑨ علم الدین سخاوی او تقی الدین اخنائی فرمائی چې ددې نه د وترو مونځ مراد دې.
⑩ بعضو ونیلي دی چې صلاة الخوف ترې مراد دې.
⑪ بعضو ترې اشراق مونځ مراد اخستې دې.
⑫ بعضو ترې نه د څاښت مونځ مراد اخستې دې.
⑬ د سعید بن جبیر او امام الحرمین رائې دا ده چې ددې نه لا علی التعیین پنځو مونځونو کښې یو مراد دې.
⑭ بعضو ددې نه د تهجدو مونځ مراد اخستې دې.
⑮ خو د اکثرو حضراتو رائې دا ده چې ددې نه د مازیګر مونځ مراد دې.هم دا قول د احنافو او حنابلو دې [۱] امام ترمذی فرمائی «هوقول اکثرعلماء الصحابة» [۲]

ماوردی وائی چه «هوقول الجمهور التابعین» [۳] او علامه ابن عبد البر وائی «هوقول اکثراهل الاثر» [۴]
د امام بخاری هم دا رائې ده نو د سورة رحمن په تفسیر کښې ئې ددې تصریح کړې ده. فرمائی «فیها فاکهة ونخل ورمان» قال بعضهم: لیس الرمان والنخل بالفاکهة اما العرب فانها تعدهما فاکهة کقوله عزوجل «حافظوا الصلوات والصلاة الوسطی» فامر بالمحافظة علی کل الصلوات ثم اعاد العصر تشدیدالها کما اعید النخل والرمان» [۵]
حضرت شاه صاحب رحمه الله فرمائی چه دا صلاة وسطی سابقه امتونو ته پیش شوې ووهغوی دا ضائع کړلو ددې وجې دې امت ته په خصوصیت سره ددې د محافظت تاکید شوې دې.د امام مسلم د روایت مطابق په دې باندې دوه اجرونه ملاویږی.
شاه صاحب داهم فرمائیلې دی چې امام شافع د صلاة وسطی تفسیر د صبا په مونځ باندې کړې دې ،کیدې شی ددې وجې چه ددې ایت آخری حصه ده «وقوموا لله قانتین» او چونکه ددوی په نیز قنوت د صبا په مانځه کښې وی،ددې وجې هغوی د ایت دا اخری حصه ددې خبرې قرینه جوړه کړې چه دصلاة وسطی مصداق صلاة فجر دې [۶]

---

[۱]) فتح الباری ۱۹۶/۸)-
[۲]) سنن ترمذی ابواب الصلاة باب ما جاء فی صلاة الوسطی ۴۲/۱)-
[۳]) فتح الباری ۱۹۶/۸)-
[۴]) حواله بالا)-
[۵]) صحیح البخاری مع فتح الباری ۶۶۰/۸)-
[۶]) فیض الباری ۱۶۵/۴)_

# ٤٥- باب (وَقُومُوا لِلّٰهِ قَانِتِينَ) مُطِيعِينَ.

[ ۴۲۲۰ ] حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا يَحْيَى عَنْ إِسْمَاعِيلَ بْنِ أَبِي خَالِدٍ عَنِ الْحَارِثِ بْنِ شُبَيْلٍ عَنْ أَبِي عَمْرٍو الشَّيْبَانِيِّ عَنْ زَيْدِ بْنِ أَرْقَمَ قَالَ كُنَّا نَتَكَلَّمُ فِي الصَّلَاةِ يُكَلِّمُ أَحَدُنَا أَخَاهُ فِي حَاجَتِهِ حَتَّى نَزَلَتْ هَذِهِ الْآيَةُ (حَافِظُوا عَلَى الصَّلَوَاتِ وَالصَّلَاةِ الْوُسْطَى وَقُومُوا لِلّٰهِ قَانِتِينَ) فَأُمِرْنَا بِالسُّكُوتِ.

امام بخاری د قانتين تفسير په مطيعين سره کړې دې دا تفسير د حضرت عبدالله بن مسعود او عبدالله بن عباس رضي الله عنهما نه منقول دې (١)

حضرت گنگوهی رحمه الله فرمائی چې کمال طاعت دادې چې انسان د هر داسې څيز نه منع شی کوم چې په قرب او حضور کښې حائل وی او کلام هم چونکه په حضور کښې مخل دې ددې وجې نه د ايت کريمه نه د کلام فی الصلاة ممانعت مستفاد کيږی، هم ددې نکتې په وجه امام بخاری هغه روايت ذکر کړې دې، په کوم کښې چې د کلام فی الصلاة نه منع شوې ده(٢) دا روايت په کتاب الصلاة کښې د «باب ماينهى عن الكلام فى الصلوة» لاندې تير شوې دې(٣)

# باب قَوْلِهِ عَزَّ وَجَلَّ (فَإِنْ خِفْتُمْ فَرِجَالًا أَوْ رُكْبَانًا فَإِذَا أَمِنْتُمْ فَاذْكُرُوا اللّٰهَ كَمَا عَلَّمَكُمْ مَا لَمْ تَكُونُوا تَعْلَمُونَ) (۲۳)

وَقَالَ ابْنُ جُبَيْرٍ (كُرْسِيُّهُ) عِلْمُهُ يُقَالُ (بَسْطَةً) زِيَادَةً وَفَضْلًا (أَفْرِغْ) أَنْزِلْ (وَلَا يَئُودُهُ) لَا يُثْقِلُهُ. آدَنِي أَثْقَلَنِي. وَالْآدُ وَالْأَيْدُ الْقُوَّةُ، السِّنَةُ نُعَاسٌ. (يَتَسَنَّهْ) يَتَغَيَّرْ. (فَبُهِتَ) ذَهَبَتْ حُجَّتُهُ. (خَاوِيَةٌ) لَا أَنِيسَ فِيهَا. عُرُوشُهَا أَبْنِيَتُهَا. نُنْشِرُهَا نُخْرِجُهَا (إِعْصَارٌ) رِيحٌ عَاصِفٌ تَهُبُّ مِنَ الْأَرْضِ إِلَى السَّمَاءِ كَعَمُودٍ فِيهِ نَارٌ. وَقَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ (صَلْدًا) لَيْسَ عَلَيْهِ شَيْءٌ. وَقَالَ عِكْرِمَةُ (وَابِلٌ) مَطَرٌ شَدِيدٌ. الطَّلُّ النَّدَى، وَهَذَا مَثَلُ عَمَلِ الْمُؤْمِنِ. (يَتَسَنَّهْ) يَتَغَيَّرْ.

**قوله: وَقَالَ ابْنُ جُبَيْرٍ (كُرْسِيُّهُ) عِلْمُهُ:**

**په وسع کرسيه کې د کرسی نه څه مراد دې؟:** يعنی د سورة بقره ايت «وَسِعَ كُرْسِيُّهُ السَّمٰوٰتِ وَالْأَرْضَ» کښې د کرسئ نه علم مراد دې، علامه قسطلانی فرمائی «فيه اشارة الى انه لا كرسى فى الحقيقة ولا قاعد وانما هو مجاز عن علمه»(٤)

---

(١) عمدة القاری ١٢٥/١٨)-

(٢) لامع الدراری ٣٠/٩)-

(٣) صحيح البخاری کتاب الصلاة ١٦٠/١٠)-

(٤) ارشاد الساری ٧٣/١٠) تعليقات لامع الدراری ٣١٩/٩-

علامه سندهي رحمه الله فرمائي چه عام طور عالم دين په کرسئ باندې کيني او د علم نشر واشاعت کوي نو کرسئ يو قسم د علم محل شو او دلته ذکر د محل دې مراد ترې حال دی.[1]

او بل مناسبت لغوي دا بيان کړې دې چه لکه څنګه په کرسئ باندې صاحب د کرسئ اعتماد کوي او کيني دغه شان عالم په خپل علم اعتماد کوي او مسائل بيانوي نو په اعتماد د علم او کرسئ دواړو کښې قدر مشترک دې ،ددې مناسبت په وجه ئې کرسئ وئيلې ده ،او مراد ترې علم اخستې شی.[2]

د کلماتو تشريح:

**قوله:** يُقَالُ (بَسْطَةً) زِيَادَةً وَفَضْلاً:

د سورة بقرې دې ايت طرف ته اشاره ده (إِنَّ اللَّهَ اصْطَفَاهُ عَلَيْكُمْ وَزَادَهُ بَسْطَةً فِي الْعِلْمِ وَالْجِسْمِ) فرمائي دلته د (بَسْطَةً) معنى فضيلت او زياتې ده

**قوله:** أَفْرِغْ) أَنْزِلْ: يعني ايت کريمه (وَلَمَّا بَرَزُوا لِجَالُوتَ وَجُنُودِهِ قَالُوا رَبَّنَا أَفْرِغْ عَلَيْنَا صَبْرًا) کښې (افرغ د انزل په معنى دې،

**قوله:** (وَلَا يَئُودُهُ) لَا يُثْقِلُهُ: يعني په ايت کرسئ کښې د (وَلَا يَئُودُهُ حِفْظُهُمَا) معنى ده ،الله تعالى د اسمان او زمکې حفاظت ګران او مشکل نه معلوميږي (اد ، يؤده) په وزن د قال يقول معنى ئې درنيدل او ستړې کيدل راځي

**قوله:** (لَمْ يَتَسَنَّهْ) يَتَغَيَّرْ: (فَانْظُرْ إِلَى طَعَامِكَ وَشَرَابِكَ لَمْ يَتَسَنَّهْ) فرمائي د (يتسن) معنى تعبير کيدل او تبديل کيدل دي.

**قوله:** خَاوِيَةٌ) لَا أَنِيسَ فِيهَا: (أَوْ كَالَّذِي مَرَّ عَلَى قَرْيَةٍ وَهِيَ خَاوِيَةٌ عَلَى عُرُوشِهَا) کښې د (خاوية) معنى ده (چرته چه څوک مونس او غمخوار نه وی، خالي وی.

**قوله:** عُرُوشُهَا أَبْنِيَتُهَا: (أَوْ كَالَّذِي مَرَّ عَلَى قَرْيَةٍ وَهِيَ خَاوِيَةٌ عَلَى عُرُوشِهَا) کښې د عروش معنى ده ،چتونه بنيادونه.

**قوله:** نُنْشِزُهَا نُخْرِجُهَا: (وَانْظُرْ إِلَى الْعِظَامِ كَيْفَ نُنْشِزُهَا) په دې کښې د ننشز معنى (نخرج) ده يعني هډوکو طرف ته اوګوره چه مونږ دا څنګه راپورته کوو او جوړوو.

**قوله:** (إِعْصَارٌ) رِيحٌ عَاصِفٌ تَهُبُّ مِنَ الْأَرْضِ إِلَى السَّمَاءِ كَعَمُودٍ فِيهِ نَارٌ: (وَلَهُ ذُرِّيَّةٌ ضُعَفَاءُ فَأَصَابَهَا إِعْصَارٌ) تشريح کوي او فرمائي چه داسې تيزه هواچې هغه د زمکې نه اسمان طرف ته چليږي د ستنې په شان په هغې کښې اور وی.

[1] حاشية السندی ۲/۶۵۰)-

[2] حواله بالا)-

**قوله:** وَقَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ (صَلْدًا) لَيْسَ عَلَيْهِ شَيْءٌ: (كَمَثَلِ صَفْوَانٍ عَلَيْهِ تُرَابٌ فَأَصَابَهُ وَابِلٌ فَتَرَكَهُ صَلْدًا) يعنى څنګه چې يو ښويدونکې کانړې وی چې په هغې باندې خاوره وی نو په هغې باندې تيز باران اوشی او هغه صفا کړی، حضرت ابن عباس رضی الله عنهما فرمائی چې د «صلدا» معنی ده «چې په هغې باندې څه نه وی ښيخی صفا وی د «وابل» معنی بيانوی حضرت عکرمه رحمه الله فرمائی «مطر شديد» سخت باران.

**قوله:** الطَّلُّ النَّدَى: (فان لم يصبها وابل فطل) د «طل» معنی ده معمولی باران، پرخه

**قوله:** وهذا مثل عمل المؤمن: په قران کريم کښې په دې ايت کښې د مومن عمل يو مثال بيان شوې دې. پوره ايت دادې «وَمَثَلُ الَّذِينَ يُنفِقُونَ أَمْوَالَهُمُ ابْتِغَاءَ مَرْضَاتِ اللَّهِ وَتَثْبِيتًا مِّنْ أَنفُسِهِمْ كَمَثَلِ جَنَّةٍ بِرَبْوَةٍ أَصَابَهَا وَابِلٌ فَآتَتْ أُكُلَهَا ضِعْفَيْنِ فَإِن لَّمْ يُصِبْهَا وَابِلٌ فَطَلٌّ ۗ وَاللَّهُ بِمَا تَعْمَلُونَ بَصِيرٌ»

يعنى کوم خلق چې د الله د رضا په غرض خرچ کوی چې د خپلو نفسونو کښې «د ګرانو اعمالو برداشت کولو د پاره» پوخوالې پيدا کړی، ددوی مثال داسې دې چې يو باغ په يوه ډيرئی باندې واقع وی او په هغې باندې تيز باران اوشی او هغه دوچنده ميوه اوکړی او که تيز باران پرې هم اونشی نو «د زمکې د ښه والی او د موقع موافقت په وجه» معمولی پرخه «او لږ باران» هم د هغې د پاره کافی وی.

په دې ايت کښې د مومن عمل په يو مثال سره واضح کړې دې مقصد دا دې چې په اخلاص سره مومن څه ډير خرچ هم اونکړی او لږ غوندې خرچ اوکړی بيا هم هغه ته دوچنده اجر او ثواب ملاويږی.

[۴۲۲۱] حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ يُوسُفَ حَدَّثَنَا مَالِكٌ عَنْ نَافِعٍ أَنَّ عَبْدَ اللَّهِ بْنَ عُمَرَ -رضى الله عنهما- كَانَ إِذَا سُئِلَ عَنْ صَلاَةِ الْخَوْفِ قَالَ يَتَقَدَّمُ الإِمَامُ وَطَائِفَةٌ مِنَ النَّاسِ فَيُصَلِّي بِهِمُ الإِمَامُ رَكْعَةً، وَتَكُونُ طَائِفَةٌ مِنْهُمْ بَيْنَهُمْ وَبَيْنَ الْعَدُوِّ لَمْ يُصَلُّوا، فَإِذَا صَلَّوُا الَّذِينَ مَعَهُ رَكْعَةً اسْتَأْخَرُوا مَكَانَ الَّذِينَ لَمْ يُصَلُّوا وَلاَ يُسَلِّمُونَ، وَيَتَقَدَّمُ الَّذِينَ لَمْ يُصَلُّوا فَيُصَلُّونَ مَعَهُ رَكْعَةً، ثُمَّ يَنْصَرِفُ الإِمَامُ وَقَدْ صَلَّى رَكْعَتَيْنِ، فَيَقُومُ كُلُّ وَاحِدٍ مِنَ الطَّائِفَتَيْنِ فَيُصَلُّونَ لأَنْفُسِهِمْ رَكْعَةً بَعْدَ أَنْ يَنْصَرِفَ الإِمَامُ، فَيَكُونُ كُلُّ وَاحِدٍ مِنَ الطَّائِفَتَيْنِ قَدْ صَلَّى رَكْعَتَيْنِ، فَإِنْ كَانَ خَوْفٌ هُوَ أَشَدَّ مِنْ ذَلِكَ صَلَّوْا رِجَالاً، قِيَامًا عَلَى أَقْدَامِهِمْ، أَوْ رُكْبَانًا مُسْتَقْبِلِي الْقِبْلَةِ أَوْ غَيْرَ مُسْتَقْبِلِيهَا. قَالَ مَالِكٌ قَالَ نَافِعٌ لاَ أُرَى عَبْدَ اللَّهِ بْنَ عُمَرَ ذَكَرَ ذَلِكَ إِلاَّ عَنْ رَسُولِ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم-.

## ۴۵- باب: (وَالَّذِينَ يُتَوَفَّوْنَ مِنْكُمْ وَيَذَرُونَ أَزْوَاجًا)

[۴۲۲۲] حَدَّثَنِي عَبْدُ اللَّهِ بْنُ أَبِي الأَسْوَدِ حَدَّثَنَا حُمَيْدُ بْنُ الأَسْوَدِ وَيَزِيدُ بْنُ زُرَيْعٍ قَالاَ حَدَّثَنَا حَبِيبُ بْنُ الشَّهِيدِ عَنِ ابْنِ أَبِي مُلَيْكَةَ قَالَ قَالَ ابْنُ الزُّبَيْرِ قُلْتُ لِعُثْمَانَ هَذِهِ الآيَةُ الَّتِي

فِي الْبَقَرَةِ (وَالَّذِينَ يُتَوَفَّوْنَ مِنْكُمْ وَيَذَرُونَ أَزْوَاجًا) إِلَى قَوْلِهِ (غَيْرَ إِخْرَاجٍ) قَدْ نَسَخَتْهَا الأُخْرَى، فَلِمَ تَكْتُبُهَا قَالَ تَدَعُهَا. يَا ابْنَ أَخِي لاَ أُغَيِّرُ شَيْئًا مِنْهُ مِنْ مَكَانِهِ. قَالَ حُمَيْدٌ أَوْ نَحْوَ هَذَا.

دلته اشكال كيږى چې په دې ايت باندې خو ترجمه قائمه شوې ده نو امام بخارى ترجمه دوباره ولې قائمه كړه.وئيلې شى چې اوله ترجمه په ايت ناسخه باندې وه او دلته په ايت منسوخه باندې نو تكرار نشته

## ۴٦-باب: (وَإِذْ قَالَ إِبْرَاهِيمُ رَبِّ أَرِنِي كَيْفَ تُحْيِي الْمَوْتَى)

[۴۲۲۳] حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ صَالِحٍ حَدَّثَنَا ابْنُ وَهْبٍ أَخْبَرَنِي يُونُسُ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ أَبِي سَلَمَةَ وَسَعِيدٍ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ - رضى الله عنه - قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - «نَحْنُ أَحَقُّ بِالشَّكِّ مِنْ إِبْرَاهِيمَ إِذْ قَالَ (رَبِّ أَرِنِي كَيْفَ تُحْيِي الْمَوْتَى قَالَ أَوَلَمْ تُؤْمِنْ قَالَ بَلَى وَلَكِنْ لِيَطْمَئِنَّ قَلْبِي)

كله چې دا يت نازل شو نو بعضې صحابو اوفرمائيل «شك ابراهيم ،لم يشك نبينا» نو نبى ﷺ هغوى ته اوفرمائيل «نحن احق بالشك من ابراهيم»

علامه كرمانى دلته اشكال كړې دې چې دابراهيم عليه السلام څنګه شک كړې وو حال دادې چې ابراهيم عليه السلام د الله تعالى جليل القدر پيغمبر وو؟

بيا خپله جواب وركوى او فرمائى چې د نبى ﷺ د قول «ونحن احق بالشك من ابراهيم» مطلب خو دادې چې شک خو مونږ ته كول پكار وو خو زمونږ شک نشته نو حضرت ابراهيم عليه السلام ته به په طريقه اولى شک نه وى شوې نبى ﷺ افضل الانبياء دې هغوى دا جمله د عاجزئى په ډول اوفرمائيله (١)

**حضرت ابراهيم عليه السلام دا سوال ولې اوكړو؟:** اوس سوال دادې چې ابراهيم عليه السلام ته هركله د الله تعالى په صفت احياء كښې شک نه وو نو بيا ئې د الله تعالى نه سوال ولې كولو؟ چې «رَبِّ أَرِنِي كَيْفَ تُحْيِي الْمَوْتَى»

① بعضې حضراتو وئيلې دى چې د حضرت ابراهيم عليه السلام د الله تعالى په صفت احياء باندې قدرت كښې څه شک نه وو بلكه د احياء د كيفيت ليدو شوق ئې وو چې څنګه ورته ژوند وركوى..ددې كيفيت مشاهده كولو ئې غوښتل ددې وجې ئې د الله نه سوال اوكړو.(٢)

② بعضې حضراتو وئيلې دى چې حضرت ابراهيم ته علم حصولى حاصل ووا و د هغه د ايمان د پاره كافى دې.حضرت ابراهيم عليه السلام غوښتل چې علم حضورى ورته حاصل شى.(٣)

---

(١) شرحالكرمانى ١٧/٤٣)-

(٢) شرح الكرمانى ١٧/٤٣) وفيض البارى ٤/١٤٥/١٤٦) تفسير قرطبى ٣/٢٩١)-

(٣) قال الامام رازى فى تفسير الكبير وعلى قول المتكلمين العلم الاستدلالى مما يتطرق اليه الشبهات والشكوك فطلب علما ضروريا يستقر القلب معه استقرارا لا يتعالجه شئ من الشكوك والشبهات ٨/٤١)

بعضې ونيلي دی چې حضرت ابراهيم عليه السلام ته علم يقينی حاصل وو هغوی عين اليقين غوښتل[1]

## ۴۹- باب قَوْلِهِ (أَيَوَدُّ أَحَدُكُمْ أَنْ تَكُونَ لَهُ جَنَّةٌ) إِلَى قَوْلِهِ (تَتَفَكَّرُونَ)

[۴۲۲۴] حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ أَخْبَرَنَا هِشَامٌ عَنِ ابْنِ جُرَيْجٍ سَمِعْتُ عَبْدَ اللَّهِ بْنَ أَبِي مُلَيْكَةَ يُحَدِّثُ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ. قَالَ وَسَمِعْتُ أَخَاهُ أَبَا بَكْرِ بْنَ أَبِي مُلَيْكَةَ يُحَدِّثُ عَنْ عُبَيْدِ بْنِ عُمَيْرٍ قَالَ قَالَ عُمَرُ-رضي الله عنه-يَوْمًا لأَصْحَابِ النَّبِيِّ -صلى الله عليه وسلم- فِيمَ تَرَوْنَ هَذِهِ الآيَةَ نَزَلَتْ (أَيَوَدُّ أَحَدُكُمْ أَنْ تَكُونَ لَهُ جَنَّةٌ) قَالُوا اللَّهُ أَعْلَمُ. فَغَضِبَ عُمَرُ فَقَالَ قُولُوا نَعْلَمُ أَوْ لاَ نَعْلَمُ. فَقَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ فِي نَفْسِي مِنْهَا شَيْءٌ يَا أَمِيرَ الْمُؤْمِنِينَ. قَالَ عُمَرُ يَا ابْنَ أَخِي قُلْ وَلاَ تَحْقِرْ نَفْسَكَ. قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ ضُرِبَتْ مَثَلاً لِعَمَلٍ. قَالَ عُمَرُ أَيُّ عَمَلٍ قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ لِعَمَلٍ. قَالَ عُمَرُ لِرَجُلٍ غَنِيٍّ يَعْمَلُ بِطَاعَةِ اللَّهِ عَزَّ وَجَلَّ، ثُمَّ بَعَثَ اللَّهُ لَهُ الشَّيْطَانَ فَعَمِلَ بِالْمَعَاصِي حَتَّى أَغْرَقَ أَعْمَالَهُ..

حضرت ابن عباس رضي الله عنهما فرمائی چې حضرت عمر رضي الله عنه يو ځل د حضرات صحابه کرامو نه تپوس اوکړو چې (أَيَوَدُّ أَحَدُكُمْ أَنْ تَكُونَ لَهُ جَنَّةٌ) دا ايت په څه باره کښې نازل شوې دې؟ صحابه اوونيل تاسو (تعلم) يا (لاتعلم) اووائې، يعنی چې مونږ ته علم دې يا داقرار اوکړئی چې مونږ ته علم نشته. حضرت ابن عباس (رض) اوونيل زما په زړه کښې ددې په باره کښې څه شته. حضرت عمر رضي الله عنه اوفرمائيل ته اووايه او (د خپلې کم عمرئی په وجه خپل ځان حقير مه ګڼړه. حضرت ابن عباس رضي الله عنهما اوفرمائيل په دې کښې د يو عمل مثال بيان شوې دې.حضرت عمر رضي الله عنه اوفرمائيل د کوم عمل ؟ حضرت ابن عباس رضي الله عنهما د عمل تعيين اونکړو او ونې وئيل د څه عمل؟ نو حضرت عمر رضي الله عنه په خپله تفسير بيان کړو او ونې وئيل چه په دې کښې د يو مالدار سړی مثال بيان شوې دې هغه د الله تعالى اطاعت او عبادت کولو، بيا الله تعالى هغه طرف ته شيطان راوليږلو نو هغه په ګناهونو کښې اخته شو تردې چه د هغه نيک عمل ئې غرق کړل.

**يو اشکال او د هغې جواب:** دلته دا اشکال کيږی چې د حضرت عمر رضي الله عنه د سوال په جواب کښې صحابه رضي الله عنهم (والله اعلم) او فرمائيل نو حضرت عمر رضي الله عنه په دې باندې خفه شوحال دا چې صحابو رضي الله عنهم به د نبی صلى الله عليه وسلم په جواب کښې وئيل (والله ورسوله اعلم) او نبی صلى الله عليه وسلم په دې باندې نه خفه کيدلو.

ددې جواب دادې چې نبی صلى الله عليه وسلم به د صحابه کرامو د متوجه کولو د پاره سوال کولو.کله چې به هغوی په جواب کښې (الله ورسوله اعلم) اوفرمائيل نو لکه چې هغوی به متوجه شول. د نبی صلى الله عليه وسلم د صحابو رضي الله عنهم نه داسې قسم سوال کول امتحان نه وو ځکه چې نبی صلى الله عليه وسلم خو استاذ راليږلې شوې

[1] تفسير القرطبی ۳/۲۹۹)-

وو او حضرات صحابه كرامو ﷺ به د نبى ﷺ نه علم زده كولو، نو د صحابو ﷺ د متوجه كولو په غرض به نبى ﷺ به كله د صحابو ﷺ تپوس اوكړو نو هغوى به په جواب كښې «والله ورسوله اعلم» وئيل.
خو دلته خبره داسې نه ده دلته حضرت عمر ﷺ په خپله معلومول غواړى او دا كتل ئې مقصود دى چه صحابو ته ددې په باره كښې علم شته كه نه، ددې وجې په داسې موقع د «والله اعلم» وئيل د سوال سره مطابق نه دى. هم دا وجه وه چه حضرت عمر ﷺ خفا شو.[1]

**قوله: فَعَمِلَ بِالْمَعَاصِي**: بعضې حضرات وائى چې ددې نه د معتزلو تائيد كيږى چې يو كس د گناه كبيره ارتكاب اوكړى او د هغه ټول اعمال خبط شول.
ددې جواب دادې چې اغراق، احباط لره مستلزم نه دې دلته د اغراق اعمال نه د اعمال صالحه قلت مراد كيدې شى، دغه شان د معاصى نه كفر او شرک نه پس اعمال صالحه باندې څه اخروى فائده نشته.[2]

## ۴۸-باب: (لَا يَسْأَلُونَ النَّاسَ إِلْحَافًا)

يُقَالُ أَلْحَفَ عَلَيَّ وَأَلَحَّ عَلَيَّ، وَأَحْفَانِي بِالْمَسْأَلَةِ، (فَيُحْفِكُمْ) يُجْهِدْكُمْ.

[۴۲۲۵] حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي مَرْيَمَ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ جَعْفَرٍ قَالَ حَدَّثَنِي شَرِيكُ بْنُ أَبِي نَمِرٍ أَنَّ عَطَاءَ بْنَ يَسَارٍ وَعَبْدَ الرَّحْمَنِ بْنَ أَبِي عَمْرَةَ الْأَنْصَارِيَّ قَالَا سَمِعْنَا أَبَا هُرَيْرَةَ - رضى الله عنه - يَقُولُ قَالَ النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - «لَيْسَ الْمِسْكِينُ الَّذِي تَرُدُّهُ التَّمْرَةُ وَالتَّمْرَتَانِ وَلَا اللُّقْمَةُ وَلَا اللُّقْمَتَانِ. إِنَّمَا الْمِسْكِينُ الَّذِي يَتَعَفَّفُ وَاقْرَءُوا إِنْ شِئْتُمْ يَعْنِي قَوْلَهُ (لَا يَسْأَلُونَ النَّاسَ إِلْحَافًا). [ر: ۱۴۰۶]

پوره ايت دې «لِلْفُقَرَاءِ الَّذِينَ أُحْصِرُوا فِي سَبِيلِ اللَّهِ لَا يَسْتَطِيعُونَ ضَرْبًا فِي الْأَرْضِ يَحْسَبُهُمُ الْجَاهِلُ أَغْنِيَاءَ مِنَ التَّعَفُّفِ تَعْرِفُهُمْ بِسِيمَاهُمْ لَا يَسْأَلُونَ النَّاسَ إِلْحَافًا»
يعنى په صدقاتو كښې اصل حق د حاجتمندو دې كوم چې مقيد شوې وى د الله په لار كښې يعنى د دين په خدمت كښې، هغه خلق په طلب معاش د پاره په زمكه كښې د گرځيدلو طاقت نه لرى. د سوال نه د ځان ساتلو په وجه ناواقف خلق په هغوى باندې د مالدارانو خيال كوى، تاسو د هغوى د مخونو نه پيژندلې شئ (چه د فقر او فاقه نه ددوى په مخونو او بدنونو كښې د كمزورتى آثار په نظر راځى. هغوى په خلقو پورې انخلى نه، چه څه ترې غواړى (يعنى د نورو نه هډو غواړى نه، ځكه چې كوم خلق د غوښتلو عادتيان وى عموما هغوى په انختيدلو سره غوښتل كوى.

[1] لامع الدرارى ۹/۳۳)-
[2] عمدة القارى ۱۸/۱۲۹)-

**قوله:** يُقَالُ أَلْحَفَ عَلَيَّ وَأَلَحَّ عَلَيَّ، وَأَحْفَانِي بِالْمَسْأَلَةِ: مقصد دادي چې (الحف علی، الح علی) او (احفاني بالمسئالة) د يوې معنې د پاره راځي يعنې اصرار كول.

**قوله:** فَيُحْفِكُمْ يُجْهِدُكُمْ: په دې سره د سورة محمد ايت (وَلَا يَسْئَلْكُمْ أَمْوَالَكُمْ۝ إِنْ يَسْئَلْكُمُوهَا فَيُحْفِكُمْ تَبْخَلُوا) طرف ته اشاره ده يعنې الله تعالى نه غواړي ستاسو نه ستاسو مال او كه غواړي ستاسو نه هغه مال او تاسو په مشقت كښې واچوي نو تاسو به بخل اوكړئ په دې كښې (يحفكم) معنى د (يجهد كم) ده (اى يجهد كم فى السوال بالالحاح)

**قوله:** حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي مَرْيَمَ: حضرت ابوهريره ﷺ ارشاد فرمائي چې نبى كريم ﷺ ارشاد فرمائيلي دي چې مسكين هغه نه دې كوم چې په سوال كولو باندې يو يا دوه كهجورې يا دوه نمرئ واخلي او واپس شي او د هغه د واپس كولو د پاره دومره كافي وي، مسكين خو هغه دې كوم چې د حاجت نه باوجود د سوال نه بچ كيږي كه تاسو غواړئ نو د قران دا ايت اولولئ (لَا يَسْئَلُونَ النَّاسَ إِلْحَافًا) مطلب دا دې چې د صدقاتو او خيراتونو مستحق صرف هغه خلق نه دي څوک چې دربه در گرځي او خير غواړي، بلكه اصل مسكين او د صدقاتو حقدار هغه خلق دي څوک چې محتاجئ نه باوجود سوال نه كوي، د سوالگرو طريقه په انختلو سره سوال كول وي.

## ۵۱- باب: (وَأَحَلَّ اللَّهُ الْبَيْعَ وَحَرَّمَ الرِّبَا)

الْمَسُّ الْجُنُونُ.

[۴۲۶۶] حَدَّثَنَا عُمَرُ بْنُ حَفْصِ بْنِ غِيَاثٍ حَدَّثَنَا أَبِي حَدَّثَنَا الْأَعْمَشُ حَدَّثَنَا مُسْلِمٌ عَنْ مَسْرُوقٍ عَنْ عَائِشَةَ - رضى الله عنها - قَالَتْ لَمَّا نَزَلَتِ الْآيَاتُ مِنْ آخِرِ سُورَةِ الْبَقَرَةِ فِي الرِّبَا قَرَأَهَا رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - عَلَى النَّاسِ، ثُمَّ حَرَّمَ التِّجَارَةَ فِي الْخَمْرِ.

**قوله:** الْمَسُّ الْجُنُونُ: په ايت كريمه كښې دى (لَا يَقُومُونَ إِلَّا كَمَا يَقُومُ الَّذِي يَتَخَبَّطُهُ الشَّيْطَانُ مِنَ الْمَسِّ) فرمائي چې په دې كښې (مس) په معنى د ليونتوب دې.

ددې باب نه واخله تر د (وَاتَّقُوا يَوْمًا تُرْجَعُونَ فِيهِ إِلَى اللَّهِ) پورې ټول ايتونه د حرمت ربا په باره كښې نازل شوى دى ددې وجې امام بخارى دهر ايت لاندې صرف يو حديث د حرمت ربا نقل كړې دې كوم چې د حضرت عائشې ﷺ نه مروى دې.

حضرت عائشه ﷺ فرمائي چې كله د سود په باره كښې د سورة بقره ايتونه نازل شول نو رسول الله ﷺ دا اولوستل او خلقو ته ئې واورول، او بيا ئې د شرابو تجارت حرام كړو.

**يو اشكال او د هغې جواب:** دلته دا اشكال كيږي چې د سود د حرمت په باره كښې نازليدونكى د سورة بقره ايتونه خو بيخي په آخره كښې نازل شوي وو. او د شرابو حرمت خو د غزوه احد نه پس شوې وو، او په هغه وخت كښې ددې تجارت هم ممنوع گرځولې شوې وو. نو بيا دا څه خبره ده چې كله رسول الله ﷺ د سود د ايتونو نه د سود د حرمت اعلان اوكړو نو د شرابو د حرمت اعلان ئې هم اوكړو په دغه وخت كښې ددې څه موقع وه؟

ددې جواب دادې چې د سود د حرمت د اعلان سره ئې د شرابو د تجارت د حرمت اعلان ددې د قباحت شناعت او شدت حرمت ظاهرولود پاره وو، چونکه په شدت حرمت او قباحت کښې دواړه یو شان یا نژدې دی ،دا هم ممکن ده چه په دغه وخت کښې د نبی ﷺ په مجمع کښې داسې خلق محسوس کړې وی چاته چې د تجارت خمر د حرمت علم نه وو ددې وجې نبی کریم ﷺ ددې اعاده او تکرار اوکړلو.[1]

## ۵۲-باب: (يَمْحَقُ اللّٰهُ الرِّبَا) يذهبه

[۴۲۶۷] حَدَّثَنَا بِشْرُ بْنُ خَالِدٍ أَخْبَرَنَا مُحَمَّدُ بْنُ جَعْفَرٍ عَنْ شُعْبَةَ عَنْ سُلَيْمَانَ سَمِعْتُ أَبَا الضُّحَى يُحَدِّثُ عَنْ مَسْرُوقٍ عَنْ عَائِشَةَ أَنَّهَا قَالَتْ لَمَّا أُنْزِلَتِ الآيَاتُ الأَوَاخِرُ مِنْ سُورَةِ الْبَقَرَةِ خَرَجَ رَسُولُ اللّٰهِ -صلى الله عليه وسلم- فَتَلاَهُنَّ فِي الْمَسْجِدِ، فَحَرَّمَ التِّجَارَةَ فِي الْخَمْرِ.

## ۵۳- باب: (فَأْذَنُوا بِحَرْبٍ) فَاعْلَمُوا.

[۴۲۶۸] حَدَّثَنِي مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ حَدَّثَنَا غُنْدَرٌ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ مَنْصُورٍ عَنْ أَبِي الضُّحَى عَنْ مَسْرُوقٍ عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ لَمَّا أُنْزِلَتِ الآيَاتُ مِنْ آخِرِ سُورَةِ الْبَقَرَةِ قَرَأَهُنَّ النَّبِيُّ -صلى الله عليه وسلم- فِي الْمَسْجِدِ، وَحَرَّمَ التِّجَارَةَ فِي الْخَمْرِ.

## ۵۴-باب: (وَإِنْ كَانَ ذُو عُسْرَةٍ فَنَظِرَةٌ إِلَى مَيْسَرَةٍ)

[۴۲۶۹] وَقَالَ لَنَا مُحَمَّدُ بْنُ يُوسُفَ عَنْ سُفْيَانَ عَنْ مَنْصُورٍ وَالأَعْمَشِ عَنْ أَبِي الضُّحَى عَنْ مَسْرُوقٍ عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ لَمَّا أُنْزِلَتِ الآيَاتُ مِنْ آخِرِ سُورَةِ الْبَقَرَةِ قَامَ رَسُولُ اللّٰهِ -صلى الله عليه وسلم- فَقَرَأَهُنَّ عَلَيْنَا، ثُمَّ حَرَّمَ التِّجَارَةَ فِي الْخَمْرِ.

**په روایت باب او ایت باب کې مناسبت:** اسماعیلی اعتراض کړې دې چې د روایت الباب او ترجمة الباب کښې څه مناسبت نشته ځکه چې د ایت تعلق د قرض سره دې او د روایت تعلق د سود اوتجارت خمرد حرمت سره دې ،ددې وجې د سود په ایتونو کښې ددې ذکربې موقعې دې[2] مونږ ددې جواب ورکړې دې چې ذکر شوې ایت هم د سود د ایتونو سره نازل شوې دې ددې وجې امام بخاری په دې مناسبت سره دا دلته ذکر کړو.

حضرت گنګوهی رحمه الله د باب د روایت سره مناسبت بیانوی او فرمائی «مناسبة برواية الواردة فيه من حيث ان المامور به هو الانظار والتصديق فكيف بمن يأخذ زيادة على اصله ماله»[3] یعنی په ایت باب کښې مدیون ته مهلت ورکولو په هغه باندې صدقه کول او قرض معاف کولو حکم ترغیب دې

[1] عمدة القاری ۱۱/۲۰۰ کتاب البیوع باب اكل الرباء وشاهده وكاتبه)-
[2] عمدة القاری ۱۸/۱۳۲)-
[3] لامع الدراری ۹/۳۴)-

نو هر کله چې د اصل راس المال په باره کښې دا حکم دې نو ددې نه زیاتی د سود په ډول اخستلو به څنګه اجازت ورکولې شی د حضرت ګنګوهی ددې توجیه حاصل دادې چې د ذکر شوی ایت نه د سود حرمت اګرچه په عبارت النص سره ثابت دې د دلالت النص په طور سره ددې ایت نه د سود حرمت ثابتیږی، ددې وجې د باب د ایت ذکر دلته بې موقعې نه دې.

## ۵۵- باب: (وَاتَّقُوا يَوْمًا تُرْجَعُونَ فِيهِ إِلَى اللَّهِ).

[۴۲۷۰] حَدَّثَنَا قَبِيصَةُ بْنُ عُقْبَةَ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ عَاصِمٍ عَنِ الشَّعْبِيِّ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ -رضي الله عنهما- قَالَ آخِرُ آيَةٍ نَزَلَتْ عَلَى النَّبِيِّ -صلى الله عليه وسلم- آيَةُ الرِّبَا.

**د روایت باب متعلق یو اشکال او دهغې جواب:** دلته اشکال کیږی چې په روایت باب کښې ئې د سود ایت د نزول په اعتبار سره آخری ایت ګرځولې دې او ابن جریر طبری رحمه الله د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما نه دا نقل کړې دی چه آخری ایت (وَاتَّقُوا يَوْمًا تُرْجَعُونَ فِيهِ إِلَى اللَّهِ) دې او دا د سود ایت نه دې.

ددې جواب دادې چې د (احل الله آلبیع وحر م الربا) نه واخله تر د (وَاتَّقُوا يَوْمًا) پورې ټول ایتونه د سود په باره کښې یو ځل نازل شوی وو. حضرت ابن عباس رضي الله عنهما د بخاری په روایت کښې د ابتدائی ایتونو ذکر کړې دې او د ابن جریر طبری په روایت کښې هغوی د آخری ایت ذکر کړې دې[1].

یو بل تعارض د حضرت براء ابن عازب د روایت سره دې په هغې کښې دی چې اخری ایت د کلاله دې او ابن عباس رضي الله عنهما (وَاتَّقُوا يَوْمًا تُرْجَعُونَ فِيهِ إِلَى اللَّهِ) ته اخری ایت وائی.

علامه کرمانی ددې جواب دا ورکړې دې چې دواړو حضراتو د خپل خپل علم مطابق وئیلې دی[2].

بعضو حضراتو جواب ورکړې دې چې د میراث په باره کښې آخری ایت د کلاله دې او د حضرت براء ابن عازب په روایت کښې هم په دې اعتبار سره دې ته اخری ایت وئیلې شوې دې او د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما په روایت کښې د سود ایت د عامو ایاتونو په اعتبار سره اخری ایت وئیلې شوې دې نو څه تعارض نشته[3].

## ۵۶- باب: وَإِنْ تُبْدُوا مَا فِي أَنْفُسِكُمْ أَوْ تُخْفُوهُ يُحَاسِبْكُمْ بِهِ اللَّهُ فَيَغْفِرُ لِمَنْ يَشَاءُ وَيُعَذِّبُ مَنْ يَشَاءُ وَاللَّهُ عَلَى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ

[۴۲۷۱] حَدَّثَنَا مُحَمَّدٌ حَدَّثَنَا النُّفَيْلِيُّ حَدَّثَنَا مِسْكِينٌ عَنْ شُعْبَةَ عَنْ خَالِدٍ الْحَذَّاءِ عَنْ مَرْوَانَ الأَصْفَرِ عَنْ رَجُلٍ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ -صلى الله عليه وسلم- وَهُوَ ابْنُ عُمَرَ أَنَّهَا قَدْ

---

[1] فتح الباری ۲۰۵/۸)-
[2] شرح الکرمانی ۴۷،۴۶/۱۷)-
[3] شرح الکرمانی ۴۶،۴۷/۱۸، و فتح الباری ۲۰۵/۸)-

نسخت (وان تبدوا ما في انفسكم او تخفوه) الاية.

په دې ايت کښې دی چه څه ستاسو په زړونو کښې دی برابره ده که تاسو ئې ښکاره کوئی او که تاسو ئې پټونی د هغې په باره کښې الله تعالی ستاسو محاسبه کوی بيا ددې نه پس چې چاته غواړی بخښنه به اوکړی او چې چاته غواړی عذاب به ورکړی.

**د ايت کريمه تفسير:** کله چې دا ايت نازل شو نو صحابه رضی الله عنهم ډير پريشانه شول چې غير اختياری وسوسې او خيالات که په دې باندې نيول کيږی نو څوک به بيا نجات مومی. صحابه کرام د نبی ﷺ په خدمت کښې حاضر شول او د خپلې پريشانتيا ذکر ئې اوکړو ، نبی ﷺ اوفرمائيل دا د الله حکم دې او تاسو (سمعنا واطعنا) وائي ی.[1]

ددې نه يو کال پس آيت کريمه (لا يكلف الله نفسا الا وسعها) نازل شو نو دې اولنې ايت منسوخ کړو لکه څنګه چې په روايت باب کښې تصريح ده .

خو امام مازری په دې باندې اشکال کړې دې چې د نسخې ضرورت به هله وی کله چې جمع بين الايتين ممکن نه وی حال دا دې چې دلته دواړه جمع کولې شی او دا وئيلې شی چې (وان تبدوا ما في انفسكم او تخفوه يحاسبكم به الله) کښې هغه خيالاتو باندې د نيولو ذکر دې کوم چې اختيار وی او په (لا يكلف الله) دا بيان شوی دی چې په غير اختياری خيالاتو باندې نيول نشته ([2])

خو د امام مازری په خپله دا شکال محل د نظر دې څکه چرته په اولنی ايت کښې صرف د اختياری خيالاتو او وسوسو د نيولو ذکر وو نو بيا صحابه په دې باندې ولې پريشانه شوې وو او که هغوی پريشانه شوې وو نو نبی ﷺ به هغوی ته ښودلې وو چې د محاسبې ذکر په اختياری خيالاتو باندې دې په غير اختياری خيالاتو باندې نه دې .نو هم دا وئيلې شی چې په اولنی ايت کښې په اختياری او غير اختياری هر قسم خيالاتو باندې د نيولو ذکر وو او په نورو اياتونو کښې دا اوئيلې شو چې په غير اختياری خيالاتو باندې نيول نشته.صرف په اختياری خيالاتو باندې به نيول وی او د نيول به هم هغه وخت کښې وی کله چې د اختياری خيالات سرې په سوچ کښې راولی او دې سره سره بيا د هغې مطابق په زړه باندې د هغې اظهار هم شروع کړی باقی که چرته داسې په زړه کښې څه خبره راشی او د هغې اظهار اونکړی او پکښې زيات سوچ او فکر نه کار وانخستلې شی نو په دې باندې به څه مواخذه او نيول نه وی.([3])

**قوله: حدثنا محمد:** دلته محمد غير منسوب دې د والد نوم ئې ذکر نه دې حافظ ابن حجر په

---

[1]) فتح البارى ٢٠٦/٨، والدر المنثور فى تفسير بالماثور ٣٤٠/١) تفسير ابن كثير ٣٣٨/١) تفسير كبير ١٢٥/٧)-

[2]) تفسير المنير ٢٢٠/٣)-

[3]) المرقات شرح مشكوة ١٣٤/١)-

فتح البارى كښې (١)ددې په تعيين كښې درې اقوال ذكر كړې دي . د كلاباذى قول دې چې ددې نه محمد بن يحيى ذهلى مراد دې حاكم فرمائى چې ددې نه محمد بن ابراهيم بوشنجى مراد دې او ابونعيم د كلام نه معلوميږى ددې نه محمد بن ادريس ابو حاتم رازى مراد دې.

**ابوجعفر عبدالله بن محمد نفيلي:** د (محمد) شيخ نفيلى دې دده نوم عبدالله بن محمد بن على او ابوجعفر دده كنيت دې.

امام ابوداود رحمه الله ددوى په باره كښې فرمائى (ما رايت احفظ من النفيلى)

امام نسائى فرمائى (ثقة) دارقطنى فرمائى (ثقة مامون محتج)

ددوى وفات په كال ٢٣٢ هجرئي كښې شوې وو. د امام مسلم نه علاوه باقى حضراتو دده نه روايات نقل كړې دى او په بخارى شريف كښې ددوى صرف دا يو روايت دې. (٢) د نفيلى شيخ مسكين ابن بكر حرانى دې، دوى د سفيان ثورى، شعبه بن الحجاج او مالك بن انس وغيره نه روايات نقل كوى او ددوى روايات امام بخارى، مسلم ، امام ابوداود امام نسائي نقل كړې دى. په بخارى شريف كښې ددوى صرف دا يو حديث دې.

امام احمد رحمه الله ددوى په باره كښې فرمائى (لاباس به ولكن فى حديثه خطا)

يحيى ابن معين فرمائى (لاباس به)

امام ابو حاتم فرمائى (لاباس به وكان صالح الحديث يحفظ الحديث)

ددوى وفات په ١٩٨ هجرئي كښې شوې وو. (٣)

## ٥٧- بَاب: آمَنَ الرَّسُولُ بِمَا أُنْزِلَ إِلَيْهِ مِنْ رَبِّهِ

[٤٢٧٢] حَدَّثَنِي إِسْحَاقُ أَخْبَرَنَا رَوْحٌ أَخْبَرَنَا شُعْبَةُ عَنْ خَالِدٍ الْحَذَّاءِ عَنْ مَرْوَانَ الْأَصْفَرِ عَنْ رَجُلٍ مِنْ أَصْحَابِ رَسُولِ اللَّهِ- صلى الله عليه وسلم -- قَالَ أَحْسِبُهُ ابْنَ عُمَرَ- (إِنْ تُبْدُوا مَا فِي أَنْفُسِكُمْ أَوْ تُخْفُوهُ) قَالَ نَسَخَتْهَا الْآيَةُ الَّتِي بَعْدَهَا. [ر: ٤٢٧١]

**قوله:** وَقَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ ،اصراً: عهداً: اشاره ده (رَبَّنَا وَلَا تَحْمِلْ عَلَيْنَا إِصْرًا) طرف ته . چې په دې كښې د اصرا معنى عهد او پيمان دې .او د عهد او پيمان نه مراد داسې حكم دې د كومو چې پورا كول او په هغې باندې د عمل كولو طاقت نه وى . يعنى اې زمونږه ربه په مونږ باندې داسې عهد مه ايږده .د كومې د پوره كولو چې مونږ كښې طاقت نه وى علامه زمخشرى د اصرا معنى په بوج سره كړې ده.(٤)

---

(١) فتح البارى ٢٠٦/٨)

(٢) تهذيب الكمال ٨٨،٩٢/١٦) وفتح البارى ٢٠٦/٨)-

(٣) تهذيب الكمال ٤٨٤،٤٨٦/٢٧) الجرح والتعديل (٨) الترجمه (١٥٢١(وسير اعلام النبلاء ٢٠٩/٩) وميزان الاعتدال ٤/الترجمه ٨٤٧٩)-

(٤) تفسير كشاف ٢٩٢/١)-

او هم دا ددې اصل معنی ده خو د عهد پابندی هم بوج وی او ګران معلومیږی ددې وجې د (اصر) تفسیر په عهد سره شوې دې.

## ۵۸- باب: سورة آل عمران

تُقَاةٌ وَتَقِيَّةٌ وَاحِدَةٌ (صِرٌّ) بَرْدٌ (شَفَا حُفْرَةٍ) مِثْلُ شَفَا الرَّكِيَّةِ، وَهُوَ حَرْفُهَا (تُبَوِّءُ) تَتَّخِذُ مُعَسْكَرًا، الْمُسَوَّمُ الَّذِي لَهُ سِيمَاءٌ بِعَلَامَةٍ أَوْ بِصُوفَةٍ أَوْ بِمَا كَانَ (رِبِّيُّونَ) الْجَمِيعُ، وَالْوَاحِدُ رِبِّيٌّ (تَحُسُّونَهُمْ) تَسْتَأْصِلُونَهُمْ قَتْلًا. (غُزًّا) وَاحِدُهَا غَازٍ (سَنَكْتُبُ) سَنَحْفَظُ (نُزُلًا) ثَوَابًا، وَيَجُوزُ وَمُنْزَلٌ مِنْ عِنْدِ اللّٰهِ كَقَوْلِكَ أَنْزَلْتُهُ. وَقَالَ مُجَاهِدٌ: وَالْخَيْلُ الْمُسَوَّمَةُ الْمُطَهَّمَةُ الْحِسَانُ. قَالَ سَعِيدُ بْنُ جُبَيْرٍ وَعَبْدُ اللّٰهِ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ أَبْزَى الرَّاعِيَةُ الْمُسَوَّمَةُ. وَقَالَ ابْنُ جُبَيْرٍ (وَحَصُورًا) لَا يَأْتِي النِّسَاءَ. وَقَالَ عِكْرِمَةُ (مِنْ فَوْرِهِمْ) مِنْ غَضَبِهِمْ يَوْمَ بَدْرٍ. وَقَالَ مُجَاهِدٌ (يُخْرِجُ الْحَيَّ) النُّطْفَةُ تَخْرُجُ مَيِّتَةً وَيُخْرِجُ مِنْهَا الْحَيَّ. الْإِبْكَارُ أَوَّلُ الْفَجْرِ، وَالْعَشِيُّ مَيْلُ الشَّمْسِ- أُرَاهُ- إِلَى أَنْ تَغْرُبَ.

**د کلماتو تشریح:**

**قوله: تُقَاةٌ وَتَقِيَّةٌ وَاحِدَةٌ:** (لَا يَتَّخِذِ الْمُؤْمِنُونَ الْكٰفِرِينَ أَوْلِيَآءَ مِنْ دُونِ الْمُؤْمِنِينَ ۚ وَمَنْ يَفْعَلْ ذٰلِكَ فَلَيْسَ مِنَ اللّٰهِ فِي شَيْءٍ إِلَّآ أَنْ تَتَّقُوا مِنْهُمْ تُقٰىةً ۗ وَيُحَذِّرُكُمُ اللّٰهُ نَفْسَهُ ۗ وَإِلَى اللّٰهِ الْمَصِيرُ)

مسلمانان دې ایمانداران پرېښودلو سره کافران په دوستۍ نه نیسی، کوم کس چې داسې اوکړل نو د هغه د الله سره څه تعلق نشته، په داسې صورت کښې (د ظاهرئی دوستۍ اجازت دې) که تاسو په دوی کښې د چا نه (قوی) ویره کوئی (نو هلته د ضرر لرې کولو حاجت دې) او الله تعالی تاسو د خپل ځان نه ویروی او هم هغه طرف ته واپس کیدل دی،

امام بخاری فرمائی چې (تقاة) او (تقیة) دواړه په یو معنی دی دا دواړه د باب ضرب نه مصدر دې، (تقی یتقی، تقاة وتقیة وتقوی) په اصل کښې (وقی) دې خوواؤ په تاء باندې بدل کړې شوې دې او تاء د حروف اصلیه ځنی ده.[1]

**قوله: صِرٌّ: برد:** (مَثَلُ مَا يُنْفِقُونَ فِي هٰذِهِ الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا كَمَثَلِ رِيحٍ فِيهَا صِرٌّ أَصَابَتْ حَرْثَ قَوْمٍ ظَلَمُوٓا أَنْفُسَهُمْ فَأَهْلَكَتْهُ ۗ)

په دنیاوی ژوند کښې د کافرانو د خرچ کولو مثال د هغه هوا پشان دې چې په هغې کښې تیزه یخنی وی او هغه د داسې قوم په پټی باندې اولګی چا چې په خپل ځان باندې ظلم کړې وی، نو هغه هوا د غه پټی برباد کړی دغه شان ددې کافرانو خرچ کول په اخرت کښې ټول ضائع دی

**قوله: شَفَا حُفْرَةٍ) مِثْلُ شَفَا الرَّكِيَّةِ، وَهُوَ حَرْفُهَا:** (وَكُنْتُمْ عَلٰى شَفَا حُفْرَةٍ مِنَ النَّارِ فَأَنْقَذَكُمْ مِنْهَا ۗ) او تاسو خلق د اور د کندې په غاړه باندې وئی نو الله تعالی تاسو ته نجات درکړو په

[1] عمدة القاری ۱۸/۱۳۶، ۱۳۵-

دې کښې د شفا حفرة معنى ده «د کندې په غاړه» څنګه چې د شفا الركبة معنى ده «کوهی غاړه» کونی ته وائی.

**قوله: (تُبَوِّءُ) تَتَّخِذُ مُعَسْكَرًا**: «وَإِذْ غَدَوْتَ مِنْ أَهْلِكَ تُبَوِّئُ الْمُؤْمِنِينَ مَقَاعِدَ لِلْقِتَالِ» او کله چې تاسو خپل کور ته د صبا په وخت کښې راووتې او مسلمانانو ته مو په مورچه کښې ځائې ورکولو.

د «تبوئ» ترجمه امام په «تتخذ معسكرا» سره کړې ده معسکر لښکر ته وائی يعنى چې کله هغوی ته په مورچو او د جنګ صفونو کښې دننه مقرر کول او لګول .دا د ابوعبيده تفسير دې ګڼی نو نور حضرات وائی «تُبَوِّئُ الْمُؤْمِنِينَ مَقَاعِدَ لِلْقِتَالِ» [1] «ای تنزل المومنین مقاعد للقتال»

**قوله: الْمُسَوَّمُ الَّذِي لَهُ سِيمَاءٌ بِعَلَامَةٍ أَوْ بِصُوفَةٍ أَوْ بِمَا كَانَ**: «زُيِّنَ لِلنَّاسِ حُبُّ الشَّهَوَاتِ مِنَ النِّسَاءِ وَالْبَنِينَ وَالْقَنَاطِيرِ الْمُقَنْطَرَةِ مِنَ الذَّهَبِ وَالْفِضَّةِ»

**قوله: وَالْخَيْلِ الْمُسَوَّمَةِ**: امام بخاری فرمائی چې مسوم هغه څيز ته وائی په کوم کښې چې څه نښه او علامه لګيدلې وی.يا وړنی لګيدلې وی،يا هر څه څيز چې ورسره اولګوی، د «سوم» معنى ده نښه لګول ، د باب تفعيل نه د اسم مفعول صيغه ده په معنى د نښه دار، په ايت کريمه کښې «خيل المسومة» نه نښه دار اسونه مراد دی، يعنی ښه او غوره اسونه ،څکه چې غوره اسونو باندې به عربو د امتياز نښې لګولې.امام مجاهد د «خيل المسومة» تفسير کوی «المطهمة الحسان» يعنی پوره ښه اسونه، «المطهمة»د باب تفعيل نه اسم مفعول صيغه ده. د طهم معنى ده مکمل کيدل، خړب.

د مجاهد دا تعليق عبدبن حميد موصولا ذکر کړې دې [2]

**قوله: (رِبِّيُّونَ) الْجَمِيعُ ، وَالْوَاحِدُ رِبِّيٌّ**: «وَكَأَيِّنْ مِنْ نَبِيٍّ قَاتَلَ مَعَهُ رِبِّيُّونَ كَثِيرٌ» امام بخاری فرمائی چې په ايت کريمه کښې ربيون جمع ده ،او ددې مفرد «ربی» دې ، او دا منسوب دې رب طرف ته . هغه عالم ته وائی چې هغه هم الله طرف ته منسوب وی، او هغوی لره د الله طرف ته دعوت ورکوی.

بعضې حضرات د «رِبِّيُّونَ» تفسير کوی،«الذين يربون بالعلم» د علم په ذريعه چې د نورو خلقو تربيت کوی.په اول کښې ورته اسان اسان مسائل بيانوی او په اخر کښې د صلاحيت پيدا کيدو نه پس دقيق او ګران مسائل ورته بنائی. بيا اول ورته جزئيات بنائی او ددې نه پس ورته د کلياتو تعليم ورکوی.[3]

**قوله: تَحُسُّونَهُمْ) تَسْتَأْصِلُونَهُمْ قَتْلًا**: «وَلَقَدْ صَدَقَكُمُ اللَّهُ وَعْدَهُ إِذْ تَحُسُّونَهُمْ بِإِذْنِهِ» امام بخاری

---

[1] وفی العمدة (۱۸/۱۳۶) والمعقد جمع مقعد وهو موضع القعود)-

[2] عمدة القاری ۱۸/۱۳۶)-

[3] الجامع لاحكام القران ۲/۱۴۸)-

فرمائی چه په ایت کښې د (تحسونهم) معنی قتل کول.او د جرړې نه ویستل دی.او الله تعالی تاسو سره خپله وعده رښتونې کړه، کله چې تاسو دغه کافران د الله په حکم باندې قتلول او د جرړې نه مو ختمول.

**قوله:** غُزًّا) وَاحِدُهَا غَازٍ: (وَقَالُوا لِإِخْوَانِهِمْ إِذَا ضَرَبُوا فِي الْأَرْضِ أَوْ كَانُوا غُزًّى لَّوْ كَانُوا عِنْدَنَا مَا مَاتُوا وَمَا قُتِلُوا)

او هغوی (منافقان) وائی د خپلو رونړو په باره کښې چې هغوی په څه زمکه کښې سفر کړې وی (او هلته اتفاقا مړ شی) یا هغه خلق چرته په جهاد کښې خی (او په هغې کښې قتل کړې شی نو دا منافقان وائی) که دا خلق زمونږ سره وې نو نه به وو مړه شوې او نه به قتل شوی.

امام بخاری فرمائی چه په ایت کریمه کښې (غزا) د (غاز) جمع ده غزی غزا او جهاد کونکی ته وائی.

**قوله:** سَنَكْتُبُ) سَنَحْفَظُ: (لَقَدْ سَمِعَ اللَّهُ قَوْلَ الَّذِينَ قَالُوا إِنَّ اللَّهَ فَقِيرٌ وَنَحْنُ أَغْنِيَاءُ ۘ سَنَكْتُبُ مَا قَالُوا)

په ایت کریمه کښې د (سنکتب) معنی ده (سنحفظ) مونږ حفاظت کوو.

**قوله:** (نُزُلًا) ثَوَابًا، وَيَجُوزُ وَمُنْزَلٌ مِنْ عِنْدِ اللَّهِ كَقَوْلِكَ أَنْزَلْتُهُ: (لَٰكِنِ الَّذِينَ اتَّقَوْا رَبَّهُمْ لَهُمْ جَنَّاتٌ تَجْرِي مِنْ تَحْتِهَا الْأَنْهَارُ خَالِدِينَ فِيهَا نُزُلًا مِنْ عِنْدِ اللَّهِ ۗ وَمَا عِنْدَ اللَّهِ خَيْرٌ لِلْأَبْرَارِ) خو چه کوم کسان د رب نه ویریږی د هغوی د پاره باغونه دی چه د هغې د لاندې به نهرونه بهیږی او هغوی به په دې کښې همیشه همیشه د پاره وی دا به الله د طرفه ته میلمستیا وی او څه چې د الله سره دی هغه ډیر ښه دی.د نیکانو خلقو د پاره.

امام بخاری فرمائی چه په دې ایت کښې د (نزلا) معنی د (ثوابا) ده . یعنی دا به د الله د طرفه بدله وی او دا هم ممکن ده چه د (نزلا) معنی په (منزل) سره اوکړې شی. منزل د باب افعال نه د اسم مفعول صیغه ده هغه څیز کوم چې د میلمستیا په ډول میلمه ته وړاندې کړې شی ، وائی(انزلته) ما هغه میلمه کړو.د هغه وړاندې مې د میلمستیا په ډول څه پیش کړل، په دې صورت کښې به د ایت مطلب دا وی چه دا باغونه به د الله د طرفه د میلمستیا په ډول مومنانو ته پیش کولې شی.

و **قوله:** وَقَالَ ابْنُ جُبَيْرٍ (وَحَصُورًا) لَا يَأْتِي النِّسَاءَ: (أَنَّ اللَّهَ يُبَشِّرُكَ بِيَحْيَىٰ مُصَدِّقًا بِكَلِمَةٍ مِنَ اللَّهِ وَسَيِّدًا وَحَصُورًا وَنَبِيًّا مِنَ الصَّالِحِينَ)

حضرت سعید بن جبیر رحمه الله د (حَصُورًا) تفسیر کړې دې هغه کس چه ښځو ته نه ورځی خو دلته ددې معنی د نامرد نه ده.دا په اصل کښې د باب سمع نه د مبالغې صیغه ده.(حصرا حصرا) ادریدل، بندیدل، د (حصورا) نه داسې کس مراد دې چه هغه په خپلو شهواتو باندې قابو لری او خپل نفس په ضبط کښې ساتونکې وی.دلته هم دا مراد دې چه حضرت یحیی علیه السلام د طاقت، قوت اوشهوت لرلو باوجود دخپل نفس په قابو کولو باندې قادر وو او هغوی ښځو ته نه ورتلل[1]

---

[1]) قال الراغب فی المفردات (۱۲۰) فالحصور الذی یاتی النساء امامن العنة وامام العفة والاجتهاد فی ازالة الشهود والثانی اظهر فی الاية لان بذلک یستحق المحمدة)-

**قوله**: وَقَالَ عِكْرِمَةُ (مِنْ فَوْرِهِمْ) مِنْ غَضَبِهِمْ يَوْمَ بَدْرٍ: (بَلَىٰ إِنْ تَصْبِرُوا وَتَتَّقُوا وَيَأْتُوكُمْ مِنْ فَوْرِهِمْ هَٰذَا)
یعنی که تاسو ثابت قدم پاتې کیږئ او تقوی اختیاوئ؛ او هغه خلق په تاسو باندې په غصه کښې حمله اوکړی ،عکرمه د (فور) تفسیر په غضب سره کړې دې بعضې حضراتو ددې تفسیر کړې دې (بلا تاخیر) فورا) د عکرمه دا تعلیق طبری موصولاً نقل کړې دې.[1]

**قوله**: الإِبْكَارُ أَوَّلُ الْفَجْرِ، وَالْعَشِيُّ مَيْلُ الشَّمْسِ - أُرَاهُ - إِلَى أَنْ تَغْرُبَ: (وَاذْكُرْ رَبَّكَ كَثِيرًا وَسَبِّحْ بِالْعَشِيِّ وَالْإِبْكَارِ) امام بخاری فرمائی چې د (ابکار) نه د صبا ابتدائی حصه مراد ده او د (عشی) نه زما په خیال د نمر د زوال نه واخله تر نمر پریوتو پورې منیخمې وخت مراد دې.

## ۵۸-باب: مِنْهُ آيَاتٌ مُحْكَمَاتٌ

وَقَالَ مُجَاهِدٌ الْحَلَالُ وَالْحَرَامُ. (وَأُخَرُ مُتَشَابِهَاتٌ) يُصَدِّقُ بَعْضُهُ بَعْضًا، كَقَوْلِهِ تَعَالَى (وَمَا يُضِلُّ بِهِ إِلَّا الْفَاسِقِينَ) وَكَقَوْلِهِ جَلَّ ذِكْرُهُ (وَيَجْعَلُ الرِّجْسَ عَلَى الَّذِينَ لَا يَعْقِلُونَ) وَكَقَوْلِهِ (وَالَّذِينَ اهْتَدَوْا زَادَهُمْ هُدًى) (زَيْغٌ) شَكٌّ (ابْتِغَاءَ الْفِتْنَةِ) الْمُشْتَبِهَاتِ (وَالرَّاسِخُونَ) يَعْلَمُونَ (يَقُولُونَ آمَنَّا بِهِ)

[۴۲۷۳] حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مَسْلَمَةَ حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ التُّسْتَرِيُّ عَنِ ابْنِ أَبِي مُلَيْكَةَ عَنِ الْقَاسِمِ بْنِ مُحَمَّدٍ عَنْ عَائِشَةَ -رضی الله عنها- قَالَتْ:
تَلَا رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - هَذِهِ الْآيَةَ (هُوَ الَّذِي أَنْزَلَ عَلَيْكَ الْكِتَابَ مِنْهُ آيَاتٌ مُحْكَمَاتٌ هُنَّ أُمُّ الْكِتَابِ وَأُخَرُ مُتَشَابِهَاتٌ فَأَمَّا الَّذِينَ فِي قُلُوبِهِمْ زَيْغٌ فَيَتَّبِعُونَ مَا تَشَابَهَ مِنْهُ ابْتِغَاءَ الْفِتْنَةِ وَابْتِغَاءَ تَأْوِيلِهِ) إِلَى قَوْلِهِ (أُولُو الْأَلْبَابِ) قَالَتْ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - «فَإِذَا رَأَيْتَ الَّذِينَ يَتَّبِعُونَ مَا تَشَابَهَ مِنْهُ، فَأُولَئِكَ الَّذِينَ سَمَّى اللَّهُ، فَاحْذَرُوهُمْ».

د ایات محکمات او ایت متشابهات نه څه مراد دی په دې باره کښې مختلف اقوال دی:
① د بعضې حضراتو رائې داده چې محکم هغه ایت ته وائی کوم چې ناسخ وی او متشابهات هغه ایت ته وائی کوم چه منسوخ وی.[2]
② بعضې حضراتو وئیلې دی چې محکم هغه ایات دی چه مفهوم او معنی ئې ښکاره وی او متشابه هغې ته وائی چه مفهوم او معنی ئې غیر واضح وی.[3]
③ بعضې وئیلې دی چې محکم هغې ته وائی چه په معنی ئې هغه کس پوهیدې شی چې د

---

[1]) عمدة القاری ۱۸/۱۳۷)-
[2]) روح المعانی ۳/۸۲ وتفسیر البغوی ۱/۲۷۹)-
[3]) فتح الباری ۸/۲۱۰)-

عربئ ژبې او قواعدو نه واقف وی او متشابه هغه دی چې د هغې معنی د الله نه سوا بل څوک نه بیژنی [۱]

④بعضو ونیلی دی چه محکم هغې ته وائی چه دهغې په معنی هر هغه سړې پوهیږی چه هغه د عربئ ژبې او دهغې د قواعدو نه خبر وی، او متشابه هغې ته وائی چه دهغې په معنی د الله تعالی نه سوا بل څوك نه پوهیږی.

⑤امام رازی رحمه الله فرمائیلې دی چې لفظ به په خپله معنی کښې یا د غیر احتمال لری یا نه لری که د غیر احتمال نه لری نونص ورته وائی او که د غیر احتمال لری نو یو جانب به راجح وی، یا به نه وی که راجح وی نو ظاهر ورته وائی او مرجوح طرف ته مؤول وائی او که راجح نه بلکه دواړه طرفو ته برابر او مساوی وی نو دواړه معانو ته په یو وخت د نسبت په اعتبار سره هغې ته لفظ مشترک وائی او یوې معنې طرف ته په متعین ډول نسبت کولو په اعتبار ورته محمل وائی، نو ددې تقسیم په اعتبار سره به لفظ یا نص وی یا ظاهر وی یا مؤول وی یا مشترک وی او یا مجمل وی، په دې قسمونو کښې نص او ظاهر ته محکم وائی او مؤول او مجمل ته متشابه وائی [۲]

**یو اشکال او د هغې جواب:** دلته چاته دا شکال کیدې شی چه د قران شریف د ذکر شوی ایت نه خو معلومیږی چې په قران مجید کښې ایات محکمات او ایات متشابهات دواړه قسم آیاتونه دی، خو د قران په یو بل ایت کښې دی ﴿كِتٰبٌ اُحْكِمَتْ اٰيٰتُهٗ ثُمَّ فُصِّلَتْ مِنْ لَّدُنْ حَكِيْمٍ خَبِيْرٍ﴾ [۳]، ددې نه دا معلومیږی چې د قران کریم ټول آیاتونه محکمات دی او په یو آیت کښې دی ﴿كِتٰبًا مُّتَشَابِهًا مَّثَانِيَ تَقْشَعِرُّ مِنْهُ جُلُوْدُ الَّذِيْنَ يَخْشَوْنَ رَبَّهُمْ﴾ ددې ایت نه معلومیږی چې د قران کریم ټول ایاتونه متشابهات دی [۴]

ددې حل دا دې چې په بل ایت کښې د ﴿احکمت آیاته﴾ نه د بلاغت وفصاحت احکام او اتقان او د کلام جلال مراد دې د محکم اصطلاحی معنی هلته مراد نه ده، او په دریم ایت کښې د ﴿كِتٰبًا مُّتَشَابِهًا﴾ نه مراد دا دې چې د قران مجید ټول آیاتونو د یو بل د مضمون مصدق دی او په دې کښې څه تعارض نشته، د اصطلاحی معنی متشابه مراد نه دې. [۵]

امام بخاری دلته د ﴿واخر متشابهات﴾ تفسیر کړې دې ﴿یصدق بعضه بعضا﴾ دا تفسیر بې محل دې ځکه چې دلته د متشابهات نه مراد داسې آیاتونه دی چه د هغې مفهوم واضح نه وی او په هغې کښې د وجوه کثیره احتمال وی. دا د ﴿یصدق بعضه بعضا﴾ تفسیر د ﴿کتابا متشابها﴾ سره

---

[۱]) الجامع لاحکام القران ۱۰۹/٤) او معالم التنزیل ۲۷۹/۱)-
[۲]) تفسیر کبیر ۱۸۰/۷)-
[۳]) سورة الزمرا ۲۳:۱)-
[۴]) سورة هود (۱)-
[۵]) معالم التنزیل ۲۷۸/۱) وفتح الباری ۲۱۱/۸)-

منطبق کیږي
ددې نه پس امام بخاري رحمه الله درې ایاتونه پیش کړې دي په دې کښې د هر یو ایت مضمون د بل ایت د مضمون تصدیق کوي
اولنې ایت دې ﴿وَمَا يُضِلُّ بِهِ إِلَّا الْفَاسِقِينَ﴾ ددې نه معلومه شوه چه ضلال او گمراهي هم د فاسقانو حصه ده
دویم ایت دې ﴿وَيَجْعَلُ الرِّجْسَ عَلَى الَّذِينَ لَا يَعْقِلُونَ﴾ ددې نه معلومیږي چې د کفر او شرک گندگي په هغه خلقو باندې مسلط کولې شي څوک چه د عقل نه کار نه اخلي او د عقل نه هم هغه خلق کار نه اخلي څوک چه فاسق وي، ددې ایت نه د اولنی ایت د مضمون تصدیق کیږي.
دریم ایت دې ﴿وَالَّذِينَ اهْتَدَوْا زَادَهُمْ هُدًى وَآتَاهُمْ تَقْوَاهُمْ﴾ ددې ایت نه هم د اولنو دوو آیاتونو د مضمون تائید کیږي چه په دې کښې د فاسقانو او گمراهانو تذکره ده او په دې ایت کښې فرمائیلې شوي دي چه خلق هدایت اختیار وي او په صراط مستقیم باندې د تلو کوشش کوي نو الله تعالی هغوی ته هدایت نصیب کوي او کوم خلق چې ددې کوشش نه کوي هغوی گمراه او فاسقان دي . دغه شان په اولنی دوو ایاتونو کښې چه کومه خبره کړې شوې ده هغه په دې ایت کښې په یو بل طرز سره بیان شوې ده.
**قوله: ابْتِغَاءَ الْفِتْنَةِ الْمُشْتَبِهَاتِ:** د (ابتغاء الفتنة) معنی ئې بیان کړې ده (ابتغاء المتشابهات) یعنی کوم خلق چې په متشابهاتو پسې وي او ددې په غور او فکر کښې مشغول وي چونکه ددوی دا مشغولتیا د فتنې سبب جوړیږي، ددې وجې ئې په متشابهاتو کښې غور او فکر ته (ابتغاء الفتنة) اوونیل.
**د متشابهاتو دوه قسمونه:** د متشابهاتو دوه قسمونه دي یو قسم هغه دې چه په هغې کښې غور او فکر کولو سره د معنی حصول ممکن وي لکه تقدیم ما حقه التاخیر چه د هغې په وجه د معنی په پوهیدو کښې مشکل پیښیږي یا روابط کلام محذوف وي نو په داسې قسم متشابهاتو کښې په سوچ او فکر کولو سره معنی په پوهه کښې راځي خکه چه داسې قسم مشتبهاتو کښې غور او فکر کول ممنوع نه دې.
دویم قسم هغه دې چه په هغې کښې سوچ او فکر کولو سره معنی د کلام په پوهه کښې نه راځي نو په هغې کښې سوچ او فکر کولو نه منع شوې ده.[1]
**قوله: وَالرَّاسِخُونَ يَعْلَمُونَ (يَقُولُونَ آمَنَّا بِهِ):** په ایت کښې ﴿وَالرَّاسِخُونَ فِي الْعِلْمِ﴾ کښې واو کښې د عالمانو اختلاف دې چه دا واو مستانفه دې او که عاطفه دې. امام بخاري د مجاهد نه ذکر شوې تفسیر نقل کړې دې ددې نه معلومیږي چه دا واو عاطفه دې او د ﴿وَالرَّاسِخُونَ﴾ عطف په لفظ د (الله) کیږي او مطلب دادې چې الله هم د متشابهاتو معنی پیژني او

[1] فتح الباري (۲۱۱/۸)-

راسخین فی العلم هم پیژنی خو د نه پیژندلو باوجود وائی چې مونږ په دې باندې ایمان راوړو او په دې کښې د غور او فکر کولو نه چونکه منع شوې ده، ددې وجې ترې لرې اوسیږی او دغه شان په حکم باندې عمل کوی او ثواب حاصلوی.(۱)

## ۶۰-باب: (وَإِنِّي أُعِيذُهَا بِكَ وَذُرِّيَّتَهَا مِنَ الشَّيْطَانِ الرَّجِيمِ)

[۴۲۷۴] حَدَّثَنِي عَبْدُ اللهِ بْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ أَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ سَعِيدِ بْنِ الْمُسَيَّبِ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ-رضي الله عنه-أَنَّ النَّبِيَّ-صلى الله عليه وسلم-قَالَ «مَا مِنْ مَوْلُودٍ يُولَدُ إِلاَّ وَالشَّيْطَانُ يَمَسُّهُ حِينَ يُولَدُ، فَيَسْتَهِلُّ صَارِخًا مِنْ مَسِّ الشَّيْطَانِ إِيَّاهُ، إِلاَّ مَرْيَمَ وَابْنَهَا». ثُمَّ يَقُولُ أَبُو هُرَيْرَةَ وَاقْرَءُوا إِنْ شِئْتُمْ (وَإِنِّي أُعِيذُهَا بِكَ وَذُرِّيَّتَهَا مِنَ الشَّيْطَانِ الرَّجِيمِ).

**قوله:** فَيَسْتَهِلُّ صَارِخًا مِنْ مَسِّ الشَّيْطَانِ إِيَّاهُ، إِلاَّ مَرْيَمَ: دا دې حضرت ابوهریره رضي الله عنه روایت دې فرمائی چې کله ماشوم پیدا شی نو شیطان هغه ته سکونداره ورکوی . د هغې د وجې هغه چغه کړی خو حضرت مریم علیها السلام او د هغوی ځوې حضرت عیسی علیه السلام ددې نه مستثنی دی. هغوی د پیدائش نه پس شیطان هغوی لره مس کړې نه دی.

دا روایت په کتاب احادیث الانبیاء کښې هم تیر شوې دې هلته هم تقریبا هم دا الفاظ دی(۲) په دې کښې د حضرت عیسی علیه السلام ذکر دې د حضرت مریم علیها السلام ذکر پکښې نشته.

بعضې حضراتو وئیلې دی چه په اصل کښې ذکر خو د دواړو دې خو د کتاب بدءالخلق راوی صرف یو ذکر کړې دې کیدې شی چې د دواړو ذکر راوی ته یاد نه وی پاتې شوې (۳)

دلته د مس ذکر دې نو د مس نه بی بی مریم او عیسی علیه السلام دواړه مستثنی دی، خو د (طعن) نه صرف عیسی علیه السلام مراد دې.(۴)

**ځو اشکالات او د هغې جوابونه:** سوال دا پیدا کیږی چې شیطان د ماشوم د ولادت په وخت کښې په ده باندې نوکاره ولې لګوی نو په دې باره کښې وئیلې شوی دی چې دا د شیطان د طرف نه تنبیه ده چې خیال کوه زه ستا دشمن یم نو هوښیار اوسه بل طرف ته شریعت حکم ورکړې دې چې ماشوم پیدا شی نو دده په یو غوږ کښې اذان او په بل کښې تکبیر وائې. او ده ته دا اوښایئ چې د شیطان د ضرر نه محفوظ اوسیدل غواړې نو د الله او د هغه د رسول اطاعت او تابعداری کلکه اونیسه، نو بیا هغه تا ته څه نقصان نشی رسولې.

---

(۱) فتح الباری ۸/۲۱۰)-

(۲) الفاظ الحدیث (ما من بنی آدم مولود الا یمسه الشیطان حین یولد فیستهل صارخا من مس الشیطان غیر مریم وابنها . صحیح البخاری مع فتح البخاری ۶/۴۶۹) کتاب احادیث الانبیاء باب قول الله واذکر فی الکتاب مریم...رقم الحدیث (۳۴۳۱)-

(۳) صحیح البخاری مع فتح البخاری کتاب بداء الخلق باب صفة ابلیس وجنده ،رقم الحدیث(۳۳۷)-

(۴) حواله بالا)-

علامه زمخشري ددې روايت په صحت کښې توقف کړې دې او وئيلې دی چې دا رویت په هغه وخت کښې صحيح منلې شی کله چه ددې حقيقي معنی مراد نه وی نو هغوی مجازی معنی بیان کړې ده او وئيلې ئې دی چې په حديث کښې د «مس الشيطان» نه د انسان د ګمراه کولو کوشش مراد دې د پیدائش په وخت کښې چه شیطان کله دا کوشش کوی نو ماشوم په ژړا شی ځکه چې ماشوم په دغه وخت کښې د شیطانی وسوسو سره مانوس نه وی ،حال دا چه کله ماشوم پیدا کیږی نو په هغه کښې د ګمراهئ قبلولو صلاحیت نه وی نه د عقیدې په اعتبار سره او نه د قول او عمل په اعتبار سره.

د علامه زمخشري په نيز حقيقي معنى ځکه مراد نشی اخستې چه شيطان ته په انسان باندې داسې قدرت حاصل وی چه هغه ده باندې سکوندارئی لګوی نو ددې تقاضا بیا داده چې ټول انسانان چغې وهی، خو داسې نه ده.(۱)

خو د علامه زمخشري دا اعتراض فضول دې ځکه چې په روايت کښې دا تصريح موجود ده چې ماشوم کله پیدا شی نو په هغه وخت کښې پرې شیطان سکونداره لګوی ددې نه دا چرته معلومیږی چې شیطان په انسان ټول عمر سکونداري لګوی او دا مشاهده ده چې کله ماشوم پیدا شی نو ژاړی.(۲)

په دې روايت باندې یو اشکال بل کیږی چې د «مس الشيطان» نه عيسى عليه السلام او مريم بی بی مستثنى او ګرځولې شول، ځکه چې د حضرت مريم بی بی مور دعا کړې وه «وَإِنِّي أُعِيذُهَا بِكَ وَذُرِّيَّتَهَا مِنَ الشَّيْطَانِ الرَّجِيمِ» د دغه دعا په برکت سره الله تعالى دوی مستثنى کړل، سوال خو دادې چې دا دعا خو د حضرت مريم مور کړې وه د مريم د پيدائش نه وړاندې ، نو په دې صورت کښې د ولادت په وخت کښې د «مس الشيطان» نه د حضرت مريم بچ کيدل د هغوی د مور د دعا اثر څنګه ګرځولې شی؟

ددې جواب دا ورکړې شوې دې چه ممکن ده چه د ولادت نه وړاندې يا د ولادت په وخت کښې د دوی مور دا دعا کړې وی او الله تعالى قبوله کړې وی او مريم بی بی ئې د مس الشيطان نه بچ کړې وی.(۳)

یو اشکال بل کیږی چې ددې روايت په وجه د حضرت عيسى عليه السلام او بی بی مريم په نبی کريم صلی الله علیه وسلم باندې فضيلت لازميږی حالانکه نبی صلی الله علیه وسلم افضل الخلائق دې.

① ددې جواب علامه طيبي او علامه آلوسي دا ورکړې دې د حضرت عيسى عليه السلام او حضرت مريم په شان نبی صلی الله علیه وسلم هم د «مس الشيطان» نه مستثنى دې. اګرچې دلته ذکر صرف د دوو شوې دې.(۴)

---

(۱) تفسير کشاف ۳۵۷/۱)-

(۲) فتح الباري ۲۱۲/۸ وروح المعاني ۱۳۷/۳)-

(۳) روح المعاني ۱۳۸/۳)-

(۴) حواله بالا

٢: دويم جواب دا وركړې شوې دې چه په دې روايت كښې د حضرت عيسى عليه السلام او حضرت مريم بې بى صرف جزئى فضيلت ثابت دې او په جزئى فضيلت سره كلى فضيلت نه متاثر كيږى(١)

٣ او قاضى عياض رحمه الله فرمائيلې دى چه د رسول الله ﷺ په شان ټولو پيغمبرانو ته دا خصوصيت حاصل دې چه شيطان هغوى ته د ولادت په وخت كښې مس او طعن نه وركوى.
بيا يو سوال پيدا كيږى چې هر كله دا د ټولو پيغمبرانو (عليهم السلام) مشتركه وصف دې نو د نبى ﷺ د حضرت مريم بى بى او ابن مريم په خصوصيت سره د ذكر كولو څه وجه وه؟
دې باره كښې دا وئيلې شوې دى چه د حضرت مريم او د ابن مريم په باره كښې يهوديانو ډيرې افواهګانې خورې كړې وې ،د هغوى د تقدس او بزرګئ هغوى د خربولو كوشش كړې وو څكه نبى ﷺ په خصوصيت سره د هغوى ذكر اوكړو او دا ئې بيان كړو چه دوى د ابتداء ولادت نه د شيطان د تصرف نه مستثنى كړې شوى وو، په روستونى ژوند كښې دوى د شيطانى دهوكې څنګه ښكار كيدې شى او منكراتو سره تعلق ساتونكې هغه خبرې څنګه صحيح كيدې شى كومې چې يهوديان ددې مقدس او پاكيزه نفوسو باره كښې وائى.

## ٦٦-باب: (إِنَّ الَّذِينَ يَشْتَرُونَ بِعَهْدِ اللَّهِ وَأَيْمَانِهِمْ ثَمَنًا قَلِيلًا أُولَئِكَ لَا خَلَاقَ لَهُمْ) لَا خَيْرَ. (٣)

(أَلِيمٌ) مُؤْلِمٌ مُوجِعٌ مِنَ الْأَلَمِ، وَهُوَ فِي مَوْضِعِ مُفْعِلٍ.

[٤٢٧٥] حَدَّثَنَا حَجَّاجُ بْنُ مِنْهَالٍ حَدَّثَنَا أَبُو عَوَانَةَ عَنِ الْأَعْمَشِ عَنْ أَبِي وَائِلٍ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ مَسْعُودٍ - رضى الله عنه - قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - «مَنْ حَلَفَ يَمِينَ صَبْرٍ لِيَقْتَطِعَ بِهَا مَالَ امْرِئٍ مُسْلِمٍ، لَقِيَ اللَّهَ وَهُوَ عَلَيْهِ غَضْبَانُ». فَأَنْزَلَ اللَّهُ تَصْدِيقَ ذَلِكَ (إِنَّ الَّذِينَ يَشْتَرُونَ بِعَهْدِ اللَّهِ وَأَيْمَانِهِمْ ثَمَنًا قَلِيلًا أُولَئِكَ لَا خَلَاقَ لَهُمْ فِي الْآخِرَةِ) إِلَى آخِرِ الْآيَةِ. قَالَ فَدَخَلَ الْأَشْعَثُ بْنُ قَيْسٍ وَقَالَ مَا يُحَدِّثُكُمْ أَبُو عَبْدِ الرَّحْمَنِ قُلْنَا كَذَا وَكَذَا. قَالَ فِيَّ أُنْزِلَتْ كَانَتْ لِي بِئْرٌ فِي أَرْضِ ابْنِ عَمٍّ لِي قَالَ النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - «بَيِّنَتُكَ أَوْ يَمِينُهُ» فَقُلْتُ إِذًا يَحْلِفَ يَا رَسُولَ اللَّهِ. فَقَالَ النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - «مَنْ حَلَفَ عَلَى يَمِينِ صَبْرٍ يَقْتَطِعُ بِهَا مَالَ امْرِئٍ مُسْلِمٍ وَهُوَ فِيهَا فَاجِرٌ، لَقِيَ اللَّهَ وَهُوَ عَلَيْهِ غَضْبَانُ».

[٤٢٧٦] حَدَّثَنَا عَلِيٌّ - هُوَ ابْنُ أَبِي هَاشِمٍ - سَمِعَ هُشَيْمًا أَخْبَرَنَا الْعَوَّامُ بْنُ حَوْشَبٍ عَنْ إِبْرَاهِيمَ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ أَبِي أَوْفَى - رضى الله عنهما - أَنَّ رَجُلًا أَقَامَ سِلْعَةً فِي السُّوقِ فَحَلَفَ فِيهَا لَقَدْ أَعْطَى بِهَا مَا لَمْ يُعْطَهُ. لِيُوقِعَ فِيهَا رَجُلًا مِنَ الْمُسْلِمِينَ، فَنَزَلَتْ (إِنَّ

---

١) حوالا بالا

الَّذِينَ يَشْتَرُونَ بِعَهْدِ اللَّهِ وَأَيْمَانِهِمْ ثَمَنًا قَلِيلًا) إِلَى آخِرِ الآيَةِ.

[۴۲۷۷] حَدَّثَنَا نَصْرُ بْنُ عَلِي بْنِ نَصْرٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ دَاوُدَ عَنِ ابْنِ جُرَيْجٍ عَنِ ابْنِ أَبِي مُلَيْكَةَ أَنَّ امْرَأَتَيْنِ كَانَتَا تَخْرِزَانِ فِي بَيْتٍ-أَوْفِي الْحُجْرَةِ- فَخَرَجَتْ إِحْدَاهُمَا وَقَدْ أُنْفِذَ بِإِشْفًى فِي كَفِّهَا، فَادَّعَتْ عَلَى الأُخْرَى، فَرُفِعَ إِلَى ابْنِ عَبَّاسٍ، فَقَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صلى الله عليه وسلم «لَوْيُعْطَى النَّاسُ بِدَعْوَاهُمْ لَذَهَبَ دِمَاءُ قَوْمٍ وَأَمْوَالُهُمْ». ذَكِّرُوهَا بِاللَّهِ وَاقْرَءُوا عَلَيْهَا (إِنَّ الَّذِينَ يَشْتَرُونَ بِعَهْدِ اللَّهِ). فَذَكَّرُوهَا فَاعْتَرَفَتْ، فَقَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ قَالَ النَّبِي-صلى الله عليه وسلم-«الْيَمِينُ عَلَى الْمُدَّعَى عَلَيْهِ».

په دې ايت کريمه کښې دی (ولهم عذاب اليم) فرمائی چې د اليم معنی دردناک ده او دا (الم) نه مشتق دې او د (مفعل) په وزن دې.

امام بخاری ددې ايت متعلق دوه واقعات د شان نزول په ډول بيان کړې دی .اولنئ ئې د اشعث بن قيس واقعه نقل کړې ده او دويمه واقعه ئې د عبدالله ابن ابی اوفی نه د هغه سړی په بارد کښې نقل کړې ده چه د هغه نوم په روايت کښې نشته، دا دواړه واقعات د يو بل نه مختلف دی او دا خبره تاسو په اصول تفسير کښې وئيلې ده چه د يو ايت په شان نزول کښې مختلف واقعات کيدې شی.

**قوله:** أَنَّ امْرَأَتَيْنِ كَانَتَا تَخْرِزَانِ فِي بَيْتٍ): يعنی دوو ښځو په يو کور کښې موزې او څپلئ ګنډلې (وقد انفذ باشفى فى كفها فادعت على الاخرى) (باشفا) بغير تنوين نه هم وئيلې شی د څپلئ اوموزې په ګنډلو کښې چه کومه ستن استعماليږی هغه (اشفا) ده (په پښتو کښې ورته کونډه وائی ددې عمل په دوران کښې د يوې د لاس نه کونډه تيرې راپيرې اووتله نو هغې په بله باندې دعوی اوکړه چه دې زما لاس زخمی کړلو.

فيصله حضرت ابن عباس رضی الله عنه ته يوړلې شوه نو ابن عباس رضی الله عنه اوفرمائيل چه رسول الله ﷺ فرمائيلې دی که صرف د خلقو په دعوی باندې د هغوی مدعا او مطلوب ورکولې شی نو بيا خو د خلقو وينه او ددوی مالونه ختم او برباد شی، ددې حديث نقل کولو کښې د حضرت ابن عباس رضی الله عنه مطلب دا وو چې شريعت د جګړو او مقدماتو ختمولو د پاره مستقل اصول او باقاعده ضوابط مقرر کړې دی چه مدعی به ګواهان پيش کوی او که د هغه سره ګواهان نه وی نو بيا به د مدعی عليه نه قسم اخستې شی ،صرف په دعوی سره د مدعی په حق کښې فيصله نشی کولې. په راتلونکو دوو ښځو کښې که د مدعيه سره ګواه نه وی نو د مدعا عليها نه د قسم مطالبه متعين ده . او چونکه د مدعيه عليها سره ګواهان نه وو ددې وجې حضرت ابن عباس رضی الله عنه اوفرمائيل چې مدعا عليها ته د الله ياد ورورواندې کړئ او د قران دا ايت ورته واوروئ (چه چرته دغه ښځې ته نصيحت اوکړو او دالله ويره ئې ورته ورورواندې کړه نو هغې د خپل جرم اقرار اوکړو، حضرت ابن عباس رضی الله عنه د نبی ﷺ ارشاد نقل کړو چه قسم په مدعا عليه باندې دې.

## ٦٣-باب: (قُلْ يَا أَهْلَ الْكِتَابِ تَعَالَوْا إِلَى كَلِمَةٍ سَوَاءٍ بَيْنَنَا وَبَيْنَكُمْ أَنْ لَا نَعْبُدَ إِلَّا اللَّهَ). (۴)

سَوَاءٌ قَصْدٌ

[۴۲۷۸] حَدَّثَنِي إِبْرَاهِيمُ بْنُ مُوسَى عَنْ هِشَامٍ عَنْ مَعْمَرٍ. وَحَدَّثَنِي عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ أَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ عَنِ الزُّهْرِي قَالَ أَخْبَرَنِي عُبَيْدُ اللَّهِ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُتْبَةَ قَالَ حَدَّثَنِي ابْنُ عَبَّاسٍ قَالَ حَدَّثَنِي أَبُو سُفْيَانَ مِنْ فِيهِ إِلَى فِي قَالَ انْطَلَقْتُ فِي الْمُدَّةِ الَّتِي كَانَتْ بَيْنِي وَبَيْنَ رَسُولِ اللَّهِ- صلى الله عليه وسلم-- قَالَ- فَبَيْنَا أَنَا بِالشَّامِ إِذْ جِيءَ بِكِتَابٍ مِنَ النَّبِي - صلى الله عليه وسلم - إِلَى هِرَقْلَ قَالَ وَكَانَ دِحْيَةُ الْكَلْبِي جَاءَ بِهِ فَدَفَعَهُ إِلَى عَظِيمِ بُصْرَى، فَدَفَعَهُ عَظِيمُ بُصْرَى إِلَى - هِرَقْلَ - قَالَ - فَقَالَ هِرَقْلُ هَلْ هَا هُنَا أَحَدٌ مِنْ قَوْمِ هَذَا الرَّجُلِ الَّذِي يَزْعُمُ أَنَّهُ نَبِي فَقَالُوا نَعَمْ. قَالَ فَدُعِيتُ فِي نَفَرٍ مِنْ قُرَيْشٍ فَدَخَلْنَا عَلَى هِرَقْلَ، فَأُجْلِسْنَا بَيْنَ يَدَيْهِ فَقَالَ أَيُّكُمْ أَقْرَبُ نَسَبًا مِنْ هَذَا الرَّجُلِ الَّذِي يَزْعُمُ أَنَّهُ نَبِي فَقَالَ أَبُو سُفْيَانَ فَقُلْتُ أَنَا. فَأَجْلَسُونِي بَيْنَ يَدَيْهِ، وَأَجْلَسُوا أَصْحَابِي خَلْفِي، ثُمَّ دَعَا بِتَرْجُمَانِهِ فَقَالَ قُلْ لَهُمْ إِنِّي سَائِلٌ هَذَا عَنْ هَذَا الرَّجُلِ الَّذِي يَزْعُمُ أَنَّهُ نَبِي، فَإِنْ كَذَبَنِي فَكَذِّبُوهُ. قَالَ أَبُو سُفْيَانَ وَايْمُ اللَّهِ، لَوْلَا أَنْ يُؤْثِرُوا عَلَى الْكَذِبَ لَكَذَبْتُ. ثُمَّ قَالَ لِتَرْجُمَانِهِ سَلْهُ كَيْفَ حَسَبُهُ فِيكُمْ قَالَ قُلْتُ هُوَ فِينَا ذُو حَسَبٍ. قَالَ فَهَلْ كَانَ مِنْ آبَائِهِ مَلِكٌ قَالَ قُلْتُ لَا. قَالَ فَهَلْ كُنْتُمْ تَتَّهِمُونَهُ بِالْكَذِبِ قَبْلَ أَنْ يَقُولَ مَا قَالَ قُلْتُ لَا. قَالَ أَيَتَّبِعُهُ أَشْرَافُ النَّاسِ أَمْ ضُعَفَاؤُهُمْ قَالَ قُلْتُ بَلْ ضُعَفَاؤُهُمْ. قَالَ يَزِيدُونَ أَوْ يَنْقُصُونَ قَالَ قُلْتُ لَا بَلْ يَزِيدُونَ. قَالَ هَلْ يَرْتَدُّ أَحَدٌ مِنْهُمْ عَنْ دِينِهِ، بَعْدَ أَنْ يَدْخُلَ فِيهِ، سَخْطَةً لَهُ قَالَ قُلْتُ لَا. قَالَ فَهَلْ قَاتَلْتُمُوهُ قَالَ قُلْتُ نَعَمْ. قَالَ فَكَيْفَ كَانَ قِتَالُكُمْ إِيَّاهُ قَالَ قُلْتُ تَكُونُ الْحَرْبُ بَيْنَنَا وَبَيْنَهُ سِجَالًا، يُصِيبُ مِنَّا وَنُصِيبُ مِنْهُ. قَالَ فَهَلْ يَغْدِرُ قَالَ قُلْتُ لَا وَنَحْنُ مِنْهُ فِي هَذِهِ الْمُدَّةِ لَا نَدْرِي مَا هُوَ صَانِعٌ فِيهَا. قَالَ وَاللَّهِ مَا أَمْكَنَنِي مِنْ كَلِمَةٍ أُدْخِلُ فِيهَا شَيْئًا غَيْرَ هَذِهِ. قَالَ فَهَلْ قَالَ هَذَا الْقَوْلَ أَحَدٌ قَبْلَهُ قُلْتُ لَا. ثُمَّ قَالَ لِتَرْجُمَانِهِ قُلْ لَهُ إِنِّي سَأَلْتُكَ عَنْ حَسَبِهِ فِيكُمْ، فَزَعَمْتَ أَنَّهُ فِيكُمْ ذُو حَسَبٍ، وَكَذَلِكَ الرُّسُلُ تُبْعَثُ فِي أَحْسَابِ قَوْمِهَا، وَسَأَلْتُكَ هَلْ كَانَ فِي آبَائِهِ مَلِكٌ فَزَعَمْتَ أَنْ لَا فَقُلْتُ لَوْ كَانَ مِنْ آبَائِهِ مَلِكٌ قُلْتُ رَجُلٌ يَطْلُبُ مُلْكَ آبَائِهِ، وَسَأَلْتُكَ عَنْ أَتْبَاعِهِ أَضُعَفَاؤُهُمْ أَمْ أَشْرَافُهُمْ فَقُلْتَ بَلْ ضُعَفَاؤُهُمْ، وَهُمْ أَتْبَاعُ الرُّسُلِ، وَسَأَلْتُكَ هَلْ كُنْتُمْ تَتَّهِمُونَهُ بِالْكَذِبِ قَبْلَ أَنْ يَقُولَ مَا قَالَ فَزَعَمْتَ أَنْ لَا، فَعَرَفْتُ أَنَّهُ لَمْ يَكُنْ لِيَدَعَ الْكَذِبَ عَلَى النَّاسِ ثُمَّ يَذْهَبَ فَيَكْذِبَ عَلَى اللَّهِ، وَسَأَلْتُكَ هَلْ يَرْتَدُّ أَحَدٌ مِنْهُمْ عَنْ دِينِهِ بَعْدَ أَنْ يَدْخُلَ

فِيهِ سَخْطَةً لَهُ فَزَعَمْتَ أَنْ لاَ، وَكَذَلِكَ الإِيمَانُ إِذَا خَالَطَ بَشَاشَةَ الْقُلُوبِ، وَسَأَلْتُكَ هَلْ يَزِيدُونَ أَمْ يَنْقُصُونَ فَزَعَمْتَ أَنَّهُمْ يَزِيدُونَ، وَكَذَلِكَ الإِيمَانُ حَتَّى يَتِمَّ، وَسَأَلْتُكَ هَلْ قَاتَلْتُمُوهُ فَزَعَمْتَ أَنَّكُمْ قَاتَلْتُمُوهُ فَتَكُونُ الْحَرْبُ بَيْنَكُمْ وَبَيْنَهُ سِجَالاً، يَنَالُ مِنْكُمْ وَتَنَالُونَ مِنْهُ، وَكَذَلِكَ الرُّسُلُ تُبْتَلَى، ثُمَّ تَكُونُ لَهُمُ الْعَاقِبَةُ، وَسَأَلْتُكَ هَلْ يَغْدِرُ فَزَعَمْتَ أَنَّهُ لاَ يَغْدِرُ، وَكَذَلِكَ الرُّسُلُ لاَ تَغْدِرُ، وَسَأَلْتُكَ هَلْ قَالَ أَحَدٌ هَذَا الْقَوْلَ قَبْلَهُ فَزَعَمْتَ أَنْ لاَ، فَقُلْتُ لَوْ كَانَ قَالَ هَذَا الْقَوْلَ أَحَدٌ قَبْلَهُ قُلْتُ رَجُلٌ ائْتَمَّ بِقَوْلٍ قِيلَ قَبْلَهُ. قَالَ ثُمَّ قَالَ بِمَ يَأْمُرُكُمْ قَالَ قُلْتُ يَأْمُرُنَا بِالصَّلاَةِ وَالزَّكَاةِ وَالصِّلَةِ وَالْعَفَافِ. قَالَ إِنْ يَكُ مَا تَقُولُ فِيهِ حَقًّا فَإِنَّهُ نَبِيٌّ، وَقَدْ كُنْتُ أَعْلَمُ أَنَّهُ خَارِجٌ، وَلَمْ أَكُ أَظُنُّهُ مِنْكُمْ، وَلَوْ أَنِّي أَعْلَمُ أَنِّي أَخْلُصُ إِلَيْهِ لأَحْبَبْتُ لِقَاءَهُ، وَلَوْ كُنْتُ عِنْدَهُ لَغَسَلْتُ عَنْ قَدَمَيْهِ، وَلَيَبْلُغَنَّ مُلْكُهُ مَا تَحْتَ قَدَمَىَّ. قَالَ ثُمَّ دَعَا بِكِتَابِ رَسُولِ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - فَقَرَأَهُ، فَإِذَا فِيهِ «بِسْمِ اللَّهِ الرَّحْمَنِ الرَّحِيمِ مِنْ مُحَمَّدٍ رَسُولِ اللَّهِ، إِلَى هِرَقْلَ عَظِيمِ الرُّومِ، سَلاَمٌ عَلَى مَنِ اتَّبَعَ الْهُدَى، أَمَّا بَعْدُ، فَإِنِّي أَدْعُوكَ بِدِعَايَةِ الإِسْلاَمِ، أَسْلِمْ تَسْلَمْ، وَأَسْلِمْ يُؤْتِكَ اللَّهُ أَجْرَكَ مَرَّتَيْنِ، فَإِنْ تَوَلَّيْتَ فَإِنَّ عَلَيْكَ إِثْمَ الأَرِيسِيِّينَ، وَ (يَا أَهْلَ الْكِتَابِ تَعَالَوْا إِلَى كَلِمَةٍ سَوَاءٍ بَيْنَنَا وَبَيْنَكُمْ أَنْ لاَ نَعْبُدَ إِلاَّ اللَّهَ) إِلَى قَوْلِهِ (اشْهَدُوا بِأَنَّا مُسْلِمُونَ). فَلَمَّا فَرَغَ مِنْ قِرَاءَةِ الْكِتَابِ ارْتَفَعَتِ الأَصْوَاتُ عِنْدَهُ، وَكَثُرَ اللَّغَطُ، وَأُمِرْنَا فَأُخْرِجْنَا قَالَ فَقُلْتُ لأَصْحَابِي حِينَ خَرَجْنَا لَقَدْ أَمِرَ أَمْرُ ابْنِ أَبِي كَبْشَةَ، أَنَّهُ لَيَخَافُهُ مَلِكُ بَنِي الأَصْفَرِ فَمَا زِلْتُ مُوقِنًا بِأَمْرِ رَسُولِ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - أَنَّهُ سَيَظْهَرُ حَتَّى أَدْخَلَ اللَّهُ عَلَىَّ الإِسْلاَمَ. قَالَ الزُّهْرِيُّ فَدَعَا هِرَقْلُ عُظَمَاءَ الرُّومِ فَجَمَعَهُمْ فِي دَارٍ لَهُ فَقَالَ يَا مَعْشَرَ الرُّومِ، هَلْ لَكُمْ فِي الْفَلاَحِ وَالرَّشَدِ آخِرَ الأَبَدِ، وَأَنْ يَثْبُتَ لَكُمْ مُلْكُكُمْ قَالَ فَحَاصُوا حَيْصَةَ حُمُرِ الْوَحْشِ إِلَى الأَبْوَابِ، فَوَجَدُوهَا قَدْ غُلِّقَتْ، فَقَالَ عَلَىَّ بِهِمْ. فَدَعَا بِهِمْ فَقَالَ إِنِّي إِنَّمَا اخْتَبَرْتُ شِدَّتَكُمْ عَلَى دِينِكُمْ، فَقَدْ رَأَيْتُ مِنْكُمُ الَّذِي أَحْبَبْتُ. فَسَجَدُوا لَهُ وَرَضُوا عَنْهُ. [ر: ۷]

## ۶۳- باب: (لَنْ تَنَالُوا الْبِرَّ حَتَّى تُنْفِقُوا مِمَّا تُحِبُّونَ) إِلَى (بِهِ عَلِيمٌ)

[۴۲۷۹] حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ قَالَ حَدَّثَنِي مَالِكٌ عَنْ إِسْحَاقَ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ أَبِي طَلْحَةَ أَنَّهُ سَمِعَ أَنَسَ بْنَ مَالِكٍ - رضى الله عنه - يَقُولُ كَانَ أَبُو طَلْحَةَ أَكْثَرَ أَنْصَارِيٍّ بِالْمَدِينَةِ نَخْلاً، وَكَانَ أَحَبَّ أَمْوَالِهِ إِلَيْهِ بَيْرَحَاءَ، وَكَانَتْ مُسْتَقْبِلَةَ الْمَسْجِدِ، وَكَانَ رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - يَدْخُلُهَا وَيَشْرَبُ مِنْ مَاءٍ فِيهَا طَيِّبٍ، فَلَمَّا أُنْزِلَتْ (لَنْ تَنَالُوا الْبِرَّ حَتَّى تُنْفِقُوا مِمَّا تُحِبُّونَ) قَامَ أَبُو طَلْحَةَ فَقَالَ يَا رَسُولَ اللَّهِ، إِنَّ اللَّهَ يَقُولُ (لَنْ تَنَالُوا الْبِرَّ حَتَّى تُنْفِقُوا مِمَّا تُحِبُّونَ) وَإِنَّ أَحَبَّ أَمْوَالِي إِلَىَّ بَيْرَحَاءَ وَإِنَّهَا صَدَقَةٌ لِلَّهِ، أَرْجُو بِرَّهَا وَذُخْرَهَا عِنْدَ اللَّهِ، فَضَعْهَا يَا رَسُولَ اللَّهِ حَيْثُ أَرَاكَ اللَّهُ. قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صلى الله عليه وسلم «بَخٍ، ذَلِكَ مَالٌ رَايِحٌ، ذَلِكَ

مَالٌ رَابِحٌ، وَقَدْ سَمِعْتُ مَا قُلْتَ، وَإِنِّي أَرَى أَنْ تَجْعَلَهَا فِي الأَقْرَبِينَ». قَالَ أَبُوطَلْحَةَ أَفْعَلُ يَا رَسُولَ اللَّهِ. فَقَسَمَهَا أَبُوطَلْحَةَ فِي أَقَارِبِهِ وَبَنِي عَمِّهِ. قَالَ عَبْدُاللَّهِ بْنُ يُوسُفَ وَرَوْحُ بْنُ عُبَادَةَ «ذَلِكَ مَالٌ رَابِحٌ». حَدَّثَنِي يَحْيَى بْنُ يَحْيَى قَالَ قَرَأْتُ عَلَى مَالِكٍ «مَالٌ رَابِحٌ».

حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ الأَنْصَارِيُّ قَالَ حَدَّثَنِي أَبِي عَنْ ثُمَامَةَ عَنْ أَنَسٍ - رضي الله عنه - قَالَ فَجَعَلَهَا لِحَسَّانَ وَأُبَيٍّ، وَأَنَا أَقْرَبُ إِلَيْهِ، وَلَمْ يَجْعَلْ لِي مِنْهَا شَيْئًا.

**قوله: بَخٍ، ذَلِكَ مَالٌ رَابِحٌ:** ډیره ښه ده دا مال خو د ګټې دې «بخ» اسم فعل دې د خوشحالۍ او داد په موقع باندې نې استعمالیږی په بعضې روایاتو کښې د «رابح» په ځائې «رایح» دې، یعنی مال خو تلونکې راتلونکې څیز دې که دا د اخرت د پاره ذخیره جوړه کړې شی نو قیمتی خبره ده.[1]

**قوله: حَدَّثَنِي يَحْيَى بْنُ يَحْيَى:** امام بخاری دا روایت په کتاب الوکالة کښې پوره نقل کړې دې.[2]

**قوله: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ الأَنْصَارِيُّ:** دا روایت امام بخاری په کتاب الوقف کښې د باب «اذا وقف او اوصى لاقاربه» لاندې ذکر کړې دې.[3]

## ٦٣- باب: قُلْ فَأْتُوا بِالتَّوْرَاةِ فَاتْلُوهَا إِنْ كُنْتُمْ صَادِقِينَ)

[٤٢٨٠] حَدَّثَنِي إِبْرَاهِيمُ بْنُ الْمُنْذِرِ حَدَّثَنَا أَبُو ضَمْرَةَ حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ عُقْبَةَ عَنْ نَافِعٍ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُمَرَ - رضي الله عنهما - أَنَّ الْيَهُودَ جَاءُوا إِلَى النَّبِيِّ - صلى الله عليه وسلم - بِرَجُلٍ مِنْهُمْ وَامْرَأَةٍ قَدْ زَنَيَا، فَقَالَ لَهُمْ «كَيْفَ تَفْعَلُونَ بِمَنْ زَنَى مِنْكُمْ». قَالُوا نُحَمِّمُهُمَا وَنَضْرِبُهُمَا. فَقَالَ «لاَ تَجِدُونَ فِي التَّوْرَاةِ الرَّجْمَ». فَقَالُوا لاَ نَجِدُ فِيهَا شَيْئًا. فَقَالَ لَهُمْ عَبْدُ اللَّهِ بْنُ سَلاَمٍ كَذَبْتُمْ (فَأْتُوا بِالتَّوْرَاةِ فَاتْلُوهَا إِنْ كُنْتُمْ صَادِقِينَ) فَوَضَعَ مِدْرَاسُهَا الَّذِي يُدَرِّسُهَا مِنْهُمْ كَفَّهُ عَلَى آيَةِ الرَّجْمِ، فَطَفِقَ يَقْرَأُ مَا دُونَ يَدِهِ وَمَا وَرَاءَهَا، وَلاَ يَقْرَأُ آيَةَ الرَّجْمِ، فَنَزَعَ يَدَهُ عَنْ آيَةِ الرَّجْمِ فَقَالَ مَا هَذِهِ فَلَمَّا رَأَوْا ذَلِكَ قَالُوا هِيَ آيَةُ الرَّجْمِ. فَأَمَرَ بِهِمَا فَرُجِمَا قَرِيبًا مِنْ حَيْثُ مَوْضِعُ الْجَنَائِزِ عِنْدَ الْمَسْجِدِ، فَرَأَيْتُ صَاحِبَهَا يَجْنَأُ عَلَيْهَا يَقِيهَا الْحِجَارَةَ. [ر: ١٢٦٤]

**قوله: يَقِيهَا الْحِجَارَةَ:** ما هغه یهودی اولیدلو چه هغه خپله محبوبه د کاڼړی نه د بچ کولو د پاره هغه خپل اړخ ته کوله خو په آخر کښې انجام هم دا راوتلو چه کله په هغه کښې حرکت پاتې نشو نو هغه هم مړ شو او یهودیه هم مړه شوه.

---

[1] عمدة القاری ۱۸/۱۳۶)-

[2] صحيح البخاری مع فتح الباری كتاب الوكالة باب اذا قال الرجل لوكيله ٤/٤٩٣) رقم الحديث ٢٣١٨)-

[3] صحيح البخاری معى فتح الباری كتاب الوصايا (٣٧٩/٥) -

## ۶۵-باب: ...كُنتُمْ خَيْرَ أُمَّةٍ أُخْرِجَتْ لِلنَّاسِ.

[۴۲۸۱] حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ يُوسُفَ عَنْ سُفْيَانَ عَنْ مَيْسَرَةَ عَنْ أَبِي حَازِمٍ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رضی الله عنه - (كُنتُمْ خَيْرَ أُمَّةٍ أُخْرِجَتْ لِلنَّاسِ) قَالَ خَيْرَ النَّاسِ لِلنَّاسِ، تَأْتُونَ بِهِمْ فِي السَّلَاسِلِ فِي أَعْنَاقِهِمْ حَتَّى يَدْخُلُوا فِي الإِسْلَامِ.

دا هم احتمال لری چه د (کنتم خیر امة) نه صرف حضرات صحابه کرام رضی الله عنهم مراد وی او دا هم احتمال دې چه ټول امت ترې مراد دی [1] که صحابه ئیې مراد وی نو مطلب ئې دادې چه صحابه امت کښې د ټولو نه غوره دی او که ټول امت مراد وی نو مطلب به دا وی چه د نورو امتونو په مقابله کښې امت محمدیه د ټولو نه غوره دې او ظاهر او راجح هم دادې چه صرف صحابه کرام مخاطب اونه ګرځولې شی بلکه ټول امت ددې مخاطب اوګرځولې شی [2]

په روایت کښې دی چې بهترین خلق د خلقو د پاره هغه دی چه هغوی دوی په بیړو کښې بندیان راولی تردې چه هغوی په اسلام کښې داخل شی ، مطلب دادې چه د امت محمدیه د خیر امت کیدو پوه نښه دا هم ده چه ددې امت مجاهدین کافران د میدان جنګ نه په قید کښې راولی او دغه شان ددې مجاهدینو په قید کښې ډیر کافران قیدیان اسلام راوړی او د ابدی سعادت مستحق شی.

علامه شبیر احمد عثمانی ددې لاندې لیکی:

د تیرې شوې رکوع په اول کښې ئې فرمائیلې وو (يَاأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا اتَّقُوا اللهَ حَقَّ تُقَاتِهِ) په مینځ کښې هم ددې مناسب څه اوامر او نواهی او وعده وعید راغلل ، ددې ځائې نه بیا د هغه اولنی مضمون تکمیل کیږی یعنی اې مسلمانانو !الله تعالی تاسو په ټولو امتونو کښې بهترین امت ګرځولې یئ د هغه په علم ازلی کښې د اولنئ ورځې نه دا مقدره وه. ددې خبر بعضې پخوانو پیغمبرانو ته هم ورکړې شوې وو، لکه څنګه چې نبی اخر الزمان محمد ﷺ په ټولو نبیانو کښې افضل دې . ددوی امت به هم په ټولو امتونو باندې وړاندې وی، ځکه چې دوی ته به د ټولو نه افضل او اکرم پیغمبر نصیب کیږی اکمل او د همیشه شریعت به ورته میلاویږی ، د علومو او معارفو دروازې به په دوی باندې پرانستې کیږی ، د ایمان او عمل او تقوی ټول بناخونه به د دوی په محنت او قربانو باندې تروتازه او شنه وی، هغوی به په څه خاص قوم او نسب یا مخصوص ملک او اقلیم کښې محصور نه وو بلکه د دوی د عمل دائره به ټولې دنیا ته او د انسانی ژوند په هر شعبه باندې محیط وی، لکه څنګه چې د دوی وجود به ددې د پاره وی چه د نورو خیرخواهی کوی او چه ترکومې پورې ممکن وی نو هغوی د جنت په دوازه باندې اودروی. ،په (أُخْرِجَتْ لِلنَّاسِ) کښې دې طرف ته اشاره ده.

---

[1] معالم التنزیل (۴۴/۱)-
[2] فتح الباری (۲۲۵/۸)-

تنبيه: ددې سورت په نهمه ركوع كښې د ﴿وَاِذْ اَخَذَ اللّٰهُ مِيْثَاقَ النَّبِيّٖنَ﴾ نه د نبى كريم ﷺ د امامت او جامعيت كبرى بيان وو، په لسمه ركوع كښې د ﴿اِنَّ اَوَّلَ بَيْتٍ وُّضِعَ لِلنَّاسِ لَلَّذِيْ بِبَكَّةَ﴾ ددې امت د قبلې برترى خودلې شوې ده او د يوولسمې ﴿وَاعْتَصِمُوْا بِحَبْلِ اللّٰهِ﴾ ركوع نه ددې امت د كتاب او شريعت د مضبوطيا اظهار كړې شوې دې، اوس دلته د دولسمې ركوع په آغاز كښې پخپله د امت مرحومه د فضيلت او عظمت اعلان كيږى.

﴿منكر﴾ ﴿په غلطو كارونو كښې﴾ كفر ،شرك، بدعاتو. رسومات قبيحه. فسق او فجور او هر قسم بداخلاقى او نامعقول خبرې شامل دى ددې منع كول هم په څو طريقو دى كله په ژبه سره كله په لاس سره وى كله په قلم سره وى كله په تورې سره وى . غرض هر قسم جهاد په دې كښې شامل دې ، دا صفت چه څومره په عموم او هتمام سره په امت محمديه كښې موجود شوې دې په اولنو امتونو كښې ددې نظير او مثال نه ملاويږى.

حضرت تهانوى صاحب په بيان القران كښې ليكى:

﴿كُنْتُمْ خَيْرَ اُمَّةٍ﴾ تاسو غوره ډله ئې چه هغه ډله د ﴿عامو﴾ خلقو ﴿ته د فائدې او هدايت رسولو د پاره﴾ ظاهر شوې ده، تاسو ﴿په مقتضا د شريعت په زيات اهتمام سره﴾ د نيكئ كارونه ښايئ او د بدو كارونو نه منع كويئ.

دا خطاب ټول ام محمديه ته عام دې لكه څنګه چه په كمالين كښې د حضرت على رضى الله عنه مرفوع د احمد بن حنبل رحمه الله په سند سره منقول دې چې نبى ﷺ فرمائيلې دى چې زما امت خير الامم دې ، بيا په دې كښې صحابه او ل اشرف مخاطبين دى، او په امر بالمعروف او نهى عن المنكر كښې چې كوم د زيات اهتمام قيد راوستې شو مراد دې نه ﴿امرونهى باليد﴾ دې كومه چې ددې اوچته درجه ده ،دا درجه په دې امت كښې د نورو امتونو نه په دوو وجوهو سره زياته ده، اول د جهاد مشروع كيدل ددې نه رفع د كفر او رفع د فساد مقصود ده، دويمه د عموم دعوت محمديه ،ددې د ټولو قومونو د پاره عام كيدل، لكه څنګه چې په ﴿للناس﴾ كښې د ﴿عام﴾ لفظ وركړې شوې دې په خلاف د مخكښې شريعتونو نه چې په بعضو كښې جهاد نه وو او بعضو كښې سابقه انبياءكرام ټولو اقوامو ته مبعوث نه وو، او ښكاره ده چه په زيات عمل سره زيات اجر دې بلكه صرف دويمه وجه هم كافى ده نو دا هم منجمله د اسبابو د خيريت ددې امت شو.

## ٦٦- باب: ﴿اِذْ هَمَّتْ طَّآىِٕفَتٰنِ مِنْكُمْ اَنْ تَفْشَلَا﴾

[٤٢٨٢] حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ قَالَ قَالَ عَمْرٌو سَمِعْتُ جَابِرَ بْنَ عَبْدِ اللّٰهِ -رضى الله عنهما- يَقُولُ فِينَا نَزَلَتْ ﴿اِذْ هَمَّتْ طَّآىِٕفَتٰنِ مِنْكُمْ اَنْ تَفْشَلَا وَاللّٰهُ وَلِيُّهُمَا﴾ قَالَ نَحْنُ الطَّائِفَتَانِ بَنُو حَارِثَةَ وَبَنُو سَلِمَةَ، وَمَا نُحِبُّ - وَقَالَ سُفْيَانُ مَرَّةً وَمَا يَسُرُّنِى - أَنَّهَا لَمْ تُنْزَلْ لِقَوْلِ اللّٰهِ ﴿وَاللّٰهُ وَلِيُّهُمَا﴾

## ٦٧- باب: (لَيْسَ لَكَ مِنَ الأَمْرِ شَيْءٌ).

[۴۲۸۳] حَدَّثَنَا حِبَّانُ بْنُ مُوسَى أَخْبَرَنَا عَبْدُ اللَّهِ أَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ حَدَّثَنِي سَالِمٌ عَنْ أَبِيهِ أَنَّهُ سَمِعَ رَسُولَ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - إِذَا رَفَعَ رَأْسَهُ مِنَ الرُّكُوعِ فِي الرَّكْعَةِ الآخِرَةِ مِنَ الْفَجْرِ يَقُولُ «اللَّهُمَّ الْعَنْ فُلاَنًا وَفُلاَنًا وَفُلاَنًا». بَعْدَ مَا يَقُولُ «سَمِعَ اللَّهُ لِمَنْ حَمِدَهُ رَبَّنَا وَلَكَ الْحَمْدُ». فَأَنْزَلَ اللَّهُ (لَيْسَ لَكَ مِنَ الأَمْرِ شَيْءٌ) إِلَى قَوْلِهِ (فَإِنَّهُمْ ظَالِمُونَ). رَوَاهُ إِسْحَاقُ بْنُ رَاشِدٍ عَنِ الزُّهْرِيِّ.

[۴۲۸۴] حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ سَعْدٍ حَدَّثَنَا ابْنُ شِهَابٍ عَنْ سَعِيدِ بْنِ الْمُسَيَّبِ وَأَبِي سَلَمَةَ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ - رضى الله عنه - أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - كَانَ إِذَا أَرَادَ أَنْ يَدْعُوَ عَلَى أَحَدٍ أَوْ يَدْعُوَ لأَحَدٍ قَنَتَ بَعْدَ الرُّكُوعِ، فَرُبَّمَا قَالَ إِذَا قَالَ «سَمِعَ اللَّهُ لِمَنْ حَمِدَهُ، اللَّهُمَّ رَبَّنَا لَكَ الْحَمْدُ، اللَّهُمَّ أَنْجِ الْوَلِيدَ بْنَ الْوَلِيدِ، وَسَلَمَةَ بْنَ هِشَامٍ، وَعَيَّاشَ بْنَ أَبِي رَبِيعَةَ، اللَّهُمَّ اشْدُدْ وَطْأَتَكَ عَلَى مُضَرَ وَاجْعَلْهَا سِنِينَ كَسِنِي يُوسُفَ». يَجْهَرُ بِذَلِكَ وَكَانَ يَقُولُ فِي بَعْضِ صَلاَتِهِ فِي صَلاَةِ الْفَجْرِ «اللَّهُمَّ الْعَنْ فُلاَنًا وَفُلاَنًا». لأَحْيَاءٍ مِنَ الْعَرَبِ، حَتَّى أَنْزَلَ اللَّهُ (لَيْسَ لَكَ مِنَ الأَمْرِ شَيْءٌ) الآيَةَ.

**د ایت کریمه ``لیس لک من الامر شیئ،، شان نزول:** دډې ایت مختلف شان نزول دی:

① یو خو دا بیان شوي دي چې نبی ﷺ د صفوان بن امیه او سهیل بن عمرو د پاره خیرې کړې وې په دې باندې دا ایت نازل شو[1]

② یو د بیان شوي دي چې نبی ﷺ د ولید ابن ولید، سلمه بن هشام، عیاش بن ابی ربیعه وغیره د پاره خیرې کړې وې او ورسره ئې دا هم فرمائیلي وو (او اللهم اشدد وطاتکم علی مضر) په دې باندې دا ایت نازل شو[2]

③ بعضې حضراتو وئیلي دی چه په جنګ احد کښې د عبدالله بن قیمه په کاڼړی ویشتلو سره د نبی ﷺ مخ مبارک زخمی شوې وو په دغه وخت کښې نبی ﷺ فرمائیلي وو (کیف یفلح قوم شجوا نبیهم) په دې باندې دا ایت نازل شو[3]

④ امام زهری رحمه الله امام طحاوی او حافظ ابن حجر وغیره نقل کړې دی چه د رعل او ذکوان په قصه کښې دا ایت نازل شوې وو[4]

---

[1]) تفسير ابن كثير ۱/۴۰۲)-

[2]) كما فى روايت الباب)-

[3]) فتح البارى ۸/۲۲۷) تفسير ابن كثير ۱/۴۰۳) ومعالم التنزيل ۱/۳۵۰)-

[4]) فتح البارى ۸/۲۲۷)-

خو حقيقت دادې چې ددې تولو واقعاتو پيښيدو نه پس دا ايت نازل شوې دې. چا په شان نزول كښې يوه واقعه ذكر كړې ده او چا بله واقعه [۱] او دا خبره تاسو ته اوخودلې شوه چه د يو ايت مختلف واقعات سبب نزول كيدې شي.

## ٦٨- باب قَوْلِهِ (وَالرَّسُولُ يَدْعُوكُمْ فِي أُخْرَاكُمْ).

وَهُوَ تَأْنِيثُ آخِرِكُمْ. وَقَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ (إِحْدَى الْحُسْنَيَيْنِ) فَتْحًا أَوْ شَهَادَةً.

[۴۲۸۵] حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ خَالِدٍ حَدَّثَنَا زُهَيْرٌ حَدَّثَنَا أَبُو إِسْحَاقَ قَالَ سَمِعْتُ الْبَرَاءَ بْنَ عَازِبٍ -رضى الله عنهما- قَالَ جَعَلَ النَّبِيُّ -صلى الله عليه وسلم- عَلَى الرَّجَّالَةِ يَوْمَ أُحُدٍ عَبْدَ اللَّهِ بْنَ جُبَيْرٍ، وَأَقْبَلُوا مُنْهَزِمِينَ، فَذَاكَ إِذْ يَدْعُوهُمُ الرَّسُولُ فِي أُخْرَاهُمْ، وَلَمْ يَبْقَ مَعَ النَّبِيِّ -صلى الله عليه وسلم- غَيْرُ اثْنَيْ عَشَرَ رَجُلاً.

پوره ايت دې ﴿إِذْ تُصْعِدُونَ وَلَا تَلْوُونَ عَلَىٰ أَحَدٍ وَالرَّسُولُ يَدْعُوكُمْ فِي أُخْرَاكُمْ فَأَثَابَكُمْ غَمًّا بِغَمٍّ لِّكَيْلَا تَحْزَنُوا عَلَىٰ مَا فَاتَكُمْ وَلَا مَا أَصَابَكُمْ ۗ وَاللَّهُ خَبِيرٌ بِمَا تَعْمَلُونَ﴾ امام بخارى فرمائى چې په ايت كريمه كښې (اخركم) د (آخركم) تانيث دې ،

حافظ ابن حجر او علامه عينى په دې باندې اشكال كړې دې چه (اخرى) د (آخر) تانيث نه دې د (آخر) تانيث خو (آخرة) راځى [۲] علامه عينى فرمائى چې امام بخارى په دې كښې د ابوعبيده اتباع كړې ده او د ابوعبيده نه په دې كښې ذهول شوې دې [۳]

خو علامه قسطلانى وغيره حضراتو فرمائيلې دى چه د امام بخارى نظر په دې سلسله كښې زيات دقيق دې، وجه دا ده چې (آخر) (د خاء په كسرې سره) د تاخير د پاره راځى او (آخر) د (خاء په فتحې سره) د مغايرت د پاره راځى او په ايت كريمه كښې تاخير د بيان مقصود دې، د مغايرت بيان مقصود نه دې، ددې وجې امام بخارى دا د (آخر) (بكسر الخاء) تانيث اوگرځولو او (آخرى) د (آخر) د مونث په طور استعمال په لغت كښې موجود دې بلكه هم دا د اصلى په معنى كښې دې. [۴]

**قوله: وَقَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ (إِحْدَى الْحُسْنَيَيْنِ) فَتْحًا أَوْ شَهَادَةً.:** يعنى تاسو په مونږ باندې په دوو ښيگړو كښې د يوې انتظار كوئى. يا خو به مونږ ته فتح اوشى يا شهادت، د ﴿إِحْدَى الْحُسْنَيَيْنِ﴾ د ا كلمه په سورة آل عمران كښې نه ده بلكه په سورة براءت كښې ده ﴿قُلْ هَلْ

---

[۱] حواله بالا

[۲] فتح البارى ۲۲۷۹/۱ وعمدة القاى ۱۵۱۹/۱۸-

[۳] عمدة القارى ۱۵۱/۱۸)-

[۴] الهدى السارى ۳٤۰۹/۸-

تَرَبَّصُوْنَ بِنَآ اِلَّآ اِحْدَى الْحُسْنَيَيْنِ امام بخاری دا دلته په کوم مناسبت سره ذکر کړې ده؟ علامه عینی فرمائیلي دی چه ددې دلته د ذکر کولو څه وجه نشته، دا په سورة توبه کښې ذکر کول پکار وو ([1])

بعضې حضراتو وئیلې دی چه (احدی الحسنین) کښې یوه ښیګړه په غزوه احد کښې حاصله شوې وه، یعنی شهادت او دلته خو چونکه د ابواب غزوه احد باره کښې بیان کیږی په دې مناسبت سره ئې دا ذکر کړې دې ([2])

او دا هم ممکن ده چې امام د (اخرى) په مناسبت سره دا ذکر کړې وی لکه څنګه چه (اخرى) د (آخر) تانیث د مطلق تاخیر په معنی کښې مستعمل دې، دغه شان (حسنى) د (احسن) تانیث دې په مذکوره آیت کښې مطلقا د حسن په معنی مستعمل دې ([3])

## ۶۹- باب: قَوْلِهِ (أَمَنَةً نُعَاسًا)

[۴۲۸۶] حَدَّثَنَا إِسْحَاقُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ أَبُو يَعْقُوبَ حَدَّثَنَا حُسَيْنُ بْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا شَيْبَانُ عَنْ قَتَادَةَ حَدَّثَنَا أَنَسٌ أَنَّ أَبَا طَلْحَةَ قَالَ غَشِيَنَا النُّعَاسُ وَنَحْنُ فِي مَصَافِّنَا يَوْمَ أُحُدٍ - قَالَ - فَجَعَلَ سَيْفِي يَسْقُطُ مِنْ يَدِي وَآخُذُهُ، وَيَسْقُطُ وَآخُذُهُ.

## ۷۰- باب: قَوْلِهِ (الَّذِينَ اسْتَجَابُوا لِلَّهِ وَالرَّسُولِ مِنْ بَعْدِ مَا أَصَابَهُمُ الْقَرْحُ لِلَّذِينَ أَحْسَنُوا مِنْهُمْ وَاتَّقَوْا أَجْرٌ عَظِيمٌ)

(الْقَرْحُ) الْجِرَاحُ (اسْتَجَابُوا) أَجَابُوا. يَسْتَجِيبُ يُجِيبُ.

امام بخاری د استجابوا تفسیر په (استجابوا) سره کوی، ددې خودلو د پاره چه دلته (سین) د طلب د پاره نه دې.

## ۷۱- باب: (إِنَّ النَّاسَ قَدْ جَمَعُوا لَكُمْ)

[۴۲۸۷] حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ يُونُسَ - أُرَاهُ قَالَ - حَدَّثَنَا أَبُو بَكْرٍ عَنْ أَبِي حَصِينٍ عَنْ أَبِي الضُّحَى عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ (حَسْبُنَا اللَّهُ وَنِعْمَ الْوَكِيلُ) قَالَهَا إِبْرَاهِيمُ عَلَيْهِ السَّلاَمُ حِينَ أُلْقِيَ فِي النَّارِ، وَقَالَهَا مُحَمَّدٌ - صلى الله عليه وسلم - حِينَ قَالُوا (إِنَّ النَّاسَ قَدْ جَمَعُوا لَكُمْ فَاخْشَوْهُمْ فَزَادَهُمْ إِيمَانًا وَقَالُوا حَسْبُنَا اللَّهُ وَنِعْمَ الْوَكِيلُ).

[۴۲۸۸] حَدَّثَنَا مَالِكُ بْنُ إِسْمَاعِيلَ حَدَّثَنَا إِسْرَائِيلُ عَنْ أَبِي حَصِينٍ عَنْ أَبِي الضُّحَى عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ كَانَ آخِرَ قَوْلِ إِبْرَاهِيمَ حِينَ أُلْقِيَ فِي النَّارِ حَسْبِيَ اللَّهُ وَنِعْمَ الْوَكِيلُ

[1] عمدة القاری (۱۵۱/۱۸)-

[2] فتح الباری ۲۲۸/۸، ۲۲۷)-

[3] لامع الدراری ۴۳/۸، ۴۱) وتعلیقات اللامع الدراری ۴۳/۸)-

يعنى د (حَسْبُنَا اللّٰهُ وَنِعْمَ الْوَكِيلُ) كلمه كله د نبى ﷺ جد امجد حضرت ابراهيم عليه السلام په هغه وخت كښې وئيلې وه كوم وخت كښې چې هغوى په اور كښې واچولې شو، فرښتې راغلې او وې وئيل مونږ ستاسو مدد او نصرت اوكړو؟ نو حضرت ابراهيم عليه السلام ورته اوفرمائيل (حَسْبُنَا اللّٰهُ وَنِعْمَ الْوَكِيلُ) نبى ﷺ دا كلمه په هغه وخت كښې اووئيله كله چه ابوسفيان او د هغه ملګرو د احد نه پس واپسئ كښې اووئيل چې اوس به مقابله په راروان كال كيږى او په راروان كال نبى ﷺ د بدر پورې لاړلو او دا كلمه ئې اوفرمائيله.

عالمانو وئيلې دى چه (حَسْبُنَا اللّٰهُ وَنِعْمَ الْوَكِيلُ) د سختو او تكليفونو په وخت كښې وئيل ډير مجرب دى[1]

## ٧٢- باب: (وَلَا يَحْسَبَنَّ الَّذِينَ يَبْخَلُونَ بِمَا آتَاهُمُ اللّٰهُ مِنْ فَضْلِهِ)

(سَيُطَوَّقُونَ) كَقَوْلِكَ طَوَّقْتُهُ بِطَوْقٍ.

[٤٢٨٩] حَدَّثَنِي عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مُنِيرٍ سَمِعَ أَبَا النَّضْرِ حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمٰنِ -هُوَ ابْنُ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ دِينَارٍ- عَنْ أَبِيهِ عَنْ أَبِي صَالِحٍ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ -صلى الله عليه وسلم- «مَنْ آتَاهُ اللّٰهُ مَالًا فَلَمْ يُؤَدِّ زَكَاتَهُ، مُثِّلَ لَهُ مَالُهُ شُجَاعًا أَقْرَعَ، لَهُ زَبِيبَتَانِ يُطَوَّقُهُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ، يَأْخُذُ بِلِهْزِمَتَيْهِ -يَعْنِي بِشِدْقَيْهِ- يَقُولُ أَنَا مَالُكَ أَنَا كَنْزُكَ». ثُمَّ تَلَا هٰذِهِ الآيَةَ (وَلَا يَحْسَبَنَّ الَّذِينَ يَبْخَلُونَ بِمَا آتَاهُمُ اللّٰهُ مِنْ فَضْلِهِ) إِلَى آخِرِ الآيَةِ.

**قوله:** (سَيُطَوَّقُونَ): دغه خلقو ته به طوق واچولې شى وائى «طوقته بطوق» ما هغه ته طوق واچولو، ما د هغه په څټ كښې د طوق بار واچولو.

## ٧٣- باب: وَلَتَسْمَعُنَّ مِنَ الَّذِينَ أُوتُوا الْكِتَابَ مِنْ قَبْلِكُمْ وَمِنَ الَّذِينَ أَشْرَكُوا أَذًى كَثِيرًا)

[٤٢٩٠] حَدَّثَنَا أَبُو الْيَمَانِ أَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ أَخْبَرَنِي عُرْوَةُ بْنُ الزُّبَيْرِ أَنَّ أُسَامَةَ بْنَ زَيْدٍ -رضى الله عنهما- أَخْبَرَهُ أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ -صلى الله عليه وسلم- رَكِبَ عَلَى حِمَارٍ عَلَى قَطِيفَةٍ فَدَكِيَّةٍ، وَأَرْدَفَ أُسَامَةَ بْنَ زَيْدٍ وَرَاءَهُ، يَعُودُ سَعْدَ بْنَ عُبَادَةَ فِي بَنِي الْحَارِثِ بْنِ الْخَزْرَجِ قَبْلَ وَقْعَةِ بَدْرٍ -قَالَ- حَتَّى مَرَّ بِمَجْلِسٍ فِيهِ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ أُبَيٍّ ابْنُ سَلُولَ، وَذٰلِكَ قَبْلَ أَنْ يُسْلِمَ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ أُبَيٍّ فَإِذَا فِي الْمَجْلِسِ أَخْلَاطٌ مِنَ الْمُسْلِمِينَ وَالْمُشْرِكِينَ عَبَدَةِ الأَوْثَانِ وَالْيَهُودِ وَالْمُسْلِمِينَ، وَفِي الْمَجْلِسِ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ رَوَاحَةَ، فَلَمَّا غَشِيَتِ الْمَجْلِسَ عَجَاجَةُ الدَّابَّةِ خَمَّرَ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ أُبَيٍّ أَنْفَهُ بِرِدَائِهِ، ثُمَّ قَالَ لَا تُغَبِّرُوا عَلَيْنَا. فَسَلَّمَ رَسُولُ اللّٰهِ -صلى الله

---

[1]) فتح البارى ٨/٢٩٠)- ارشاد السارى ١٠/١١٥)-

عليه وسلم - عَلَيْهِمْ ثُمَّ وَقَفَ فَنَزَلَ فَدَعَاهُمْ إِلَى اللَّهِ، وَقَرَأَ عَلَيْهِمُ الْقُرْآنَ، فَقَالَ عَبْدُ اللَّهِ بْنُ أُبَيٍّ ابْنُ سَلُولَ أَيُّهَا الْمَرْءُ، إِنَّهُ لاَ أَحْسَنَ مِمَّا تَقُولُ، إِنْ كَانَ حَقًّا، فَلاَ تُؤْذِينَا بِهِ فِي مَجْلِسِنَا، ارْجِعْ إِلَى رَحْلِكَ، فَمَنْ جَاءَكَ فَاقْصُصْ عَلَيْهِ. فَقَالَ عَبْدُ اللَّهِ بْنُ رَوَاحَةَ بَلَى يَا رَسُولَ اللَّهِ، فَاغْشَنَا بِهِ فِي مَجَالِسِنَا، فَإِنَّا نُحِبُّ ذَلِكَ. فَاسْتَبَّ الْمُسْلِمُونَ وَالْمُشْرِكُونَ وَالْيَهُودُ حَتَّى كَادُوا يَتَثَاوَرُونَ، فَلَمْ يَزَلِ النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - يُخَفِّضُهُمْ حَتَّى سَكَنُوا، ثُمَّ رَكِبَ النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - دَابَّتَهُ فَسَارَ حَتَّى دَخَلَ عَلَى سَعْدِ بْنِ عُبَادَةَ، فَقَالَ لَهُ النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - «يَا سَعْدُ أَلَمْ تَسْمَعْ مَا قَالَ أَبُو حُبَابٍ». يُرِيدُ عَبْدَ اللَّهِ بْنَ أُبَيٍّ «قَالَ كَذَا وَكَذَا». قَالَ سَعْدُ بْنُ عُبَادَةَ يَا رَسُولَ اللَّهِ، اعْفُ عَنْهُ وَاصْفَحْ عَنْهُ، فَوَالَّذِي أَنْزَلَ عَلَيْكَ الْكِتَابَ، لَقَدْ جَاءَ اللَّهُ بِالْحَقِّ الَّذِي أَنْزَلَ عَلَيْكَ، لَقَدِ اصْطَلَحَ أَهْلُ هَذِهِ الْبُحَيْرَةِ عَلَى أَنْ يُتَوِّجُوهُ فَيُعَصِّبُونَهُ بِالْعِصَابَةِ، فَلَمَّا أَبَى اللَّهُ ذَلِكَ بِالْحَقِّ الَّذِي أَعْطَاكَ اللَّهُ شَرِقَ بِذَلِكَ، فَذَلِكَ فَعَلَ بِهِ مَا رَأَيْتَ. فَعَفَا عَنْهُ رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - وَكَانَ النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - وَأَصْحَابُهُ يَعْفُونَ عَنِ الْمُشْرِكِينَ وَأَهْلِ الْكِتَابِ كَمَا أَمَرَهُمُ اللَّهُ، وَيَصْبِرُونَ عَلَى الأَذَى قَالَ اللَّهُ عَزَّ وَجَلَّ (وَلَتَسْمَعُنَّ مِنَ الَّذِينَ أُوتُوا الْكِتَابَ مِنْ قَبْلِكُمْ وَمِنَ الَّذِينَ أَشْرَكُوا أَذًى كَثِيرًا) الآيَةَ، وَقَالَ اللَّهُ (وَدَّ كَثِيرٌ مِنْ أَهْلِ الْكِتَابِ لَوْ يَرُدُّونَكُمْ مِنْ بَعْدِ إِيمَانِكُمْ كُفَّارًا حَسَدًا مِنْ عِنْدِ أَنْفُسِهِمْ) إِلَى آخِرِ الآيَةِ، وَكَانَ النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - يَتَأَوَّلُ الْعَفْوَ مَا أَمَرَهُ اللَّهُ بِهِ، حَتَّى أَذِنَ اللَّهُ فِيهِمْ، فَلَمَّا غَزَا رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - بَدْرًا، فَقَتَلَ اللَّهُ بِهِ صَنَادِيدَ كُفَّارِ قُرَيْشٍ قَالَ ابْنُ أُبَيٍّ ابْنُ سَلُولَ، وَمَنْ مَعَهُ مِنَ الْمُشْرِكِينَ، وَعَبَدَةِ الأَوْثَانِ هَذَا أَمْرٌ قَدْ تَوَجَّهَ. فَبَايَعُوا الرَّسُولَ - صلى الله عليه وسلم - عَلَى الإِسْلاَمِ فَأَسْلَمُوا.

حضرت اسامه بن زيد فرمائى چې رسول الله ﷺ په يو خر باندې د فدک نه جوړه شوې کپړه کيخودو نه پس سور شو. حضرت اسامة رضي الله عنه ئې روستو کينولو او بنو حارث بن خروج د حضرت سعد بن عباده د بيمار پرسئ د پاره ئې تشريف يوړلو، دا د جنګ بدر نه وړاندې واقعه ده، په لاره کښې يو مجلس باندې تير شو عبدالله بن ابى سلول، مسلمانان او مشرکان مختلف قسم خلق جمع وو په دې مجلس کښې حضرت عبدالله بن رواحه هم وو، د نبى ﷺ د سورلئ دوړې په مجلس باندې والوتې، نو عبدالله بن ابى خپله پوزه په څادر باندې پټه کړه او وې وئيل دوړې مکوه: رسول الله سلام اوکړو او د سورلئ نه راکوز شو او اهل مجلس ته ئې د اسلام دعوت ورکړو په دې باندې عبدالله بن ابى اووئيل ته څه زياته بنه خبره نه کوې، اګر چه هغه حق وى خو په دې باندې مونږ ته تکليف مه رسوه، ته کور کينه څوک چه تا ته هلته درشى نو هغه ته بيان کوه.

په دې باندې حضرت عبدالله بن رواحه اووئيل ولې نه يا رسول الله ﷺ تاسو به زمونږ په

مجلسونو کښي دا کلام خامخا اوروئ، په مونږ باندې دا خبرې ښې لګي دي نه پس مسلمانانو مشرکانو او یهودو یو بل ته بدرد ونیل شروع کړل.
رسول الله ﷺ تول چپ کړل او د حضرت سعد بن عباده رضی الله عنه بیمار پرسۍ ته لاړو او د عبدالله بن ابی ګیله ئې ورته اوکړه، حضرت سعد رضی الله عنه اوفرمائیل چې هغه معاف کړه په اصل کښې ستاسو د راتلو نه وړاندې د مدینې خلقو د عبدالله بن ابی ته تاج په سرکولو او د ده په سر باندې د پټکی په تړلو ئې اتفاق کړې وو (چې دې به زمونږ سردار وی) خو چه کله الله تعالی تاسو راولیږلئ او الله تعالی چې تاسو ته کوم دین درکړې دې د هغې په ذریعه دې د سردارئی نه محروم شو نو دې مخالف شو او ددې وجې تاسو سره داسې قسم خبرې کوی نو نبی ﷺ هغه معاف کړو او نبی ﷺ او ددوی صحابو به مشرکانو او اهل کتابو ته معافی کوله او د هغوی په تکلیفونو باندې به ئې صبر کولو ځکه چې د الله تعالی دوی ته دا حکم هم وو، تردې چې الله تعالی دوی ته د جهاد حکم ورکړو ، د اجازت نه پس په غزوه بدر کښې د قریشو لوئې لوئې سرداران قتل کړې شو نو عبدالله بن ابی او د هغه ملګرو اووئیل چې دا اسلام دا معامله خو به اوس غالبه کیږی، ددې وجې دې خلقو بیعت اوکړو او په ظاهره مسلمانان شول، په دې روایت کښې څو الفاظ دی لږ هغې ته اوګورئې.

**قوله: قَطِيفَةٍ فَدَكِيَّةٍ:** (قطیفة) پیړې کپړې ته وائی او (فدکیة) فدک طرف ته منسوب دې، یعنی د مقام فدک پیړه کپړه، کمبل.

**قوله: فَلَمَّا غَشِيَتِ الْمَجْلِسَ عَجَاجَةُ الدَّابَّةِ:** (عجاجة) دوړې ته وائی یعنی کله چې په مجلس باندې د سورلئ نه پورته کیدونکې دوړه خوره شوه.

**قوله: خَمَّرَ عَبْدُ اللَّهِ بْنُ أُبَيٍّ أَنْفَهُ بِرِدَائِهِ:** یعنی عبدالله بن ابی خپله پوزه په خپل څادر باندې پټه کړه. د خمر معنی ده (پټول)

**قوله: لا تقول مما تقول عليك:** په دې کښې (لا) نافیه ده، او د (لا) نافیه خبر محذوف دې (لا احسن كائنت مما تقول)

بعضو ونیلې دی چې احسن خبر دې او مرفوع دې او (لا) ددې اسم محذوف دې یعنی (لا شئ احسن مما تقول) او د کشمیهنی په روایت کښې (احسن) د اسم تفضیل صیغه نشته بلکه د باب افعال نه د مضارع واحد متکلم صیغه ده (لا احسن) او په روایت کښې (لا احسن) دې په دې کښې (لا) نافیه نه دې بلکه (احسن) اسم تفضیل باندې لام تاکید دې او معنی ده (لاحسن من هذا ان تقعد في بيتك ولا تاتينا) یعنی ددې نه غوره دا ده چې په خپل کور کښې کینې او مونږ ته نه راځې [1]

[1] عمدة القاری ۱۸/۱۵۶) وفتح الباری ۸/۲۳۲)-

قوله: لَقَدِ اصْطَلَحَ أَهْلُ هَذِهِ الْبُحَيْرَةِ عَلَى أَنْ يُتَوِّجُوهُ فَيُعَصِّبُونَهُ بِالْعِصَابَةِ: (بحيرة بفتح الباء وكسر الالحاء او بضم الباء و فتح الحاء المهملة) د مديني منوري نوم دي [1] د (توج يتوج) معنى ده (تاج په سر کولو يعنى د مديني خلقو اتفاق کړې وو چه ده ته به تاج اچوی او دده په سر به د سرداری پټکی تړی.

قوله: . فَبَايَعُوا الرَّسُولَ - صلى الله عليه وسلم - عَلَى الإِسْلاَمِ فَأَسْلَمُوا: ددې نه ظاهری اسلام مراد دې چه دې خلقو حالات اوکتل نو په ظاهری ډول ئې اسلام قبول کړو.

## ۷۴- باب: (لاَ يَحْسِبَنَّ الَّذِينَ يَفْرَحُونَ بِمَا أَتَوْا)

[۴۲۹۱] حَدَّثَنَا سَعِيدُ بْنُ أَبِي مَرْيَمَ أَخْبَرَنَا مُحَمَّدُ بْنُ جَعْفَرٍ قَالَ حَدَّثَنِي زَيْدُ بْنُ أَسْلَمَ عَنْ عَطَاءِ بْنِ يَسَارٍ عَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ - رضى الله عنه - أَنَّ رِجَالاً مِنَ الْمُنَافِقِينَ عَلَى عَهْدِ رَسُولِ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - كَانَ إِذَا خَرَجَ رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - إِلَى الْغَزْوِ تَخَلَّفُوا عَنْهُ، وَفَرِحُوا بِمَقْعَدِهِمْ خِلاَفَ رَسُولِ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - فَإِذَا قَدِمَ رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - اعْتَذَرُوا إِلَيْهِ وَحَلَفُوا، وَأَحَبُّوا أَنْ يُحْمَدُوا بِمَا لَمْ يَفْعَلُوا، فَنَزَلَتْ (لاَ يَحْسِبَنَّ الَّذِينَ يَفْرَحُونَ) الآيَةَ.

[۴۲۹۲] حَدَّثَنِي إِبْرَاهِيمُ بْنُ مُوسَى أَخْبَرَنَا هِشَامٌ أَنَّ ابْنَ جُرَيْجٍ أَخْبَرَهُمْ عَنِ ابْنِ أَبِي مُلَيْكَةَ أَنَّ عَلْقَمَةَ بْنَ وَقَّاصٍ أَخْبَرَهُ أَنَّ مَرْوَانَ قَالَ لِبَوَّابِهِ اذْهَبْ يَا رَافِعُ إِلَى ابْنِ عَبَّاسٍ فَقُلْ لَئِنْ كَانَ كُلُّ امْرِئٍ فَرِحَ بِمَا أُوتِيَ، وَأَحَبَّ أَنْ يُحْمَدَ بِمَا لَمْ يَفْعَلْ، مُعَذَّبًا، لَنُعَذَّبَنَّ أَجْمَعُونَ. فَقَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ وَمَا لَكُمْ وَلِهَذِهِ إِنَّمَا دَعَا النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - يَهُودَ فَسَأَلَهُمْ عَنْ شَىْءٍ، فَكَتَمُوهُ إِيَّاهُ، وَأَخْبَرُوهُ بِغَيْرِهِ، فَأَرَوْهُ أَنْ قَدِ اسْتَحْمَدُوا إِلَيْهِ بِمَا أَخْبَرُوهُ عَنْهُ فِيمَا سَأَلَهُمْ، وَفَرِحُوا بِمَا أُوتُوا مِنْ كِتْمَانِهِمْ، ثُمَّ قَرَأَ ابْنُ عَبَّاسٍ (وَإِذْ أَخَذَ اللَّهُ مِيثَاقَ الَّذِينَ أُوتُوا الْكِتَابَ) كَذَلِكَ حَتَّى قَوْلِهِ (يَفْرَحُونَ بِمَا أَتَوْا وَيُحِبُّونَ أَنْ يُحْمَدُوا بِمَا لَمْ يَفْعَلُوا). تَابَعَهُ عَبْدُ الرَّزَّاقِ عَنِ ابْنِ جُرَيْجٍ.

حَدَّثَنَا ابْنُ مُقَاتِلٍ أَخْبَرَنَا الْحَجَّاجُ عَنِ ابْنِ جُرَيْجٍ أَخْبَرَنِي ابْنُ أَبِي مُلَيْكَةَ عَنْ حُمَيْدِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ عَوْفٍ أَنَّهُ أَخْبَرَهُ أَنَّ مَرْوَانَ بِهَذَا.

امام بخاری ددې ایت په سبب نزول کښې دوه واقعات ذکر کړې دی،
اولنی واقعه د حضرت ابوسعید خدری رضی الله عنه په روایت کښې د ه چه منافقانو به د نبی صلی الله علیه وسلم سره

---

[1] اهل هذا البحيرة فى رواية الحموى البحيرة) بالتصغير. وهذا اللفظ يطلق على القرية وعلى البلد والمراد به ههنا المدينة المنورة ونقل ياقوت: ان البحرة من اسماء المدينة المنورة (فتح البارى) (۲۳۲/۸) ومعجم البلدان ۳۴۶/۱)-

غزواتو كښې شركت نه كولو، رسول اللهﷺ چه به كله د دې غزواتو نه تشريف راوړلو نو دا خلق به ئې د نبیﷺ حاضر.شو او عذرونه به ئې پيش كول او قسمونه به ئې خوړل چه مونږ معذور وو او زړه مو غوښتل چه تاسو سره شركت او كړو خو د عذر په وجه مو شركت اونكړې شو نو يو طرف ته خو په دې خوشحاليدل چې جهاد ته لاړ نشو او بل طرف ته د خپل تعريف توقع كوله، په دې خبره چې دوی صرف د عذر په وجه پاتې شوې وو حالانكه دا چه هغوی به معذور نه وو په دې باندې دا ايت نازل شو.

دوېمه واقعه دعلقمه بن ابی وقاص په روايت كښې ده مروان بن حكم حضرت ابن عباسؓ ته سړې اوليږلو او تپوس ئې ترې او كړو چه په ايت كريمه كښې دی ﴿وَّيُحِبُّوْنَ اَنْ يُّحْمَدُوْا بِمَا لَمْ يَفْعَلُوْا﴾ يعنی د عمل نه بغير دوی غواړی چې ددوی تعريف اوكړې شی ، دا به د عذاب سبب جوړيږی نو هر سړې چې دا غواړی چې كوم عمل ده نه وی كړې په هغې باندې دې هم دده تعريف اوكړې شی نو عذاب به ورته ملاويږی، نو بيا خو به مونږ ټول معذب كيږو(ځكه چې زمونږ د ټولو هم دا حالت دې) حضرت ابن عباسؓ اوفرمائيل ستاسو ددې ايت سره څه تعلق دې؟ بيا ئې ددې ايت سبب نزول بيانولو سره حضرت ابن عباسؓ اوفرمائيل چې نبیﷺ يهوديان راوبلل او د هغوی نه ئې څه تپوس اوكړو يهوديانو ورته اصل خبره بيان نه كړه، بله خبره ئې ورته بيان كړه او ورسره ددوی دا خواهش پيداشو چې د رسول اللهﷺ د سوال په جواب كښې چې دوی كومه خبره بيان كړه په دې باندې ددوی تعريف اوشی، نو يو طرف ته د اصل او حق خبرې پټولو باندې خوشحاله وو او بل طرف ته ئې غوښتل چې ددوی تعريف دې هم اوشی په دې باندې دا ذكر شوې ايت نازل شو.﴿يَفْرَحُوْنَ بِمَآ اَتَوْا وَّيُحِبُّوْنَ اَنْ يُّحْمَدُوْا بِمَا لَمْ يَفْعَلُوْا﴾

امام بخاری دا دواړه واقعات ددې ايت په سبب نزول كښې بيان كړې دی او دا خبره تاسو پيژنئ چه په سبب نزول كښې مختلف واقعات راتلې شی.

## ٧٥-باب: قوله: ﴿إِنَّ فِي خَلْقِ السَّمٰوٰتِ وَالْأَرْضِ﴾

[٤٢٩٣] حَدَّثَنَا سَعِيدُ بْنُ أَبِي مَرْيَمَ أَخْبَرَنَا مُحَمَّدُ بْنُ جَعْفَرٍ قَالَ أَخْبَرَنِي شَرِيكُ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ أَبِي نَمِرٍ عَنْ كُرَيْبٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ - رضي الله عنهما - قَالَ بِتُّ عِنْدَ خَالَتِي مَيْمُونَةَ، فَتَحَدَّثَ رَسُولُ اللّٰهِ - صلى الله عليه وسلم - مَعَ أَهْلِهِ سَاعَةً ثُمَّ رَقَدَ، فَلَمَّا كَانَ ثُلُثُ اللَّيْلِ الآخِرُ قَعَدَ فَنَظَرَ إِلَى السَّمَاءِ فَقَالَ (إِنَّ فِي خَلْقِ السَّمٰوٰتِ وَالْأَرْضِ وَاخْتِلَافِ اللَّيْلِ وَالنَّهَارِ لَآيَاتٍ لِأُولِي الْأَلْبَابِ)، ثُمَّ قَامَ فَتَوَضَّأَ وَاسْتَنَّ، فَصَلَّى إِحْدَى عَشْرَةَ رَكْعَةً، ثُمَّ أَذَّنَ بِلَالٌ فَصَلَّى رَكْعَتَيْنِ، ثُمَّ خَرَجَ فَصَلَّى الصُّبْحَ.

امام بخاری رحمه الله وړاندې تر سورة نساء پورې د مختلفو بابونو لاندې هم هغه يو حديث د ليلة المبيت والا ذكر كړې دې د مبيت واقعه د فتح مكې نه روستو ده كله چه حضرت ابن عباسؓ د خپلې ترور ام المؤمنين حضرت ميمونهؓ كره لاړلو او هلته ئې د نبیﷺ د شپې د معمولات اوكتل نو په هغې كښې يو معمول دا بيانوی چې نبیﷺ د راويښيدو نه پس

آسمان طرف ته نظر پورته کړو او د سورة آل عمران ددې ایت «ان فی خلق السموات والارض» نه واخله تر د سورة آخره پورې ئې یولس آیاتونه اولوستلې، دلته په ایت کښې د لسو آیاتونو ذکر راغلې دې او دلته په روایت کښې کسر حذف کړې شوې دې
ددې نه معلومه شوه که یو کس د شپې رابیدار شي نو د سنتو په اتباع کښې دا ایاتونه لوستل پکار دی.

## ٧٦-باب: قوله: «الَّذِينَ يَذْكُرُونَ اللَّهَ قِيَامًا وَقُعُودًا وَعَلَى جُنُوبِهِمْ وَيَتَفَكَّرُونَ فِي خَلْقِ السَّمَوَاتِ وَالأَرْضِ»

[٤٢٩٤] حَدَّثَنَا عَلِيُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ مَهْدِي عَنْ مَالِكِ بْنِ أَنَسٍ عَنْ مَخْرَمَةَ بْنِ سُلَيْمَانَ عَنْ كُرَيْبٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ - رضى الله عنهما - قَالَ بِتُّ عِنْدَ خَالَتِي مَيْمُونَةَ فَقُلْتُ لأَنْظُرَنَّ إِلَى صَلاَةِ رَسُولِ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - فَطُرِحَتْ لِرَسُولِ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - وِسَادَةٌ، فَنَامَ رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - فِي طُولِهَا، فَجَعَلَ يَمْسَحُ النَّوْمَ عَنْ وَجْهِهِ، ثُمَّ قَرَأَ الآيَاتِ الْعَشْرَ الأَوَاخِرَ مِنْ آلِ عِمْرَانَ حَتَّى خَتَمَ، ثُمَّ أَتَى شَنًّا مُعَلَّقًا، فَأَخَذَهُ فَتَوَضَّأَ، ثُمَّ قَامَ يُصَلِّي، فَقُمْتُ فَصَنَعْتُ مِثْلَ مَا صَنَعَ ثُمَّ جِئْتُ فَقُمْتُ إِلَى جَنْبِهِ، فَوَضَعَ يَدَهُ عَلَى رَأْسِي، ثُمَّ أَخَذَ بِأُذُنِي، فَجَعَلَ يَفْتِلُهَا، ثُمَّ صَلَّى رَكْعَتَيْنِ، ثُمَّ صَلَّى رَكْعَتَيْنِ، ثُمَّ صَلَّى رَكْعَتَيْنِ، ثُمَّ صَلَّى رَكْعَتَيْنِ، ثُمَّ صَلَّى رَكْعَتَيْنِ، ثُمَّ صَلَّى رَكْعَتَيْنِ، ثُمَّ أَوْتَرَ.

## ٧٧-باب: «رَبَّنَا إِنَّكَ مَنْ تُدْخِلِ النَّارَ فَقَدْ أَخْزَيْتَهُ وَمَا لِلظَّالِمِينَ مِنْ أَنْصَارٍ»

[٤٢٩٥] حَدَّثَنَا عَلِيُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ حَدَّثَنَا مَعْنُ بْنُ عِيسَى حَدَّثَنَا مَالِكٌ عَنْ مَخْرَمَةَ بْنِ سُلَيْمَانَ عَنْ كُرَيْبٍ مَوْلَى عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَبَّاسٍ أَنَّ عَبْدَ اللَّهِ بْنَ عَبَّاسٍ أَخْبَرَهُ أَنَّهُ بَاتَ عِنْدَ مَيْمُونَةَ زَوْجِ النَّبِيِّ - صلى الله عليه وسلم - وَهْيَ خَالَتُهُ قَالَ فَاضْطَجَعْتُ فِي عَرْضِ الْوِسَادَةِ، وَاضْطَجَعَ رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - وَأَهْلُهُ فِي طُولِهَا، فَنَامَ رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - حَتَّى انْتَصَفَ اللَّيْلُ، أَوْ قَبْلَهُ بِقَلِيلٍ، أَوْ بَعْدَهُ بِقَلِيلٍ، ثُمَّ اسْتَيْقَظَ رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - فَجَعَلَ يَمْسَحُ النَّوْمَ عَنْ وَجْهِهِ بِيَدَيْهِ، ثُمَّ قَرَأَ الْعَشْرَ الآيَاتِ الْخَوَاتِمَ مِنْ سُورَةِ آلِ عِمْرَانَ، ثُمَّ قَامَ إِلَى شَنٍّ مُعَلَّقَةٍ فَتَوَضَّأَ مِنْهَا، فَأَحْسَنَ وُضُوءَهُ، ثُمَّ قَامَ يُصَلِّي، فَصَنَعْتُ مِثْلَ مَا صَنَعَ، ثُمَّ ذَهَبْتُ فَقُمْتُ إِلَى جَنْبِهِ، فَوَضَعَ رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - يَدَهُ الْيُمْنَى عَلَى رَأْسِي، وَأَخَذَ بِأُذُنِي بِيَدِهِ الْيُمْنَى يَفْتِلُهَا، فَصَلَّى رَكْعَتَيْنِ، ثُمَّ رَكْعَتَيْنِ، ثُمَّ رَكْعَتَيْنِ، ثُمَّ رَكْعَتَيْنِ، ثُمَّ رَكْعَتَيْنِ، ثُمَّ رَكْعَتَيْنِ، ثُمَّ أَوْتَرَ، ثُمَّ اضْطَجَعَ حَتَّى جَاءَهُ الْمُؤَذِّنُ، فَقَامَ فَصَلَّى رَكْعَتَيْنِ خَفِيفَتَيْنِ، ثُمَّ خَرَجَ فَصَلَّى الصُّبْحَ.

## ٧٨- باب: قوله: (ربنا إننا سمعنا مناديا ينادي للإيمان)

[٤٢٩٦] حدثنا قتيبة بن سعيد عن مالك عن مخرمة بن سليمان عن كريب مولى ابن عباس أن ابن عباس - رضي الله عنهما - أخبره أنه بات عند ميمونة زوج النبي - صلى الله عليه وسلم - وهي خالته قال فاضطجعت في عرض الوسادة، واضطجع رسول الله - صلى الله عليه وسلم - وأهله في طولها، فنام رسول الله - صلى الله عليه وسلم - حتى إذا انتصف الليل، أو قبله بقليل، أو بعده بقليل، استيقظ رسول الله - صلى الله عليه وسلم - فجلس يمسح النوم عن وجهه بيده، ثم قرأ العشر الآيات الخواتم من سورة آل عمران، ثم قام إلى شن معلقة فتوضأ منها، فأحسن وضوءه، ثم قام يصلي. قال ابن عباس فقمت فصنعت مثل ما صنع، ثم ذهبت فقمت إلى جنبه، فوضع رسول الله - صلى الله عليه وسلم - يده اليمنى على رأسي، وأخذ بأذني اليمنى يفتلها، فصلى ركعتين، ثم ركعتين، ثم ركعتين، ثم ركعتين، ثم ركعتين، ثم ركعتين، ثم أوتر ثم، اضطجع حتى جاءه المؤذن، فقام فصلى ركعتين خفيفتين، ثم خرج فصلى الصبح.

## ٧٩- باب: سورة النساء

قال ابن عباس يستنكف يستكبر. قواما قوامكم من معايشكم. (لهن سبيلا) يعني الرجم للثيب والجلد للبكر، وقال غيره (مثنى وثلاث) يعني اثنتين وثلاثا وأربعا، ولا تجاوز العرب رباع.

## سورة النساء

قال ابن عباس يستنكف يستكبر.

(لن يستنكف المسيح أن يكون عبدا لله ولا الملائكة المقربون ومن يستنكف عن عبادته ويستكبر فسيحشرهم إليه جميعا○)

حضرت ابن عباس رضی الله عنهما د (يستنكف) تفسير په (يستكبر) سره كړې دې په دې صورت كښې به په آيت كريمه كښې (يستكبر) د (يستنكف) د پاره عطف تفسير وى، د استنكاف اصل معنى (پيغور كنړل او سپك كنړلو باندې، ورېزې رابنكلو د پاره راځى.

**قوله: قواما قوامكم من معايشكم:** (ولا تؤتوا السفهاء أموالكم التي جعل الله لكم قياما وارزقوهم فيها) د حضرت ابن عباس رضی الله عنهما دوه قراءتونه دلته دى په دې يو قراءت كښې (قواما) دې، دا ابن ابى حاتم نقل كړې دې[1]، امام بخارى دلته هم دا روايت نقل كړې دې او بل قراءت (قياما) دې، دا

[1] فتح البارى ٨/٢٣٧)-

امام طبری رحمه الله نقل کړې دي(۱) د (قواما) تفسیر امام بخاري رحمه الله کړې دي (قوامکم من معایشکم) یعنی هغه څیزونه چې د هغې په ذریعه د معیشت او ژوند قیام کیږي.

**قوله:** لَهُنَّ سَبِيلًا) يَعْنِي الرَّجْمَ لِلثَّيِّبِ وَالْجَلْدَ لِلْبِكْرِ: (وَالَّتِي يَأْتِينَ الْفَاحِشَةَ مِنْ نِسَائِكُمْ فَاسْتَشْهِدُوا عَلَيْهِنَّ أَرْبَعَةً مِنْكُمْ فَإِنْ شَهِدُوا فَأَمْسِكُوهُنَّ فِي الْبُيُوتِ حَتَّى يَتَوَفَّاهُنَّ الْمَوْتُ أَوْ يَجْعَلَ اللَّهُ لَهُنَّ سَبِيلًا)

په ابتداء د اسلام کښې د زناکارو ښځو د پاره د سزا په ډول د حبس فی البیوت حکم وو خو دا حکم بیا منسوخ شو او الله تعالی بلّه لاره بیان کړه چې ثیبه به رجم کولې شي او ثیبه به رجم کولې شي.

**د مثنی و ثلاث و رباع تفسیر:**

**قوله:** مَثْنَى وَثُلَاثَ) يَعْنِي اثْنَتَيْنِ وَثَلَاثًا وَأَرْبَعًا، وَلَا تُجَاوِزُ الْعَرَبُ رُبَاعَ: د (غیره) ضمیر حضرت ابن عباس رضی الله عنه طرف ته راجع کیږي اودا تفسیر ابوعبیده په، مجاز القران کښې کړې دي (۲) اشکال کیږي چه د (مَثْنَى وَثُلَثَ) په معنی کښې تکرار وو، هغوی په تفسیر کښې ددې تکرار ذکر نه دې کړې، ددې په جواب کښې خو یا دا وئیلې شي چه د شهرت په وجه هغوی د تکرار ذکر اونکړو اودا هم ممکن ده چې ددوی په نیز په دې معنی کښې تکرار نه وي اودریمه خبره داهم کیدې شي چې دلته تکرار مقصودنه دې ځکه ئې دلته ددې ذکر اونکړو(۳) ددې نه پس امام بخاري فرمائیلي دي دا عدد د (رباع) پورې استعمالولې شي ددې نه وړاندې (حماس) (حمس) نه استعمالوي، خو ددې باره کښې د نحاتو اختلاف دې کوفیان وائی چې په دې د قیاس دخل دې او د (رباع) نه وړاندې تر د (عشار، معشر) پورې استعمالیدې شي، او بصریان وائی چې په دې کښې د قیاس دخل نشته، د اهل عرب نه د (رباع) پورې منقول دې ددې وجې صرف ددې ځائې پورې به استعمالولې شي ددې نه وړاندې نه،(۴) راجح قول د بصریانو دې او امام صاحب هم دا اختیار کړې دې،

په دې ټولو کښې دوه لغته دي (فعال) او (مفعل) وائی چې د (احاد، موحد، ثناء، مثنی، ثلاث مثلث) ابواسحاق ثعلبي یو دریم روایت هم نقل کړې دې (فعل احد ثنی ثلاث) د (عمر) او (زفر) (۵) پشان ترکیب کښې دا غیر منصرف دې، عدل او وصف دوه سببونه په دې کښې موجود دي.

**د ایت کریمه نه یو غلط استدلال او د هغې جواب:** د قران کریم ددې ایت نه استدلال کوي، بعضې اهل ظواهرو او خوارجو وئیلي دي چې ددې ایت نه د نهه ښځو سره د نکاح کولو جواز

(۱) حواله بالا_
(۲) فتح الباری ۲۳۷/۸) وعمدة القاری ۱۶۲/۱۸)-
(۳) عمدة القاری ۱۶۲/۱۸)-
(۴) فتح الباری ۲۳۸/۸)وعمدة القاری ۱۶۳/۱۸)-
(۵) الجامع لاحکام القران ۵۵/۱۵)-

ثابتيږي څکه چې دې کښې (واو) د جمع د پاره دې نو دوه او درې پنځه او بیا پنځه او څلور ، نو نهه شوې، د خپلې دې بې وزنه خبرې تائید هغوی ددې نه هم کړې دې چه رسول الله ﷺ هم نهه بيبيانې کړې وې.

بعضې اهل ظواهر ددې نه هم وړاندې تللې دی او وائی چې په آیت کریمه کښې د اتلس ښځو سره د نکاح جواز معلومیږی څکه چې د مثنی ،ثلاث، او رباع په معنی کښې تکرار دې نو دوه او دوه څلور، ،درې او درې شپږ، ،څلور او څلور اته، ،دغه شان څلور ، شپږ او اته اتلس شوې ،([1])

خو ددې خلقو دا استدلال په جهالت باندې مبنی دې د سنت او اجماع امت نه خلاف دې په صحابه ،تابعینو او تبع تابعینو کښې د چا نه هم د څلورو نه زیات ښځو سره نکاح ثابته نه ده، امام مالک په مؤطا کښې ، امام نسائی او دارقطنی په خپل خپل سنن کښې روایت نقل کړې دې چې غیلان بن امیه ثقفی چه اسلام قبول کړو نو د هغه سره لس ښځې وې نبی ﷺ هغوی ته اوفرمائیل (اختر منهن اربعا وفارق سائرهن)([2])

باقی پاتې شوه د نبی ﷺ نهه نکاحونه ، نو دا د نبی ﷺ په خصوصیاتو کښې وه،([3])

بیا بله خبره دا ده چه قران کریم د نهه یا اتلس ښځو د نکاح اجازت ورکولو نو د (تسع) یا د (ثمان عشرة) لفظ به ئې استعمال کړې وو څکه چه په دې کښې اختصار دې او د اسلوب قران سره بیخی موافق وو خو قران دا لفظ استعمال کړې نه دې ددې نه ښکاره معلومیږی چې د قران مقصود هغه نه دې کوم چې دا جاهلان ګڼړی.

دې حضراتو (واو) د جمعې په معنی کښې اخستې دې خو (واو) د جمعې د پاره نه دې علامه قرطبی رحمه الله په خپل تفسیر کښې ددې لاندې لیکلې دی چه دلته (واو) په ځائې دبدل کښې استعمال شوې دې اودآیت مطلب دې (انکحوا ثلاثا بدلا من مثنی ورباع بدلا من ثلاث) یعنی ددواوپه ځائې ددریوسره نکاح کولې شئ ددریوپه ځائې دڅلوروسره نکاح کولې شې.

اوحضرت زین العابدین رحمه الله فرمائیلی دی چې دلته (واو)داو په معنی کښې دې یعنی یاد دواو سره نکاح کوئ یاڅلوروسره.

بعضې اهل ظاهرواوخوارجو مثنی ،ثلاث اورباع معنی تکراراخستې اوداتلسوښځوپه جواز باندې کوم استدلال کړې دې هغه هم صحیح نه دې یوخوپه دې وجه لکه چې اوونیلې شوچې واوجمع دپاره نه دې ،دویم ددې دپاره چې داخطاب دتوزیع اوتقسیم په توګه دې اوددې خطاب مخاطبت هم ډیردی اوپه داسې صورت کښې قاعده داوی چې دتوزیع دخطاب نه پس کوم ضمیرراځی هغه هم موزعا مراد وی. قاضی ثناالله پانی پتی رحمه الله په تفسیرمظهری کښې دا قاعده دمثال په توګه داسې واضح کړې دې مثلا چې یوسړې یوې ډلې ته اووائی (خذوا من

---

[1]) الجامع لاحکام القران (۱۷/۵)-

[2]) تفسیر ابن کثیر (۴۵۰/۵) والجامع لاحکام القران (۱۷/۵)-

[3]) الجامع لاحکام القران (۱۷/۵) وتفسیر ابن کثیر (۴۵۱/۱)-

هذه الدراهم مثنى) نوددې مطلب به داوی چې هرسړې دې دوه دوه درهمه اوچت کړی نوددې به دا مطلب هيڅ کله نه وی چې هرسړې دې څلوردرهمه اوچت کړی [1] مولانا عبدالحئ لکهنوی رحمه الله د شرح وقايه په شرح اوحاشيه کښې په دې قاعده باندې ډيره تفصيلی خبره کړې ده [2].

## باب: وَإِنْ خِفْتُمْ أَلَّا تُقْسِطُوا فِي الْيَتَامَى

[٤٢٩٧] حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ مُوسَى أَخْبَرَنَا هِشَامٌ عَنِ ابْنِ جُرَيْجٍ قَالَ أَخْبَرَنِي هِشَامُ بْنُ عُرْوَةَ عَنْ أَبِيهِ عَنْ عَائِشَةَ - رضي الله عنها - أَنَّ رَجُلاً كَانَتْ لَهُ يَتِيمَةٌ فَنَكَحَهَا، وَكَانَ لَهَا عَذْقٌ، وَكَانَ يُمْسِكُهَا عَلَيْهِ، وَلَمْ يَكُنْ لَهَا مِنْ نَفْسِهِ شَيْءٌ فَنَزَلَتْ فِيهِ (وَإِنْ خِفْتُمْ أَنْ لاَ تُقْسِطُوا فِي الْيَتَامَى) أَحْسِبُهُ قَالَ كَانَتْ شَرِيكَتَهُ فِي ذَلِكَ الْعَذْقِ وَفِي مَالِهِ.

[٤٢٩٨] حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيزِ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ سَعْدٍ عَنْ صَالِحِ بْنِ كَيْسَانَ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ قَالَ أَخْبَرَنِي عُرْوَةُ بْنُ الزُّبَيْرِ أَنَّهُ سَأَلَ عَائِشَةَ عَنْ قَوْلِ اللَّهِ تَعَالَى (وَإِنْ خِفْتُمْ أَنْ لاَ تُقْسِطُوا فِي الْيَتَامَى). فَقَالَتْ يَا ابْنَ أُخْتِي، هَذِهِ الْيَتِيمَةُ تَكُونُ فِي حَجْرِ وَلِيِّهَا، تَشْرَكُهُ فِي مَالِهِ وَيُعْجِبُهُ مَالُهَا وَجَمَالُهَا، فَيُرِيدُ وَلِيُّهَا أَنْ يَتَزَوَّجَهَا، بِغَيْرِ أَنْ يُقْسِطَ فِي صَدَاقِهَا، فَيُعْطِيَهَا مِثْلَ مَا يُعْطِيهَا غَيْرُهُ، فَنُهُوا عَنْ أَنْ يَنْكِحُوهُنَّ، إِلاَّ أَنْ يُقْسِطُوا لَهُنَّ، وَيَبْلُغُوا لَهُنَّ أَعْلَى سُنَّتِهِنَّ فِي الصَّدَاقِ، فَأُمِرُوا أَنْ يَنْكِحُوا مَا طَابَ لَهُمْ مِنَ النِّسَاءِ سِوَاهُنَّ. قَالَ عُرْوَةُ قَالَتْ عَائِشَةُ وَإِنَّ النَّاسَ اسْتَفْتَوْا رَسُولَ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - بَعْدَ هَذِهِ الآيَةِ فَأَنْزَلَ اللَّهُ (وَيَسْتَفْتُونَكَ فِي النِّسَاءِ) قَالَتْ عَائِشَةُ وَقَوْلُ اللَّهِ تَعَالَى فِي آيَةٍ أُخْرَى (وَتَرْغَبُونَ أَنْ تَنْكِحُوهُنَّ) رَغْبَةُ أَحَدِكُمْ عَنْ يَتِيمَتِهِ حِينَ تَكُونُ قَلِيلَةَ الْمَالِ وَالْجَمَالِ قَالَتْ فَنُهُوا أَنْ يَنْكِحُوا عَنْ مَنْ رَغِبُوا فِي مَالِهِ وَجَمَالِهِ فِي يَتَامَى النِّسَاءِ، إِلاَّ بِالْقِسْطِ، مِنْ أَجْلِ رَغْبَتِهِمْ عَنْهُنَّ إِذَا كُنَّ قَلِيلاَتِ الْمَالِ وَالْجَمَالِ. [ر: ٢٣٦٢]

بعضې رافضيان وائی چې (وَإِنْ خِفْتُمْ) شرط دې او (فَانْكِحُوا) جزاء ده اودشرط اوجزاء په مينځ کښې څه ربط نشته .دقرآن دريمه حصه ددې شرط اوجزاء په مينځ کښې غائبه کړې شوې ده،ددې وجې په عبارت کښې ربط نشته حالانکه چې داضروری دې .

دلته دباب په دواړوروايا تو کښې ددې آيت سبب نزول بيان شوې دې او په دې سره په شرط اوجزاء کښې ربط اودآيت کريمه مطلب په پوهه کښې راځی .

اولنې روايت دحضرت عائشې رضي الله عنها دې فرمائی چې ديو کس سره يتيمه جينۍ وه ،ددغه جينۍ

[1] اوګورئی تفسير مظهری ج٢ص٧)

[2] السعاية فی کشف مافی شرح الوقاية (ج١ص٧١وغاية

یو باغ وو. دغه کس چې ددغه جینئ ولي وو دغه جینئ سره صرف ددغه باغ په وجه واده اوکړو حال دا چې په زړه کښې ئې دهغې سره څه محبت اوتعلق نه وونو ددې په باره کښې دا آیت نازل شو (وَاِنْ خِفْتُمْ اَلَّا تُقْسِطُوْا) دا آیت مطلب دادې چې په داسې صورت کښې چې ستاسو دزړه نه تعلق نه وی او دیتیمې جینئ سره محبت نه وی اوتاسو ته ویره وی چې دهغوی په باره کښې به تاسو انصاف اونکړئ نودنورو حلالو ښځو سره نکاح کوئ کومې چې ستاسو خوښې وی.

**قوله:** احسبه قال کانت شریکته فی ذلك العذق وفی ماله: هشام وائی چې زما خیال دې چې حضرت عروه رضی الله عنه وئیلی دی چې په باغ کښې اوددغه کس (ولی) سره په مال کښې دایتیمه جینئ شریکه وه. د(احسبه) قائل دابن جریج شاګرد هشام بن یوسف دې اود(قال) ضمیر حضرت عروه رضی الله عنه طرف ته راجع دې علامه عینی رحمه الله فرمائیلی دی چې د(احسبه) قائل هشام بن عروه هم کیدې شی[1]. اود قال ضمیر دغه شان حضرت عروه رضی الله عنه طرف ته راجع دې.

(عَذق): دعین په فتحې سره، دکهجورې ونه جمع ئې (اعذق) راځې او(عِذق) دعین په کسرې سره دانګورو غونچې اود کهجورو غوشې ته وائی[2]

دویم روایت هم دحضرت عائشې رضی الله عنها نه مروی دې حضرت عروه ددوی نه دقرآن پاك ددې ذکرشوی آیت په باره کښې نازل شوې دې کومه چې دخپل ولی په پرورش کښې وی اوهغه ورسره په مال کښې نازل شوې دې کومه چې دخپل ولی په پرورش کښې وی اوهغه ورسره په مال کښې شریك وی. دولی ددغه ښځې مال اوجمال خوښ وی خوولی په مهرکښې دانصاف نه بغیردهغې سره نکاح کول غواړی نوداسې کسان ددې یتیمانوجینکوسره دنکاح کولو نه منع کړې شول. البته که انصاف کولې شی اوپوره مهرورکولې شي نوبیا اجازت دې.

حضرت عائشه رضی الله عنها فرمائی چې ددې آیت دنازلیدونه پس خلقودرسول الله صلی الله علیه وسلم نه تپوسونه شروع کړل نو الله تعالی بل آیت نازل کړل (وَيَسْتَفْتُوْنَكَ فِي النِّسَآءِ ۭ قُلِ اللّٰهُ يُفْتِيْكُمْ فِيْهِنَّ ۙ وَمَا يُتْلٰى عَلَيْكُمْ فِي الْكِتٰبِ فِيْ يَتٰمَى النِّسَآءِ الّٰتِيْ لَا تُؤْتُوْنَهُنَّ مَا كُتِبَ لَهُنَّ وَتَرْغَبُوْنَ اَنْ تَنْكِحُوْهُنَّ وَالْمُسْتَضْعَفِيْنَ مِنَ الْوِلْدَانِ ۙ وَاَنْ تَقُوْمُوْا لِلْيَتٰمٰى بِالْقِسْطِ ۭ) (النساء ۱۲۷)

حضرت عائشه رضی الله عنها فرمائی چې په بل آیت کښې (وَتَرْغَبُوْنَ اَنْ تَنْكِحُوْهُنَّ) مراد دادې چې کله دیتیمې جینئ سره مال اوجمال کم وی نو په داسې صورت کښې تاسو دهغوی سره دنکاح کولو نه اعراض کوئ اوکه دغه جینکئ دزیات مال اوزیات جمال خاوندانې وی نو دهغوی سره نکاح په دې صورت کښې کولې شئ چې تاسو ورسره انصاف کولې شئ. دا حکم ددې دپاره دې چې دمال اوجمال دنشتوالی په صورت کښې خلق ددوی سره نکاح کولو نه اعراض کوی.

په دې دویم روایت کښې دی (قَالَتْ عَائِشَةُ وَقَوْلُ اللّٰهِ فِي الْآيَةِ الْأُخْرٰى وَتَرْغَبُوْنَ اَنْ تَنْكِحُوْهُنَّ) آیت

---

[1]) عمدة القاری (ج۱۸ص۱۶۳) _

[2]) عمدة القاری (ج۱۸ص۱۶۳)_

یعنی جمله هم په ﴿وَيَسْتَفْتُونَكَ فِي النِّسَآءِ﴾ آیت کښې دې په بل آیت کښې نه دې نوبیائې دې ته (فی ایة اخرٰی) ولې اووئیل ؟

ددې جواب دادې چې ﴿وَتَرْغَبُوْنَ﴾ ته ئې د(فی آیة اخرٰی)په اعتبارسره بل آیت کښې نه دې وئیلې بلکه د ﴿وَاِنْ خِفْتُمْ اَلَّا تُقْسِطُوْا﴾ په اعتبارسره ورته وئیلی شوی دی.

دامام بخاری په روایت کښې سقوط شوې دې .ددې وجې دااشکال کیږی چې امام مسلم داروایت نقل کړې دې په هغې باندې دااشکال نه راځي دهغې الفاظ دادی، (قالت عائشة: والذی ذکرالله :انه یتلی علیکم فی الکتاب ........الایة الاولی التی قال الله فیها:﴿وَاِنْ خِفْتُمْ اَلَّا تُقْسِطُوْا فِي الْيَتٰمٰى فَانْكِحُوْا مَا طَابَ لَكُمْ مِّنَ النِّسَآءِ﴾ قالت : وقول الله عزوجل فی الایة الاخرة ،﴿وَتَرْغَبُوْنَ اَنْ تَنْكِحُوْهُنَّ﴾)[1]

په ''فانکحوا ما طاب لکم من النساء،، کې د (ما) د استعمال توجیهات: په ﴿فَانْكِحُوْا مَا طَابَ لَكُمْ مِّنَ النِّسَآءِ﴾ کښې (ما) استعمال شوې دې داعام طوردغیرذوی العقول دپاره راځی اوښځې ذوی العقول دی .ددې مختلف جوابونه ورکړې شوی دی.

① علامه قرطبی رحمه الله فرمائی چې (ما) او(من) دواړه دیوبل په معنی کښې استعمال شوی دی په ﴿وَالسَّمَآءِ وَمَا بَنٰىهَا﴾ کښې (ما) د(من) په معنی کښې دې .یوبل ځائې دې ﴿فَمِنْهُمْ مَّنْ يَّمْشِيْ عَلٰى بَطْنِهٖ﴾ په دې آیت کښې(من)د(ما) په معنی کښې استعمال شوې دې [2]

② بعضې حضراتووئیلی دی چې دعقل دنقصان په وجه ئې ښځوته دغیرذوی العقول درجه ورکړې دد اود (ما) ئې استعمال کړې ده.[3]

③ یوجواب داهم ورکړې شوی دې چې د (ما) نه دلته عقدنکاح مراد ده.(ای فانکحوانکاحا طیبا)[4] اولنې جواب راجح معلومیږی.

## ٨١- باب : ﴿وَمَنْ كَانَ غَنِيًّا فَلْيَسْتَعْفِفْ ۚ وَمَنْ كَانَ فَقِيْرًا فَلْيَاْكُلْ بِالْمَعْرُوْفِ ۚ فَاِذَا دَفَعْتُمْ اِلَيْهِمْ اَمْوَالَهُمْ فَاَشْهِدُوْا عَلَيْهِمْ ۚ وَكَفٰى بِاللّٰهِ حَسِيْبًا﴾

وبدارمبادرة اعتدنا[ص ١٨] اعددنا افعلنا من العتاد

[٤٢٩٩] حَدَّثَنِي إِسْحَاقُ أَخْبَرَنَا عَبْدُاللهِ بْنُ نُمَيْرٍ حَدَّثَنَا هِشَامٌ عَنْ أَبِيهِ عَنْ عَائِشَةَ-

---

[1] صحیح مسلم (ج٢ ص٤٢٠) کتاب التفسیر) .
[2] الجامع لاحکام القرآن للقرطبی (ج٥ ص١٢) ومعالم السنن (ج١ ص٣٩١)_
[3] تفسیرالکبیر(ج٩ ص١٧٢)_
[4] الجامع لاحکام القرآن(ج ٥ص١٣)

رضى الله عنها - فِي قَوْلِهِ تَعَالَى (وَمَنْ كَانَ غَنِيًّا فَلْيَسْتَعْفِفْ وَمَنْ كَانَ فَقِيرًا فَلْيَأْكُلْ بِالْمَعْرُوفِ) أَنَّهَا نَزَلَتْ فِي مَالِ الْيَتِيمِ إِذَا كَانَ فَقِيرًا، أَنَّهُ يَأْكُلُ مِنْهُ مَكَانَ قِيَامِهِ عَلَيْهِ، بِمَعْرُوفٍ. ار ۲۰۹۸]

**قوله: وَبِدَارًا: مبادرة** : په آيت كښې دى (وَلَا تَأْكُلُوهَآ إِسْرَافًا وَبِدَارًا) يعنى ددې يتيمانو په مالونو كښې مه تاسو اسراف كوئ اومه ئې په دې ويرې زرزر خورئ چې دوى به لوئ شى نو بيا به دوى ته حواله كول وى (بدار) د باب مفاعله مصدر دې.

**قوله: اعتدنا: اعددنا افعلنا من العتاد**: په آيت كښې دى (أُولَٰئِكَ أَعْتَدْنَا لَهُمْ عَذَابًا أَلِيمًا) فرمائى چې (اعتدنا) او (اعتدنا) د دواړويوه معنى ده (اعتدنا) دعتيد نه ماخوذ دې چې معنى ئې ده (الشئ المعد) هغه څيز كوم چې تيار شوې وى او (اعودنا) د باب افعال نه دې او ددې ماده (عتاد) ده.

**د يتيم دمال حكم** : ديتيم ولى كه مالداروى نودهٔ ته ديتيم دمال نه دڅه خوړلو اجازت نشته او كه ديتيم ولى فقيروى نوهغه اخستې شى كه نه ؟ په دې كښې مختلف اقوال دى.

① دجمهوروقول دادې كه ولى ديتيم محتاج اوفقيروى نوهغه دضرورت په اندازه ديتيم د مال نه اخستې شى دحضرت حسن بصرى، عطاء ابن ابى رباح اومكحول رحمهم الله دامذهب دې[1] داحنافو نه مختلف اقوال منقول دى . ددوى په نيزهم يوقول دادې [2]

ددې حضراتو دليل خودا ايت دې (وَمَنْ كَانَ فَقِيرًا فَلْيَأْكُلْ بِالْمَعْرُوفِ) يعنى كه ولى ديتيم محتاج اوفقيروى نوهغه ديتيم دمال نه دضرورت مطابق اخستې شى .

دويم دعمروبن شعيب په طريق سره امام ابوداود، امام نسائى اوابن ماجه روايت نقل كړې دې چې يوسړې دنبى كريم ﷺ په خدمت كښې حاضرشواووې وئيل زهٔ فقيريم ديتيم مال ماسره دې .زهٔ ددې نه خوراك كولې شم ؟ نونبى كريم ﷺ ورته اوفرمائيل (كل مال يتيمك غير مسرف ولا مبادر ولا متاثل) [3]

② دويم قول دا دې چې ولى ديتيم دمال نه په اندزاه دضرورت دقرض په ډول اخستې شى خو مالداريدونه پس به هغه مال واپس كوى .داقول دحضرت عمر رضى الله عنه ابن عباس رضى الله عنه ابن جبير رضى الله عنه اوشعبى رضى الله عنه نه منقول دې [4] اوعلامه طحاوى رحمه الله داامام ابوحنيفه هم دامسلك نقل كړې دې [5]

[1]) احكام القران للجصاص (ج ٤ ص ٢٦٤) باب اكل ولى اليتيم من ماله) _

[2]) اوګورئ تفسير مظهرى (ج ٤ ص ١٧)

[3]) تفسير مظهرى (ج: ٤ ص:١٧) وقال ابن الاثير فى النهاية :ج ١ ص ٢٣) غير متاثل :غير جامع يقال مال مؤثل اى مجموع ،ذواصل واثلة الشئ :اصله)_

[4]) احكام القران للجصاص (ج ٢ ص ٦٤) _

[5]) احكام القران للجصاص (ج ٢ ص ٦٤) _

③ دریم قول دا دې چې مطلقاولی دیتیم دمال نه نشی اخستې .نه دقرض په ډول اونه بغیر دقرض،ابوبکرجصاص په احکام القران کښې داحنافوهم دامذهب نقل کړې دې[1]علامه ظفراحمدعثمانی په احکام القران ج۲ص ۱۳۰ کښې هم داداحنافومسلك گرځولې دې.

په دې صورت کښې سوال کیږی چې بیا د(وَمَنْ كَانَ فَقِيْرًا فَلْيَأْكُلْ بِالْمَعْرُوْفِ) څه مطلب شو نوپه دې کښې دوه اقوال دی.

مجاهدفرمائی چې داایت منسوخ شوې دې ددې دپاره ناسخ دسورة نساء دویم ایت دې (يَآيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لَا تَأْكُلُوْٓا اَمْوَالَكُمْ بَيْنَكُمْ بِالْبَاطِلِ اِلَّآ اَنْ تَكُوْنَ تِجَارَةً عَنْ تَرَاضٍ مِّنْكُمْ)

دویم قول دحضرت ابن عباس رضی الله عنهما دې اوابوبکرجصاص په احکام القران کښې هم دا تفسیر اختیار کړې دې .دوی فرمائی چې(وَمَنْ كَانَ فَقِيْرًا فَلْيَأْكُلْ بِالْمَعْرُوْفِ) کښې دیتیم دمال خوړلو اجازت نه دې ورکړې شوې بلکه دخپل مال ټیك اوپه معتدله طریقه داستعمالولوتعلیم ورکړې شوې دې دایت کریمه مطلب دادې که دیتیم ولی فقیروی نوولی دې خپل مال په ښه طریقه سره په استعمال کښې رواولی چې دیتیم مال ته دده حاجت پاتې نشی[2]

## باب: وَإِذَا حَضَرَ الْقِسْمَةَ أُولُوا الْقُرْبٰى وَالْيَتٰمٰى وَالْمَسٰكِيْنُ

[۴۳۰۰] حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ حُمَيْدٍ أَخْبَرَنَا عُبَيْدُ اللهِ الْأَشْجَعِي عَنْ سُفْيَانَ عَنِ الشَّيْبَانِي عَنْ عِكْرِمَةَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ -رضی الله عنهما- (وَإِذَا حَضَرَ الْقِسْمَةَ أُولُوا الْقُرْبٰى وَالْيَتَامٰى وَالْمَسَاكِيْنُ) قَالَ هِيَ مُحْكَمَةٌ وَلَيْسَتْ بِمَنْسُوْخَةٍ. تَابَعَهُ سَعِيْدٌ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ.

دتقسیم ترکات په وخت کښې چې رشته داران اومسکینان راشی نودوی ته دڅه ورکول حکم ورکړې شوې دې په دې کښې اختلاف دې چې داایت محکم دې کنه چې دترکاتوتقیسم وی نواصلی دحصوخاوندان خوهم هغه دی کوم چې شرعی حیثیت سره وارثان جوړیږی خوکه هلته څه نور رشته داران اویتیمان موجودوی نوهغوی ته هم څه حصه ورکول پکاردی۔

سعیدبن المسیب ،قاسم بن محمد ،عکرمه اوائمه اربعه فرمائی چې داآیت دمیراث په ایت باندې منسوخ شوې دې[3]،دایت حکم که په ندب یاپه استحباب باندې محمول کړې شی نوپه دې کښې چې کوم بالغ دی هغوی به دخپلوحصونه اوکه ټول بالغان وی نوټول به په خپله خوشئ سره دترکې نه څه ورکړی نودمنسوخ منلوضرورت به نه پیدا کیږی.

## ۸۳- باب: قوله: يُوْصِيْكُمُ اللهُ فِيْٓ اَوْلَادِكُمْ

[۴۳۰۱] حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيْمُ بْنُ مُوْسٰى حَدَّثَنَا هِشَامٌ أَنَّ ابْنَ جُرَيْجٍ أَخْبَرَهُمْ قَالَ أَخْبَرَنِي ابْنُ

---

[1] احکام القران للجصاص (ج۲ص۲۵) _
[2] احکام القران للجصاص (ج۵ص۴۲) _
[3] فتح الباری (ج:۸صک۲۴۲) _

مُنْکَدِرٍعَنْ جَابِرٍ-رضی الله عنه-قَالَ عَادَنِي النَّبِي -صلی الله علیه وسلم-وَأَبُوبَکْرٍ فِي بَنِي سَلِمَةَ مَاشِيَيْنِ فَوَجَدَنِي النَّبِي -صلی الله علیه وسلم-لاَأَعْقِلُ ،فَدَعَا بِمَاءٍ فَتَوَضَّأَ مِنْهُ،ثُمَّرَشَّ عَلَيَّ ،فَأَفَقْتُ فَقُلْتُ مَا تَأْمُرُنِي أَنْ أَصْنَعَ فِي مَالِي يَارَسُولَ اللَّهِ فَنَزَلَتْ (يُوصِيكُمُ اللَّهُ فِي أَوْلاَدِكُمْ).

**د ایت د نزول متعلق د روایاتو تعارض او دهغې حل:** داروایت امام مسلم رحمه الله هم نقل کړې دې [1] په دې کښې دی چې د (يُوصِيكُمُ اللَّهُ فِيٓ أَوْلَادِكُمْ) نزول د حضرت جابر رضی الله عنه په قصه کښې شوې دې حافظ شرف الدین دمیاطی رحمه الله فرمائیلی دی چې داوهم دې خکه چې دشعبه اوسفیان ثوری په روایت کښې دی چې دحضرت جابر رضی الله عنه په قصه کښې آیت (يَسْتَفْتُونَكَ قُلِ اللَّهُ يُفْتِيكُمْ فِي الْكَلٰلَةِ) نازل شوې دې دمیراث ایت دحضرت جابر رضی الله عنه په قصه کښې نازل شوې دې. کله چه حضرت سعدبن ربیع په جنګ احد کښې شهید شونودهغوی بی بی دنبی ﷺ په خدمت کښې حاضره شوه اوعرض ئې اوکړو یارسول الله ﷺ دسعدبن ربیع روغوارې چې په ټول مال باندې قبضه اوکړې که هغه په ټول مال باندې قبضه اوکړه نودې لونړوودونه به دمال نه بغیرګران شی. په دې باندې آیت (يُوصِيكُمُ اللَّهُ) نازل شوامام ابوداؤد اوامام ترمذی رحمه الله داروایت نقل کړې دې [2] ددې وجې حافظ دمیاطیی دمیراث دایت سره دحضرت جابر رضی الله عنه قصه بیانول وهم ګرځولې دې.

خوحافظ ابن حجر رحمه الله دحافظ دمیاطی دې روایت ته وهم وئیل غلط ګرځولی دی دوی فرمائی چې ابن جریج په دې روایت کښې منفردنه دې بلکه ترمذی اوحاکم دعروبن ابی قیس نه ددې متابعت نقل کړې دې اواسماعیلی دعبدبن حمیدنه اوترمذی دسفیان بن عینه نه هم ددې په مفهوم روایت نقل کړې دې [3] وراندې پخپله امام بخاری په کتاب الفرائض کښې په دې آیت باندې باب قائم کړې دې اودسفیان بن عینه په طریق سره ئې روایت نقل کړې دې چې دمیراث آیت دحضرت جابرپه قصه کښې نازل شوې وو. [4]

بهرحال دواړوطرفوته روایت شته دامام بخاری رحمه الله په تائید کښې هم روایت شته اودحافظ د میاطیی په تائید کښې هم روایت شته په روایاتو کښې تطبیق داسې کیدې شی چې دحضرت جابر رضی الله عنه په قصه کښې دمیراث ایت نازلیدومطلب دادې چې ددې آیت په اخرې کښې (وَإِنْ كَانَ رَجُلٌ يُورَثُ كَلٰلَةً) راغلی دی. ددې حصې تعلق دحضرت سعدبن الربیع دجینکوباره کښې نازل شوې وه [5]

[1] صیح مسلم مع تکملة فتح الملهم (ج۲ص۲۳) رقم الدحیث (۲۴و۴۰) کتاب الفرائض باب میراث الکلالة)

[2] تفسیر ابن کثیر(ج۱ص۴۵۷)_

[3] فتح الباری (ج۸ص۴۴۴))_

[4] فتح الباری (ج۸ص۲۴۳)_

[5] فتح الباری (ج۱۲ص۴) کتاب الفرائض باب قول الله تعالی (یوصیکم الله)

## باب: قوله: وَلَكُمْ نِصْفُ مَا تَرَكَ أَزْوَاجُكُمْ

[۴۳۰۲] حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ يُوسُفَ عَنْ وَرْقَاءَ عَنِ ابْنِ أَبِي نَجِيحٍ عَنْ عَطَاءٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ -رضي الله عنهما- قَالَ كَانَ الْمَالُ لِلْوَلَدِ، وَكَانَتِ الْوَصِيَّةُ لِلْوَالِدَيْنِ، فَنَسَخَ اللَّهُ مِنْ ذَلِكَ مَا أَحَبَّ، فَجَعَلَ لِلذَّكَرِ مِثْلَ حَظِّ الأُنْثَيَيْنِ، وَجَعَلَ لِلأَبَوَيْنِ لِكُلِّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا السُّدُسَ وَالثُّلُثَ، وَجَعَلَ لِلْمَرْأَةِ الثُّمُنَ وَالرُّبُعَ، وَلِلزَّوْجِ الشَّطْرَ وَالرُّبُعَ

داحديث هم په دې سندسره په كتاب الوصايا كښې تيرشوې دې (۱) اوهم په دې سند سره په كتاب الفرائض كښې راخي. (۲)

## باب: لَا يَحِلُّ لَكُمْ أَنْ تَرِثُوا النِّسَاءَ كَرْهًا وَلَا تَعْضُلُوهُنَّ لِتَذْهَبُوا بِبَعْضِ مَا آتَيْتُمُوهُنَّ [۱۹] الاية

وَيُذْكَرُ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ (لَا تَعْضُلُوهُنَّ) لَا تَقْهَرُوهُنَّ (حُوبًا) إِثْمًا. (تَعُولُوا) تَمِيلُوا. (نِحْلَةً) النِّحْلَةُ الْمَهْرُ

[۴۳۰۳] (۳) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ مُقَاتِلٍ حَدَّثَنَا أَسْبَاطُ بْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا الشَّيْبَانِيُّ عَنْ عِكْرِمَةَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ. قَالَ الشَّيْبَانِيُّ وَذَكَرَهُ أَبُو الْحَسَنِ السُّوَائِيُّ وَلَا أَظُنُّهُ ذَكَرَهُ إِلَّا عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ (يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَا يَحِلُّ لَكُمْ أَنْ تَرِثُوا النِّسَاءَ كَرْهًا وَلَا تَعْضُلُوهُنَّ لِتَذْهَبُوا بِبَعْضِ مَا آتَيْتُمُوهُنَّ) قَالَ كَانُوا إِذَا مَاتَ الرَّجُلُ كَانَ أَوْلِيَاؤُهُ أَحَقَّ بِامْرَأَتِهِ، إِنْ شَاءَ بَعْضُهُمْ تَزَوَّجَهَا، وَإِنْ شَاءُوا زَوَّجُوهَا، وَإِنْ شَاءُوا لَمْ يُزَوِّجُوهَا، فَهُمْ أَحَقُّ بِهَا مِنْ أَهْلِهَا، فَنَزَلَتْ هَذِهِ الآيَةُ فِي ذَلِكَ.

دښځوسره دا ظلم په دوه قسمه وويوخوداچې دښځې درضانه بغيربه ئې خپل خان ته وادۀ كوله .دويمه داكه ددوی به دارائې وه چې ددې چرته هم وادۀ اونشی اوهغه به ئې ساتله اودچاسره به ئې ددې وادۀ نه كولو.اسلام داجبراوزياتې ختم كړو.

په سند كښې دعكرمه شاګردشيبانی دوه سندونه بيان كړی دی يود(عكرمه عن ابن عباس)نه دشك نه بغير اوبل د(ابوالحسن اسوائی عن عباس) نه په شك سره .

---

(۱) صحيح ابخاری كتاب الوصايا باب لاوصية لوارث (ج۱ص۳۸۳)_

(۲) صحيح البخاری مع فتح الباری كتاب الفرائض باب ميراث الزوج مع الولد وغيره (ج۲۱ص۲۳) رقم الحديث (۶۷۳۹)_

(۳) اخرجه البخاری فی كتاب التفسيرباب لايحل لكم ان ترثواالنساء كرهارقمالحديث(۳۰۲) وايضا فی كتاب الاكراه باب من الاكراه رقم الحديث (۴۵۴۹واخرجه ابوداودفی كتاب النكاح باب قوله تعالی لايحل لكم ان ترثواالنساء كرها رقم الحديث(۲۰۸۹)

## باب: قوله: وَلِكُلٍّ جَعَلْنَا مَوَالِيَ مِمَّا تَرَكَ الْوَالِدَانِ وَالْأَقْرَبُونَ ۚ وَالَّذِينَ عَقَدَتْ أَيْمَانُكُمْ فَآتُوهُمْ نَصِيبَهُمْ ۚ إِنَّ اللَّهَ كَانَ عَلَىٰ كُلِّ شَيْءٍ شَهِيدًا

وَقَالَ مَعْمَرٌ: مَوَالِيَ) أَوْلِيَاءَ وَرَثَةً) (عَاقَدَتْ) هُوَ مَوْلَى الْيَمِينِ، وَهُوَ الْحَلِيفُ، وَالْمَوْلَى أَيْضًا ابْنُ الْعَمِّ. وَالْمَوْلَى الْمُنْعِمُ الْمُعْتِقُ. وَالْمَوْلَى الْمُعْتَقُ. وَالْمَوْلَى الْمَلِيكُ. وَالْمَوْلَى مَوْلًى فِي الدِّينِ

[۴۳۰۴] حَدَّثَنِي الصَّلْتُ بْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا أَبُو أُسَامَةَ عَنْ إِدْرِيسَ عَنْ طَلْحَةَ بْنِ مُصَرِّفٍ عَنْ سَعِيدِ بْنِ جُبَيْرٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ -رضي الله عنهما- (وَلِكُلٍّ جَعَلْنَا مَوَالِيَ) قَالَ وَرَثَةً. (وَالَّذِينَ عَاقَدَتْ أَيْمَانُكُمْ) كَانَ الْمُهَاجِرُونَ لَمَّا قَدِمُوا الْمَدِينَةَ يَرِثُ الْمُهَاجِرُ الْأَنْصَارِيَّ دُونَ ذَوِي رَحِمِهِ لِلْأُخُوَّةِ الَّتِي آخَى النَّبِيُّ -صلى الله عليه وسلم- بَيْنَهُمْ فَلَمَّا نَزَلَتْ (وَلِكُلٍّ جَعَلْنَا مَوَالِيَ) نُسِخَتْ، ثُمَّ قَالَ (وَالَّذِينَ عَاقَدَتْ أَيْمَانُكُمْ) مِنَ النَّصْرِ، وَالرِّفَادَةِ وَالنَّصِيحَةِ، وَقَدْ ذَهَبَ الْمِيرَاثُ وَيُوصِي لَهُ. سَمِعَ أَبُو أُسَامَةَ إِدْرِيسَ، وَسَمِعَ إِدْرِيسُ طَلْحَةَ.

**قوله: سَمِعَ أَبُو أُسَامَةَ إِدْرِيسَ، وَسَمِعَ إِدْرِيسُ طَلْحَةَ:** دا روایت هم په دې سند او متن سره په کتاب الکفاله کښې تیر شوې دې[1] حضرت ابن عباس رضی الله عنهما فرمائی چې ایت کریمه (وَلِكُلٍّ جَعَلْنَا مَوَالِيَ مِمَّا تَرَكَ الْوَالِدَانِ) ناسخ دې او په دې کښې د ..موالی..نه وارثان مراد دی او آیت (وَالَّذِينَ عَقَدَتْ أَيْمَانُكُمْ فَآتُوهُمْ نَصِيبَهُمْ) منسوخ دې .بیانې ددې وضاحت کړې دې چې کله مهاجرین مدینې منورې ته راغلل نو نبی ﷺ د مهاجرینو او انصارو په مینځ کښې مواخات اورور ولی قائمه کړې وه .ددې اثر دا اوشو چې کله به یو انصاری وفات شو نو دهغه وارث به مهاجر و او رشته داربه نه وو .روسته په آیت کښې (وَلِكُلٍّ جَعَلْنَا مَوَالِيَ) نازل شو نو فیصله اوشوه چې اوس به مهاجر وارث نه وی بلکه خپلوان به وارثان وی .

خو صرف د میراث حکم منسوخ شو باقی د حلیف سره عهداو پیمان. نصرت کول .معاونت وغیره نه دی منسوخ شوی .نن هم که څوك د چاسره د مواخاة امداداو خیرخواهئ معاهده اوکړی نو دا صحیح ده.خو میراث ختم شوې دې البته په دریمه حصه مال کښې وصیت کیدې شی .د روایت په آخر کښې د(عاقدت ایمانکم من النصر والرفادة والنصیحة وقد ذهب المیراث ویوصی له) نه مراد هم دا دې .سَمِعَ أَبُو أُسَامَةَ إِدْرِيسَ، وَسَمِعَ إِدْرِيسُ طَلْحَةَ

په دې پورته سند کښې عنعنه وه د لته امام بخاری د تحدیث صراحت اوکړو.

## باب: (إِنَّ اللَّهَ لَا يَظْلِمُ مِثْقَالَ ذَرَّةٍ) يَعْنِي زِنَةَ ذَرَّةٍ

يَعْنِي زِنَةَ ذَرَّةٍ.

[1] صحیح البخاری ،کتاب الکفالة باب قول الله :والذین عقدت ایمانکم..(ج۱ص ۳۰۴)

[۴۲۰۵] (۱) حَدَّثَنِي مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ الْعَزِيزِ حَدَّثَنَا أَبُو عُمَرَ حَفْصُ بْنُ مَيْسَرَةَ عَنْ زَيْدِ بْنِ أَسْلَمَ عَنْ عَطَاءِ بْنِ يَسَارٍ عَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ - رضی الله عنه - أَنَّ أُنَاسًا فِي زَمَنِ النَّبِيِّ - صلی الله علیه وسلم - قَالُوا يَا رَسُولَ اللَّهِ، هَلْ نَرَى رَبَّنَا يَوْمَ الْقِيَامَةِ قَالَ النَّبِيُّ - صلی الله علیه وسلم - «نَعَمْ، هَلْ تُضَارُّونَ فِي رُؤْيَةِ الشَّمْسِ بِالظَّهِيرَةِ، ضَوْءٌ لَيْسَ فِيهَا سَحَابٌ». قَالُوا لاَ. قَالَ «وَهَلْ تُضَارُّونَ فِي رُؤْيَةِ الْقَمَرِ لَيْلَةَ الْبَدْرِ، ضَوْءٌ لَيْسَ فِيهَا سَحَابٌ». قَالُوا لاَ. قَالَ النَّبِيُّ - صلی الله علیه وسلم - «مَا تُضَارُّونَ فِي رُؤْيَةِ اللَّهِ عَزَّ وَجَلَّ يَوْمَ الْقِيَامَةِ، إِلاَّ كَمَا تُضَارُّونَ فِي رُؤْيَةِ أَحَدِهِمَا، إِذَا كَانَ يَوْمُ الْقِيَامَةِ أَذَّنَ مُؤَذِّنٌ تَتْبَعُ كُلُّ أُمَّةٍ مَا كَانَتْ تَعْبُدُ. فَلاَ يَبْقَى مَنْ كَانَ يَعْبُدُ غَيْرَ اللَّهِ مِنَ الأَصْنَامِ وَالأَنْصَابِ إِلاَّ يَتَسَاقَطُونَ فِي النَّارِ، حَتَّى إِذَا لَمْ يَبْقَ إِلاَّ مَنْ كَانَ يَعْبُدُ اللَّهَ، بَرٌّ أَوْ فَاجِرٌ وَغُبَّرَاتُ أَهْلِ الْكِتَابِ، فَيُدْعَى الْيَهُودُ فَيُقَالُ لَهُمْ مَنْ كُنْتُمْ تَعْبُدُونَ قَالُوا كُنَّا نَعْبُدُ عُزَيْرَ ابْنَ اللَّهِ. فَيُقَالُ لَهُمْ كَذَبْتُمْ، مَا اتَّخَذَ اللَّهُ مِنْ صَاحِبَةٍ وَلاَ وَلَدٍ، فَمَاذَا تَبْغُونَ فَقَالُوا عَطِشْنَا رَبَّنَا فَاسْقِنَا. فَيُشَارُ أَلاَ تَرِدُونَ، فَيُحْشَرُونَ إِلَى النَّارِ كَأَنَّهَا سَرَابٌ، يَحْطِمُ بَعْضُهَا بَعْضًا فَيَتَسَاقَطُونَ فِي النَّارِ، ثُمَّ يُدْعَى النَّصَارَى، فَيُقَالُ لَهُمْ مَنْ كُنْتُمْ تَعْبُدُونَ قَالُوا كُنَّا نَعْبُدُ الْمَسِيحَ ابْنَ اللَّهِ. فَيُقَالُ لَهُمْ كَذَبْتُمْ، مَا اتَّخَذَ اللَّهُ مِنْ صَاحِبَةٍ وَلاَ وَلَدٍ. فَيُقَالُ لَهُمْ مَاذَا تَبْغُونَ فَكَذَلِكَ مِثْلَ الأَوَّلِ، حَتَّى إِذَا لَمْ يَبْقَ إِلاَّ مَنْ كَانَ يَعْبُدُ اللَّهَ مِنْ بَرٍّ أَوْ فَاجِرٍ، أَتَاهُمْ رَبُّ الْعَالَمِينَ فِي أَدْنَى صُورَةٍ مِنَ الَّتِي رَأَوْهُ فِيهَا، فَيُقَالُ مَاذَا تَنْتَظِرُونَ تَتْبَعُ كُلُّ أُمَّةٍ مَا كَانَتْ تَعْبُدُ. قَالُوا فَارَقْنَا النَّاسَ فِي الدُّنْيَا عَلَى أَفْقَرِ مَا كُنَّا إِلَيْهِمْ، وَلَمْ نُصَاحِبْهُمْ، وَنَحْنُ نَنْتَظِرُ رَبَّنَا الَّذِي كُنَّا نَعْبُدُ. فَيَقُولُ أَنَا رَبُّكُمْ، فَيَقُولُونَ لاَ نُشْرِكُ بِاللَّهِ شَيْئًا. مَرَّتَيْنِ أَوْ ثَلاَثًا

امام بخاری رحمه الله دا روایت دلته ذکر کړې دې خو د ترجمة الباب د آیت سره په ظاهره څه مطابقت په پوهه کښې نه راځي ځکه چې په روایت کښې د (إِنَّ اللَّهَ لَا يَظْلِمُ مِثْقَالَ ذَرَّةٍ) د مفهوم څه خبره نشته. ددې جواب دادې چې امام بخاری رحمه الله دا حدیث دلته مختصر ذکر کړې دې وړاندې په کتاب التوحید کښې دا حدیث په تفصیل سره مذکور دې هلته ددې حدیث په آخر کښې دې

(اذهبوا فمن وجدتم فی قلبه مثقال ذرة من ایمان فاخرجوه، فیخرجون من عرفوا، وقال ابوسعید: فان لم تصدقونی فاقرؤا (إِنَّ اللَّهَ لَا يَظْلِمُ مِثْقَالَ ذَرَّةٍ......)) (۲)

---

(۱) اخرجه البخاری فی کتاب التفسیر باب ان الله لا یظلم مثقال ذرة رقم ۳۰۵ وایضا فی کتاب التفسیر باب یوم یکشف عن ساق رقم الحدیث ۴۶۳۵ ]وایضا فی کتاب التوحید باب وجوه یومئذ ناضرة الی ربها ناظرة رقم الحدیث ۷۰۰۱ واخرجه مسلم فی کتاب الایمان باب معرفة طریق رویة رقم الحدیث ۱۸۳_

(۲) صحیح البخاری کتاب التوحید باب قول الله (وجوه یومئذ ناضرة الی ربها ناظرة (ج۲ص۱۱۰۵) _

دكتاب التوحيددا روايت دترجمة الباب سره مطابقت لرى اودامام بخارى رحمه الله داعادت دې چې دوى اجلى ته په اخفى باندې ترجيح وركوى ايماء اوشاره زياته استعمالوى. ددې وجې ئې دكتاب التوحيد روايت دترجمة الباب مناسبت ته اشاره كړې ده.

**محمد بن عبد العزيز**: په دې حديث كښې دامام بخارى رحمه الله شيخ محمدبن عبدالعزيز، دې دې په ابن الواسطى سره مشهوردې اودده كنيت، ابوعبدالله الرملى دې امام ابوزعه ددوى متعلق فرمانيلي دى (ليس بقوى) ([1]) ابوحاتم فرمائى (هو الى الضعف ماهو)([2]) خوعجلى ددوى توثيق كړې دې ([3])

يعقوب بن سفيان فرمائى(كانا حافظا) ([4])اوابن حبان په كتاب الثقات كښې ددوى ذكركړې دې ([5])امام ترمذى اوامام نسائى هم ددوى نه روايت اخستى دى([6])امام بخارى رحمه الله ددوى نه دوه حديثونه نقل كړى دى. يوحديث باب اوبل حديث ئې په كتاب الاعتصام كښې ددوى نه نقل كړې دې ([7])دامام په نيزدې ثقه اومعتبردې.

**قوله**: غبرات اهل الكتاب: (غبرات اهل لكتاب) د(غبر) جمع ده او(غبر) د(غابر)جمع ده معنى ده باقى ([8]) (غبرات اهل لكتاب) يعنى داهل كتابوباقى خلق.

**قوله**: قَالُوا فَارَقْنَا النَّاسَ فِي الدُّنْيَا عَلَى أَفْقَرِ مَا كُنَّا إِلَيْهِمْ، وَلَمْ نُصَاحِبْهُمْ، وَنَحْنُ نَنْتَظِرُ رَبَّنَا الَّذِي كُنَّا نَعْبُدُ. فَيَقُولُ أَنَا رَبُّكُمْ، فَيَقُولُونَ لاَ نُشْرِكُ بِاللَّهِ شَيْئًا. مَرَّتَيْنِ أَوْثَلاَثًا: يعنى دمشركانوجهنم ته دتلونه پس به الله جل شانه مسلمانانوته توجه شى اودوى ته به اوفرمائى چه تاسودكومې خبرې منتظر ئې ؟ هغوى به په جواب كښې اووائى چې كله مونږ په دنياكښې وودې مشركانوته ډيرمحتاج وونوپه هغه وخت كښې مونږ دوى نه جداوواودوى صحبت مونه وواختياركړې (نونن به مونږددې خلقوصحبت څنگه اختياركړو) نن خومونږ دخپل رب منتظريودچې به مونږ عبادت كولونوحق تعالى شانه به اوفرمائى زۀ ستاسورب يم په دغه وخت كښې به دالله تعالى دتجلى رعب داسې وى چې هغه به نشى پيژندې اوددې په جواب كښې به اووائى مونږدالله سره څوك نه شريكوواوچې كله ورته دالله

[1] الجرح ولتعديل (۸الترجمة (۲۹) وتهذيب الكمال (ج ۲۶ص ۱۲ الترجمة (۵۴۱۹) _
[2] تهذيب الكمال (ج۲۶ص۱۲)
[3] عمدة القارى (ج۱۸ص۱۷۲)
[4] المعرفة والتاريخ (ج۲ص۴۳۷)
[5] كتاب الثقات(ج۹ص۸۱) _
[6] تهذيب الكمال (ج۲۶ص۱۳)
[7] عمدة القارى (ج۱۸ص۱۷۲)
[8] عمدة لقارى (۱۸ص۱۷۲)_

تعالی معرفت حاصل شی نو الله تعالی به اوفرمائی زهٔ ستاسورب یم نو اوبه وائی (انت ربنا) ته زمونږ رب ئی.

## باب: فَكَيْفَ إِذَا جِئْنَا مِنْ كُلِّ أُمَّةٍ بِشَهِيدٍ وَجِئْنَا بِكَ عَلَى هَؤُلَاءِ شَهِيدًا

الْمُخْتَالُ وَالْخَتَّالُ وَاحِدٌ، (نَطْمِسَ) نُسَوِّيَهَا حَتَّى تَعُودَ كَأَقْفَائِهِمْ. طَمَسَ الْكِتَابَ مَحَاهُ (سَعِيرًا) وُقُودًا.

حدیث [۴۳۰۶] حَدَّثَنَا صَدَقَةُ أَخْبَرَنَا يَحْيَى عَنْ سُفْيَانَ عَنْ سُلَيْمَانَ عَنْ إِبْرَاهِيمَ عَنْ عَبِيدَةَ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ قَالَ يَحْيَى بَعْضُ الْحَدِيثِ عَنْ عَمْرِو بْنِ مُرَّةَ قَالَ قَالَ لِي النَّبِيُّ -صلى الله عليه وسلم- «اقْرَأْ عَلَيَّ». قُلْتُ آقْرَأُ عَلَيْكَ وَعَلَيْكَ أُنْزِلَ قَالَ «فَإِنِّي أُحِبُّ أَنْ أَسْمَعَهُ مِنْ غَيْرِي». فَقَرَأْتُ عَلَيْهِ سُورَةَ النِّسَاءِ حَتَّى بَلَغْتُ (فَكَيْفَ إِذَا جِئْنَا مِنْ كُلِّ أُمَّةٍ بِشَهِيدٍ وَجِئْنَا بِكَ عَلَى هَؤُلَاءِ شَهِيدًا) قَالَ «أَمْسِكْ». فَإِذَا عَيْنَاهُ تَذْرِفَانِ.

**قوله: المختال والختال واحد:** دسورة نساء په ایت کښې دی (إِنَّ اللَّهَ لَا يُحِبُّ مَنْ كَانَ مُخْتَالًا فَخُورًا) بیشکه الله تعالی نه خوښوی تکبر کونکی .اوکنجوسی کونکی. امام بخاری رحمه الله مختال اوختال ته یوئیلی دی حال داچې (ختال) دختل نه دې چې معنی ئې دهوکه ورکونکې ده او(مختال) دخیلاء نه دې چې معنی ئې متکبرراغی ددې وجې دواړوته یوئیل صحیح نه دی (۱)

داصیلی په روایت کښې دی (المختال والخال واحد)(۲) په دې باندې به اشکال نه وی ځکه چې دخال معنی هم متکبرراغی.

**قوله: (وَجِئْنَا بِكَ عَلَى هَؤُلَاءِ شَهِيدًا):** په (هَؤُلَاءِ) کښې امت محمدیه ته اشاره ده یعنی ته به ددغه پیغمبرانوپه صداقت باندې گواهی ورکړې اوددوی امتونه به دهغوی تکذیب کوی یاکافرانوطرف ته اشاره ده کوم چې ددې نه وړاندې مذکوردی .نومطلب به داوی چې ته به ددې کافرانوپه بدوعملونوباندې گواه ئې. په دې سره به ددې خرابې اوبدحالت بنه ښکاره کیږی.

**قوله: نطمس وجوها: نسویها حتی تعودکاقفائهم طمس الکتاب محاه:** په آیت (يَا أَيُّهَا الَّذِينَ أُوتُوا الْكِتَابَ آمِنُوا بِمَا نَزَّلْنَا مُصَدِّقًا لِمَا مَعَكُمْ مِنْ قَبْلِ أَنْ نَطْمِسَ وُجُوهًا) کښې د نطمس وجوها معنی ده مونږ به مخونه برابر کړوترڅو چې هغه مخونه به دښا طرف په شان هوارشی چې دپوزې سترگوو غیره به څه اثرباقی پاتې نشی وائی (طمس الکتاب) لیکلې شوی ئی وران کړل. علامه شبیراحمد عثمانی رحمه الله ددې آیت لاندې لیکی:

---

(۱) عمدة القاری (ج۱۸ص۱۷۳) وفتح الباری (ج۸ص ۲۵۰) _

(۲) عمدة القاری (ج۱۸ص۱۷۳) وفتح الباری (ج۸ص ۲۵۰) _

په وړاندینی آیتونو کښې دیهودیانو دضلالت او مختلفو قباحتونو ذکرووا وهغوی ته دخطاب په توګه دایمان اوتصدق قرآن حکم کولې شی اوددې دمخالف نه ئې ویرولې شی مطلب دادې چې ای اهل کتابو ایمان راوړئ په قرآن باندې چې دهغې احکام مصدق او موافق دی دتورات ،ایمان راوړئ ددې نه وړاندې چې وران کړومونږ ستاسو دمخونو نښې یعنی سترګې پوزه وغیره. مطلب داچې ستاسو صورتونه به بدل کړې شی اوبیابه ئې ستاسو مخونه شاطرف ته ،یعنی مخ به مطموس اوهوار کړې اوشاطرف ته به ئې کړی اوخټې به مخکښې طرف ته کړی یادخالی دورخې دخلقو په شان به تاسو هم مسخ کړی اوخناور به درنه جوړ کړې.

روایت باب یحیی القطان دسفیان نه اوسفیان دسلیمان اعمش نه اوسلیمان اعمش دابراهیم نخعی نه نقل کړې دې ،سیلمان اعمش ددې حدیث څه حصه براه راست دابراهیم نه نقل کړې دی اوڅه حصه ئې دعمروبن مره په واسطه دابراهیم نه نقل کړې ده ،دلته یحیی ددې تصریح کړې ده اوپه فضائل القرآن کښې (باب البكاء عند قراءة القران) لاندې پخپله سلیمان اعمش ددې تصریح کړې ده نوهلته دی (قال الاعمش :وبعض الحديث عمرو بن مرة عن ابراهيم)[1]

## باب: وَإِنْ كُنْتُمْ مَرْضَىٰ أَوْ عَلَىٰ سَفَرٍ أَوْ جَاءَ أَحَدٌ مِنْكُمْ مِنَ الْغَائِطِ

(صَعِيدًا) وَجْهَ الْأَرْضِ . وَقَالَ جَابِرٌ كَانَتِ الطَّوَاغِيتُ الَّتِي يَتَحَاكَمُونَ إِلَيْهَا فِي جُهَيْنَةَ وَاحِدٌ، وَفِي أَسْلَمَ وَاحِدٌ، وَفِي كُلِّ حَيٍّ وَاحِدٌ، كُهَّانٌ يَنْزِلُ عَلَيْهِمُ الشَّيْطَانُ . وَقَالَ عُمَرُ الْجِبْتُ السِّحْرُ . وَالطَّاغُوتُ الشَّيْطَانُ . وَقَالَ عِكْرِمَةُ الْجِبْتُ بِلِسَانِ الْحَبَشَةِ شَيْطَانٌ ، وَالطَّاغُوتُ الْكَاهِنُ .

**قوله:** (طواغیت): دطاغوت جمع ده .ددې اطلاق په بت باندې هم کیږی اوپه کاهن باندې هم شیطان ته هم طاغوت وائی .په سورة نساء کښې دی (يُرِيدُونَ أَنْ يَتَحَاكَمُوا إِلَى الطَّاغُوتِ) په دې ایت کښې دطاغوت نه کاهن مراددې .دلته ئې ددې تفسیر کړې دې چې په قبیله جهنیه .قبیله اسلم اودغه شان په هره یوه قبیله کښې به یو کاهن ووخلقوبه هغوی ته خپلې فیصلې اړولې اودسورة نساء په ایت نبمر ۵۱ کښې دی (أَلَمْ تَرَ إِلَى الَّذِينَ أُوتُوا نَصِيبًا مِنَ الْكِتَابِ يُؤْمِنُونَ بِالْجِبْتِ وَالطَّاغُوتِ) حضرت عکرمه فرمائی چې ،جبت .په حبی ژبه کښې شیطان ته وائی اوطاغوت ته هم کاهن وئیلې شی

[۴۲۰۷] حَدَّثَنَا مُحَمَّدٌ أَخْبَرَنَا عَبْدَةُ عَنْ هِشَامٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ عَائِشَةَ -رضى الله عنها- قَالَتْ هَلَكَتْ قِلَادَةٌ لِأَسْمَاءَ فَبَعَثَ النَّبِيُّ -صلى الله عليه وسلم- فِي طَلَبِهَا رِجَالًا فَحَضَرَتِ الصَّلَاةُ وَلَيْسُوا عَلَى وُضُوءٍ. وَلَمْ يَجِدُوا مَاءً، فَصَلَّوْا وَهُمْ عَلَى غَيْرِ وُضُوءٍ، فَأَنْزَلَ اللَّهُ. يَعْنِي آيَةَ التَّيَمُّمِ.

دتیمم آیت په دوه ځایونو کښې دې یوپه سورة نساء کښې اوبل په سورة مائده کښې امام

---

[1] عمدة القاری (ج۱۸ ص۱۷۳)

بخاري رحمه الله په دواړو مقاماتو کښې دحضرت عائشې رضي الله عنها هار ورکيدو قصه ذکر کړې دې.
قاضي ابن العربی وئيلي دی چې دحضرت عائشې رضي الله عنها قصه په دواړو آياتو کښې ديو آيت سبب نزول کيدې شي ،يادسورة نساء دآيت يادسورة مائده دآيت خو چونکه په دواړو کښې دتيمم تذکره ده اودحضرت عائشې رضي الله عنها په روايت کښې هم دتيمم ذکر دې ددې وجې دحضرت عائشې رضي الله عنها په قصه کښې داا حتمال هم شته چې دادسورة نساء سره متعلق وی اوداهم ممکن ده چې دسورة مائده سره ددې تعلق وی .ددې وجې امام بخاری ددواړو آياتونو لاندې دحضرت عائشې رضي الله عنها قصه نقل کړې ده.
بياقاضي ابن العربی رحمه الله خپله فيصله وړاندې کړې ده ا ووئيلې دی چې دحضرت عائشې رضي الله عنها دقصې تعلق دسورة مائده دآيت سره دې .ددې دليل دادې چې دسورة مائده آيت﴿يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا إِذَا قُمْتُمْ إِلَى الصَّلَاةِ﴾تفسير دمدينې مفسرينو په (اذقمتم من النوم)سره کړې دې .دادې خبرې نښه ده چې په دې موقع باندې دسورة مائده آيت نازل شوې دې (1)
خو کومه خبره چې قاضي ابن العربی رحمه الله په اجتهادسره کړې ده وړاندې امام بخاری رحمه الله دسورة مائده په تفسير کښې دهغې تصريح کړې ده چې دحضرت عائشې رضي الله عنها په واقعه کښې دسورة مائده آيت نازل شوې دې (2)نو دامام بخاری رحمه الله په نيزهم دعائشې رضي الله عنها دقصې تعلق دسورة مائده سره متعين دې .باقی داچې دسورة نساء په آيت کښې ئې ددې روايت تخريج ولې کړې .ددې جواب بنکاره دې چې امام بخاری رحمه الله دمعمولی مناسبت په وجه دروآياتو ذکر کوی او چونکه دعائشې رضي الله عنها په روايت کښې دتيمم ذکر دې .ددې وجې امام بخاری دلته ددې تخريج کړې دې.
**فائده:** چې په اوبو قدرت نه وی نو دخاورې نه دپاکئ حاصلولو حکم دادې چونکه خاوره پاکه ده اودبعضې څيزونو دپاره داوبو په شان مطهره هم ده لکه توره، شيشه وغيره دغه شان په مخ اوپه لاسونو باندې دخاورې په لګولو کښې تذلل اوعاجزی ښه زياته ده اوداد ګناهونو دمعاف کيدو غوره موقع ده اودګناهونه دمعافئ غوره صورت دې .اوهرکله چې خاوره ظاهری اوباطنی دواړه قسم پليتی زائله کوی نوځکه دمعذورئ په وخت کښې داوبو په ځائې ددې داستعمالولو حکم شوې دې اوددې نه سوا په تيمم کښې دآسانئ اوسهولت خيال ساتلې شوې دې ددې وجې داوبو په ځائې داسې څيزپکاردې چې دهغې پيداکيدل داوبو نه هم اسان وی اوپه زمکه کښې داصفت موجوددې (3)

## ٩٠ باب: قوله. أَطِيعُوا اللَّهَ وَأَطِيعُوا الرَّسُولَ وَأُولِي الْأَمْرِ مِنْكُمْ﴾ ذَوِي الْأَمْرِ

[٤٣٠٨] حَدَّثَنَا صَدَقَةُ بْنُ الْفَضْلِ أَخْبَرَنَا حَجَّاجُ بْنُ مُحَمَّدٍ عَنِ ابْنِ جُرَيْجٍ عَنْ يَعْلَى بْنِ

---

(1) صحيح البخاری (ج٢ص٦٦٣) _
(2) صحيح البخاری مع فتح الباری (ج٨ص ٢٧٢) رقم الحديث (٤٦٠٨)
(3) ماخوذ ا زتفسير عثمانی(١١١) _

مُسْلِمٍ عَنْ سَعِيدِ بْنِ جُبَيْرٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ - رضى الله عنهما - (أَطِيعُوا اللَّهَ وَأَطِيعُوا الرَّسُولَ وَأُولِي الأَمْرِ مِنْكُمْ). قَالَ نَزَلَتْ فِي عَبْدِ اللَّهِ بْنِ حُذَافَةَ بْنِ قَيْسِ بْنِ عَدِيٍّ، إِذْ بَعَثَهُ النَّبِيُّ صلى الله عليه وسلم - فِي سَرِيَّةٍ.

**د اولی الامر نه کوم خلق مراد دی:** په دې آیت کښې دی چې الله تعالی اورسول اواولی الامر اطاعت کوئ: داولی الامرنه کوم خلق مراددی په دې کښې مختلف اقوال دی علامه عینی رحمه الله یوولس اقوال ذکرکړی دی [1] خوپنځه اقوال زیاتوعالمانواختیارکړی دی.

① دمجاهدنه منقول دی چې ددې نه صحابه رضی الله عنهم مراددی [2]

② ابن کیسان فرمائی چې ددې نه عقلمند اصحاب الرائې خلق مراددی [3]

③ مقاتل، کلبی اومهران بن میمون فرمائی چې ددې نه دسرایاامیران مراد دی [4] قاضی ابن العربی په احکام القران کښې دمهران بن میمون نه داقول نقل کړې دې. بیافرمائی هم داقول دامام بخاری په نیزمختاردې [5] امام بخاری رحمه الله چې دلته کوم روایت نقل کړې دې په دې کښې دی چې ذکرشوې آیت دحضرت عبدالله بن حذافه په باره کښې نازل شوې دې. دوی یوځل نبی کریم ﷺ په یوسریه باندې امیرمقررکړې وو (ددې تفصیل په کتاب المغازی کښې تیرشوې دې) غالباهم داخبره ئې ننبه ګرځولې ده اوقاضی ابن العربی فرمائیلی دی چې امام بخاری رحمه الله په نیز (اولی الامر) نه مراددسرایااصحاب دی.

④ ابوالعالیه اوجابربن عبدالله وغیره فرمائی چې ددې نه عالمان اوفقهاء مراددی. امام مالك رحمه الله هم دااختیارکړې دې چې ددې نه اهل قرآن اواهل علم مراددی [6]

⑤ مشهورقول دادې چې ددې نه امراء مراددی. امام شافعی رحمه الله هم دا راجح ګرځولې دې [7] امام نووی رحمه الله هم دې طرف ته میلان ظاهرکړې دې اوعلامه قرطبی رحمه الله دې ته اصح فرمائیلی دی. دامراؤنه دحکومت اومملکت حاکمان هم مرادکیدې شی

ا ودجماعت اواداراې امیرهم مرادکیدې شی. امام بخاری رحمه الله د(ذوی الامر) تشریح کوی اودې طرف ته اشاره کوی. علامه قرطبی رحمه الله دادوه آخری اقوال دټولونه زیات صحیح ګرځولی دی یعنی ددې نه امراء اوعالمان مراددی [8] والله اعلم.

---

[1] عمدة القاری (ج۱۸ص۱۷۶) _
[2] عمدة القاری (ج۱۸ص۱۷۶) _ وتفسیر القرطبی (ج۵ص۲۵۹) وفتح الباری (ج۸ص۲۵۳)
[3] عمدة القاری (ج۱۸ص۱۷۶) _ وتفسیر القرطبی (ج۵ص۲۶۰)
[4] تفسیر القرطبی (ج۵ص۲۶۰) _
[5] احکام القرآن لابن العربی (ج۱ص۳۵۱) _
[6] تفسیر القرطبی (ج۵ص۲۵۹) _
[7] فتح الباری (ج۸ص۲۵۳)
[8] تفسیر القرطبی (ج۵ص۲۶۰) _

**فائده : د ایت کریمه نه د اصول اربعه په حجیت باندې استدلال:** بعضې ددې آیت نه داصل اربعه په حجت باندې استدلال کړې دې .فرمائي چې په (أَطِيعُوا اللَّهَ) کښې کتاب الله ته اشاره ده اوبه(وَأَطِيعُوا الرَّسُولَ) کښې سنت رسول الله ﷺ ته اشاره ده اوبه(وَأُولِي الْأَمْرِ مِنكُمْ) کښې دمجتهدينو اجتهاد طرف ته اشاره ده وړاندې(فَإِن تَنَازَعْتُمْ فِي شَيْءٍ فَرُدُّوهُ إِلَى اللَّهِ وَالرَّسُولِ) کښې قياس طرف ته اشاره شوې ده يعنى كه په څه څيز كښې تنازعه اواختلاف واقع شى اودا پته نه لګى چې ددې شرعى حكم څه دې نو دكتاب الله اوسنت رسول ﷺ نه چې كوم احكام ملاوېږى په هغې باندې قياس كوى (١)

## باب: (فَلَا وَرَبِّكَ لَا يُؤْمِنُونَ حَتَّىٰ يُحَكِّمُوكَ فِيمَا شَجَرَ بَيْنَهُمْ)

[٤٣٠٩] حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ جَعْفَرٍ أَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ عُرْوَةَ قَالَ خَاصَمَ الزُّبَيْرُ رَجُلًا مِنَ الْأَنْصَارِ فِي شَرِيجٍ مِنَ الْحَرَّةِ، فَقَالَ النَّبِيُّ -صلى الله عليه وسلم- «اسْقِ يَا زُبَيْرُ ثُمَّ أَرْسِلِ الْمَاءَ إِلَى جَارِكَ» . فَقَالَ الْأَنْصَارِيُّ يَا رَسُولَ اللَّهِ أَنْ كَانَ ابْنَ عَمَّتِكَ فَتَلَوَّنَ وَجْهُهُ ثُمَّ قَالَ «اسْقِ يَا زُبَيْرُ ثُمَّ احْبِسِ الْمَاءَ حَتَّى يَرْجِعَ إِلَى الْجَدْرِ، ثُمَّ أَرْسِلِ الْمَاءَ إِلَى جَارِكَ» . وَاسْتَوْعَى النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - لِلزُّبَيْرِ حَقَّهُ فِي صَرِيحِ الْحُكْمِ حِينَ أَحْفَظَهُ الْأَنْصَارِيُّ، كَانَ أَشَارَ عَلَيْهِمَا بِأَمْرٍ لَهُمَا فِيهِ سَعَةٌ. قَالَ الزُّبَيْرُ فَمَا أَحْسِبُ هَذِهِ الْآيَاتِ إِلَّا نَزَلَتْ فِي ذَلِكَ (فَلَا وَرَبِّكَ لَا يُؤْمِنُونَ حَتَّىٰ يُحَكِّمُوكَ فِيمَا شَجَرَ بَيْنَهُمْ).

په روايت باب كښې دى چې دحضرت زبير رضي الله عنه ديو انصارى سره دمقام حره ديوې نالۍ په باره كښې تنازع اوشوه چې ددې نه څوك اول خپل باغ ته داوبوو ركولو حق لرى .نبى ﷺ اوفرمائيل زبير ته خپل باغ وړاندې اوبه كوه اوبيا خپل ګاونډى طرف ته اوبه پرېږده. په دې باندې انصارى اوونيل دافيصله (تاسوددۀ په حق كښې اوكړه (ځكه چې دې ستاد ترور ځوئې دې چې دانې واوريده نودنبى كريم ﷺ مخ مبارك متغير شواونبى ﷺ اوفرمائيل زبيره ته خپل باغ اوبه كوه .بيااوبه ايسارې كړه .تردې چې پولې ته اورسى ددې نه پس خپل ګاونډى طرف ته اوبه پرېږده دغه شان نبى كريم ﷺ دحضرت زبير رضي الله عنه حق په صريحى حكم سره هغه ته پوره وركړوكله چې انصارى نبى ﷺ لره خفه كړو.

حضرت زبير رضي الله عنه اوفرمائيل زماخيال دې چې (فَلَا وَرَبِّكَ لَا يُؤْمِنُونَ) آيت په دې باره كښې نازل شوې دې. نبى كريم ﷺ اول خوپه ګنجائش باندې نظر كولواووسعت طرف ته ئې اشاره كړې وه اوپه هغې كښې دانصارى دخيال ساتلوا رخ موجود وو خوكله چې انصارى نبى ﷺ لره خفه كړونوبيانبى ﷺ دخپل پوره حق حاصلولو دپاره حضرت زبير رضي الله عنه ته اوفرمائيل په دې كښې فائده دااوشوه چې نهرته دنزدې حق معلوم شوچې هغه تركومې پورې داوبواخستلوحق لرى. دنبى ﷺ فصيله دقانون قاعدې اونصاف عين مطابق وه ځكه چې داعلى النهرته دنزدې كس

(١) تفسير كبير(ج١٠ص١٤٨) وفيض البارى (ج٤ص١٧٥و١٧٦)_

حق مقدم وی.ددې نه پس د(الاقرب فالاقرب) په ترتیب سره وړاندېنو ته استحقاق حاصل دې
خوانصاری دافیصله په خپلولئ طرفدارئ کولوباندې حمل کړه اواشکال ئې اوکړو.
**د رجل من الانصار نه څوک مراد دې؟** دا انصاری څوك وو، ددهٔ نوم معلوم نشوغالباحضرت زبیر ﷺ اونوروروایانوپرې پرده اچولې ده اونوم ئې نه دې ښکاره کړې .داؤدی وئیلی دی چې داکس منافق وو.اګرچې په ده باندې دلته دانصاری اطلاق شوې دې خوصرف په انصاری وئیلوسره دانه لازمیږی چې هغه دې منافق نه وی ځکه چې دانصاوړیه خاندان کښې هم څه خلق ووچې هغوی نفاق اختیارکړې وو.[1]
خود داؤدی په قول باندې دصحیح بخاری دکتاب الصلح په روایت سره اشکال کیږی .هلته کښې دی (انه من الانصار قدشهدبدرا)[2]
اوکوم کس چې د(قدشهدبدرا) مصداق وی هغه هیڅ کله منافق نشی کیدې نوځکه معلومه شوه چې داکس مسلمان وو منافق نه وو .واحدی په (اسباب النزول) کښې لیکلی دی چې داکس حاطب بن ابی بلتعه وو.
حضرت حاطب مهاجروو انصاری نه ووخولغوی معنی په اعتبار سره په دهٔ باندې دانصاری اطلاق کیدې شی.
ابن بشکوال په ،منبهات،، کښې لیکلی دی چې داکس حضرت ثابت بن قیس بن شماس وو اوبعضووئیلی دی چې ثعلبه بن حاطب وو[3]
بهرحال چې څوك هم وو خوپه دې موقع باندې هغوی نامناسبه جمله وئیلې وه اودبشریت نه مغلوبه شویو لویه غلطی ئې کړې وه اوداخبره په خپل ځائې بې غباره ده چې دبشری غلطیانونه دبدرصحابه هم پاك نه وو خوالله تعالی جل شانه به دهغوی غلطیانې معاف کړې.
**قوله:شریج من الحرت:**(شریج) دابوبهیدولارې اولختی ته وائی(حرة)مدینې منورې ته نزدې هغه ځاځې ته وائی په کوم ځاځې کښې چې تور کاڼړی دی (حتی یرجع الی الجدر....) جدر دجیم په فتې اوددال په سکون سره، دیوال اوپولې ته وائی.
داحدیث په کتاب المساقاة کښې تیرشوی دې.[4]
**فائده** : حضرت حکیم الامت مولاناتهانوی رحمه الله فرمائی چې په ظاهره دایت نه دامعلومیږی چې کوم کس بل قانون باطل ګڼړی اودهغې باوجود هغې ته رجوع کوی هغه مسلمان نه دې که یوشرعی فیصله برحق ګڼړی اوددې باجودپه زړه کښې تنګی محسوسوی نوهغه هم پکارده

[1] ) عمدة القاری ،کتاب المساقاة باب سکرالانهار(ج۱۲ص۲۰۰)
[2] ) عمدة القاری ،کتاب المساقاة باب سکرالانهار(ج۱۲ص۲۰۰)
[3] ) عمدة القاری کتاب المساقاة باب کسر الانهار(ج۱۲ص۲۰۰) وفیه ....ولکن اب الداودی بعد ان جزم انه کان منافقابانه وقع منه ذلک قبل شهوده بدرا لانتفاء النفاق ممن شهدابدرا) _
[4] ) صحیح البخاری مع عمدة القاری کتاب المساقاة باب سکرالانهار(ج۱۲ص۲۰۰) _

چې مسلمان نه وی .حالانکه په تنګۍ باندې دانسان اختيار نشته نو ددې جواب دا دې چې تحکيم دعدم حرج اوتسليم درې درجې دی ① په اعتقادسره ② په ژبې سره ③ په عمل سره ،داولنۍ درجې نوم ايمان دې اودا موجودنه وی نوعندالله کفردې ،ددويمې درجې نوم اقراردې که دانه وی نوعندالناس کفردې اوددريم درجې نوم تقوی اواصلاح ده که دانه وی نوفسق به وی ،طبعی تنګی معاف ده اوپه ايت کښې په دې قرينې سره چې دمنافقانوذکردې اولنۍ مرتبه يعنی په زړه کښې تصديق اوايمان نه کيدل مرادی نوچې اشکال نشته[1]

## ۹۲: باب: فَأُولَٰئِكَ مَعَ الَّذِينَ أَنْعَمَ اللَّهُ عَلَيْهِم مِّنَ النَّبِيِّينَ

[۴۳۱۰] حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ حَوْشَبٍ حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ سَعْدٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ عُرْوَةَ عَنْ عَائِشَةَ - رضى الله عنها - قَالَتْ سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - يَقُولُ «مَا مِنْ نَبِيٍّ يَمْرَضُ إِلاَّ خُيِّرَ بَيْنَ الدُّنْيَا وَالآخِرَةِ». وَكَانَ فِي شَكْوَاهُ الَّذِي قُبِضَ فِيهِ أَخَذَتْهُ بُحَّةٌ شَدِيدَةٌ فَسَمِعْتُهُ يَقُولُ (مَعَ الَّذِينَ أَنْعَمَ اللَّهُ عَلَيْهِمْ مِنَ النَّبِيِّينَ وَالصِّدِّيقِينَ وَالشُّهَدَاءِ وَالصَّالِحِينَ) فَعَلِمْتُ أَنَّهُ خُيِّرَ.

(بحة) دباء په ضمې اوجاء په تشديدسره)په اوازکښې غټ والې اوپه حلق کښې سختی او خشکۍ ته وائی. په آيت کريمه کښې دکيدومطلب دادې چې دخپلې درجې نه به ددې حضراتو درجات عاليه ته ځی اودهغوی زيارت به کوی اودهغه ځائې په برکاتوبه مشرف کيږی[2]

## باب: وَمَا لَكُمْ لَا تُقَاتِلُونَ فِي سَبِيلِ اللَّهِ وَالْمُسْتَضْعَفِينَ مِنَ الرِّجَالِ وَالنِّسَاءِ الاية (۷۵)

[۴۳۱۲] حَدَّثَنِي عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ قَالَ سَمِعْتُ ابْنَ عَبَّاسٍ قَالَ كُنْتُ أَنَا وَأُمِّي مِنَ الْمُسْتَضْعَفِينَ.

[۴۳۱۲] حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ حَرْبٍ حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ عَنْ أَيُّوبَ عَنِ ابْنِ أَبِي مُلَيْكَةَ أَنَّ ابْنَ عَبَّاسٍ تَلاَ (إِلاَّ الْمُسْتَضْعَفِينَ مِنَ الرِّجَالِ وَالنِّسَاءِ وَالْوِلْدَانِ) قَالَ كُنْتُ أَنَا وَأُمِّي مِمَّنْ عَذَرَ اللَّهُ. وَيُذْكَرُ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ (حَصِرَتْ) ضَاقَتْ (تَلْوُوا) أَلْسِنَتَكُمْ بِالشَّهَادَةِ. وَقَالَ غَيْرُهُ الْمُرَاغَمُ الْمُهَاجَرُ. رَاغَمْتُ هَاجَرْتُ قَوْمِي. (مَوْقُوتًا) مُوَقَّتًا وَقْتَهُ عَلَيْهِمْ.

قوله: وَيُذْكَرُ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ (حَصِرَتْ) ضَاقَتْ: اشاره ده دسورة نساء آيت طرف ته (إِلَّا الَّذِينَ يَصِلُونَ إِلَىٰ قَوْمٍ بَيْنَكُمْ وَبَيْنَهُم مِّيثَاقٌ أَوْ جَاءُوكُمْ حَصِرَتْ صُدُورُهُمْ) معنی ده ددوی زړونه تنګ شی.

---

[1] ماخوذازبيان القرآن (ج۲ص۱۳۰) _
[2] ماخوذازبيان القرآن (ج۲ص۱۳۰) _

**قوله**: تلووا السنتكم بالشهادة: (وَإِنْ تَلْوُوا أَوْ تُعْرِضُوا فَإِنَّ اللَّهَ كَانَ بِمَا تَعْمَلُونَ خَبِيرًا) يعنى تاسو ژبې تاوهئ او د دروغو ګواهي بيان کړئ يا اعراض او کړئ نو الله ستاسو د کارونو نه خبر دې

**قوله**: وقال غيره المراغم المهاجر راغمت هاجرت قومي: د (غيره) ضمير حضرت ابن عباس رضي الله عنه ته راجع دې اشاره ده آيت كريمه وَمَنْ يُهَاجِرْ فِي سَبِيلِ اللَّهِ يَجِدْ فِي الْأَرْضِ مُرَاغَمًا كَثِيرًا وَسَعَةً طرف ته . ابوعبيده وئيلې دى چې د (مراغم) معنى ده مهاجر يعنى د هجرت مقام راځى وائى (راغمت قومى) ما خپل قوم پريخودو.

**قوله**: موقوتا موقتا وقته عليهم: په آيت كريمه كښې دى إِنَّ الصَّلَوٰةَ كَانَتْ عَلَى الْمُؤْمِنِينَ كِتَابًا مَوْقُوتًا) بې شكه مونځ په مسلمانانو باندې فرض دې په مقرروختونو كښې فرمائى چې (موقوتا) د (موقتا) په معنى كښې دى يعنى مقرر وخت ،دباب ضرب نه او (وقت) د باب تفعيل په معنى كښې دې .وخت مقرر كول (وقته اى وقته الله على المؤمنين) الله تعالى په مسلمانانو باندې د مونځ وخت مقرر كړې دې .

## باب: فَمَا لَكُمْ فِي الْمُنٰفِقِينَ فِئَتَيْنِ وَاللَّهُ أَرْكَسَهُمْ بِمَا كَسَبُوا

قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ بَدَّدَهُمْ، فِئَةٌ جَمَاعَةٌ

[۴۳۱۳] حَدَّثَنِي مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ حَدَّثَنَا غُنْدَرٌ وَعَبْدُ الرَّحْمَنِ قَالَا حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ عَدِيٍّ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ يَزِيدَ عَنْ زَيْدِ بْنِ ثَابِتٍ -رضى الله عنه- (فَمَا لَكُمْ فِي الْمُنَافِقِينَ فِئَتَيْنِ) رَجَعَ نَاسٌ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ -صلى الله عليه وسلم- مِنْ أُحُدٍ، وَكَانَ النَّاسُ فِيهِمْ فِرْقَتَيْنِ فَرِيقٌ يَقُولُ اقْتُلْهُمْ. وَفَرِيقٌ يَقُولُ لَا فَنَزَلَتْ (فَمَا لَكُمْ فِي الْمُنَافِقِينَ فِئَتَيْنِ) وَقَالَ «إِنَّهَا طَيْبَةُ تَنْفِي الْخَبَثَ كَمَا تَنْفِي النَّارُ خَبَثَ الْفِضَّةِ

حضرت ابن عباس رضي الله عنه د (اركس) تفسير كړې دې په (بدد) سره (بدد تبديدا) متفرق كول. قتاده تفسير كړې دې (اهلكهم) د حضرت ابن عباس رضي الله عنه تعليق طبرى موصولا نقل كړې دې (۱)

## باب: وَإِذَا جَاءَهُمْ أَمْرٌ مِّنَ الْأَمْنِ أَوِ الْخَوْفِ أَذَاعُوا بِهِ

(يَسْتَنْبِطُونَهُ) يَسْتَخْرِجُونَهُ. (حَسِيبًا) كَافِيًا (إِلَّا إِنَاثًا) الْمَوَاتَ حَجَرًا أَوْ مَدَرًا وَمَا أَشْبَهَهُ (مَرِيدًا) مُتَمَرِّدًا. (فَلَيُبَتِّكُنَّ) بَتَّكَهُ قَطَعَهُ. (قِيلًا) وَقَوْلًا وَاحِدٌ (طُبِعَ) خُتِمَ

**قوله**: (إِنْ يَدْعُونَ مِنْ دُونِهِ إِلَّا إِنَاثًا): (اناث) د (انث) جمع ده ښځې ته وائى . د اناث نه لات عزى او مناة وغيره بتان مراد دى چاته چې به مشركانو بنات الله وئيل .امام بخارى رحمه الله دد ي

---

(۱) عمدة القارى (ج۱۸ص۱۸۰)_

تفسیر په (اموات) سره کړې دې یعنی بې جانه څیزونه، کاڼړې خاوره اودغه شان نور بې روحه څیزونه قرآن په دې بتانوباندې داناث اطلاق کړې دې څکه چې دابتان به دبې جانه اوبې روحه څیزونونه جوړولې شول.

هم په دې آیت کښې وراندې دی (وَإِنْ يَدْعُونَ إِلَّا شَيْطَانًا مَرِيدًا) دمرید معنی ده سرکش دادصفت مشبه صیغه ده دباب نصراوکرم نه سرکش کیدل.

**قوله: فلیبتکن بتکه قطعه:** په آیت کریمه کښې دی (فَلَيُبَتِّكُنَّ آذَانَ الْأَنْعَامِ) فرمائی چې د(بتك) معنی ده کټ کول، ټکړې کول (وَمَنْ أَصْدَقُ مِنَ اللَّهِ قِيلًا) دقیل اوقول دواړو معنی یوه ده دواړه مصدر دی.

## باب (وَمَنْ يَقْتُلْ مُؤْمِنًا مُتَعَمِّدًا فَجَزَاؤُهُ جَهَنَّمُ)

[۴۳۱۴] حَدَّثَنَا آدَمُ بْنُ أَبِي إِيَاسٍ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ حَدَّثَنَا مُغِيرَةُ بْنُ النُّعْمَانِ قَالَ سَمِعْتُ سَعِيدَ بْنَ جُبَيْرٍ قَالَ { آيَةٌ } اخْتَلَفَ فِيهَا أَهْلُ الْكُوفَةِ، فَرَحَلْتُ فِيهَا إِلَى ابْنِ عَبَّاسٍ فَسَأَلْتُهُ عَنْهَا فَقَالَ نَزَلَتْ هَذِهِ الْآيَةُ (وَمَنْ يَقْتُلْ مُؤْمِنًا مُتَعَمِّدًا فَجَزَاؤُهُ جَهَنَّمُ) هِيَ آخِرُ مَا نَزَلَ وَمَا نَسَخَهَا شَيْءٌ.

**ایا قاتل به همیشه دپاره په جهنم کښې وی؟:** دلته دوه بحثونه دی. اولنې بحث دادې که یو مؤمن بل مؤمن عمدا قتل کړونو دې به مخلدفی النار وی اوکه نه. دمعتزلؤاوخوارجوپه نیزبه دې مخلدفی النار وی اوداهل سنت والجماعت به نیزبه دې مخلدفی النار نه وی بلکه دخپلې ګناه سزاخوړلونه پس به دجهنم نه رواخې[1]

داهل سنت والجماعت په مذهب باندې دآیت باب په وجه اشکال کیږی څکه چې به دې کښې د(خالدافیها) فرمائیلې شوی دی. ددې نه دده مخلدفی النار معلومیږی. ددې مختلف جوابونه ورکړې شوی دی.

① بعضوونیلی دی چې داسزادهغه کس دپاره ده څوك چې دمؤمن قتل جائزاوحلال اوګڼړی اوبنکاره ده چې داسې کس مؤمن نشی پاتې کیدې. ددې وجې دده سزا دامقررشوه.[2]

② بعضې حضراتوونیلې دی چې د(خالدافی النار) نه مکث طویل مراد دې او(خلد) دتابیدنه علاوه دمکث طویل دپاره استعمالیږی وانی (لاخلدن فلانافی السجن) زۀ به فلانې په جیل کښې همیشه دپاره قید کړم حال داچې دجیل دپاره دوام نه وی مرداد دې نه مکث طویل وی[3]

---

[1] احکام القرآن للشیخ ظفر احمد العثمانی (ج۲ص۳۲۷) وتفسیرمظهری (ج٤ص۱۹۷)
[2] تفسیر القرطبی (ج۵ص۳۳٤) _
[3] تفسیر القرطبی (ج۵ص۳۳٤) _

③ اوبعضې عالمانوئیلی دی چې(خالدافیها) دتغلیظ دپاره وئیلې شوې دې یعنې جزاء خوددې هم داپکارده چې همیشه دپاره په جهنم کښې پاتې شی ځکه چې داجرم دومره خوالله جل شانه به دایمان په وجه دې رواباسی [1]

④ اوحضرت تهانوی رحمه الله د(جزاءه جهنم خالدافیها) ترجمه کړې ده چې ددې اصلی سزا خو جهنم دې چې همیشه همیشه دپاره به دې کښې پاتې وی.خودالله فضل دې چې دااصلی سزابه جاری کیږی بلکه دایمان په برکت کښې آخرنجات بیامومی .په تفسیرعثمانی کښې هم دا جواب مذکور دې[2]

**ایا دقاتل توبه قبلیږی ؟**: دویم بحث دادې چې دده توبه قبلیږی که نه؟ په دې کښې داهل علم اختلاف دې دحضرت ابن عباس رضی الله عنه نه یوروایت مروی دې چې دده توبه نه قبلیږی .دحضرت زیدبن ثابت رضی الله عنه حضرت ابن عمر رضی الله عنه اوحضرت ابوهریره رضی الله عنه نه هم دا قول مروی دې[3]

دویم قول دادې چې دده توبه قبلیږی .داهم دحضرت ابن عباس رضی الله عنه اوحضرت زیدبن ثابت رضی الله عنه نه مروی دې .علامه قرطبی رحمه الله دااهل سنت صحیح مذهب ګرځولې دې[4]علامه عینی فرمائی (واجمع المسلون علی صحة توبه القاتل عمدا)[5]

سفیان بن عیینه (فرمائی چې دابتلاء نه وړاندې کله داهل علم نه ددې په باره کښې تپوس اوشی مثلا یوکس اووائی که زۀ داسې اوکړم نوځه به کیږی نواهل علم دې ورته وائی چې توبه دې نه قبلیږی اوددوی مقصدبه داوی چې داکس ددې ارادې نه منع شی خوچې کله یوکس مبتلا شی اوقتل اوکړی نو بیابه قاتل ته وائی چې توبه اوباسه[6]

قاضی ثناء الله رحمه الله په تفسیرمظهری کښې داهل علم مذکوره دواړه اقوالوکښې تطبیق کولو سره فرمائی چې (ان قتل العمد جنایة علی حق العبد وجنایة علی حق الله تعالی ،فقولهم: لاتوبة له ،معناه لاتوبة له فی حق العبد،وفیه القصاص لامحالة،اما فی الدنیااوفی الاخرة....واماقول العلماء بقبول التوبة فمعناه تفید التوبة لاستدراك حق الله تعالی.........)[7]

ابوعبدالله موصلی په خپل کتاب (الناسخ والمنسوخ) کښې لیکلی دی چې ډیروعالمانو دسورة فرقان داآیت ګرځولې دې (یُضٰعَفۡ لَهُ الۡعَذَابُ یَوۡمَ الۡقِیٰمَةِ وَیَخۡلُدۡ فِیۡهٖ بعضو ددې دپاره ناسخ دسورة

---

[1]) تفسیرروح المعانی (ج۱ص ۱۷۰)_
[2]) بیان القرآن (ج۲ص ۱۳۶) وتفسیرعثمانی(۱۲۲) _
[3]) عمدة القاری (ج۱۸ص۱۸۲) وتفسیرالقرطبی(ج۵ص ۳۳۲) _
[4]) تفسیرالقرطبی(ج۵ص۳۳۳) _
[5]) عمدة القاری (ج۱۸ص۱۸۳) –
[6]) تفسیرالبغوی(ج ۱ص۴۶۵)
[7]) تفسیرالبغوی (ج ۱ص۳۶۵) تفسیرالمظهری ( ۴_۱۹۷)

مُهَانًا﴾ ددې نه وړاندې دشرك زنا اوقتل النساء دا آيت منسوخ ګرځولې دې ذكرشوې دې چې ددې جرمونو دمرتكبينو دپاره دائمى عذاب دې .بيا فرمائى ﴿إِلَّا مَنْ تَابَ وَآمَنَ وَعَمِلَ عَمَلًا صَالِحًا﴾ خوچې څوك توبه اوباسى داحضرات فرمائ چې دې آيت دسورة نساء آيت منسوخ كړې دې اوبعضې حضرات فرمائى چې دسورة نساء آيت لره ﴿إِنَّ اللَّهَ لَا يَغْفِرُ أَنْ يُشْرَكَ بِهِ وَيَغْفِرُ مَا دُونَ ذَلِكَ لِمَنْ يَشَاءُ﴾ [١] منسوخ كړې دې

خوحضرت ابن عباس ﷺ په روايت باب كښې فرمائيلى دى چې دسورة نساء آيت لره هيڅ يوآيت نه دې منسوخ كړې دحضرت ابن عباس ﷺ داقول په تغليظ اوتشديد باندې محمول كول مناسب دى (الاجماع المسلمين على صحة توبة القاتل عمدا) والله اعلم .

## ٩٧- باب : وَلَا تَقُولُوا لِمَنْ أَلْقَى إِلَيْكُمُ السَّلَمَ لَسْتَ مُؤْمِنًا

السِّلْمُ وَالسَّلَمُ وَالسَّلَامُ وَاحِدٌ.

[٤١١٥] ([٢])حَدَّثَنِي عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ عَمْرٍو عَنْ عَطَاءٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ - رضى الله عنهما - (وَلَا تَقُولُوا لِمَنْ أَلْقَى إِلَيْكُمُ السَّلَامَ لَسْتَ مُؤْمِنًا) . قَالَ قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ كَانَ رَجُلٌ فِي غُنَيْمَةٍ لَهُ فَلَحِقَهُ الْمُسْلِمُونَ فَقَالَ السَّلَامُ عَلَيْكُمْ ، فَقَتَلُوهُ وَأَخَذُوا غُنَيْمَتَهُ ، فَأَنْزَلَ اللَّهُ فِي ذَلِكَ إِلَى قَوْلِهِ (عَرَضَ الْحَيَاةِ الدُّنْيَا) تِلْكَ الْغُنَيْمَةُ . قَالَ قَرَأَ ابْنُ عَبَّاسٍ السَّلَامَ.

## ٩٨. باب : لَا يَسْتَوِي الْقَاعِدُونَ مِنَ الْمُؤْمِنِينَ غَيْرُ أُولِي الضَّرَرِ وَالْمُجَاهِدُونَ فِي سَبِيلِ اللَّهِ

[٤٣١٦]حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ قَالَ حَدَّثَنِي إِبْرَاهِيمُ بْنُ سَعْدٍ عَنْ صَالِحِ بْنِ كَيْسَانَ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ قَالَ حَدَّثَنِي سَهْلُ بْنُ سَعْدٍ السَّاعِدِيُّ أَنَّهُ رَأَى مَرْوَانَ بْنَ الْحَكَمِ فِي الْمَسْجِدِ، فَأَقْبَلْتُ حَتَّى جَلَسْتُ إِلَى جَنْبِهِ، فَأَخْبَرَنَا أَنَّ زَيْدَ بْنَ ثَابِتٍ أَخْبَرَهُ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - أَمْلَى عَلَيْهِ لَا يَسْتَوِي الْقَاعِدُونَ مِنَ الْمُؤْمِنِينَ وَالْمُجَاهِدُونَ فِي سَبِيلِ اللَّهِ فَجَاءَهُ ابْنُ أُمِّ مَكْتُومٍ وَهُوَ يُمِلُّهَا عَلَيَّ قَالَ يَا رَسُولَ اللَّهِ، وَاللَّهِ لَوْ أَسْتَطِيعُ الْجِهَادَ لَجَاهَدْتُ - وَكَانَ أَعْمَى - فَأَنْزَلَ اللَّهُ عَلَى رَسُولِهِ - صلى الله عليه وسلم - وَفَخِذُهُ عَلَى فَخِذِي،

---

[١]) عمدة القارى (ج١٨ص١٨٢و١٨٣)

[٢]) اخرجه البخارى فى كتاب التفسير، باب ولاتقولوا لمن القى اليكم السلام لست مؤمنا.رقم الحديث :٤٣١٥ واخرجه مسلم فيه ايضا .رقم الحديث : ٣٠٢٥.واخرجه الترمذى فى كتاب التفسير.باب ومن سورة النساء، رقم الحديث : ٣٠٣٣. واخرجه ابوداؤد فى الحديث ولقراءات .رقم الحديث :٣٩٧٣.واخرجه النسائى فى السنن فى الكبرى، كتاب التفسيررقم الحديث :١١١١٦.وكتاب السير. رقم الحديث :٨٥٩٠

فَثَقُلَتْ عَلَيَّ حَتَّى خِفْتُ أَنْ تَرُضَّ فَخِذِي، ثُمَّ سُرِّيَ عَنْهُ، فَأَنْزَلَ اللَّهُ (غَيْرُ أُولِي الضَّرَرِ)

[٤٣١٧] حَدَّثَنَا حَفْصُ بْنُ عُمَرَ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ عَنِ الْبَرَاءِ - رضي الله عنه - قَالَ لَمَّا نَزَلَتْ (لَا يَسْتَوِي الْقَاعِدُونَ مِنَ الْمُؤْمِنِينَ) دَعَا رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - زَيْدًا فَكَتَبَهَا، فَجَاءَ ابْنُ أُمِّ مَكْتُومٍ فَشَكَا ضَرَارَتَهُ، فَأَنْزَلَ اللَّهُ (غَيْرُ أُولِي الضَّرَرِ)

[٤٣١٨] حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ يُوسُفَ عَنْ إِسْرَائِيلَ عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ عَنِ الْبَرَاءِ قَالَ لَمَّا نَزَلَتْ (لَا يَسْتَوِي الْقَاعِدُونَ مِنَ الْمُؤْمِنِينَ) قَالَ النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - «ادْعُوا فُلَانًا». فَجَاءَهُ وَمَعَهُ الدَّوَاةُ وَاللَّوْحُ أَوِ الْكَتِفُ فَقَالَ «اكْتُبْ لَا يَسْتَوِي الْقَاعِدُونَ مِنَ الْمُؤْمِنِينَ وَالْمُجَاهِدُونَ فِي سَبِيلِ اللَّهِ». وَخَلْفَ النَّبِيِّ - صلى الله عليه وسلم - ابْنُ أُمِّ مَكْتُومٍ فَقَالَ يَا رَسُولَ اللَّهِ أَنَا ضَرِيرٌ. فَنَزَلَتْ مَكَانَهَا (لَا يَسْتَوِي الْقَاعِدُونَ مِنَ الْمُؤْمِنِينَ غَيْرُ أُولِي الضَّرَرِ وَالْمُجَاهِدُونَ فِي سَبِيلِ اللَّهِ). [ر ٢٦٧٦]

[٤٣١٩] حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ مُوسَى أَخْبَرَنَا هِشَامٌ أَنَّ ابْنَ جُرَيْجٍ أَخْبَرَهُمْ ح وَحَدَّثَنِي إِسْحَاقُ أَخْبَرَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ أَخْبَرَنَا ابْنُ جُرَيْجٍ أَخْبَرَنِي عَبْدُ الْكَرِيمِ أَنَّ مِقْسَمًا مَوْلَى عَبْدِ اللَّهِ بْنِ الْحَارِثِ أَخْبَرَهُ أَنَّ ابْنَ عَبَّاسٍ - رضي الله عنهما - أَخْبَرَهُ (لَا يَسْتَوِي الْقَاعِدُونَ مِنَ الْمُؤْمِنِينَ) عَنْ بَدْرٍ وَالْخَارِجُونَ إِلَى بَدْرٍ.

ددې باب په اولنی روایت کښې دی چې رسول الله ﷺ په حضرت زید بن ثابت رضی الله عنه باندې آیت اولیکو ﴿لَا يَسْتَوِي الْقٰعِدُوْنَ مِنَ الْمُؤْمِنِيْنَ غَيْرُ أُولِي الضَّرَرِ وَالْمُجٰهِدُوْنَ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ﴾ اوس لاهغوی دا آیت لیکلو چې حضرت عبد الله بن مکتوم رضی الله عنه دنبی ﷺ په خدمت کښې حاضر شو او عرض ئې اوکړو یا رسول الله ﷺ که ما جهاد کولې شو نو ضرور به مې کولو. حضرت ابن ام مکتوم رضی الله عنه نابینا وو. نو الله تعالی په آیت کریمه کښې څو الفاظ نور نازل کړل یعنی ﴿غَيْرُ أُولِي الضَّرَرِ﴾ چې مطلب ئې دا دې چې د قاعدین نه غیر معذور خلق مراد دی کوم چې د طاقت استطاعت باوجود په جهاد کښې شرکت نه کوی او چې څوك معذور وی هغوی مستثنی دی.

دلته یو معمولی شان اشکال دې چې داولنی او دویم روایت نه معلومیږی چې دوباره صرف د ﴿غَيْرُ أُولِي الضَّرَرِ﴾ قید نازل شوې دې او د دویم روایت نه معلومیږی چې پوره آیت دوباره نازل شوې دی.

ددې جواب دا دې چې اصلا وبالذات دوباره صرف قید نازل شوې دې. اوس راوی کله په اصل باندې نظر کوی او صرف قید ذکر کوی او کله د آیت دسیاق رعایت کوی او پوره آیت د قید سره تلاوت کوی ځکه چې داد ب تقاضا هم داده. نورا احتمال شته چې دوباره ټول آیت مع القید نازل شوی وی نو کله راوی دواقعه بیانولو په ډول پوره آیت مع القید تلاوت کوی لکه څنګه چې دلته په دریم روایت کښې دی او کله صرف قید ذکر کوی. دې طرف ته اشاره کوی چې باقی آیت خو وړاندې نازل شوې وو. دوباره صرف ددې قید دپاره نازل شوې دې لکه څنګه چې په

اولنى اودويم روايت كښې دې .والله اعلم.

**د روايت د سند متعلق يوه فائده:** دباب داولنى روايت په سند كښې يوه لطيفه خوداده چې په دې كښې صالح بن كيسان دامام زهرى رحمه الله نه روايت كوى صالح بن كيسان دزهرى نه مشر دې نو دا (رواية الاكابر عن الاصاغر) دې [1]

دويمه لطيفه داده چې په دې كښې صحابى دتابعى نه روايت كوى څكه چې په دې كښې سهل بن سعد دمروان بن الحكم نه نقل كوى اوسهل رضي الله عنه صحابى دې حال داچې دمروان په باره كښې مشهوره دا ده چې هغه تابعى دې [2]

## ٩٩-باب ﴿إِنَّ الَّذِينَ تَوَفَّاهُمُ الْمَلَائِكَةُ ظَالِمِي أَنْفُسِهِمْ قَالُوا فِيمَ كُنْتُمْ قَالُوا كُنَّا مُسْتَضْعَفِينَ فِي الْأَرْضِ قَالُوا أَلَمْ تَكُنْ أَرْضُ اللَّهِ وَاسِعَةً فَتُهَاجِرُوا فِيهَا﴾ (٩٨)

[٤٣٢٠] (٣) حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ يَزِيدَ الْمُقْرِءُ حَدَّثَنَا حَيْوَةُ وَغَيْرُهُ قَالَا حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ أَبُو الْأَسْوَدِ قَالَ قُطِعَ عَلَى أَهْلِ الْمَدِينَةِ بَعْثٌ فَاكْتُتِبْتُ فِيهِ، فَلَقِيتُ عِكْرِمَةَ مَوْلَى ابْنِ عَبَّاسٍ فَأَخْبَرْتُهُ، فَنَهَانِي عَنْ ذَلِكَ أَشَدَّ النَّهْيِ، ثُمَّ قَالَ أَخْبَرَنِي ابْنُ عَبَّاسٍ أَنَّ نَاسًا مِنَ الْمُسْلِمِينَ كَانُوا مَعَ الْمُشْرِكِينَ يُكَثِّرُونَ سَوَادَ الْمُشْرِكِينَ عَلَى رَسُولِ اللَّهِ-صلى الله عليه وسلم-يَأْتِي السَّهْمُ فَيُرْمَى بِهِ، فَيُصِيبُ أَحَدَهُمْ فَيَقْتُلُهُ أَوْ يُضْرَبُ فَيُقْتَلُ، فَأَنْزَلَ اللَّهُ (إِنَّ الَّذِينَ تَوَفَّاهُمُ الْمَلَائِكَةُ ظَالِمِي أَنْفُسِهِمْ) الْآيَةَ. رَوَاهُ اللَّيْثُ عَنْ أَبِي الْأَسْوَدِ

**قوله: حَدَّثَنَا حَيْوَةُ وَغَيْرُهُ:** د(غيره) نه عبدالله بن لهيعه مراد دې .دابن لهيعه روايت طبرانى اوابن ابى حاتم تخريج كړې دې [4] عبدالله بن لهيعه چې متكلم فيه اوضعيف دې .ددې وجې امام بخارى دهغه دنوم تصريح اونكړه.

محمدبن عبدالرحمان ابوالاسود فرمائى چې داهل مدينه لښكر متعين كړې شو په هغې كښې

---

[1]) دا امام زهرى پيدائش ابن سعد په طبقات (ج٢ص١٧٢) كښې ٥٧ ليكى دې اودوى وفات علامه مزى رحمه الله په تهذيب الكمال (ج٢٦ص٤٤١) كښې ١٢٣ﻫ ليكلى دە .دصالح بن كيسان وفات حافظ په تقريب التهذيب (٢٧٣رقم الترجمه ٢٨٨٦ كښې اوخزرجې په (خلاصة التهذيب) ص ١٧١) كښې د ١٤٠ﻫ نه پس ليكلى دې اودپيدائش دكال علم نشته خوپه عمركښې دزهرى نه مشردې .يحيى بن معين فرمائى (صالح بن كيسان اكبرسنامن الزهرى) علامه مزى په تهذيب الكمال (ج٢٦ص٨٢و٨١) كښې دامام احمد اوعلى بن مدينى نه هم ددې مفهوم اقوال نقل كړې دى.

[2]) عمدة القارى (ج١٨ص١٨٦)) ــ

[3]) اخرجه البخارى فى كتاب التفسير،باب، ان الذين توفاهم الملائكة ظالمى انفسهم ،رقم الحديث :٤٣٢٠، وايضافى كتاب الفتن ،باب من كره ان يكثرسواد الفتن والظلم، رقم الحديث :٦٦٧٤، واخرجه النسائى فى السنن الكبرى ، رقم الحديث :١١١١٩

[4]) عمدة القارى (ج١٨ص٨٨)) ــ

زمانوم هم شامل وو.په دې دوران کښې زما ملاقات دحضرت ابن عباس رضي الله عنهما د آزاد کړې غلام حضرت عکرمه سره اوشو هغوی ډیرپه سختۍ سره لښکر کښې دتلونه منع کړم. بیائې دحضرت ،ابن عباس رضي الله عنهما په حوالې سره راته اووئیل چې څه خلق په مسلمانو کښې دمشرکانو سره اوسیږي. درسول الله ﷺ خلاف دمشرکانو له زیاتوي. جنګ په دوران کښې که یوغشې په دغه مسلمانانو کښې چاته اورسي اوهغه مړشي.یاپه توري چلولوسره قتل شي نوپه دې باندې الله جل شانه داذکرشوې آیت کریمه نازل کړو.

دواقعه په جنګ بدرکښې پیښه شوې وه، په مکه کښې مقیم بعضې مسلمانان مشرکانو دخپل خان سره دمسلمانانوسره دجنګ کولودپاره په زورباندې راوستي وو.په دې کښې بعضې مړه شول .دغه شان دمسلمانانودلاس نه مړه شول. حضرت عکرمه ابوالا سودپه لښکرکښې دتلونه منع کړلواوداواقعه ئې ورته په دې موقع باندې واوروله خکه چې ذکرشوې لښکرته دحضرت عبدالله بن زبير رضي الله عنهما دطرف نه اهل شام خلاف جنګ کولودپاره ترتیب ورکړې شوې وو.[1] او ښکاره ده چې په دې کښې دواړه طرفونوته مسلمانان وو اودمسلمانانوتوره په مسلمانانو باندې چلیده.په دې مناسبت سره عکرمه ذکرشوې واقعه واورله اوابوالاسودئې په لښکر کښې دتلونه منع کړو.

## ١٠٠ = باب: إِلَّا الْمُسْتَضْعَفِينَ مِنَ الرِّجَالِ وَالنِّسَاءِ وَالْوِلْدَانِ لَا يَسْتَطِيعُونَ حِيلَةً وَلَا يَهْتَدُونَ سَبِيلًا

[۲۲۲۱] حَدَّثَنَا أَبُو النُّعْمَانِ حَدَّثَنَا حَمَّادٌ عَنْ أَيُّوبَ عَنِ ابْنِ أَبِي مُلَيْكَةَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ -رضى الله عنهما- (إِلَّا الْمُسْتَضْعَفِينَ) قَالَ كَانَتْ أُمِّي مِمَّنْ عَذَرَ اللَّهُ.

## ١٠١-باب: فَأُولَئِكَ عَسَى اللَّهُ أَنْ يَعْفُوَ عَنْهُمْ ۚ وَكَانَ اللَّهُ عَفُوًّا غَفُورًا[٩٩]

[٤٣٢٢] حَدَّثَنَا أَبُو نُعَيْمٍ حَدَّثَنَا شَيْبَانُ عَنْ يَحْيَى عَنْ أَبِي سَلَمَةَ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ -رضى الله عنه- قَالَ بَيْنَا النَّبِي -صلى الله عليه وسلم- يُصَلِّي الْعِشَاءَ إِذْ قَالَ «سَمِعَ اللَّهُ لِمَنْ حَمِدَهُ». ثُمَّ قَالَ قَبْلَ أَنْ يَسْجُدَ «اللَّهُمَّ نَجِّ عَيَّاشَ بْنَ أَبِي رَبِيعَةَ، اللَّهُمَّ نَجِّ سَلَمَةَ بْنَ هِشَامٍ، اللَّهُمَّ نَجِّ الْوَلِيدَ بْنَ الْوَلِيدِ، اللَّهُمَّ نَجِّ الْمُسْتَضْعَفِينَ مِنَ الْمُؤْمِنِينَ، اللَّهُمَّ اشْدُدْ وَطْأَتَكَ عَلَى مُضَرَ، اللَّهُمَّ اجْعَلْهَا سِنِينَ كَسِنِي يُوسُفَ».

## ١٠٢-باب وَلَا جُنَاحَ عَلَيْكُمْ إِنْ كَانَ بِكُمْ أَذًى مِنْ مَطَرٍ أَوْ كُنْتُمْ مَرْضَى أَنْ تَضَعُوا أَسْلِحَتَكُمْ[١٠٢]

[٤٣٢٣] حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ مُقَاتِلٍ أَبُو الْحَسَنِ أَخْبَرَنَا حَجَّاجٌ عَنِ ابْنِ جُرَيْجٍ قَالَ أَخْبَرَنِي

[1] عمدة القارى (ج١٨ص٨٨)

يَعْلَى عَنْ سَعِيدِ بْنِ جُبَيْرٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ - رضى الله عنهما - (إِنْ كَانَ بِكُمْ أَذًى مِنْ مَطَرٍ أَوْ كُنْتُمْ مَرْضَى) قَالَ عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ عَوْفٍ كَانَ جَرِيحًا

## ١٠٣-بَاب وَيَسْتَفْتُونَكَ فِي النِّسَاءِ قُلِ اللَّهُ يُفْتِيكُمْ فِيهِنَّ وَمَا يُتْلَى عَلَيْكُمْ فِي الْكِتَابِ فِي يَتَامَى النِّسَاءِ [١٢٧]

[٤٣٢٤] حَدَّثَنَا عُبَيْدُ بْنُ إِسْمَاعِيلَ حَدَّثَنَا أَبُو أُسَامَةَ حَدَّثَنَا هِشَامُ بْنُ عُرْوَةَ عَنْ أَبِيهِ عَنْ عَائِشَةَ - رضى الله عنها - (وَيَسْتَفْتُونَكَ فِي النِّسَاءِ قُلِ اللَّهُ يُفْتِيكُمْ فِيهِنَّ) إِلَى قَوْلِهِ (وَتَرْغَبُونَ أَنْ تَنْكِحُوهُنَّ) . قَالَتْ هُوَ الرَّجُلُ تَكُونُ عِنْدَهُ الْيَتِيمَةُ ، هُوَ وَلِيُّهَا وَوَارِثُهَا ، فَأَشْرَكَتْهُ فِي مَالِهِ حَتَّى فِي الْعِذْقِ ، فَيَرْغَبُ أَنْ يَنْكِحَهَا ، وَيَكْرَهُ أَنْ يُزَوِّجَهَا رَجُلاً ، فَيَشْرَكُهُ فِي مَالِهِ بِمَا شَرِكَتْهُ فَيَعْضُلُهَا فَنَزَلَتْ هَذِهِ الآيَةُ .

## ١٠٤-بَاب : وَإِنِ امْرَأَةٌ خَافَتْ مِنْ بَعْلِهَا نُشُوزًا أَوْ إِعْرَاضًا [١٢٨]

وَقَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ شِقَاقٌ تَفَاسُدٌ (وَأُحْضِرَتِ الأَنْفُسُ الشُّحَّ) هَوَاهُ فِي الشَّيْءِ يَحْرِصُ عَلَيْهِ (كَالْمُعَلَّقَةِ) لاَ هِيَ أَيِّمٌ وَلاَ ذَاتُ زَوْجٍ (نُشُوزًا) بُغْضًا

كله چې ديوسړى دځه څيزخواهش وى اوهغه په ده باندې غالب شى نودې حرص اوخواهش ته شح وائى [1]

[٤٣٢٥] حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ مُقَاتِلٍ أَخْبَرَنَا عَبْدُ اللَّهِ أَخْبَرَنَا هِشَامُ بْنُ عُرْوَةَ عَنْ أَبِيهِ عَنْ عَائِشَةَ - رضى الله عنها - (وَإِنِ امْرَأَةٌ خَافَتْ مِنْ بَعْلِهَا نُشُوزًا أَوْ إِعْرَاضًا) . قَالَتِ الرَّجُلُ تَكُونُ عِنْدَهُ الْمَرْأَةُ لَيْسَ بِمُسْتَكْثِرٍ مِنْهَا يُرِيدُ أَنْ يُفَارِقَهَا فَتَقُولُ أَجْعَلُكَ مِنْ شَأْنِي فِي حِلٍّ . فَنَزَلَتْ هَذِهِ الآيَةُ فِي ذَلِكَ .

يو داسې ښځه چې په هغې کښې دخاوندڅه قسم رغبت نه وى اوخاوند غواړى چې ددې نه جدائى اوبيلتون اختيارکړى خوښځه اووائى چې ماپه خپل زوجيت کښې اوساته اوزماحقوق معاف دى .ذکرشوې آيت په دې باره کښې نازل شوې دې .

که ښځې خپل نوبت اونورحقوق ساقط کړل نوهغه حقوق به ساقط شى خوکه روسته ښځې رجوع اوکړى نوبيابه په خاوند باندې حقوق اداکول وى.خودماضى نه ،بلکه په مستقبل کښې به هغې ته دهغې دحقوقونواداکولواهتمام کوى .

داروايت په کتاب الصلح کښې تيرشوې دې .

[1]) قال الراغب فى المفردات(٢٥٦) الشح بخل مع حرص مع وذلک فيماکان عادة)

## ۱۰۵_ باب: إِنَّ الْمُنٰفِقِيْنَ فِي الدَّرْكِ الْأَسْفَلِ مِنَ النَّارِ

[۴۳۲۶].. (۱) حَدَّثَنَا عُمَرُ بْنُ حَفْصٍ حَدَّثَنَا أَبِي حَدَّثَنَا الْأَعْمَشُ قَالَ حَدَّثَنِي إِبْرَاهِيمُ عَنِ الْأَسْوَدِ قَالَ كُنَّا فِي حَلْقَةِ عَبْدِ اللَّهِ فَجَاءَ حُذَيْفَةُ حَتَّى قَامَ عَلَيْنَا، فَسَلَّمَ ثُمَّ قَالَ لَقَدْ أُنْزِلَ النِّفَاقُ عَلَى قَوْمٍ خَيْرٍ مِنْكُمْ. قَالَ الْأَسْوَدُ سُبْحَانَ اللَّهِ، إِنَّ اللَّهَ يَقُولُ (إِنَّ الْمُنَافِقِيْنَ فِي الدَّرْكِ الْأَسْفَلِ مِنَ النَّارِ) فَتَبَسَّمَ عَبْدُ اللَّهِ، وَجَلَسَ حُذَيْفَةُ فِي نَاحِيَةِ الْمَسْجِدِ، فَقَامَ عَبْدُ اللَّهِ فَتَفَرَّقَ أَصْحَابُهُ، فَرَمَانِي بِالْحَصَا، فَأَتَيْتُهُ فَقَالَ حُذَيْفَةُ عَجِبْتُ مِنْ ضَحِكِهِ، وَقَدْ عَرَفَ مَا قُلْتُ، لَقَدْ أُنْزِلَ النِّفَاقُ عَلَى قَوْمٍ كَانُوا خَيْرًا مِنْكُمْ، ثُمَّ تَابُوا فَتَابَ اللَّهُ عَلَيْهِمْ.

**قوله:** نفقا سربا: دسورة انعام آيت (فَإِنِ اسْتَطَعْتَ أَنْ تَبْتَغِيَ) كښې ئې د(نفق) تفسير په (سرب) سره كړې دې .سرب سورنګ ته وائى ،داتفسير امام بخارى رحمه الله دلته د(إِنَّ الْمُنٰفِقِيْنَ) په مناسبت سره بيان كړې دې .چې دمنافق لفظ هم د ،نفق،، نه ماخوذ دې چونكه منافق هم دزمكې لاندې تول كوششونه داسلام خلاف جارى ساتى اولكه څنګه چې سرنګ دتحفظ دپاره جوړولې شى دغه شان منافق هم دخپل حفاظت اوبچاؤدپاره لاره جوړه كړې وى (۲)ددې پوره تفصيل په كشف البارى باب علامة الايمان لاندې تيرشوې دې.

په روايت كښې حضرت اسودبن يزيد فرمائى چې مونږ دحضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه په مجلس كښې حاضروو.په دې كښې حضرت حذيفه رضي الله عنه راغلواودريدواوسلام ئې اوكړو وې فرمائيل چې نفاق په داسې قوم باندې نازل كړې شوې ووكوم چې ستاسونه غوره وو. مطلب داووچې دصحابو رضي الله عنهم په دوركښې خلق منافقان ووحال داچې هغه خيرالقرون دور وو. ددې وجې يوكس نه دهوكه كيدل نه دى پكار اوفخرنه دې كول پكار.

په دې باندې اسودبن يزيداووئيل (سبحان الله) ته عجيبه خبره كوې، الله خوفرمائى (إِنَّ الْمُنٰفِقِيْنَ فِي الدَّرْكِ الْأَسْفَلِ مِنَ النَّارِ) اوته وائى چې زمونږ نه غوره خلق منافقان ووحضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه چې دمجلس شيخ ووهغوى صرف مسكې شو.

حضرت حذيفه رضي الله عنه خپله خبره اوكړه اودجماعت په يوكوټ كښې كيناستلواسودبن يزيد وائى چې دحضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه دمجلس ختميدونه پس حضرت حذيفه رضي الله عنه زۀ راوغوښتلم اوماطرف ته ئې يوكټكې راګزار كړوزۀ هغوى ته ورغلم نووې فرمائيل دحضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه په خندا باندې زۀ ډيرحيران شوم .حال د اچې هغه زما په مراد پوهه شوې

---

(۱) اخرجه البخارى فى كتاب التفسيرباب ان المنافقين فى الدرک الاسفل من النارقم الحديث (۴۳۲۶) ولم يخرجه احدمن اصحاب الستة سوى البخارى) _

(۲) قال الكرمانى : ۱۷/۹۱ فان قلت : النفق فى سورة الانعام ،ولاتعلق له ايضابقصة المنافقين قال تعالى : ان استطعت ان تبتغى نفقافى الارض. قلت : غرضه بيان اشتقاق المنافقين منه ،،_

وو اوبيائې دخپلې خبرې وضاحت اوكړوچې ستاسونه په غوره خلقونفاق نازل شوې وو. بيا الله هغوى ته دتوبې توفيق وركړواودهغوى توبه ئ قبوله كړې وه.
اوپه دې كښې هم څه شك نشته چې څه خلق داسې هم پاتې شوې ووچې بغيرتوبې مړه شوې وو. لكه عبدالله بن ابى وغيره.

مولانا رشيد احمد گنگوهى رحمه الله فرمائى چې په (لقد انزل النفاق على قوم خير منكم) كښې دقوم نه صحابه كرام رضى الله عنهم مراددې اودنفاق نه نفاق عملى مراددې اومطلب دادې چې صحابه كرام رضى الله عنهم ستاسونه غوره ووخوددې باوجودبعضې صحابه په نفاق عملى كښې مبتلا شوى وواوبيائې توبه ويستې وه نوځكه تاسوخلقولره تكبرنه دې پكارچې دعبدالله بن مسعود رضى الله عنه غوندې لوئې فقيه اوعالم نه سبق وايو. اسوددحضرت حذيفه رضى الله عنه په خبره صحيح پوهه نشو.هغه دااوكنړل چې حضرت حذيفه رضى الله عنه مونږته منافقان وائى. ددې وجې ئې دتعجب اظهاراوكړواو(سبحان الله)ئې اووئيل .حضرت عبدالله بن مسعود رضى الله عنه چې كله اوكتل چې اسوددحضرت حذيفه رضى الله عنه دخبرې نه بل مطلب اخلى نوهغه مسكې شوحضرت حذيفه رضى الله عنه ددوى په مسكاباندې حيران شوځكه چې هغوى خوددوى (حذيفه) مرادباندې صحيح پوهه شوى وو.(¹)

په آيت كريمه كښې دى (إِنَّ الْمُنٰفِقِيْنَ فِي الدَّرْكِ الْأَسْفَلِ مِنَ النَّارِ) چه حضرت ابن عباس رضى الله عنه ددې تشريح په (اسفل النار) سره كړې ده اودې خبرې طرف ته ئې اشاره كړې ده چې (من) داسم تفضيل په صله كښې نه دې مستعمل بلكه دابيانيه دې نوچاته داوهم نه دى كول پكارچې (درك اسفل) داورنه بهردڅه ځائې نوم دې بلكه ددې نه داوربنكته حصه مراد ده.
دحضرت ابن عباس رضى الله عنه تعليق ابن ابى حاتم موصلا نقل كړې دى.(²)

## ۱۰۶- باب: قوله إِنَّا أَوْحَيْنَا إِلَيْكَ كَمَا أَوْحَيْنَا إِلَى نُوحٍ [۱۶۳]

[۴۳۲۷] حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا يَحْيَى عَنْ سُفْيَانَ قَالَ حَدَّثَنِي الأَعْمَشُ عَنْ أَبِي وَائِلٍ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ عَنِ النَّبِيِّ -صلى الله عليه وسلم- قَالَ «مَا يَنْبَغِي لأَحَدٍ أَنْ يَقُولَ أَنَا خَيْرٌ مِنْ يُونُسَ بْنِ مَتَّى».

[۴۳۲۸] حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ سِنَانٍ حَدَّثَنَا فُلَيْحٌ حَدَّثَنَا هِلاَلٌ عَنْ عَطَاءِ بْنِ يَسَارٍ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ -رضى الله عنه- عَنِ النَّبِيِّ -صلى الله عليه وسلم- قَالَ «مَنْ قَالَ أَنَا خَيْرٌ مِنْ يُونُسَ بْنِ مَتَّى فَقَدْ كَذَبَ»

**د من قال انا خير من يونس بن متى معنى:** يومطلب خودادې چې كه يوكس دخپل ځان په باره

---
(¹) لامع الدراى (ج۹ص۵۸و۵۷) _
(²) عمدة القارى(ج۱۸ص۱۹۳) _

كښې ديونس (علیه السلام) په مقابله كښې دغوره والى اوافضليت دعوى كوى نوهغه دروغژن دې ،دالله دنبى نه غيرنبى افضل كيدى نه شى اګر چې هغه نبى دانبياؤپه ډله كښې څومره دكمې درجې ولې نه وى.دحضرت يونس (علیه السلام) تخصيص ئې ددې وجې اوكړوچې هغوى سره دبطن حوت واقعه پيښه شوې وه چې هغې ته اوګورى اوڅوك اووائى چې زماخوتول ژوندپه عبارت اواطاعت كښې تيرشوې دې نوځكه زۀ غوره يم نوداسې كس دروغژن دې.

اودويم مطلب داهم كيدې شى چې ددې نه پخپله نبى ﷺ مراد وى، په دې صورت كښې به دنبى ﷺ دارشاد مطلب به داشى چې څوك ماديونس (علیه السلام) نه بهترګڼړى نوهغه غلط وائى (۱)

په دې صورت كښې به اشكال كيږى چې نبى ﷺ خوپه اتفاق سره دټولوپيغمبرانونه افضل دې نوبياداسې كس قول ته غلط ولې ونيلې شوى دى.

① ددې يوجواب داددې چې نبى ﷺ دعاجزئ اودخپل نفس دښكته كولوډپاره دافرمائيلى دى.(۲)

دويم جواب داوركړې شوې دې چې نبى ﷺ دارشاد په هغه وخت كښې كړې ووكله چې دوى ته دنوروپيغبرانوپه مقابله كښې دخپل ځان دفضيلت علم نه ووحاصل (۳)

دريم جواب داوركړې شوې دې چې ددې نه په نفس نبوت كښې دفضيلت نفى مراد ده ځكه چې په نفس نبوت كښې ټول انبياءبرابردى.(۴)

② اوڅلورم جواب داوركړې شوې دې چې دنبى ﷺ ددې ارشادنه دداسې فضيلت نفى مقصود ده چې په هغې سره دحضرت يونس (علیه السلام) دتحقيراوتنقيص شبه پيداشى.(۵)

## ۱۰۷-باب: يَسْتَفْتُونَكَ قُلِ اللَّهُ يُفْتِيكُمْ فِي الْكَلَالَةِ إِنِ امْرُؤٌ هَلَكَ لَيْسَ لَهُ وَلَدٌ وَلَهُ أُخْتٌ فَلَهَا نِصْفُ مَا تَرَكَ وَهُوَ يَرِثُهَا إِنْ لَمْ يَكُنْ لَهَا وَلَدٌ

وَالْكَلَالَةُ مَنْ لَمْ يَرِثْهُ أَبٌ أَوِ ابْنٌ وَهُوَ مَصْدَرٌ مِنْ تَكَلَّلَهُ النَّسَبُ.

[۴۲۲۹] حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ حَرْبٍ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ سَمِعْتُ الْبَرَاءَ-رضى الله عنه قَالَ آخِرُ سُورَةٍ نَزَلَتْ بَرَاءَةَ، وَآخِرُ آيَةٍ نَزَلَتْ (يَسْتَفْتُونَكَ قُلِ اللَّهُ يُفْتِيكُمْ فِي الْكَلَالَةِ» [ر: ۴۱۰۶]

**د كلاله تفسير** :دكلاله په تفسيركښې دعالمانواختلاف دې اوڅلوراقوال په كښې مشهوردى.

① يوقول دا دې چې كلاله دهغه مړى مال موروث ته وائى چې دكوم مړې ولداو والدنه وى

② دويم قول دا دې چې كلاله اسم مصدر دې او دهغه مړى د وراثت ته وائى دكوم مړى چې

---

(۱) فتح البارى : كتاب احاديث الانبياء باب: وان يونس لمن المرسلين، ۴۵۱/۶_

(۲) عمدة القارى(ج۱۸ص ۱۹۴) _

(۳) فتح البارى ،كتاب احاديث الانبياء (ج۲۵ ۶۴۲)_

(۴) فتح القدير للشوكانى(ج۱ ص۴۵۲) _

(۵) فتح البارى (ج۶ص۴۲)،كتاب احاديث الانبياء _

ولد او والد نه وي ـ

④ دریم قول دادې چې کلاله دهغه وارثانونوم دې چې په هغوی کښې څوک ولد اووالد نه وي په دې صورت کښې به دمړی رویان کلاله وي.

④ څلورم قول دادې چې دهغه مړی نوم دې دچاچې خوئ اوپلار ژوندی موجودنه وي هم دادجمهوروقول دې

خوپه قرآن اوحدیث کښې دکلاله اطلاق په مړی باندې هم شوې دې اوپه وارث باندې هم په آیت باب اوآیت میراث کښې د وَاِنْ كَانَ رَجُلٌ يُّوْرَثُ كَلٰلَةً کښې دکلاله اطلاق په مړی باندې شوې دې اوحضرت جابر(رض) په حدیث کښې په (انمایرثنی کلالة) کښې دکلاله نه وارث مراددې.

ددې وجې په ظاهره دامعلومیږی چې دکلاله لفظ په یوخاص حالت کښې دمړی اووارث دواړو دپاره استعمالیږی اودا په خاص حالت کښې دولداووالدنه موجودکیدل دی [1]

دویم بحث دادې چې لفظ دکلاله په لغوی اعتبار سره څه دې اوڅه نه مشتق دې ؟ امام بخاری رحمه الله دلته دابوعبیده قول نقل کړې دې چې کلاله مصدردې د(تکلل) نه . د(تکلله النسب) ترجمه علامه عینی کړې ده (تطرفه) [2]یعنی طرف ته کیدل (لکه څنګه چې ابن العم دې چې دادعمود نسب څنې نه بلکه په طرف کښې وي خودکلاله په صورت کښې هغه دپلار اومور طرف اخلی) یعنی دکلاله په صورت کښې داصول اوفروع دمیراث حصه په اطرافوکښې واقع خپلوانوته ملاویږی.

اوبعضې وائی چې کلاله د(اکلیل)نه ماخوذده معنی ئې تاج راځی ،

لکه څنګه چې تاج په سرباندې احاطه کړې وي دغه شان کلاله دغه مړې راګیر کړې وي [3]

اوبعضې وائی چې کلاله د (کلال) په معنی دې اودکلال معنی ده ستړې کیدل [4]. کوم چې په ضعف باندې دلالت کوی .دپلار اوخوې دقرابت نه سوابل قرابت ته کلاله وئیلې شوې ده څکه چې داقرابت دپلار اوخوې قرابت ته په نسبت سره کمزورې وي .

کلاله ته دلته مصدر وئیلې شوې دې .علامه عینی په دې باندې اشکال کړې دې اووئیلې دی چې دباب تفعل مصدر داڅنګه کیدې شی څکه چې داپه دې وزن باندې نه دې ،نوڅکه دامصدر نه دې بلکه اسم مصدردې [5]

دآیت باب نه بعضې شیعه ګانواستدلال کړې دې اووئیلې دی چې کلاله هغه دې چې دهغه اولاد نه وي .اګرچې پلار ئې وي څکه چې په آیت کښې صرف دولد نفی ده.

---

[1]) دذکرشوقسمونودتفصیل دپاره اوګورئ،تکملة فتح الملهم(۲۰و۱۹) وشرح مسلم للنووی (ج۲ص۳۵)

[2]) عمدة القاری(ج۱۸ص۱۹۵)ـ

[3]) شرح مسلم للنووی (ج۲ص۳۵)ـ

[4]) فیض الباری(ج٤ص۱۷۷) ـ

[5]) عمدة القاری(ج۱۸ص۱۹۵)ـ

الکلٰلۃ «اِنِ امْرُؤٌا ھَلَکَ لَیْسَ لَہٗ وَلَدٌ»
خودا استدلال صحیح نه دې آیت کریمه کښې دوالد نفی ددې وجې نه شوې ده چې داهل عرب په نیز دکلاله معنی مشهوره وه چې دچاپلار اومور دواړه نه وی ددې وجې دنفی الوالدتصریح قرآن نه دې کړې [1]

اوعلامه خطابی رحمه الله فرمائیلی دی چې په آیت کریمه کښې د«ولد» نه ولادت من جانب اعلی اومن جانب اسفل دواړه مراد دی «لیس له ولد ای ولادة فی الطرفین ان اعلی واسفل» دولادت جانب اعلی دنفی نه پلار اودولادت جانب اسفل دنفی نه ولدمراددې «وهومعنی قول الصحابة الفقهاء ان الکلالة من لیس له ولد ولا والد» [2]

# ۱۰۸- تفسیرسورة المَآئِدَةِ

(حُرُمٌ) وَاحِدُهَا حَرَامٌ. (فَبِمَا نَقْضِهِمْ) بِنَقْضِهِمْ (الَّتِي كَتَبَ اللَّهُ) جَعَلَ اللَّهُ (تَبُوءَ) تَحْمِلُ (دَائِرَةٌ) دَوْلَةٌ. وَقَالَ غَيْرُهُ الإِغْرَاءُ التَّسْلِيطُ (أُجُورَهُنَّ) مُهُورَهُنَّ. الْمُهَيْمِنُ الأَمِينُ، الْقُرْآنُ أَمِينٌ عَلَى كُلِّ كِتَابٍ قَبْلَهُ.

## سورة المائدة

**د کلماتو تشریح:**

**قوله:** أُحِلَّتْ لَكُمْ بَهِيمَةُ الْأَنْعَامِ إِلَّا مَا يُتْلَى عَلَيْكُمْ غَيْرَ مُحِلِّي الصَّيْدِ وَأَنْتُمْ حُرُمٌ:
ستاسوخاروی حلال کړې شوی دی .خوهغه څناورچې دهغې حرمت تاسوته بیان کړې شی «هغه ستاسودپاره حلال نه دی»خوداحرام په حالت کښې ښکارحلال مه ګڼرئ.
امام بخاری رحمه الله فرمائی . چې د«حرم» واحد«حرام» دې په معنی دمحرم

**قوله:** فَبِمَا نَقْضِهِمْ مِيثَاقَهُمْ: (فَبِمَا نَقْضِهِمْ مِيثَاقَهُمْ لَعَنَّاهُمْ وَجَعَلْنَا قُلُوبَهُمْ قَاسِيَةً) امام بخاری رحمه الله فرمائی چې په «فَبِمَا نَقْضِهِمْ مِيثَاقَهُمْ
کښې »ما« زنده ده.

**قوله:** الَّتِي كَتَبَ اللَّهُ جَعَلَ اللَّهُ: يَا قَوْمِ ادْخُلُوا الْأَرْضَ الْمُقَدَّسَةَ الَّتِي كَتَبَ اللَّهُ لَكُمْ موسی «علیه السلام» اوئیل ای قومه، دې پاکې زمکې «دشام ملك» ته داخل شئ کومه چې الله ستاسودپاره لیکلې ده یعنی په آیت کښې «کَتَبَ اللّٰهُ» د «جَعَلَ اللّٰهُ» په معنی کښې دې یعنی الله مقررکړې ده.

**قوله:** تبوء تحمل: إِنِّي أُرِيدُ أَنْ تَبُوءَ بِإِثْمِي وَإِثْمِكَ په دې کښې د«تبوء» تفسیرئې په «تحمل» سره کړې.

---

[1] شرح مسلم للنووی (ج۲ ص۳۵) وتکملة فتح الملهم (ج۲ص۳۱) ـ
[2] معالم لسنن (ج٤ص١٤١و١٤٢) ـ

دي [1] داتفسیر ابو عبیده کړې دې.

**قوله:** دائرة دولة: يَقُولُونَ نَخْشٰى اَنْ تُصِيْبَنَا دَآئِرَةٌ تفسیر په (دولة) سره کړې دې چې معنی ئې ګردش انقلاب اومصیبت دې دادمنافقانو قول دې کوم چې به کافرانو ته ورتلل او دخپلې دوستۍ اظهار به ئې کولو اوکله چې به چاوئ لره په دې حرکت باندې ملامته کول نوونیل به ئې زمونږ ویره ده چې مونږ په څه مصیبت کښې اخته نشو یعنې دنبی ﷺ کامیابی او غلبه څه یقینی نه ده، ممکن ده چې په حالاتو کښې انقلاب راشی اومسلمانان مغلوبه شی نوپه دغه وخت کښې به کافران مونږ مخالف اوګڼړی اوقتل به موکړی اوددې ویرې دوجې مونږ د کافرانو سره رابطه ساتو اوهغوی ته ورځو.

**قوله:** وَقَالَ غَيْرُهُ الْاِغْرَاءُ التَّسْلِيطُ: فَاَغْرَيْنَا بَيْنَهُمُ الْعَدَاوَةَ وَالْبَغْضَآءَ اِلٰى يَوْمِ الْقِيٰمَةِ) نومونږ دهغوی په مینځ کښې دشمنی اوکینه واچوله کومه چې به ترقیامته پورې جاری وی.

په دې آیت کښې لفظ د(اغرینا) تفسیر شوې دې چې (اغراء) په معنی دتسلیط دې یعنی مونږ د نصرانیانو په خپل مینځ کښې دښمنی اوکینه ترقیامته پورې مسلط کړه. داتفسیر باللازم دې اکثر مفسرین د(اغرینا) تفسیر په (القینا) سره کوی اوهم داواضح دې ځکه چې په بل ځائې کښې سورة مائده آیت نمبر ۶۴ کښې دالله تعالی ارشاد دې(وَاَلْقَيْنَا بَيْنَهُمُ الْعَدَاوَةَ وَالْبَغْضَآءَ اِلٰى يَوْمِ الْقِيٰمَةِ)

**قوله:** قال سفيانُ ما في القران آية اشد علي: حضرت سفیان ثوری رحمه الله چې دقرآن کریم یو آیت هم په ما باندې دومره ګران اوسخت نه دې څومره چې داآیت (لَسْتُمْ عَلٰى شَيْءٍ حَتّٰى تُقِيْمُوا التَّوْرٰىةَ وَالْاِنْجِيْلَ وَمَآ اُنْزِلَ اِلَيْكُمْ مِّنْ رَّبِّكُمْ) حضرت سفیان ثوری ته داآیت ځکه ګران اومشکل معلوم شوچې په دې کښې دتورات انجیل اوقرآن ټولو باندې دعمل کولو مطالبه کړې ده [2]

**قوله:** من احياها يعني من حرم قتلها الا بحق حيي الناس منه جميعا: وَمَنْ اَحْيَاهَا فَكَاَنَّمَآ اَحْيَا النَّاسَ جَمِيْعًا امام بخاری رحمه الله داحیاء تفسیر په تحریم قتل سره ددې وجې کړې دې چې احیاء په حقیقت دالله جل شانه صفت دې ،غیرالله ته ژوندې کونکې نشی وئیلې

---

[1] يعني ان تبوء ههنا ليست بمعنى جعل الشئ وطنا كما في قوله ،تبوؤالدار والايمان بل بمعنى الحمل والنكتة في تعبيره بلفظه دون لفظ آخرمما فيه معنى الحمل اشارة الى انه باجترام هذه الكبيرة يقحم فيهافكانه محطاط بهااحاطة المكان بالمتمكن...(وانظرلامع الدرارى(ج۹ص۶۰و۶۱)

[2] وسبب نزول هذه الاية ما رواه ابن ابى حاتم عن ابن عباس رضي الله عنهما قال جاء مالك بن الضيف وجماعة من الاحبارفقالوا: يامحمد الست تزعم ان انك على ملة ابراهيم وتؤمن بما في التوراة والانجيل وتشهد انها حق قال بلى، ولكناكم كتمتم منها ماامرتم ببيانه فانا ابرامما احد ثتموه قالا:انانتمسك بمافى ايدينا من الهدى والحق ولانؤمن بك ولا بماجئت به فانزل الله تعالى هذه الاية قل ياأهل الكتاب لستم على شئ) عمدة القارى(ج۱۸ص ۱۹۶)

.ددې وجې په آيت كښې احياء په مجازى معنى باندې مستعمل ده اومجازى معنى دتحريم ده يعنى چاچې دنفس قتلول حرام كړى دى لكه چې دهٔ ټول خلق ددې تحريم قتل په وجه ژوندى اوساتل ،مطلب داددې چې دنفس قتلول حرام ګڼړونكې په حقيقت كښې دټولو خلقو دژوند سبب جوړيږى ګنى كه څوك يوكس قتل كړيي نودمقتول كسان به دهغه په بدله كښې دوه قتل كوي اوبيابه هغه په بدله كښې څلورقتلوى اودغه شان به دقتل دائره لويه شى .

**قوله**: شِرْعَةً وَمِنْهَاجًا سبيلا وسنة: لِكُلٍّ جَعَلْنَا مِنكُمْ شِرْعَةً وَمِنْهَاجًا (شرعة) تفسيرئې په (سنة) اود(منهاج) تفسيرئې په (سبيل) سره كړې دې . دالف نشر غير مرتب دې په كتاب الايمان كښې ددې تفصيل تيرشوې دې .

**قوله**: الْمُهَيْمِنُ الأَمِينُ ،الْقُرْآنُ أَمِينٌ عَلَى كُلِّ كِتَابٍ قَبْلَهُ :وَأَنزَلْنَا إِلَيْكَ الْكِتَابَ بِالْحَقِّ مُصَدِّقًا لِّمَا بَيْنَ يَدَيْهِ مِنَ الْكِتَابِ وَمُهَيْمِنًا عَلَيْهِ،په دې كښې ئې د(مهيمن)تفسيرپه (امين) سره كړې دې ،داد(هيمن)نه ماخوذ دې چې معنى ئې حفاظت كول راځي ،قرآن مجيدته (مهيمن) وئيلې شوى دى ځكه چې دادټولواسمانى كتابونودمضامينوامين اومحافظ دې .

## ١٠٩=باب: اَلْيَوْمَ اَكْمَلْتُ لَكُمْ دِيْنَكُمْ

وَقَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ مَخْمَصَةٌ مَجَاعَةٌ.

**قوله**: فَمَنِ اضْطُرَّ فِي مَخْمَصَةٍ غَيْرَ مُتَجَانِفٍ لِّإِثْمٍ: نوكوم كس چې دلوږې دسختې نه مجبورد شى خويه دې شرط چې ګناه طرف ته ئې ميلان نه وى . په دې آيت كښې (مخمصة) د(مجاعة)په معنى كښې دەيعنى سخته لوږه .

[٤٣٣٠] حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمَنِ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ قَيْسٍ عَنْ طَارِقِ بْنِ شِهَابٍ قَالَتِ الْيَهُودُ لِعُمَرَ إِنَّكُمْ تَقْرَءُونَ آيَةً لَوْ نَزَلَتْ فِينَا لاَتَّخَذْنَاهَا عِيدًا. فَقَالَ عُمَرُ إِنِّي لأَعْلَمُ حَيْثُ أُنْزِلَتْ، وَأَيْنَ أُنْزِلَتْ، وَأَيْنَ رَسُولُ اللَّهِ-صلى الله عليه وسلم- حِينَ أُنْزِلَتْ يَوْمَ عَرَفَةَ، وَإِنَّا وَاللَّهِ بِعَرَفَةَ- قَالَ سُفْيَانُ وَأَشُكُّ كَانَ يَوْمَ الْجُمُعَةِ أَمْ لاَ- (الْيَوْمَ أَكْمَلْتُ لَكُمْ دِينَكُمْ).

**د حديث باب تشريح**: داروايت په كتاب الايمان كښې تيرشوې دې [1]

دلته دى چې يهوديانو حضرت عمر رضي الله عنه نه سوال اوكړواود كتاب الايمان په روايت كښې دى چې په يهودوكښې يوسړى سوال اوكړوداسړې كعب بن احباروو. لكه څنګه چې مسند دپه خپل مسندكښې طبرى په خپل تفسيركښې اوطبرانى په خپل معجم كښې بيان كړې دې .[2]

---

[1] صحيح البخارى كتاب الايمان باب زيادة الايمان ونقصانه رقم (٤٥)

[2] فتح البارى (ج١ص ١٠٥) باب زيادة الايمان ونقصانه) _

كعب بن احبار وئيلي دی كه دا آيت چرته مونږ كښې نازل شوې وو نو مونږ به ددې يوم نزول لره يوم العيدجوړكړې وو ددې وجه دا ده چې په دې آيت كښې الله جل شانه دې امت ته ډيرلوئې اعزازوركړې دې په دوى باندې ئې دخپل خاص انعام ذكركړې دې . دويم داتمام نعمت تذكره ده چې په تاسوباندې ماخپل نعمت مكمل كړاودويم دا چې په آخركښې ئې وئيلې دی (ورضيت لكم الاسلام دينا) په ټولو آسمانی دينونو كښې مونږ دين اسلام ستاسو دپاره منتخب كړو.

حضرت عمر رضي الله عنه فرمائيلې دی ماته هغه ورځ هم معلوم دې كله چې په نبی ﷺ باندې داآيت نازل شوې وو يعنی دعرفې ورځ وه او نبی عليه السلام په ميدان عرفات كښې وو . دكتاب الايمان په روايت كښې دجمعې دورځې تصريح هم شته .

داسحاق په روايت كښې دی (وكلاهما بحمد الله لنا عيد) [1] يعنی دجمعې اودعرفې ورځ زمونږ دپاره اخترد ې اودطبری په روايت كښې دی : (وهمالناعيدان) [2]

خودلته سوال دادې چې دجمعې ورځ خويقينا دخالی دورځې اخترد ې خودعرفې ورځې ته ئې څنګه اختراووئيل . نوددې جواب دا دې چې يوم النحر په حقيقت كښې يوم العيد دې ، اوچونكه هغه دعرفې سره متصل دې اونږدې څيزته هم دهغه څيزحكم بعضې وخت وركولې شی ددې وجې يوم عرفې ته اختروائی . [3]

اوداهم وئيلې شی چې دحاجيانواصلی اخترخودعرفې ورځ ده څكه چې هم په دې ورځ دحج ركن اعظم وقوف عرفه ادا كولې شی .

**قوله: وَأَشُكُّ كَانَ يَوْمَ الْجُمُعَةِ أَمْ لاَ:** سفيان ثوری دلته فرمائی چې ما ته په دې كښې شک دې چې دغه دعرفې ورځ دجمعې ورځ وه كه نه .حافظ ابن كثير په خپل تفسير كښې دبخاری دروايت دنقل كړی روايت نه پس دسفيان ثوری داجمله نقل كړې ده اوپه دې باندې ئې تبصره كړې ده فرمائيلې ئې دی چې دسفيان ثوری كه چرته شک په دې كښې وی چې ددهٔ دشيخ په روايت كښې د(يوم الجمعة) ذكر كړې دې اوكه نه . نودادهغوی په تقوی او ورع باندې دلالت كوی چې هغوی دابيان كړوچې ماته دخپل شيخ دا خبره صحيح ياده نه ده چې هغوی ديوم الجمعة ذكركړې ووكه نه .

خوكه ددوی شک په دې خبره كښې وی چې په نفس الامراوحقيقت كښې يوم عرفه په يوم الجمعه كښې واقع شوې وه كه نه ؟ نوزهٔ نه پوهيږم چې دسفيان ثوری غوندې محدث ته به داسې ښكاره اومتفق عليه كښې شک وی څكه چې اصحاب مغازی په دې خبره متفق دې چې يوم عرفه په يوم الجمعة كښې واقع شوې وه په دې باره كښې روايات تواترسره ثابت دی [4]

[1] فتح الباری ج۱ص۱۰۵) كتاب الايمان باب زيادة الايمان ونقصانه) _
[2] فتح الباری ج۱ص۱۰۵) كتاب الايمان باب زيادة الايمان
[3] و التخذو ايوم عرفة عيد الانه ليلة العيد (فتح الباری ج۱ص۱۰۵) _
[4] تفسير ابن كثير (ج۲ص۱۳) سورة المائدة _

ددې وجې په ظاهره هم دامعلومیږی چې دسفیان ثوری په دې کښې شک نه ووچې دعرفې ورځ په یوم الجمعة کښې واقع شوې وه شک ورته په دې کښې ووچې ددوی شیخ دروایت بیانولوپه وخت کښې دیوم الجمعة ذکرکړې ووکه نه ؟

صاحب دخیرجاری په دې کښې چې دعرفې ورځ دجمعې په ورځ کښې راغلې وه نودسفیان ثوری توجیه بیانوی چې مشهوره داده چې رسول الله ﷺ وفات دګل په ورځ واقع شوې وی نوبیا په هیڅ صورت کښې د۱۲ ربیع الاول ۱۱ هه باندې شوې وونوکه یوم عرفه دجمعې په ورځ واقع شوې وی نوبیاپه هیڅ صورت کښې د۱۲ربیع الاول ۱۱هه تاریخ دګل ورځ نه راځی اګرکه ذوالحجه محرم اوصفردیرشوورځواومنلې شی یادیوکم دیرشویابعضې دډیرشواوبعضې دیوکم دیرشو،ددې وجې دسفیان ثوری شک شوې دې چې یوم عرفه دجمعې ورځ وه که نه ؟[1]

خولکه څګنه چې مونږ ذکرکړوچې دجمعې ورځ دعرفې په ورځ راتلوکښې دچااختلاف نشته اوپه دې باره کښې روایات حدتواترته رسیدلی دی. باقی داخبره چې مونږپه کتاب المغازی. کښې په تحقیق سره بیان کړې ده چې درسول الله ﷺ وفات په یکم ربیع الاول ۱۱ هه کښې شوې وو. دنبی ﷺ دوفات چې دګل په ورځ دولسم ربیع الاول کوم قول مشهوردې داتحقیقی نه دې.[2]

## ۱۱۰ = باب : فَلَمْ تَجِدُوا مَاءً فَتَيَمَّمُوا صَعِيدًا طَيِّبًا

تَيَمَّمُوا تَعَمَّدُوا. (آمِّينَ) عَامِدِينَ. أَمَّمْتُ وَتَيَمَّمْتُ وَاحِدٌ

وَقَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ لَمَسْتُمْ وَتَمَسُّوهُنَّ وَاللَّاتِي دَخَلْتُمْ بِهِنَّ وَالإِفْضَاءُ النِّكَاحُ.

په ذکرشوې آیت کښې (فَتَيَمَّمُوا) په معنی د(تعمدوا) دې یعنی چې تاسوقصد اوکړئ تاسواراده اوکړئ ،دغه شان په دویم آیت کښې (وَلَا آمِّينَ الْبَيْتَ الْحَرَامَ)په دې کښې (آمین) په معنی د(عامدین) ،دې ،یعنی قصدکونکې ،اراده کونکې (اممت)او(تیممت)دواړه په یوه معنی دی یعنی قصدکول.

**قوله:** وَقَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ لَمَسْتُمْ وَتَمَسُّوهُنَّ وَاللَّاتِي دَخَلْتُمْ بِهِنَّ وَالإِفْضَاءُ النِّكَاحُ: حضرت ابن عباس رضی الله عنهما فرمائی چې په قرآن مجید کښې ذکرشوڅلوروواړو الفاظو معنی نکاح یعنی وطی ده .(لامستم) په دې آیت کښې واقع دې (وَإِنْ كُنْتُمْ مَرْضَى أَوْ عَلَى سَفَرٍ أَوْ جَاءَ أَحَدٌ مِنْكُمْ مِنَ الْغَائِطِ أَوْ لَامَسْتُمُ النِّسَاءَ) او(تَمَسُّوهُنَّ) دسورة بقرې په آیت کښې دې (وَإِنْ طَلَّقْتُمُوهُنَّ مِنْ قَبْلِ أَنْ تَمَسُّوهُنَّ) او په سورة نساء کښې دې (اللَّاتِي دَخَلْتُمْ بِهِنَّ) او(أَفْضَى) او هم په سورة نساء

---

[1] حاشیه صحیح بخاری (ج۲ص۶۶۲)

[2] کشف الباری کتاب المغازی (۶۷و۶۸)

كنبي دي «وكيف تأخذونه وقد وكيف تأخذونه وقد أفضى بعضكم إلى بعض»

[۴۳۳۱و ۴۳۳۲] حدثنا إسماعيل قال حدثني مالك عن عبد الرحمن بن القاسم عن أبيه عن عائشة - رضي الله عنها - زوج النبي - صلى الله عليه وسلم - قالت خرجنا مع رسول الله - صلى الله عليه وسلم - في بعض أسفاره، حتى إذا كنا بالبيداء أو بذات الجيش انقطع عقد لي، فأقام رسول الله - صلى الله عليه وسلم - على التماسه، وأقام الناس معه، وليسوا على ماء، وليس معهم ماء، فأتى الناس إلى أبي بكر الصديق فقالوا ألا ترى ما صنعت عائشة أقامت برسول الله - صلى الله عليه وسلم - وبالناس، وليسوا على ماء، وليس معهم ماء، فجاء أبو بكر ورسول الله - صلى الله عليه وسلم - واضع رأسه على فخذي قد نام، فقال حبست رسول الله - صلى الله عليه وسلم - والناس، وليسوا على ماء، وليس معهم ماء، قالت عائشة فعاتبني أبو بكر، وقال ما شاء الله أن يقول، وجعل يطعنني بيده في خاصرتي، ولا يمنعني من التحرك إلا مكان رسول الله - صلى الله عليه وسلم - على فخذي، فقام رسول الله - صلى الله عليه وسلم - حتى أصبح على غير ماء، فأنزل الله آية التيمم فقال أسيد بن حضير ما هي بأول بركتكم يا آل أبي بكر. قالت فبعثنا البعير الذي كنت عليه فإذا العقد تحته.

[۴۳۳۲] حدثنا يحيى بن سليمان قال حدثني ابن وهب قال أخبرني عمرو أن عبد الرحمن بن القاسم حدثه عن أبيه عن عائشة - رضي الله عنها - سقطت قلادة لي بالبيداء ونحن داخلون المدينة، فأناخ النبي - صلى الله عليه وسلم - ونزل، فثنى رأسه في حجري راقدا، أقبل أبو بكر فلكزني لكزة شديدة وقال حبست الناس في قلادة. فبي الموت لمكان رسول الله - صلى الله عليه وسلم - وقد أوجعني، ثم إن النبي - صلى الله عليه وسلم - استيقظ وحضرت الصبح فالتمس الماء فلم يوجد فنزلت (يا أيها الذين آمنوا إذا قمتم إلى الصلاة) الآية. فقال أسيد بن حضير لقد بارك الله للناس فيكم يا آل أبي بكر، ما أنتم إلا بركة لهم.

## ۱۱۱ ـ باب: (فاذهب أنت وربك فقاتلا إنا هاهنا قاعدون)

[۴۳۳۳] حدثنا أبو نعيم حدثنا إسرائيل عن مخارق عن طارق بن شهاب سمعت ابن مسعود - رضي الله عنه - قال شهدت من المقداد ح وحدثني حمدان بن عمر حدثنا أبو النضر حدثنا الأشجعي عن سفيان عن مخارق عن طارق عن عبد الله قال قال المقداد يوم بدر يا رسول الله إنا لا نقول لك كما قالت بنو إسرائيل لموسى (فاذهب أنت وربك فقاتلا إنا هاهنا قاعدون) ولكن امض ونحن معك. فكأنه سري عن رسول الله - صلى الله

عليه وسلم. ورواه وكيع عن سفيان عن مخارق عن طارق أن المقداد قال ذلك للنبي صلى الله عليه وسلم.

**حمدان بن عمر:** امام بخاري رحمه الله داحديث په دووسندونوباندې بيان کړې دې. يوتحويل سره اوبل دتحويل نه پس دتحويل دوړاندې سند الفاظ امام په كتاب المغازى كښې بيان کړې دى اوبل سند دتحويل نه پس دې، ددې الفاظ امام بخاري رحمه الله دلته پيش كوى. دحمدان بن عمر په بخارى كښې صرف دايوروايت دې ،ددوى نوم احمدبن عمرحميرى دې اوپه حمدان سره مشهوردې ،علامه مزى ددوى په باره كښې فرمائى (روى عنه البخارى مقرونا بغيره) يعنى امام بخاري رحمه الله يواځې ددوى نه روايت نه كوى بلكه دبل راوى سره ئې يوځاې كوى اوددوى نه روايت كوى لكه څنګه چې دلته دې.

خطيب بغدادى ددوى په باره كښې فرمائى . (ثقة)

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى (صدوق من الحادية عشرة)

ددوى وفات په كال ۲۵۸ هجرى كښې شوې دې [۱]

**قوله:** رواه وكيع عن سفيان: داتعليق دې ،دارقطنى داموصولاذكركړې دې [۲]

## ۱۱۲- باب: إِنَّمَا جَزَاءُ الَّذِينَ يُحَارِبُونَ اللَّهَ وَرَسُولَهُ وَيَسْعَوْنَ فِي الْأَرْضِ فَسَادًا أَنْ يُقَتَّلُوا أَوْ يُصَلَّبُوا) إِلَى قَوْلِهِ (أَوْ يُنْفَوْا مِنَ الْأَرْضِ)

الْمُحَارَبَةُ لِلَّهِ الْكُفْرُ بِهِ.

**قوله:** الْمُحَارَبَةُ لِلَّهِ الْكُفْرُ بِهِ: دلته داپيژندل دى چې محاربه آيا دكافرانوطرفه وى اوكه داهل ايمان دطرفه هم محاربه مقصودده ،امام بخاري رحمه الله دلته ښكاره وئيلى دى ،(المحاربة لله :الكفربه) يعنى ددوى رائې داده چې محاربه صرف دكافرانوطرفه وى. دغه شان وړاندې په كتاب المرتدين والمحاربين كښې دعرينين واقعه نقل كوى . دهغې نه هم ددې خبرې تائيد كيږى چې دامام بخاري رحمه الله په نيزمحاربه صرف دكافرانوطرفه وى .هلته امام بخاري رحمه الله دمحاربين سره د(من اهل الكفر والردة) الفاظ هم زيات كړى دى .

خودجمهورو مسلک دادې چې محارب كافرهم كيدېشى اومؤمن هم[۳]

**د محاربينو سزا:** بياپه دې كښې اختلا ف دې چې دمحاربينوسزابه څه وى ؟ دقرآن مجيدپه

---

[۱] دذكرشوى تفصيل دپاره اوګورئ (عمدة القارى (ج۱۸ص۲۰۲) وتقريب التهذيب (ج۳ ص۸۳ رقم الترجمة ۸۳ وتهذيب الكمال (ج۱ ص ٤١٤ و ٤١٥) _

[۲] عمدة القارى (ج۱۸ص۲۰۳)

[۳] فيض البارى (ج ٤ص۱۷۷) _

دې آيت کښې څلورڅيزونه بيان شوی دی ① تقتيل ② تصليب ③ قطع ايدی وارجل من خلاف ④ نفی من الارض. دامام مالک ﷫ مذهب دادې چې امام ته اختيار دې په دې څلوروسزاګانو کښې چې هغه محاربين ته کومه سزاورکول غواړی ورکولې شی.[1]

خودنوروفقهاؤپه نيزدې کښې تفصيل دې اودمختلفوصورتونومختلف احکام دی.

① که محارب مال اخستې وی اوقتل ئې نه وی کړې نودده لاسونه اوپښې به من خلاف قطع کولې شی خوداپه هغه وخت کښې دی کله چې مال په اندازه دنصاب سرقه وی. د احنافو.شوافعواوحنابلو ﷭ په نيز به دې صورت کښې هم داحکم دې[2]

② که محارب مال نه وی اخستې خوصرف قتل ئې کړې وی نوپه داسې صورت کښې به دې حدا قتل کولې شی نوکه دمقتول اولياء ئې معاف کړی.بيابه هم قتل کولې شي .ددې صورت حکم دڅلورواړو امامانومتفق عليه دې .دټولوپه نيزدپه حدا قتل کولې شی[3]

③ که محارب قتل هم کړې وی اومال ئې هم اخستې وی نوپه دې صورت کښې داحنافوپه نيزامام ته اختياردې که هغه ددۀ لاسونه اوپښې هم کټ کړی قتل ئې هم کړی اوپه سولئ ئې هم کړی .ياصرف قتل ئې کړی يائې صرف په سولئ کړی.

دشوافعواوحنابلو ﷭ په نيزدپه دې صورت کښې به ئې قتل کوی اوپه سولئ کوی به ئې .ددۀ پښې اولاسونه به نشی کټ کولې[4]

④ څلورم صورت دادې چې محارب نه قتل کړې وی اونه ئې مال اخستې وی .صرف خلق ئې ويرولې وی نوپه دې صورت کښې داحنافواوشوافعوپه نيزددې به دتعزيرنه پس قيد کولې شی .تردې چې دې توبه اوباسی داسې توبه چې دهغې آثارددۀ په مخ کښې ښکاره وی.

دحنابلؤ په نيزپه دې صورت کښې به دې دټولوښارونو نه اوشړلې شی .په هيڅ يو ښارکښې به دۀ ته استوګنه نه ورکولې شی[5] څکه چې په آيت کريمه کښې دی .﴿اَوْ يُنْفَوْا مِنَ الْاَرْضِ﴾ اوجمهور عالمان د نفی من الارض تفسيرپه حبس اوقيدسره کوی.[6]

---

[1]) تکملة فتح الملهم (ج۲ص۳۱۲) _

[2]) تکملة فتح الملهم (ج۲ص۳۱۲) ومغنی المحتاج (ج ٤ص۱۸۲) والمغنی لابن قدامة (ج ۱۰ص۳۱۳) _

[3]) تکملة فتح الملهم (ج۲ص۳۱۲) ومغنی المحتاج (ج ٤ص۱۸۲) والمغنی لابن قدامة (ج ۱۰ص۳۱۳) _ والدردير(ج ٤ص٤۹۵) _

[4]) تکملة فتح الملهم (ج۲ص۳۱۲) ومغنی المحتاج (ج ٤ص۱۸۲) والمغنی لابن قدامة (ج ۱۰ص۳۱۳) _

[5]) تکملة فتح الملهم (ج۲ص۳۱۲) ومغنی المحتاج (ج ٤ص۱۸۲) والمغنی لابن قدامة (ج ۱۰ص۳۱۳) _

[6]) واما لانفی من الارض فقدفسره الجمهوروباحبس .لان النفی عن وجه الارض غيرممکن .الی بلدة اخری استضراربالغيرفتعين ان يکون المرادالحبس لان المحبسوس منقطع الدنيا ولذاقال صالح بن عبدالقدوس حين حبسوه :خرجنا من الدنيای ونحن من اهلها : فلسنا من لاموات فيها ولا الاحياء : اذجاءنا السجان يومالحاجة: عجبنا وقلنا جاء هذا من الدنيا (وانظرغرائب القرآن للنيسابوری بهامش ابن جرير (ج۶ص۱۲۷) واعلاء السنن (ج ۱۱ص۷۲۳) واحکام القرآن للجصاص (ج۲ص ۱٤و٤۰۶) والجامع لاحکمام القرآن (ج۶ص۱۵۳و ۱۵۱) _

فائده: اكثرومفسرينود (وَيَسْعَوْنَ فِي الْأَرْضِ فَسَادًا) نه لارد شوكول اوډاكه مراداخستې ده خوكه الفاظ په عموم باندې پاتې شي نومضمون زيات وسيع كيږي .كوم شان نزول اواحاديث چې بيان شوي دي هغه هم ددې مقتضي دي چې الفاظ په خپل عموم باندې پريخودې شي چې په دې كښې دكافرانوحملې دارتددفتنه شوكه ډاكه په ناحقه قتل اولوټ ،مجرمانه سازشونه ،دبغاوت پروپيګنډې ،تولې داخليدې شي ،اوداذكرشوې سزاګانې دقيدنه وړاندې په توبه ويستلوسره معاف كيږي خوحقوق العباد ځكه چې ددې دمعاف كولوصاحب حق ياولي دمقتول ته وي اوددې حدنه سواباقي نورحدود مثلا حدزنا حدشرب خمرحدسرقه ، ،حدقذف ،په توبې سره مطلقانه ساقطيږي .(١)

[۴۳۳۴] حَدَّثَنَا عَلِي بْنُ عَبْدِ اللَّهِ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ الْأَنْصَارِي حَدَّثَنَا ابْنُ عَوْنٍ قَالَ حَدَّثَنِي سَلْمَانُ أَبُورَجَاءٍ مَوْلَى أَبِي قِلَابَةَ عَنْ أَبِي قِلَابَةَ أَنَّهُ كَانَ جَالِسًا خَلْفَ عُمَرَ بْنِ عَبْدِ الْعَزِيزِ، فَذَكَرُوا وَذَكَرُوا فَقَالُوا وَقَالُوا قَدْ أَقَادَتْ بِهَا الْخُلَفَاءُ، فَالْتَفَتَ إِلَى أَبِي قِلَابَةَ وَهُوَخَلْفَ ظَهْرِهِ، فَقَالَ مَا تَقُولُ يَا عَبْدَ اللَّهِ بْنَ زَيْدٍ أَوْقَالَ مَا تَقُولُ يَا أَبَا قِلَابَةَ قُلْتُ مَا عَلِمْتُ نَفْسًا حَلَّ قَتْلُهَا فِي الْإِسْلَامِ إِلَّا رَجُلٌ زَنَى بَعْدَ إِحْصَانٍ، أَوْقَتَلَ نَفْسًا بِغَيْرِ نَفْسٍ، أَوْحَارَبَ اللَّهَ وَرَسُولَهُ - صلى الله عليه وسلم -. فَقَالَ عَنْبَسَةُ حَدَّثَنَا أَنَسٌ بِكَذَا وَكَذَا. قُلْتُ إِيَّايَ حَدَّثَ أَنَسٌ قَالَ قَدِمَ قَوْمٌ عَلَى النَّبِيِّ - صلى الله عليه وسلم - فَكَلَّمُوهُ فَقَالُوا قَدِ اسْتَوْخَمْنَا هَذِهِ الْأَرْضَ. فَقَالَ «هَذِهِ نَعَمٌ لَنَا تَخْرُجُ، فَاخْرُجُوا فِيهَا، فَاشْرَبُوا مِنْ أَلْبَانِهَا وَأَبْوَالِهَا». فَخَرَجُوا فِيهَا فَشَرِبُوا مِنْ أَبْوَالِهَا وَأَلْبَانِهَا وَاسْتَصَحُّوا، وَمَالُوا عَلَى الرَّاعِي فَقَتَلُوهُ، وَاطَّرَدُوا النَّعَمَ، فَمَا يُسْتَبْطَأُ مِنْ هَؤُلَاءِ قَتَلُوا النَّفْسَ وَحَارَبُوا اللَّهَ وَرَسُولَهُ، وَخَوَّفُوا رَسُولَ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم -. فَقَالَ سُبْحَانَ اللَّهِ. فَقُلْتُ تَتَّهِمُنِي قَالَ حَدَّثَنَا بِهَذَا أَنَسٌ. قَالَ وَقَالَ يَا أَهْلَ كَذَا إِنَّكُمْ لَنْ تَزَالُوا بِخَيْرٍ مَا أُبْقِيَ هَذَا فِيكُمْ أَوْمِثْلُ هَذَا.

داروايت ددې نه وړاندې په كتاب المغازى كښې مختصرتيرشوې دې اودلته هم داروايت مختصر دې په دیات كښې داروايت په تفصيل سره راروان دې اوهلته به انشاء الله خبره هم كيږي.

## ۱۱۳- باب: وَالْجُرُوحَ قِصَاصٌ

[۴۳۳۵] حَدَّثَنِي مُحَمَّدُ بْنُ سَلَامٍ أَخْبَرَنَا الْفَزَارِي عَنْ حُمَيْدٍ عَنْ أَنَسٍ - رضى الله عنه - قَالَ كَسَرَتِ الرُّبَيِّعُ - وَهْيَ عَمَّةُ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ - ثَنِيَّةَ جَارِيَةٍ مِنَ الْأَنْصَارِ، فَطَلَبَ الْقَوْمُ الْقِصَاصَ، فَأَتَوُا النَّبِيَّ - صلى الله عليه وسلم - فَأَمَرَ النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - بِالْقِصَاصِ. فَقَالَ أَنَسُ بْنُ النَّضْرِ عَمُّ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ لَا وَاللَّهِ لَا تُكْسَرُ سِنُّهَا يَا رَسُولَ اللَّهِ. فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ -

(١) تفسيرعثمانى (١٥٠) _

صلى الله عليه وسلم- «يَا أَنَسُ كِتَابُ اللَّهِ الْقِصَاصُ». فَرَضِيَ الْقَوْمُ وَقَبِلُوا الأَرْشَ فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ- صلى الله عليه وسلم- «إِنَّ مِنْ عِبَادِ اللَّهِ مَنْ لَوْ أَقْسَمَ عَلَى اللَّهِ لأَبَرَّهُ».

## ۱۱۴- باب: يَا أَيُّهَا الرَّسُولُ بَلِّغْ مَا أُنْزِلَ إِلَيْكَ مِنْ رَبِّكَ

[۴۳۳۶] حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ يُوسُفَ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ إِسْمَاعِيلَ عَنِ الشَّعْبِيِّ عَنْ مَسْرُوقٍ عَنْ عَائِشَةَ- رضي الله عنها- قَالَتْ مَنْ حَدَّثَكَ أَنَّ مُحَمَّدًا- صلى الله عليه وسلم- كَتَمَ شَيْئًا مِمَّا أُنْزِلَ عَلَيْهِ، فَقَدْ كَذَبَ، وَاللَّهُ يَقُولُ (يَا أَيُّهَا الرَّسُولُ بَلِّغْ مَا أُنْزِلَ إِلَيْكَ) الآيَةَ.

## ۱۱۵- باب: لاَ يُؤَاخِذُكُمُ اللَّهُ بِاللَّغْوِ فِي أَيْمَانِكُمْ

[۴۳۳۷] [1] حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ سَلَمَةَ حَدَّثَنَا مَالِكُ بْنُ سُعَيْرٍ حَدَّثَنَا هِشَامٌ عَنْ أَبِيهِ عَنْ عَائِشَةَ -رضي الله عنها- أُنْزِلَتْ هَذِهِ الآيَةُ (لاَ يُؤَاخِذُكُمُ اللَّهُ بِاللَّغْوِ فِي أَيْمَانِكُمْ) فِي قَوْلِ الرَّجُلِ لاَ وَاللَّهِ، وَبَلَى وَاللَّهِ.

[۴۳۳۸] [2] حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ أَبِي رَجَاءٍ حَدَّثَنَا النَّضْرُ عَنْ هِشَامٍ قَالَ أَخْبَرَنِي أَبِي عَنْ عَائِشَةَ - رضي الله عنها - أَنَّ أَبَاهَا كَانَ لاَ يَحْنَثُ فِي يَمِينٍ حَتَّى أَنْزَلَ اللَّهُ كَفَّارَةَ الْيَمِينِ. قَالَ أَبُو بَكْرٍ لاَ أَرَى يَمِينًا أُرَى غَيْرَهَا خَيْرًا مِنْهَا، إِلاَّ قَبِلْتُ رُخْصَةَ اللَّهِ، وَفَعَلْتُ الَّذِي هُوَ خَيْرٌ. [۶۲۴۷]

**قوله: رخصة الله:** اى اذنه وتسهيله على عباده فى تشريع الكفارة عند الحنث باليمين،

**د يمين لغو تعريف:** ددې روايت په رڼا كښې امام شافعي رحمه الله د يمين لغو تعريف كړې دې چې يمين لغو هغه وى چې انسان د يمين قصد كړې نه وى او د عام عادت او محاورې په ډول (لا، والله بلى، والله) او وائى .برابره كه ددې تعلق د ماضى سره وى او كه د مستقبل سره وى د خبر سره وى او كه د انشاء سره وى .[3]

داحنافو حضراتو په نيز د يمين لغو هغه وى چې انسان د ماضى د يو كار په باره كښې چې هغه رښتيا گنړى او قسم اوخورى او وروسته ښكاره شى چې هغه كار د غه شان نه وو. نو دې ته يمين

---

[1] اخرجه البخارى فى كتاب التفسير،باب لايؤاخذكم الله باللغوفى ايمانكم ،رقم الحديث :۴۳۳۷،و ايضافى كتاب الايمان والنذور، باب لايؤاخذكم الله بالغوفى ايمانكم ،رقم الحديث: ۶۲۸۶، واخرجه ابوداؤد فى كتاب الايمان والنذور،باب لغواليمين، رقم الحديث : ۲۱۹۵، ۳۲۵۴

[2] اخرجه البخارى فى كتاب التفسير،باب لايؤاخذكم الله باللغوفى ايمانكم ،رقم الحديث :۴۳۳۸،و ايضافى كتاب الايمان والنذور، باب لايؤاخذكم الله بالغوفى ايمانكم ،رقم الحديث: ۶۲۸۷،ولم يخرجه احدمن اصحاب الستة سوى البخارى ــ

[3] التفسير المظهرى (ج۱ص۲۸۷) سورة البقرة) ــ

لغووائی په دې كښې نه ګناه شته او نه كفاره [1]

نو داحنافو په نيز د كه يو كس «لا والله ، بلى ، والله» سره په يوداسې كار باندې قسم اوخورى چې دهغې تعلق د مستقبل سره وى ، اګرچې دۀ دقسم قصد نه وى كړې خو په داسې صورت كښې بۀ په دۀ باندې كفاره وى او دشوافعو په نيز د په داسې صورت كښې به دې حانث نه وى ځكه چې داد هغوى په نيز د يمين لغو دې [2]

امام محمد په كتاب الاثار كښې ذكر شوې دواړه قسمونه يمين لغو شمار كړى دى ، يعنى «لا ، والله ، بلى ، والله» كښې كه د يمين قصد كړې وى ، كه څوك اووائى برابره ده چې تعلق د مستقبل سره نه وى ، نودا به يمين لغو وى . د غه شان كه د ماضى څه خبره ده يو شان رښتيا ګڼړلې وى او قسم اوخورى او هغه غلطه وى نو دا په يمين لغو كښې شامل دې [3] علامه ابن الهمام رحمه الله دامام محمد رحمه الله قول اختيار كړې دې [4]

## ۱۱۶= باب: يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَا تُحَرِّمُوا طَيِّبَاتِ مَا أَحَلَّ اللَّهُ لَكُمْ

[۴۳۳۹] [5] حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ عَوْنٍ حَدَّثَنَا خَالِدٌ عَنْ إِسْمَاعِيلَ عَنْ قَيْسٍ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ رضى الله عنه قَالَ كُنَّا نَغْزُو مَعَ النَّبِيِّ - صلى الله عليه وسلم - وَلَيْسَ مَعَنَا نِسَاءٌ فَقُلْنَا أَلاَ نَخْتَصِي فَنَهَانَا عَنْ ذَلِكَ، فَرَخَّصَ لَنَا بَعْدَ ذَلِكَ أَنْ نَتَزَوَّجَ الْمَرْأَةَ بِالثَّوْبِ، ثُمَّ قَرَأَ (يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَا تُحَرِّمُوا طَيِّبَاتِ مَا أَحَلَّ اللَّهُ لَكُمْ

صحابو رضى الله عنهم داختصاء «خصى كيدو اجازت اوغوښتلو نو نبى كريم ﷺ منع كړل ، خصاء فى الانسان په اتفاق سره ناجائز ده او د خصاء فى الحيوان په باره كښې امام بغوى فرمائى چې په غير ماكول اللحم كښې خو مطلقاحرام ده او په ماكول للحم كښې په حالت صغر كښې جائز ده او چې لوئې شى نود دې نه پس جائز نه ده [6]

---

[1] التفسير المظهرى (ج۱ص۲۸۷ سورة البقرة) _

[2] اعلاء السنن (ج۱۱ص۳۵۱) كتاب الايمان _

[3] قال محمد فى الاثار اخبرنا ابوحنيفه عن حماد عن ابراهيم ،عن عائشة ام المؤمنين فى اللغو قالت هوكل شئ يصل به الرجل كلامه لايريد يمينا لا والله وبلى والله لا يعقدعليه قلبه قال محمد وبه ناخذومن اللغوايضا الرجل يحلف على شئ يرى انه على ماحلف عليه فيكون على غير ذلك ،فهذا ايضا من اللغو وهوقول ابى حنيفة (وانظر اعلاء السنن (ج۱۱ص ۳۵۰) كتاب الايمان وكتاب الاثار (۱۲۵) _

[4] فتح القدير (ج٤ص۳۳۵) _

[5] اخرجه البخارى فى كتاب التفسيرباب ياايهاالذين آمنولاتحرمواماحل الله لكم رقم الحديث ٤۳۳۹ وايضافى كتاب النكاح باب تزويج المعسرالذى معه القرآن والاسلام رقم الحديث (٤۷۸٤) وايضا فى النكاح باب مايكره من التبتل والخصاء رقم الحديث (٤۷۸۷)واخرجه مسلم فى كتاب النكاح باب نكاح المتعة وبيان ابيح ثم نسخ رقم الحديث(۱٤۰٤) واخرجه النسائى فى السنن الكبرى رقم الحديث (۱۱۱۵۰)

[6] شرح مسلم للنوى (ج۱ص٤٤۹) كتاب النكاح باب استحباب النكاح) _

قرطبی فرمائی دارومدار په حاجت اوضروت باندې دې (۱)
په دې روایت کښې دی چې رسول الله ﷺ مونږ ته اجازت راکړې دې . چې ښځې سره دجامې په بدله کښې نکاح اوکړې یعنی متعه اوکړې بیاحضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه داآیت تلاوت کړو، ﴿امَنُوا لَا تُحَرِّمُوا طَيِّبٰتِ مَآ اَحَلَّ اللهُ لَكُمْ وَلَا تَعْتَدُوْا﴾ ددې نه معلومیږی چې دحضرت ابن عباس رضي الله عنهما پشان حضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه هم دمتعې داباحت اعتقادساتلواوذکرشوې آیت ئې دمتعه په باره کښې منلو.
کیدې شی چې دادهغه وخت خبره وی کله چې دمتعې دحرمت صریح علم هغوی ته نه وو اوکله چې ورته دناسخ علم اوشونوبیاهغوی دخپل قول نه رجوع کړې ده. دامام اسماعیلی په روایت کښې هم په دې حدیث کښې راغلی دی .(ثم ترك ذلك)او په یوروایت کښې دی (ثم نسخ)(۲)
اوداهم ممکن ده چې حضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه آیت تحریم داختصاء دپاره لوستې وی اومطلب دادې چې الله تعالی دبدن دا اندام چې کوم ورکړې دې .دا یونعمت دې . ددې په ذریعه تاسودحلا لې جماع لذت حاصلولې شی . دغه شان داپه طیبات کښې داخل دی .داتاسوپه خپل خان مه حراموئ اواختصاء مکوئ (۳) والله سبحانه وتعالی اعلم.
دمتعه په باره کښې تفصیلی بحث په کتاب المغازی کښې تیرشوې دې (۴)

## ۱۱۷: باب قوله ﴿إِنَّمَا الْخَمْرُ وَالْمَيْسِرُ وَالْأَنْصَابُ وَالْأَزْلَامُ رِجْسٌ مِّنْ عَمَلِ الشَّيْطَانِ﴾.

وَقَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ (الْأَزْلَامُ) الْقِدَاحُ يَقْتَسِمُونَ بِهَا فِي الْأُمُورِ. وَالنُّصُبُ أَنْصَابٌ يَذْبَحُونَ عَلَيْهَا، وَقَالَ غَيْرُهُ الزَّلَمُ الْقِدْحُ لَا رِيشَ لَهُ، وَهُوَ وَاحِدُ الْأَزْلَامِ. وَالِاسْتِقْسَامُ أَنْ يُجِيلَ الْقِدَاحَ فَإِنْ نَهَتْهُ انْتَهَى وَإِنْ أَمَرَتْهُ فَعَلَ مَا تَأْمُرُهُ. وَقَدْ أَعْلَمُوا الْقِدَاحَ أَعْلَامًا بِضُرُوبٍ يَسْتَقْسِمُونَ بِهَا وَفَعَلْتُ مِنْهُ قَسَمْتُ وَالْقُسُومُ الْمَصْدَرُ

فرمائی چې داستقسام نه فعلت یعنی ثلاثی مجرد قسمت دې اوددې نه مصدرقسوم، راځی (یجیل)په معنی د(یدیر) دې .(یجیل القداح)غشی چورلوی.
داپه اصل کښې په جوف کعبه کښې کیخودې شوی ا ووه غشی ووچې دې کښې به په یوغشی باندې (امرنی ربی)په دویم غشی باندې (نهانی ربی) اوپه دریم باندې (واحد منکم) په څلورم باندې (من غیرکم)په پنځم باندې (ملصق) په شپږم باندې (العقل) اوپه اووم باندې (الغفل) لیکلې شوی

---

(۱) قال القرطبی فی غیربنی آدم ممنوع فی الحیوان الا لمنفعة حاصلة فی ذلک کتطیب اللحم اوقع ضررعنه (تعلیقا لامع الدراری (ج۹ص۶۷)_
(۲) تعلیقات لامع الدراری (ج۹ص۶۷)_
(۳) لامع الدراری (ج۹ص۶۷)_
(۴) کشف الباری، کتاب المغازی (۴۳۴و۴۴۰)_

ووچې ديو كاركولونه وراندې به ئى غشى راوويستل .كله چې به په هغې باندې «امرني ربي» ليكلى شوى وونوهغه كاربه ئې كولواوكله چې به پرې ليكلې شوى وو «نهانى ربي» نوبيابه ئې نه كولو.دغه شان كه دچاپه نسب كښې به اختلاف وونوغشى به رواويستلې شوكه په هغې كښې به «واحدمنكم» ليكلې شوې وونوهغه به ئې په خپل نسب كښې شاملولواوكه «من غيركم» به په كښې ليكلى شوې وو نوهغه به ئې دخپل نسب نه بهر كنړلو.دغه شان كه به د «ملصق» غيرراووتلونودې مطلب به داوو چې ديت وركول پكار دې اوكه هغه غشى به راووتلوپه كوم باندې چې به «الغفل» ليكې وونوهغه به ئې دوباره اچولواوبيابه ئې راوستل شروع كول څكه چې ددې غشى څه نښه نه وه. (١)

[٤٣٤٠] حَدَّثَنَا إِسْحَاقُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ أَخْبَرَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بِشْرٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيزِ بْنُ عُمَرَ بْنِ عَبْدِ الْعَزِيزِ قَالَ حَدَّثَنِي نَافِعٌ عَنِ ابْنِ عُمَرَ -رضى الله عنهما- قَالَ نَزَلَ تَحْرِيمُ الْخَمْرِ وَإِنَّ فِي الْمَدِينَةِ يَوْمَئِذٍ لَخَمْسَةَ أَشْرِبَةٍ، مَا فِيهَا شَرَابُ الْعِنَبِ.

ددې مطلب دانه دې چې هلته دانګوروشراب بيخى معدوم وو بلكه قليل الوجودوو څكه چې دحضرت عمر رضي الله عنه روايت هم په دې باب كښې وړاندې راغلى .په هغې كښې د انګورو د شرابو ذكر شته .

[٤٣٤١] (٢) حَدَّثَنَا يَعْقُوبُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ حَدَّثَنَا ابْنُ عُلَيَّةَ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيزِ بْنُ صُهَيْبٍ قَالَ قَالَ أَنَسُ بْنُ مَالِكٍ -رضى الله عنه- مَا كَانَ لَنَا خَمْرٌ غَيْرُ فَضِيخِكُمْ هَذَا الَّذِي تُسَمُّونَهُ الْفَضِيخَ. فَإِنِّي لَقَائِمٌ أَسْقِي أَبَا طَلْحَةَ وَفُلاَنًا وَفُلاَنًا إِذْ جَاءَ رَجُلٌ فَقَالَ وَهَلْ بَلَغَكُمُ الْخَبَرُ فَقَالُوا وَمَا ذَاكَ قَالَ حُرِّمَتِ الْخَمْرُ. قَالُوا أَهْرِقْ هَذِهِ الْقِلاَلَ يَا أَنَسُ. قَالَ فَمَا سَأَلُوا عَنْهَا وَلاَ رَاجَعُوهَا بَعْدَ خَبَرِ الرَّجُلِ.

**قوله: فضيخ:** دفضخ نه وتلې دې ،دفضخ معنى ماتول راځى په فضيخ كښې به داكيدله چې كه كهجورې به شوكولې شوې اودهغې عرق به په لوښى كښې نچوړولې شوتردې چې په هغې كښې به تغيرپيدا شو اونشه به په كښې پيدا شوه (٣)

---

(١) حاشيه صحيح البخارى (ج٢ص ٦٦٤) _

(٢) اخرجه البخاررى فى كتاب التفسير باب قوله: انماالخمروالميسر والانصاب والازلام رجس من عمل الشيطان رقم الحديث (٤٣٤٠) وايضا كتاب الاشربة باب الخمر من العنب وغيره رقم الحديث (٥٢٥٧) وايضا فى كتاب الاشربة باب الخمرمن العنب وغيره رقم الحديث ٥٢٥٩وايضا فى كتاب الاشربة باب ماجاء فى ان الخمرما خامرالعقل من الشراب رقم الحديث (٥٢٦٦) والحديث من افراده (عمدة القارى ج١٨ص ٢١٠)

(٣) الفضيخ ان يكسرالبسروصب عليه ويترك حتى يغلى وقال ابوعبيدة هومانضخ من البسرمن غيران تمسه نار، فان كان تمرا فهو خليط (عمدة القارى ج١٨ص ٢١٠) _

[۴۳۴۲] حَدَّثَنَا صَدَقَةُ بْنُ الْفَضْلِ أَخْبَرَنَا ابْنُ عُيَيْنَةَ عَنْ عَمْرٍو عَنْ جَابِرٍ قَالَ صَبَّحَ أُنَاسٌ غَدَاةَ أُحُدٍ الْخَمْرَ فَقُتِلُوا مِنْ يَوْمِهِمْ جَمِيعًا شُهَدَاءَ، وَذَلِكَ قَبْلَ تَحْرِيمِهَا.

[۴۳۴۳] (۱) حَدَّثَنَا إِسْحَاقُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ الْحَنْظَلِيُّ أَخْبَرَنَا عِيسَى وَابْنُ إِدْرِيسَ عَنْ أَبِي حَيَّانَ عَنِ الشَّعْبِيِّ عَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ سَمِعْتُ عُمَرَ -رضی اللہ عنہ- عَلَى مِنْبَرِ النَّبِيِّ -صلی اللہ علیہ وسلم- يَقُولُ أَمَّا بَعْدُ أَيُّهَا النَّاسُ إِنَّهُ نَزَلَ تَحْرِيمُ الْخَمْرِ وَهْيَ مِنْ خَمْسَةٍ، مِنَ الْعِنَبِ وَالتَّمْرِ وَالْعَسَلِ وَالْحِنْطَةِ وَالشَّعِيرِ، وَالْخَمْرُ مَا خَامَرَ الْعَقْلَ.

## ۱۱۸_ باب: لَيْسَ عَلَى الَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ جُنَاحٌ فِيمَا طَعِمُوا

[۴۳۴۴] حَدَّثَنَا أَبُو النُّعْمَانِ حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ حَدَّثَنَا ثَابِتٌ عَنْ أَنَسٍ -رضی اللہ عنہ- أَنَّ الْخَمْرَ الَّتِي أُهْرِيقَتِ الْفَضِيخُ. وَزَادَنِي مُحَمَّدٌ عَنْ أَبِي النُّعْمَانِ قَالَ كُنْتُ سَاقِيَ الْقَوْمِ فِي مَنْزِلِ أَبِي طَلْحَةَ فَنَزَلَ تَحْرِيمُ الْخَمْرِ، فَأَمَرَ مُنَادِيًا فَنَادَى. فَقَالَ أَبُو طَلْحَةَ اخْرُجْ فَانْظُرْ مَا هَذَا الصَّوْتُ قَالَ فَخَرَجْتُ فَقُلْتُ هَذَا مُنَادٍ يُنَادِي أَلَا إِنَّ الْخَمْرَ قَدْ حُرِّمَتْ. فَقَالَ لِي اذْهَبْ فَأَهْرِقْهَا. قَالَ فَجَرَتْ فِي سِكَكِ الْمَدِينَةِ.

قَالَ وَكَانَتْ خَمْرُهُمْ يَوْمَئِذٍ الْفَضِيخَ فَقَالَ بَعْضُ الْقَوْمِ قُتِلَ قَوْمٌ وَهْيَ فِي بُطُونِهِمْ قَالَ فَأَنْزَلَ اللَّهُ (لَيْسَ عَلَى الَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ جُنَاحٌ فِيمَا طَعِمُوا).

## ۱۱۹ باب قَوْلِهِ (لَا تَسْأَلُوا عَنْ أَشْيَاءَ إِنْ تُبْدَ لَكُمْ تَسُؤْكُمْ).

[۴۳۴۵] (۲) حَدَّثَنَا مُنْذِرُ بْنُ الْوَلِيدِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ الْجَارُودِيُّ حَدَّثَنَا أَبِي حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ مُوسَى بْنِ أَنَسٍ عَنْ أَنَسٍ -رضی اللہ عنہ- قَالَ خَطَبَ رَسُولُ اللَّهِ -صلی اللہ علیہ وسلم

---

(۱) حدثنا اسحاق بن ابراهيم عن ابن عمر قال سمعت عمر ﷛ على منبر النبى ﷺ يقول امابعد. اخرجه البخارى فى كتاب التفسيرباب قوله انما الخمروالميسر والانصاب رقم الحديث :٤٣٤٣ ايضا فى كتاب الاشربة (ج٢ص٨٣٧) وايضا اخرجه مسلم فى آخرالكتاب باب فى نزول تحريم الخمر رقم الحديث (٣٠٣٢) واخرجه ابوداودفى كتاب الاشربة رقم الحديث (٣٦٦٩) واخرجه الترمذى فى كتاب الاشربه رقم الحديث (١٨٧٣واخرجه النسائى فى كتاب الاشربة (ج٢ص ٣٢٤)_

(۲) اخرجه البخارى فى كتاب التفسير باب قوله لاتسالواعن اشياء ان تبدلكم تسؤكم رقم الحديث (٤٣٤٥ وإيضا اخرجه البخارى فى كتاب الرقيق باب قول النبى ﷺ لوتعلمون مااعلم لضحكتم قليلا ولبكيتم كثيرا (ج٢ص٩٦٠) وكتاب الاعتصام (ج٢ص١٠٨٣) واخرجه مسلم فى الفضائل باب توقيره ﷺ وترك اكثارسواله رقم الحديث (٢٣٥٩) واخرجه الترمذى فى كتاب الزهد باب فى قول النبى ﷺ لوتعلون ما اعلم لضحتكتم قليلا رقم (٢٣١٢) واخرجه النسائى فى السنن الكبرى فى كتاب التفسير باب قوله تعالى لاتسالواعن اشياء ان تبدلكم رقم الحديث (١١١٥٣) المجدالسادس)_

خُطْبَةً مَا سَمِعْتُ مِثْلَهَا قَطُّ ، قَالَ «لَوْ تَعْلَمُونَ مَا أَعْلَمُ لَضَحِكْتُمْ قَلِيلاً وَلَبَكَيْتُمْ كَثِيرًا » . قَالَ فَغَطَّى أَصْحَابُ رَسُولِ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - وُجُوهَهُمْ لَهُمْ خَنِينٌ ، فَقَالَ رَجُلٌ مَنْ أَبِي قَالَ فُلاَنٌ فَنَزَلَتْ هَذِهِ الآيَةُ (لاَ تَسْأَلُوا عَنْ أَشْيَاءَ إِنْ تُبْدَ لَكُمْ تَسُؤْكُمْ) . رَوَاهُ النَّضْرُ وَرَوْحُ بْنُ عُبَادَةَ عَنْ شُعْبَةَ.

[۴۳۴۶] [1] حَدَّثَنَا الْفَضْلُ بْنُ سَهْلٍ حَدَّثَنَا أَبُو النَّضْرِ حَدَّثَنَا أَبُو خَيْثَمَةَ حَدَّثَنَا أَبُو الْجُوَيْرِيَةِ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ - رضى الله عنهما - قَالَ كَانَ قَوْمٌ يَسْأَلُونَ رَسُولَ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - اسْتِهْزَاءً ، فَيَقُولُ الرَّجُلُ مَنْ أَبِي وَيَقُولُ الرَّجُلُ تَضِلُّ نَاقَتُهُ أَيْنَ نَاقَتِي فَأَنْزَلَ اللَّهُ فِيهِمْ هَذِهِ الآيَةَ (يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لاَ تَسْأَلُوا عَنْ أَشْيَاءَ إِنْ تُبْدَ لَكُمْ تَسُؤْكُمْ) حَتَّى فَرَغَ مِنَ الآيَةِ كُلِّهَا.

**د ايت كريمه په شان نزول كې مختلف واقعات:** ددې آيت په شان نزول كښې مختلف قسم واقعات په رواياتوكښې بيان شوى دى .په مسلم اوصحيح بخارى كښې دى چې يوځل خلقونبى ﷺ نه داخواديخوا غيبى خبروپه باره كښې تپوسونه اوكړل .نونبى ﷺمنبر ته وراوختلواوارشادئې اوفرمائيلو (فوالله لا تسالونى عن شئ الا اخبرتكم به مادمت فى مقامى هذا) يعنى تاسوچې زمانه په دې مقام كښې ترڅوپورې څه سوال كوئ نو زه به درته دټولوسوالو نو جواب دركوم .دمشهورصحابى حضرت عبدالله بن حذافه رضي الله عنه دپلاردنسب په باره كښې دبعضې خلقوشك وو ،ددې وجې هغه په دې موقع باندې اودريدلواودنبى ﷺ نه ئې تپوس اوكړوچې زما پلار څوک دې ،نونبى ﷺ ورته اوفرمائيل ستاپلارحذافه دې په دې باندې دا آيت نازل شو[2]

دترمذى اودارقطنى په روايت كښې دى چې كله دقرآن شريف دا آيت نازل شو(وَلِلَّهِ عَلَى النَّاسِ حِجُّ الْبَيْتِ مَنِ اسْتَطَاعَ إِلَيْهِ سَبِيلًا) نوخلقوتپوس اوكړو ،يارسول الله هركال به حج فرض وى ؟رسول الله چپ شو.خلقوبياتپوس اوكړونونبى ﷺ اوفرمائيل نه، بيائې اوفرمائيل كه ماوئيلى ووچې آونوهركال به واجب وو.په دې باندې ذكرشوې آيت نازل شو[3]

دلته دبخارى په روايت كښې دى چې څه خلقوډټوقوپه ډول مختلف قسم تپوسونه اوكړل په دې باندې داآيت نازل شو.

خوداټول واقعات ددې آيت دپاره سبب نزول كيدې شى اومقصد دادې چې نه خودټوقوپه ډول سوال كول پكار دى اونه دشريعت په احكاموكښې بې كاره اوبې ضرورته تپوسونه كول

[1] اخرجه البخارى فى كتاب التفسير باب قوله لاتسالواعن اشياء ان تبدلكم تسؤكم رقم الحديث (۴۳۴۶) وهذالحديث من افراده (عمدة القارى) (ج۱۸ ص۲۱۳) _

[2] الجامع لاحكام القرآن (ج۶ص ۳۳۰) _

[3] الجامع لاحكام القرآن للقرطبى (ج۶ص ۳۳۰) _

پکار دي. (۱)

**فائده**: په دې آیت کښې تنبیه ده چې کوم څیز شارع علیه السلام تصریحا نه وی بیان کړې دهغې په باره کښې فضول تپوسونه مه کوئ، لکه څنګه چې په تحلیل اوتحریم کښې دشارع بیان موجب هدایت اوبصیرت دې، دغه شان دنبی ﷺ چپوالې هم ذریعه درحمت ا وسهولت دې، دسنت الله نه دامعلومیږی چې کله په یوه معامله کښې تپوسونه زیات شی، نوخامخاشقوق اواحتمالات راویستی شي اودبل طرف نه تشدید زیاتیږی ځکه چې داقسم تپوسونه ښکاره کوی چې لکه دتپوس کونکوپه خپل ځان باندې بهروسه ده (۲)

**قوله**: رَوَاهُ النَّضْرُ وَرَوْحُ بْنُ عُبَادَةَ عَنْ شُعْبَةَ: دنضر روایت امام مسلم نقل کړې دې اودروح بن عباده روایت امام بخاری په کتاب الاعتصام کښې ذکر کړې دې (۳)

## ۱۲۰- باب: مَا جَعَلَ اللَّهُ مِنْ بَحِيرَةٍ وَلَا سَائِبَةٍ وَلَا وَصِيلَةٍ وَلَا حَامٍ

ددې څیزونوتفسیر روستوروایت کښې راځي. ددې نه وړاندې امام دڅونوروالفاظوتشریح کوی.

**قوله**: (وَإِذْ قَالَ اللَّهُ) يَقُولُ قَالَ اللَّهُ. وَإِذْ هَا هُنَا صِلَةٌ:

**د واذ قال الله یا عیسی ابن مریم تشریح**: په سورة مائده کښې دی «وَإِذْ قَالَ اللَّهُ يَا عِيسَى ابْنَ مَرْيَمَ ءَأَنتَ قُلْتَ لِلنَّاسِ اتَّخِذُونِي وَأُمِّيَ إِلَٰهَيْنِ مِن دُونِ اللَّهِ» (۴) امام بخاری رحمه الله د، قال ،، تفسیر په ،، یقول ،، سره کړې دې اومقصود دادې چې دلته ماضی دمستقبل په معنی دې، ددې نه پس ئې پوره لفظ دوباره ذکرکړې دې اوفرمائیلی ئې دی «قال» ددې خودلو دپاره چې «اذ» په آیت کریمه کښې صله په طوریعنی زیاتی استعمال شوې دې نولکه چې اصلی عبارت دې «قال الله» دذکرشوی آیت باره کښې دمفسرینواختلاف دې چې په دې کښې الله تعالی حضرت عیسی «علیه السلام» مخاطب کړې دې اوتپوس ئې ترې کړې «ءَأَنتَ قُلْتَ لِلنَّاسِ اتَّخِذُونِي وَأُمِّيَ إِلَٰهَيْنِ مِن دُونِ اللَّهِ» چې دابه الله تعالی دقیامت په ورځ کوی اوکه داپه هغه وخت کښې شوې دی. کله چې الله تعالی حضرت عیسی «علیه السلام» آسمان طرف ته پورته کړې وو دواړه قولونه شته (۵) داولنی قول په صورت کښې به «قال» دمستقبل په معنی کښې وی او«اذ» به زیاتی وی اود دویم قول په صورت کښې به «قال» دمستقبل په معنی کښې نه وی اوپه دې صورت کښې به «اذ» ظرفیه وی

---

(۱) علامه عینی لیکی (وجه الجمع بین عذه الوجه انها نزلت سبب کثرة المسائل اما من جهة الاستهزاء واما من جهة الامتحان وامن جهة التعنت هویعم الکل (عمدة القاری (ج۱۸ص۲۱۳)_

(۲) تفسیر عثمانی (۱۶۵)_

(۳) (عمدة القاری (ج۱۸ص۲۱۳)_

(۴) سورة المائدة (۱۱۶) _

(۵) دذکرشوي دواړو قولونو دپاره اوګورئ (تفسیر ابن کثیر(ج۲ص۱۲۰) والجامع لاحکام القرآن (ج۶ص۳۷٤) _

زانده به نه وى . دامام بخارى رحمه الله په رائې کښې به داتپوس دقيامت په ورځ باندې کيږى.
بعضې حضراتو داهم وئيلى دى چې دلته (اذ) د(اذا) په معنى کښې دې او(اذا) چې کله په ماضى باندې داخل شى نوهغه دمضارع مستقبل په معنى کښې ګرځوى.[1]
حضرت مولانا انورشاه کشميرى رحمه الله فرمائى چې دلته (اذ) زائده نه دې بلکه داداصل واقعه دصورت داستحضار دپاره دې ، حضرت شاه صاحب په دې باندې ډيرتفصيلى کلام په خپل کتاب (عقيدة الاسلام) کښې کړې دې او مولانا بدرعالم ميرتهى دفيض البارى په حاشيه باندې ددې خلاصه نقل کړې ده.[2]

**قوله: اَلْمَائِدَةُ اَصْلُهَا مَفْعُوْلَةٌ كَعِيشَةٍ رَاضِيَةٍ وَتَطْلِيقَةٍ بَائِنَةٍ وَالْمَعْنَى مِيدَ بِهَا صَاحِبُهَا مِنْ خَيْرٍ يُقَالُ مَادَنِي يَمِيدُنِي:** په آيت کريمه کښې دې اِذْ قَالَ الْحَوَارِيُّوْنَ يٰعِيْسَى ابْنَ مَرْيَمَ هَلْ يَسْتَطِيْعُ رَبُّكَ اَنْ يُّنَزِّلَ عَلَيْنَا مَآئِدَةً مِّنَ السَّمَآءِ امام بخارى رحمه الله دابوعبيده نه دمانده دلفظ تشريح نقل کوى(المائدة) اګرچې داسم فاعل صيغه ده خوپه معنى داسم مفعول کښې دې ، يعنى د(ميدة) په معنى کښې (ميودة) ده لکه څنګه چې په (عيشعة راضية) کښې (راضى) داسم فاعل صيغه ده، د(مرضية) اسم مفعول په معنى کښې ده.[3]
دويم مثال ئې د(تطليقة بائنة) ئې ورکړې دې، علامه عينى اوحافظ ابن حجروغيره فرمائى چې دامثال صحيح نه دې ځکه چې په دې کښې (بائنة) صيغه دخپل اسم فاعل په معنى کښې ده داسم مفعول په معنى کښې نه ده ، د(تطليقة بائنة) نه دزوج اوزوجه تعلق ختمونکى طلاق مراددې نودا دمفعول دمعنى دپاره په مثال کښې پيش کول صحيح نه دى.[4]
خوچې تاويل اوکړې شى نوبه (تطليق بائنة) کښې (بائنة) د(مبانة) په معنى کښې اخستې شى

---

[1] قال القرطبى رحمه الله فى الجامع لاحكام القرآن (ج ۶ ص۳۷۵و۳۷۴) اختلف فى وقت هذه المقالة فقال قتادة وابن جريج واكثرالمفسرين :انمايقول له هذايوم القيامة وقال السدى :قال له ذلک حين رفعه الى السماء .. فان ..اذ..فى كلام العرب لامضى ولاول اصح .يدل عليه ماقبله من قوله .. يوم يجمع الله الرسل ..ومابعده .. هذا يوم ينفع الصادقين صدقهم .. وعلى هذاتكون ..اذ.. بعنى .. اذ..كقوله تعالى ولوترى اذافزعوا..اى اذافزعوا)_

[2] البدر السارى الى فيض البارى (ج۴ ۱۷۹و۱۷۸)_

[3] قال العينى فى العمدة (ج۱۸ص ۲۱۴) فقوله المائدة اصلها مفعولة ليس على طريق اهل الفن فى هذاالباب لان اصل كل كلمة حرفها وليس المرادهنا بينان الحروف الاصول وانها المرا ان لفظ امائدة وان كان على لفظ فاعلة فهوبمعنى مفعولة يعنى مميودة ولكن تنقل حركة الياء الى ما قبلها. فتحذف الواو د (وكسرماقبل الياء) بتقى ميدة)_

[4] عمدة القارى (ج۱۸ص ۲۱۴) وفتح البارى)_

چې ددې نه (مبانة صاحبتها) مراد واخستې شى يعنى ددې طلاق په ذريعه طلاقه شوې ښځه ددې دخاوند نه کټ کولې شى نوچې داسې تاويل اوکړې شى اسم فاعل داسم مفعول په معنى کښې اخستې شى[1] اگرچه په دې کښې تکلف دې ، وړاندې امام بخارى رحمه الله ،،مائدة،، چونکه دمفعول په معنى کښې اخستې ده ځکه ددې وضاحت کوى .(ميدبها صاحبها) يعنى هغه درستخوان دکوم په ذريعه چې ددې درستخوان مالک ته دخيرتوبنه ورکړې شوه وائى (مادن يميدن) کله چې سړى ته توبنه ورکړى .

**قوله: وقال ابن عباس متوفيك : [۵۵] مميتك** :داسورة ال عمران دآيت حصه ده په سورة آل عمران کښې دى إِذْ قَالَ اللَّهُ يٰعِيسٰى إِنِّي مُتَوَفِّيكَ وَرَافِعُكَ إِلَيَّ وَمُطَهِّرُكَ مِنَ الَّذِينَ كَفَرُوا.....[2] امام دادلته ذکرکړې دې بعضو وئيلى دى چې دا روستنوراويانوپه غلط فهمى سره دلته نقل کړې دې ،گنى ددې اصلى مقام خوسورة آل عمران دې اوبعضووئيلې دى دسورة مائدة په آيت فَلَمَّا تَوَفَّيْتَنِي كُنْتَ أَنْتَ الرَّقِيبَ عَلَيْهِمْ کښې د(فلماتوفيتنى) دمناسبت په وجه دادلته ذکرکړې دې.[3]

**د حضرت عيسى عليه السلام دحيات عقيده** :امام بخارى رحمه الله دسورة آل عمران په ذکر شوى آيت کښې د(متوفيک) تفسيردحضرت ابن عباس رضي الله عنهما نه (ميتک) نقل کړې دې .ددې نه معلوميږى چې حضرت عيسى عليه السلام وفات شوې دې حال داچې دحضرت عيسى عليه السلام په حيات اوپه آخره زمانه کښې په نزول الى الارض باندې دامت اجماع ده ،البته په دې کښې اختلاف دې چې حضرت عيسى عليه السلام په کوم وخت کښې آسمان طرف ته پورته کړې شوې ووکه اول پرې مرگ راغلې وواوددې نه پس ژوندې شوې وواوپورته کړې شوې وو. دوهب بن منبه اوعلامه ابن حزم ظاهرى رائې داده چې اول پرې مرگ راغلې ووبيادې نه پس پورته کړې شوې وو. دعلامه ابن رائې دا ده چې دسورة آل عمران په آيت (انى متوفيك)اودسورة مائدې په آيت (فلماتوفيتنى)کښې د(توفى) نه مراد مرگ دې ،خوددې دامقصدهرگزنه دې چې علامه ابن حزم دحيات عيسى عليه السلام قائل نه دې بلکه مقصد.دادې چې حضرت عيسى عليه السلام آسمان طرف ته دپورته کولونه وړاندې مړ شوې وو اوددې نه پس ژوندې کړې شوې وو اوپورته کړې شوې وو اوپه آخرى زمانه کښې به هغه دنياته دآسمان نه تشريف راوړى.علامه ابن حزم په خپل مشهور کتاب،المحلى، کښې ددې تصريح کړې ده چې حضرت عيسى عليه السلام به په آخروخت کښې دآسمان نه راکوزيږى[4]

---

[1] لامع الدرارى (ج۹ص۷۲و۷۳) وتعليقات لامع الدرارى (ج۹ص۲۷و۷۳) وفيها : فالاوجه ماافاده الشيخ قدس سره ففى البحرالرائق قوله هى بائن من باب بان الشئ اذاانفصل :قال ابن السكيت فى كتاب التوسعة : تطليقة بائنة والمعنى مبانة قال الصغانى رحمه الله فاعلة بعنى المفعولة كذافى المصباح ،فعلم ان تمثيل البخارى صحيح بل واضح) _

[2] آل عمران :۵۵) _

[3] عمدة القارى (ج۱۸ص۲۱۵) _

[4] المحلى بالاثار(ج۱ص۲۸) كتاب التوحيد ،الايمان بجميع الانبياء فرض) _

او وهب بن منبه هم دحیات عیسی علیه السلام قائل دې.
مرزا غلام احمد قادیانی چونکه دمسیح موعود دعوی هم کړې وه . ددې وجې هغه دا خبره نه منله چې حضرت عیسی علیه السلام حیات دې .هغه دابن حزم،وهب بن منبه اودلته په بخاری کښې دحضرت ابن عباس رضی الله عنهما په تعلیق باندې استدلال کوی چې داحضرات هم دوفات عیسی علیه السلام قائل دی .حضرت ابن عباس رضی الله عنهما دسورة آل عمران آیت کښې د(متوفیك) کښې دتوفی نه مرګ مراد اخستې دې.
دعلامه ابن حزم اووهب بن منبه باره کښې خومونږ اوښودل چې دا حضرات دحیات عیسی علیه السلام قائل دی البته دا وائی چې رفع الی السماء نه وړاندې په حضرت عیسی علیه السلام باندې دڅه وخت دپاره مرګ راغلی وو[1] اوددې نه پس بیاژوندې کړې شوې وونوپه دې باندې دقادیانی استدلال صحیح نه دې .
**د حضرت ابن عباس په مذکوره تعلیق باندې بحث:** ترکومې پورې چې دحضرت ابن عباس رضی الله عنهما دذکر شوی تعلیق تعلق دې .نوپه دې باندې هم استدلال صحیح نه دې . یوخوددې وجې چې ددې تعلیق په سند کښې انقطاع ده. په اصل کښې داتعلیق ابن ابی حاتم دعلی بن ابی طلحه په طریق سره دحضرت ابن عباس رضی الله عنهما نه نقل کړې دې[2] دعلی بن ابی طلحه او حضرت ابن عباس رضی الله عنهما په مینځ کښې ئې دواسطې ذکر نه دې کړې .حال داچې علی بن ابی طلحه ته دحضرت ابن عباس رضی الله عنهما نه براه راست داستفادې موقع نه ده ملاؤ شوې لکه څنګه چې په کتاب الرجال کښې ددې تصریح کړې ده[3]ددې وجې په سند کښې انقطاع ده .
البته په دې کښې دومره خبره ده چې علی بن ابی طلحه دمجاهدشاګرد دې اودحضرت عبدالله بن عباس رضی الله عنهما روایت اکثرهغه دمجاهدپه واسطه سره نقل کوی اومجاهدثقه دې .خوداپه هغه وخت کښې ده چې دا خبره متعینه شی چې په ذکرشوی تعلیق کښې واسطه یقینا دمجاهدده.[4]
دویمه داکه ذکرشوې تعلیق صحیح هم اومنلې شی نوبیاهم ددې نه دانه ثابتیږی چې حضرت ابن عباس رضی الله عنهما دوفات عیسی علیه السلام قائل ووځکه چې امام شعرانی په طبقات کبری کښې دحضرت ابن عباس رضی الله عنهما ارشادنقل کړې دې چې الله تعالی حضرت عیسی علیه السلام دهغه دجسدمبارک سره آسمان طرف ته پورته کړې دې اوهغه اوس هم ژوندې دې .هغه به دنیاته راځی

---

[1] تفسیرابن کثیر(ج۱ص۳۶۶) _
[2] عمدة القاری (ج۱۸ص۲۱۵) _
[3] خلاصه تذهیب الکمال للخزرجی (۲۷۵) وتاریخ البخاری الکبیر(۶الترجمة :۲۴۰۶) والجرح والتعدیل : الترجمة (۱۰۳۱) وثقات ابن حبان(۷ص۳۱) وتاریخ بغداد(ج۱۱ص۴۲۸) ومیزان الاعتدال ۳ الترجمة ۵۸۷وتهذیب التهذیب (ج۷ص۳۳۹شش۹ وتهذیب الکمال (۱۰ص۴۹۰) _
[4] قال المزی فی تهذیب الکمال (۲۰۰۴۹۰) مرسل بینهمامجاهد) _

اوبیا به بادشاهي کوی اوددې نه پس دعاموخلقویشان مړکیږی.[1] ابن کثیر، علامه آلوسي اوصاحب دکنزالعمال هم دحضرت ابن عباس رضی الله عنهما نه ددې مفهوم روایت نقل کړی دی.[2] ددې نه داخبره ښکاره کیږی چې د (متوفیک) ترجمه چې هغوی په (ممیتک) سره کوی. په دې سره دهغوی مراددا دې چې قیامت ته نزدې چې کله حضرت عیسی علیه السلام زمکې ته تشریف راوړی نوحکومت به کوی. ددې نه پس به الله تعالی هغه وفات کوی. ځومفسرینوهم دامطلب اخستی دې. صاحب د مدارک فرمائی (ممیتك فی وقتك بعد النزول من السماء وارفعك الان) یعنی الله تعالی فرمائی چې زۀ به تا ستاپه وخت کښې (کوم چې قیامت ته نزدې دې) دآسمان نه راکوزولو نه پس وفات کوم اواوس زۀ تاپورته کوم. مفسرخازن هم ددې قول دامطلب په خپل تفسیرکښې بیان کړې دې.[3]

دسورة آل عمران په ذکرشوی آیت کې اودسورة مائده په آیت کښې (فَلَمَّا تَوَفَّيْتَنِي كُنتَ أَنتَ الرَّقِيبَ عَلَيْهِمْ) دواړو کښې دتوفی مشهوره معنی د مرګ نه ده اخستې شوې بلکه ددې معنی ده (اخذ الشیء وافیا) یعنی یو څیزپوره پوره اخستل، ددې دلیل هغه احادیث متواتره دی کوم چې په دې باندې دلالت کوی چې حضرت عیسی علیه السلام الله تعالی ژوندې آسمان ته پورته کړې دې، بیا پخپله قرآن هم وائی (وَمَا قَتَلُوهُ وَمَا صَلَبُوهُ وَلَٰكِن شُبِّهَ لَهُمْ)[4] دغه شان قرآن د (بَل رَّفَعَهُ اللَّهُ إِلَيْهِ) صراحت هم کړې دې[5] دا دامت اجماعی عقیده ده او په دې کښې دچا اختلاف نشته. حضرت انورشاه کشمیری رحمه الله په دې موضوع باندې یومستقل دقیق کتاب لیکلې دې. کوم چې د (التصریح بما تواتر فی نزول المسیح) په نوم باندې چهاب شوې دې، په دې باب کښې دغه ډیرقیمتی اوډیر ښه کتاب دې.[6]

---

[1] الطبقات الکبری للشعرانی (ج۱ص۲۶)_
[2] روح المعانی (ج۱ص ۵۹۵) وابن کثیر (ج۱ص ۴۹۳) وکنزالعمال (ج ۱٤ص۶۱۸)_
[3] مدارک (ج۱ص۲۳٤۹) وتفسیر خازن (ج۱ص ۲۳٤)_
[4] المائدة : ۱۵۷)_
[5] المائدة : ۱۵۸)_
[6] په اصل کښې دمرزا غلام احمد قادیانی اودهغه دمتبعینوداعقیده ده. چې حضرت عیسی علیه السلام مړشوې دې. دهغه ژوندې ګڼړل شرک دې. قیامت ته نزدې به هغه هرګزتشریف نه راوړی. اوکوم عیسی بن مریم چې راکوزیدونکې دې. هغه زۀ یم په .. ازاله کلان .. (ج۲ص۲۱۱) کښې لیکی، ابن مریم مړشوې دې. په الله قسم. جنت ته داخل شوې دې، هغه محترم دې په ..کشتی نوح .. صفحه ۱۵ کښې دې. تاسویقین اوکړئ چې عیسی بن مریم وفات شوې دې. اوپه کشمیرسرینګرمحله خانیارکښې دهغه قبردې. ددې نه پس په ۱۸۹۱ء کښې مرزاقادیانی دمسیحیت دعوی اوکړه، په ..ائینه کمالات اسلام ..صفحه (۵۵۱) کښې لیکی، په الله قسم چې ماډیروخت نه داپیژندل چې زۀ مسیح بن مریم جوړکړې شوې یم. اوزۀ دهغه په ځائې نازل شوې یم
قادیانی دحضرت ابن عباس، وهب بن منبه، ابن حزم اوامام بخاری وغیره حضراتوپه قول باندې

استدلال کوی چې دې اکابرین امت دسورة آل عمران اوسورة مائده کښې د(توفي) ترجمه په مرګ سره کړې ده ددې مطلب دادې چې داحضرات دحیات عیسی علیه السلام قائل نه وو.حیات عیسی ته دامت اجتماعي مسئله وئیل صحیح نه ده.

خودا استدلال صحیح نه دې بې شکه دامت مسلمه دبعضې ا کابرینونه د،، توفي،، ترجمه په مرګ سره منقول ده، خوددې نه دابیخی نه لازمیږی چې دکوموحضراتونه دا ترجمه منقول ده هغوی دحیات عیسی منکردی .ددې نه وړاندې چې کومو حضراتود،،توفي ،، نه مرګ مراد اخستې دې .چه دمعتبروکتابونونه په حیات عیسی باندې دهغوی عقیده ثابته کړو.مونږ دلته دلفظ ،،توفي ،، په اصل معنی باندې دلغت په اعتبارسره رڼا اچوو.

**د توفي معنی:** دتوفي اصل معنی ده څه څیزپوره پوره اخستل .علامه منظورافریقي په خپل مشهور لغت ،،لسان العرب ،، کښې داهل عربودامحاوره پیش کړې ده (توفیت عدد القوم)) مادقوم شمار پوره حاصل کړو، فراء کوفي مشهورنحوي په خپل کتاب ،ومعاني القرآن ،، (ج۱ ص۲۱۹) کښې دتوفي ذکرشوې معنی نقل کړې ده ، اوبیائې په استدلال کښې داشعرپیش کړې دې، ان بني الادر لسوا من احد ولا توفیهم قریش في العدد

یعنی بني اوردخویه څه شمارکښې نه دی اوقریشوددوی پوره پوره شمارنه دې کړې .دغه شان وائي (توفیت المال) یعنی مادهغه نه خپل پوره مال واخستلو،علامه مطرزي په خپل مشهور لغت (المغرب) کښې دتوفي معنی لیکې ده. ( اخذه کله) تول په توله ئې واخستل .علامه زمخشري په (اساس البلاغه) کښې په ۶۸۲ کښې لیکی دی (توفاه استکمله یعنی (توفاه) معنی ده .هغه داپوره واخستل علامه فیومي په (مصباح المنیر)ص ،۲۰۸) کښې دتوفي معنی لیکې یوڅیزپوره اخستل .

دتوفي اصل اوحقیقي معنی خوهم داده . یعنی یوڅیزپوره پوره اخستل .خویه درې نوروصعانیو کښې هم دا استعمال شوې دې اوکیږی .

(۱) یوخوب یعنی سملاستل ،په قرآن کښې دی (وهوالذي یتوفاکم باللیل) (الانعام :۶) یعنی الله هغه ذات دې چې تاسویه شپه کښې اوده کوی .

(۲) توفي دویمه معنی (رفع) یعنی دپورته کولوهم راغلې ده لکه څنګه چې دسورة آل عمران په ذکرشوی آیت بعضې حضراتوهم دامعنی اخستې ده.

(۳) اوتوفي معنی دمرګ هم راځي .لکه څنګه چې علامه ابن حزم هم دامعنی کړې ده.

نوددې اصلي اوحقیقي معنی خوپوره پوره اخستل دی ،اوباقي درې معاني خوب ،رفع اومرګ ددې مجازي معاني دی .دسورة مائدې (فلما توفیتني) کښې اکثروحضراتودرفع معنی اخستې ده. څکه چې دا معنی دحقیقي معنی سره مطابقت لری .څکه چې په دې صورت کښې به مطلب داوی .چې الله تعالی حضرت عیسی علیه السلام دروح اوبدن دواړو سره پوره پوره دزمکې نه آسمان طرف ته پورته کړې دې . خوکه ددې معنی دمرګ واخستې شی .نوپه دې صورت کښې به (پوره پوره اخستل، ۹) موجود نشی ،څکه چې دمرګ معنی مراد اخستلومطلب به داوی چې روح خوآسمان طرف ته پورته کړې شوې دې اوبدن په زمکه باندې پاتې شوې دې اودا اصل واقعه نه بیخی خلاف دې اودحقیقي معنی سره ددې مطابقت واضح نه دې هم داوجه ده ،چې داردو ژبې تولو معتبرومترجمینو ددې ترجمه په مرګ سره نه ده کړې حضرت شیخ الهند ،حکیم الامت حضرت تهانوي ، مولانا عاشق الهي میرتهي ،مولانا فتح محمد جالندهري،مولانا عبدالماجد دریا آبادي .سبحان الهند ،مولانا عبدالستار دهلوي ، مرزا حیرت،ډپټي نذیراحمداوسیاب اکبرآبادي دې تولوحضراتوددې ترجمه په، پورته کولو ،،سره کړې ده.

متقدمینوعالمانوهم ددې نه رفع الی اسماء مراد اخستې ده ،ابن اسحاق ابن جریج .ابن الجوزي . ابن سیرین،حسن بصري ،ربیع بن انس، زجاج ،سعید بن جبیر ،سعید بن المسیب ضحاک .عطاء بن

حضرت شیخ الهند د (فلما توفیتني) ترجمه په تا به زۀ پورته کړم سره کړې ده . داد محاورې په اعتبار سره په مرګ اورفع الی السماء دواړوباندې صادقې دیشي ، لکه چې تنبیه ورکړې شوې ده . داسې نه ده چې د توفی دلفظ سره مرګ لازم دې اونه خاص توفي په صورت دمرګ کښې په زیربحث مضمون کښې چې قسم مدخل شته رسول الله ﷺ فرمائیلي دي چې دبعضې خلقوباره کښې به زۀ د قیامت په ورځ داسې اووایم لکه څنګه چې بنده صالح حضرت عیسی علیه السلام وئیلي وو (فلما توفیتني ..) ددې قسم تشبیهاتونه دا راویستل چې دنبی ﷺ او حضرت عیسی علیه السلام توفي په ټولووجوهو سره یوشان ده، داد عربیت نه دناواقفیت دلیل دې[۱]

---

ابی رباح ،عکرمه ، حضرت قتاده ، ماوردی ،مجاهد ،وهب بن منبه اومحمد بن کعب قرطبی د رفع الی السماء معنی مراد اخستې ده ،اوګورئ بحرمحیط (ج۲۲ص۴۷۲) ومعالم التنزیل (ج۳ ص ۱۵۰) ومقاصدحسنه (ص ۳۷۲) ومصنف ابن ابی شیبه (ج ۱۵ص۱۹۸) قرطبی (ج۲ص۲۲۵) وابن جریر (ج۲ص۲۰۷) ودرمنثور (ج۳ص۲۰۷) وروح المعاني (ج۳ص ۱۶٤) وابن کثیر(ج۱ص۳۱۵)

ترخویورې چې تعلق دې دسورة آل عمران دآیت (اني متوفیک ورافعک الی) په دې کښې دتوفي عامومفسرینودوه معانی نقل کړې دي .یومرګ اوبله خوب ،بیاکوموحضراتوچې دمرګ معنی مراد اخستې ده نوهغوی ددې په تفسیر کښې په دووډلوکښې تقسیم شوی دی .قتادة ضحاک اوفراء وغیره حضرات وائي چې په آیت کریمه کښې تقدیم اوتاخیر دې واوبه دې کښې دمطلقا جمعې دپاره دې .دترتیب دپاره نه دې اود آیت معنی ده (اني رافعک الی ومطهرک من الذین کفرواومتوفیک بعدان تنزل من السماء) یعنی اوس مونږ تاواچتوو ، ، اودنزول الی الارض نه پس به بیامونږ تاته مرګ درکوو. اووهب بن منبه وغیره حضرات لیکي چې درفع الی السماء نه وړاندې الله جل شانه حضرت عیسی بن مریم باندې دڅه وختدپاره مرګ راوستې ووبه آیت کښې (متوفیک) سره دې عارضي مرګ ته اشاره ده. داداواړه قولونه حافظ ابن کثیرپه خپل تفسیر(ج۱ص۳۶۶)_ کښې اوعلامه قرطبی په الجامع لاحکام القرآن (ج۴ص۱۹۹و۹۹) کښې ذکرکړې دی .

اوبعضې حضرات دتوفي نه دلته خوب مراداخستې دې حافظ ابن کثیر داداکثروقول ګرځولي دې ،یعنی الله جل شانه درفع الی السماء نه وړاندې په حضرت عیسی علیه السلام باندې خوب راوستې وو

**د عیسی علیه السلام په حیات باندې د امت اجماع ده:** بهرحال په دې آیت کښې که دتوفي نه مرګ مراداخستې شي اوکه خوب یاکه رفع الی السماء، خوبه هیڅ صورت کښې ترې دحیات عیسی علیه السلام انکار نه لازمیږی ځکه چې دا یوه اجماعي عقیده ده ،اوبه امت کښې ترننه ورځې پورې چاهم په دې کښې اختلاف نه دې کړې ،حافظ ابن حجرپه تلخیص الحبیرکښې (۳۱۹) دا اجماع نقل کړې ده ،امام بخاری رحمه الله په کتاب الانبیاء کښې په دې باندې مستقل باب قائم کړې دې (باب نزول عیسی ابن مریم اوګورئ صحیح بخاری (ج۱ص۴۹۰) والله اعلم بالصواب .

په حیات عیسی علیه السلام باندې لویولویوعالمانومستقل کتابونه اورسالې لیکلې دی ،مثلا دحضرت انورشاه کشمیری رحمه الله تصنیف په عربي ژبه کښې (عقیدة الاسلام فی حیاة عیسی علیه السلام حضرت مولانا بدرعالم صاحب میرتهی په اردوژبه کښې حیات عیسی علیه السلام مولانا محمد ادریس کاندهلوی تصنیف ،،حیات مسیح علیه السلام اوحضرت کشمیری رحمه الله په حکم سره مولانا مفتی محمد شفیع صاحب جمع شوې ددووسوو احادیثو مجموعه (التصریح بما تواترفی نزول المسیح) اودمولانا محمد حسین نیلوی صاحب رساله (القول الاتم فی حیاة عیسی ابن مریم)) اردو)

[۱] تفسیر عثمانی : ۱٤۹)

---

۴۳۴۷ حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ سَعْدٍ عَنْ صَالِحِ بْنِ كَيْسَانَ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ سَعِيدِ بْنِ الْمُسَيَّبِ قَالَ الْبَحِيرَةُ الَّتِي يُمْنَعُ دَرُّهَا لِلطَّوَاغِيتِ فَلاَ يَحْلُبُهَا أَحَدٌ مِنَ النَّاسِ. وَالسَّائِبَةُ كَانُوا يُسَيِّبُونَهَا لآلِهَتِهِمْ لاَ يُحْمَلُ عَلَيْهَا شَيْءٌ.
قَالَ وَقَالَ أَبُو هُرَيْرَةَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - « رَأَيْتُ عَمْرَو بْنَ عَامِرٍ الْخُزَاعِيَّ يَجُرُّ قُصْبَهُ فِي النَّارِ، كَانَ أَوَّلَ مَنْ سَيَّبَ السَّوَائِبَ ». وَالْوَصِيلَةُ النَّاقَةُ الْبِكْرُ تُبَكِّرُ فِي أَوَّلِ نِتَاجِ الإِبِلِ، ثُمَّ تُثَنِّي بَعْدُ بِأُنْثَى. وَكَانُوا يُسَيِّبُونَهُمْ لِطَوَاغِيتِهِمْ إِنْ وَصَلَتْ إِحْدَاهُمَا بِالأُخْرَى لَيْسَ بَيْنَهُمَا ذَكَرٌ. وَالْحَامِ فَحْلُ الإِبِلِ يَضْرِبُ الضِّرَابَ الْمَعْدُودَ، فَإِذَا قَضَى ضِرَابَهُ وَدَعُوهُ لِلطَّوَاغِيتِ وَأَعْفَوْهُ مِنَ الْحَمْلِ فَلَمْ يُحْمَلْ عَلَيْهِ شَيْءٌ وَسَمَّوْهُ الْحَامِي
وَقَالَ أَبُو الْيَمَانِ أَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ سَمِعْتُ سَعِيدًا قَالَ يُخْبِرُهُ بِهَذَا قَالَ وَقَالَ أَبُو هُرَيْرَةَ سَمِعْتُ النَّبِيَّ - صلى الله عليه وسلم - نَحْوَهُ.

قوله: وقال ابواليمان ، و فى رواية ابى ذر: قال لى ابواليمان، وهو الحكم بن نافع يروى عن شعيب بن ابى حمزة الحمصى عن الزهرى، قوله: يخبره، من الاخبار والضمير المرفوع فيه يرجع الى سعيد بن المسيب ، والمنصوب يرجع الى الزهرى، قوله: قال وقال ابوهريرة رضى الله عنه: اى قال سعيد بن المسيب: قال ابوهريرة: سمعت النبى صلى الله عليه وسلم.

وَرَوَاهُ ابْنُ الْهَادِ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ سَعِيدٍ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ -رضى الله عنه- سَمِعْتُ النَّبِيَّ - صلى الله عليه وسلم - نَحْوَهُ

اى روى الحديث المذكور يزيد بن عبدالله بن اسامة بن الهاد عن الزهرى، عن سعيد عن ابى هريرة رضى الله عنه.

**د بحيره، وصيله او د حام وغيره تشريح:**

**بحيره**: به ئې هغه واوښې ته وئيل د کومې پئ چې به د طواغيتو اوبتانو په نوم باندې ايسارولې اوور کولې شو.

**صائبه**: هغه وه چې هغه به ئې دبتانو په نوم باندې آزاده پريخوده او په هغې باندې به ئې بوج نه بار کولو. حضرت ابوهريره ﷜ فرمائي چې رسول الله ﷺ فرمائيلى دى عمروبن عامر خزاعى ما اوليدلو چې هغه خپلې کولمې په جهنم کښې راکاږى اوچغې وهى. دا هغه کس وو چې د تولو نه وړاندې ئې دبتانو په نوم باندې دڅاروآزاد پريخودو طريقه رائج کړې وه.

**وصيله**: هغه ځوانه اوښه وى چې په اول ځل اوښه زيږوى او بيا په بل ځل هم اوښه اوزيږوى ،چونکه په اوښانو کښې دا وښ په مقابله کښې داوښې اومونث ډير قيمت وى نو ځکه چې به ئې دوه اوښې پرله پسې اوزيږولى ددې په وجه به ئې هغه دبتانو په نوم باندې آزاده پريخودله.

**اوحام**: هغه نر اوښ ته وائي کوم چې ديو مقرر شمير کښې دوطى نه پس دبتانو په نوم باندې پريخودې شو.

دبحيرې ،سائبې وغيره ددې نه سوانوره تشريح هم شوې ده اوداهل لغت په دې كښې مختلف اقوال دى .بهرحال دومره خبره متعين ده چې داپه زمانه دجاهليت كښې دبتانوپه نوم باندې دآزادپريخودې شوې خاروونومونه وو.

[۴۳۴۸] حَدَّثَنِي مُحَمَّدُ بْنُ أَبِي يَعْقُوبَ أَبُو عَبْدِ اللَّهِ الْكَرْمَانِي حَدَّثَنَا حَسَّانُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ حَدَّثَنَا يُونُسُ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ عُرْوَةَ أَنَّ عَائِشَةَ رضى الله عنها قَالَتْ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صلى الله عليه وسلم- «رَأَيْتُ جَهَنَّمَ يَحْطِمُ بَعْضُهَا بَعْضًا، وَرَأَيْتُ عَمْرًا يَجُرُّ قُصْبَهُ، وَهُوَ أَوَّلُ مَنْ سَيَّبَ السَّوَائِبَ».

**د حضوز اكرم ﷺ عمرو بن عامر خزاعى لره په جهنم كې د ليدلو توجيهات:** دلته دااشكال كيږى ، چې درواياتونواونصوص قطعيه نه ثابته ده ،چې جهنم ته به دكافرانو او فاسقانو داخليدل دقيامت په ورځ وى .نونبى اكرم ﷺ عمروبن عامرخزاعى دوخت نه وړاندې په جهنم كښې څنګه اوليدلو ،

① ددې يوجواب دا دې ،اګرچه كافران اوفسقان به جهنم ته دقيامت قائميدونه پس داخليږى خوپه عالم برزخ كښې هم صبااومابنام جهنميانوته جهنم پيش كولې شى .په قرآن مجيد كښې دى «اَلنَّارُ يُعْرَضُوْنَ عَلَيْهَا غُدُوًّا وَّعَشِيًّا»[1] نوډير ممكن ده،چې عمروبن عامرخزاعى لره نبى اكرم ﷺ په هغه وخت كښې ليدلې وى، كله چې هغه ص بااومابنام په څه وخت كښې جهنم ته راوستې شوې وو،

② اودويم جواب داوركولې شى چې داعالم شهادت دې اوجنت اوجهنم دعالم شهادت كښې موجوددى، ددې يومثالى شكل په عالم مثال كښې هم موجوددې ،كيدې شى چې نبى ﷺ ته دهغه مثالى شكل خودلې شوې وى چې هغه ته عذاب وركولې شو.

خودا سوال به پيداكيږى چې په عالم مثال كښې په معذب كيدوسره به په عالم برزخ كښې هغه معذب كيږى ؟ ددې جواب دا دې چې دمثالى شكل معذب كيدوسره ددې اثرصاحب مثال ته رسيږى اوپه دې كښې څه استبعادنشته .په دې باندې دمثال په رنګ اكښې داسې پوهه شئ چې جادوګركله جادوكوى نوكله كله هغه دموم يوګډاګې جوړكړى أ وپه دغه ګوډاګى كښې دعذاب اوسزامختلف آلات ورداخل كړى .ستن دخلوى هغه ګوډاګي په تارباندې سخت اوتړى. ددې په وجه چې هغه كس په چاچې داجادوشوې وى په خپل ځان كښې ستن منډلې شوې محسوسوى اوياخپل ځان په زنځيرونو كښې بند محسوسوى نودجادوګرعمل دعالم مثال سره متعلق دې ، خوددې تكليف په عالم شهادت كښې سړې محسوسوى، ددې وجې كه نبى ﷺ عمروبن عامرخزاعى په عالم مثال كښې هم ليدلې وى چې هغه ته په جهنم كښې عذاب وركولې شى نوبياهم په برزخ كښې دهغې داثردوجې دهغه معذب كيدل څه مستبعده خبره نه ده .والله اعلم

[1]) المؤمن _

## ١٢١-باب: وَكُنْتُ عَلَيْهِمْ شَهِيدًا مَا دُمْتُ فِيهِمْ فَلَمَّا تَوَفَّيْتَنِي كُنْتَ أَنْتَ الرَّقِيبَ عَلَيْهِمْ وَأَنْتَ عَلَى كُلِّ شَيْءٍ شَهِيدٌ)

[٤٣٤٩] حَدَّثَنَا أَبُو الْوَلِيدِ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ أَخْبَرَنَا الْمُغِيرَةُ بْنُ النُّعْمَانِ قَالَ سَمِعْتُ سَعِيدَ بْنَ جُبَيْرٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ -رضي الله عنهما- قَالَ خَطَبَ رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- فَقَالَ «يَا أَيُّهَا النَّاسُ إِنَّكُمْ مَحْشُورُونَ إِلَى اللَّهِ حُفَاةً عُرَاةً غُرْلاً- ثُمَّ قَالَ- (كَمَا بَدَأْنَا أَوَّلَ خَلْقٍ نُعِيدُهُ وَعْدًا عَلَيْنَا إِنَّا كُنَّا فَاعِلِينَ) إِلَى آخِرِ الآيَةِ- ثُمَّ قَالَ- أَلاَ وَإِنَّ أَوَّلَ الْخَلاَئِقِ يُكْسَى يَوْمَ الْقِيَامَةِ إِبْرَاهِيمُ، أَلاَ وَإِنَّهُ يُجَاءُ بِرِجَالٍ مِنْ أُمَّتِي فَيُؤْخَذُ بِهِمْ ذَاتَ الشِّمَالِ، فَأَقُولُ يَا رَبِّ أُصَيْحَابِي. فَيُقَالُ إِنَّكَ لاَ تَدْرِي مَا أَحْدَثُوا بَعْدَكَ. فَأَقُولُ كَمَا قَالَ الْعَبْدُ الصَّالِحُ (وَكُنْتُ عَلَيْهِمْ شَهِيدًا مَا دُمْتُ فِيهِمْ فَلَمَّا تَوَفَّيْتَنِي كُنْتَ أَنْتَ الرَّقِيبَ عَلَيْهِمْ) فَيُقَالُ إِنَّ هَؤُلاَءِ لَمْ يَزَالُوا مُرْتَدِّينَ عَلَى أَعْقَابِهِمْ مُنْذُ فَارَقْتَهُمْ».

**قوله: إِنَّكُمْ مَحْشُورُونَ إِلَى اللَّهِ حُفَاةً عُرَاةً غُرْلاً:** (حفاة) دحافى جمع ده هغه سړي چې خپې ابلې وى، (عراة) دعارى جمع ده ،بربنډبدن او(غرل) د(اغرل) جمع ،ده غير مختون(ناسنته) ته وائى، مطلب دادې چې دقيامت په ورځ به کله دټولوخلقوحشراوشى نوبنپې ابلې پښې بربنډ بدن اوغيرمختون به وى.

**په روايت باب باندې يو اشكال اودهغې جوابونه** : په دې باندې دابوسعيدخدرى رضي الله عنه دهغه روايت په وجه اشكال كيږى كوم چې امام ابوداود رحمه الله نقل كړې دې ،كله چې هغوى وفات كيدل نوهغوى اوفرمائيل چې نوې جامې راوړئ نونوې جامې ورته راوړې شوې اوهغوى دغه جامې واغوستې اووې فرمائيل ما درسول الله صلى الله عليه وسلم نه اوريدلى دى (ان الميت يبعث فى ثيابه التى يموت فيها) [1] ددې نه معلوميږى چې په كوم وخت كښې بعث كيږى ،په هغه وخت كښې به سړى جامې اغوستې وى اودحديث باب نه معلوميږى چې خلق به بربنډه وى.

① ددې يوجواب داوكړې شوې دې چې بعث يوځيزدې اوحشر بل ځيزدې بعث دقبرونونه راپاسيدوته وائى اوحشردقيامت داجتماع نوم دى .حديث باب دحشرسره متعلق دې اوحضرت ابوسعيدخدرى رضي الله عنه روايت دبعث سره متعلق دې نوځه تعارض نشته.

② بعضوداهم وئيلى دى چې دحضرت ابوسعيدخدرى رضي الله عنه حديث دشهداؤسره متعلق دې اودلته په (انكم محشورون الى الله) كښې غيرشهداء مراددى،

[1] سنن ابى داود (ج٣ص١٩٠) كتاب الجنائز باب مايستحب من تطهير الميت عند الموت ،رقم الحديث (٣١١٤)_

③ يوه خبره داهم شوې ده چې دحضرت ابوسعيدخدرى رضي الله عنه حديث كښې دثياب نه اعمال مراد دى چې سړې به دهغه اعمالوسره پورته كولې شى كوم چې هغه په خپل ژوند كښې كړې وى. اوس سوال داكيږى چې آياابوسعيد رضي الله عنه ته داخبره معلومه نه وه چې هغه دخپل ځان دپاره جامې راوغوښتې، ددې په باره كښې تاسوداوئيلې شئ چې هغوى ته داخبره معلومه وه هغوى په ظاهرد حديث باندې دعمل كولواهتمام كړې دې .(١) والله اعلم.

**قوله**: ان اول الخلائق يكسى يوم القيامة ابراهيم:

**د قيامت په ورځ په دټولو نه اول حضرت ابراهيم عليه السلام ته لباس اغوستلې شى**: دټولونه وړاندې به حضرت ابراهيم عليه السلام ته دقيامت په ورځ جامې اغوستلوشى. سوال پيداكيږى چې په دې سره خود حضرت ابراهيم عليه السلام په نبى عليه السلام باندې فضيلت لازميږى.

ددې جواب دادې چې داجزئى فضيلت دې كوم چې دنبى عليه السلام دكلى فضيلت سره منافى نه دې، باقى پاتې شوه داخبره چې دټولونه وړاندې به حضرت ابراهيم عليه السلام ته ولې جامې اغوستولې شى نوپه رواياتوكښې ددې مختلف علتونه اوتوجيهات بيان شوى دى.

① يوه وجه دابيان شوې ده چې حضرت ابراهيم عليه السلام دټولونه وړاندې دنمرود په اوركښې اچولې شوې وو، ددې وجې به دقيامت په ورځ دااعزازهغوى ته وركولې شى (٢)

② اوبعضې رواياتوكښې دى «للانه اول من لبس السراويل» چونكه دوى دالله دپاره دټولونه وړاندې دسراويل استعمال كړې وو، په كوم كښې چې دتسترزيات اهتمام وى ،ددې وجې به دټولونه وړاندې هغوى ته جامې اغوستولى شى .(٣)

دابن المبارك وغيره په روايت كښې راځى چې دحضرت ابراهيم عليه السلام نه پس به نبى كريم صلى الله عليه وسلم ته جامې اغوستولى شى اوپه بعضې رواياتوكښې دومره اضافه هم شته چې نبى كريم صلى الله عليه وسلم ته كومې جامې اغوستولې شى هغه به ډيرې قيمتى وى (٤)ددې تاخيرتلافى به داسې كولې شى چې تاسوته به كوم لباس دركولې شى نوهغه به زيات قيمتى وى.

## ۱۲۲-باب: إِنْ تُعَذِّبْهُمْ فَإِنَّهُمْ عِبَادُكَ وَإِنْ تَغْفِرْ لَهُمْ فَإِنَّكَ أَنْتَ الْعَزِيزُ الْحَكِيمُ

[۴۳۵۰-۳۲۵] حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ كَثِيرٍ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ حَدَّثَنَا الْمُغِيرَةُ بْنُ النُّعْمَانِ قَالَ حَدَّثَنِي سَعِيدُ بْنُ جُبَيْرٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ عَنِ النَّبِيِّ -صلى الله عليه وسلم- قَالَ «إِنَّكُمْ مَحْشُورُونَ، وَإِنَّ نَاسًا يُؤْخَذُ بِهِمْ ذَاتَ الشِّمَالِ، فَأَقُولُ كَمَا قَالَ الْعَبْدُ الصَّالِحُ (وَكُنْتُ

---

(١) د ذكرشووتوجيهاتواونوروتوجيهاتودپاره اوګورئ (فتح البارى(ج١١ص ٣٨٤و٣٨٣) كتاب الرقاق باب الحشر)_

(٢) فتح البارى (ج ٦ص ٣٩٠)_كتاب احاديث الانبياء باب قول الله تعالى واتخذالله ابراهيم خليلا)_

(٣) فتح البارى (ج ٦ص ٣٩٠)_كتاب احاديث الانبياء باب قول الله تعالى واتخذالله ابراهيم خليلا)_

(٤) دذكرشوو رواتودپاره اوګورئ فتح البارى (ج١١ص ٣٨٤) _كتاب الرقائق باب الحشر)_

عَلَيْهِمْ شَهِيدًا مَا دُمْتُ فِيهِمْ) إِلَى قَوْلِهِ (الْعَزِيزُ الْحَكِيمُ)

## ۱۲۳-باب: تفسير سورة الانعام

قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ (فِتْنَتُهُمْ) مَعْذِرَتُهُمْ. (مَعْرُوشَاتٍ) مَا يُعْرَشُ مِنَ الْكَرْمِ وَغَيْرِ ذَلِكَ. (حَمُولَةً) مَا يُحْمَلُ عَلَيْهَا. (وَلَلَبَسْنَا) لَشَبَّهْنَا (يَنْأَوْنَ) يَتَبَاعَدُونَ. تُبْسَلُ تُفْضَحُ (أُبْسِلُوا) أُفْضِحُوا. (بَاسِطُو أَيْدِيهِمْ) الْبَسْطُ الضَّرْبُ. (اسْتَكْثَرْتُمْ) أَضْلَلْتُمْ كَثِيرًا. (ذَرَأَ مِنَ الْحَرْثِ) جَعَلُوا لِلَّهِ مِنْ ثَمَرَاتِهِمْ وَمَالِهِمْ نَصِيبًا، وَلِلشَّيْطَانِ وَالْأَوْثَانِ نَصِيبًا. (أَمَّا اشْتَمَلَتْ) يَعْنِي هَلْ تَشْتَمِلُ إِلَّا عَلَى ذَكَرٍ أَوْ أُنْثَى فَلِمَ تُحَرِّمُونَ بَعْضًا وَتُحِلُّونَ بَعْضًا. (مَسْفُوحًا) مُهْرَاقًا (صَدَفَ) أَعْرَضَ (أُبْلِسُوا) أُويِسُوا وَ (أُبْسِلُوا) أُسْلِمُوا. (سَرْمَدًا) دَائِمًا. (اسْتَهْوَتْهُ) أَضَلَّتْهُ. (تَمْتَرُونَ) تَشُكُّونَ. (وَقْرٌ) صَمَمٌ، وَأَمَّا الْوِقْرُ الْحِمْلُ. (أَسَاطِيرُ) وَاحِدُهَا أُسْطُورَةٌ وَإِسْطَارَةٌ وَهِيَ التُّرَّهَاتُ. الْبَأْسَاءُ مِنَ الْبَأْسِ وَيَكُونُ مِنَ الْبُؤْسِ. (جَهْرَةً) مُعَايَنَةً. الصُّوَرُ جَمَاعَةُ صُورَةٍ، كَقَوْلِهِ سُورَةٌ وَسُوَرٌ. مَلَكُوتٌ مُلْكٌ، مِثْلُ رَهَبُوتٍ خَيْرٌ مِنْ رَحَمُوتٍ، وَيَقُولُ تُرْهَبُ خَيْرٌ مِنْ أَنْ تُرْحَمَ. (جَنَّ) أَظْلَمَ. يُقَالُ عَلَى اللَّهِ حُسْبَانُهُ أَيْ حِسَابُهُ، وَيُقَالُ حُسْبَانًا مَرَامِي. وَرُجُومًا لِلشَّيَاطِينِ، مُسْتَقَرٌّ فِي الصُّلْبِ وَ (مُسْتَوْدَعٌ) فِي الرَّحِمِ. الْقِنْوُ الْعِذْقُ، وَالِاثْنَانِ قِنْوَانِ، وَالْجَمَاعَةُ أَيْضًا قِنْوَانٌ، مِثْلُ صِنْوٍ وَصِنْوَانٍ.

## سورة الانعام

**د کلماتو تشریح:**

**قوله: قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ (فِتْنَتُهُمْ) مَعْذِرَتُهُمْ.** (: ﴿وَيَوْمَ نَحْشُرُهُمْ جَمِيعًا ثُمَّ نَقُولُ لِلَّذِينَ أَشْرَكُوا أَيْنَ شُرَكَاؤُكُمُ الَّذِينَ كُنْتُمْ تَزْعُمُونَ ۝ ثُمَّ لَمْ تَكُنْ فِتْنَتُهُمْ إِلَّا أَنْ قَالُوا وَاللَّهِ رَبِّنَا مَا كُنَّا مُشْرِكِينَ۝﴾ حضرت ابن عباس رضي الله عنهما په دې آيت کښې د (فتنتهم) تفسير په (معذرتهم) سره کړې دې. مطلب دا دې چې کله دقيامت په ورځ دمشرکانو نه تپوس اوشي چې تاسو به دالله سره کوم شريکان جوړول اوس هغه شريکان څه شو؟ نو په هغه وخت کښې به دهغوی سره دمعذرت دپاره ددې نه سوابله جمله نه وی چې په الله قسم مونږ خومشرکان نه وو.

دحضرت ابن عباس رضي الله عنهما داتعليق ابن ابی حاتم موصولانقل کړې دې.[1] حضرت قتاده رحمه الله (فتنة) تفسير په (مقالتهم) سره کړې دې اوبعضو په (حجتهم) سره کړې دې[2] مطلب دټولو يو دې.

**قوله: مَعْرُوشَاتٍ) مَا يُعْرَشُ مِنَ الْكَرْمِ وَغَيْرِ ذَلِكَ:** ﴿وَهُوَ الَّذِي أَنْشَأَ جَنَّاتٍ مَعْرُوشَاتٍ وَغَيْرَ مَعْرُوشَاتٍ﴾ الله هغه ذات دې چې باغونه ئې پيداکړی دی چې په داسې (تيټو) چپرونو (څپرونو باندې خيژولی شی. (بلکه انګورکدووغيره) اوهغه چې په څپرونو (تيټو) باندې نه خيژی (لکه آم امزدود وغيره) حضرت ابن عباس رضي الله عنهما د (معروشات) تفسير په (ما يعرش من الكرم وغيره

---

[1] عمدة القاری (۱۸ص۲۱۹)_

[2] عمدة القاری (۱۸ص۲۱۹)_

ذلك) سره كړي دي .يعنى دانګوروغيره زيلۍ چې دلرګوادانه ورته ورکولې شى اوپه مخې خيژولى شي .

**قوله: حَمُولَةً) مَا يُحْمَلُ عَلَيْهَا** :(وَمِنَ الْأَنْعَامِ حَمُولَةً وَّفَرْشًا) اوپه څاروو كښې څوڅه دبوج اوچتونكى (داوچت قد دي لكه اوښ خچر، اس اوخر) اوڅه په زمكه پورې لګيدلي وى (يعنى دوركوتى قد لكه چيلۍ، اوګډه)

**قوله: (وَلَلَبَسْنَا) لَشَبَّهْنَا** (:(وَلَوْ جَعَلْنٰهُ مَلَكًا لَّجَعَلْنٰهُ رَجُلًا وَّلَلَبَسْنَا عَلَيْهِمْ مَّا يَلْبِسُوْنَ)اوموږ دوى هم په دې شبه كښې اوچوو په.كومه كښې چې دوى اوس پريوتى دى .كافران وائى چې فرښته ولې پيغمبرنه دي جوړشوې چې راليګلې شوې وه نوقرآن په جواب كښې وائى كه موږ يوه فرښته پيغمبره جوړوله او راليګله مونومونږ هغه به هم دسړى په شكل كښې راليږله اودوى به هم په دې شبه كښې پريوتلى ووپه كوم كښې چې دوى اوس هم پراته دى چې كوم شكونه اوشبهات دبشرپه رسالت باندې كوى نوهغه به ئې په فرښته باندې هم كول چې دبشرپه صورت كښې راغلى وي .

**قوله: يَنْأَوْنَ) يَتَبَاعَدُوْنَ** :(وَهُمْ يَنْهَوْنَ عَنْهُ وَيَنْئَوْنَ عَنْهُ) اوهغه كافران خلق دقرآن نه منع كوى اوپخپله هم ددې نه لرې اوسى.

**قوله: تُبْسَلُ تُفْضَحُ (أُبْسِلُوا) أُفْضِحُوا**: (وَذَكِّرْ بِهٖٓ اَنْ تُبْسَلَ نَفْسٌۢ بِمَا كَسَبَتْ لَيْسَ لَهَا مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ وَلِيٌّ وَّلَا شَفِيْعٌ وَاِنْ تَعْدِلْ كُلَّ عَدْلٍ لَّا يُؤْخَذْ مِنْهَا اُولٰٓئِكَ الَّذِيْنَ اُبْسِلُوْا بِمَا كَسَبُوْا) اوددې قرآن په ذريعه دآخرت هيرشوې سبق يادكړه (څكه چې دقيامت ورځ)ددې دپاره دالله تعالى نه سوا بل څوك نه مدګاركيدې شى اونه سفارشى اوكه څوك (په دغه ورځ دخپلې خلاصۍ دپاره) هرقسم معاوضه هم وركړى نودهغه نه به وانخستې شى . هم داخلق (چې خپل دين نه ئې لوبې اوټوقې جوړې كړې دى) په عذاب كښې ګرفتارشوى دى دخپلوبدواعمالوپه وجه .

**قوله: (بَاسِطُوْٓا اَيْدِيْهِمْ) اَلْبَسْطُ الضَّرْبُ** .(:(وَلَوْ تَرٰٓى اِذِ الظّٰلِمُوْنَ فِيْ غَمَرٰتِ الْمَوْتِ وَالْمَلٰٓئِكَةُ بَاسِطُوْٓا اَيْدِيْهِمْ......) (بسط) تفسيرئې په (ضرب) سره كړې دې .دبسط معنى دخورولو ده چونكه فرښتې دروح قبض كولوسره سره دهغوى دوهلودپاره لاسونه وړاندې كوى .ددې وجې دبسط تفسيرئې مجازا په ضرب سره اوكړو.

**قوله: اسْتَكْثَرْتُمْ) اَضْلَلْتُمْ كَثِيْرًا**: په دې آيت كښې دى (وَيَوْمَ يَحْشُرُهُمْ جَمِيْعًا يٰمَعْشَرَ الْجِنِّ قَدِ اسْتَكْثَرْتُمْ مِّنَ الْاِنْسِ) اوپه كومه ورځ چې الله تعالى ټول خلق راجمع كړى (اود رټلوپه ډول به جناتوشيطانانوته اوونيلى شى) اې دجناتوډلې (يعنى دشيطانانوډلې)، تاسودانسانانوپه ګمراه كولوكښې) ډيره لويه حصه اخستې وه اوډيرموګمراه كړى وو. د (استكثرتم) معنى ده ډيرموګمراه كړى وو.

**قوله: (ذَرَاَ مِنَ الْحَرْثِ) جَعَلُوْا لِلّٰهِ مِنْ ثَمَرَاتِهِمْ وَمَالِهِمْ نَصِيْبًا**: په آيت كښې دى (وَجَعَلُوْا لِلّٰهِ مِمَّا ذَرَاَ مِنَ الْحَرْثِ وَالْاَنْعَامِ نَصِيْبًا) اودې خلقودالله تعالى په پيداكړوفصلونو اوڅاروو

كښې (دنذر په طور) يوه حصه دالله تعالى دپاره مقرر كړې ده، په دې آيت كريمه كښې (ذرامن الحرث) تفسير د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما نه منقول دې. يعنى مشركانو د خپلو ميوواو خپل مال نه يوحصه دالله تعالى دپاره مقرر كړې ده او يوه حصه د شيطانانو او بتانو دپاره مقرر كړې ده. بيا كه په اتفاقى توګه باندې د الله تعالى د حصې نه دبتانو حصې ته څه څيز لاړ شى نو هغه هم په هغې كښې پرېږدى. او وائى چې الله غنى دې او كه ددې په عكس دبتانو د حصې نه څه څيز د الله تعالى حصې ته لاړ شى نو هغه راوباسى د بتانو په حصه كښې ئې اچوى دا څومره لوئې جهالت او حماقت دې.

**قوله: أَمَّا اشْتَمَلَتْ) يَعْنِي هَلْ تَشْتَمِلُ إِلاَّ عَلَى ذَكَرٍ أَوْ أُنْثَى فَلِمَ تُحَرِّمُونَ بَعْضًا وَتُحِلُّونَ بَعْضًا:** په دې آيت كښې دې (قُلْ ءَآلذَّكَرَيْنِ حَرَّمَ أَمِ الْأُنثَيَيْنِ أَمَّا اشْتَمَلَتْ عَلَيْهِ أَرْحَامُ الْأُنثَيَيْنِ) اې نبى تاسو تپوس اوكړئ (ددې كافرانو نه چه داخوراته اوښائې) آيا الله تعالى دواړه نران (خناور) حرام كړى دى او كه د دواړو ماده يعنى ښځينا څاروى او كه پرباندې د ښخو رحم (بچه دانۍ) مشتمل دى. مطلب دادې چې آيا هغه بچې حرام دې كوم چې دواړو ښځو (د ګډو او چيلۍ) په خپلو خيټو كښې ساتلى دى. دا استفهام انكارى دې او په دې آيت كښې مشركانو ددې قول مَا فِي بُطُونِ هَٰذِهِ الْأَنْعَامِ خَالِصَةٌ لِّذُكُورِنَا وَمُحَرَّمٌ عَلَىٰ أَزْوَاجِنَا رد كولو ته اشاره ده.

حاصل دادې چې داتاسو چې كوم (سائبة ،وصيلة ،بحيرة اوحام) حرام كړى دى دا په څه وجه دى؟ كه داتحريم د ذكرشوې وجې له كبله وى نو ټولو نرانو ته حرام او وائى او كه د ښځې د طرفه وى نو ټولو ښځو ته حرام و وائې. (وَقَالُوا مَا فِي بُطُونِ هَٰذِهِ الْأَنْعَامِ خَالِصَةٌ لِّذُكُورِنَا وَمُحَرَّمٌ عَلَىٰ أَزْوَاجِنَا) يا چې په كوم بچې باندې ددواړو ښځو بچه دانئى ډكې وى يعنى كوم بچې چې په خيټه كښې وى كه هغه نروى او كه ښځه، نو بيا ولې بعضې حراموئ او بعضې حلالوئ؟ د خپل طرف نه د الله تعالى پيدا كړى څيزونو تـه حـرام يـا حلال وئيـل ددې برابـر دې چـې د الله منـصب معـاذالله. تاسو د خپل خان دپاره تجويز كړې دې او يا په الله باندې په قصد دروغ وائې دا دواړه څيزونه مهلك او تباه كونكى دى.

**قوله: مسفوحـا مهراقـا:** په آيت كښې دى. (قُل لَّا أَجِدُ فِي مَا أُوحِيَ إِلَيَّ مُحَرَّمًا عَلَىٰ طَاعِمٍ يَطْعَمُهُ إِلَّا أَن يَكُونَ مَيْتَةً أَوْ دَمًا مَّسْفُوحًا) ته اووايه (چې ددې څيزونو د حرمت په باره كښې د كومو حرمت چې تاسو الله ته منسوب كوئ) زۀ په هغه وحى كښې كومه چې ماته شوې ده په دې كښې هيڅ يو څيزهم په خوړونكى باندې چې هغه ئې خورى حرام نه بيامومم (كه سړې وى او كه ښځه) خودا مرداره يا بهيدونكې وينه په دې آيت كښې د (دما مسفوحا) تفسير د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما نه منقول دې (دما مهراقا) يعنى بهيدونكې وينه.

**قوله: صَدَفَ) أَعْرَضَ:** په آيت كښې دى (فَمَنْ أَظْلَمُ مِمَّن كَذَّبَ بِآيَاتِ اللَّهِ وَصَدَفَ عَنْهَا) دهغه نه لوئې ظالم بل څوك كيدې شى چاچې د الله تعالى آيايتونو ته نسبت د دروغو كړى وى او دهغې نه يئې ډډه كړې وى.

دحضرت ابن عباس رضي الله عنه نه منقول دي چې (صدف عنها) په معنی د (اعرض عنها) ده.

**قوله: (أُبۡلِسُوا) أُوبِسُوا وَ(أُبۡسِلُوا) أُسۡلِمُوا.** (: (اَخَذۡنٰهُمۡ بَغۡتَةً فَاِذَا هُمۡ مُّبۡلِسُوۡنَ) مونږ هغوی لره ناڅاپه اونیول نو هغوی نااميده شول . د (مبلس) معنی ده نااميده كيدل د (ابلسوا) تشريح امام په (اويسوا) سره كړې ده. دا د باب افعال نه د ماضی مجهول صيغه ده .په معنى دنااميده كيدلو او په آيت كريمه (اُولٰٓىِٕكَ الَّذِيۡنَ اُبۡسِلُوۡا بِمَا كَسَبُوۡا) سره شوې دې ،يعنى داخلق به دخپلو بد عملو په وجه عذاب او هلاكت ته حواله كړې شى. ددې نه دوه درې كربنې وړاندې د (ابلسوا) معنى ئې په (افضحوا) سره كړې ده .يعنى داخلق به دبدو عملونو په وجه رسوا كړې شى .نتيجه د دواړو تفسيرونه يوه ده. عذاب ته حواله كول اورسوا كيدل د دواړويو مطلب دې.

**قوله: سَرۡمَدًا) دَآىِٕمًا:** دا د سورة قصص په آيت كښې دى .(قُلۡ اَرَءَيۡتُمۡ اِنۡ جَعَلَ اللّٰهُ عَلَيۡكُمُ النَّهَارَ سَرۡمَدًا اِلٰى يَوۡمِ الۡقِيٰمَةِ) په دې كښې (سرمدا) معنى (دائما) ده .

دا امام بخاری رحمه الله دلته ولې ذكر كړې دې؟ علامه عينى رحمه الله فرمائى چې ددې لفظ په دې مقام كښې د ذكر كولو مناسبت ښكاره نه دې .([1])

**د سورة قصص ايت لره په سورة انعام كښې د ذكر كولو متعلق د حضرت ګنګوهى توجيه:** حضرت مولانا رشيد احمد ګنګوهى رحمه الله فرمائى چې امام بخارى رحمه الله چې دالفظ په دې مقام كښې ذكر كړې دى نو د سورة انعام او سورة قصص په مينځ كښې د معارضه يو وهم ئې لرې كړې دې

د سورة انعام په آيت كښې دى (وجعل الليل سكنا) ددې نه معلوميږى چې شپه په آرام او سكون سره موصوفه وى او ددې دوام وى . دغه شان وائى (ليل سرمد) اوږده شپه ،او د سورة قصص د آيت نه معلوميږى چې شپې ته دوام او قرار نه وى .

امام بخارى رحمه الله دا تعارض لرې كړې دې چې په سورة قصص كښې اګرچه د سرمد معنى دوام دې ، چې كومې شپې ته سرمدوائى دهغې نه مراد دوام نه وى بلكه ددې نه دشپې طوالت او اوږد والې مراد وى.دغه شان دشپې دساكن كيدو نه هم مراد دوام نه وى بلكه دا مجاز عن الطول نه دې .او (وجعل الليل سكنا) كوم چې په سورة انعام كښې دې. ددې نه دشپې ساكن كيدل مراد نه دى بلكه دخلقو او خناورو ساكن كيدل مراد دى چې په شپه كښې ټول چپ او ساكن وى .([2])

دحضرت ګنګوهى رحمه الله دا توجيه بې غباره نه ده.په دواړو آياتونو كښې تعارض وهم اوازاله خو ښكاره ده چې د سورة انعام د آيت نه دشپې دوام او قرار معلوم دې او د سورة قصص د آيت نه دشپې عدم قرام او عدم دوام معلوميږى، ددې وهم ازاله هم ښكاره ده چې د سورة انعام په آيت كښې د سكون ليل نه مراد پخپله دشپې سكون مراد نه دې بلكه ددې نه په شپه كښې دخلقو آرام مراد دې. خو دا چې امام بخارى رحمه الله ددې دوهم ازله څنګه اوكړه. دحضرت ګنګوهى په

---

[1]) عمدة القارى (ج١٨ص٢٢١) _

[2]) لامع الدرارى (ج٩ص٨٠و٨١)_

توجیه کښې دابنکاره نه دي، امام بخاري رحمه الله دسرمدا تشریح په ،،دائما،، سره کړې ده.په دې سره دذکرشوي وهم ازاله نه کیږي، دا ازله خوبه په هغه وخت کښې وه چې امام بخاري د«وجعلنا اليل سكنا» کښې دسکن تشریح داسې کړې وې چې ددې نه د«مافي الليل» سکون مراددې.

**قوله: اسْتَهْوَتْهُ) أَضَلَّتْهُ:** په دې آیت کښې «كَالَّذِي اسْتَهْوَتْهُ الشَّيٰطِيْنُ» دهغه کس پشان چالره چې شیطانانوګمراه کړی وی په دې کښې «استهوته» د«اضلته» په معنی دې .

**قوله: تَمْتَرُونَ) يَشُكُّوْنَ:** په دې آیت کښې دی «ثُمَّ اَنْتُمْ تَمْتَرُوْنَ» بیاهم تاسوشک کوئ .

**قوله: وَقْرٌ) صَمَمٌ، وَأَمَّا الْوِقْرُ الْحِمْلُ:** په آیت کښې دی «وَجَعَلْنَا عَلٰى قُلُوْبِهِمْ اَكِنَّةً اَنْ يَّفْقَهُوْهُ وَفِيْٓ اٰذَانِهِمْ وَقْرًا» او مونږ ددوی په زړونوباندې پردې اچولې دی .دې دپاره چې دوی په دې «قرآن» پوهه نشي او ددوی په غوږونوکښې کوڼوالي دې .

يعنې په آیت کښې د«وقر» معنی ده «صم» کوڼوالي ،بوج ،مطلب دا دې اګرچه دوی «منکرین قرآن» اوري لیکن دحق اوهدایت دخبرونه ګانړه دی دجمهوروپه قرآت کښې هم داسې دی يعنې «بفتح الواو» يوقراءت بکسرالواودې ابوعبیده وائی چې «وقر» بکسرالواوپه معنی کښې دې، بوج،، په دې صورت کښې به معنی وی ددوی په غوږونوکښې بوج دې ډاټ دې چې دخبرې په اوريدوکښې رکاوټ دې.

**قوله: أَسَاطِيرُ) وَاحِدُهَا أُسْطُورَةٌ وَإِسْطَارَةٌ وَهِيَ التُّرَّهَاتُ:** په آیت کریمه کښې دی «يَقُوْلُ الَّذِيْنَ كَفَرُوْٓا اِنْ هٰذَآ اِلَّآ اَسَاطِيْرُ الْاَوَّلِيْنَ» په دې کښې «اساطير» د«اسطورة» یا«استطارة» جمع ده چې تشریح ئې په «ترهات» سره کولې شی «ترهات» د«ترهة» جمع ده ددې معنی باطل راخی نوداساطیرنه مراداباطیل دی «ترهة» په حقیقت کښې هغې وړې لارې ته وائی کومه چې دلوې لارې نه جداشوې وی بیادروغژنې قصې اوباطل داستان دپاره کنایه اخستې شوې ده[1]

**قوله: الْبَأْسَاءُ مِنَ الْبَأْسِ وَيَكُونُ مِنَ الْبُؤْسِ:** فرمائی چې په آیت کریمه «يَقُوْلُ الَّذِيْنَ كَفَرُوْٓا اِنْ هٰذَآ اِلَّآ اَسَاطِيْرُ الْاَوَّلِيْنَ» کښې «باساء» د«باس» نه مشتق دې چې معنی ئې شدت اوسختی ده اوداهم کیدې شی چې «بوس» بالضم نه مشتق وی چې معنی ئې فقیری ده دآیت ترجمه ده بیامونږهغوی په سختئ اوبیمارئ سره اونیول یعنی په تکلیف کښې مو اخته کړل .

**قوله: جَهْرَةً) مُعَايَنَةً:** په آیت کښې دی «قُلْ اَرَءَيْتَكُمْ اِنْ اَتٰىكُمْ عَذَابُ اللّٰهِ بَغْتَةً اَوْ جَهْرَةً هَلْ يُهْلَكُ اِلَّا الْقَوْمُ الظّٰلِمُوْنَ» ته اووایه چې داخواوښائې که په تاسوباندې دالله عذاب ناځاپه راشی یاپټ نودظالمانونه سوابه بل څوک هلاکولې شی.

ابوعبیده د«جهرة» تفسیرکړې دې «معاينة» یعنی دسترګو وړاندې ،ښکاره.

---

[1] عمدة القاري (ج۱۸ص۲۲۲) _

**قوله:** الصُّورُ جَمَاعَةُ صُورَةٍ، كَقَوْلِهِ سُورَةٌ وَسُوَرٌ: په آيت كښې دى (وَلَهُ الْمُلْكُ يَوْمَ يُنْفَخُ فِي الصُّورِ)
ابوعبيده په دې آيت كښې (صور) بفتح الواولوستلې دې اود (صورة) جمع ئې ښودلې ده لكه
څنګه چې د (سورة) جمع (سور) راځي ددې حاصل دادې چې دمړوپه صورتونو كښې به شپلئ
پوهک وهلې شي اوبيابه هغوى ژوندى كړې شى خود جمهورومفسرينو اواكثرومحققينوقول
دادې چې (صُور) دواوپه سكون سره اودواوپه فتحې سره (صورة) جمع دلته مرادنه ده بلكه
دايوښكردې په كوم كښې چې به دقيامت په ورځ حضرت اسرافيل عليه السلام پوک وهى دهغې په
وجه به ټول خلق ژوندى كيږى (۱)

**قوله:** مَلَكُوتٌ مُلْكٌ، مِثْلُ رَهَبُوتٍ خَيْرٌ مِنْ رَحَمُوتٍ، وَيَقُولُ تُرْهَبُ خَيْرٌ مِنْ أَنْ تُرْحَمَ: په آيت كښې دى (وَكَذَٰلِكَ نُرِيٓ إِبْرَٰهِيمَ مَلَكُوتَ السَّمَٰوَٰتِ وَالْأَرْضِ) فرمائى چې په دې آيت
كښې (ملكوت) دملک په معنى دې يعنى بادشاهى اواقتداراعلى ،دلته د فعلوت وزن د
مصدر دمعنى دپاره استعمال شوې دې لكه (رهوت خيرمن رحموت) كښې چې ،،رهبوت،،
او،،رحموت ،،دواړه په مصدرى معنى كښې استعمال شوى دى يعنى چې خلق ستانه
ويريږى دانبه ده چې خلق په تاباندې رحم اوكړى څكه چې رحم دچاسره كولې شى عام
طورديرخلق هغه ته تكليف رسوى اوكه څوک په وقاراورعب كښې اوسى نوڅوک هغه ته
دتكليف رسولواوتنګولو جراءت نشى كولې (۲)

**قوله:** جَنَّ اظلم: په آيت كښې دى (فَلَمَّا جَنَّ عَلَيْهِ الَّيْلُ) نوكله چه شپې هغه باندې تياره
راوسته په دې آيت كښې د(جن)معنى ده (اظلم)تياره كړه په هغه باندې شپه راغله.

**قوله:** (يُقَالُ عَلَى اللَّهِ حُسْبَانُهُ أَيْ حِسَابُهُ، وَيُقَالُ حُسْبَانًا مَرَامِيَ. وَرُجُومًا لِلشَّيَاطِينِ): په آيت كښې دى (وَجَعَلَ الَّيْلَ سَكَنًا وَالشَّمْسَ وَالْقَمَرَ حُسْبَانًا) دباب نصرنه
مصدردې بلكه څنګه چه حساب مصدردې اومطلب دادې چه نمراوسپوږمۍ الله تعالى
دحساب وسيله ګرځولې ده چه خلق ددې په ذريعه دكلونو، مياشتواوورځوحساب كوى.

دحسبان دويم تفسيرپه (مَرَامِيَ. وَرُجُومًا لِلشَّيَاطِينِ) سره شوې دے په (مرامى) د(مرماة) جمع ده يعنى
دغشى ګذارولوآله مطلب دادې چه الله تعالى كواكب حسبان ګرځولې دى يعنى دشيطانانو
دويشتلو ذريعه ئې ګرځولې ده په سورة ملک كښې دى (وَلَقَدْ زَيَّنَّا السَّمَآءَ الدُّنْيَا بِمَصَٰبِيحَ وَجَعَلْنَٰهَا

---

(۱) وفى فيض البارى (ج ٤ص١٨١)_ ان ماقاله ابوعبيده صواب لكنه لاتوافقه اللغة لان الصورة تجمع على صورلاعلى سكون الواووليس الصوربعنى الصورة _

(۲) وفى لامع الدرارى (ج٩ص٨٢) حاصله ان مقام الخشية اعلى وافضل من مقام الرجاء فان الخاشى يتكلف من الاعمال والمشاق مالا يتحمله الراجى فى تعليقاته فان كان الغالب على القلب داء الامت من مكرالله تعالى والاعتراءبه ،فالخوف افضل وان كان الاغلب هو الياس والقنوط من رحمة الله

رُجُوْمًا لِّلشَّیٰطِیْنِ) ددې تفصیل په ،کتاب بدء الخلق، کښې په ﴿باب صفة الشمس والقمر﴾ کښې تیرشوې دې.

**قوله**: (مُسْتَقَرٌّ فِي الصُّلْبِ وَ(مُسْتَوْدَعٌ) فِي الرَّحِمِ): په آیت کښې دی ﴿وَهُوَ الَّذِیٓ اَنْشَاَکُمْ مِّنْ نَّفْسٍ وَّاحِدَةٍ فَمُسْتَقَرٌّ وَّمُسْتَوْدَعٌ﴾ او﴿الله هغه دې چه تاسونې دیوکس ﴿آدم علیه السلام﴾ نه پیداکړې یئ ﴿اوبیائې د توالداوتناسل سلسله جاری کړه﴾ بیایوه ټهکانه ﴿یعنی داوسیدوځائې﴾ دې اویوداامانت کیخودوځائې دې

په آیت کریمه کښې دمستقراومستودع په مراد کښې دمفسرینوکرامواقوال مختلف دی.

﴿مستقرٌّ في الصُّلبِ﴾ په صلب کښې مستقروی. دمستقرمعنی ده دقرارنیولوځائې، یا د سریدو ځائې او﴿مستودع﴾داستیداع نه دې. چه معنی ئې ده امانت کیخودوځائې، دابوعبیده د تفسیر مطابق د مستقر نه مراد دپلار صلب دې اومستودع نه مراددمور رحم دې.

## ۱۲۴- باب (وَعِنْدَهُ مَفَاتِحُ الْغَيْبِ لَا يَعْلَمُهَا إِلَّا هُوَ)

[۴۳۵۱] حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيزِ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ سَعْدٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ سَالِمِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ عَنْ أَبِيهِ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - قَالَ «مَفَاتِحُ الْغَيْبِ خَمْسٌ إِنَّ اللَّهَ عِنْدَهُ عِلْمُ السَّاعَةِ، وَيُنَزِّلُ الْغَيْثَ، وَيَعْلَمُ مَا فِي الأَرْحَامِ، وَمَا تَدْرِي نَفْسٌ مَاذَا تَكْسِبُ غَدًا، وَمَا تَدْرِي نَفْسٌ بِأَيِّ أَرْضٍ تَمُوتُ، إِنَّ اللَّهَ عَلِيمٌ خَبِيرٌ».

## ۱۲۵- باب قَوْلِهِ (قُلْ هُوَ الْقَادِرُ عَلَى أَنْ يَبْعَثَ عَلَيْكُمْ عَذَابًا مِنْ فَوْقِكُمْ) الآيَةَ.

(يَلْبِسَكُمْ) يَخْلِطَكُمْ مِنَ الاِلْتِبَاسِ. (يَلْبِسُوا) يَخْلِطُوا. (شِيَعًا) فِرَقًا.

په آیت کریمه کښې دی. (أَوْ يَلْبِسَكُمْ شِيَعًا وَيُذِيقَ بَعْضَكُمْ بَأْسَ بَعْضٍ) یا به تاسوډلې ډلې کړی اوګډوډ به کړی ،﴿یعنی په مختلفوډلوکښې به موبخپل مینځ کښې مشت وګریوان کړی﴾ اویوته به دبل دجنګ مزه اوڅکوی

فرمائی چه ﴿یلبسکم﴾ معنی ده ﴿یخلطکم﴾ اوداد التباس نه مشتق دې چه معنی ئې اشتباه او اختلاط ده. ﴿ویلبسوا﴾ دباب ضرب په معنی د ﴿یخلطوا﴾ ده یعنی ملاوهل ،خرابول اوفاسد کول ﴿شیعا﴾ په معنی د﴿فوقا﴾ ده کومه چه د﴿فوقة﴾ جمع ده چه معنی ئې فرقه اوډله ده.

[۴۳۵۲] حَدَّثَنَا أَبُو النُّعْمَانِ حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ عَنْ عَمْرِو بْنِ دِينَارٍ عَنْ جَابِرٍ - رضى الله عنه - قَالَ لَمَّا نَزَلَتْ هَذِهِ الآيَةُ (قُلْ هُوَ الْقَادِرُ عَلَى أَنْ يَبْعَثَ عَلَيْكُمْ عَذَابًا مِنْ فَوْقِكُمْ) قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - «أَعُوذُ بِوَجْهِكَ». قَالَ (أَوْ مِنْ تَحْتِ أَرْجُلِكُمْ) قَالَ

«أَعُوذُ بِوَجْهِكَ (أَوْ يَلْبِسَكُمْ شِيَعًا وَيُذِيقَ بَعْضَكُمْ بَأْسَ بَعْضٍ) قَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- «هَذَا أَهْوَنُ». أَوْ «هَذَا أَيْسَرُ». [۶۸۸۳، ۶۹۷۱]

یعني په کوم وخت کښې چه داآیت نازل شواوپه دې کښې داذکراوکړې شوچه دپورته نه به عذاب راشي نو نبی کریم ﷺ دالله جل شانه دپاک ذات په وسیله سره پناه اوغوښتله اوکله چه دا اوفرمائيلې شوچه دښکته نه به عذاب راشي ،ددې نه خسف یعني په زمکه کښې ښخيدل مراد دی نونبی کریم ﷺ دالله دعذاب نه پناه اوغوښتله اوکله چه دا اوفرمائيلې شو چه به تاسو کښې به اختلاف پیدا شی اوبود بل سره به مقابل شی نو نبی کریم ﷺ اوفرمائيل دا اهون (آسان) دې.

**یو اشکال اودهغې جواب**: په دې روایت باندې یواشکال کیږی چه ددې ځائې نه معلومیږی چه ددې امت نه دخسف عذاب پورته کړې شوې دې اوداابن مردویه وغیره په روایت کښې ددې تصریح هم راغلې ده چه دروایت الفاظ دادی ، «دعوت الله ان یرفع عن امتی اربعا فرفع عنهم ثنتین وابی ان یرفع عنهم اثنتین ، دعوت الله ان یرفع عنهم الرجم من السماء والخسف من الارض وان لا یلبسهم شیعا ولا یذیق بعضهم باس بعض ، فرفع الله عنهم الخسف والرجم وابی ان یرفع عن الاخریین» (۱)

امام ترمذی دحضرت عائشې ﷞ حدیث نقل کړې دې. په هغې کښې دی «یکون فی آخر هذه الامة خسف ومسخ وقذف» (۲) ددې نه معلومیږی چه خسف به ښکاره کیږی په ظاهره په دواړو کښې تعارض دې.

ددې جواب دادې چه په دې امت کښې به خسف وی خوپه دې کښې به څوکسان اخته کیږی ټول امت به دخسف په عذاب کښې نه اخته کیږی نو په کومو روایاتو کښې چه دخسف دعذاب نفی کړې شوې ده دهغه نفی دټول امت په اعتبار سره ده اوپه کوموکښې چه دواقع کیدو ذکردې ، نوهغه دڅوکسانو په اعتبار سره دې. (۳)

## ۱۲۶=باب (وَلَمْ يَلْبِسُوا إِيمَانَهُمْ بِظُلْمٍ)

[۴۳۵۳] حَدَّثَنِي مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي عَدِيٍّ عَنْ شُعْبَةَ عَنْ سُلَيْمَانَ عَنْ إِبْرَاهِيمَ عَنْ عَلْقَمَةَ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ -رضي الله عنه- قَالَ لَمَّا نَزَلَتْ (وَلَمْ يَلْبِسُوا إِيمَانَهُمْ بِظُلْمٍ) قَالَ أَصْحَابُهُ وَأَيُّنَا لَمْ يَظْلِمْ فَنَزَلَتْ (إِنَّ الشِّرْكَ لَظُلْمٌ عَظِيمٌ)

## ۱۲۷=باب قَوْلِهِ (وَيُونُسَ وَلُوطًا وَكُلاًّ فَضَّلْنَا عَلَى الْعَالَمِينَ)

[۴۳۵۴] حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ حَدَّثَنَا ابْنُ مَهْدِيٍّ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ قَتَادَةَ عَنْ أَبِي الْعَالِيَةِ

---
(۱) فتح الباری (ج۸ص۲۹۲)_
(۲) سنن الترمذی (ج۲ص۴۲) کتاب الفتن باب الخسف فتح الباری (ج۸ص۲۹۲)_
(۳) فتح الباری (ج۸ص۲۹۲)_

قَالَ حَدَّثَنِي ابْنُ عَمِّ نَبِيِّكُمْ يَعْنِي ابْنَ عَبَّاسٍ - رضي الله عنهما - عَنِ النَّبِيِّ - صلى الله عليه وسلم - قَالَ «مَا يَنْبَغِي لِعَبْدٍ أَنْ يَقُولَ أَنَا خَيْرٌ مِنْ يُونُسَ بْنِ مَتَّى». [ر: ٣٠٦٧]

[٤٣٥٥] حَدَّثَنَا آدَمُ بْنُ أَبِي إِيَاسٍ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ أَخْبَرَنَا سَعْدُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ قَالَ سَمِعْتُ حُمَيْدَ بْنَ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ عَوْفٍ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ - رضي الله عنه - عَنِ النَّبِيِّ - صلى الله عليه وسلم - قَالَ «مَا يَنْبَغِي لِعَبْدٍ أَنْ يَقُولَ أَنَا خَيْرٌ مِنْ يُونُسَ بْنِ مَتَّى». [ر: ٣٢٣٤]

## ١٢٨ = باب قَوْلِهِ (أُولَئِكَ الَّذِينَ هَدَى اللَّهُ فَبِهُدَاهُمُ اقْتَدِهْ).

په آيت كريمه كښې ئې (فَبِهُدَاهُمُ اقْتَدِهْ) فرمانيلى دى ،،فَبِهُمُ اقْتَدِهْ،، ئې نه دې فرمانلى ځكه چه په دې صورت كښې به معنى داوه چه ته دپيغمبرانو ﷺ اتباع اوكړه اودهغوى داتباع نه كامله اتباع مراد ده. نو،،فَبِهُدَاهُمُ اقْتَدِهْ،، ئې اوفرمائيل اودهغوى دسيرت اوهدايت په اقتداء حكم ئې وركړو او د شخصى اتباع حكم ئې نه دې وركړې اودسيرت اوهدايت په اقتداء اوشخصى اقتداء كښې فرق وى، دسيرت اوهدايت داقتداء معنى موافقت ده اوددې وجې دا نه معلوميږى چه ددې نه نبى كريم ﷺ ته دهغوى دپوره اتباع حكم وركولې شى بلكه ثابتيږى ترې چه تاسو دهغوى موافقت اوكړئ.(١)

**د شرائع من قبلنا متعلق يوه فائده:** په دې آيت كښې تنبيه ده چه په اصولى توګه ستاسولار د وړاندينو پيغمبرانو ﷺ نه جداده. دفروعاتواختلاف دهرې زمانې په مناسبت سره او استعداد په اعتبارسره وړاندې هم واقع راروان دې او اوس هم واقع دې په دې كښې څه ،شرائع من قبلنا، هم اعتبار شته په شرط دعدم انكار.(٢)

[٤٣٤٢] حَدَّثَنِي إِبْرَاهِيمُ بْنُ مُوسَى أَخْبَرَنَا هِشَامٌ أَنَّ ابْنَ جُرَيْجٍ أَخْبَرَهُمْ قَالَ أَخْبَرَنِي سُلَيْمَانُ الأَحْوَلُ أَنَّ مُجَاهِدًا أَخْبَرَهُ أَنَّهُ سَأَلَ ابْنَ عَبَّاسٍ أَفِي «ص» سَجْدَةٌ فَقَالَ نَعَمْ. ثُمَّ تَلاَ (وَوَهَبْنَا) إِلَى قَوْلِهِ (فَبِهُدَاهُمُ اقْتَدِهْ) ثُمَّ قَالَ هُوَ مِنْهُمْ. زَادَ يَزِيدُ بْنُ هَارُونَ وَمُحَمَّدُ بْنُ عُبَيْدٍ وَسَهْلُ بْنُ يُوسُفَ عَنِ الْعَوَّامِ عَنْ مُجَاهِدٍ قُلْتُ لاِبْنِ عَبَّاسٍ فَقَالَ نَبِيُّكُمْ - صلى الله عليه وسلم - مِمَّنْ أُمِرَ أَنْ يَقْتَدِيَ بِهِمْ.

په دې باندې به تفصيلى بحث په سورة ،،ص،، كښې انشاء الله راشى.

(. زَادَ يَزِيدُ بْنُ هَارُونَ وَمُحَمَّدُ بْنُ عُبَيْدٍ وَسَهْلُ بْنُ يُوسُفَ عَنِ الْعَوَّامِ عَنْ مُجَاهِدٍ قُلْتُ لاِبْنِ عَبَّاسٍ فَقَالَ نَبِيُّكُمْ - صلى الله عليه وسلم - مِمَّنْ أُمِرَ أَنْ يَقْتَدِيَ بِهِمْ.)

ديزيد بن هارون روايت اسماعيلى موصولانقل كړې دې. دمحمدبن عبيد روايت امام بخارى

(١) فيض البارى (ج ٤ ص ١٨٤)_
(٢) تفسيرعثمانى (١٨٤) _

دسورة،،ص ،،په تفسير كښې موصولا نقل كړې دې اوسهل بن يوسف طريق باندې امام بخارى په كتاب الانبياء كښې موصولانقل كړې دې .[1]

## ۶- باب قَوْلِهِ (وَعَلَى الَّذِينَ هَادُوا حَرَّمْنَا كُلَّ ذِي ظُفُرٍ وَمِنَ الْبَقَرِ وَالْغَنَمِ حَرَّمْنَا عَلَيْهِمْ شُحُومَهُمَا) الآيَةَ.

وَقَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ (كُلَّ ذِي ظُفُرٍ) الْبَعِيرُ وَالنَّعَامَةُ. (الْحَوَايَا) الْمَبْعَرُ. وَقَالَ غَيْرُهُ (هَادُوا) صَارُوا يَهُودًا، وَأَمَّا قَوْلُهُ (هُدْنَا) تُبْنَا. هَائِدٌ تَائِبٌ.

حضرت ابن عباس رضی الله عنهما د(كُلَّ ذِي ظُفُرٍ) تفسير په (الْبَعِيرُ وَالنَّعَامَةُ .) سره كړې دې اوحضرت سعيدبن جبيرفرمائيلى دى چه د(ذى ظفر) نه مراد هغه ځناوردى چه ګوتې ئې جداجداوى جوختې نه وى .[2]

**قوله: (الْحَوَايَا) الْمَبْعَرُ:** په آيت كښې دى ، (أَوِ الْحَوَايَا أَوْ مَا اخْتَلَطَ بِعَظْمٍ) (حوايا) د(حواية،حوية) جمع ده كولموته وائى (مبعر) هغه ځائې ته وائى په كوم كښې چه بچې جمع كيږى يعنى كولمه .

**قوله: (وقال غيره هادوا صاروا يهوادو أَمَّا قَوْلُهُ (هُدْنَا) تُبْنَا . هَائِدٌ تَائِبٌ(** په دې آيت كښې (وَعَلَى الَّذِينَ هَادُوا) نه يهوديان مراددى اوپه سورة عراف كښې دى . انا هدنا اليك[3] كښې (هدنا) په معنى د(تبنا) يعنى توبه ويستلواورجوع كولوده، (هاد الرجل هودا) رجوع كول .توبه ويستل .يهوديانوته ددې وجې يهود وائى چه هغوى دسخى دعبادت نه توبه ويستلې وه . دانوم دمدح په ډول ووخودهغوى دشريعت منسوخ كيدونه پس دمدح معنى دې نه ختمه شوه اوس په منسوخ اوتحريف شده دين اختيار كونكى باندې ديهوديت اطلاق كيږى.

[۴۳۵۷] حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ خَالِدٍ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ يَزِيدَ بْنِ أَبِي حَبِيبٍ قَالَ عَطَاءٌ سَمِعْتُ جَابِرَ بْنَ عَبْدِ اللَّهِ -رضى الله عنهما- سَمِعْتُ النَّبِيَّ -صلى الله عليه وسلم- قَالَ «قَاتَلَ اللَّهُ الْيَهُودَ، لَمَّا حَرَّمَ اللَّهُ عَلَيْهِمْ شُحُومَهَا جَمَلُوهُ ثُمَّ بَاعُوهُ فَأَكَلُوهَا» .وَقَالَ أَبُو عَاصِمٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْحَمِيدِ حَدَّثَنَا يَزِيدُ كَتَبَ إِلَىَّ عَطَاءٌ سَمِعْتُ جَابِرًا عَنِ النَّبِيِّ صلى الله عليه وسلم[ر: ۲۱۲۱]

نبى كريم ﷺ فرمائيلى دى الله تعالى دې يهوديان تباه كړى كله چه الله تعالى په هغوى باندې وازګه حرامه كړه نوهغوى دا ويلې كړه اوبيا به ئې خرڅوله اوهغه روپئ به ئې خوړلې ،د (حمل الشحم) معنى دوازګې ويلې كول دى .داروايت په كتاب البيوع كښې تيرشوې دې .[4]

---

[1]) عمدة القارى (ج ۱۸ص۲۲۷)_

[2]) عمدة القارى (ج ۱۸ص۲۲۷)_

[3]) سورة الاعراف (الكهف :۵۵)_

[4]) كتاب البيوع باب بيع الميتة والاصنام (ج ۱ص۲۹۸)، تعليقات لامع الدرارى (ج ۹ص۸۳)_

## ۱۳۰=باب قَوْلِهِ (وَلاَ تَقْرَبُوا الْفَوَاحِشَ مَا ظَهَرَ مِنْهَا وَمَا بَطَنَ)

[۴۳۵۸] حَدَّثَنَا حَفْصُ بْنُ عُمَرَ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ عَمْرٍو عَنْ أَبِي وَائِلٍ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ-رضی الله عنه- قَالَ «لاَ أَحَدَ أَغْيَرُ مِنَ اللَّهِ، وَلِذَلِكَ حَرَّمَ الْفَوَاحِشَ مَا ظَهَرَ مِنْهَا وَمَا بَطَنَ، وَلاَ شَيْءَ أَحَبُّ إِلَيْهِ الْمَدْحُ مِنَ اللَّهِ، لِذَلِكَ مَدَحَ نَفْسَهُ». قُلْتُ سَمِعْتَهُ مِنْ عَبْدِ اللَّهِ قَالَ نَعَمْ. قُلْتُ وَرَفَعَهُ قَالَ نَعَمْ.[ر: ۴۳۶۱، ۴۹۲۲، ۴۹۲۲، ۶۹۶۸]

وَكِيلٌ حَفِيظٌ وَمُحِيطٌ بِهِ. (..) (قُبُلاً) جَمْعُ قَبِيلٍ، وَالْمَعْنَى أَنَّهُ ضُرُوبٌ لِلْعَذَابِ، كُلُّ ضَرْبٍ مِنْهَا قَبِيلٌ. (زُخْرُفَ) كُلُّ شَيْءٍ حَسَّنْتَهُ وَوَشَّيْتَهُ وَهُوَ بَاطِلٌ فَهُوَ زُخْرُفٌ (وَحَرْثٌ حِجْرٌ) حَرَامٌ وَكُلُّ مَمْنُوعٍ فَهُوَ حِجْرٌ مَحْجُورٌ، وَالْحِجْرُ كُلُّ بِنَاءٍ بَنَيْتَهُ، وَيُقَالُ لِلأُنْثَى مِنَ الْخَيْلِ حِجْرٌ. وَيُقَالُ لِلْعَقْلِ حِجْرٌ وَحِجًى. وَأَمَّا الْحِجْرُ فَمَوْضِعُ ثَمُودَ، وَمَا حَجَّرْتَ عَلَيْهِ مِنَ الأَرْضِ فَهُوَ حِجْرٌ وَمِنْهُ سُمِّيَ حَطِيمُ الْبَيْتِ حِجْرًا، كَأَنَّهُ مُشْتَقٌّ مِنْ مَحْطُومٍ، مِثْلُ قَتِيلٍ مِنْ مَقْتُولٍ، وَأَمَّا حَجْرُ الْيَمَامَةِ فَهُوَ مَنْزِلٌ.

**قوله: (قُبُلاً) جَمْعُ قَبِيلٍ، وَالْمَعْنَى أَنَّهُ ضُرُوبٌ لِلْعَذَابِ، كُلُّ ضَرْبٍ مِنْهَا قَبِيلٌ:** په سورة انعام کښې آيت دې (وَحَشَرْنَا عَلَيْهِمْ كُلَّ شَيْءٍ قُبُلًا) په دې آيت کريمه کښې (قبلا) د(قبيل) جمع ده او قبيل د(قبيلة) جمع ده .دقبيلې معنی ده ډله او جماعت دآيت مطلب دادې که مونږ هر يو څيز ډلې ډلې اوصنف صنف ددوی وړاندې جمع کړو بياهم دوی ايمان نه راوړی.

امام بخاری رحمه الله دلته ددې لفظ معنی دعذاب قسمونه اوانواع کړې ده . خودامعنی دسورة انعام په ذکرشوې آيت کښې صحيح نه ده .البته دالفظ په سورة کهف کښې راغلې دې، هلته ددې معنی دعذاب قسمونه او انواع کړې ده، خودامعنی دسورة انعام په ذکرشوې آيت کښې صحيح نه ده. البته دالفظ په سورة کهف کښې راغلې دې، هلته ددې معنی دعذاب قسمونه اوانواع شوې ده آيت دې .(وَمَا مَنَعَ النَّاسَ أَنْ يُؤْمِنُوا إِذْ جَاءَهُمُ الْهُدَىٰ وَيَسْتَغْفِرُوا رَبَّهُمْ إِلَّا أَنْ تَأْتِيَهُمْ سُنَّةُ الْأَوَّلِينَ أَوْ يَأْتِيَهُمُ الْعَذَابُ قُبُلًا) [1] داسې معلوميږی چه کاتب دسورة کهف ددې لفظ تفسيرپه سورة انعام کښې ذکرکړې دې، [2]

**قوله: (زُخْرُفَ) كُلُّ شَيْءٍ حَسَّنْتَهُ وَوَشَّيْتَهُ وَهُوَ بَاطِلٌ فَهُوَ زُخْرُفٌ):** هغه څيزدې چه ښکلې اوښائسته کړې شی اوپيش کړې شی اوهغه باطل وی خو د هغې د تزئين په وجه د هغې د بطلان د پټولو کوشش کولې شی هغه زخرف دې.

**قوله: (وَحَرْثٌ حِجْرٌ) حَرَامٌ وَكُلُّ مَمْنُوعٍ فَهُوَ حِجْرٌ مَحْجُورٌ:** په آيت کښې دی ((وقالوا هذه انعام

---

[1] الکهف :۵۵)_

[2] اوګورئ تعليقات لامع الدراری (ج۹ص ۸٤). اوګورئ صحيح البخاری باب حديث الانبياء باب قول الله تعالی والی ثمود اخاهم صالحا(ج ۱ص۴۷۸)_

وحرث حجر) د حجر معنی د حرام ده.د فصل څه حصه به داسي وه چه د هغي استعمال به هغوی دخپل خان د پاره حرام گنړله او هغه حصه به ئي د بتانو په نوم گرځوله نو دا د هغې بيان کيږی او هر هغه ځيز چه هغه ممنوع گرځولي شوي وی نو هغي ته حجر او محجور وئيلي شي او هره هغه آبادی چه ته ئي جوړه کړي هغي ته هم حجر وائی ځکه چه جوړولو نه پس د نورو خلقوهغي ته داخليدل ممنوع شی.او اسپي ته هم حجر وائي ځکه چه هلته هم د هغي مالك دا کوشش کوی چه عام اس د دې سره وطي اونکړی نو هلته هم ممنوعيت موجوديږی.اکثرد اسپې د وطی کولو دپاره د خاص اس انتخاب کولي شي.
عقل ته هم حجروئيلي شی ځکه چه دا هم د بدو کارونو نه منع کول کوی. او حجر د قوم ثمود د علاقي نوم هم دې او په کومه زمکه چه ته ننبه اولگوي او د گيرچاپيره نه ئي جدا او محفوظ کړي چه څوك هغي ته نه داخليږی. د زمکي داسي حصي ته هم حجر وائی. او د بيت الله حطيم شريف ته هم حجر وئيلي شي ځکه چه ددې نه ئې هم ديوال تاؤ کړې دې او راگير کړې ئي دي. لکه چه حطيم د محطوم نه مشتق دې او د محطوم نه مقصود دا دې چه د مفهوم په اعتبار سره چه څه د محطوم مطلب دي هم هغه د حطيم مطلب دي. په مفهوم کښي يوشان والي او مناسبت بيانول مقصود دي. د لفظ د بل لفظ نه استخراج مقصود نه دي.لکه د قتيل په باره چه وئيلي شی چه دا د مقتول نه مشتق دې .

حَجرالیمامة (د حا په فتحي سره) د يو منزل نوم دې.
امام بخاری رحمه الله هم دا تفصيل د حضرت صالح علیه السلام په واقعه کښي هم ذکر کړي دي.[1]

## ۱۳۱_ باب قَوْلِهِ (هَلُمَّ شُهَدَاءَكُمُ) [۱۵۰]

لُغَةُ أَهْلِ الحِجَازِ هَلُمَّ لِلْوَاحِدِ وَالاِثْنَيْنِ وَالجَمِيعِ

## ۱۳۲_ باب (لاَ يَنْفَعُ نَفْسًا إِيمَانُهَا) [۱۵۸]

[۴۲۵۹] [2] حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَاحِدِ حَدَّثَنَا عُمَارَةُ حَدَّثَنَا أَبُو زُرْعَةَ حَدَّثَنَا أَبُو هُرَيْرَةَ رضی الله عنه قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- «لاَ تَقُومُ السَّاعَةُ حَتَّى تَطْلُعَ الشَّمْسُ مِنْ مَغْرِبِهَا، فَإِذَا رَآهَا النَّاسُ آمَنَ مَنْ عَلَيْهَا، فَذَاكَ حِينَ لاَ يَنْفَعُ نَفْسًا إِيمَانُهَا، لَمْ تَكُنْ آمَنَتْ مِنْ قَبْلُ».

---

[1] اوگورئ: صحيح البخاری باب احاديث الانبياء، باب قول الله تعالى : والى ثمود اخاهم صالحاً.، ۴۷۸/۱۱-
[2] اخرجه مسلم فی کتاب الايمان، باب: بيان الزمن الذی لا يقبل فيه الايمان رقم الحديث: ۱۵۷، واخرجه البخاری فی کتاب الفتن، رقم الحديث: ۷۱۲۰ (مع الفتح) واخرجه البخاری فی کتاب الرقاق، رقم الحديث: ۶۵۰۶ وفی کتاب التوحيد، واخرجه ابوداؤد فی کتاب الملاحم، باب حسر الفرات عن كنز، رقم الحديث: ۴۳۱۳، واخرجه الترمذی فی کتاب الفتن، باب ما جاء فی قتال الترک، رقم الحديث: ۲۲۱۵، واخرجه ابن ماجه فی کتاب الفتن، باب طلوع الشمس من مغربها، رقم الحديث: ۴۰۶۸ ـ

[۴۳۶۰] حَدَّثَنِي إِسْحَاقُ أَخْبَرَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ أَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ عَنْ هَمَّامٍ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ - رضي الله عنه - قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - «لَا تَقُومُ السَّاعَةُ حَتَّى تَطْلُعَ الشَّمْسُ مِنْ مَغْرِبِهَا فَإِذَا طَلَعَتْ وَرَآهَا النَّاسُ آمَنُوا أَجْمَعُونَ، وَذَلِكَ حِينَ لَا يَنْفَعُ نَفْسًا إِيمَانُهَا». ثُمَّ قَرَأَ الآيَةَ..... ﴿يَوْمَ يَأْتِي بَعْضُ آيَاتِ رَبِّكَ لَا يَنْفَعُ نَفْسًا إِيمَانُهَا لَمْ تَكُنْ آمَنَتْ مِنْ قَبْلُ أَوْ كَسَبَتْ فِي إِيمَانِهَا خَيْرًا﴾

په کوم وخت کښې چې به د مغرب د طرفه نمر راخيژي او خلق به هغه اوګوري نو په زمکه چه څومره خلق دي هغوی ټول به ايمان راوړي خو په هغه وخت کښې به د هغوی ايمان راوړل چه د وړاندې نه مؤمن نه وي، مفيد به نه وي، او يا چا چه د وړاندې نه څه نيک اعمال نه وي کړي نو اوس چه د مغرب د طرف نه نمر راوخيژي د هغه نيک اعمال کول به د هغه د ايمان د پاره فائده مند نه وي. علامه زمحشري ددې آيت نه د معتزلو په دې عقيده باندې استدلال کړې دې چه ايمان د عمل صالح نه بغير مفيد نه دې او کافر او مرتکب د ګناه کبيره دواړه به مخلد في النار وي. په تفسير کشّاف کښې فرمائي «فلم يفرق كما ترى بين النفس الكافرة اذا آمنت في غير وقت الايمان وبين النفس التي آمنت في وقته ولم تكسب خيراً، ليعلم ان قوله «الَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ» جمع بين قرينتين، لا ينبغي أن تنفك إحداهما عن الاخرى حتى يفوز صاحبهما ويسعد، وإلا فالشقوة والهلاك» [۱] د علامه زمحشري د استدلال حاصل دا دې چه طلوع شمس من الغرب نه وړاندې چه چا ايمان نه وي راوړې او اوس د دې نه پس ايمان راوړي. نو د هغه ايمان به مفيد نه وي. دغه شان ددې نه وړاندې چه چا ايمان راوړې وي خو نيک اعمال ئې نه وي کړي نو هم د هغه ايمان د هغه د پاره مفيد نه دې. د نمر راختلو نه پس ايمان غيرنافع، او د نمر راختو نه وړاندې ايمان د نيکو اعمالو نه بغير مفيد نه دې. د هغوی په نيز تقدير د عبارت داسې دې، ﴿يَوْمَ يَأْتِي بَعْضُ آيَاتِ رَبِّكَ لَا يَنْفَعُ نَفْسًا إِيمَانُهَا لَمْ تَكُنْ آمَنَتْ مِنْ قَبْلُ أَوْ كَسَبَتْ فِي إِيمَانِهَا خَيْرًا﴾

**د ايت کريمه نه د معتزله په عقيده باندې د علامه زمحشري استدلال او دهغې رد:** د علامه زمحشري ددې استدلال نه مختلف جوابونه ورکړې شوي دي.

① مولانا انورشاه کشميري رحمه الله فرمائي چه په آيت کريمه کښې کلمه د (او) د نفي په سياق کښې واقع شوې ده او تقدير د آيت دا دې قوله ﴿يَوْمَ يَأْتِي بَعْضُ آيَاتِ رَبِّكَ لَا يَنْفَعُ نَفْسًا إِيمَانُهَا لَمْ تَكُنْ آمَنَتْ مِنْ قَبْلُ أَوْ كَسَبَتْ فِي إِيمَانِهَا خَيْرًا﴾

په دې کښې د ايمان او عمل صالح دواړو نفي شوې ده چه چا سره ايمان او عمل صالح دواړه نه وي نو د طلوع الشمس من المغرب نه پس که هغه ايمان راوړي نو د هغه ايمان د هغه د پاره مفيد نه دې. [۲]

---

[۱] تفسير كشاف (۲/۸۲) تفسير سورة الانعام)-

[۲] فيض البارى (۴/۱۸۲ و ۱۸۳) قال الشيخ بدر عالم الميرتهى فى حاشية البدرالسارى الى فيض البارى قلت: وحينئذ لا بد من بيان نكتة للتعرض الى خصوص هذا اليوم فان...[بقيه حاشيه په راروانه صفحه.

④ اکثر حضرات فرمائی چه په آیت کښې لف و نشر مرتب دي. په لف کښې اجمال پرېخودې شوې دي او په نشر کښې دواړه اجزاء ذکر کړې شوې دی.
د آیت تقدیر دادې قوله ﴿يَوْمَ يَأْتِي بَعْضُ آيَاتِ رَبِّكَ لَا يَنفَعُ نَفْسًا إِيمَانُهَا لَمْ تَكُنْ آمَنَتْ مِن قَبْلُ أَوْ كَسَبَتْ فِي إِيمَانِهَا خَيْرًا﴾ یعنی په کومه ورځ چه به ستا د رب د بعضې نښنو ظهور اوشي نو هغه نفس ته به ایمان څه نفع ورنکړي چا چه وړاندې ایمان نه وي راوړې او نه به د هغه چا عمل مفید وي چا چه وړاندې د نیکۍ څه کار نه وي کړې مطلب ئې دا دې چه د طلوع الشمس من المغرب نه پس به نه ایمان مفید وي او نه به عمل صالح مفید وي. په آیت کښې د ایمان او عمل صالح د غیر مفید کېدو تعلق د طلوع شمس من المغرب نه روستو زمانې پورې متعلق دې. نو د طلوع شمس نه وړاندې په ایمان باندې چه د عمل صالح نه بغیر وي د غیرمفید کېدو باندې استدلال کول صحیح نه دی.[1]
**فائده:** علامه عثمانی رحمه الله لیکي، کله چه د الله اراده اوشي چه موجوده نظام درهم برهم کړي نو د موجوده قوانین طبعیه خلاف به ډېر عظیم الشان خوارق واقع شي په هغې کښې یو طلوع الشمس من مغربها دې. او په دې حرکت مقلوبې کښې دې طرف ته اشاره ده چه کوم قوانین قدرت او نوامیس طبعیه د دنیا په موجودګۍ کار کونکې وو د هغې د میعاد ختمیدو وخت راغلې دې لکه چه د دغه وخت د عالم کبیر د نزع او د روح وتلو وخت شروع شوې دې او لکه څنګه چه د عالم صغیر (انسان) دځنکدن په وخت کښې ایمان او توبه مقبول نه وي دغه شان طلوع الشمس من المغرب نه پس به هم د مجموعه عالم په حق کښې هم دا حکم وي.
په بعض روایاتو کښې دې سره د خروج دجال او خروج دابه وغیره بیان شوې دي د هغې روایاتو نه مراد دا دې چه د توبې دروازه به هله بندیږي چه د دې ټولو نښنو مجوعه متحقق شي او دا به هله کیږي چه طلوع الشمس من المغرب هم متحقق شي. جدا جدا په هره یوه نښه باندې حکم نه متفرع کیږي.[2]

## باب: تفسير سورة الأَعْرَافِ

قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ وَرِيَاشًا الْمَالُ (الْمُعْتَدِينَ) فِي الدُّعَاءِ وَفِي غَيْرِهِ. (عَفَوْا) كَثُرُوا وَكَثُرَتْ أَمْوَالُهُمْ (الْفَتَّاحُ) الْقَاضِي (افْتَحْ بَيْنَنَا) اقْضِ بَيْنَنَا. (نَتَقْنَا) رَفَعْنَا (انْبَجَسَتْ) انْفَجَرَتْ (مُتَبَّرٌ) خُسْرَانٌ (آسَى) أَحْزَنُ (تَأْسَ) تَحْزَنْ.
وَقَالَ غَيْرُهُ (مَا مَنَعَكَ أَنْ لَا تَسْجُدَ) يَقُولُ مَا مَنَعَكَ أَنْ تَسْجُدَ (يَخْصِفَانِ) أَخَذَا الْخِصَافَ مِنْ

---

...بقیه ازحاشیه گذشته] عدم النفع عندالخلوعن الایمان والاعمال عام لا اختصاص له بیوم دون یوم، ولم یتفق لی فیه مراجعة الی الشیخ (البدرالساری ۴/۱۸۳)-
[1] وانظرالانتصاف علی الکشاف (۲/۸۲) وروح المعا نی (۵/۱۲۶) -
[2] تفسیر عثمانی (۱۹۹)-

وَرَقِ الْجَنَّةِ، يُؤَلِّفَانِ الْوَرَقَ، يَخْصِفَانِ الْوَرَقَ بَعْضَهُ إِلَى بَعْضٍ . (سَوْآتِهِمَا) كِنَايَةٌ عَنْ فَرْجَيْهِمَا، (وَمَتَاعٌ إِلَى حِينٍ) هَا هُنَا إِلَى الْقِيَامَةِ، وَالْحِينُ عِنْدَ الْعَرَبِ مِنْ سَاعَةٍ إِلَى مَا لاَ يُحْصَى عَدَدُهَا،

الرِّيَاشُ وَالرِّيشُ وَاحِدٌ وَهُوَ مَا ظَهَرَ مِنَ اللِّبَاسِ.

(قَبِيلُهُ) جِيلُهُ الَّذِي هُوَ مِنْهُمْ. (ادَّارَكُوا) اجْتَمَعُوا،

وَمَشَاقُّ الإِنْسَانِ وَالدَّابَّةِ كُلُّهُمْ يُسَمَّى سُمُومًا وَاحِدُهَا سَمٌّ وَهِيَ عَيْنَاهُ وَمَنْخِرَاهُ وَفَمُهُ وَأُذُنَاهُ وَدُبُرُهُ وَإِحْلِيلُهُ. (غَوَاشٍ) مَا غُشُّوا بِهِ. (نُشُرًا) مُتَفَرِّقَةً. (نَكِدًا) قَلِيلاً (يَغْنَوْا) يَعِيشُوا (حَقِيقٌ) حَقٌّ. (اسْتَرْهَبُوهُمْ) مِنَ الرَّهْبَةِ (تَلَقَّفُ) تَلْقَمُ. (طَائِرُهُمْ) حَظُّهُمْ. طُوفَانٌ مِنَ السَّيْلِ وَيُقَالُ لِلْمَوْتِ الْكَثِيرِ الطُّوفَانُ. الْقُمَّلُ الْحُمْنَانُ يُشْبِهُ صِغَارَ الْحَلَمِ. عُرُوشٌ وَعَرِيشٌ بِنَاءٌ (سُقِطَ) كُلُّ مَنْ نَدِمَ فَقَدْ سُقِطَ فِي يَدِهِ. الأَسْبَاطُ قَبَائِلُ بَنِي إِسْرَائِيلَ. (يَعْدُونَ فِي السَّبْتِ) يَتَعَدَّوْنَ لَهُ يُجَاوِزُونَ تَعْدُ تُجَاوِزْ. (شُرَّعًا) شَوَارِعَ (بَئِيسٍ) شَدِيدٍ، (أَخْلَدَ) قَعَدَ وَتَقَاعَسَ (سَنَسْتَدْرِجُهُمْ) نَأْتِيهِمْ مِنْ مَأْمَنِهِمْ كَقَوْلِهِ تَعَالَى (فَأَتَاهُمُ اللَّهُ مِنْ حَيْثُ لَمْ يَحْتَسِبُوا) (مِنْ جِنَّةٍ) مِنْ جُنُونٍ. (فَمَرَّتْ بِهِ) اسْتَمَرَّ بِهَا الْحَمْلُ فَأَتَمَّتْهُ (يَنْزَغَنَّكَ) يَسْتَخِفَّنَّكَ، طَيْفٌ مُلِمٌّ بِهِ لَمَمٌ وَيُقَالُ (طَائِفٌ) وَهُوَ وَاحِدٌ (يَمُدُّونَهُمْ) يُزَيِّنُونَ. (وَخِيفَةً) خَوْفًا وَخُفْيَةً مِنَ الإِخْفَاءِ، وَالآصَالُ وَاحِدُهَا أَصِيلٌ مَا بَيْنَ الْعَصْرِ إِلَى الْمَغْرِبِ كَقَوْلِهِ (بُكْرَةً وَأَصِيلاً). (الفرقان)

## سُورَةُ الأَعراف

**قوله: قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ وَرِيَاشًا الْمَالُ:** سوره اعراف کښې دي، قَدْ أَنْزَلْنَا عَلَيْكُمْ لِبَاسًا يُوَارِي سَوْآتِكُمْ وَرِيشًا: رياشا جمع د ريش ده. د جمهورو قرآءت سَوْآتِكُمْ وَرِيشًا : دي. [1] د رياشايو تفسير مال سره کړې شوي دي او دويم تفسير په لباس سره شوي دي چه وړاندي راځي.

**قوله: إِنَّهُ لاَ يُحِبُّ الْمُعْتَدِينَ فِي الدُّعَاءِ وَفِي غَيْرِهِ:** آيت مبارك کښې دی، ، ادْعُوا رَبَّكُمْ تَضَرُّعًا وَخُفْيَةً إِنَّهُ لاَ يُحِبُّ الْمُعْتَدِينَ، ، اعتداء د حد نه زياتي کونکی ته وائي . اعتداء في الدعاء الله تعالی ته خوښه نه ده، په دعا کښي اعتداء دا ده چه انسان محالات او د ناممکن څيزونو دعا کوی .مثلاً د نبوت سوال کول، يا د فرښتي جوړيدو دعا کول. دغه شان په دعا کښي ډير قيودات لګول هم په اعتداء داخل دی. امام ابن ماجه رحمه الله يو حديث نقل کړي دي په کوم کښي چه ددي ممانعت شوي دي. د روايت الفاظ دا دی: أَنَّ عَبْدَ اللهِ بْنَ مُغَفَّلٍ سَمِعَ ابْنَهُ يَقُولُ اللَّهُمَّ إِنِّي أَسْأَلُكَ الْقَصْرَ الأَبْيَضَ عَنْ يَمِينِ الْجَنَّةِ إِذَا دَخَلْتُهَا. فَقَالَ أَيْ بُنَيَّ سَلِ اللهَ الْجَنَّةَ وَعُذْ بِهِ مِنَ النَّارِ فَإِنِّي سَمِعْتُ

---

[1] عمدة القاري: ۱۸\۲۳۱)

رَسُوْلَ اللهِ۔صلی اللہ علیہ وسلم۔يَقُولُ سَيَكُونُ قَوْمٌ يَعْتَدُونَ فِي الدُّعَاءِ: (۱)
دغه شان په دعا کښې شور او رفع صوت اوکړی چه مونځ گذارو ته او ذکر کونکو ته پریشانی وی نو دا هم په اعتداء فی الدعاء کښې داخل دی.

**قوله: عَفَوْا كَثُرُوا وَكَثُرَتْ أَمْوَالُهُمْ:** ثُمَّ بَدَّلْنَا مَكَانَ السَّيِّئَةِ الْحَسَنَةَ حَتَّى عَفَوْا،، یعنی مونږ د بد حالئ په ځائې خوشحالی بدله کړه. تر دې چه ډیر لوئي شو یعنی ښه ترقی ئې اوکړه، فرمائی ((عفوا)) معنی ډیر شو او د هغوی مالونه زیات شو.

**قوله: الْفَتَّاحُ الْقَاضِي افْتَحْ بَيْنَنَا اقْضِ بَيْنَنَا:** آیت کښې دی رَبَّنَا افْتَحْ بَيْنَنَا وَبَيْنَ قَوْمِنَا بِالْحَقِّ،، اې زمونږ پروردگاره ! زمونږ او زمونږ د قوم په مینځ کښې فیصله اوکړه.

**قوله: وَإِذْ نَتَقْنَا الْجَبَلَ اي رفعنا:** آیت مبارك کښې دی، وَإِذْ نَتَقْنَا الْجَبَلَ فَوْقَهُمْ كَأَنَّهُ ظُلَّةٌ،، او کله چه مونږ د هغوی د پاسه غر راوچت کړو لکه چه هغه چهترئي ده.((نَتَقْنَا)) معنی ده رفعنا ای مونږ اوچت کړو.

**قوله: انْبَجَسَتْ: انْفَجَرَتْ:** آیت مبارك کښې دی اضْرِبْ بِعَصَاكَ الْحَجَرَ فَانْبَجَسَتْ مِنْهُ اثْنَتَا عَشْرَةَ عَيْنًا: یعنی په کاڼړی باندې خپله همسا اووهه، نو د دې کاڼړی نه دولس چینې روانې شولې انبجست په معنی د انفجرت دې یعنی جاری شوې.

**قوله: مُتَبَّرٌ: خُسْرَانٌ:** آیت کښې مبارك دی،،، إِنَّ هَؤُلَاءِ مُتَبَّرٌ مَا هُمْ فِيهِ: یعنی دا خلق چه په کومه طریقه کښې لګیا دی خسارې والا دی (یعنی دا خلق به تباه کړې شی) متبرٌ په معنی د خُسرانٌ سره دې.

**قوله: آسَى اي أَحْزَنُ: تَأْسَ اي تَحْزَنْ:** آیت مبارك کښې دی،،، فَكَيْفَ آسَى عَلَى قَوْمٍ كَافِرِينَ: نو څنګه (یعنی ولې) غم اوکړم د کافر قوم. آسَی د واحد متکلم صیغه ده په معنی د أحزنُ سره. د حُزن معنی خفګان کول، هم په دې مناسبت سره دویم لفظ تأس په معنی د تحزن ذکر کړې شوې دې،سره ددې چه دا لفظ دې سورة کښې نه دې بلکه سورة مائده کښې دې: ''فَلَا تَأْسَ عَلَى الْقَوْمِ الْفَاسِقِينَ''

**قوله: وَقَالَ غَيْرُهُ: مَا مَنَعَكَ أَلَّا تَسْجُدَ يَقُولُ: ما منعك أن تسجد:** آیت کښې دی مَا مَنَعَكَ أَلَّا تَسْجُدَ إِذْ أَمَرْتُكَ،، بعض حضراتو په کښې،، لَا،، زائده ګڼړلې ده. په دې سورة کښې به ترجمه دا وی: کوم څیز ته د سجدې کولو نه منع کړې سره ددې چه ما پخپله تا ته حکم درکړو. او بعض حضراتو،، لَا،، زائده نه ده منلې. هغوی فرمائی چه دا،،لَا،، د نفی د تاکید د پاره ده چه د ،،منعك،، نه په پوهه کښې راځی نو په دې صورت کښې به ترجمه دا وی: کوم څیز ته منع

(۱) الحديث اخرجه ابن ماجه فی سننه فی كتاب الدعاء باب كراهية الاعتداء فی الدعاء رقم الحديث: ۳۸۶۴

كړي چه ته سجده نه كوي كله چه ما تا ته حكم دركړو.

قوله: يَخْصِفَانِ أَخَذَا الْخِصَافَ مِن وَرَقِ الْجَنَّةِ يُؤَلِّفَانِ الْوَرَقَ يَخْصِفَانِ الْوَرَقَ بَعْضَهُ إِلَىٰ بَعْضٍ: آيت مبارك كښې دى، فَلَمَّا ذَاقَا الشَّجَرَةَ بَدَتْ لَهُمَا سَوْآتُهُمَا وَطَفِقَا يَخْصِفَانِ عَلَيْهِمَا مِن وَرَقِ الْجَنَّةِ، يعنى چه كله دي دواړو هغه وُونه اُوڅكله نو د دواړو سَتَر شوى بدنونه د يو بل په وړاندي ښكاره شو، (ځكه چه د جنت لباس د هغه عمل په وجه كوز كړي شو) او هغوى په خپلو اندامونو باندي پاڼړي كيخودل شروع كړي. پاڼړي به ئي يو ځائي كولي او يو بل سره به ئي ميلاوولي او ده ستر د پاره به ئي د بدن په پټو حصو باندي كيخودلي. ((خصف الشيئ على الشيئ)) اينخلول، (خصاف خصفة) جمع ده ((خصفة)) د كهجورو د پاڼړو نه جوړه شوي توكرني زنبيل وغيره ته وائي.

قوله: (وَمَتَاعٌ إِلَىٰ حِينٍ) هو هاهنا إلى يوم القيامة، والحين عند العرب من ساعة إلى ما لا يحصى عدده: وَلَكُمْ فِي الْأَرْضِ مُسْتَقَرٌّ وَمَتَاعٌ إِلَىٰ حِينٍ» په دي كښې، حين، د قيامت په معنى كښې دي، د حين لفظ د يوې لحظې نه واخله د غير محصور مودي پوري استعماليږي.

قوله: ادَّارَكُوا: اجْتَمَعُوا: آيت مبارك كښې دى، كُلَّمَا دَخَلَتْ أُمَّةٌ لَّعَنَتْ أُخْتَهَا حَتَّىٰ إِذَا ادَّارَكُوا فِيهَا جَمِيعًا» كښې چه هم يوه ډله (د كافرانو) دوزخ كښې داخله شي د خپل خان په شان بله ډله باندي به لعنت كوى تر دي چه كله به هغه (دوزخ) كښې ټول راجمع كړي شى.

فرمائى د ((ادار كوا)) معنى ((اجتمعوا)) ده.

قوله: وَمَشَاقُّ الْإِنسَانِ وَالدَّابَّةِ كُلُّهُمْ يُسَمَّىٰ سُمُومًا وَاحِدُهَا سَمٌّ: آيت مبارك كښې دى، حَتَّىٰ يَلِجَ الْجَمَلُ فِي سَمِّ الْخِيَاطِ، فرمائى چه په انسان او ځناورو ټولو كښې چه دننه كومه سوړه ده هغي ته سموم وائي ددي مفرد سم دي. د انسان سترګه، د پوزي سوړي، غوږ او وړاندي روستو ته سموم وائي.

قوله: (غَوَاشٍ) مَا غُشُّوا بِهِ: آيت مبارك كښې دى، لَهُم مِّن جَهَنَّمَ مِهَادٌ وَمِن فَوْقِهِمْ غَوَاشٍ، ((غواش)) د، غاشية، جمع ده. هغه څيز كوم سره چه بل څيز پټ كړي شى. يعنى پرده وغيره

قوله: نُشُرًا أي متفرقة: وَهُوَ الَّذِي يُرْسِلُ الرِّيَاحَ بُشْرًا بَيْنَ يَدَيْ رَحْمَتِهِ» د جمهورو قرأة ((بُشْرًا بَيْنَ يَدَيْ رَحْمَتِهِ)) دي. امام بخارى رحمه الله، نُشُرًا، والا قرأة نقل كړي دي. په دي صورت كښې به ترجمه داسي وى، او الله هغه ذات دي چه د باران رحمت نه وړاندي هوا ګاني راليږى.

قوله: نَكِدًا: قَلِيلًا: آيت مبارك كښې دى، وَالَّذِي خَبُثَ لَا يَخْرُجُ إِلَّا نَكِدًا، او كومه زمكه چه خرابه ده د هغي پيدا وار كم راوځى. په دي كښې دَ ((نكد)) معنى قليل ده،

قوله: يَغْنَوْا: يَعِيشُوْا: آيت مبارك كښي دى:، الَّذِينَ كَذَّبُوا شُعَيْبًا كَأَن لَّمْ يَغْنَوْا فِيهَا،، چا چه د شعيب عليه السلام تکذيب کړي وو ((يعنى د هغوى داسي حال شو)) لکه چه په هغه کورونو کښي چرته اوسيدلي هم نه وو. د ((يَغْنَوْا)) معنى د ژوندون او ژوند تيرول دى.

قوله: حَقِيقٌ: حَقٌّ: آيت مبارك كښي دى:، وَقَالَ مُوسَىٰ يَا فِرْعَوْنُ إِنِّي رَسُولٌ مِّن رَّبِّ الْعَالَمِينَ حَقِيقٌ عَلَىٰ أَن لَّا أَقُولَ عَلَى اللَّهِ إِلَّا الْحَقَّ ..... ((الکلي شوي)) يم په ما باندي حق او واجب دا دي چه بغيرد رينښتياؤنه دالله تعالى طرف ته هيڅ خبره منسوب نه کړم ((يعنى د دروغونسبت نه کوم)) د ((حَقِيقٌ)) معنى حق ده.

قوله: اسْتَرْهَبُوهُمْ: مِنَ الرَّهْبَةِ: آيت مبارك كښي دى:، فَلَمَّا أَلْقَوْا سَحَرُوا أَعْيُنَ النَّاسِ وَاسْتَرْهَبُوهُمْ،، کله چه خلقو ((جادوګرو خپلي رسئي او لرګى)) اوغورزول نو د خلقو نظر بندى ئي اوکړه او په هغوى باندي ئي يره شروع کړه. ((اسْتَرْهَبُوهُمْ)) د،، رهبة،، نه مشتق دي د کوم معنى چه ويره ده.

قوله: تَلْقَفُ: تَلْقَمُ: آيت مبارك كښي دى،، فَإِذَا هِيَ تَلْقَفُ مَا يَأْفِكُونَ،، دي آيت كښي ((تلقف)) ((تلقم)) په معنى دي. يعنى نورئي جوړول او تيرول. . .

قوله: طَائِرُهُمْ: حَظُّهُمْ: آيت مبارك كښي دى:، الا إِنَّمَا طَائِرُهُمْ عِندَ اللَّهِ،، امام بخارى رحمه الله د طائره تفسير په حظ سره کړي دي. د کوم معنى چه حصه او نصيب راځى ليکن اکثرو حضراتو د طائره معنى سپيره والي يا د سپيره والى سبب سره کړي ده.

قوله: وَالْقُمَّلَ: الْحُمْنَانُ يُشْبِهُ صِغَارَ الْحَلَمِ: آيت مبارك كښي دى:، فَأَرْسَلْنَا عَلَيْهِمُ الطُّوفَانَ وَالْجَرَادَ وَالْقُمَّلَ وَالضَّفَادِعَ،، امام بخارى رحمه الله د قُمَّلَ تشريح کړيده چه ددي نه مراد سپګي دى، چه د کُونو په شان وى. حمنان ((د حاء په ضمي سره او د نون په سکوم سره)) د حمنانة جمع ده چه جوکي او کُونى ته وائى. ((الحلم)) واړه چينجي او کُونى ته وائى دا د حملة جمع ده.

قوله: عُرُوشٌ: وَعَرِيشٌ: بِنَاءٌ: آيت مبارك كښي دى:، وَدَمَّرْنَا مَا كَانَ يَصْنَعُ فِرْعَوْنُ وَقَوْمُهُ وَمَا كَانُوا يَعْرِشُونَ،، او مونږ د فرعون او د هغه د قوم جوړي شوي کارخاني او کوم چه هغوى عمارتونه جوړ کړي وو تباه کړل. فرمائى د عروش او د عريش معنى بناء يعنى عمارت او محل دي.

قوله: سُقِطَ: كُلُّ مَنْ نَدِمَ فَقَدْ سُقِطَ فِي يَدِهِ: آيت مبارك كښي دى:، وَلَمَّا سُقِطَ فِي أَيْدِيهِمْ،، کوم سړى چه پښيمانه کيږى د هغه په باره کښي وئيلي کيږى ((سُقِطَ فِي يَدِهِ))

قوله: الْأَسْبَاطُ: قَبَائِلُ بَنِي إِسْرَائِيلَ: آيت مبارك كښي دى:، وَقَطَّعْنَاهُمُ اثْنَتَيْ عَشْرَةَ أَسْبَاطًا أُمَمًا،، مونږ هغوى په دولسو خاندانونو کښي تقسيم کړل او جُدا جُدا ډله مو کړه. د اسباط نه مراد بنى اسرائيل دى ددي واحد سبط دي.

**قوله: يَعْدُونَ: يَتَعَدَّوْنَ لَهُ يُجَاوِزُونَ تَعْدُ تُجَاوِز:** آيت مبارك كښي دي:، ﴿وَاسْأَلْهُمْ عَنِ الْقَرْيَةِ الَّتِي كَانَتْ حَاضِرَةَ الْبَحْرِ إِذْ يَعْدُونَ فِي السَّبْتِ﴾، او تاسو ددې (يهودو) نه ددې كلي د حال تپوس اوكړئ چه د سمندر په غاړه آباد وو، او هغوى د خالى په ورځ د حد نه زياتي كولو، آيت كښي د ((يعدون)) معنى ((يتعدون)) يعنى زياتي كول ده.

**قوله: شُرَّعًا: شَوَارِعَ:** آيت مبارك كښي دي:، ﴿إِذْ تَأْتِيهِمْ حِيتَانُهُمْ يَوْمَ سَبْتِهِمْ شُرَّعًا﴾، د شرعا معنى د شوارع سره كړي شوي ده او دا جمع د شارع ده، د كوم معنى چه د اوبو د پاسه ښكاره كيدونكي يعنى د خيالى په ورځ به كبان ښكاره كيدل او د هغوى مخي ته به راتلل.

**قوله: أَخْلَدَ: قَعَدَ وَتَقَاعَسَ:** آيت مبارك كښي دي:، ﴿وَلَكِنَّهُ أَخْلَدَ إِلَى الْأَرْضِ وَاتَّبَعَ هَوَاهُ﴾، ليكن هغه د دنيا طرف ته مائل شو او د خپل نفسانى خواهش پيروى ئي اوكړه. د ((أخلد)) تفسير ((قعد)) او د ((تقاعس)) سره شويدي. ((قعد عن حاجته)) او ((تقاعس عن الامر)) دواړه معني دي. روستو اخوا شو ((قعود الى الارض)) د دنيا طرف ته ډير ميلان ته كنايه ده. اوس معنى شوه دنيا ئي لازم اونيولا، دنيا طرف ته مائل شو. د ضمير مرجع د اكثر مفسيرينو په نيزد بلعم بن باعورد دي چه يو يهودى عالم وو او اسم اعظم ورته معلوم وو.

**قوله: سَنَسْتَدْرِجُهُمْ: اي نأتيهم من مأمنهم:** آيت مبارك كښي دي:، ﴿سَنَسْتَدْرِجُهُمْ مِنْ حَيْثُ لَا يَعْلَمُونَ﴾، رابه شو مونږ هغوى له د هغه ځائ نه د كوم ځائ نه چه هغوى ته څه خطره نه وي او د هغوى په خيال كښي به هغه ځائ بالكل د امن وي.
الله تعالى حكم په داسي طريقه راغلو چه د كوم ځائي نه د هغوى ګمان هم نه وو، دي آيت سره تشبيه د ناځا پېځ سره دد.[1]

**قوله: مِنْ جِنَّةٍ: مِنْ جُنُونٍ:** آيت مبارك كښي دي:، ﴿أَوَلَمْ يَتَفَكَّرُوا مَا بِصَاحِبِهِمْ مِنْ جِنَّةٍ﴾، آيا دي خلقو په دي خبره كښي غور اونه كړو چه د هغوى ملګرى (يعنى حضور ﷺ) ته هيڅ ليونتوب نيشته. په دي كښي د ((جنة)) تفسير په جنون سره شوي دي.

**قوله: فَمَرَّتْ بِهِ: اسْتَمَرَّ بِهَا الْحَمْلُ فَأَتَمَّتْهُ:**

**د ايت كريمه: هوالذي خلقكم من نفس واحدة وجعل منها زوجها، په تفسير كي د تفسيرد ائمو مختلفي رائي:** دي نه د سورة اعراف دي آيت طرف ته اشاره ده،، ﴿هُوَ الَّذِي خَلَقَكُمْ مِنْ نَفْسٍ وَاحِدَةٍ وَجَعَلَ مِنْهَا زَوْجَهَا لِيَسْكُنَ إِلَيْهَا فَلَمَّا تَغَشَّاهَا حَمَلَتْ حَمْلًا خَفِيفًا فَمَرَّتْ بِهِ فَلَمَّا أَثْقَلَتْ دَعَوَا اللَّهَ رَبَّهُمَا لَئِنْ آتَيْتَنَا صَالِحًا

---

[1] قال الراغب فى المفردات: سنستدرجهم معناه نأخذهم درجة فدرجة و ذالک ادناؤهم من الشئ شيئا فشيئا كالمراقى والمنازل فى ارتقائها ونزولها (او نظر المفردات فى لغات القرآن: ۱٤۸) وقال الالوسى فى تفسير روح المعانى: ۵/۱۲٤ (الجزء التاسع) و استدراجه تعالى اياهم بادرار النعم عليهم مع انهماكهم فى الغي-

لَتَكُونَنَّ مِنَ الشَّاكِرِينَ، فَلَمَّا آتَاهُمَا صَالِحًا جَعَلَا لَهُ شُرَكَاءَ فِيمَا آتَاهُمَا فَتَعَالَى اللَّهُ عَمَّا يُشْرِكُونَ» الله تعالی هغه ذات دي چا چه تاسو د يو تن (حضرت آدم علیه السلام) نه پيدا کړنې او هم د هغه نه ئي د هغه جوړه پيدا کړه، دي د پاره چه هغه د خپلي دي جوړي نه سکون حاصل کړي، بيا چه کله خاوند خپلي بی بي سره نزديکت اوکړو نو هغي ته وړوکي غوندي حمل اوشو، نو هغه دي حمل سره ګرزيده راګرزيده، کله چه هغه درونده شو (او د حمل موده زياته شوه) نو دواړو ښځي او خاوند د الله تعالی نه دعا اوکړه چه د هغوی رب دي که چري تا مونږ ته ښکلي بچي راکړو نو مونږ به ښه شکر کوؤ، نو چه الله تعالی دي دواړو ته نيک بچي ورکړو نو د الله تعالی ورکړي شوي څيز کښي هغه دواړو د الله تعالی د پاره د دي نه ما سوا شريك اوګرځولو، نو الله تعالی خو پاك دي د شرك نه.

آيت مبارك کښي ((نَفْسٍ وَاحِدَةٍ)) نه مراد حضرت آدم علیه السلام دي، او د ((وَجَعَلَ مِنْهَا زَوْجَهَا)) نه حضرت حواء علیها السلام مراد ده. (١)

او وړاندي د ((فَلَمَّا تَغَشَّاهَا حَمَلَتْ حَمْلًا خَفِيفًا)) کښي د مفسرينو دوه رائي دی. بعضې مفسرين فرمائي چه ضمير حضرت آدم علیه السلام او حضرت حواء علیها السلام طرف ته راجع دي، او بعضې مفسرين حضرات فرمائي چه ضمير مطلقًا ښځي او سړی طرف ته راجع دي، او دي نه يو متعين سړي يا ښځه مراد نه دي.

ضمير که مطلقًا د سړي يا ښځي طرف ته راجع وي نو په هغه صورت کښي د آيت په تفسير باندي هيڅ اشکال نه کيږي او مطلب به دا وي چه الله تعالی ټول انسانان د حضرت آدم علیه السلام نه پيدا کړل اوهم د هغه نه د هغوی بی بی حضرات حواء علیها السلام راپيدا کړه د څه مقصد د پاره چه دا وو چه دي نه حضرت آدم علیه السلام ته سکون حاصل شی، بيا دي دواړو نه نسل زوان شو. د الله تعالی ددي خلقت او صنعت عجيبه تقاضه خو دا وه چه اولاد د آدم علیه السلام به د الله تعالی شکرګذار وی او هغه سره به څوك شريك نه ګرځوی ليکن د حضرت آدم علیه السلام غفلت شعار نسلونو معامله ددي نه اُلټه کړه او الله تعالی سره ئي شرك اوکړو. او د شرك تفصيل، «فَلَمَّا تَغَشَّاهَا»، سره داسي بيان کړو چه کله سړی ښځي سره فطری خواهش پوره کړو نو ښځه حامله شو، په شروع شروع کښي چه د حمل بوج نه وو نو ښځه بي تکلفه په آزادئي دي حمل سره ګرځيده. بيا چه کله خيټه لويه شوه نو هله سړی او ښځي دواړو د نيك اولاد دعا اوکړه. کله چه الله تعالی د دوی تمنا پوره کړه نو د شکر په ځائي په شرك کښي مبتلا شو د کوم چه مختلف صورتونه وی. کله عقيده فاسده شي چه دا بچي مونږ له فلانکی ژوندی يا مړ مخلوق راکړي دي، چا په عقيده سره نه نو عملاً د غيرالله طرف ته منسوب کړو او د هغه د نوم نذر او نياز ورکول ئي شروع کړه. او د ماشوم تندي ئي د هغه په وړاندي اولګولو، يا د ماشوم نوم ئي دا

(١) (قال القرطبي في الجامع لاحكام القرآن: ٧/٣٣٧) قال جمهورالمفسرين المراد بالنفس النفس الواحدة آدم وجعل منها زوجها يعني حواء وتفسير البحر المحيط :٤٣٨\٤

كيخودلو چه د هغي نه د شرك اظهار كيږى مثلاً عبدالعزى، عبدالشمس يا بنده على وغيره.
د آيت دا تفسير ډيرو مفسرينو حضراتو كړي دي[1] حافظ ابن كثير رحمه الله په خپل تفسير كښې هم دا تفسير راجع ګرځولي دي[2]. د دې تفسير په رڼا كښې په آيت كښې د شرك او ناشكرئي نسبت عام انسانو طرف ته دې، حضرت آدم عليه السلام اوبى بى حضرت حوا عليها السلام ته نه دي بلكه د هغوى د اولاد نقشه ئې په دې كښې راښكلي ده. د آيت شروع ((هُوَ الَّذِي خَلَقَكُم مِّن نَّفْسٍ وَاحِدَةٍ وَجَعَلَ مِنْهَا زَوْجَهَا لِيَسْكُنَ إِلَيْهَا)) كښې خو د حضرت آدم عليه السلام او بى بى حواء عليها السلام ذكر دي مګر دي نه پس، ,,فَلَمَّا تَغَشَّاهَا،، نه مطلقاً د سړى او ښځې تذكره شروع كړه. په دې تفسير هيڅ اشكال نه كيږى.ليكن ډيرو حضراتو په دې آياتونو كښې بيان كړې شوې قصه د حضرت آدم عليه السلام او بى بى حواء عليها السلام سره مخصوص كړې ده او د دې په تائيد كښې ئې مختلف اقوال نقل كړي دى.
امام احمد بن حنبل رحمه الله په ,,مسند،، كښې يو روايت نقل كړيدي دكوم الفاظ چه دا دى
((حَدَّثَنَا عَبْدُ اللهِ حَدَّثَنِي أَبِي حَدَّثَنَا عَبْدُ الصَّمَدِ حَدَّثَنَا عُمَرُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ حَدَّثَنَا قَتَادَةُ عَنِ الْحَسَنِ عَنْ سَمُرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صلى الله عليه وسلم قَالَ،، لَمَّا حَمَلَتْ حَوَّاءُ طَافَ بِهَا إِبْلِيسُ وَكَانَ لَا يَعِيشُ لَهَا وَلَدٌ فَقَالَ سَمِّيهِ عَبْدَ الْحَارِثِ فَإِنَّهُ يَعِيشُ فَسَمَّوْهُ عَبْدَ الْحَارِثِ فَعَاشَ وَكَانَ ذَلِكَ مِنْ وَحْيِ الشَّيْطَانِ وَأَمْرِهِ،،)[3] يعنى د حضرت حواء عليها السلام به يو بچې هم ژوندې نه پاتې كيدو، ابليس (د نيك مخلوق په شكل كښې) حضرت حواء عليها السلام ته راغلو او ورته ئې اووئيل چه هلك پيدا شو نو د هغه نوم ,,عبدالحارث،، كيږده نو هغه به ژوندې پاتې شى.(حارث د ابليس نوم وو) عبدالحارث (د شيطان بنده) نو حضرت حواء عليها السلام د هغه نوم عبدالحارث كيخودو نو هغه ماشوم ژوندې پاتې شو، آيت مبارك كښې ,,فَلَمَّا تَغَشَّاهَا،، هم دې واقعې طرف ته اشاره ده. په دې صورت كښې ,,فَلَمَّا تَغَشَّاهَا،، ضمير مؤنث حضرت حواء عليها السلام طرف ته راجع كيږى او پوره واقعه د حضرت آدم عليه السلام او حضرت حواء عليها السلام سره متعلق كيږى. ليكن په دې تفسير باندې اشكال كيږى چه په آيت كښې د شرك ارتكاب ذكر دې او حضرات انبياءكرام عليهم السلام معصوم وى نو حضرت آدم عليه السلام د شرك ارتكاب څنګه اوكړو. او هغه خو ابوالانبياء دي، او شرك د هغه د شان عصمت منافى دې؟
ددې دوه جوابونه وركړې شوي دى، يو جواب على سبيل التسليم دې، او يو جواب على سبيل الانكار دي.

① على سبيل الانكار جواب دا دې چه كوم روايتونو نه په دې آياتونو كښې بيان كړې شوې واقعه حضرت آدم عليه السلام او حضرت حواء عليها السلام سره مخصوص كړې ده هغه روايات صحيح نه دى او د مختلفو وجوهاتو په بناء هغه معلول دى. دې كښې بعض خو اسرائليات دى او احمد

[1] (قال القرطبى فى الجامع لاحكام القرآن : ۷\۳۳۷) قال جمهورالمفسرين المراد بالنفس النفس الواحدة آدم وجعل منها زوجها يعنى حواء وتفسير البحر المحيط :۴۳۸\۴ -
[2] (تفسير ابن كثير ۲\۲۷۵)
[3] (مسند امام احمد ۵\۱۱)

رحمه الله چه کوم روایت نقل کړي دي هغه معلول دي. په دي کښي يو علت خو دا دي چه د هغه «حسن عن سمرة رضي الله عنه» په طریق باندي مروی دي او د حضرت حسن بصری رحمه الله سماع د حضرت سمرة بن جندب رضي الله عنه نه مختلفٌ فيه ده.[1] دويم علت ددي په سند کښي دا دي چه دي کښي عمربن ابراهيم دي او عمر بن ابراهيم متكلم فيه راوی دي.[2] دریم علت په دي حديث کښي د موقوف او مرفوع کيدلو کښي اختلاف دي، امام احمد بن حنبل رحمه الله دا مرفوعا نقل کړي دي. ليکن ابن جرير دا موقوفا نقل کړي دي.[3] او څلورم علت دا دي چه دا روایت د حضرت حسن بصری رحمه الله نه نقل دي او حضرت حسن بصری رحمه الله نه پخپله ددي روايت خلاف د آيت ړومنۍ تفسير نقل دي،[4]

② دويم جواب على سبيل التسليم دي. که چري دا روايات صحيح اوګنړلي شي او په آيت کښي بيان کړي شوي قصه حضرت آدم عليه السلام او حضرت حواء عليها السلام سره متعلق اوګرځولي شي نو بيا هم په دي سره دا نه لازميږی چه هغوی حقيقةً د شرك ارتكاب کړي وی، شيخ الاسلام حضرت مولانا شبيراحمد عثمانی رحمه الله فرمائی کله چه ماشوم پيدا شو نو دواړو ورته ،،عبدالحارث،، نوم کيښودلو. ظاهره خبره ده چه په اسماء اعلام کښي لغوی معنی معتبره نه وی خو بيا هم د «عبد» اضافت «حارث» طرف ته دي سره مستلزم نه دي چه ''حارث'' نعوذ بالله معبود اوګنړلي شی، لکه يو ميلمه دوست سړی ته عرب ،،عبدالضيف،، وائی نو د دي

---

[1] (قال سعيد فی ما روی الخزرجی فی خلاصة تذهيب تهذيب الكمال[ ص:۷۷ ] [قال سعيد:لم يسمع من سمرة " و قال المزی فی تهذيب الكمال:۱۲۳ \ ۶] :[ وقال محمد بن سيرين:لم يسمع الحسن من سمرة :] وقال الذهبی فی سيرا علام النبلاء:۵۶۷ \ ٤ : قال يحیٰ القطان: احاديثه عن سمرة، سمعنا انه كتاب: وقال ابن سعد فی طبقاته۷\۱۵۷ :

وقال يحیٰ بن سعيد القطّان فی احاديث سمرة التی يرويها الحسن عنه: سمعنا انه من كتاب: وقال البخاری فی تاريخه الكبير : ۲\۲۹۰ : قال علی المدينی وسماع الحسن من سمرة صحيح: وقال الذهبی فی السير:۵۶۷ \٤ : وقد صح سماعه فی حديث العقيقة وفی حديث النهی عن المثلة من سمرة: وحديث العقيقة اخرجه احمد:۲۲،۱۷،۷ \ ۵، وابو داؤد (۲۸۳۸) وترمذی (۱۵۲۲)

و النسائی (۷\۱٤٤) و حديث النهی عن المثلة اخرجه ابوداؤد(۲٤۲۸) وقال الحافظ ابن حجر فی تهذيب التهذيب (۲\۲٤۹) واما رواية الحسن عن سمرة بن جندب ففی صحيح البخاری سماعا منه لحديث العقيقه.

[2] عمربن ابراهيم وثقه ابن المعين (تهذيب الكمال:۲۷۱ \ ۲۱) وقال ابوحاتم،،يكتب حديثه ولا يحتج به،،(تهذيب الكمال:۲۷۱ \ ۲۱) وفی خلاصةالخزرجی:۲۷۱،،حديثه عن قتادة مضطرب،،وقالالبزار،،ليس هو باالحافظ،،(كشف الستار :۱۱۱۵) وذكره ابن حبان فی الثقات :٤٤٦ \ ۸ وقال : خطی ويخالف وقال الذهبی فی ميزان الاعتدال:۱۷۹ \ ۳،، عمربن ابراهيم عن قتادة عن الحسن عن سمرة، ان النبی صلى الله عليه وسلم قال: كانت حواء لا يعيش لها ولد....... الخ. صححه الحاكم وهو حديث منكر .......

[3] (تفسيرابن كثير: ۲۷٤ \ ۲-)

[4] تفسيرابن كثير: ۲۷٤ \ ۲-)

دا مطلب هیڅ کله هم نه وی چه میلمستیا ورکونکي د میلمه عبادت کوی نو که د عبدالحارث نوم کیخودلو دا واقعه صحیح ده نو دا نشی وئیلي کیدي چه حضرت آدم علیه السلام نعوذبالله حقیقتا د شرك ارتکاب اوکړو، چه د انبیاءکرام د شان عصمت منافی دي. او د ماشوم داسي غیرموزون نوم کیخودل کوم نه چه په ظاهره د شرك بوئ راځی. د نبی معصوم او اوچت شان او د توحید جذبي مناسب نه وو، د قرآن کریم عادت دي چه د انبیاؤ مقربینو وړوکي غوندي لغزش او معمولی غوندي ذلت ((حسنات الابرار سیئات المقربین)) د قاعدي مطابق اکثر په سخت عنوان سره تعبیر کوی، دلته ئي هم د حضرت آدم علیه السلام د مرتبي لحاظ سره دا مو هم شرك تسمیه تغلیظاً په دي الفاظو کښي ادا کړو ((جَعَلَا لَهُ شُرَكَاءَ فِيمَا آتَاهُمَا)) یعنی د هغوی د شان لائق نه وو چه داسي نوم ئي ایخودي وي د کوم نه چه د شرك وهم کیږي. نو حقیقتاً شرك نه دي کیدي شي په دي وجه ((فَقَدْ أَشْرَكَ)) وغیره مختصر عبارت ئي پریخودو او دا اوګود عنوان ((جَعَلَا لَهُ شُرَكَاءَ فِيمَا آتَاهُمَا)) ئي اختیار کړو.[1]

④ امام رازی رحمه الله خو اولاً دا خبره منلي نه ده چه په آیت کښي بیان کړي قصي تعلق د حضرت آدم علیه السلام او حضرت حواء علیها السلام سره دي. او د نه منلو هغه مختلف وجوهات لیکلي دی.

یو خو دا چه په آیت کښي ((فَتَعَالَى اللَّهُ عَمَّا يُشْرِكُونَ)) الفاظ پخپله په دي خبره دلالت کوی چه د شرك کونکي دوه نه وو، پوره یوه ډله وه چه هم د حضرت آدم علیه السلام اولاد کیدي شي.

دویم دا چه دي نه پس آیت کښي ((أَيُشْرِكُونَ مَا لَا يَخْلُقُ شَيْئًا وَهُمْ يُخْلَقُونَ)) په دي کښي لفظ د ،،ما،، استعمال کړي شوي دي چه د غیر ذوی العقول د پاره راځی کوم نه چه معلومیږی چه په آیت کښي په هغه خلقو باندي رد کول مقصود دی چا چه بتان الله (جل جلاله) سره شریك جوړ کړل. د ابلیس لعین د الله (جل جلاله) سره د شریك جوړولو ذکر په دي آیت کښي نیشته.

دریم دا چه حضرت آدم علیه السلام ته د ابلیس ټول نومونه معلوم وو لکه چه (وَعَلَّمَ آدَمَ الْأَسْمَاءَ كُلَّهَا) نه واضح ده او حضرت آدم علیه السلام ته د ابلیس دښمنی او د درګاه رب العزت نه شړلي کیدل ښه معلوم وو، نو ددي سره حضرت آدم علیه السلام د خپل یو بچی نوم عبدالحارث څنګه کیخودي شو؟

څلورم ددي د پاره په توحید باندي ایمان ساتونکی یو عام سړی ته هم که څوك راشی او دا قسم خبره اوکړی د کوم نه چه د شرك بوئ راځی نو هغه به هم دا اونه منی، نو د حضرت آدم علیه السلام په شان جلیل القدر نبی نه د دي خبري صادر کیدل څنګه کیدي شی چه هغه د هغه ابلیس خبره اومنله چه هغه ئي د باغ رضوان نه راؤیستل او د څه په وجه چه هغه د خپل رب (جل جلاله) نه په کلونو پوري د مغفرت دعا غوښتله.[2] د دي وجوهاتو په وجه امام رازی رحمه الله آیت د حضرت آدم علیه السلام او حضرت حواء علیها السلام سره متعلق نه دي منلي چه حضرت آدم علیه السلام او حضرت حواء علیها السلام د شرك ارتکاب کړي دي بلکه په آیت کښي د هغوی طرف ته نسبت کونکو

---

[1] (تفسیر عثمانی:۲۳۲-)
[2] تفسیر کبیر:۸۶\۱۵

باندي رد دي او هغه داسې چه مشركانو به وئيل حضرت آدم علیه السلام او حضرت حواء علیها السلام هم نعوذبالله د بتانو عبادت كولو،نو الله تعالى په مذكور آيت كښې د حضرت آدم علیه السلام او حضرت حواء علیها السلام قصه ذكر كړه او د هغوى قول ئې نقل كړو

(لَئِنْ آتَيْتَنَا صَالِحًا لَنَكُونَنَّ مِنَ الشَّاكِرِينَ) دي نه پس ئې اوفرمائيل (فَلَمَّا آتَاهُمَا صَالِحًا جَعَلَا لَهُ شُرَكَاءَ فِيمَا آتَاهُمَا) دا استفهاميه جمله ده يعنى د ماشوم وركولو نه پس آيا حضرت آدم علیه السلام او حضرت حواء علیها السلام الله تعالى سره شرك اوكړو؟ استفهام انكارى دي يعنى نه. وړاندي فرمائى (فَتَعَالَى اللَّهُ عَمَّا يُشْرِكُونَ) يعنى الله تعالى د دي شرك نه پاك دي كوم چه دا مشركان كوى او حضرت آدم علیه السلام او حضرت حواء علیها السلام طرف ته ئې منسوب كوى نو په دي آيت كښې د حضرت آدم علیه السلام او حضرت حواء علیها السلام نه د شرك نفى ده او په مشركانو باندي رد دي.[1]

۴ بعض حضراتو فرمائيلي دى چه په دي آياتونو كښې د حضرت آدم علیه السلام او حضرت حواء علیها السلام هډو ذكر نيشته نه د آيت په شروع كښې نه د آيت په آخر كښې، مطلب دا دي چه الله تعالى تاسو نه هر يو د يو نفس نه پيدا كړو او د هر نفس نه د پاره د هغه د جنس نه د هغه جوړه پيدا كړه، بيا چه كله دا دواړه د يو بل نه خپل فطرى خواهش پوره كوى

او حمل جوړيږى او د حمل په زمانه كښې ټول اميدونه هم د الله تعالى سره تړلى وى چه هم هغه به صحيح او سالم بچي پيدا كوى ليكن چه كله بچي پيدا شى نو د شكريه د پاره نذر او نياز د غيرالله په نوم باندي كوى، امام رازى رحمه الله د دي تفسير باره كښې فرمائيلى دى ((وهذا جواب فى غاية الصحة والسداد))[2] ليكن علامه آلوسى رحمه الله فرمائيلى دى ((ولا يخفى ان المتبادر من صدرها آدم وحواء، ولا يكاد يفهم غيرهما راسا))[3]

امام بخارى رحمه الله په مذكوره آيت كښې ((فمرت به)) سره تشريح كړيده.((فاستمربها الحمل فاتمته)) يعنى هغه حمل قائم او برقرار وو، بيا ښځي د دي موده پوره كړه د دي تشريح مطابق په معنى كښې قلب دي،،فمرت،، كښې ضمير ښځي طرف ته راجع دي ليكن مراد ترينه د حمل استمرار دي.

علامه آلوسى رحمه الله فرمائى رحمه الله فرمائى ((فمرت به، والمراد: بقيت به كما كانت قبل حيث قامت وقعدت وأخذت وتركت وهو معنى لا غبار فيه))[4] يعنى هغه به حمل سره داسې ګرځيده راګرځيده، كيناسته پاسيده لكه څنګه چه به د حمل نه وړاندي وه.

**قوله: يَنْزَغَنَّكَ: يَسْتَخِفَّنَّكَ:** آيت مبارك كښې دى: ،، وَإِمَّا يَنْزَغَنَّكَ مِنَ الشَّيْطَانِ نَزْغٌ فَاسْتَعِذْ بِاللَّهِ ،،

---

[1] تفسير كبير:۸۷\۱۵

[2] تفسير ابن كثير:۷۸\۱۵

[3] (روح المعانى: ۱٤۱\۵ (الجزء التاسع)

[4] (روح المعانى :۱۳۸\۵(الجزء التاسع)

نو كه چري تا ته د شيطان د طرف نه څه وسوسه راشي نو د الله تعالى پناه غواړه. فرمائي چه «يَنْزَغَنَّكَ» معنى «يَسْتَخِفَنَّكَ» ده. داستخفاف لغوى معنى دة د حق او نيك كار نه اخوا كول او. «اما». كښي. «ا». شرطيه او. «ما». زائده ده. مطلب دا دي كه د شيطان د طرف نه د حق نه اوړيدلو څه وسوسه راشي يعنى غصه راشي نو پناه غواړه.

آيت مبارك كښي دى. «إِنَّ الَّذِينَ اتَّقَوْا إِذَا مَسَّهُمْ طَائِفٌ مِنَ الشَّيْطَانِ». د «طيف» معنى خيال، ليونتوب او غصه. «طيف ملم» په زړه كښي كوزيدونكي خيال كله چه سړى له وسوسي راځي او نيم كړي غوندي ليونتوب وي وائي به «لمم.....لمم» وړي ګناه او نيم ليونتوب ته وائي. امام بخارى رحمه الله د طيف صفت ذكر كړي دي. «به لمم» «ملم طيف ملم» په زړه كښي راتلونكي خيال په انسان باندي شروع كيدونكي ليونتوب. بيا وړاندي فرمائي «به لمم» دا هغه وخت وائي كله چه انسان په وسوسو كښي اخته شي او غلط خيالات هغه پريشانه كوى.

د جمهورو قرأت «طائف» دي. «إِذَا مَسَّهُمْ طَائِفٌ مِنَ الشَّيْطَانِ» امام بخارى رحمه الله فرمائي. وهو واحد د «طائف» او «طيف» دواړو معنى يوه ده. د آيت مبارك مطلب دي چه كوم خلق د الله تعالى نه يريږي او كله هغوى له د شيطان د طرف نه خيال او وسوسه راځي نو هغوى د الله تعالى په ياد كښي لګيا كيږي.[1]

**قوله: يَمُدُّونَهُمْ: يُزَيِّنُونَ:** آيت مبارك كښي دى. «وَإِخْوَانُهُمْ يَمُدُّونَهُمْ فِي الْغَيِّ ثُمَّ لَا يُقْصِرُونَ». د «يَمُدُّونَهُمْ» تشريح «يُزَيِّنُونَ» سره كړي ده، يعنى د ګمراهئي خبري ښائسته كوى او وړاندي پيش كوى،

**قوله: وَخِيفَةً: خَوْفًا وَخُفْيَةً مِنَ الإِخْفَاءِ:** آيت مبارك كښي دى. «وَاذْكُرْ رَبَّكَ فِي نَفْسِكَ تَضَرُّعًا وَخِيفَةً» كښي «خيفة» د ويري په معنى كښي دي او هم د سورة اعراف يو بل آيت كښي دى «ادْعُوا رَبَّكُمْ تَضَرُّعًا وَخُفْيَةً» دلته «خُفْيَةً» د اخفاء نه ماخوذ دي.[2]

**قوله: وَالآصَالُ: وَاحِدُهَا أَصِيلٌ مَا بَيْنَ الْعَصْرِ إِلَى الْمَغْرِبِ كَقَوْلِهِ (بُكْرَةً وَأَصِيلًا):** آيت مبارك كښي دى. «وَدُونَ الْجَهْرِ مِنَ الْقَوْلِ بِالْغُدُوِّ وَالْآصَالِ». فرمائي د «اصال» واحد

---

[1] (قال ابوعبيدة فى قوله: اذا مسهم طائف من الشيطان.. اى لمم. واللمم يطلق على ضرب من الجنون و على صغارالذنوب.حكى بعض اهل العربية ان الطيف والطائف بمعنى واحد. اسند عن ابن عباس. قال: المة من الشيطان (فتح البارى:۸\۳۰۱)

[2] (وفى فتح:۸\۳۰۱ قوله خفية من الاخفاء فيه تجوز والمعروف فى عرف اهل الصرف من الخفاء لان المزيد مشتق من الثلاثى و يوجه الذى هنا بانه اراد انتظام الصفتين من معنى واحد وقال العينى فى العمدة:۱۸\۳۳۸ ولكن يمكن ان يوجه كلامه باعتبار اشتقاق الصيفتين فى معنى واحد.

«اصيل» دي او «اصيل» د مازيگر نه واخله د مابنام د وخت پوري ته وائى او د بعضو نه نقل دى چه «اصال» جمع الجمع ده يعنى د «اصيل» جمع «اصل» او د «اصل» جمع «اصال» راځى، بهر حال لفظ اصل واحد دي د كوم دليل چه «بكرة واصيلا» دي.

## ۱۳۴ - باب قَوْلِ اللَّهِ عَزَّ وَجَلَّ: إِنَّمَا حَرَّمَ رَبِّيَ الْفَوَاحِشَ مَا ظَهَرَ مِنْهَا وَمَا بَطَنَ

۴۳۲۱ - حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ حَرْبٍ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ عَمْرِو بْنِ مُرَّةَ عَنْ أَبِي وَائِلٍ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ - رضي الله عنه - قَالَ قُلْتُ أَنْتَ سَمِعْتَ هَذَا مِنْ عَبْدِ اللَّهِ قَالَ نَعَمْ، وَرَفَعَهُ. قَالَ «لاَ أَحَدَ أَغْيَرُ مِنَ اللَّهِ، فَلِذَلِكَ حَرَّمَ الْفَوَاحِشَ مَا ظَهَرَ مِنْهَا وَمَا بَطَنَ، وَلاَ أَحَدَ أَحَبُّ إِلَيْهِ الْمِدْحَةُ مِنَ اللَّهِ، فَلِذَلِكَ مَدَحَ نَفْسَهُ». [ر: ۴۳۵۸]

## ۱۳۵ - باب

(وَلَمَّا جَاءَ مُوسَى لِمِيقَاتِنَا وَكَلَّمَهُ رَبُّهُ قَالَ رَبِّ أَرِنِي أَنْظُرْ إِلَيْكَ قَالَ لَنْ تَرَانِي وَلَكِنِ انْظُرْ إِلَى الْجَبَلِ فَإِنِ اسْتَقَرَّ مَكَانَهُ فَسَوْفَ تَرَانِي فَلَمَّا تَجَلَّى رَبُّهُ لِلْجَبَلِ جَعَلَهُ دَكًّا وَخَرَّ مُوسَى صَعِقًا فَلَمَّا أَفَاقَ قَالَ سُبْحَانَكَ تُبْتُ إِلَيْكَ وَأَنَا أَوَّلُ الْمُؤْمِنِينَ) (۲)

قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ (أَرِنِي) أَعْطِنِي.

**قوله:** قَالَ ابن عباس أرني أعطني: حضرت ابن عباس په ((رَبِّ أَرِنِي أَنْظُرْ إِلَيْكَ)) كښې د ارنى تشريح په اعطنى سره كړيده، ځكه چه په «ارنى» او «انظراليك» كښې معنوى اتحاد او مناسبت ښكاره شى. مطلب دا دي چه اي الله: ته ماته د رؤيت قوت راكړه چه تا اوليدي شم.

بعض حضراتو وئيلي دى چه د «ارنى» مفعول «نفسك» محذوف دي او مطلب دا دي چه اي الله: ته ماته خپل ذات اوښايه چه زه تا اوليدي شم[۱] د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما دا تعليق طبرى د على بن ابى طلحة نه موصولاً نقل كړيدي.[۲]

۴۳۲۲ - حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ يُوسُفَ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ عَمْرِو بْنِ يَحْيَى الْمَازِنِيِّ عَنْ أَبِيهِ عَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ - رضي الله عنه - قَالَ جَاءَ رَجُلٌ مِنَ الْيَهُودِ إِلَى النَّبِيِّ - صلى الله عليه وسلم - قَدْ لُطِمَ وَجْهُهُ وَقَالَ يَا مُحَمَّدُ إِنَّ رَجُلاً مِنْ أَصْحَابِكَ مِنَ الأَنْصَارِ لَطَمَ وَجْهِي. قَالَ «ادْعُوهُ». فَدَعَوْهُ قَالَ «لِمَ لَطَمْتَ وَجْهَهُ». قَالَ يَا رَسُولَ اللَّهِ، إِنِّي مَرَرْتُ بِالْيَهُودِ فَسَمِعْتُهُ يَقُولُ وَالَّذِي اصْطَفَى مُوسَى عَلَى الْبَشَرِ. فَقُلْتُ وَعَلَى مُحَمَّدٍ وَأَخَذَتْنِي غَضْبَةٌ فَلَطَمْتُهُ. قَالَ «لاَ تُخَيِّرُونِي مِنْ بَيْنِ الأَنْبِيَاءِ، فَإِنَّ النَّاسَ يَصْعَقُونَ يَوْمَ الْقِيَامَةِ فَأَكُونُ أَوَّلَ مَنْ يُفِيقُ،

---

[۱] (تعليقات لامع الدرارى: ۸۸\۹).

[۲] (عمدة القارى: ۲۳۹\۱۸)

فَإِذَا أَنَا بِمُوسَى آخِذٌ بِقَائِمَةٍ مِنْ قَوَائِمِ الْعَرْشِ، فَلَا أَدْرِي أَفَاقَ قَبْلِي أَمْ جُزِيَ بِصَعْقَةِ الطُّورِ».

**قوله: يا محمد إن رجلا من أصحابك من الأنصار لطم في وجهي:**

**د رواياتو تعارض او دهغې حل:** د بخاری شریف ددې روایت نه معلومیږی چه د څپیړې وهلو تعلق انصارسره وو. حافظ ابوبکربن ابی الدنیا رحمه الله روایت نقل کړیدې چه څپیړه وهونکې حضرت ابوبکرصدیق رضی الله عنه وو[1] په دواړو روایتونو کښې په ظاهره تعارض دې خکه چه ابوبکرصدیق رضی الله عنه د انصارو نه نه وو.

① ددې یو جواب دا دې چه په دواړو کښې تطبیق اوکړې شی چه څپیړه وهونکې هم حضرت ابوبکرصدیق رضی الله عنه وو، دلته د بخاری په روایت کښې د هغه تعلق د انصارو سره ښودلې شویدې. دا د خپلې منعی لغوی په اعتبار دې، د انصارو معنی امداد کونکی راځی او د حضرت ابوبکرصدیق رضی الله عنه نه زیات د حضوراکرم صلی الله علیه وسلم امداد بل چا کړیدې.

② دویم جواب دا دې چه د ابن ابی الدنیا رحمه الله مقابله کښې د بخاری روایت راجح ګرځولې شوې دې. علامه عینی رحمه الله فرمائی، «وما ذکره البخاری هو الاصح». [2]

**قوله: فإن الناس يصعقون يوم القيامة فأكون أول من يفيق:**

**د فاكون اول من يفيق تشريح:** حضور اکرم صلی الله علیه وسلم فرمائیلی دی چه د قیامت په ورځ به ټول خلق بې هوشه شی، د ټولو نه اول به زه په هوش کښې راشم. بیا ئې اوفرمائیل چه زه به اوګورم چه موسی علیه السلام به د عرش یوه پښه نیولې وی اوس ما ته نه ده معلومه چه هغه زما نه وړاندې په هوش کښې راغلې وو یا د کوه طور د بې هوشنې هغه ته بدله ورکړې شوه او په هغه باندې دوبې هوشی شروع نه شوه. صعق وائی د یو آواز اوریدل یا د څه څیز د ویرې د وجه بې هوشه کیدل[3] دوه ځل به نفخ صور کیږی. په رومبی ځل به د ټولونه هوش والوزی او چه څومره ژوندی دی هغه به ټول مړه شی او چه کوم مړه شوې وو د هغوی په روحونو به د بې هوشئی کیفیت شروع شی. دینه پس به دویمه نفخ وی په دې سره به د مړو روحونه د هغوی بدنونو طرف ته واپس راشی او بې هوشه به په هوش کښې راشی. په سورة زمر کښې دی، «وَنُفِخَ فِي الصُّورِ فَصَعِقَ مَنْ فِي السَّمَاوَاتِ وَمَنْ فِي الْأَرْضِ إِلَّا مَنْ شَاءَ اللَّهُ ثُمَّ نُفِخَ فِيهِ أُخْرَى فَإِذَا هُمْ قِيَامٌ يَنْظُرُونَ». دلته د بخاری مذکوره روایت کښې «فأكون أول من يفيق» کښې د دویمې نفخ نه پس افاقه مراد ده، د شعبی رحمه الله په روایت کښې د دې تصریح ده «انا اول من يرفع راسه بعد النفخة الاخيرة»[4]

**د قیامت په ورځ د نفخاتو شمیر:** د قیامت په ورځ د نفخاتو په شمیر کښې اختلاف دې. علامه

---

[1] (عمدة القاري: ۱۸\۲٤۰
[2] (عمدة القاري: ۱۸\۲٤۰
[3] (والمراد بالصعق غشى يلحق من سمع صوتا او راى شيئا يفزع منه(فتح البارى: ٦\٤٤٤ كتاب الانبياء
[4] (فتح البارى: ٦\٤٤٤ كتاب احاديث الانبياء باب وفات موسى وذكره بعد

ابن حزم رحمه الله فرمائي څلور نفخات به وي، اول ځل به ټول ژوندي مړه شي، دويم ځل نفخه سره به ټول مړي راژوندي شي او د حساب د پاره به جمع شي، دريمه نفخه سره به عامه بي هوشي خوره شي او څلورم ځل نفخه سره به شروع شوي بي هوشئي نه افاقه اوشي.[1] حضرت شاه عبدالقادر رحمه الله هم دغه قول اختيار کړيدي.[2]

مولانا رشيد احمد ګنګوهي رحمه الله «لامع الدراري» کښي دري[3] او په «کوکب الدري» کښي د څلورو نفخاتو قول اختيار کړيدي. يو نفخه اماتت، دويمه نفخه احياء، دريمه نفخه صعقه او څلورمه نفخه افاقه ده. نفخه صعقه به هغه وخت وي کله چه الله تعالى د حساب د پاره ظهور اوفرمائي.[4]

علامه عيني رحمه الله فرمائي چه په روايت باب کښي «يصعقون» نه د حساب د پاره د الله تعالى د ظهور د وخت صعقه مراد ده.[5]

بعضي حضراتو د پنځو نفخاتو قول اختيار کړيدي، صاحب جمل په دي باندي د حيرانتيا اظهار کولو سره فرمائي «وقد سمعنا بمن زاد في الطنبور نغمة، ولم نسمع بمن زاد في الصور نفخة» [6] يعني دا خو مونږ واوريده چه په ساز کښي د يوي نغمي چااضافه کړيده (چه يوه نغمه ئي نوي ايجاد کړيده) ليکن په صور کښي د نفخه د اضافي قول مونږ کله هم نه دي اوريدلي.

علامه آلوسي رحمه الله د دريو قول ته ترجيح ورکړيده[7] ليکن د جمهورو او د علماء محققين په نزد ټول به دوه ځل نفخ صور وي[8] د کوم ذکر چه د سورة زمر په مذکوره آيت کښي شوي دي چه په اول ځل به نفخ صور اوشي نو د زمکي او آسمان ټول مخلوق به بي هوشه شي. مګر څوک چه الله تعالى غواړي «الا من شاء الله» نه بعضو حضرت جبرائيل، حضرت ميکائيل، حضرت اسرافيل، او ملك الموت مراد اخستي دي. د بعضو په نزد أنبياء کرام او شهداء مراد دي. او

---

[1] (فتح الباري: ٤٤٤\٦ کتاب احاديث الانبياء باب وفات موسى وذکره بعد

[2] (اوګورئ تفسير عثماني: ٦٢٠ سورة الزمر، ليکن شاه عبدالقادر رحمه الله د سورة النمل په تفسير کښي پنځه نفخات ذکر کړي دي، ليکي: يو ځل به شپيلئي اووهلي شي به څه سره چه به ټول مخلوق مړ شي، او په دويم ځل پوکوهلو سره به ژوندي شي. دينه پس چه پوکوهلي شي نو اوبه ويريږي بيا څلورم ځل په پوکوهلو سره به بي هوشه شي اوبل ځل پوکوهلو سره به رابيدار شي. (تفسير عثماني: ٥١٢ سورة النمل)

[3] (لامع الدراري: ٥٨\٨ کتاب الانبياء-

[4] (تعليقات لامع الدراري: ٥٩\٨ کتاب الانبياء والکوب الدري

[5] (الظاهر ان هذاالصعق يکون يوم القيامة حين يا تى الرب عزوجل لفصل القضاء و يتجلى فيصعقون حينئذ اى يغشى عليهم وليس المراد من الصعق الموت (عمدة القاري ٢٤٠\١٨

[6] (تعليقات لامع الدراري: ٥٩\٨ کتاب الانبياء

[7] (روح المعاني-

[8] (تفسير عثماني: ٦٢٠-

بعضو وئيلي دى چه ددي نه هغه څالرونکي مراد دى چه د نفخه اولى نه اول مره شوي وى.[1] دا روايت امام بخارى رحمه الله كتاب احاديث الانبياء كښي هم نقل كړي دي.[2]

## ١٣٦- باب الْمَنِّ وَالسَّلْوَى

٤٣٦٣ - حَدَّثَنَا مُسْلِمٌ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ عَبْدِ الْمَلِكِ عَنْ عَمْرِو بْنِ حُرَيْثٍ عَنْ سَعِيدِ بْنِ زَيْدٍ عَنِ النَّبِيِّ - صلى الله عليه وسلم - قَالَ «الْكَمْأَةُ مِنَ الْمَنِّ وَمَاؤُهَا شِفَاءُ الْعَيْنِ».

## ١٣٧- باب (قُلْ يَا أَيُّهَا النَّاسُ إِنِّي رَسُولُ اللَّهِ إِلَيْكُمْ جَمِيعًا الَّذِي لَهُ مُلْكُ السَّمَوَاتِ وَالأَرْضِ لاَ إِلَهَ إِلاَّ هُوَ يُحْيِي وَيُمِيتُ فَآمِنُوا بِاللَّهِ وَرَسُولِهِ النَّبِيِّ الأُمِّيِّ الَّذِي يُؤْمِنُ بِاللَّهِ وَكَلِمَاتِهِ وَاتَّبِعُوهُ لَعَلَّكُمْ تَهْتَدُونَ).

[٤٣٦٤] حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ وَمُوسَى بْنُ هَارُونَ قَالاَ حَدَّثَنَا الْوَلِيدُ بْنُ مُسْلِمٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ الْعَلاَءِ بْنِ زَبْرٍ قَالَ حَدَّثَنِي بُسْرُ بْنُ عُبَيْدِ اللَّهِ قَالَ حَدَّثَنِي أَبُو إِدْرِيسَ الْخَوْلاَنِيُّ قَالَ سَمِعْتُ أَبَا الدَّرْدَاءِ يَقُولُ كَانَتْ بَيْنَ أَبِي بَكْرٍ وَعُمَرَ مُحَاوَرَةٌ، فَأَغْضَبَ أَبُو بَكْرٍ عُمَرَ، فَانْصَرَفَ عَنْهُ عُمَرُ مُغْضَبًا، فَاتَّبَعَهُ أَبُو بَكْرٍ يَسْأَلُهُ أَنْ يَسْتَغْفِرَ لَهُ، فَلَمْ يَفْعَلْ حَتَّى أَغْلَقَ بَابَهُ فِي وَجْهِهِ، فَأَقْبَلَ أَبُو بَكْرٍ إِلَى رَسُولِ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - فَقَالَ أَبُو الدَّرْدَاءِ وَنَحْنُ عِنْدَهُ فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - «أَمَّا صَاحِبُكُمْ هَذَا فَقَدْ غَامَرَ». قَالَ وَنَدِمَ عُمَرُ عَلَى مَا كَانَ مِنْهُ فَأَقْبَلَ حَتَّى سَلَّمَ وَجَلَسَ إِلَى النَّبِيِّ - صلى الله عليه وسلم - وَقَصَّ عَلَى رَسُولِ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - الْخَبَرَ. قَالَ أَبُو الدَّرْدَاءِ وَغَضِبَ رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - وَجَعَلَ أَبُو بَكْرٍ يَقُولُ وَاللَّهِ يَا رَسُولَ اللَّهِ لأَنَا كُنْتُ أَظْلَمَ فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - «هَلْ أَنْتُمْ تَارِكُولِي صَاحِبِي هَلْ أَنْتُمْ تَارِكُولِي صَاحِبِي إِنِّي قُلْتُ يَا أَيُّهَا النَّاسُ إِنِّي رَسُولُ اللَّهِ إِلَيْكُمْ جَمِيعًا فَقُلْتُمْ كَذَبْتَ. وَقَالَ أَبُو بَكْرٍ صَدَقْتَ».

حضرت ابو الدرداء رضي الله عنه فرمائى چه د حضرت ابوبكرصدّيق رضي الله عنه او د حضرت عمر رضي الله عنه په مينځ كښي څه خبري اوشوي، حضرت ابوبكرصدّيق رضي الله عنه په دې بحث كښي حضرت عمر رضي الله عنه خفه كړو. حضرت عمر رضي الله عنه د حضرت ابوبكرصدّيق رضي الله عنه نه خفه واپس لاړو، حضرت ابوبكرصدّيق رضي الله عنه هغه پسې شاته لاړو او هغه نه ئي معافي اوغوښتله ليكن حضرت عمر رضي الله عنه هغه معاف نه كړو او د خپل كور دروازه ئي بنده كړه. حضرت ابوبكرصدّيق رضي الله عنه د حضوراكرم صلى الله عليه وسلم په خدمت

[1] (الجامع لاحكام القرآن: ٢٨٠\١٥)
[2] (صحيح البخاري مع فتح البارى كتاب احاديث الانبياء باب وفاة موسى و بعده: ٤٤١\٦)

کښې حاضر شو . حضوراکرم ﷺ چه د هغوی مخ اولیدو نو هلته موجود صحابه کرامو ته ئې اوفرمائیل ((اما صاحبکم هٰذا، فقد غامر)) ستاسو دې ملګرې (یعنې حضرت ابوبکرصدّیق ﷛) چا سره جګړه کړېده، هغوی ﷺ د هغه د مخ کتلو سره د فراست نه اندازه لګولې وه او دا هم ممکن دی چه د وحی په ذریعه هغوی ﷺ ته خبر ورکړې شوې وی. روستو حضرت عمر ﷛ پښیمانه شو نو راغلو سلام ئې اوکړو او حضوراکرم ﷺ سره کیناستو او پوره قصه ئې ذکر کړه. نبی کریم ﷺ د حضرت عمر ﷛ نه خفه شو، حضرت ابوبکرصدّیق ﷛ اوئیل چه په الله قسم زیاتې زما د طرف نه شوې وو بیا حضوراکرم ﷺ ارشاد اوفرمائیلو آیا تاسو زما ملګرې پرېخودل غوارئې، تاسو زما ملګرې پرېخودل غوارئې؟ ما وئیلی وو ((يَاأَيُّهَا النَّاسُ إِنِّي رَسُولُ اللَّهِ إِلَيْكُمْ جَمِيعًا))

(خلقو زه تاسو ټولو ته د الله تعالی د طرف نه رالیګلې شوې پیغمبر یم) نو هغه وخت تاسو زما تکذیب اوکړو او حضرت ابوبکرصدّیق ﷛ زما تصدیق اوکړو. د امام بخاری ﷫ په روایت کښې ((اما صاحبکم هٰذا، فقد غامر)) کښې د ((غامر)) تشیح ((سابق بالخیر)) سره کړې ده، په نیکئې او خیګړه کښې د ټولو نه وړاندې کیدل معنی مراد ده لیکن اکثر حضراتو د ((غامر)) معنی ((خاصم)) کړېده[1] یعنی جنګ جګړه او دلته په روایت کښې همدغه معنی مناسب او موزون ده.

**عبدالله بن حماد:** دې روایت کښې د امام بخاری ﷫ شیخ عبدالله دې د هغه د پلا نوم نه دې ذکر کړې. ابن السکن د فربری په طریق سره د امام بخاری ﷫ دا روایت نقل کړېدې، په هغې کښې د پلار نوم ((حماد)) یعنې عبدالله بن حماد، دا د امام بخاری د زمانې هم دې او د هغه په شاګردانو کښې هم دې، حفاظ حدیث کښې د هغوی شمیر کیدلو. ۹محرم ۲۲۳ هجرئ کښې دهغوی وفات شوې دې.[2]

**د کمالاتو والو غلطئ ته نظر نه شی کولې:** دې روایت نه یوه دا خبره معلومه شوه چه کوم سړې د ډیرو کمالاتو او فضائلو مالك وی که دهغه نه څه لغزش اوشی نو هغه هیرولې شی، دلته حضرت ابوبکرصدّیق ﷛ د خپل زیاتې اقرار هم کوی لیکن حضوراکرم ﷺ د دې سره په حضرت عمر ﷛ باندې د خپل خفګان اظهار کوی، په دې وجه رونړو که د بزرګانو نه څه غلطی اوشی یا د هغوی نه څه ګناه اوشی نو خامخا هغوی پسې نه دی لګیدل پکار، ځکه چه د دې بزرګانو ډیرې نیکئې هم وی او معلومه نه ده چه د هغه نیکو په وجه د الله تعالی په نزد یو لوئې مقام وی چه دې لغزش طرف ته الله تعالی توجه اونه فرمائی او د پیغور کونکو نیول اوشی.[3]

---

[1] (تعلیقات لامع الدراری:۸۹\۹ و فی الفیض:۱۸۴\٤، ای خاصم واصله النزول فی الماء الکبیر والمراد منه ههنا الخصومة وما فسر به المحشی فغلط

[2] (عمدة القاری:۱۸\۲٤۱-

[3] (عمدة القاری:۲٤۳\۱۸ و فتح الباری:۳۰٤\۸ وارشاد الساری-

## ۱۳۸- باب {وَقُولُوا حِطَّةٌ}

۴۲۶۵ - حَدَّثَنَا إِسْحَاقُ أَخْبَرَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ أَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ عَنْ هَمَّامِ بْنِ مُنَبِّهٍ أَنَّهُ سَمِعَ أَبَا هُرَيْرَةَ - رضي الله عنه - يَقُولُ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - «قِيلَ لِبَنِي إِسْرَائِيلَ (ادْخُلُوا الْبَابَ سُجَّدًا وَقُولُوا حِطَّةٌ نَغْفِرْ لَكُمْ خَطَايَاكُمْ) فَبَدَّلُوا فَدَخَلُوا يَزْحَفُونَ عَلَى أَسْتَاهِهِمْ وَقَالُوا حَبَّةٌ فِي شَعَرَةٍ». [ر: ۳۲۲۲]

دا روايت په جلد اول كښې تير شوي دي هلته د امام بخارى رحمه الله د استاذ نوم اسحاق بن نصر مذكور دي، دلته صرف «حدثنا اسحاق» دي، حافظ ابن حجر، علامه عينى او علامه قسطلانى اوفرمائيل چه دلته «اسحاق» نه مراد اسحاق ابن رهويه دي ځكه چه كله اسحاق مطلق اووئيلې شى نو دينه اسحاق ابن راهويه مراد وى ليكن ظاهر نه دا معلوميږى چه مراد اسحاق بن نصر دي ځكه چه هم دغه سند اومتن په جلد اول كتاب الانبياء كښې تيرشوي دي. او هلته اسحاق بن نصر دي.[1]

## ۱۳۹- باب {خُذِ الْعَفْوَ وَأْمُرْ بِالْعُرْفِ وَأَعْرِضْ عَنِ الْجَاهِلِينَ}

العرف المعروف [ر: ۱۹۹]

[۴۲۶۶] [1] حَدَّثَنَا أَبُو الْيَمَانِ أَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ أَخْبَرَنِي عُبَيْدُ اللَّهِ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُتْبَةَ أَنَّ ابْنَ عَبَّاسٍ رضي الله عنهما - قَالَ قَدِمَ عُيَيْنَةُ بْنُ حِصْنِ بْنِ حُذَيْفَةَ فَنَزَلَ عَلَى ابْنِ أَخِيهِ الْحُرِّ بْنِ قَيْسٍ، وَكَانَ مِنَ النَّفَرِ الَّذِينَ يُدْنِيهِمْ عُمَرُ، وَكَانَ الْقُرَّاءُ أَصْحَابَ مَجَالِسِ عُمَرَ وَمُشَاوَرَتِهِ كُهُولاً كَانُوا أَوْ شُبَّانًا. فَقَالَ عُيَيْنَةُ لاِبْنِ أَخِيهِ يَا ابْنَ أَخِي، لَكَ وَجْهٌ عِنْدَ هَذَا الأَمِيرِ فَاسْتَأْذِنْ لِي عَلَيْهِ. قَالَ سَأَسْتَأْذِنُ لَكَ عَلَيْهِ. قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ فَاسْتَأْذَنَ الْحُرُّ لِعُيَيْنَةَ فَأَذِنَ لَهُ عُمَرُ، فَلَمَّا دَخَلَ عَلَيْهِ قَالَ هِي يَا ابْنَ الْخَطَّابِ، فَوَاللَّهِ مَا تُعْطِينَا الْجَزْلَ، وَلاَ تَحْكُمُ بَيْنَنَا بِالْعَدْلِ. فَغَضِبَ عُمَرُ حَتَّى هَمَّ بِهِ، فَقَالَ لَهُ الْحُرُّ يَا أَمِيرَ الْمُؤْمِنِينَ إِنَّ اللَّهَ تَعَالَى قَالَ لِنَبِيِّهِ - صلى الله عليه وسلم - (خُذِ الْعَفْوَ وَأْمُرْ بِالْعُرْفِ وَأَعْرِضْ عَنِ الْجَاهِلِينَ) وَإِنَّ هَذَا مِنَ الْجَاهِلِينَ. وَاللَّهِ مَا جَاوَزَهَا عُمَرُ حِينَ تَلاَهَا عَلَيْهِ، وَكَانَ وَقَّافًا عِنْدَ كِتَابِ اللَّهِ.

[۴۲۶۷] حَدَّثَنَا يَحْيَى حَدَّثَنَا وَكِيعٌ عَنْ هِشَامٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ الزُّبَيْرِ (خُذِ الْعَفْوَ وَأْمُرْ بِالْعُرْفِ) قَالَ مَا أَنْزَلَ اللَّهُ إِلاَّ فِي أَخْلاَقِ النَّاسِ. أَوْ كَمَا قَالَ.

...

[1] (واخرجه البخارى ايضا فى كتاب الاعتصام باب الاقتداء لسنن النبى صلى الله عليه وسلم رقم الحديث: ۷۲۸۶ مع الفتح وهذا الحديث من افراده (عمدة القارى)

# تفسیر سورة الأنفال

## ۱۴۰ - قوله: يَسْأَلُونَكَ عَنِ الْأَنْفَالِ قُلِ الْأَنْفَالُ لِلَّهِ وَالرَّسُولِ فَاتَّقُوا اللَّهَ وَأَصْلِحُوا ذَاتَ بَيْنِكُمْ

قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ (الْأَنْفَالُ) الْمَغَانِمُ. قَالَ قَتَادَةُ (رِيحُكُمْ) الْحَرْبُ، يُقَالُ نَافِلَةٌ عَطِيَّةٌ

## سورة الأنفال

**د کلماتو تشریح:**

**قوله: قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ : الْأَنْفَالُ : الْمَغَانِمُ:** دي تفسیر نه امام بخاری رحمه الله دي تفسیر طرف ته اشاره کړیده چه دلته نفل په هغه معروف معنی کښې مستعمل نه دي چه د فقهاؤ اصطلاح ده چه غازي او جهاد کښې حصه اخستونکي ته مقرره حصې نه څه زیاته حصه ورکړی بلکه دلته د نفل معنی مطلقا غنیمت دي.[1] د حضرت ابن عباس رضی الله عنهما دا تعلیق ابن ابی حاتم د علی بن ابی طلحه په طریق سره موصولاً نقل کړیدي.[2]

**قوله: يُقَالُ: نَافِلَةٌ: عَطِيَّةٌ:** د نافلة معنی عطیه ده، دا لفظ په سوره انفال کښې نیشته لیکن د انفال د لفظ په مناسبت سره امام بخاری دلته ذکر کړیدي، د دي معنی په اصل کښې د زیاتی ده، په دي وجه د فرض او واجب مونځونو نه زیاتی رکعتونو ته نافله وائی،

[۴۳۶۸] حَدَّثَنِي مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ الرَّحِيمِ حَدَّثَنَا سَعِيدُ بْنُ سُلَيْمَانَ أَخْبَرَنَا هُشَيْمٌ أَخْبَرَنَا أَبُو بِشْرٍ عَنْ سَعِيدِ بْنِ جُبَيْرٍ قَالَ قُلْتُ لِابْنِ عَبَّاسٍ رضى الله عنهما سُورَةُ الْأَنْفَالِ قَالَ نَزَلَتْ فِي بَدْرٍ.

د حضرت سعید ابن جبیر رحمه الله دا سوال مقصد دا وو چه سوره انفال په کومه سلسله کښې نازل شوي وو، نو حضرت ابن عباس رضی الله عنهما ورته اوخودل چه دا د غزوه بدر په سلسله کښې نازل شویدي. مسند احمد کښې دی چه حضرت سعد ابن ابی وقاص رضی الله عنه په غزوه بدر کښې سعید بن العاص قتل کړلو او د هغه توره ئي واخستله، حضوراکرم صلی الله علیه وسلم حکم اوکړو چه دا توره په غنیمت کښې جمع کړه د څه په وجه چه حضرت سعد ابن ابی وقاص رضی الله عنه خفه شو. حضرت سعد رضی الله عنه توره جمع کولو نه پس لږي نه وو تلي چه د سوره انفال ړومبني آیت نازل شو نو نبی کریم صلی الله علیه وسلم حضرت سعد رضی الله عنه راؤغوښتلو او توره ئي ورکړه.[3]

ابوداؤد او نسائی کښې د شان نزول یوه بله واقعه هم ذکر ده. چه غزوه بدر کښې د فتح نه پس په صحابه کرامو کښې د مال غنیمت په سلسله کښې څه اختلاف اوشو، ځوانانو وئیل چه دا هر څه زمونږ د محنت نتیجه ده، د بډاګانو رائي دا وه چه مونږ خو ستاسو سهارا وو، په مینځ

---

[1] (لامع الدراری: ۹۰\۹-
[2] (عمدة القاری: ۲۴۴\۱۸-
[3] (عمدة القاری: ۲۴۵\۱۸ والدر المنثور فی التفسیر بالماثور: ۱۵۸\۳-

كنبي جنډا مونږ نيولي وه په دې وجه تاسو ته هيڅ فوقيت او په مونږ باندې ترجيح نيشته.دا جګړه رسول الله ﷺ ته اورسيدله نو په دې باندې مذكوره آيت نازل شو.[1]

الشَّوْكَةُ الْحَدُّ (مُرْدَفِينَ) فَوْجًا بَعْدَ فَوْجٍ، رَدِفَنِي وَأَرْدَفَنِي جَاءَ بَعْدِي (ذُوقُوا) بَاشِرُوا وَجَرِّبُوا وَلَيْسَ هَذَا مِنْ ذَوْقِ الْفَمِ (فَيَرْكُمَهُ) يَجْمَعُهُ. (شَرِّدْ) فَرِّقْ (وَإِنْ جَنَحُوا) طَلَبُوا (يُثْخِنَ) يَغْلِبَ. وَقَالَ مُجَاهِدٌ (مُكَاءً) إِدْخَالُ أَصَابِعِهِمْ فِي أَفْوَاهِهِمْ (تَصْدِيَةً) الصَّفِيرُ (لِيُثْبِتُوكَ) لِيَحْبِسُوكَ.

**قوله: الشَّوْكَةُ الْحَدُّ:** آيت كريمه كښې دې:،، وَإِذْ يَعِدُكُمُ اللَّهُ إِحْدَى الطَّائِفَتَيْنِ أَنَّهَا لَكُمْ وَتَوَدُّونَ أَنَّ غَيْرَ ذَاتِ الشَّوْكَةِ تَكُونُ لَكُمْ،، په دې كښې د ((الشوكة)) تفسير ،،الحد،، سره كړيدې.

حد د توري مخ ته وائي شوكة په اصل كښې ازغي ته وائي نو ازغي چه څنګه ړيكول كوي توره هم ړيكول كوي.((غَيْرَ ذَاتِ الشَّوْكَةِ)) نه غير مسلح ډله يعنى د قريشو تجارتي قافله مراد ده.

**قوله: مُرْدَفِينَ: فَوْجًا بَعْدَ فَوْجٍ، رَدِفَنِي وَأَرْدَفَنِي جَاءَ بَعْدِي:** آيت كريمه كښې دى:،، أَنِّي مُمِدُّكُمْ بِأَلْفٍ مِنَ الْمَلَائِكَةِ مُرْدِفِينَ،، يعنى زه به ستاسو په يو زر فرينتو سره امداد كوم، چه وار په وار به راځي. د ((مردفين)) معنى ده د يو ډلي نه پس بله ډله. فرمائي چه ردف ثلاثي مجرد او اردف د افعال نه دي د دواړو معنى ده جاء بعدى يعنى زما نه پس راغله.زما شاته راغلو، دا ماخوذ دي د ((ردف)) نه معنى روستو راتلونكي، تابع. نو د ((مردفين)) معنى ((متبعين)) شوه.

**قوله: فَيَرْكُمَهُ: يَجْمَعُهُ:** آيت كريمه كښې دى:،، لِيَمِيزَ اللَّهُ الْخَبِيثَ مِنَ الطَّيِّبِ وَيَجْعَلَ الْخَبِيثَ بَعْضَهُ عَلَى بَعْضٍ فَيَرْكُمَهُ جَمِيعًا فَيَجْعَلَهُ فِي جَهَنَّمَ،، دي د پاره چه الله (جل جلاله) ناپاك د پاك نه جدا كړي او ناپاك يو بل سره ميلاؤ كړي بيا هغوى راجمع كړي او دوزخ كښې ئي اوغورزوي. فرمائي چه په آيت كښې د ((يركمه)) معنى ((يجمعه)) يعنى جمع كړي، يوځاى كړي. په اصل كښې د باب د نصر نه ركم يركم معنى ډيري كول، جمع كول، سره راځي.

**قوله: ذُوقُوا: بَاشِرُوا وَجَرِّبُوا وَلَيْسَ هَذَا مِنْ ذَوْقِ الْفَمِ:** آيت كريمه كښې دى:،، ذَلِكُمْ فَذُوقُوهُ وَأَنَّ لِلْكَافِرِينَ عَذَابَ النَّارِ،، په دې كښې ذوق نه مراد په خُله سره څكل نه دى بلكه دا مراد دي چه تاسو اوس دا عذاب برداشت كړئي او اوئي زغمئي.

**قوله: وَإِنْ جَنَحُوا: طَلَبُوا:** آيت كريمه كښې دى:،، وَإِنْ جَنَحُوا لِلسَّلْمِ فَاجْنَحْ لَهَا وَتَوَكَّلْ عَلَى اللَّهِ،، او كه هغوى د صلح طرف ته تيټ شي او ته هم د هغوى طرف ته مائل شه او په الله تعالى باندې بهروسه ساته، فرمائي چه د ((جنحوا)) معنى ((طلبوا)) ده، يعنى كه هغوى صلح او سلامتي

[1] (الدالمنثور فى التفسير بالماثور ۳/۱۵۹- ۱۶۰ والسنن الكبرىٰ للنسائى كتاب التفسير سورة الانفال رقم الحديث:۱۱۱۹۷-

غواړی نو ته هم اماده شه او په الله تعالی باندي يقين ساته.

**قوله:** يُثْخِنَ: يَغْلِبَ: آيت کريمه کښي دی: ﴿مَا كَانَ لِنَبِيٍّ أَنْ يَكُونَ لَهُ أَسْرَى حَتَّى يُثْخِنَ فِي الْأَرْضِ﴾ د يو نبی د پاره مناسب نه دی چه هغوی قيديان باقی اوساتی، ابوعبيده رحمه الله د يُثْخِنَ تفسير يَغْلِبَ سره کوی يعنی تر کومي چه د دښمن خونريزی او زيات قتل و غارت سره په ملك کښي غلبه حاصله نه کړی تر هغه وخت پوري قيدی کافران باقی ساتل مناسب نه دی.

**قوله:** لِيُثْبِتُوكَ: لِيَحْبِسُوكَ: آيت کريمه کښي دی: ﴿وَإِذْ يَمْكُرُ بِكَ الَّذِينَ كَفَرُوا لِيُثْبِتُوكَ أَوْ يَقْتُلُوكَ أَوْ يُخْرِجُوكَ﴾ اوکوم وخت چه کافرانو ستا په نسبت تدبيرونه او سوچونه کول چه تا قيدی کړی يا تا قتل کړی يا تا دوطن نه اوباسی د(لِيُثْبِتُوكَ) معنی يحبسوك ده. يعنی تا قيد کړی تا احصار کړی.

**قوله:** مُكَاءً: وَقَالَ مُجَاهِدٌ (مُكَاءً) إِدْخَالُ أَصَابِعِهِمْ فِي أَفْوَاهِهِمْ وَ (تَصْدِيَةً) الصَّفِيرُ: آيت کريمه کښيَ دی: ﴿وَمَا كَانَ صَلَاتُهُمْ عِنْدَ الْبَيْتِ إِلَّا مُكَاءً وَتَصْدِيَةً﴾ مجاهد رحمه الله په دي آيت کښي د «مكاء» تفسير کړيدي خپلي ګوتي په خپله خُله کښي داخلول. او د تصديه معنی ئي بيان کړي ده شپيلی، خو دا تفسير غير مشهور دي، مشهور تفسير دا دي چه مکاء معنی شپيلی وهل دی او تصديه معنی لاسونه پړقول دی.[1]

علامه شبيراحمد عثمانی رحمه الله د دي آيت لاندي ليکی: ، يعنی حقيقی مونځ ګذار د جُماتونو نه منع کوی او پخپله د هغوی مونځ څه دي؟ د کعبي په بربنډه طواف کول او د الله تعالی د ذکر په ځائي شپيلی وهل او لاسونه پړقول، لکه چه نن هم په ډيرو ګرجو کښي ټلئي او جرسونه کړنګول لوئ عبادت ګڼړی. مطلب دا چه نه پخپله د الله تعالی عبادت کوی او نه نور عبادت کولو ته پريږدی. دا بي معني او فضول خبري ئی عبادت ګرځولي دی. بعضو وئيلي دی شپيلی وهل او لاسونه پړقول به ئي د مسلمانانو په عبادت کښي د خلل د پاره کول او د توقو مسخرو د پاره به ئي داسي کول.

## ۱۴۱=باب: إِنَّ شَرَّ الدَّوَابِّ عِنْدَ اللَّهِ الصُّمُّ الْبُكْمُ الَّذِينَ لَا يَعْقِلُونَ

[۴۳۴۹][2] حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ يُوسُفَ حَدَّثَنَا وَرْقَاءُ عَنِ ابْنِ أَبِي نَجِيحٍ عَنْ مُجَاهِدٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ (إِنَّ شَرَّ الدَّوَابِّ عِنْدَ اللَّهِ الصُّمُّ الْبُكْمُ الَّذِينَ لَا يَعْقِلُونَ) قَالَ هُمْ نَفَرٌ مِنْ بَنِي عَبْدِ الدَّارِ

## ۱۴۲=باب (يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا اسْتَجِيبُوا لِلَّهِ وَلِلرَّسُولِ إِذَا دَعَاكُمْ لِمَا يُحْيِيكُمْ وَاعْلَمُوا أَنَّ اللَّهَ يَحُولُ بَيْنَ الْمَرْءِ وَقَلْبِهِ وَأَنَّهُ إِلَيْهِ تُحْشَرُونَ)

(اسْتَجِيبُوا) أَجِيبُوا (لِمَا يُحْيِيكُمْ) يُصْلِحُكُمْ.

---

[1] (عمدة القاری:۲٤۶\۱۸-

[2] (وهذا الحديث من افراد البخاری (عمدة القاری:۲۳۷\۱۸-

[۴۳۷۰] - حَدَّثَنِي إِسْحَاقُ أَخْبَرَنَا رَوْحٌ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ خُبَيْبِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ سَمِعْتُ حَفْصَ بْنَ عَاصِمٍ يُحَدِّثُ عَنْ أَبِي سَعِيدِ بْنِ الْمُعَلَّى - رضي الله عنه - قَالَ كُنْتُ أُصَلِّي فَمَرَّ بِي رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - فَدَعَانِي فَلَمْ آتِهِ حَتَّى صَلَّيْتُ، ثُمَّ أَتَيْتُهُ فَقَالَ «مَا مَنَعَكَ أَنْ تَأْتِيَ أَلَمْ يَقُلِ اللَّهُ (يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا اسْتَجِيبُوا لِلَّهِ وَلِلرَّسُولِ إِذَا دَعَاكُمْ) ثُمَّ قَالَ لأُعَلِّمَنَّكَ أَعْظَمَ سُورَةٍ فِي الْقُرْآنِ قَبْلَ أَنْ أَخْرُجَ». فَذَهَبَ رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - لِيَخْرُجَ فَذَكَرْتُ لَهُ.

وَقَالَ مُعَاذٌ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ خُبَيْبٍ سَمِعَ حَفْصًا سَمِعَ أَبَا سَعِيدٍ رَجُلاً مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ - صلى الله عليه وسلم - بِهَذَا، وَقَالَ هِيَ (الْحَمْدُ لِلَّهِ رَبِّ الْعَالَمِينَ) السَّبْعُ الْمَثَانِي. [ر: ۴۲۰۴]

## ۱۴۳ = بَاب قَوْلِهِ (وَإِذْ قَالُوا اللَّهُمَّ إِنْ كَانَ هَذَا هُوَ الْحَقَّ مِنْ عِنْدِكَ فَأَمْطِرْ عَلَيْنَا حِجَارَةً مِنَ السَّمَاءِ أَوِ ائْتِنَا بِعَذَابٍ أَلِيمٍ) [۳۲]

قَالَ ابْنُ عُيَيْنَةَ مَا سَمَّى اللَّهُ تَعَالَى مَطَرًا فِي الْقُرْآنِ إِلاَّ عَذَابًا، وَتُسَمِّيهِ الْعَرَبُ الْغَيْثَ، وَهُوَ قَوْلُهُ تَعَالَى (يُنَزِّلُ الْغَيْثَ مِنْ بَعْدِ مَا قَنَطُوا): [۲۸]

ابن عیینه رحمه الله فرمائیلي دی د «مطر» اطلاق قرآن چه کوم ځای کړیدي هغه ځی عذاب له کړي دي، او «مطر» په معنی باران رحمت د پاره لفظ «غیث» استعمال کړي شوي دي. لکه چه په آیت کښي دی (وَلاَ جُنَاحَ عَلَيْكُمْ إِنْ كَانَ بِكُمْ أَذًى مِنْ مَطَرٍ) په دي کښي «مطر» د عذاب معنی کښي نه دي بلکه د دي نه «غیث» او مراد دي.

[۴۳۸۱] [1] حَدَّثَنِي أَحْمَدُ حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللَّهِ بْنُ مُعَاذٍ حَدَّثَنَا أَبِي حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ عَبْدِ الْحَمِيدِ - هُوَ ابْنُ كُرْدِيدٍ صَاحِبُ الزِّيَادِيِّ - سَمِعَ أَنَسَ بْنَ مَالِكٍ - رضي الله عنه - قَالَ أَبُو جَهْلٍ (اللَّهُمَّ إِنْ كَانَ هَذَا هُوَ الْحَقَّ مِنْ عِنْدِكَ فَأَمْطِرْ عَلَيْنَا حِجَارَةً مِنَ السَّمَاءِ أَوِ ائْتِنَا بِعَذَابٍ أَلِيمٍ) فَنَزَلَتْ (وَمَا كَانَ اللَّهُ لِيُعَذِّبَهُمْ وَأَنْتَ فِيهِمْ وَمَا كَانَ اللَّهُ مُعَذِّبَهُمْ وَهُمْ يَسْتَغْفِرُونَ * وَمَا لَهُمْ أَنْ لاَ يُعَذِّبَهُمُ اللَّهُ وَهُمْ يَصُدُّونَ عَنِ الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ) الآيَةَ.

**احمد بن النضر:** احمد دلته غیرمنسوب دي یعنی د پلار نوم ئي امام نه دي ذکر کړي، د حاکم وغیره رائي دا ده چه دا احمد بن النضر بن عبدالوهاب نیشابوری دي.

دي حدیث سره متصل وراندي حدیث محمد بن النضر نه امام بخاری رحمه الله نقل کړیدي، محمد بن النضر د احمد بن النضر رور دي[2] امام بخاری رحمه الله به چه کله نیشاپور ته تشریف راوړو نو دي دوؤ رونړو سره به اکثر پاتي کیدو، او امام سره د هغوی د بعض شیخانو نه روایت کولو

[1] (ورقم الحديث: ۴۳۷۲ و اخرجه مسلم في صفات المنافقين و احكامهم باب في قول الله تعالى وما كان الله ليعذبهم وانت فيهم، رقم الحديث: ۲۷۹۶-

[2] (عمدة القاري: ۱۸\۲۴۹

كښې هم شريك دى. د دې دواړو رونړو په بخارى شريف كښې همدغه يو روايت دى.[1] امام مسلم رحمه الله دا روايت د عبيدالله بن معاذ نه نقل كړيدې.[2] چه د احمد بن النضر شيخ دى، داسې د امام مسلم رحمه الله سند يوه درجه عالى دې او دا خبره وړاندې تيره شويده چه امام مسلم رحمه الله ته دلسې فضيلت صرف په څلورو احاديثو كښې حاصل دې.[3]

## ۱۴۴ - باب (وَمَا كَانَ اللَّهُ لِيُعَذِّبَهُمْ وَأَنْتَ فِيهِمْ وَمَا كَانَ اللَّهُ مُعَذِّبَهُمْ وَهُمْ يَسْتَغْفِرُونَ)

[۴۳۷۲] - حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ النَّضْرِ حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللَّهِ بْنُ مُعَاذٍ حَدَّثَنَا أَبِي حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ عَبْدِ الْحَمِيدِ صَاحِبِ الزِّيَادِيِّ سَمِعَ أَنَسَ بْنَ مَالِكٍ قَالَ قَالَ أَبُو جَهْلٍ (اللَّهُمَّ إِنْ كَانَ هَذَا هُوَ الْحَقَّ مِنْ عِنْدِكَ فَأَمْطِرْ عَلَيْنَا حِجَارَةً مِنَ السَّمَاءِ أَوِ ائْتِنَا بِعَذَابٍ أَلِيمٍ) فَنَزَلَتْ:
وَمَا كَانَ اللَّهُ لِيُعَذِّبَهُمْ وَأَنْتَ فِيهِمْ وَمَا كَانَ اللَّهُ مُعَذِّبَهُمْ وَهُمْ يَسْتَغْفِرُونَ * وَمَا لَهُمْ أَنْ لاَ يُعَذِّبَهُمُ اللَّهُ وَهُمْ يَصُدُّونَ عَنِ الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ) الآيَةَ [۴۳۷۱]

**د ايت مبارک دوه تفسيرونه:** روايت كښې دى چه ابوجهل وغيره أووئيل (اللَّهُمَّ إِنْ كَانَ هَذَا هُوَ الْحَقَّ مِنْ عِنْدِكَ فَأَمْطِرْ عَلَيْنَا حِجَارَةً مِنَ السَّمَاءِ أَوِ ائْتِنَا بِعَذَابٍ أَلِيمٍ) يعنى اى الله كه همدغه قرآن پاك ستا د طرف نه حق وى نو مونږ باندې كانړى راؤ ورَوه يا څه بل سخت عذاب نازل كړه، قرآن د دې جواب ورکړو،، وَمَا كَانَ اللَّهُ لِيُعَذِّبَهُمْ وَأَنْتَ فِيهِمْ،، په دې جواب كښې د عذاب نه نازليدلو دوه وجې خودلې دى، يو د حضوراكرم ﷺ په مكه كښې موجودګى او دويمه وجه د خلقو استغفار كول، ابن جرير وغيره اوفرمائيل،، وَمَا لَهُمْ أَنْ لاَ يُعَذِّبَهُمُ اللَّهُ وَهُمْ يَصُدُّونَ عَنِ الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ،، د آيت دا حصه هغه وخت نازل شوه كله چه هغوى ﷺ په مكه مكرمه كښې موجود وو او بيا د مدينې د هجرت نه پس د آيت دويمه حصه دا نازله شوه،، وَمَا كَانَ اللَّهُ لِيُعَذِّبَهُمْ وَأَنْتَ فِيهِمْ،، د ((يستغفرون)) ضمير مسلمانانو طرف ته راجع دې او مطلب دا دې چه مكه مكرمه كښې كمزورى مسلمانان موجود دى چه هجرت ئې نه شو كولې او د الله تعالى نه ئې استغفار كولو دهغوى د خاطره او د هغوى د استغفار د بركته په اهل مكه باندې عذاب نازل نه كړيشو. بيا چه كله دې ټولو حضراتو هجرت اوكړو او د مكې نه لاړل نو وړاندينې آيت نازل شو،، وَمَا كَانَ اللَّهُ لِيُعَذِّبَهُمْ وَأَنْتَ فِيهِمْ وَمَا كَانَ اللَّهُ مُعَذِّبَهُمْ وَهُمْ يَسْتَغْفِرُونَ،، مطلب دا دې چه اوس عذاب منع كونكى دواړه اسباب لرې شو، نه حضوراكرم ﷺ په مكه كښې باقى پاتې شو او نه استغفار كونكى مسلمانان په مكه كښې باقى پاتې شو، نو اوس د عذاب منع كولو څه ركاوټ باقى

[1] (فتح البارى: ۸۱۳۰۸ و تهذيب الكمال: ۱۱۵۱۵- ۵۱۶-
[2] (صحيح مسلم كتاب صفات المنافقين واحكامهم، رقم الحديث ۲۷۹۶
[3] (كشف البارى كتاب المغازى: ۶۹۲-

پاتي نه شو نو د مکي د فتح په موقع باندي په دي کافرانو باندي عذاب نازل کړیشو په دوی کښي بعض اُوژلي شول بعض اووېستلي شول او باقي مغلوب شول.[1]

د دي تفسير مطابق، «وَأَنتَ فِيهِمْ»، نه مراد رسول ﷺ په مکه کښي قيام دي او «يستغفرون» نه د مسلمانانو استغفار مراد دي. او د عذاب نه د مکي د فتح وخت کښي د کافرانو مغلوب کيدل مراد دی. بعض حضراتو فرمائيلی دی چه د حضوراکرم ﷺ په دنيا کښي موجوګی د عذاب منع کونکي ده. صرف په مکه کښي موجود کيدل مراد نه دی او د «يستغفرون» ضمير کافرانوته راجع دي. او مطلب دا دي چه د اهل مکه د بدو اعمالو تقاضا خو دا وه چه په دوی د آسمان نه کاڼي راوروليٰ وي خو دوه څيزونه د دي عذاب نه منع کونکي شو يو د حضور اکرم ﷺ په دنيا کښي موجود کيدل، او دويم د اهل مکه استغفار کول، د مکي خلق اګر که مشرکان وو خو د طواف وغيره په وخت کښي به ئي د «غفرانك غفرانك» ورد کولو، د دوی دا استغفار سره د دي چه د هغوی د پاره په آخرت کښي څه فائده نه ورکوله خو په دنيا کښي د هغوی دا فائده ضرور اوشوه چه هغه خلق د دُنيا د عذاب نه بچ شو، او وړاندي آيت، «وَمَا لَهُمْ أَلَّا يُعَذِّبَهُمُ اللَّهُ»، نه په دي صورت کښي به اُخروی عذاب مراد وی، مطلب به دا وی چه دا خلق خو د دنياوی عذاب نه بچ شو خو د آخرت عذاب به دوی ته ضرور ملاويږي.[2] نو چه د کوم عذاب نفی کړیشوي ده، «وَمَا لَهُمْ أَلَّا يُعَذِّبَهُمُ اللَّهُ»، دي نه عذاب دنياوی مراد دي او چه د کوم اثبات کړي شوي دي د، «وَمَا لَهُمْ أَلَّا يُعَذِّبَهُمُ اللَّهُ»، نو د دي نه د آخرت عذاب مراد دي.[3]

## ۱۴۵ = باب: وَقَاتِلُوهُمْ حَتَّى لَا تَكُونَ فِتْنَةٌ وَيَكُونَ الدِّينُ لِلَّهِ: [۳۹]

[۴۳۷۳ - ۴۳۷۴] - حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ عَبْدِ الْعَزِيزِ حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ يَحْيَى حَدَّثَنَا حَيْوَةُ عَنْ بَكْرِ بْنِ عَمْرٍو عَنْ بُكَيْرٍ عَنْ نَافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ - رضی الله عنهما - أَنَّ رَجُلًا جَاءَهُ فَقَالَ يَا أَبَا عَبْدِ الرَّحْمَنِ، أَلَا تَسْمَعُ مَا ذَكَرَ اللَّهُ فِي كِتَابِهِ (وَإِنْ طَائِفَتَانِ مِنَ الْمُؤْمِنِينَ اقْتَتَلُوا) إِلَى آخِرِ الآيَةِ، فَمَا يَمْنَعُكَ أَنْ لَا تُقَاتِلَ كَمَا ذَكَرَ اللَّهُ فِي كِتَابِهِ. فَقَالَ يَا ابْنَ أَخِي أَغْتَرُّ بِهَذِهِ الآيَةِ وَلَا أُقَاتِلُ أَحَبُّ إِلَيَّ مِنْ أَنْ أَغْتَرَّ بِهَذِهِ الآيَةِ الَّتِي يَقُولُ اللَّهُ تَعَالَى (وَمَنْ يَقْتُلْ مُؤْمِنًا مُتَعَمِّدًا) إِلَى آخِرِهَا

قَالَ فَإِنَّ اللَّهَ يَقُولُ (وَقَاتِلُوهُمْ حَتَّى لَا تَكُونَ فِتْنَةٌ). قَالَ ابْنُ عُمَرَ قَدْ فَعَلْنَا عَلَى عَهْدِ رَسُولِ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - إِذْ كَانَ الإِسْلَامُ قَلِيلًا، فَكَانَ الرَّجُلُ يُفْتَنُ فِي دِينِهِ، إِمَّا يَقْتُلُوهُ وَإِمَّا يُوثِقُوهُ، حَتَّى كَثُرَ الإِسْلَامُ، فَلَمْ تَكُنْ فِتْنَةٌ، فَلَمَّا رَأَى أَنَّهُ لَا يُوَافِقُهُ فِيمَا يُرِيدُ قَالَ

---

[1] (تفسير طبری: ۶۸۳\۲۱ و البحر المحيط: ۴۸۹\۳۱-
[2] (البحر المحيط: ۴۹۰\۱-
[3] (تفسير کبير: ۱۵۹\۱۵۱-

فَمَا قَوْلُكَ فِي عَلِيٍّ وَعُثْمَانَ. قَالَ ابْنُ عُمَرَ مَا قَوْلِي فِي عَلِيٍّ وَعُثْمَانَ أَمَّا عُثْمَانُ فَكَانَ اللَّهُ قَدْ عَفَا عَنْهُ، فَكَرِهْتُمْ أَنْ يَعْفُوَ عَنْهُ، وَأَمَّا عَلِيٌّ فَابْنُ عَمِّ رَسُولِ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - وَخَتَنُهُ. وَأَشَارَ بِيَدِهِ وَهَذِهِ ابْنَتُهُ أَوْ بِنْتُهُ حَيْثُ تَرَوْنَ.

[۴۳۷۴] - حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ يُونُسَ حَدَّثَنَا زُهَيْرٌ حَدَّثَنَا بَيَانٌ أَنَّ وَبَرَةَ حَدَّثَهُ قَالَ حَدَّثَنِي سَعِيدُ بْنُ جُبَيْرٍ قَالَ خَرَجَ عَلَيْنَا أَوْ إِلَيْنَا ابْنُ عُمَرَ، فَقَالَ رَجُلٌ كَيْفَ تَرَى فِي قِتَالِ الْفِتْنَةِ. فَقَالَ وَهَلْ تَدْرِي مَا الْفِتْنَةُ كَانَ مُحَمَّدٌ - صلى الله عليه وسلم - يُقَاتِلُ الْمُشْرِكِينَ، وَكَانَ الدُّخُولُ عَلَيْهِمْ فِتْنَةً، وَلَيْسَ كَقِتَالِكُمْ عَلَى الْمُلْكِ [۴۲۴۳]

**قوله:** فَقَالَ يَا ابْنَ أَخِي أَغْتَرُّ بِهَذِهِ الآيَةِ: حضرت عبدالله ابن عمر رضی الله عنهما له یو سړي راغلو او هغه ته ئي اوونیل چه تاسو د مسلمانانو د خپل مینځ جګړه کښي حصه ولي نه اخلئي، په قرآن کښي چه د الله تعالی ارشاد دي، ، وَإِنْ طَائِفَتَانِ مِنَ الْمُؤْمِنِينَ اقْتَتَلُوا، ، حضرت عبدالله ابن عمر رضی الله عنهما جواب ورکړو چه د دي آیت په سلسله کښي په دهوکه کښي پریوزم (یعنی د دي په صحیح مفهوم باندي پوهه نه شم او د مسسلمانانو په جنګ کښي شرکت اونه کړم) دا ماته ډیر خوښ دی د دي نه چه زه په دهوکه کښي پریوزم او د دي آیت په سلسله کښي کوم کښي چه الله تعالی فرمائیلی دی (وَمَنْ يَقْتُلْ مُؤْمِنًا مُتَعَمِّدًا) یعنی د دي آیت په سلسله کښي زه څه غلط فهمی نه شم برداشت کولي چه د مؤمن قتل عمداً زه معمولی او سپك كار اګڼړم نو څه د قتلِ مؤمن عمداً ارتکاب نه شم کولي. بعض نسخو کښي د ((اغتر)) په ځائي ((اعیر)) باب تفعیل نه صیغه مجهول واحد متکلم ده.

((اعیر تعمیرا)) معنی شوه شرم ورکول، عیب لګول نو په دي صورت کښي به ترجمه دا وی ما ته، ، وَإِنْ طَائِفَتَانِ مِنَ الْمُؤْمِنِينَ اقْتَتَلُوا، ، په آیت باندي عمل نه کولو باندي پیغور راکړي شی نو دا زما په نزد بهتر دی د هغي نه چه ما ته ، ، وَمَنْ يَقْتُلْ مُؤْمِنًا مُتَعَمِّدًا، ، باندي عمل کولو په وجه کوم پیغور راکړي شي.

**قوله:** وَأَمَّا عَلِيٌّ فَابْنُ عَمِّ رَسُولِ اللَّهِ صلى الله عليه وسلم - وَخَتَنُهُ. وَأَشَارَ بِيَدِهِ وَهَذِهِ ابْنَتُهُ أَوْ بِنْتُهُ: یعنی حضرت علی رضی الله عنه د حضوراکرم صلی الله علیه وسلم د تره ځوئ او ځوم دي، په لاس باندي ئي اشاره اوکړه چه دا د هغه کور دي یعنی نسبی قرابت سره سره د مکان په اعتبار هم هغه نبی کریم صلی الله علیه وسلم سره نزدي او متصل وو. دلته په روایت کښي، ،هذه ابنته او بیته، ، دي لیکن په دي کښي صحیح، ،هذا بیته، ، والانسخه ده نو امام بخاری رحمه الله دا روایت په ص: ۶۴۸ باندي نقل کړیدي هلته بي شکه هم، ،هذا بیته، ، وارد شوي دي.(۱)

۱) (صحیح بخاری کتاب التفسیر باب قوله وقاتلوهم حتی لا تکون فتنة: ۶۴۸ـ

## ۱۴۶ = باب (يَا أَيُّهَا النَّبِيُّ حَرِّضِ الْمُؤْمِنِينَ عَلَى الْقِتَالِ إِنْ يَكُنْ مِنْكُمْ عِشْرُونَ صَابِرُونَ يَغْلِبُوا مِائَتَيْنِ وَإِنْ يَكُنْ مِنْكُمْ مِائَةٌ يَغْلِبُوا أَلْفًا مِنَ الَّذِينَ كَفَرُوا بِأَنَّهُمْ قَوْمٌ لَا يَفْقَهُونَ) [۴۰]

[۴۳۷۵] (۱) حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ عَمْرٍو عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ - رضى الله عنهما - لَمَّا نَزَلَتْ (إِنْ يَكُنْ مِنْكُمْ عِشْرُونَ صَابِرُونَ يَغْلِبُوا مِائَتَيْنِ) فَكُتِبَ عَلَيْهِمْ أَنْ لَا يَفِرَّ وَاحِدٌ مِنْ عَشَرَةٍ - فَقَالَ سُفْيَانُ غَيْرَ مَرَّةٍ أَنْ لَا يَفِرَّ عِشْرُونَ مِنْ مِائَتَيْنِ
ثُمَّ نَزَلَتِ (الْآنَ خَفَّفَ اللَّهُ عَنْكُمُ) الْآيَةَ، فَكَتَبَ أَنْ لَا يَفِرَّ مِائَةٌ مِنْ مِائَتَيْنِ - زَادَ سُفْيَانُ مَرَّةً - نَزَلَتْ (حَرِّضِ الْمُؤْمِنِينَ عَلَى الْقِتَالِ إِنْ يَكُنْ مِنْكُمْ عِشْرُونَ صَابِرُونَ) . قَالَ سُفْيَانُ وَقَالَ ابْنُ شُبْرُمَةَ وَأَرَى الْأَمْرَ بِالْمَعْرُوفِ وَالنَّهْيَ عَنِ الْمُنْكَرِ مِثْلَ هَذَا.

په شروع کښي دا حکم وو چه يو مسلمان به په جنګ کښي د لسو کافرانو نه نه تختی، لس مسلمانان به سلو، شل به د دوو سوؤ او زر به د لسو زرو کافرانو مقابله کوی ليکن روستو دا حکم منسوخ شو او آيت نازل شو، «الْآنَ خَفَّفَ اللَّهُ عَنْكُمْ وَعَلِمَ أَنَّ فِيكُمْ ضَعْفًا فَإِنْ يَكُنْ مِنْكُمْ مِئَةٌ صَابِرَةٌ يَغْلِبُوا مِائَتَيْنِ»، يعنی که سل مسلمانان کلك ولاړ وی نو هغوی به په دوؤ سوؤ کافرانو غالب راتلي شی. په دي کښي اشاره اوکړي شوه چه د خپل ځان نه په دوه چنده به مسلمانان د غالب کيدو توقع لری نو د دي د وجي تيخته جائز نه ده، او که د مخالف فريق شمير د دوه چنده نه هم زيات شو نو تيخته جائز ده.

**د ميدان جنګ نه کوم وخت تيخته جائز ده؟**: د جمهورو علماؤ او ائمه اربعه په نزد همدغه حکم دي چه تر کومي د مخالف فريق تعداد د دوچند نه زيات نه وی هغه وخت پوري د ميدان جنګ نه تيخته حرام ده.(۲) په دي کښي خبري شوي دی چه د دښمن دوچند کيدل د شمير په اعتبار سره دی يا د طاقت او د وسلي په اعتبار سره دی. ابن ماجشون مالکی وغيره فرمائی چه دا دوچند کيدل د شمير په اعتبار سره نه دی د وسلي او طاقت په اعتبار سره دی نو که سل مسلمانان د سل کافرانو نه تيخته اختيار کړی چه په قوت او وسلي سره د هغوی نه دوچند وی نو د هغوی په نزد دا جائز ده.(۳) ليکن د جمهورو په نزد دا دو چند کيدل د شمير په اعتبار سره دی نو په مذکورصورت کښي د دي سلو مسلمانانو تيخته اختيارول د جمهورو په نزد جائز نه دی. او که د کافرانو شمير د دوچند نه هم زيات شی نو بيا تيخته اختيارول جائز دی. البته

---

۱) (وايضا اخرجه فى كتاب التفسير باب الان خفف الله عنكم رقم الحديث: ۴۳۷۶ وهذا الحديث من افراده (عمدة القارى)-

۲) (الجامع لاحكام القرآن: ۷\۳۸۰ - ۳۸۱-

۳) (الجامع لاحكام القرآن: ۷\۳۸۰-

امام محمد رحمه الله فرمائي چه د اسلام د لښکر شمير دولس زرو ته اورسي نو بيا د ميدان جنګ نه تيښته جائز نه ده که د دښمن شمير د دوچند نه زيات ولي نه وي.(۱) او په استدلال کښي د زهري طريق نه مروی حديث پيش کوی چه رسول الله ﷺ فرمائي ((خير الاصحاب اربعة و خير السرايا اربع و خير الجيوش اربعة ولن يؤتي اثناعشر الفا من قلة ولن يغلب)) (۲)

په دي روايت کښي تصريح ده چه د مسلمانانو د لښکر تعداد کله زره وي او که د دولسو زرو نه زيات وي نو هغوی به د کافرانو د مقابله نه تيښته نه اختياروی که کافران هر څومره زيات ولي نه وي.علامه قرطبي رحمه الله د امام مالک رحمه الله نه خو يو روايت د امام محمد رحمه الله د مذهب مطابق نقل کړيدي.(۳)

تاريخ اسلام کښي د دي ډير مثالونه موجود دی چه مسلمانان د کافرانو نه په ډير کم تعداد کښي وو خو ثابت قدم وو نو الله تعالى هغوی ته فتح او کاميابی ورکړه. د غزوه موته واقعه تيره شوي ده په دي کښي د مسلمانانو شمير دري زره وو او د روميانو او د هغوی د ملګرو شمير دوه لاکهه وو، جنګ قادسيه کښي د مسلمانانو شمير څلويښت زره وو او کافران د بعض رواياتو مطابق د دوو لاکهو نه زيات وو او د أندلس د فتح په وخت کښي د طارق بن زياد په مشرئي کښي د اسلام د لښکر شمير اوولس سوه وو او مخالف لښکر اويا زره، ،۷۰۰۰۰، ، وو(۴)

**قوله: (قال سفيان وقال ابن شبرمة واری الامر بالمعروف والنهي عن المنكر مثل هذا ابن شبرمة:** شبرمة (دشين ضمه او د باء سکون او د راء ضمه سره) د ده نوم عبدالله دي تابعي دي او د کوفي قاضي پاتي شوي دي، په کال ۱۴۴ هجري کښي د هغه وفات شوي دي.(۵) دوی فرمائي چه امر بالمعروف والنهی عن المنکر په سلسله کښي هم دا حکم دي چه د يو سړی په مقابله کښي دوه سړی په منکر باندي وی نو د هغه د پاره تيښته جائز نه ده، خو که د دوو نه زيات شو نو بيا تيښته جائز ده.

## ۱۴۷=باب (الْآنَ خَفَّفَ اللَّهُ عَنكُمْ وَعَلِمَ أَنَّ فِيكُمْ ضَعْفًا) الآية إلى قوله (وَاللَّهُ مَعَ الصَّابِرِينَ)

---

(۱) (احكام القرآن للجصاص:۸\٤۳ الكلام فى الفرار من الزحف-

(۲) (الحديث اخرجه ابوداؤد عن ابى حيثمة زهيربن حرب وعن وهب بن جرير عن ابيه عن يونس عن الزهرى عن عبيدالله بن عبدالله عن ابن عباس رضى الله عنه فى كتاب الجهاد باب فيما يستحب من الجيوش والرفقاء والسرايا رقم الحديث:۱۵۵۵ وقال هذا حديث حسن غريب لا يسنده كبير احد غيرجريرابن حازم و انما روى هذاالحديث عن الزهرى عن النبى صلى الله عليه وسلم مرسلا-

(۳) (الجامع لاحكام القرآن۸۷\۳۸۲-

(۴) (الجامع لاحكام القرآن ۸۷\۳۸۱-

(۵) (عمدة القارى:۱۸\۲۵۲-

[۴۳۷۶] - حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ عَبْدِ اللهِ السُّلَمِيُّ أَخْبَرَنَا عَبْدُ اللهِ بْنُ الْمُبَارَكِ أَخْبَرَنَا جَرِيرُ بْنُ حَازِمٍ قَالَ أَخْبَرَنِي الزُّبَيْرُ بْنُ خِرِّيتٍ عَنْ عِكْرِمَةَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ - رضى الله عنهما - قَالَ لَمَّا نَزَلَتْ (إِنْ يَكُنْ مِنْكُمْ عِشْرُونَ صَابِرُونَ يَغْلِبُوا مِائَتَيْنِ) شَقَّ ذَلِكَ عَلَى الْمُسْلِمِينَ حِينَ فُرِضَ عَلَيْهِمْ أَنْ لَا يَفِرَّ وَاحِدٌ مِنْ عَشَرَةٍ، فَجَاءَ التَّخْفِيفُ فَقَالَ (الْآنَ خَفَّفَ اللهُ عَنْكُمْ وَعَلِمَ أَنَّ فِيكُمْ ضَعْفًا فَإِنْ يَكُنْ مِنْكُمْ مِائَةٌ صَابِرَةٌ يَغْلِبُوا مِائَتَيْنِ). قَالَ فَلَمَّا خَفَّفَ اللهُ عَنْهُمْ مِنَ الْعِدَّةِ نَقَصَ مِنَ الصَّبْرِ بِقَدْرِ مَا خُفِّفَ عَنْهُمْ. [ر: ۴۳۷۵]

## ۱۴۷ = بَابُ تَفْسِيرِ سُورَةِ بَرَاءَةٌ:

(وَلِيجَةً) كُلُّ شَيْءٍ أَدْخَلْتَهُ فِي شَيْءٍ. (الشُّقَّةُ) السَّفَرُ. الْخَبَالُ الْفَسَادُ، وَالْخَبَالُ الْمَوْتُ. (وَلَا تَفْتِنِّي) لَا تُوَبِّخْنِي. (كَرْهًا) وَكُرْهًا وَاحِدٌ. (مُدَّخَلًا) يُدْخَلُونَ فِيهِ. (يَجْمَحُونَ) يُسْرِعُونَ (وَالْمُؤْتَفِكَاتِ) ائْتَفَكَتْ انْقَلَبَتْ بِهَا الْأَرْضُ
(أَهْوَى) أَلْقَاهُ فِي هُوَّةٍ. (عَدْنٍ) خُلْدٍ، عَدَنْتُ بِأَرْضٍ أَيْ أَقَمْتُ، وَمِنْهُ مَعْدِنٌ وَيُقَالُ فِي مَعْدِنِ صِدْقٍ. فِي مَنْبَتِ صِدْقٍ. الْخَوَالِفُ الْخَالِفُ الَّذِي خَلَفَنِي فَقَعَدَ بَعْدِي، وَمِنْهُ يَخْلُفُهُ فِي الْغَابِرِينَ، وَيَجُوزُ أَنْ يَكُونَ النِّسَاءُ مِنَ الْخَالِفَةِ، وَإِنْ كَانَ جَمْعَ الذُّكُورِ فَإِنَّهُ لَمْ يُوجَدْ عَلَى تَقْدِيرِ جَمْعِهِ إِلَّا حَرْفَانِ فَارِسٌ وَفَوَارِسُ، وَهَالِكٌ وَهَوَالِكُ. (الْخَيْرَاتُ) وَاحِدُهَا خَيْرَةٌ وَهِيَ الْفَوَاضِلُ. (مُرْجَوْنَ) مُؤَخَّرُونَ. الشَّفَا شَفِيرٌ وَهُوَ حَدُّهُ، وَالْجُرُفُ مَا تَجَرَّفَ مِنَ السُّيُولِ وَالْأَوْدِيَةِ. (هَارٍ) هَائِرٍ. (لَأَوَّاهٌ) شَفَقًا وَفَرَقًا. وَقَالَ إِذَا مَا قُمْتُ أَرْحَلُهَا بِلَيْلٍ تَأَوَّهُ آهَةَ الرَّجُلِ الْحَزِينِ.

## سورة براءة

**د کلماتو تشریح:**

**قوله: وَلِيجَةً: كُلُّ شَيْءٍ أَدْخَلْتَهُ فِي شَيْءٍ:** آیت کریمه کښې دی: ،،وَلَمْ يَتَّخِذُوا مِنْ دُونِ اللهِ وَلَا رَسُولِهِ وَلَا الْمُؤْمِنِينَ وَلِيجَةً،، امام بخاری رحمه الله فرمائی چه ولیجة هغه څیز ته وائی کوم چه په بل څیز کښې ته داخل کړې دا د ولوج په معنی دخول نه مشتق دې.[1] دلته په آیت کښې رازدار ته او دننه د زړه دوست مرا دې.

**قوله: الشُّقَّةُ: السَّفَرُ:** آیت کریمه کښې دی: ،،لَوْ كَانَ عَرَضًا قَرِيبًا وَسَفَرًا قَاصِدًا لَاتَّبَعُوكَ وَلَكِنْ بَعُدَتْ عَلَيْهِمُ الشُّقَّةُ،، په دې کښې ئې د «شقة» تفسیر سفر سره کړې دې او بعضو وئیلې دی شقة نه مدینه منوره نه شام پورې فاصله مراد ده.[2]

[1] (قال الراغب فی المفردات:۵۳۲ الولوج الدخول فی مضیق والولیجة کل ما یتخذه الانسان معتمدا علیه ولیس من اهله قولهم فلان ولیجة فی القوم اذاالحق بهم ولیس منهم انسانا کان او غیره-
[2] (عمدة القاری: ۱۸\۲۵۴-

**قوله:** الْخَبَالُ الْفَسَادُ، وَالْخَبَالُ الْمَوْتُ: آیت کریمه کښي دی: ،، لَوْخَرَجُوا فِيكُمْ مَا زَادُوكُمْ إِلَّا خَبَالًا،، امام فرمائی چه د ((الخبال)) معنی فساد او د ((خبال)) معنی مرګ دي. علامه عینی رحمه الله فرمائی چه ((الموت)) په ځای ((الموتة)) کیدل پکار دی ((موتة)) معنی مرګي او لیونتوب دي.[1]

**قوله:** وَلَا تَفْتِنِّي: لَا تُوَبِّخْنِي: آیت کریمه کښي دی: ،، قُلْ أَنْفِقُوا طَوْعًا أَوْ كَرْهًا لَنْ يُتَقَبَّلَ مِنْكُمْ.. او دي ((منافقين متخلفين)) نه بعض هغه دی چه وائی ماته اجازت راکړه او ما په فتنه کښي مه اچوه یعنی په ما باندي زجر او توبیخ مه کوه.

**قوله:** كَرْهًا: وَكُرْهًا وَاحِدٌ: آیت کریمه کښي دی: ،، قُلْ أَنْفِقُوا طَوْعًا أَوْ كَرْهًا لَنْ يُتَقَبَّلَ مِنْكُمْ.. اووایه چه تاسو خرچ کړئي په خوشحالئي سره یا په خفګان سره ستاسو نه به هیڅ کله قبول نه شی وائی کرها (د کاف فتح سره) او کرها (د کاف ضمه سره) د دواړو ناخوښی ده.

**قوله:** مُدَّخَلًا: يُدْخَلُونَ فِيهِ: آیت کریمه کښي دی: ،، لَوْ يَجِدُونَ مَلْجَأً أَوْ مَغَارَاتٍ أَوْ مُدَّخَلًا لَوَلَّوْا إِلَيْهِ وَهُمْ يَجْمَحُونَ،، که چري هغه (منافقین) أوموی ځائی د پناه یا غار د ننوتلو ځائی نو خامخا به هغه طرف ته تلل او منډي به ئي وهلي د ((يجمعون)) معنی ((يسرعون)) یعنی منډي وهونکی او تختیدونکی ده.

**قوله:** وَالْمُؤْتَفِكَاتِ: ائْتَفَكَتْ انْقَلَبَتْ بِهَا الْأَرْضُ: آیت کریمه کښي دی، ،وَأَصْحَابِ مَدْيَنَ وَالْمُؤْتَفِكَاتِ،، امام فرمائی دي کښي ((وَالْمُؤْتَفِكَاتِ)) د ((ائْتَفَكَتْ اى انْقَلَبَتْ بِهَا الْأَرْضُ)) نه ماخوذ دي. ((انْقَلَبَتْ بِهَا الْأَرْضُ)) دلته دینه ((منقلب)) او اُلټه شوي د قوم لوط کلي مراد دي.

**قوله:** أَهْوَى: أَلْقَاهُ فِي هُوَّةٍ: دا لفظ په سورة براءة کښي نیشته سورة نجم کښي دي ،، والمؤتفكة اهوى،، په سورة براءة،، وَالْمُؤْتَفِكَاتِ،، راغلي دي، ،مؤتفكة،، جمع دهڅو هم دي مناسبت سره امام بخاری رحمه الله لفظ د،،اهوى،، تشریح دلته ذکر کړه، اهوى معنی هغه ئي په یو کنده کښي واچول، هوة وائی ښکته زمکه او کندي ته.

**قوله:** (عَدْنٍ) خُلْدٍ، عَدَنْتُ بِأَرْضٍ أَيْ: أَقَمْتُ، وَمِنْهُ مَعْدِنٌ وَيُقَالُ فِي مَعْدِنِ صِدْقٍ. فِي مَنْبَتِ صِدْقٍ: (فِي جَنَّاتِ عَدْنٍ) دي کښي د ((عدن)) معنی ((خلد)) ده یعنی د همیشه والی په باغونو کښي. وائی ((عدنت بارض)) ما په هغي کښي اقامت اختیار کړو هم دینه ((معدن)) مشتق دي، د سرو زرو سپینو زرو کان ته هم وائی. وئیلي شی ((فى معدن صدق)) یعنی ((فى منبت صدق)) د صدق او ربنتیاو د راټوکیدو په ځای کښي دي. دا د هغه سړی په باره کښي وائی څوك چه هم په صدق کښي وی او د دروغو هلته تیریدل نه وی.

[1] (عمدة القاری: ۱۸ / ۲٥٤ -

**قوله: الْخَوَالِفُ: الْخَالِفُ الَّذِي خَلَفَنِي فَقَعَدَ بَعْدِي:** آیت کریمه کښې دی. .رَضُوا بِأَنْ يَكُونُوا مَعَ الْخَوَالِفِ وَطَبَعَ اللَّهُ عَلَى قُلُوبِهِمْ فَهُمْ لَا يَعْلَمُونَ. ، دې کښې خوالف د خالف جمع ده. خالف هغه سړي چه مانه شاته پاتې شوې وی او زما نه روستو هغه په کور کښې ناست وی. کله چه څوك مړ شی نو هلته د دعا په توګه وائی ((والله يخلفه في الغابرين)) یعنی د هغه په پسماندګانو کښې الله تعالی د هغه خلیفه جوړ شی. وړاندې امام فرمائی دا هم ممکن دی چه ((خوالف)) نه مراد ښځې وی او دا د ((خالفة)) جمع وی ،ځکه چه فاعلة جمع د فواعل په وزن باندې راځی، او که الف مذکر یعنی د خالف جمع وی نو دا به شاذ وی ځکه چه د فاعل جمع فواعل په وزن صرف دوو لفظونو کښې راځي یو فارس چه د دې جمع فوارس راځی بل د هالك چه د دې جمع هوالك راځی.

لیکن د امام دا قول محل نظر دې ځکه چه مذکوره دوو لفظونو نه علاوه هم یو څو لفظونه داسې دی د کومو جمع چه د فواعل په وزن راځی، لکه سابق، داجن، او ناکس، چه د دې جمع سوابق، دواجن، او نواکس راځی.([1])

**قوله: الْخَيْرَاتُ: وَاحِدُهَا خَيْرَةٌ وَهِيَ الْفَوَاضِلُ:** آیت کریمه کښې دی، .أُولَئِكَ لَهُمُ الْخَيْرَاتُ وَأُولَئِكَ هُمُ الْمُفْلِحُونَ. ، او هم د دوی د پاره ټولې خوبیانې دی او هم دغه خلق کامیاب دی(کومو خلقو چه په خپلو مالونو او ځانونو سره جهاد اوکړو) فرمائی چه د خیرات واحد خیرة دی(په فتح د خاء سره او سکون د یاء او اخرها هاء التانيث) د دې په تفسیر کښې ابوعبیده ﷺ فرمائی وهي الفواضل یعنی فضائل خوبیانې، نیکئی او ښیګړې.

**قوله: مُرْجَئُونَ: مُؤَخَّرُونَ:** آیت کریمه کښې دی. .وَآخَرُونَ مُرْجَوْنَ لِأَمْرِ اللَّهِ إِمَّا يُعَذِّبُهُمْ وَإِمَّا يَتُوبُ عَلَيْهِمْ. . او څه خلق هغه دی د کومو معامله چه د الله تعالی حکم راتلو پورې ملتوی ده چه هغوی له به سزا ورکوی یا به د هغوی توبه قبلوی. فرمائی چه په آیت کښې د ((مرجون)) معنی ده د چا معامله چه روستو کړې شی.

**قوله: الشَّفَا: شَفِيرٌ وَهُوَ حَدُّهُ، وَالْجُرُفُ مَا تَجَرَّفَ مِنَ السُّيُولِ وَالْأَوْدِيَةِ. (هَارٍ) هَائِرٍ:** آیت کریمه کښې دی. .أَمْ مَنْ أَسَّسَ بُنْيَانَهُ عَلَى شَفَا جُرُفٍ هَارٍ فَانْهَارَ بِهِ فِي نَارِ جَهَنَّمَ. ، یا هغه سړی چا چه د خپل عمارت بنیاد د یو غار په غاړه باندې چه پریوزی کیخودې وی. بیا هغه عمارت دا (باني) واخلی او د دوزخ اُور ته پریوزی. دې کښې د ((شفا)) معنی ده شفیر یعنی غاړه، ((جرف)) د نالې غاړې ته وائی چه د نهر او وادیانو اوبو سره کمزورې کیږی او پریوتلو ته نزدې وی او لږ شان خوزیدو سره پریوزی.([2])

---

[1] (عمدة القاری: ۲۵٦\۱۸ وفتح الباری: ۳۱٤\۸-
[2] (قال الالوسی فی روح المعانی: ۲۲\۱۱ الجرف بضمتين البئرالتی لم تطو و قيل هو الهوة وما يجرفه السيل من الاودية لجرف الماء له ای اكله و اذهابه-

«هار» په اصل كښې «هائر» وو او هائر كښې قلب شوي دي. هائر نه ئې هاري جوړ كړو، بيا ئې همزه د ماقبل د كسرې د وجهې نه يا جوړه كړه هارى جوړ شو، ياء ئې حذف كړه هار جوړ شو په معنى د پريوتلو.(١)

**قوله: لأواه: شفقا وفرقا: وقال الشاعر:**(٢)،،

إذا ما قمت أرحلها بليل    تأوه آهة الرجل الحزين

آيت كريمه كښې دى،، إن إبراهيم لأواه حليم،، يعنى ابراهيم عليه السلام ډير آه آه كونكي وو او حليم الطبع وو، امام فرمائى شفقا و فرقا يعنى د الله تعالى د ويرې نه به هغوى آه آه كول او د رب به حضور كښې ژړا فرياد كونكي وو، شاعر وائى كله چه زه د شپې په خپله أوښه باندې كيجاوه تړم نو هغه د غمګين سړى پشان آه آه كوى.

١٤٩=باب قوله: براءة من الله ورسوله إلى الذين عاهدتم من المشركين

اذان [٣] إعلام وقال ابن عباس أذن يصدق تطهرهم وتزكيهم بها [١٠٣] ونحوها كثير والزكاة الطاعة والإخلاص لا يؤتون الزكاة [فصلت ٧] لا يشهدون أن لا إله إلا الله يضاهون [٣٠] يشبهون

**قوله: وقال ابن عباس: أذن: يصدق:** آيت كريمه كښې دى.. ومنهم الذين يؤذون النبي ويقولون هو أذن،،

د أذن معنى راخى غوږ، دلته د دې معنى بيان كړيده د هغه سړى چه د هرې خبرې تصديق

---

(١) (قال الالوسى فى روح المعانى:٢٢ \ ١١ و اصله هاور او هاير فهو مقلوب وزونه فالع و قيل انه حذفت عينه اعتباطا فوزنه فال وقيل انه لا قلب فيه و لا حذف و اصله هور او هير على وزن فعل بكسر العين ككتف فلما تحرك حرف العلة و انفتح ما قبله قلب الفا وفى الكشاف:٢ \ ٣١٢ ونظيره: شاك و صات فى شائك و صائت الفه ليست بالف فاعل انما هى عينه و اصله هور و شوك و صوت-

(٢) (و هوالمثقب العبدى وانظر بعض اشعار هذه القصيدة فى عمدة القارى:١٨ \ ٢٥٧ و فتح البارى:٨ \ ٣١٥-

أفاطم قبل بينك متعينى ... ومنعك ما سألت كأن متعينى
فلا تعدى مواعد كاذبات ... تمر بها رياح الصيف دونى
فإنى لو تخالفنى شمالى ... عنادك ما وصلت بها يمينى
إذا لقطعتها ولقلت: بينى! ... كذلك أجتوى من يجتوينى
إذا ما قمت أرحلها بليل ... تأوه آهة الرجل الحزين
تقول إذا درأت لها وضينى ... أهذا دينه أبدا ودينى؟
أكل الدهر حلا وارتحالا؟ ... أما يبقى على ولايقينى!!
فأبقى باطلى والجد منها ... كدكان الدرابنة المطين

وكان ابو محمد بن العلا يقول لو كان الشعر مثلها وجب على الناس ان يتعلموه-

كوي. بعض منافقانو به وئيل چه حضوراكرم ﷺ خو د هري خبري تصديق كوي، د رښتياؤ او د دروغو د پيژندګلو تكليف نه برداشت كوي. قرآن د دي جواب وركړو (قُلْ أُذُنُ خَيْرٍ لَّكُمْ) يعنى كه هغه هم غوږونه دى نو هم ستاسو د خيګړي د پاره، د نبى ﷺ عادت مبارك ستاسو په حق كښي بهتر دي.

**قوله: تُطَهِّرُهُمْ وَتُزَكِّيهِم بِهَا: نَحْوُهَا كَثِيرٌ وَالزَّكَاةُ: الطَّاعَةُ وَالإِخْلَاصُ.** آيت كريمه كښي دى، خُذْ مِنْ أَمْوَالِهِمْ صَدَقَةً تُطَهِّرُهُمْ وَتُزَكِّيهِم بِهَا، ، د تطهرهم او تزكيهم دواړو هم يوه معنى ده. د تطهير نه دلته «تزكية عن الذنوب» او «تزكية القلب» مراد ده ده. د زكاة په ادائيګئى سره د زړه نه رذيله بُخل ختميږى، وړاندي امام فرمائى «ونحوها كثير» يعنى په الفاظو كښي مختلف ليكن معنى كښي متحد كلمات د عربو په لغت كښي ډير زيات مثالونه دى. بيا اوفرمائيلى شو د زكاة معني طاعت او اخلاص هم راځي.

**قوله: لَا يُؤْتُونَ الزَّكَاةَ: لَا يَشْهَدُونَ أَنْ لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ:** آيت كريمه كښي دى، ، وَوَيْلٌ لِّلْمُشْرِكِينَ ۝ الَّذِينَ لَا يُؤْتُونَ الزَّكَاةَ... الخ، ، ، دي كښي د «لَا يُؤْتُونَ الزَّكَاةَ» تشريح ده، چه هغه د «لا اله الا الله» ګواهى نه وركوى. نو په دي آيت كښي د زكاة نه د مال والازكاة مراد نه دي بلكه قلبى زكاة ترينه مراد دي چه شرك او كفر نه زړه پاكوى. د آيت دا تفسير د ابن عباس ﷺ نه نقل دي.[1] دا آيت په سورة براءة كښي نيشته بلكه په سورة فُصِّلَتْ كښي دي. په سورة براءة كښي د «وَتُزَكِّيهِم بِهَا» په مناسبت سره امام بخارى ﷺ دا آيت ذكر كړي دي.

[۴۳۷۷] حَدَّثَنَا أَبُو الْوَلِيدِ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ قَالَ سَمِعْتُ الْبَرَاءَ - رضى الله عنه - يَقُولُ آخِرُ آيَةٍ نَزَلَتْ (يَسْتَفْتُونَكَ قُلِ اللَّهُ يُفْتِيكُمْ فِي الْكَلَالَةِ) وَآخِرُ سُورَةٍ نَزَلَتْ بَرَاءَةٌ. [ر: ۴۱۰۶]

**دټولو نه په اخركي نازليدونكي سورت:** حضرت براء بن عازب ﷺ فرمائى چه د ټولو نه په آخره كښي سورة براءة نازل شو، مطلب دا چه د سورة براءة اكثره حصه په آخره كښي نازل شوه.[2] د پوره سورة په آخر كښي نازليدل مراد نه دى. پوره سورة چه د ټولو په آخره كښي نازل شوي دي هغه (إِذَا جَاءَ نَصْرُ اللَّهِ وَالْفَتْحُ ...... الخ) دي.[3]

## ١٥٠ = قَوْلِهِ (فَسِيحُوا فِي الْأَرْضِ أَرْبَعَةَ أَشْهُرٍ وَاعْلَمُوا أَنَّكُمْ غَيْرُ مُعْجِزِي اللَّهِ وَأَنَّ اللَّهَ مُخْزِي الْكَافِرِينَ)

سِيحُوا سِيرُوا.

---

[1] (عمدة القارى: ۲۵۹\۱۸-
[2] (عمدة القارى: ۲۵۹\۱۸-
[3] (فتح البارى: ۳۱۶\۸-

[٤٢٧٨] حَدَّثَنَا سَعِيدُ بْنُ عُفَيْرٍ قَالَ حَدَّثَنِي اللَّيْثُ قَالَ حَدَّثَنِي عُقَيْلٌ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ وَأَخْبَرَنِي حُمَيْدُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ أَنَّ أَبَا هُرَيْرَةَ - رضي الله عنه - قَالَ بَعَثَنِي أَبُو بَكْرٍ فِي تِلْكَ الْحَجَّةِ فِي مُؤَذِّنِينَ، بَعَثَهُمْ يَوْمَ النَّحْرِ يُؤَذِّنُونَ بِمِنًى أَنْ لاَ يَحُجَّ بَعْدَ الْعَامِ مُشْرِكٌ، وَلاَ يَطُوفَ بِالْبَيْتِ عُرْيَانٌ. قَالَ حُمَيْدُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ ثُمَّ أَرْدَفَ رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - بِعَلِيِّ بْنِ أَبِي طَالِبٍ، وَأَمَرَهُ أَنْ يُؤَذِّنَ بِبَرَاءَةَ. قَالَ أَبُو هُرَيْرَةَ فَأَذَّنَ مَعَنَا عَلِيٌّ يَوْمَ النَّحْرِ فِي أَهْلِ مِنًى بِبَرَاءَةَ، وَأَنْ لاَ يَحُجَّ بَعْدَ الْعَامِ مُشْرِكٌ، وَلاَ يَطُوفَ بِالْبَيْتِ عُرْيَانٌ.

## ١٥١ = باب قَوْلِهِ (وَأَذَانٌ مِنَ اللَّهِ وَرَسُولِهِ إِلَى النَّاسِ يَوْمَ الْحَجِّ الأَكْبَرِ أَنَّ اللَّهَ بَرِيءٌ مِنَ الْمُشْرِكِينَ وَرَسُولُهُ فَإِنْ تُبْتُمْ فَهُوَ خَيْرٌ لَكُمْ وَإِنْ تَوَلَّيْتُمْ فَاعْلَمُوا أَنَّكُمْ غَيْرُ مُعْجِزِي اللَّهِ وَبَشِّرِ الَّذِينَ كَفَرُوا بِعَذَابٍ أَلِيمٍ)

آذَنَهُمْ أَعْلَمَهُمْ.

[٤٢٧٩] حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ يُوسُفَ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ حَدَّثَنِي عُقَيْلٌ قَالَ ابْنُ شِهَابٍ فَأَخْبَرَنِي حُمَيْدُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ أَنَّ أَبَا هُرَيْرَةَ قَالَ بَعَثَنِي أَبُو بَكْرٍ - رضي الله عنه - فِي تِلْكَ الْحَجَّةِ فِي الْمُؤَذِّنِينَ، بَعَثَهُمْ يَوْمَ النَّحْرِ يُؤَذِّنُونَ بِمِنًى أَنْ لاَ يَحُجَّ بَعْدَ الْعَامِ مُشْرِكٌ، وَلاَ يَطُوفَ بِالْبَيْتِ عُرْيَانٌ. قَالَ حُمَيْدٌ ثُمَّ أَرْدَفَ النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - بِعَلِيِّ بْنِ أَبِي طَالِبٍ، فَأَمَرَهُ أَنْ يُؤَذِّنَ بِبَرَاءَةَ. قَالَ أَبُو هُرَيْرَةَ فَأَذَّنَ مَعَنَا عَلِيٌّ فِي أَهْلِ مِنًى يَوْمَ النَّحْرِ بِبَرَاءَةَ، وَأَنْ لاَ يَحُجَّ بَعْدَ الْعَامِ مُشْرِكٌ، وَلاَ يَطُوفَ بِالْبَيْتِ عُرْيَانٌ.

## ١٥٢ = باب: (إِلاَّ الَّذِينَ عَاهَدْتُمْ مِنَ الْمُشْرِكِينَ)

[٤٢٨٠] = حَدَّثَنَا إِسْحَاقُ حَدَّثَنَا يَعْقُوبُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ حَدَّثَنَا أَبِي عَنْ صَالِحٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ أَنَّ حُمَيْدَ بْنَ عَبْدِ الرَّحْمَنِ أَخْبَرَهُ أَنَّ أَبَا هُرَيْرَةَ أَخْبَرَهُ أَنَّ أَبَا بَكْرٍ - رضي الله عنه - بَعَثَهُ فِي الْحَجَّةِ الَّتِي أَمَّرَهُ رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - عَلَيْهَا قَبْلَ حَجَّةِ الْوَدَاعِ فِي رَهْطٍ يُؤَذِّنُ فِي النَّاسِ أَنْ لاَ يَحُجَّنَّ بَعْدَ الْعَامِ مُشْرِكٌ وَلاَ يَطُوفُ بِالْبَيْتِ عُرْيَانٌ. فَكَانَ حُمَيْدٌ يَقُولُ يَوْمُ النَّحْرِ يَوْمُ الْحَجِّ الأَكْبَرِ. مِنْ أَجْلِ حَدِيثِ أَبِي هُرَيْرَةَ. [ر ٣٦٢]

## ١٥٣ = باب (فَقَاتِلُوا أَئِمَّةَ الْكُفْرِ إِنَّهُمْ لاَ أَيْمَانَ لَهُمْ)

[٤٢٨١] =[1] حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنَّى حَدَّثَنَا يَحْيَى حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ حَدَّثَنَا زَيْدُ بْنُ وَهْبٍ قَالَ كُنَّا عِنْدَ حُذَيْفَةَ فَقَالَ مَا بَقِيَ مِنْ أَصْحَابِ هَذِهِ الآيَةِ إِلاَّ ثَلاَثَةٌ، وَلاَ مِنَ الْمُنَافِقِينَ إِلاَّ

[1] (هذاالحديث لم يخرجه احد من اصحاب الستة سوى البخارى)-

أَرْبَعَةٌ. فَقَالَ أَعْرَابِي إِنَّكُمْ أَصْحَابَ مُحَمَّدٍ - صلى الله عليه وسلم - تُخْبِرُونَا فَلَا نَدْرِي فَمَا بَالُ هَؤُلَاءِ الَّذِينَ يَبْقُرُونَ بُيُوتَنَا وَيَسْرِقُونَ أَعْلَاقَنَا. قَالَ أُولَئِكَ الْفُسَّاقُ، أَجَلْ لَمْ يَبْقَ مِنْهُمْ إِلَّا أَرْبَعَةٌ. أَحَدُهُمْ شَيْخٌ كَبِيرٌ لَوْ شَرِبَ الْمَاءَ الْبَارِدَ لَمَا وَجَدَ بَرْدَهُ.

د زيد بن وهب بيان دې چه مونږ حضرت حذيفه رضى الله تعالى سره وو نو هغه اوفرمائيل چه ددې آيت په اصحابو کښې صرف درې پاتې شوى دى او د منافقانو نه څلور باقى دى (حضرت حذيفه رضي الله عنه د رسول الله ﷺ رازدار وو نوم په نوم منافقان ئې پيژندل) يو اعرابى په مجلس کښې موجود وو[1]) هغه اووئيل چه تاسو د رسول الله ﷺ اصحاب ئې هم تاسو مونږ ته ددين احکام وغيره ښائې، مونږ خو پخپله هيڅ نه پيژنو، دا څوك خلق دى چه زمونږ په کورونو کښې غلاګانې کوى ((ويسرقون اعلاقنا)) او زمونږ نه ښکلې څيزونه پټوى. (اعلاق): عِلق (د عين په کسره سره) جمع د (علق) ښکلې څيز ته وائى ځکه چه هغې سره زړه معلق وى او په بعض نسخو کښې ((ويسرقون اغلاقنا)) راغلى دى ((اغلاق)) جمع د ((غَلَق)) ده غلق نه مراد چابى ده، يعنى هغوى زمونږ چابيانې پټوى او زمونږ تاله شوى څيزونه کولاووى او پټوى. د اعرابى د سوال مطلب دا وو چه تاسو اوخودل چه د ((ائمة الكفر)) نه درې او منافقانو نه څلور باقى پاتې دى :دومره لږ خلقو کښې دومره لوئ چکر خو چلولې نه شى نو دا غلا کونکى خلق څوك دى؟ حضرت حذيفه رضي الله عنه اوفرمائيل چه دا فاسق خلق دى دا ائمة الكفر او منافقانو مصداق نه دى، منافقانو نه خو صرف څلور باقى دى يو خو دومره بوډا شويدې چه که يخې اوبه اوڅکى نو د هغې يخوالې هم هغه نشى محسوس کولې.

**د ايت د تعيين متعلق يوه تنبيه:** امام بخارى رحمه الله په شان امام نسائى او ابن مردويه هم دا حديث آيت فقاتلوائمة الكفر په ذيل کښې فرمائيلى دې[2])د کوم نه چه معلوميږى چه حديث کښې.. اصحاب هذه الاية.. کښې د آيت (فقاتلوائمة الكفر) والاآيت مراد دې. په حديث کښې د دې وضاحت نشته چه.. هذه الاية.. نه کوم آيت مراد دې ليکن اسماعيلى د سفيان بن عيينهطرف نه يو روايت ذکر کړيدې او په دې کښې د آيت تصريح ده او هغه آيت سورة ممتحنه دې. (لَا تَتَّخِذُوا عَدُوِّي وَعَدُوَّكُمْ أَوْلِيَاءَ) د روايت الفاظ دى ((مابقى من المنافقين من اهل هذه الاية)) (لَا تَتَّخِذُوا عَدُوِّي وَعَدُوَّكُمْ أَوْلِيَاءَ) (الاية.....الاربعة نفر ان احدهم لشيخ كبير[3]) اسماعيلى وئيلى دى چه ((اصحاب هذه الاية)) کښې هم هغه آيت مراد دې کوم چه سفيان بن عيينه په خپل روايت کښې ذکر کړيدې نو بيا دا روايت سورة براءت کښې ذکر کول نه دى پکار بلکه په

---

[1]) (قال الحافظ فى فتح البارى:۸\۳۲۳ لم اقف على اسمه)-
[2]) (فتح البارى:۸\۳۲۳-
[3]) (فتح البارى:۸\۳۲۳---

سورة ممتحنه كښې ذكر كول پكار دى.(١)

## ١٥٤=باب قَوْلِهِ (وَالَّذِينَ يَكْنِزُونَ الذَّهَبَ وَالْفِضَّةَ وَلَا يُنْفِقُونَهَا فِي سَبِيلِ اللَّهِ فَبَشِّرْهُمْ بِعَذَابٍ أَلِيمٍ)

[٤٣٨٢] حَدَّثَنَا الْحَكَمُ بْنُ نَافِعٍ أَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ حَدَّثَنَا أَبُو الزِّنَادِ أَنَّ عَبْدَ الرَّحْمَنِ الْأَعْرَجَ حَدَّثَهُ أَنَّهُ قَالَ حَدَّثَنِي أَبُو هُرَيْرَةَ -رضي الله عنه- أَنَّهُ سَمِعَ رَسُولَ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- يَقُولُ «يَكُونُ كَنْزُ أَحَدِكُمْ يَوْمَ الْقِيَامَةِ شُجَاعًا أَقْرَعَ».

[٤٣٨٣] حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ حَدَّثَنَا جَرِيرٌ عَنْ حُصَيْنٍ عَنْ زَيْدِ بْنِ وَهْبٍ قَالَ مَرَرْتُ عَلَى أَبِي ذَرٍّ بِالرَّبَذَةِ فَقُلْتُ مَا أَنْزَلَكَ بِهَذِهِ الْأَرْضِ قَالَ كُنَّا بِالشَّامِ فَقَرَأْتُ (وَالَّذِينَ يَكْنِزُونَ الذَّهَبَ وَالْفِضَّةَ وَلَا يُنْفِقُونَهَا فِي سَبِيلِ اللَّهِ فَبَشِّرْهُمْ بِعَذَابٍ أَلِيمٍ) قَالَ مُعَاوِيَةُ مَا هَذِهِ فِينَا، مَا هَذِهِ إِلَّا فِي أَهْلِ الْكِتَابِ. قَالَ قُلْتُ إِنَّهَا لَفِينَا وَفِيهِمْ.

د بعض حضراتو رائې دا ده چه د كنز نه مراد لغوى معنى ده، كوم مال چه ذخيره كړې شى هغه دلته مراد دې او په آيت كښې هم په دې باندې وعيد دې. ليكن د جمهورو رائې دا ده چه كنز نه دلته هغه مال مراد دې د كوم چه زكوٰة نه وى ادا شوې. د زكوٰة ادا كولو نه پس د مال په ذخيره كولو وعيد نشته.(٢)

د حضرت معاويه رضي الله عنه دا خيال وو چه دا آيت د اهل كتابو په باره كښې دې ليكن حضرت ابوذرغفارى رضي الله عنه فرمائيل چه دا آيت د اهل كتابو او مسلمانانو دارو په باره كښې دې.«شجاع اقرع» هغه مار ته وائى په كوم چه ويښته نه وى.

## ١٥٥=باب قَوْلِهِ عَزَّ وَجَلَّ (يَوْمَ يُحْمَى عَلَيْهَا فِي نَارِ جَهَنَّمَ فَتُكْوَى بِهَا جِبَاهُهُمْ وَجُنُوبُهُمْ وَظُهُورُهُمْ هَذَا مَا كَنَزْتُمْ لِأَنْفُسِكُمْ فَذُوقُوا مَا كُنْتُمْ تَكْنِزُونَ)

[٤٣٨٤] وَقَالَ أَحْمَدُ بْنُ شَبِيبِ بْنِ سَعِيدٍ حَدَّثَنَا أَبِي عَنْ يُونُسَ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ خَالِدِ بْنِ أَسْلَمَ قَالَ خَرَجْنَا مَعَ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُمَرَ فَقَالَ هَذَا قَبْلَ أَنْ تُنْزَلَ الزَّكَاةُ، فَلَمَّا أُنْزِلَتْ جَعَلَهَا اللَّهُ طُهْرًا لِلْأَمْوَالِ.

امام بخارى رحمه الله دلته ،،قال احمد،، وئيلې دى د كوم نه چه معلوميږى چه دا تعليق دې ليكن دا تعليق نه دې ځكه چه امام بخارى رحمه الله همدغه روايت په كتاب الزكوٰة كښې ذكر كړيدې او هلته ئې د ،،قال،، په ځاى ،،حدثنا،، وئيلې دى (٣)د امام بخارى رحمه الله يو عادت دا هم وو چه

(١) (فتح البارى:٨\٣٢٣-
(٢) (الجامع لاحكام القرآن للقرطبى:٨\١٢٥-
(٣) (صحيح بخارى كتاب الزكوة باب ما ادى زكوته فليس بكنز:١\١٨٨-

كله به هغه يو روايت مختصراً ذكر كولو نو هلته چه كومه قاعده تحديث طرز او طريقه ده د هغې مطابق نه كوى بلكه ،،قال،، ذكر كوى. دلته زمونږ په هندوستانى نسخو كښې ،،احمد بن شعيب،، ليكلې شوېدې دا غلط دې صحيح ،،احمد بن شبيب،، دې باقى نسخو كښې هم ،،احمد بن شبيب،، دې.(۱)

## ۱۵۶=باب قَوْلِهِ (إِنَّ عِدَّةَ الشُّهُورِ عِنْدَ اللَّهِ اثْنَا عَشَرَ شَهْرًا فِى كِتَابِ اللَّهِ يَوْمَ خَلَقَ السَّمَوَاتِ وَالأَرْضَ مِنْهَا أَرْبَعَةٌ حُرُمٌ)(۸)

(الْقَيِّمُ) هُوَ الْقَائِمُ.

[۴۳۸۵] حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ عَبْدِ الْوَهَّابِ حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ عَنْ أَيُّوبَ عَنْ مُحَمَّدٍ عَنِ ابْنِ أَبِى بَكْرَةَ عَنْ أَبِى بَكْرَةَ عَنِ النَّبِىِّ - صلى الله عليه وسلم - قَالَ «إِنَّ الزَّمَانَ قَدِ اسْتَدَارَ كَهَيْئَتِهِ يَوْمَ خَلَقَ اللَّهُ السَّمَوَاتِ وَالأَرْضَ، السَّنَةُ اثْنَا عَشَرَ شَهْرًا مِنْهَا، أَرْبَعَةٌ حُرُمٌ، ثَلاَثٌ مُتَوَالِيَاتٌ، ذُو الْقَعْدَةِ وَذُو الْحِجَّةِ وَالْمُحَرَّمُ وَرَجَبُ مُضَرَ الَّذِى بَيْنَ جُمَادَى وَشَعْبَانَ». [ر: ۶۷]

كافرانو او مشركانو به نسيان يعنى هيره اختياروله، ذى قعده، ذى الحجه او محرم درېواړه د عزت مياشتې دى او د اشهرالحرم لاندې باندې درېو مياشتو نه سترى شو نو محرم به ئې صفر او صفر نه به ئې محرم جوړولو (۲) او يوه طريقه دا هم وه چه شمسى او قمرى كال به ئې يو بل سره برابرولو د پاره د قمرى كال نه څه اورخې به ئې كمولې نو د دې اثر به دا وو چه ۳۸ كاله پس به د مياشتو خپل دور په خپل ځائ واپس راتلو. رسول الله ﷺ چه په كوم كال حج اوكړو هغه كال ذى الحجه په خپل صحيح وخت راغلې وه.

**د حرمت د مياشتو په ترتيب كې اختلاف:** د اشهرالحرم اعتبار به څنګه وى، په دې كښې اختلاف دې. د اهل بصره او اهل مدينه رائې دا ده چه د دې په ترتيب كښې اول ذى القعده او دويم ذى الحجه او دريم محرم او څلورم به د رجب اعتبار وى ليكن د اهل كوفه او اهل شام رائى ده چه اشهرالحرم د محرم نه شروع كيږى او څلور واړه به په يو كال كښې راځى. علامه سهيلى رحمه الله فرمائيلى دى چه د دې اختلاف اثر به د نذر وغيره په وخت كښې ښكاره كيږى چه يو سړى نظر منلې وى كه زه په دې كار كښې كامياب شوم نو د اشهرالحرم روژې به نيسم. نو دا سړې به د اهل او اهل مدينه په مذهب د ذى القعدې نه روژې ساتى او د اهل كوفه په نزد

---

(۱) (قال العينى فى العمدة:۱۸ \ ۲۴۵ احمد بن شبيب بفتح الشين و كسرالباء الموحدة من افراد البخارى يروى عن ابيه شبيب بن سعيد ابى عبدالرحمن البصرى-

(۲) (الجامع لاحكام القرآن للقرطبى:۸ \ ۱۳۷- او اكثر وختونو كښې به ئى حج د هغې د خپل وخت نه روستو كولو) (الجامع لاحكام القرآن للقرطبى:۸۱۳۷-

محرم نه به روڅې ساتل شروع کوی (۱) دلته په حدیث کښې د رجب میاشت قبیله مضر طرف ته منسوب کړې شوې ده ځکه چه قبیله مضر به د رجب ډیر عزت کولو.(۲)

## ۱۵۷=باب قَوْلِهِ (ثَانِيَ اثْنَيْنِ إِذْ هُمَا فِي الْغَارِ).

مَعَنَا: نَاصِرُنَا السَّكِينَةُ فَعِيلَةٌ مِنَ السُّكُونِ.

**قوله**: لا تحزن ان الله معنا: د «معنا» تفسیر «ناصرنا» نه معلومیږی چه د الله تعالی دا معیت په اعتبار د نصرت دې.

﴿فَأَنْزَلَ اللهُ سَكِينَتَهُ عَلَيْهِ﴾ کښې «سکینة» د فعلیة په وزن دې د سکون نه مشتق دې. یعنی الله تعالی په حضرت صدیق اکبر رضی الله عنه باندې سکون او اطمینان نازل کړو.

[۴۳۸۶] حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا حَبَّانُ حَدَّثَنَا هَمَّامٌ حَدَّثَنَا ثَابِتٌ حَدَّثَنَا أَنَسٌ قَالَ حَدَّثَنِي أَبُو بَكْرٍ - رضي الله عنه - قَالَ كُنْتُ مَعَ النَّبِيِّ - صلى الله عليه وسلم - فِي الْغَارِ، فَرَأَيْتُ آثَارَ الْمُشْرِكِينَ قُلْتُ يَا رَسُولَ اللَّهِ، لَوْ أَنَّ أَحَدَهُمْ رَفَعَ قَدَمَهُ رَآنَا. قَالَ «مَا ظَنُّكَ بِاثْنَيْنِ اللَّهُ ثَالِثُهُمَا».

[۴۳۸۷\۴۳۸۹] حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا ابْنُ عُيَيْنَةَ عَنِ ابْنِ جُرَيْجٍ عَنِ ابْنِ أَبِي مُلَيْكَةَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ - رضي الله عنهما - أَنَّهُ قَالَ حِينَ وَقَعَ بَيْنَهُ وَبَيْنَ ابْنِ الزُّبَيْرِ قُلْتُ أَبُوهُ الزُّبَيْرُ، وَأُمُّهُ أَسْمَاءُ، وَخَالَتُهُ عَائِشَةُ، وَجَدُّهُ أَبُو بَكْرٍ، وَجَدَّتُهُ صَفِيَّةُ. فَقُلْتُ لِسُفْيَانَ إِسْنَادُهُ. فَقَالَ حَدَّثَنَا، فَشَغَلَهُ إِنْسَانٌ وَلَمْ يَقُلِ ابْنُ جُرَيْجٍ.

د دې روایت په آخر کښې چه عبدالله بن محمد د سفیان بن عیینه رحمه الله نه تپوس اوکړو چه د دې حدیث اسناد خو بیان کړه، هغه اوفرمائیل، «حدثنا»، اوس ئی صرف لا دا جمله وئیلې وه چه هغه چا مشغول کړو او هغه ابن جریج اونه وئیلې شو، پورته سند کښې سره د دې چه ابن جریج شته لیکن هغه د صیغه «عن» سره دې، عبدالله بن محمد صیغه تحدیث سره اوریدل غوښتل. په دې وجه ئی د هغه نه سوال اوکړو.

[۴۳۸۸] حَدَّثَنِي عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مُحَمَّدٍ قَالَ حَدَّثَنِي يَحْيَى بْنُ مَعِينٍ حَدَّثَنَا حَجَّاجٌ قَالَ ابْنُ جُرَيْجٍ قَالَ ابْنُ أَبِي مُلَيْكَةَ وَكَانَ بَيْنَهُمَا شَيْءٌ فَغَدَوْتُ عَلَى ابْنِ عَبَّاسٍ فَقُلْتُ أَتُرِيدُ أَنْ تُقَاتِلَ ابْنَ الزُّبَيْرِ فَتُحِلَّ حَرَمَ اللَّهِ. فَقَالَ مَعَاذَ اللَّهِ، إِنَّ اللَّهَ كَتَبَ ابْنَ الزُّبَيْرِ وَبَنِي أُمَيَّةَ مُحِلِّينَ، وَإِنِّي وَاللَّهِ لاَ أُحِلُّهُ أَبَدًا. قَالَ قَالَ النَّاسُ بَايِعْ لاِبْنِ الزُّبَيْرِ. فَقُلْتُ وَأَيْنَ بِهَذَا الأَمْرِ عَنْهُ أَمَّا أَبُوهُ فَحَوَارِيُّ النَّبِيِّ - صلى الله عليه وسلم - يُرِيدُ الزُّبَيْرَ، وَأَمَّا جَدُّهُ فَصَاحِبُ الْغَارِ، يُرِيدُ

---

(۱) (روح المعانی: ۴\۱۳۰ و الجامع لاحکام القرآن: ۴\۸۵-
(۲) (فتح الباری: ۸\۳۲۵-

أَبَابَكْرٍ، وَأُمُّهُ فَذَاتُ النِّطَاقِ، يُرِيدُ أَسْمَاءَ، وَأَمَّا خَالَتُهُ فَأُمُّ الْمُؤْمِنِينَ، يُرِيدُ عَائِشَةَ، وَأَمَّا عَمَّتُهُ فَزَوْجُ النَّبِيِّ -صلى الله عليه وسلم-، يُرِيدُ خَدِيجَةَ، وَأَمَّا عَمَّةُ النَّبِيِّ -صلى الله عليه وسلم- فَجَدَّتُهُ، يُرِيدُ صَفِيَّةَ، ثُمَّ عَفِيفٌ فِي الإِسْلاَمِ، قَارِئٌ لِلْقُرْآنِ. وَاللَّهِ إِنْ وَصَلُونِي وَصَلُونِي مِنْ قَرِيبٍ، وَإِنْ رَبُّونِي رَبَّنِي أَكْفَاءٌ كِرَامٌ، فَآثَرَ التُّوَيْتَاتِ وَالأُسَامَاتِ وَالْحُمَيْدَاتِ، يُرِيدُ أَبْطُنًا مِنْ بَنِي أَسَدٍ بَنِي تُوَيْتٍ وَبَنِي أُسَامَةَ وَبَنِي أَسَدٍ، إِنَّ ابْنَ أَبِي الْعَاصِ بَرَزَ يَمْشِي الْقُدَمِيَّةَ، يَعْنِي عَبْدَ الْمَلِكِ بْنَ مَرْوَانَ، وَإِنَّهُ لَوَّى ذَنَبَهُ، يَعْنِي ابْنَ الزُّبَيْرِ.

**قوله:** وَكَانَ بَيْنَهُمَا شَيْءٌ:

**د حضرت عبدالله بن عباس او حضرت عبدالله بن زبير رضی الله عنهما په مينځ کې د اختلاف ذکر:** د حضرت عبدالله بن عباس رضی الله عنهما او حضرت عبدالله بن زبير رضی الله عنهما په مينځ کښې څه اختلاف وو چه کله د حضرت معاويه رضی الله عنه انتقال اوشو. او د هغه د خوئ يزيد په لاس د بيعت سلسله شروع شوه نو حضرت عبدالله بن عباس رضی الله عنهما او حضرت عبدالله بن زبير رضی الله عنهما د بيعت نه انکار اوکړو. يزيد د حضرت عبدالله بن زبير رضی الله عنهما خلاف د مسلم بن عقبه په مشرئ کښې يو لښکر مکې مکرمې ته روان کړو او د حره مشهوره واقعه پيښه شوه په کوم کښې چه په کعبه مبارکه باندې منجنيق غورزولې شوووااو خانه کعبه مبارکه سوزيدلې وه. د يزيد د انتقال نه پس حضرت عبدالله بن زبير رضی الله عنهما د خپل خلافت د پاره خلقو ته د بيعت دعوت ورکړو. د حجاز، مصر، عراق او نورو ډيرو علاقو خلقو د هغوی په لاس باندې بيعت اوکړو.

محمد بن حنفيه رحمه الله او حضرت عبدالله بن عباس رضی الله عنهما هغه وخت په مکه مکرمه کښې موجود وو، حضرت عبدالله بن زبير رضی الله عنهما دې دواړو ته هم د خپل خلافت د پاره د بيعت دعوت ورکړو ليکن هغه دواړو حضراتو انکار اوکړو او وئې وئيل چه تر کومې پورې مسلمانان په يو خليفه باندې متفق شوې نه وی هغه وخت پورې به مونږ د چا په لاس هم بيعت نه کوو. د دې دواړو بزرګانو په وجه نور هم ډير خلق د بيعت نه منع شول، نو حضرت عبدالله بن زبير رضی الله عنهما سختی شروع کړه او هغوی ئې په مکه مکرمه کښې حصار کړل، بل طرف ته د عبدالملك بن مروان حکومت په شام، مصر او کوفه وغيره کښې قائم شوې وو، په کوفه کښې مروانی حاکم مختار بن ابی عبيد ته چه کله معلومه شوه چه په مکه مکرمه کښې حضرت عبدالله بن زبير رضی الله عنهما خو حضرت عبدالله ابن عباس رضی الله عنهما او محمد بن حنفيه رحمه الله قيد کړې دی نو هغه لښکر اوليګلو چه دا دواړه بزرګان د هغې ځائ نه راوباسی. او دا دواړه لاړل طائف کښې آباد شول.[1]

**قوله:** فغدوت على ابن عباس فقلت أتريد أن تقاتل ابن الزبير: ابن ابی

---

[1] د مذکوره تفصيل د پاره اوګورئی فتح الباري: ۸ \ ۳۲۸ دې لښکر د دواړو بزرګانو نه د حضرت عبدالله بن زبيررضی الله عنه سره د جنګ اجازت اغوښتو ليکن هغوی منع کړل او د جنګ اجازت ئې ورنه کړو. د حضرت ابن عباس رضی الله عنهما خو په کال ۶۷ هجرئ کښې په طائف کښې انتقال اوشو او د محمد بن حنفيه رحمه الله انتقال په ايله کښې په کال ۷۴ هجرئ کښې وفات اوشو-

مليکه فرمائي چه زه د سحر په وخت کښې حضرت عبدالله ابن عباس رضي الله عنهما ته حاضر شوم او عرض مې اوکړو چه تاسو د حضرت عبدالله بن زبير رضي الله عنه سره د جنګ اراده کوئ نو آيا تاسو د هغه سره جنګ کولو باندې حرم حلال جوړوئ، نو حضرت ابن عباس رضي الله عنهما اوفرمائيل معاذالله! دا خو الله تعالى د حضرت عبدالله بن زبير رضي الله عنه او د بنى اُميه په مقدر کښې ليکلې دی چه حرم حلال جوړ کړی او د دې بې حرمتى اوکړی او زه خو د الله قسم! کله به هم حرم حلال نه جوړوم. خلقو حضرت ابن عباس رضي الله عنهما ته اووئيل چه تاسو د حضرت عبدالله بن زبير رضي الله عنه نه بيعت اوکړئ نو هغوی جواب ورکړو چه حضرت عبدالله بن زبير رضي الله عنه د بيعت د حق نه لرې نه دې مطلب دا چه په هغه کښې صلاحيت شته او د هغه د خلافت حق دې ځکه چه د هغه پلار د رسول الله ﷺ حواری وو او د هغه نيکه صديق اکبر رضي الله عنه دې د هغه مور حضرت اسماء رضي الله عنها ده او د هغه ترور حضرت عائشه صديقه رضي الله عنها ده. د رسول الله ﷺ بى بى حضرت خديجه رضي الله عنها او د نبى کريم ﷺ ترور حضرت صفيه رضي الله عنها د هغه نيا ده بيا هغه په خپل ذاتى حيثيت سره په اسلام کښې پاك دامن دې،او د قرآن پاك عالم دې.

**قوله:** والله ان وصلونى و صلونى من قريب وان ربونى اكفاء كرام: او په الله قسم! که بنو اُميه زما سره صله رحمې کوی نو هغوی د خپلوئى او رشته دارئى په وجه زما سره صله رحمی کوی. مطلب دا که بنو اُميه زما سره ښه سلوك اوکړو نو په دې کښې څه د حيرانتيا خبره نيشته ځکه چه هغوی زما نزدې خپلوان دی (حضرت عبدالله بن عباس بن هاشم بن عبد مناف دې او د هغه وخت اُموی حکمران عبدالملك بن مروان د هاشم رور عبد شمس نمسې وو نو په دريمه پيړئ کښې ابن عباس رضي الله عنهما او عبدالملك بن مروان شريك دی)[1] وړاندې فرمائى او که هغه زما پالنه کوی او زما خيال ساتى نو زما پالنه به هغه څوك خلق کوی چه زما امثال او کُف دی يعنې شريف دی. دا د بنو اُميه تعريف کيږی، مطلب دا چه که زه د چا خلافت تسليم کولو سره رعايت حاصل کړم نو بيا د بنو اُميه نه ولې اونه کړم ځکه چه په خپلوئى کښې هغوی ما ته نزدې دی او زمونږ مثل دی.

وړاندې د حضرت عبدالله بن زبير رضي الله عنه متعلق فرمائى.

**قوله:** فـآثر التويتـات، والاسـامـات والحميدات: ليکن عبدالله بن زبير رضي الله عنه خو تويتات، اسامات او حميدات له په مونږ باندې ترجيح ورکړه. دا دريواړه د بنو اسد څانګې دی او دې نه مراد بنو تويت، بنو اسامه او بنو حميد دی. د حضرت بن عباس رضي الله عنه مطلب دا دې چه حضرت عبدالله بن زبير رضي الله عنه دې خلقو ته په مونږ باندې ترجيح ورکړه او زمونږ پروا ئى اونه کړه او نه ئى زمونږ خيال اوکړو کله چه هغه زمونږ خيال نه ساتى نو بنو اُميه مونږ ته ډير نزدې دی او هغوی ماسره ښه سلوك کوی نو زما د پاره قابل قبول دی.

**قوله:** ان ابن ابى العـاص.........الخ: يعنى عبدالملك ښکاره شو وړاندې طرف

---

[1] (فتح البارى:۸\۳۲۸)-

ته پیش قدمی کولو سره او هغه د حضرت عبدالله بن زبیر رضی الله عنه نه لکۍ راتاؤ کړه. مطلب دا چه د عبدالملك د حکومت دائره ورځ په ورځ زیاتیدله. او د حضرت عبدالله بن زبیر رضی الله عنه د حکومت دائره د خوریدلو په ځای تنګیدله. ((یمشی القدمیه))[1]
(د قاف په ضمه، د دال په فتحه او د میم په کسرې سره) هغه وخت ته وائی کله چه څوك د ترقۍ په پرمخ تګ کوی.

[۴۳۸۹] حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عُبَيْدِ بْنِ مَيْمُونٍ حَدَّثَنَا عِيسَى بْنُ يُونُسَ عَنْ عُمَرَ بْنِ سَعِيدٍ قَالَ أَخْبَرَنِي ابْنُ أَبِي مُلَيْكَةَ دَخَلْنَا عَلَى ابْنِ عَبَّاسٍ فَقَالَ أَلاَ تَعْجَبُونَ لاِبْنِ الزُّبَيْرِ قَامَ فِي أَمْرِهِ هَذَا فَقُلْتُ لأُحَاسِبَنَّ نَفْسِي لَهُ مَا حَاسَبْتُهَا لأَبِي بَكْرٍ وَلاَ لِعُمَرَ، وَلَهُمَا كَانَا أَوْلَى بِكُلِّ خَيْرٍ مِنْهُ، وَقُلْتُ ابْنُ عَمَّةِ النَّبِيِّ -صلى الله عليه وسلم- وَابْنُ الزُّبَيْرِ، وَابْنُ أَبِي بَكْرٍ، وَابْنُ أَخِي خَدِيجَةَ، وَابْنُ أُخْتِ عَائِشَةَ فَإِذَا هُوَ يَتَعَلَّى عَنِّي وَلاَ يُرِيدُ ذَلِكَ فَقُلْتُ مَا كُنْتُ أَظُنُّ أَنِّي أَعْرِضُ هَذَا مِنْ نَفْسِي، فَيَدَعُهُ، وَمَا أُرَاهُ يُرِيدُ خَيْرًا، وَإِنْ كَانَ لاَ بُدَّ لأَنْ يَرُبَّنِي بَنُو عَمِّي أَحَبُّ إِلَيَّ مِنْ أَنْ يَرُبَّنِي غَيْرُهُمْ.

ابن ابی ملیکه فرمائی چه مونږ د حضرت ابن عباس رضی الله عنه په خدمت کښې حاضر وو نو هغوی اوفرمائیل چه په ابن زبیر رضی الله عنه باندې ستاسو خلقو تعجب نه کیږی چه هغه د امارت دعوې سره ولاړ دې، نو ما خو په خپل زړه کښې هم دغه سوچ اوکړو چه زه به د هغه په معامله کښې د خپل نفس نګرانی کوم، دا شان چه ما خپل نفس د ابوبکرصدیق رضی الله عنه او حضرت عمر رضی الله عنه باره کښې هم دومره نه وو پابند کړې (ما خو سوچ کړې وو چه زه به د خپلې ژبې نه د هغه خلاف یو لفظ هم نه اوباسم) حالانکه هغه ابوبکرصدیق رضی الله عنه او عمر رضی الله عنه د هغه نه په هر حیثیت سره بهتر او افضل وو.

**قوله: لا حاسبن نفسی له:** [2] یو مطلب خو دا دې او دویم مطلب دا کیدیشی چه زه به خپل نفس په مشقت کښې اچوم او د ابن زبیر رضی الله عنه د پاره به محنت کوم د هغه تائید به کوم او داسې تائید چه د شیخین حضراتو هم نه دې کړې. د ابن زبیر رضی الله عنه مناقب او فضائل به بیانوم. نو ما خلقو ته اووئیل چه هغه د رسول الله صلی الله علیه وسلم د ترور د اولاد نه دې. د حضرت زبیر رضی الله عنه خوئ دې، د حضرت صدیق اکبر رضی الله عنه نمسې، د حضرت خدیجه رضی الله عنها د رور خوئ او د حضرت عائشه رضی الله عنها د خور خوئ دې لیکن هغه خو زمانه هم لوئ جوړیږی (ما په خاطر کښې هم نه راولی) ما

[1] (وفی الفتح:۸\۳۲۹ القدمیة بضم القاف وفتح الدال قال الخطابی وغیره معناه التبخیر وهو مثل یریدانه برانه برز یطلب معالی الامور وقال ابن الاثیر الذی فی البخاری القدمیة وهی التقدمة فی الشرف والفضل –

[2] (وفی الفتح:۸\۳۲۹ لا حاسبن نفسی ای لاناقشنهافی معونة و نصحه قال الخطابی و قال الداودی معناه لاذکرن من مناقبه مالم اذکر من مناقبهما و انما صنع ابن عباس ذلک لاشتراک الناس فی معرفة مناقب ابی بکر و عمر بخلاف ابن الزبیر فما کانت مناقبه فی الشهرة کمناقبهما فاظهر ذلک ابن عباس و بینه للناس انصافا منه له فلما لم یصنفه هو رجع عنه-

په زړه کښې اوونیل چه زما دا ګمان هم نه ووچه زه به د خپل طرف نه داسې عاجزی او انکساری ښکاره کوم او هغه به دې له لته ورکړی او ما به هیر کړی.[1]

او زه پوهیږم چه هغه به زما په معامله کښې اوس د څه قسم خیګړه او خیر غواړی، اوس که د چا تابعداری کول وی نو زما د بنو اعمام یعنی بنو امیه چه زما پالنه اوکړی ماته ډیر خوښ دی د دې نه چه بل څوک زما پالنه اوکړی او زما خیال اوساتی.

## ۱۵۸ = باب قَوْلِهِ (وَالْمُؤَلَّفَةِ قُلُوبُهُمْ)

قَالَ مُجَاهِدٌ يَتَأَلَّفُهُمْ بِالْعَطِيَّةِ.

[۴۳۹۰] حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ كَثِيرٍ أَخْبَرَنَا سُفْيَانُ عَنْ أَبِيهِ عَنِ ابْنِ أَبِي نُعْمٍ عَنْ أَبِي سَعِيدٍ - رضي الله عنه قَالَ بُعِثَ إِلَى النَّبِيِّ صلى الله عليه وسلم - بِشَيْءٍ، فَقَسَمَهُ بَيْنَ أَرْبَعَةٍ وَقَالَ « أَتَأَلَّفُهُمْ ». فَقَالَ رَجُلٌ مَا عَدَلْتَ. فَقَالَ « يَخْرُجُ مِنْ ضِئْضِئِ هَذَا قَوْمٌ يَمْرُقُونَ مِنَ الدِّينِ ».

## ۱۵۹ = باب قَوْلِهِ (الَّذِينَ يَلْمِزُونَ الْمُطَّوِّعِينَ مِنَ الْمُؤْمِنِينَ)

(يَلْمِزُونَ) يَعِيبُونَ، وَجُهْدَهُمْ وَجَهْدَهُمْ طَاقَتَهُمْ.

[۴۳۹۱] حَدَّثَنِي بِشْرُ بْنُ خَالِدٍ أَبُو مُحَمَّدٍ أَخْبَرَنَا مُحَمَّدُ بْنُ جَعْفَرٍ عَنْ شُعْبَةَ عَنْ سُلَيْمَانَ عَنْ أَبِي وَائِلٍ عَنْ أَبِي مَسْعُودٍ قَالَ لَمَّا أُمِرْنَا بِالصَّدَقَةِ كُنَّا نَتَحَامَلُ فَجَاءَ أَبُو عَقِيلٍ بِنِصْفِ صَاعٍ، وَجَاءَ إِنْسَانٌ بِأَكْثَرَ مِنْهُ، فَقَالَ الْمُنَافِقُونَ إِنَّ اللَّهَ لَغَنِيٌّ عَنْ صَدَقَةِ هَذَا، وَمَا فَعَلَ هَذَا الآخَرُ إِلاَّ رِئَاءً. فَنَزَلَتْ (الَّذِينَ يَلْمِزُونَ الْمُطَّوِّعِينَ مِنَ الْمُؤْمِنِينَ فِي الصَّدَقَاتِ وَالَّذِينَ لاَ يَجِدُونَ إِلاَّ جُهْدَهُمْ) الآيَةَ.

[۴۳۹۲] حَدَّثَنَا إِسْحَاقُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ قَالَ قُلْتُ لأَبِي أُسَامَةَ أَحَدَّثَكُمْ زَائِدَةُ عَنْ سُلَيْمَانَ عَنْ شَقِيقٍ عَنْ أَبِي مَسْعُودٍ الأَنْصَارِيِّ قَالَ كَانَ رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - يَأْمُرُ بِالصَّدَقَةِ، فَيَحْتَالُ أَحَدُنَا حَتَّى يَجِيءَ بِالْمُدِّ، وَإِنَّ لأَحَدِهِمِ الْيَوْمَ مِائَةَ أَلْفٍ. كَأَنَّهُ يُعَرِّضُ بِنَفْسِهِ.

هغه خلق چه پیغورونه او عیبونه لګوی په هغه مؤمنانو باندې چه په خپله خوښه باندې صدقه ورکونکی دی، په روایت باب کښې دی، حضرت ابو مسعود انصاری رضي الله عنه بیان کړې چه رسول الله ﷺ به مونږ له د صدقې ترغیب راکولو نو مونږ به بوج اوچتولو (مزدوری به مو کوله او چه څه به په هغې کښې ملاویدل نو مونږ به هغه راوړل او صدقه به مو کوله) دغه شان ابوعقیل رضي الله عنه نیم صاع کهجورې صدقه راوړه او یو بل سړی د هغه زیاتې راوړې (دې نه مراد حضرت

---

[1] (وفي رواية ان عباس لما حضرته الوفاة بالطائف جمع بينه فقال يابنى ان ابن الزبير كما خرج بمكة شددت ازره د دعوت الناس الى بيعته وتركت بنى عمنا من بنى أمية الذين ان قبلونا قبلونا كفاء و ان ربونا ربونا كراما فلما اصاب ما اصاب جفاني (ونظر فتح البارى: ۸\۳۲۸-

عبدالرحمن بن عوف رضي الله عنه دي هغه اته زره درهم راوړل[1] په دې باندې منافقانو وئيل دا چه د ابوعقيل رضي الله عنه نيم صاع دې نو الله تعالى ته ددې ضرورت نيشته او دې بل خو صرف د خان خودلو د پاره دومره صدقه راوړه نو په دې باندې دا مذكوره آيت شريف نازل شو.

په دويم روايت كښې د حضرت ابو مسعودانصارى رضي الله عنه نه روايت دې فرمائى چه حضور اكرم صلى الله عليه وسلم به مونږ ته د صدقې كولو حكم راكولو نو په مونږ كښې يو سړى تدبير او مزدورى كوله(چه صدقه أدا كړى) نو هغه غريب به مزدورى كوله نو يو مد به ئى حاصل كړو او د صدقه كولو د پاره به ئى راوړلو او نن هم هغه خلقو سره يو يو لاكه درهم موجود دى.

حضرت ابو مسعودانصارى رضي الله عنه هم خپل طرف ته اشاره كوى چه زه هم هغه وخت داسې ووم، مزدورى به مې كوله او صدقه به مې كوله او نن الله تعالى دومره څه راكړى دى چه په لاكهونو كښې لوبې كوم.

د حضرت ابو مسعودانصارى رضي الله عنه د دې بيان مقصد څه دې؟ د ابن بطال خيال دې چه د رسول الله صلى الله عليه وسلم په زمانه كښې به چه خلقو سره څه وو صدقه كول به ئى، او اوس خلقو سره د مال او دولت ډهيرى لګيدلى دى ليكن صدقه نه كوى. ليكن حافظ ابن حجر رحمه الله د ابن بطال دا بيان شوې مقصد بعيد ګرځولې دى.[2] ابن منير وئيلى دى چه دينه مقصد دا دې چه د رسول الله صلى الله عليه وسلم په زمانه كښې د مال قلت سره خلقو به محنت كولو او صدقه به ئى كوله، اوس الله تعالى په هغوى باندې د مال او دولت دروازې كولاؤ كړې دى او ډير په آسانئى سره صدقه كوى او د تنګئى ويره هغوى نه راحصاروى.[3] حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى چه د دې نه دې خبرې ته اشاره ده چه د هغوى صلى الله عليه وسلم په زمانه كښې د مال او دولت زياتوالې نه وو سختى وه اوس د مال او دولت زياتوالې شوېدې.[4] والله اعلم.

## ۱۶۰=باب قَوْلِهِ (اسْتَغْفِرْ لَهُمْ أَوْلَا تَسْتَغْفِرْ لَهُمْ إِنْ تَسْتَغْفِرْ لَهُمْ سَبْعِينَ مَرَّةً)

[۴۲۹۳] حَدَّثَنَا عُبَيْدُ بْنُ إِسْمَاعِيلَ عَنْ أَبِي أُسَامَةَ عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ عَنْ نَافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ- رضي الله عنهما - قَالَ لَمَّا تُوُفِّيَ عَبْدُ اللَّهِ جَاءَ ابْنُهُ عَبْدُ اللَّهِ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ إِلَى رَسُولِ اللَّهِ- صلى الله عليه وسلم - فَسَأَلَهُ أَنْ يُعْطِيَهُ قَمِيصَهُ يُكَفِّنُ فِيهِ أَبَاهُ فَأَعْطَاهُ، ثُمَّ سَأَلَهُ أَنْ يُصَلِّيَ عَلَيْهِ، فَقَامَ رَسُولُ اللَّهِ- صلى الله عليه وسلم - لِيُصَلِّيَ فَقَامَ عُمَرُ فَأَخَذَ بِثَوْبِ رَسُولِ اللَّهِ- صلى الله عليه وسلم - فَقَالَ يَا رَسُولَ اللَّهِ تُصَلِّي عَلَيْهِ وَقَدْ نَهَاكَ رَبُّكَ أَنْ تُصَلِّيَ عَلَيْهِ فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ- صلى الله عليه وسلم - «إِنَّمَا خَيَّرَنِي اللَّهُ فَقَالَ (اسْتَغْفِرْ لَهُمْ أَوْلَا تَسْتَغْفِرْ لَهُمْ إِنْ تَسْتَغْفِرْ لَهُمْ سَبْعِينَ مَرَّةً) وَسَأَزِيدُهُ عَلَى السَّبْعِينَ». قَالَ إِنَّهُ مُنَافِقٌ. قَالَ فَصَلَّى عَلَيْهِ

[1] (فتح البارى:۸\۳۳۲-
[2] (فتح البارى:۸\۳۳۱-
[3] (فتح البارى:۸\۳۳۱-
[4] (فتح البارى:۸\۳۳۱-

رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - فَأَنْزَلَ اللَّهُ (وَلاَ تُصَلِّ عَلَى أَحَدٍ مِنْهُمْ مَاتَ أَبَدًا وَلاَ تَقُمْ عَلَى قَبْرِهِ).

[٤٣٩٤] حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ بُكَيْرٍ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ عُقَيْلٍ . وَقَالَ غَيْرُهُ حَدَّثَنِي اللَّيْثُ حَدَّثَنِي عُقَيْلٌ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ قَالَ أَخْبَرَنِي عُبَيْدُ اللَّهِ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ عَنْ عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ رضى الله عنه أَنَّهُ قَالَ لَمَّا مَاتَ عَبْدُ اللَّهِ بْنُ أُبَىٍّ ابْنُ سَلُولَ دُعِيَ لَهُ رَسُولُ اللَّهِ صلى الله عليه وسلم لِيُصَلِّيَ عَلَيْهِ فَلَمَّا قَامَ رَسُولُ اللَّهِ صلى الله عليه وسلم وَثَبْتُ إِلَيْهِ، فَقُلْتُ يَا رَسُولَ اللَّهِ، أَتُصَلِّي عَلَى ابْنِ أُبَىٍّ وَقَدْ قَالَ يَوْمَ كَذَا وَكَذَا قَالَ أُعَدِّدُ عَلَيْهِ قَوْلَهُ، فَتَبَسَّمَ رَسُولُ اللَّهِ صلى الله عليه وسلم وَقَالَ «أَخِّرْ عَنِّي يَا عُمَرُ». فَلَمَّا أَكْثَرْتُ عَلَيْهِ قَالَ «إِنِّي خُيِّرْتُ فَاخْتَرْتُ، لَوْ أَعْلَمُ أَنِّي إِنْ زِدْتُ عَلَى السَّبْعِينَ يُغْفَرْ لَهُ لَزِدْتُ عَلَيْهَا». قَالَ فَصَلَّى عَلَيْهِ رَسُولُ اللَّهِ صلى الله عليه وسلم ثُمَّ انْصَرَفَ فَلَمْ يَمْكُثْ إِلاَّ يَسِيرًا حَتَّى نَزَلَتِ الآيَتَانِ مِنْ بَرَاءَةَ (وَلاَ تُصَلِّ عَلَى أَحَدٍ مِنْهُمْ مَاتَ أَبَدًا) إِلَى قَوْلِهِ (وَهُمْ فَاسِقُونَ) قَالَ فَعَجِبْتُ بَعْدُ مِنْ جُرْأَتِي عَلَى رَسُولِ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - وَاللَّهُ وَرَسُولُهُ أَعْلَمُ.

## ١٦١ = باب قوله: وَلاَ تُصَلِّ عَلَى أَحَدٍ مِنْهُمْ مَاتَ أَبَدًا وَلاَ تَقُمْ عَلَى قَبْرِهِ.

[٤٣٩٥] حَدَّثَنِي إِبْرَاهِيمُ بْنُ الْمُنْذِرِ حَدَّثَنَا أَنَسُ بْنُ عِيَاضٍ عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ عَنْ نَافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ - رضى الله عنهما - أَنَّهُ قَالَ لَمَّا تُوُفِّيَ عَبْدُ اللَّهِ بْنُ أُبَىٍّ جَاءَ ابْنُهُ عَبْدُ اللَّهِ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ إِلَى رَسُولِ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - فَأَعْطَاهُ قَمِيصَهُ وَأَمَرَهُ أَنْ يُكَفِّنَهُ فِيهِ ثُمَّ قَامَ يُصَلِّي عَلَيْهِ، فَأَخَذَ عُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِ بِثَوْبِهِ فَقَالَ تُصَلِّي عَلَيْهِ وَهْوَ مُنَافِقٌ وَقَدْ نَهَاكَ اللَّهُ أَنْ تَسْتَغْفِرَ لَهُمْ. قَالَ «إِنَّمَا خَيَّرَنِي اللَّهُ أَوْ أَخْبَرَنِي فَقَالَ (اسْتَغْفِرْ لَهُمْ أَوْ لاَ تَسْتَغْفِرْ لَهُمْ إِنْ تَسْتَغْفِرْ لَهُمْ سَبْعِينَ مَرَّةً فَلَنْ يَغْفِرَ اللَّهُ لَهُمْ) فَقَالَ سَأَزِيدُهُ عَلَى سَبْعِينَ». قَالَ فَصَلَّى عَلَيْهِ رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - وَصَلَّيْنَا مَعَهُ ثُمَّ أَنْزَلَ اللَّهُ عَلَيْهِ (وَلاَ تُصَلِّ عَلَى أَحَدٍ مِنْهُمْ مَاتَ أَبَدًا وَلاَ تَقُمْ عَلَى قَبْرِهِ إِنَّهُمْ كَفَرُوا بِاللَّهِ وَرَسُولِهِ وَمَاتُوا وَهُمْ فَاسِقُونَ)

**قوله: لَمَّا تُوُفِّيَ عَبْدُ اللَّهِ بْنُ أُبَىٍّ:**

**د حضور اکرم ﷺ د عبدالله بن ابی د جنازې مونځ کول:** د عبدالله ابن أُبی انتقال ذی قعده ۹ هجری کښې د غزوه تبوک نه د رسول الله ﷺ د واپسئ نه پس اوشو. عبدالله بن ابی رئیس المنافقین وو په غزوه تبوک کښې نه وو شریک شوې. د قرآن کریم دا آیت ﴿ لَوْ خَرَجُوا فِيكُم مَّا زَادُوكُمْ إِلَّا خَبَالًا ﴾ د عبدالله بن ابی او د هغه د ملګرو د غزوه تبوک نه د پاتکیدونکو منافقینو په باره کښې نازل شو. (۱)

---

(۱) عمدة القاري: ۱۸/۲۸۲ وفتح الباري: ۸/۳۳۴.

جاء ابنه عبدالله بن عبدالله الى رسول الله صلى الله عليه وسلم فسأله ان يعطيه قميصه، يكفن فيه اباه، فاعطاه، ثم ساله ان يصلى عليه فقام رسول الله صلى الله عليه وسلم ليصلى. عبدالله بن عبدالله چه دَ فضلائي صحابه نه وو اودَعبدالله بن ابى رئيس المنافقين خوئى وو دَحضوراكرم ﷺ په خدمت كښې حاضر شو او عرض ئى اوكړو چه حضورپاك ﷺ دې خپل قميص هغه ته وركړى چه هغه دادخپل پلاركفن جوړ كړى. نو حضورپاك ﷺ هغه ته قميص وركړو،بيا هغه درخواست اوكړو چه تاسو دَهغه دَ جنازې مونځ هم اوكړئى نو حضورپاك ﷺ دَهغه دَ جنازې دپاره اودريدو.

دَعبدالله بن ابى خوئى حضرت عبدالله بن عبدالله ﷺ دَمخلص صحابه كرامو نه وو.[1] دَده پلار سره ددې چه منافق وولیكن مخلص خوئى دَ پلارمعامله په ظاهراسلام باندې محمول كولوسره حضورپاك ﷺ ته دَهغه متعلق مذكوره درخواستونه اوكړل. بعض رواياتو كښې دى چه عبدالله بن ابى پخپله په دې باندې اصراراوكړو اوخوئى حضورپاك ﷺ له اوليګلو چه حضورپاك دې خپل قميص دَهغه دكفن دپاره وركړى اودَهغه جنازه دې اوكړى.[2]

دَ طبرانى په روايت كښې دى چه حضورپاك ﷺ عبدالله بن ابى له راغلو كوم وخت چه هغه بيماروونوهغه پخپله دحضورپاك ﷺ نه دادوه سوالونه اوكړل.[3]

هغه دا سوالونه ددې وجې نه نه ووكړى چه هغه دَ نفاق نه توبه كړې وه بلكه دا سوالونه ئى خكه كړې ود چه دَ مرګ نه پس خلق دَهغه خوئى اودَهغه قبيلې ته دَهغه دَ نفاق پيغور ورنه كړى. هغه دَ زړه نه دغه وخت هم منافق وو اوهم دَ نفاق په حالت كښې مړشوې. قرآن پاك وړاندې دَدې تصريح كړې ده. ﴿ إِنَّهُمْ كَفَرُوا بِاللَّهِ وَرَسُولِهِ وَمَاتُوا وَهُمْ فَاسِقُونَ ﴾ حضورپاك دواړه درخواستونه قبول كړل.

**يوڅو اشكالات اودَهغې جوابات:** دلته يوسوال داپيداكيږى چه دَ عبدالله بن ابى نفاق په مختلفو مواقع كښې ښكاره شوې وو. ددې باوجودهم حضورپاك خپل قميص مبارك دَهغه دكفن دپاره وركړو اوهغه سره ئى دا امتيازى سلوك اوكړو. ددې آخرڅه وجه ده؟

علماء كرامو ددې يووجه خوداليكلې ده دَ غزوه بدر په موقع چه دَ قريشو څوسرداران ګرفتار شوى وو په هغوى كښې حضرت عباس ﷺ هم وو. حضورپاك اوكتل چه دَهغوى په بدنونو باندې قميصونه نه وونو صحابه كرامو ته ئى ارشاد اوفرمائيلوچه دوى ته قميصونه واغوندئ چونكه عبدالله بن ابى اوږدقدوالاووااوحضرت عباس ﷺ هم اوږد قدوالاووپه دې وجه دَهغه نه علاوه دَ بل چا قميص دَحضرت عباس ﷺ په بدن باندې نه پوره كيدو. نو رسول الله ﷺ دَ عبدالله بن ابى قميص واخستلو اوخپل تره حضرت عباس ﷺ ته ئى واغوستلو.

[1] وفى الفتح: ۸/۳۳٤ وكان عبدالله بن عبدالله بن ابى من فضلاء الصحابة. شهدبدرا، ومابعدها. واستشهديوم اليمامة فى خلافة ابى بكر الصديق.
[2] فتح البارى: ۸/۳۳٤
[3] فتح البارى: ۸/۳۳٤

دهغه د احسان بدله ورکولو د پاره حضورپاك خپل قميص مبارك هغه ته ورکړو.[1]

دې سره سره دويمه وجه دا هم کيدې شي چه د عبدالله بن ابی خوئی حضرت عبدالله بن عبدالله رضي الله عنه د فاضلانو صحابه کرامو نه وو دهغه د زړه ساتنې په خاطر حضورپاك خپل قميص مبارك ورکړې وو.[2]

دويم سوال د جنازې د مانځه متعلق کيږی چه حضورپاك د دغه منافق جنازه ولې اوکړه. هم دغه وجه ده چه کله حضور پاك د جنازې د پاره اودريدونوحضرت عمر رضي الله عنه پاسيدو او د حضورپاك ﷺ لمن مبارکه ئی اونيوله عرض ئی اوکړو "يارسول الله، أتُصلي عليه، وقد نهاك ربك ان تصلي عليه" يعنی يارسول الله! آيا تاسو به د ده جنازه کوئی؟ حالانکه ستاسو رب د ده د جنازې کولونه تاسو منع کړی ئی. حضرت فاروق اعظم رضي الله عنه دا خبره د کوم خائی نه اوکړه ځکه چه دې نه وړاندې په يو آيت کښې په صراحت سره حضورپاك د منافق د جنازې نه منع کړې شوې نه وو. ښکاره خبره داده چه حضرت عمرفاروق رضي الله عنه د سورت توبه د مذکوره آيت نه دا ګڼړلی دی. په آيت کښې دی ﴿ اِسْتَغْفِرْ لَهُمْ اَوْلَا تَسْتَغْفِرْ لَهُمْ ۭ اِنْ تَسْتَغْفِرْ لَهُمْ سَبْعِيْنَ مَرَّةً فَلَنْ يَّغْفِرَ اللّٰهُ لَهُمْ ۭ ﴾ حضرت عمرفاروق رضي الله عنه د آيت د اسلوب نه پوهه شوچه په دې کښې "او" د تخيير د پاره نه دې بلکه د تسويه د پاره دې يعنی د دغه منافقانو باره کښې استغفار او عدم استغفار دواړه برابردی. د دغه شان د ﴿ سَبْعِيْنَ مَرَّةً ﴾ عدد د تحديد د پاره نه دې بلکه د مبالغه د پاره دې او مطلب دادې چه که تاسو د ده د پاره استغفار په کثرت سره ولې اونه کړئی خوالله تعالی به دې نه معاف کوی او چونکه د جنازې د مونځ يولوئی مقصد د مړی د پاره د مغفرت دعا وی په دې وجه حضرت عمر رضي الله عنه د دې آيت نه استنباط کولو سره عرض اوکړو چه الله تعالی تاسو د منافق د جنازې کولونه منع کړی ئی.[3] چنانچه ابن مردويه د حضرت سعيدبن جبير رحمه الله په طريق سره د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما نه روايت نقل کړې دې په هغې کښې دی: "فقال عمر: اتصلي عليه وقد نهاك الله ان تصلي عليه؟ قال: اين" قال ﴿ اِسْتَغْفِرْ لَهُمْ اَوْلَا تَسْتَغْفِرْ لَهُمْ ۭ اِنْ تَسْتَغْفِرْ لَهُمْ سَبْعِيْنَ مَرَّةً فَلَنْ يَّغْفِرَ اللّٰهُ لَهُمْ ﴾".[4] په دې روايت کښې تصريح ده چه حضرت عمر رضي الله عنه حضورپاك ته اووئيل چه الله تعالی تاسو منع کړی ئی چه تاسو د ده د جنازې مونځ ورکړئی. په دې رسول الله ﷺ اوفرمائيل چرته ئی زه منع کړې يم؟ نوحضرت عمر فاروق رضي الله عنه مذکوره آيت په استدلال کښې پيش کړو.

ليکن رسول الله ﷺ اوفرمائيل الله تعالی ماته اختيار راکړې دې او فرمائيلی دی ﴿ اِسْتَغْفِرْ لَهُمْ

---

[1] عمدة القاری: ۱۸/۲۸۲.

[2] ارشادالساری: ۱۰/۲۶۵.

[3] فتح الباری: ۸/۳۳۵.

[4] فتح الباری: ۸/۳۳۵.

اَوْ لَا تَسْتَغْفِرْ لَهُمْ ط اِنْ تَسْتَغْفِرْ لَهُمْ سَبْعِيْنَ مَرَّةً فَلَنْ يَّغْفِرَ اللّٰهُ لَهُمْ ﴾ اوزه به دَ اویاخل نه هم زیات استغفار کوم(ځکه چه ممکن دی الله تعالی دَ اویاځل استغفار کولوسره دې معاف کړی)
دَ بعض نورو روایاتونه معلومیږی چه رسول الله ﷺ دَ اویاځل نه زیات استغفار دَ عبدالله بن ابی دَپاره اوکړو. دَ طبری په روایت کښې دی "فأنا استغفر لهم سبعين وسبعين وسبعين"([1])
اوس سوال دادې چه رسول الله ﷺ دَده جنازه ولې اوکړه اودَهغه دَ پاره ئی استغفار ولې اوکړو ځکه چه دَ آیت سیاق او سباق اوپخپله دَ دغه منافق دَ منافقانه حرکتونو تقاضاخوهم دغه وه کومه چه دَحضرت عمر ﷺ رائې وه اوروستو بیا آیت هم دَحضرت عمر ﷺ په تائید کښې نازل شو. ﴿ وَلَا تُصَلِّ عَلٰٓى اَحَدٍ مِّنْهُمْ مَّاتَ اَبَدًا وَّلَا تَقُمْ عَلٰى قَبْرِهٖ ط﴾
① دَدې یوجواب دادې چه حضورپاك هم دَ آیت هم هغه مقصد ګنړلو کوم چه حضرت عمر ﷺ فرمائیلو چه دَ منافق مغفرت خو به بهرحال کیږی نه که حضورپاك هرڅومره استغفاراوکړی خو بیاهم په آیت کښې په صراحت سره رسول الله ﷺ دَاستغفارنه منع کړې شوې نه وو. رسول الله ﷺ دَ مذکوره آیت نه هم دغه اوګنړل چه زما په مونځ کولو خو به دَ ده مغفرت نه کیږی اودَ مونځ کولوسره دَ نورو اسلامی مصالح دَ حاصلیدو توقع اوامیدوو اودَ مونځ کولو صراحت سره ممانعت هم نه ووېه دې وجه حضورپاك مونځ اوکړو. قمیص ورکول اومونځ کولومصالح دا وو چه یوخو دَ حضرت عبدالله بن عبدالله زړه ساتل په ذهن کښې وو اوبل مصلحت دَ عبدالله بن ابی خاندان وو. دې رویې کتلو سره کوم خلق چه اسلام ته نیزدې نه وو دَهغوی اسلام ته دَ نیزدې کیدو توقع وه. په یوحدیث کښې رسول الله ﷺ فرمائیلی چه زما قمیص هغه دَ الله تعالی دَ عذاب نه نشی بچ کولې مګر ماداکارځکه اوکړو چه په دې عمل سره دَهغه دَ قوم دَ زړو کسانو دَ مسلمانیدو امیددې.([2])چنانچه بعض روایاتوکښې دی چه دې واقع ته کتلوسره دَ قبیله خزرج زر کسان مسلمانان شو.([3])
دَدې جواب حاصل دادې چه دَ حضرت عمر ﷺ په شان رسول الله ﷺ هم دا عمل پخپل زړه کښې مفید نه ګنړلو مګر دَ مذکوره مصالح دَ وجې نه حضورپاك دا عمل اوکړو.
② دویم جواب دا ورکړې شوچه دا استغفار په منزله دَ دعا دې اودَ دعاقانون دادې چه که ددې دَمحل دَپاره اوکړې شی نوالله تعالی هغه قبلوی. بیا دَدې مختلف صورتونه وی یاخوهغه څیز ورکولې شی دکوم څیزچه دعاکړې وی یا هغه څیز مصلحتًا نه ورکوی اودَ آخرت دَپاره هغه دعا ذخیره کیږی دَ کوم ثواب چه به دعاکونکی ته هلته ملاویږی اویا دَ دغه دعا په وجه یولوئی راتلونکې مصیبت دفع کولې شی. دا هغه وخت دی چه کله دعا دَهغې دَمحل دَپاره کړې شوې وی چه دَدَغه دعادپاره صالح وی لیکن دعاکه دَ یوداسې محل دَپاره اوکړې شی چه دَ دعادپاره صالح نه وی نو په داسې صورت کښې الله تعالی بیشکه هغه نه

[1]) فتح الباری:۸/۳۳۶.
[2]) فتح الباری:۸/۳۳۶.
[3]) ارشاد الساری:۱۰/۲۶۷.

قبلوي. چونكه دعا بهرحال يوعبادت دې په دې وجه د دعا كونكى ته دهغې ثواب ملاويږي په دې وجه د حضورپاك په ذهن كښې داخبره وه چه داخو رئيس المنافقين دې په دې وجه محل د مغفرت خودې نه دده دپاره د مغفرت دعا په حقيقت كښې صرف مدعو يعنې د الله تعالى د تعظيم دپاره ده نودذې اجربه بهرحال ملاويږي، دغه اجرې ولې پريخودې شى.(١)

دا توجيه ابن منير وغيره كړې ده ليكن حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى دې كښې نظردې څكه چه دې سره دهغه سړى دپاره طلب د مغفرت مشروعيت لازميږي دچادپاره چه د شريعت په نقطه نظرسره مغفرت محال دې. (٢)

يوبل اشكال هم كيږي چه رسول الله ﷺ فرمائيلى چه زه به اوياخل نه هم زيات د ده دپاره استغفاركوم اوحضورپاك استغفاراوكړوهم. اودذې واقعه نه ډير وړاندې د قرآن پاك دا آيت نازل شوې وو ﴿ مَا كَانَ لِلنَّبِيِّ وَالَّذِينَ آمَنُوا أَنْ يَسْتَغْفِرُوا لِلْمُشْرِكِينَ وَلَوْ كَانُوا أُولِي قُرْبَى ﴾ دا آيت د ابوطالب په قصه كښې نازل شوې وو كله چه دهغه انتقال اوشو نو حضورپاك فرمائيلى وو "لأستغفرن لك مالم انه عنك" په دې آيت كښې حضورپاك دهغه دپاره د دعا كولو نه منع كړو نودذې آيت په موجودګئ كښې حضورپاك د منافق دپاره ولې د مغفرت دعااوكړه؟

دذې اشكال جواب دا وركړې شوې دې چه په مذكوره آيت كښې د مشركانودپاره د دعا نه ممانعت راغلې دې. د منافقينودپاره د مغفرت دعا دذې نه ثابتيږي نه. منافقان ظاهراً د خپل مسلمان كيدو اعلان اواظهار خوكوى په دې وجه هغوى دذې آيت لاندې نه راځي.(٣)

## ١٦٢ - باب: قوله: ﴿سَيَحْلِفُونَ بِاللَّهِ لَكُمْ إِذَا انْقَلَبْتُمْ إِلَيْهِمْ لِتُعْرِضُوا عَنْهُمْ ۖ فَأَعْرِضُوا عَنْهُمْ ۖ إِنَّهُمْ رِجْسٌ ۖ وَمَأْوَاهُمْ جَهَنَّمُ جَزَاءً بِمَا كَانُوا يَكْسِبُونَ ﴾ ۹۵/

[۴۳۹۶] حَدَّثَنَا يَحْيَى حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ عُقَيْلٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ أَنَّ عَبْدَ اللَّهِ بْنَ كَعْبِ بْنِ مَالِكٍ قَالَ سَمِعْتُ كَعْبَ بْنَ مَالِكٍ حِينَ تَخَلَّفَ عَنْ تَبُوكَ وَاللَّهِ مَا أَنْعَمَ اللَّهُ عَلَيَّ مِنْ نِعْمَةٍ بَعْدَ إِذْ هَدَانِي أَعْظَمَ مِنْ صِدْقِي رَسُولَ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - أَنْ لاَ أَكُونَ كَذَبْتُهُ فَأَهْلِكَ كَمَا هَلَكَ الَّذِينَ كَذَبُوا حِينَ أُنْزِلَ الْوَحْىُ (سَيَحْلِفُونَ بِاللَّهِ لَكُمْ إِذَا انْقَلَبْتُمْ إِلَيْهِمْ) إِلَى (الْفَاسِقِينَ). [ر: ۲۶۰۶]

---

(١) وفى فتح البارى:۸/۳۳۸_وقيل: ان الاستغفار يتنزل منزلة الدعا والعبد اذا سأل ربه حاجة فسؤاله اياه يتنزل منزلة الذكر، لكنه من حيث طلب تعجيل حصول المطلوب ليس عبادة. فاذا كان كذلك، والمغفرة فى نفسها ممكنة، وتعلق العلم بعدم نفعها، لابغيرذلك. فيكون طلبها لالغرض حصولها بل لتعظيم المدعو. فاذا تعذرت المغفرة. عوض الداعى عنها مايليق به من الثواب اودفع السوء، كماثبت فى الخبر، وقد يحصل بذلك عن المدعولهم تخفيف، كما فى قصة ابى طالب"

(٢) فتح البارى:۸/۳۳۸

(٣) فتح البارى:۸/۳۳۹

## ١٦٣ - باب: قوله ﴿يَحْلِفُونَ لَكُمْ لِتَرْضَوْا عَنْهُمْ فَإِنْ تَرْضَوْا عَنْهُمْ فَإِنَّ اللَّهَ لَا يَرْضَىٰ عَنِ الْقَوْمِ الْفَاسِقِينَ﴾ /٩٦/

## ١٦٤ - باب: قوله: ﴿وَآخَرُونَ اعْتَرَفُوا بِذُنُوبِهِمْ خَلَطُوا عَمَلًا صَالِحًا وَآخَرَ سَيِّئًا عَسَى اللَّهُ أَنْ يَتُوبَ عَلَيْهِمْ إِنَّ اللَّهَ غَفُورٌ رَحِيمٌ﴾ /١٠٢/

[٤٣٩٧] حَدَّثَنَا مُؤَمَّلٌ - هُوَ ابْنُ هِشَامٍ - حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ حَدَّثَنَا عَوْفٌ حَدَّثَنَا أَبُو رَجَاءٍ حَدَّثَنَا سَمُرَةُ بْنُ جُنْدُبٍ - رضي الله عنه - قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - لَنَا «أَتَانِي اللَّيْلَةَ آتِيَانِ، فَابْتَعَثَانِي، فَانْتَهَيْنَا إِلَى مَدِينَةٍ مَبْنِيَّةٍ بِلَبِنِ ذَهَبٍ وَلَبِنِ فِضَّةٍ، فَتَلَقَّانَا رِجَالٌ شَطْرٌ مِنْ خَلْقِهِمْ كَأَحْسَنِ مَا أَنْتَ رَاءٍ، وَشَطْرٌ كَأَقْبَحِ مَا أَنْتَ رَاءٍ قَالَا لَهُمُ اذْهَبُوا فَقَعُوا فِي ذَلِكَ النَّهْرِ. فَوَقَعُوا فِيهِ ثُمَّ رَجَعُوا إِلَيْنَا قَدْ ذَهَبَ ذَلِكَ السُّوءُ عَنْهُمْ، فَصَارُوا فِي أَحْسَنِ صُورَةٍ قَالَا لِي هَذِهِ جَنَّةُ عَدْنٍ، وَهَذَاكَ مَنْزِلُكَ قَالَا أَمَّا الْقَوْمُ الَّذِينَ كَانُوا شَطْرٌ مِنْهُمْ حَسَنٌ وَشَطْرٌ مِنْهُمْ قَبِيحٌ فَإِنَّهُمْ خَلَطُوا عَمَلًا صَالِحًا وَآخَرَ سَيِّئًا تَجَاوَزَ اللَّهُ عَنْهُمْ». [ر: ٨٠٩]

## ١٦٥ - باب: ﴿مَا كَانَ لِلنَّبِيِّ وَالَّذِينَ آمَنُوا أَنْ يَسْتَغْفِرُوا لِلْمُشْرِكِينَ﴾ /١١٣/

[٤٣٩٨] حَدَّثَنَا إِسْحَاقُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ أَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ سَعِيدِ بْنِ الْمُسَيَّبِ عَنْ أَبِيهِ قَالَ لَمَّا حَضَرَتْ أَبَا طَالِبٍ الْوَفَاةُ دَخَلَ عَلَيْهِ النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - وَعِنْدَهُ أَبُو جَهْلٍ وَعَبْدُ اللَّهِ بْنُ أَبِي أُمَيَّةَ، فَقَالَ النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - «أَيْ عَمِّ قُلْ لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ. أُحَاجُّ لَكَ بِهَا عِنْدَ اللَّهِ». فَقَالَ أَبُو جَهْلٍ وَعَبْدُ اللَّهِ بْنُ أَبِي أُمَيَّةَ يَا أَبَا طَالِبٍ، أَتَرْغَبُ عَنْ مِلَّةِ عَبْدِ الْمُطَّلِبِ. فَقَالَ النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - «لَأَسْتَغْفِرَنَّ لَكَ مَا لَمْ أُنْهَ عَنْكَ». فَنَزَلَتْ (مَا كَانَ لِلنَّبِيِّ وَالَّذِينَ آمَنُوا أَنْ يَسْتَغْفِرُوا لِلْمُشْرِكِينَ وَلَوْ كَانُوا أُولِي قُرْبَى مِنْ بَعْدِ مَا تَبَيَّنَ لَهُمْ أَنَّهُمْ أَصْحَابُ الْجَحِيمِ). [ر: ١٢٩٤]

## ١٦٦ - باب: ﴿لَقَدْ تَابَ اللَّهُ عَلَى النَّبِيِّ وَالْمُهَاجِرِينَ وَالْأَنْصَارِ الَّذِينَ اتَّبَعُوهُ فِي سَاعَةِ الْعُسْرَةِ مِنْ بَعْدِ مَا كَادَ يَزِيغُ قُلُوبُ فَرِيقٍ مِنْهُمْ ثُمَّ تَابَ عَلَيْهِمْ إِنَّهُ بِهِمْ رَءُوفٌ رَحِيمٌ﴾ /١١٧/

[٤٣٩٩] حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ صَالِحٍ قَالَ حَدَّثَنِي ابْنُ وَهْبٍ قَالَ أَخْبَرَنِي يُونُسُ قَالَ أَحْمَدُ حَدَّثَنَا عَنْبَسَةُ حَدَّثَنَا يُونُسُ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ قَالَ أَخْبَرَنِي عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ كَعْبٍ قَالَ أَخْبَرَنِي عَبْدُ اللَّهِ بْنُ كَعْبٍ - وَكَانَ قَائِدَ كَعْبٍ مِنْ بَنِيهِ حِينَ عَمِيَ - قَالَ سَمِعْتُ كَعْبَ بْنَ مَالِكٍ فِي حَدِيثِهِ (وَعَلَى الثَّلَاثَةِ الَّذِينَ خُلِّفُوا) قَالَ فِي آخِرِ حَدِيثِهِ إِنَّ مِنْ

تَوْبَتِي أَنْ أَنْخَلِعَ مِنْ مَالِي صَدَقَةً إِلَى اللَّهِ وَرَسُولِهِ. فَقَالَ النَّبِي - صلى الله عليه وسلم - «أَمْسِكْ بَعْضَ مَالِكَ، فَهُوَ خَيْرٌ لَكَ». [ر ٢٦٠٦]

١٦٧ - باب: ﴿وَعَلَى الثَّلَاثَةِ الَّذِينَ خُلِّفُوا حَتَّى إِذَا ضَاقَتْ عَلَيْهِمُ الْأَرْضُ بِمَا رَحُبَتْ وَضَاقَتْ عَلَيْهِمْ أَنْفُسُهُمْ وَظَنُّوا أَنْ لَا مَلْجَأَ مِنَ اللَّهِ إِلَّا إِلَيْهِ ثُمَّ تَابَ عَلَيْهِمْ لِيَتُوبُوا إِنَّ اللَّهَ هُوَ التَّوَّابُ الرَّحِيمُ﴾ /١١٨/

[٤٤٠٠] حَدَّثَنِي مُحَمَّدٌ حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ أَبِي شُعَيْبٍ حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ أَعْيَنَ حَدَّثَنَا إِسْحَاقُ بْنُ رَاشِدٍ أَنَّ الزُّهْرِي حَدَّثَهُ قَالَ أَخْبَرَنِي عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ كَعْبِ بْنِ مَالِكٍ عَنْ أَبِيهِ قَالَ سَمِعْتُ أَبِي كَعْبَ بْنَ مَالِكٍ، وَهُوَ أَحَدُ الثَّلَاثَةِ الَّذِينَ تِيبَ عَلَيْهِمْ أَنَّهُ لَمْ يَتَخَلَّفْ عَنْ رَسُولِ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - فِي غَزْوَةٍ غَزَاهَا قَطُّ غَيْرَ غَزْوَتَيْنِ غَزْوَةِ الْعُسْرَةِ وَغَزْوَةِ بَدْرٍ. قَالَ فَأَجْمَعْتُ صِدْقَ رَسُولِ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - ضُحًى، وَكَانَ قَلَّمَا يَقْدَمُ مِنْ سَفَرٍ سَافَرَهُ إِلَّا ضُحًى وَكَانَ يَبْدَأُ بِالْمَسْجِدِ، فَيَرْكَعُ رَكْعَتَيْنِ، وَنَهَى النَّبِي - صلى الله عليه وسلم - عَنْ كَلَامِي وَكَلَامِ صَاحِبَي، وَلَمْ يَنْهَ عَنْ كَلَامِ أَحَدٍ مِنَ الْمُتَخَلِّفِينَ غَيْرِنَا، فَاجْتَنَبَ النَّاسُ كَلَامَنَا، فَلَبِثْتُ كَذَلِكَ حَتَّى طَالَ عَلَى الْأَمْرُ، وَمَا مِنْ شَيْءٍ أَهَمُّ إِلَى مِنْ أَنْ أَمُوتَ فَلَا يُصَلِّي عَلَى النَّبِي - صلى الله عليه وسلم - أَوْ يَمُوتَ رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - فَأَكُونَ مِنَ النَّاسِ بِتِلْكَ الْمَنْزِلَةِ، فَلَا يُكَلِّمُنِي أَحَدٌ مِنْهُمْ، وَلَا يُصَلِّي عَلَى، فَأَنْزَلَ اللَّهُ تَوْبَتَنَا عَلَى نَبِيِّهِ - صلى الله عليه وسلم - حِينَ بَقِيَ الثُّلُثُ الْآخِرُ مِنَ اللَّيْلِ، وَرَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - عِنْدَ أُمِّ سَلَمَةَ، وَكَانَتْ أُمُّ سَلَمَةَ مُحْسِنَةً فِي شَأْنِي مَعْنِيَّةً فِي أَمْرِي، فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - «يَا أُمَّ سَلَمَةَ تِيبَ عَلَى كَعْبٍ». قَالَتْ أَفَلَا أُرْسِلُ إِلَيْهِ فَأُبَشِّرَهُ قَالَ «إِذًا يَحْطِمَكُمُ النَّاسُ فَيَمْنَعُونَكُمُ النَّوْمَ سَائِرَ اللَّيْلَةِ». حَتَّى إِذَا صَلَّى رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - صَلَاةَ الْفَجْرِ آذَنَ بِتَوْبَةِ اللَّهِ عَلَيْنَا، وَكَانَ إِذَا اسْتَبْشَرَ اسْتَنَارَ وَجْهُهُ حَتَّى كَأَنَّهُ قِطْعَةٌ مِنَ الْقَمَرِ، وَكُنَّا أَيُّهَا الثَّلَاثَةُ الَّذِينَ خُلِّفُوا عَنِ الْأَمْرِ الَّذِي قُبِلَ مِنْ هَؤُلَاءِ الَّذِينَ اعْتَذَرُوا حِينَ أَنْزَلَ اللَّهُ لَنَا التَّوْبَةَ، فَلَمَّا ذُكِرَ الَّذِينَ كَذَبُوا رَسُولَ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - مِنَ الْمُتَخَلِّفِينَ، وَاعْتَذَرُوا بِالْبَاطِلِ، ذُكِرُوا بِشَرِّ مَا ذُكِرَ بِهِ أَحَدٌ قَالَ اللَّهُ سُبْحَانَهُ (يَعْتَذِرُونَ إِلَيْكُمْ إِذَا رَجَعْتُمْ إِلَيْهِمْ قُلْ لَا تَعْتَذِرُوا لَنْ نُؤْمِنَ لَكُمْ قَدْ نَبَّأَنَا اللَّهُ مِنْ أَخْبَارِكُمْ وَسَيَرَى اللَّهُ عَمَلَكُمْ وَرَسُولُهُ) الْآيَةَ. [ر: ٢٦٠٦]

١٦٨ - باب: ﴿يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا اتَّقُوا اللَّهَ وَكُونُوا مَعَ الصَّادِقِينَ﴾ /١١٩/

[٤٤٠١] حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ بُكَيْرٍ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ عُقَيْلٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ

بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ كَعْبِ بْنِ مَالِكٍ أَنَّ عَبْدَ اللّٰهِ بْنَ كَعْبِ بْنِ مَالِكٍ - وَكَانَ قَائِدَ كَعْبِ بْنِ مَالِكٍ قَالَ سَمِعْتُ كَعْبَ بْنَ مَالِكٍ يُحَدِّثُ حِينَ تَخَلَّفَ عَنْ قِصَّةِ تَبُوكَ. فَوَاللّٰهِ مَا أَعْلَمُ أَحَدًا أَبْلَاهُ اللّٰهُ فِي صِدْقِ الْحَدِيثِ أَحْسَنَ مِمَّا أَبْلَانِي، مَا تَعَمَّدْتُ مُنْذُ ذَكَرْتُ ذٰلِكَ لِرَسُولِ اللّٰهِ صلى الله عليه وسلم إِلَى يَوْمِي هٰذَا كَذِبًا، وَأَنْزَلَ اللّٰهُ عَزَّ وَجَلَّ عَلَى رَسُولِهِ صلى الله عليه وسلم (لَقَدْ تَابَ اللّٰهُ عَلَى النَّبِيِّ وَالْمُهَاجِرِينَ) إِلَى قَوْلِهِ (وَكُونُوا مَعَ الصَّادِقِينَ). [ر: ٢٦٠٦]

## ١٦٩ - باب: قوله: ﴿لَقَدْ جَاءَكُمْ رَسُولٌ مِنْ أَنْفُسِكُمْ عَزِيزٌ عَلَيْهِ مَا عَنِتُّمْ حَرِيصٌ عَلَيْكُمْ بِالْمُؤْمِنِينَ رَءُوفٌ رَحِيمٌ﴾ /١٢٩:

مِنَ الرَّأْفَةِ.

[٤٢٠٢] حَدَّثَنَا أَبُو الْيَمَانِ أَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ أَخْبَرَنِي ابْنُ السَّبَّاقِ أَنَّ زَيْدَ بْنَ ثَابِتٍ الْأَنْصَارِيَّ - رضي الله عنه - وَكَانَ مِمَّنْ يَكْتُبُ الْوَحْيَ قَالَ أَرْسَلَ إِلَيَّ أَبُو بَكْرٍ مَقْتَلَ أَهْلِ الْيَمَامَةِ وَعِنْدَهُ عُمَرُ، فَقَالَ أَبُو بَكْرٍ إِنَّ عُمَرَ أَتَانِي فَقَالَ إِنَّ الْقَتْلَ قَدِ اسْتَحَرَّ يَوْمَ الْيَمَامَةِ بِالنَّاسِ، وَإِنِّي أَخْشَى أَنْ يَسْتَحِرَّ الْقَتْلُ بِالْقُرَّاءِ فِي الْمَوَاطِنِ فَيَذْهَبَ كَثِيرٌ مِنَ الْقُرْآنِ، إِلَّا أَنْ تَجْمَعُوهُ، وَإِنِّي لَأَرَى أَنْ تَجْمَعَ الْقُرْآنَ. قَالَ أَبُو بَكْرٍ قُلْتُ لِعُمَرَ كَيْفَ أَفْعَلُ شَيْئًا لَمْ يَفْعَلْهُ رَسُولُ اللّٰهِ - صلى الله عليه وسلم - فَقَالَ عُمَرُ هُوَ وَاللّٰهِ خَيْرٌ. فَلَمْ يَزَلْ عُمَرُ يُرَاجِعُنِي فِيهِ حَتَّى شَرَحَ اللّٰهُ لِذٰلِكَ صَدْرِي، وَرَأَيْتُ الَّذِي رَأَى عُمَرُ. قَالَ زَيْدُ بْنُ ثَابِتٍ وَعُمَرُ عِنْدَهُ جَالِسٌ لَا يَتَكَلَّمُ. فَقَالَ أَبُو بَكْرٍ إِنَّكَ رَجُلٌ شَابٌّ عَاقِلٌ وَلَا نَتَّهِمُكَ، كُنْتَ تَكْتُبُ الْوَحْيَ لِرَسُولِ اللّٰهِ - صلى الله عليه وسلم - فَتَتَبَّعِ الْقُرْآنَ فَاجْمَعْهُ. فَوَاللّٰهِ لَوْ كَلَّفَنِي نَقْلَ جَبَلٍ مِنَ الْجِبَالِ مَا كَانَ أَثْقَلَ عَلَيَّ مِمَّا أَمَرَنِي بِهِ مِنْ جَمْعِ الْقُرْآنِ قُلْتُ كَيْفَ تَفْعَلَانِ شَيْئًا لَمْ يَفْعَلْهُ النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - فَقَالَ أَبُو بَكْرٍ هُوَ وَاللّٰهِ خَيْرٌ، فَلَمْ أَزَلْ أُرَاجِعُهُ حَتَّى شَرَحَ اللّٰهُ صَدْرِي لِلَّذِي شَرَحَ اللّٰهُ لَهُ صَدْرَ أَبِي بَكْرٍ وَعُمَرَ، فَقُمْتُ فَتَتَبَّعْتُ الْقُرْآنَ أَجْمَعُهُ مِنَ الرِّقَاعِ وَالْأَكْتَافِ وَالْعُسُبِ وَصُدُورِ الرِّجَالِ، حَتَّى وَجَدْتُ مِنْ سُورَةِ التَّوْبَةِ آيَتَيْنِ مَعَ خُزَيْمَةَ الْأَنْصَارِيِّ، لَمْ أَجِدْهُمَا مَعَ أَحَدٍ غَيْرِهِ (لَقَدْ جَاءَكُمْ رَسُولٌ مِنْ أَنْفُسِكُمْ عَزِيزٌ عَلَيْهِ مَا عَنِتُّمْ حَرِيصٌ عَلَيْكُمْ) إِلَى آخِرِهِمَا، وَكَانَتِ الصُّحُفُ الَّتِي جُمِعَ فِيهَا الْقُرْآنُ عِنْدَ أَبِي بَكْرٍ حَتَّى تَوَفَّاهُ اللّٰهُ، ثُمَّ عِنْدَ عُمَرَ حَتَّى تَوَفَّاهُ اللّٰهُ، ثُمَّ عِنْدَ حَفْصَةَ بِنْتِ عُمَرَ. تَابَعَهُ عُثْمَانُ بْنُ عُمَرَ وَاللَّيْثُ عَنْ يُونُسَ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ. وَقَالَ اللَّيْثُ حَدَّثَنِي عَبْدُ الرَّحْمٰنِ بْنُ خَالِدٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ وَقَالَ مَعَ أَبِي خُزَيْمَةَ الْأَنْصَارِيِّ. وَقَالَ مُوسَى عَنْ إِبْرَاهِيمَ حَدَّثَنَا ابْنُ شِهَابٍ مَعَ أَبِي خُزَيْمَةَ. وَتَابَعَهُ يَعْقُوبُ بْنُ

إِبْرَاهِيمَ عَنْ أَبِيهِ. وَقَالَ أَبُو ثَابِتٍ حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ وَقَالَ مَعَ خُزَيْمَةَ، أَوْ أَبِي خُزَيْمَةَ. (۱)

**قوله: إِنَّ الْقَتْلَ قَدِ اسْتَحَرَّ يَوْمَ الْيَمَامَةِ بِالنَّاسِ، وَإِنِّي أَخْشَى أَنْ يَسْتَحِرَّ الْقَتْلُ بِالْقُرَّاءِ فِي الْمَوَاطِنِ:** حضرت عمر فاروق رضی اللہ عنہ حضرت صدیق اکبر رضی اللہ عنہ ته اووئیل چه په یمامه کښې دَ خلقو قتل (اودَ مسلمانانو شهادت) ډیر شوې دې اوزه ویریږم چه په مختلف مواقع کښې به دَ قرآن پاك قاریان شهیدان کیږی نوداسې به دَ قرآن پاك ډیره حصه ضائع شی. جنګ یمامه دَ مسیلمه کذاب خلاف شوې وو او په دې کښې دَ مسلمانانو پوره تعداد شهید کړې شوې وو. بعض روایاتو کښې یوولس سوه بعض کښې څوارلس سوه تعداد خودلې شوې دې په کوم کښې چه اویادَ قرآن پاك قاریان حضرات وو. (۲)

**قوله: حَتَّى وَجَدْتُ مِن سورة التوبة آيتين مع خُزيمة الانصاري، لم اجدهما مع احد غيره:** حضرت زید بن ثابت رضی اللہ عنہ فرمائی چه دَ سورت توبه دوه آیاتونه ماته دَ خزیمه انصاری رضی اللہ عنہ سره ملاؤشو چه دَهغه نه علاوه بل چاسره ماته نه دی ملاؤشوی (مُراد دَ سورت توبه آخری دوه آیاتونه دی) مطلب دا چه دوه آیاتونه لیکلې شوې دَ هغه سره ملاؤشو بل چاسره لیکلې شوی نه وو البته دا آیاتونه ټولوته یاد وو. لهذا دا اعتراض کول به صحیح نه شی چه قرآن خو متواتردې اودا آیاتونه یوسړی سره ملاؤ شوی دی. ځکه چه دلته لټون دَ مکتوب یعنی لیکلی شوی وو. به عام توګه خو خلق هم دغه وائې چه دَ نفس مکتوب لټون وو لیکن حقیقت دادې چه هغوی ته دَدې مکتوب لټون ووکوم چه دَ آیت دَنزول په وخت حضورپاك ﷺ دَ کتابت په ذریعه محفوظ کړې وو.

**قوله: تابعه عثمان بن عمر، والليث، عن يونس، عن ابن شهاب:** یعنی دَ شعیب متابعت عثمان بن عمر اولیث بن سعد کړې دې او "عن یونس عن ابن شهاب" نقل کړو. دَعثمان متابعت امام احمد رحمہ اللہ موصولاً نقل کړې دې اودَ لیث رحمہ اللہ متابعت امام بخاری رحمہ اللہ فضائل القرآن او کتاب التوحید کښې موصولاً نقل کړې دې. (۳)

**قوله: وقال الليث: حدثني عبدالرحمان بن خالد، عن ابن شهاب، وقال: مع ابي خزيمة الانصاري:** یعنی لیث بن سعد دَ عبدالرحمن بن خالدنه هم دا

---

۱) واخرجه البخاری فی کتاب فضائل القرآن، باب جمع القرآن، رقم الحدیث: ۴۷۰۱. ۴۷۰۲، ۴۷۰۳،۶۷۶۸ .۶۹۸۹. وانظر: ۲۶۵۲ وفی باب کاتب القرآن، رقم الحدیث: ۴۷۰۳. واخرجه النسائی فی السنن الکبری، رقم الحدیث: ۸۰۰۲.

وفی العمدة: ۱۸/۲۸۱ قداستحر: ای اشتدو کثر، علی وزن استفعل من الحر، وذلک ان المکروه یضاف الی الحر، والمحبوب یضاف الی البرد، ومنه المثل: تولی حارهامن تولی قارها"

۲) عمدة القاری: ۱۸/۲۸۱.

۳) عمدة القاری: ۱۸/۲۸۲وفتح الباری: ۸/۳۴۵.

روایت نقل کړي دي او یونس بن یزید نه هم لیکن دَ عبدالرحمن بن خالد په طریق کښې "خزیمة الانصاری" په ځائې باندې "ابوخزیمة الانصاری" دې. دَ لیث بن سعد رحمه الله دا تعلیق ابوالقاسم بغوی "معجم الصحابه" کښې موصولاً نقل کړي دې. (۱)

**قوله: وقال موسی عن ابراهیم: حدثنا ابن شهاب: مع ابی خزیمة:** یعنی موسیٰ بن اسماعیل رحمه الله دَ ابراهیم بن سعد رحمه الله نه دا روایت نقل کړي دې او په دې کښې هم "خزیمة" په ځائې "ابی خزیمة" دې. داتعلیق امام بخاری رحمه الله فضائل قرآن کښې موصولاً نقل کړي دې. (۲)

**قوله: وتابعه یعقوب بن ابراهیم، عن ابیه:** یعنی دَ موسیٰ بن اسماعیل متابعت یعقوب بن ابراهیم رحمه الله کړې دې. دا متابعت ابوبکربن ابی داؤد رحمه الله کتاب المصاحف کښې موصولاً نقل کړې دې. (۳)

**قوله: وقال ابوثابت: حدثنا ابراهیم وقال: مع خزیمة اومع ابی خزیمة:** یعنی ابوثابت محمدبن عبدالله مدنی رحمه الله هم د ابراهیم رحمه الله دا روایت نقل کړې دې او په دې کښې خزیمه او ابی خزیمه شك سره ذکر کړې دې، دَ ابوثابت داتعلیق امام بخاری رحمه الله په کتاب الاحکام کښې موصولاً نقل کړې دې. (۴)

خلاصه دَ کلام دا چه دَ ابراهیم بن سعد رحمه الله نه روایت کونکوکښې اختلاف دې. بعض مع خزیمه نقل کوی او بعض مع ابی خزیمه ذکرکوی. دوه صحابه کرام دی یو حضرت خزیمه بن ثابت رضی الله عنه چه ذوالشهادتین سره مشهور دې دَ چاګواهي چه رسول الله صلی الله علیه وسلم دَ دوو ګواهانو برابرګرځولې وه. دې حضرت علی رضی الله عنه سره په جنګ صفین کښې شهیدشوې دې. (۵)اودویم صحابی حضرت ابوخزیمه بن اوس بن زید رضی الله عنه دې. دې په جنګ بدرکښې شریك شوې اود حضرت عثمان رضی الله عنه په دورخلافت کښې دې وفات شوې دې. (۶)

دَ سورت توبه دا آخری دوه آیاتونه حضرت خزیمه رضی الله عنه سره ملاؤشوی که ابوخزیمه سره؟ په دې سلسله کښې په روایاتو کښې اختلاف دې. حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی چه دَ سورت توبه مذکوره آیاتونه دَ حضرت ابوخزیمه رضی الله عنه سره ملاؤشوی دی اودَ سورت احزاب آیت حضرت خزیمه رضی الله عنه سره ملاؤشوی. (۷)

جمع قرآن سره متعلق تفصیلی بحث به فضائل قرآن کښې انشاء الله راځی.

---

(۱) عمدة القاری:۱۸/۲۸۲وفتح الباری:۸/۳۴۵.

(۲) عمدة القاری:۱۸/۲۸۲وفتح الباری:۸/۳۴۵.

(۳) عمدة القاری:۱۸/۲۸۲وفتح الباری:۸/۳۴۵.

(۴) عمدة القاری:۱۸/۲۸۲وفتح الباری:۸/۳۴۵.

(۵) الاصابة فی تمییز الصحابة:۱/۴۲۶رقم الترجمة:۲۲۵۲.

(۶) عمدة القاری:۱۸/۲۸۲.

(۷) وفتح الباری:۸/۳۴۵.

# ۱۷۰ – باب: تفسير سورة يونس

وقال ابن عباس: ﴿ فَاخْتَلَطَ بِهِ نَبَاتُ الْأَرْضِ ﴾/۲۴/: فنبت بالماء من كل لون. ﴿ قَالُوا اتَّخَذَ اللَّهُ وَلَدًا سُبْحَانَهُ هُوَ الْغَنِيُّ ﴾/۶۸/. وقال زيد بن أسلم: ﴿ أَنَّ لَهُمْ قَدَمَ صِدْقٍ ﴾/۲/: محمد ﷺ، وقال مجاهد: خير يقال: ﴿ تِلْكَ آيَاتُ ﴾/۱/ يعني هذا أعلام القرآن، ومثله: ﴿ حَتَّىٰ إِذَا كُنتُمْ فِي الْفُلْكِ وَجَرَيْنَ بِهِم ﴾/۲۲/: المعنى بكم. ﴿ دَعْوَاهُمْ ﴾/۱۰/: دعاؤهم ﴿ أُحِيطَ بِهِمْ ﴾/۲۲/: دنوا من الهلكة. ﴿ وَأَحَاطَتْ بِهِ خَطِيئَتُهُ ﴾/البقرة: ۸۱/. ﴿ فَأَتْبَعَهُمْ ﴾/۹۰/: واتبعهم واحد. ﴿ عَدْوًا ﴾/۹۰/: من العدوان.

وقال مجاهد: ﴿ وَلَوْ يُعَجِّلُ اللَّهُ لِلنَّاسِ الشَّرَّ اسْتِعْجَالَهُم بِالْخَيْرِ ﴾ قول الانسان لولده وماله اذا غضب اللهم لا تبارك فيه والعنه ﴿ لَقُضِيَ إِلَيْهِمْ أَجَلُهُمْ ﴾/۱۱/: لاهلك من دعى عليه ولاماته. ﴿ لِّلَّذِينَ أَحْسَنُوا الْحُسْنَىٰ ﴾ مثلها حسنى ﴿ وَزِيَادَةٌ ﴾/۲۶/: مغفرة ﴿ الْكِبْرِيَاءُ ﴾/۷۸/: الملك.

## سورة يونس

**د كلماتو تشريح:**

**قوله: وقال ابن عباس: ﴿ فَاخْتَلَطَ ﴾: فنبت بالماء من كل لون:** په آيت مبارك كښې دى ﴿ إِنَّمَا مَثَلُ الْحَيَاةِ الدُّنْيَا كَمَاءٍ أَنزَلْنَاهُ مِنَ السَّمَاءِ فَاخْتَلَطَ بِهِ نَبَاتُ الْأَرْضِ ﴾ د فَاخْتَلَطَ تفسير الله تعالى د اوبو په ذريعه مختلف قسم ګلونه او واښه پيدا کړى. دا تعليق ابن جرير موصولاً نقل کړې دې. (۱)

**قوله: قَالُوا اتَّخَذَ اللَّهُ وَلَدًا سُبْحَانَهُ هُوَ الْغَنِيُّ:** امام بخارى رحمه الله د قرآن مجيد آيت خوذکر کړو ليکن وړاندې ئې هيڅ ذکر نه کړل، حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى کيدې شى امام بخارى رحمه الله د توحيد متعلق څه روايت نقل کول غوښتل ليکن هغه ته موقع ملاؤنه شوه او بياض پاتې شو. (۲)

**قوله: وقال زيد بن أسلم: أَنَّ لَهُمْ قَدَمَ صِدْقٍ: محمد ﷺ، وقال مجاهد: خير:** په آيت مبارك کښې دى ﴿ أَكَانَ لِلنَّاسِ عَجَبًا أَنْ أَوْحَيْنَا إِلَىٰ رَجُلٍ مِّنْهُمْ أَنْ أَنذِرِ النَّاسَ وَبَشِّرِ الَّذِينَ آمَنُوا أَنَّ لَهُمْ قَدَمَ صِدْقٍ عِندَ رَبِّهِمْ ۗ قَالَ الْكَافِرُونَ إِنَّ هَٰذَا لَسَاحِرٌ مُّبِينٌ ﴾ يعنى آيا دې (مکې) خلقوته په دې خبره باندې تعجب اوشو چه مونږ دهغوى نه يوکس ته وحى اوليګله چه ټول کسان (دالله تعالى د احکامو خلاف ورزى کولو باندې) اوويره وه او چاچه ايمان راوړو هغوى ته دا زيرې ورکړه چه دهغوى رب ته (رسيدو) سره به هغوى ته پوره مرتبه ملاويږى. کافرانو اووئيل (نعوذ بالله)

---

(۱) عمدة القاري: ۱۸/۳۸٤.

(۲) فتح الباري: ۸/۳٤٦.

داسړې خو بیشکه صریح جادوګر دې.

په "ان لهم قدم صدق"، کښې د "قدم صدق"، مصداق: دلته د "قَدَمَ صِدْقٍ" نه مراد رسول الله ﷺ دې داتفسیر د زیدبن اسلم دې اومجاهد رحمه الله فرمائیلي "قَدَمَ صِدْقٍ" نه مراد خیر دې. د زیدبن اسلم تعلیق ابن جریر رحمه الله موصولاً نقل کړې دې. (۱)او د مجاهدتعلیق فریابی موصولاً نقل کړې دې.(۲) ابن جریر رحمه الله د مجاهد رحمه الله قول راجح ګرځولې دې. (۳)

علامه زمخشری رحمه الله فرمائی "قَدَمَ صِدْقٍ" نه مراد فضیلت دې.(۴)

**قوله: يُقَالُ: تِلْكَ آيٰتُ يعنى هذا أعلام القرآن:** په آیت مبارك کښې دی ﴿ تِلْكَ اٰيٰتُ الْكِتٰبِ الْحَكِيْمِ۝﴾ دلته په ظاهره اشکال کیږی چه تلك ولې استعمال کړې شوې دې ځکه چه داخو دبعید دپاره استعمالیږی اوآیات قریب دې. ددې متعلق امام بخاری رحمه الله فرمائی چه د تِلْكَ د "هٰذه" په معنی کښې دی اوآیات د اعلام په معنی کښې دی اود الکتاب نه قرآن حکیم مراددې. پاتې شو سوال چه د بعیدصیغه د قریب دپاره ولې استعمال کړې شوې. ددې وجه په اصل کښې داده چه بعض وخت بعد رتبې د بعدمکانی په درجه کښې راکوزولې شی اوبیاد بعدمکانی دپاره چه کومه صیغه استعمالیږی هغه د قریب دپاره استعمالولې شی. دغه شان دلته هم شوی دی چه دا آیات اګرچه مکاناً قریب دی مګر د رتبه او مقام په اعتبارسره دا بعیددی. ددې مرتبه ډیره اوچته او لوړه ده. وړاندې امام بخاری رحمه الله فرمائی چه هم دغه شان په دې آیت کښې هم شوی دی. (۵)

**قوله: ﴿ حَتّٰۤى اِذَا كُنْتُمْ فِى الْفُلْكِ وَجَرَيْنَ بِهِمْ﴾:** په دې آیت کښې بهم د بکم په معنی کښې دې ځکه چه اذا کنتم کښې صیغه د خطاب ده. وړاندې بیا د غائب ضمیر راوړلې دې د اهل معانی په نیزدا شان تصرفات په کلام کښې صحیح دی دې ته التفات وئیلې شی اود یوخاص نکتې د وجې نه داقسم تصرفات په کلام کښې کولې شي.

**قوله: أُحِيطَ بِهِمْ: دَنَوْا مِنَ الْهَلَكَةِ وَأَحَاطَتْ بِهِ خَطِيْئَتُهُ:** په آیت مبارك کښې دی ﴿ وَظَنُّوْۤا اَنَّهُمْ اُحِيْطَ بِهِمْ ﴾ او دغه خلقو اوګڼړل چه (په خرابه توګه) هغوی کورته لاړل. ابوعبیده د احیط

۱) عمدة القاري:۱۸/۲۸۳.

۲) فتح الباري:۸/۳٤٦

۳) فتح الباري:۸/۳٤٦وعمدة القاري:۱۸/۲۸۳.

٤) وفي الكشاف:۲/۳۲۷ای سابقة وفضلاومنزلة رفيعة.

۵) وفي الامع الدراري:۹/۱۰۲ ومثله في وضع اللفظة موضع اخرى قوله تعالى حتى اذا كنتم" فالتشبيه انما هو في وضع الكلمة مقام اخرى وفي العمدة: ۱۸/۲۸٤" وجه المماثلة بينهما هو ان تلك" بمعنى هذه" فكذلك قوله: بهم بمعنى بكم" حيث صرف الكلام عن الخطاب الى الغيبة كما ان في الاول صرف اسم الاشارة عن الغائب الى الحاضر"

بهم تفسير دنوا من الهلكة سره كوى يعني هلاكت او بربادئى له نيزدې لاړل لكه چه په يوبل آيت كريمه كښې دى ﴿ بَلٰى مَنْ كَسَبَ سَيِّئَةً وَّاَحَاطَتْ بِهٖ خَطِيْٓـئَتُهٗ ﴾ په دې دَ اَحَاطَتْ بِهٖ خَطِيْٓـئَتُهٗ معنى گناهونو هغوى دَهر طرف نه راگير كړل. دُنُوَا: دَ دال په ضمه مجهول لوستل هم صحيح دى چه په اصل كښې دُنِيُوا وو دَ ياء ضمه نقل كولوسره ماقبل نون ته وركړې شوه اودَ اجتماع ساكنين دَ وجې نه ياء حذف كړې شوه.

**قوله:** فَاَتْبَعَهُمْ: وَاتَّبَعَهُمْ وَاحِدٌ: په آيت مبارك كښې دى ﴿ وَجٰوَزْنَا بِبَنِيْٓ اِسْرَآءِيْلَ الْبَحْرَ فَاَتْبَعَهُمْ فِرْعَوْنُ وَجُنُوْدُهٗ بَغْيًا وَّعَدْوًا ﴾ اوموږ بنى اسرائيل دَ درياب نه واړول او فرعون اودَهغه لښكر هغوى پسې شو دَ شرارت اوظلم په اراده سره. فرمائى چه په آيت كښې اِتَّبَعَهُمْ (په كسره دَ همزه او تشديد دَ تاء) دَ باب افتعال نه كوم چه دَحضرت حسن بصرى رحمه الله قراءت دې او اَتْبَعَهم (په فتح دَ همزه او سكون دَ تاء) چه معروف قراءت دَ جمهورو دې دَ دواړو معنى يوه ده.

**قوله:** وقال مجاهد: وَلَوْ يُعَجِّلُ اللّٰهُ لِلنَّاسِ الشَّرَّ اسْتِعْجَالَهُمْ بِالْخَيْرِ: حضرت مجاهد رحمه الله ددې ايت په تشريح كښې فرمائى ددې نه مراد دَغصې په وخت دَ سړى خپل اولاد اودخپل مال متعلق داويناكول دى چه اې الله په دې كښې بركت مه اچوه اودوى دَ خپل رحمت نه لرې كړه نودغه شان انسان دهغه شر غواړى. الله تعالى فرمائى كه هغه انسان ته شر اونقصان دَ هغه دَ خيرو دَ وجې نه دومره زر وراورسوى څومره زر چه هغه دَ بنيگړې رسولو خواهش لرى نودهغوى عمر به ختم كړې شى (او الله تعالى به ئى اولاد هم هلاك كړى اومال هم دَ كوم دپاره چه ئى بددعاكړې ده) ليكن انسان دغه شان خيرې كوى اوالله تعالى صرف دَ خپل رحم اوفضل په وجه دانسان دغه بددعاگانې نه قبلوى دغه شان دَ ده اولاد اومال په خائى ساتى.

**قوله:** لِلَّذِيْنَ اَحْسَنُوا الْحُسْنٰى مثلها حسنى وَزِيَادَةٌ: مغفرة ورضوان وقال غيره: النظر الى وجهه: په آيت كښې دى ﴿ لِلَّذِيْنَ اَحْسَنُوا الْحُسْنٰى وَزِيَادَةٌ ۖ وَلَا يَرْهَقُ وُجُوْهَهُمْ قَتَرٌ وَّلَا ذِلَّةٌ ۖ ﴾ يعنى دَ هغه خلقو دپاره چاچه نيك اعمال كړى كوم اجروى هغه به دَ دې حسنى مثل بهترين اوښكلې وى. امام بخارى رحمه الله "مثلها" نه پس بيا "حسنى" اضافه كړې ده حالانكه دَ حسنى تفسير مثلها سره شوې وو نودا اضافه ددې خبرې دَ خودلودپاره دې چه په آيت كښې "زيادة" عطف "الحسنى" باندې دې [1] اودَ دغه "زيادة" يوتفسير خودادې چه حسنى سره به مغفرت وركړې كيدې شى اودَ الله تعالى رضامندى به ورته حاصليږى اوبعضو وئيلى دى چه دې نه په جنت عدن كښې دَالله تعالى زيارت او روئيت مراددې اوبعض وئيلى دى چه دې نه تضعيف اجرمراددې نور اقوال هم دى "وقال غيره" ضمير مجاهد رحمه الله طرف ته راجع دې دَ مجاهد دَغيرنه

[1] فى اللامع: ٩/١٠٣ ـ فقوله: حسنى بعد قوله: مثلها اما بيان للضمير المجرور او تمييز عن نسبة المثل الى ضميره"

مراد حضرت قتاده رحمه الله دي. (١)

## ١٧١-باب: ﴿وَجٰوَزْنَا بِبَنِىٓ إِسْرَآءِيلَ الْبَحْرَ فَأَتْبَعَهُمْ فِرْعَوْنُ وَجُنُودُهُ بَغْيًا وَعَدْوًا حَتّٰىٓ إِذَآ أَدْرَكَهُ الْغَرَقُ قَالَ اٰمَنْتُ أَنَّهُ لَآ إِلٰهَ إِلَّا الَّذِىٓ اٰمَنَتْ بِهِ بَنُوٓا إِسْرَآءِيلَ وَأَنَا مِنَ الْمُسْلِمِينَ﴾/٩٠/

﴿نُنَجِّيكَ﴾/٩٢/نُلْقِيكَ عَلَى نَجْوَةٍ مِنَ الارضِ، وهُوَ النَّشَزُ: المَكانُ المُرْتَفِعُ.

[٤٤٠٢] حَدَّثَنِي مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ حَدَّثَنَا غُنْدَرٌ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ أَبِي بِشْرٍ عَنْ سَعِيدِ بْنِ جُبَيْرٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ قَدِمَ النَّبِي - صلى الله عليه وسلم - الْمَدِينَةَ وَالْيَهُودُ تَصُومُ عَاشُورَاءَ فَقَالُوا هَذَا يَوْمٌ ظَهَرَ فِيهِ مُوسَى عَلَى فِرْعَوْنَ. فَقَالَ النَّبِي صلى الله عليه وسلم - لأَصْحَابِهِ « أَنْتُمْ أَحَقُّ بِمُوسَى مِنْهُمْ، فَصُومُوا [ر: ١٩٠٠]

**ايا د فرعون ايمان راوړل معتبروو؟:** دَ فرعون ايمان راوړل معتبردی که نه ابوبکر باقلانی رحمه الله دَ بعض حنابله صوفياء کښې شيخ اکبر ملاجامي وغيره رائې داده چه دَ فرعون دا ايمان راوړل معتبردی. شيخ اکبر په فتوحات کښې په دې باندې ډير تفصيلي بحث کړې دې اوفرعون ئې مؤمن اودهغه مرګ ئې دَ شهادت ثابتولو کوشش کړې دې. (٢)

په دې باندې علماؤ دَهغه خلاف اوليکل اوپه هغه باندې سخت اعتراضات اوکړل. بعض خلقودهغه حمايت هم کړې دې. علامه جلال دوانی دَ شيخ اکبر په تائيد کښې په دې موضوع باندې يو مستقل رساله هم ليکلې ده. (٣)

ليکن دَ فرعون دَ ايمان قول دَ ټولونصوص او آيات ظاهر خلاف دې. فرعون دَ غرغره په حالت کښې ايمان راوړلې وو او په داسې حالت کښې ايمان راوړل معتبرنه دی. دَ قرآن په ډيرو آياتونوکښې دَ دې تصريح ده. يوځائې کښې ارشاد دې ﴿ وَلَيْسَتِ التَّوْبَةُ لِلَّذِينَ يَعْمَلُونَ السَّيِّاٰتِ حَتّٰىٓ إِذَا حَضَرَ أَحَدَهُمُ الْمَوْتُ قَالَ إِنِّى تُبْتُ الْئٰنَ وَلَا الَّذِينَ يَمُوتُونَ وَهُمْ كُفَّارٌ ﴾ (النساء:١٨) يوبل آيت دې ﴿ فَلَمَّا رَأَوْا بَأْسَنَا قَالُوٓا اٰمَنَّا بِاللَّهِ وَحْدَهُ وَكَفَرْنَا بِمَا كُنَّا بِهِ مُشْرِكِينَ ۝ فَلَمْ يَكُ يَنْفَعُهُمْ إِيمَانُهُمْ لَمَّا رَأَوْا بَأْسَنَا ﴾ (المؤمنون ٨٤-٨٥)دغه شان امام ترمذی رحمه الله حديث نقل کړې دې "ان الله يقبل توبة العبد مالم يغرغر" (٤)

---

[١] عمدة القاري:٨/٢٨٥.

[٢] روح المعاني، الجزء العاشر:١٨٦-١٨٥.

[٣] وقدانتصرلببعض الناس، ومنهم في المشهور الجلال الدواني، وله رسالة في ذكل اني فيها بما لايعد شيئا عند اصاغر الطلبةو لكن في تاريخ حلب للفاضل الحلبي.... انها ليست للجلال، وانما هي لرجل يسمى محمدبن هلال النحوي القزويني، وشنع عليه، وقال: انما مثله رجل حامل الذكر لما قدم مكة بال في زمزم ليشتهر بين الناس، وفي المثل، خالف تعرف (وانظرروح المعاني:١٨٧-١٨٦/١٠)

[٤] سنن الترمذي كتاب الدعوات باب في فضل التوبة والاستغفار رقم الحديث:٣٥٣٧.

دَدي نه علاوه قرآن مجيدهم په دغه موقع باندې فرعون ته خطاب كولوسره ارشاد فرمائيلي ﴿آلْـٰٔنَ وَقَدْ عَصَيْتَ قَبْلُ وَكُنتَ مِنَ الْمُفْسِدِينَ﴾ دا ټول نصوص په دې خبره باندې صراحةً دلالت كوى چه دَ فرعون ايمان معتبرنه دې اوهم دغه دَ محققين اوجمهور امت قول دې.

علامه محمدبن عبدالرسول برزنجى به په خپل مجلس كښې په ښكاره دَ فرعون دَ ايمان ذكر كولو. علامه حسن بن احمد باختر هغه سره ملاقات اوكړو او ورته ئى اووئيل ته دَ فرعون دَ مؤمن كيدو خبره كوې دامناسب نه ده. دلائل دَ هغه دَ ايمان ترديد كوى ليكن علامه برزنجى قائل نه شو يوورځ چه هغه راغلو نو علامه حسن باختر اووئيل "السلام عليك يا اخا فرعون" دې اوريدوسره هغه ډير خفه او پريشان شو اوخلقوله لاړو ورته ئى اووئيل چه حسن باختر ماته اخوفرعون اووئيل خلق هم ډير حيران شو چه دومره لوئى سړى ولې داسې زياتې اوكړو. خلق علامه باختر له راغلل اودَ هغه نه ئى په دې سلسله كښې پوښتنه اوكړه. نوهغه اووئيل چه په دې كښې دَ زياتى څه خبره ده هغه وائى چه فرعون مؤمن وو اوقرآن مجيدوئيلى دى﴿إِنَّمَا الْمُؤْمِنُونَ إِخْوَةٌ﴾ دې اوريدوسره ټول خاموش شو.[1]

داخبره خو په خپل ځائى ښه سپينه ده چه دَ فرعون ايمان معتبرنه دې اوهغه په وخت ايمان نه دې راوړې. په شرح مواقف كښې دااعتراض كړې شوې دې چه دَ فرعون ايمان نه راوړل په حقيقت كښې دَ حضرت موسى عليه السلام دَ دعا دَ وجې نه وو. حضرت موسى عليه السلام دَ فرعون اودَ هغه دَ حاميانو په حق كښې بددعاكړې وه ﴿وَاشْدُدْ عَلَىٰ قُلُوبِهِمْ فَلَا يُؤْمِنُوا حَتَّىٰ يَرَوُا الْعَذَابَ الْأَلِيمَ﴾ اعتراض دادې چه موسى عليه السلام خودَ ايمان دَ دعوت دَپاره ليګلې شوې وو بيا هغه دا دعاولې اوكړه داخو رضابالكفر دې اورضابالكفر پخپله كفر دې اوحضرت موسى عليه السلام خو جليل القدر نبى دې دَ انبياء په معصوم كيدو باندې اجماع دَ امت ده.

حسن چلپى حاشيه شرح مواقف كښې دَدې اعتراض داجواب وركړې دې چه رضابالكفر على وجه الاستحسان وى نو كفر دې، على وجه الاستقباح كفرنه دې اودَ حضرت موسى عليه السلام بددعا هم دَدې قبيل نه وه. دادعاځكه وه چه دَ فرعون ظلم عدوان اوسركشى دَ حدنه اوړيدلې وه.[2]

**قوله: نُنَجِّيكَ: نُلْقِيكَ عَلَى نَجْوَةٍ مِنَ الارضِ، وهُوَ النَّشَزُ: المكانُ المُرْتَفِعُ:** آيت كښې دى﴿فَالْيَوْمَ نُنَجِّيكَ بِبَدَنِكَ لِتَكُونَ لِمَنْ خَلْفَكَ آيَةً﴾ بنى اسرائيلوته شبه وه چه فرعون مړشوې هم دې اوكه نه، الله تعالى دَ هغه نعش دِ سمندر نه راوچت كړو دَ زمكې يوې اوچتې غونډئى ته ئى اورسولو هلته هغه مردار پروت وو. پوزه ئى ككه شوې وه مخ او شكل ئى وران شوې وو. بنى

[1] محمدبن عبدالرسول: له علم بالتفسير والادب، من فقهاء الشافعية ولد، وتعلم بشهر زور، واستقر فى المدينة، وتوفى بها سنة:١١٠٣ (وانظر الاعلام للزركلى:٢٠٤-٦/٢٠٣) والبرزنجي: منسوب الى برزنج مدينة من نواحي ازان بينها وبين برذعة ثمانية عشر فرسخا. (وانظر تعليقات الانساب:١/٣١٨).

[2] وفى حاشيه برخوردار: .....والاصح انه لايكفربالرضا بكفر الغير، ان كان لايحب الكفر، ولايستحسنه" (وانظرحاشية برخوردارعلى هامش النبراس:٢٦٨)

اسرائیلو چه کله اوکتل چه فرعون خپل انجام ته اورسیدو نوبیادهغوی تسلي اوشوه. دَ نجوة معنی بیان کړې دې اوچت ځائی غونډئی هم دې ته نشز هم وائی بیا دَ نشز تفسیر المکان المرتفع سره کړې.

مشهوره داده چه دَ فرعون نعض تراوسه پورې دَ قاهره په عجائب گهر کښې محفوظ دې مگر دا په یقین سره نه شی وئیلې چه داهم هغه فرعون دې دَ کوم مقابله چه حضرت موسیٰ علیه السلام سره شوې وه یابل فرعون دې ځکه چه لفظ دَ فرعون دَ یوسړی نوم نه دې په هغه زمانه کښې به دَ مصر هریوبادشاه ته دَ فرعون نوم ورکولې شو. خو هیڅ عجیبه نه ده چه قدرت څنگه یوغرق شوې نعش دَ عبرت دپاره په غاړه باندې اچولې وو هم دغه شان دَ راتلونکی نسلونودَ عبرت پاره هغه دَ سخاکیدونه هم محفوظ کړو اوتراوسه پورې موجود دې. [1]

ددې فرعون نوم ولید بن مصعب بن ریان لیکلې شوې دې. [2]

## ۱۷۲ — باب: تفسیر سورة هود

قال ابن عباس: ((عصیب))/۷۷/: ((شدید ولا جرم))/۲۲/ :بلی. وقال غیره: ((وَحَاقَ))/۸/: نَزَلَ، ((یحیق))/فاطر:۴۳/ یَنْزِلُ. ((یَئُوسٌ))/۹/ فَعُولٌ مِنْ یَئِسْتُ. وقال مجاهد: ((تبتئس)) /۳۶/ تَحْزَنْ. ((یثنون صدورهم)) شَكٌّ وامتراءٌ فی الحق ((لِیَسْتَخْفُوا مِنْهُ))/۵/: مِنَ اللهِ إِنِ استطاعوا. وقال أَبُومَیْسَرَةَ: اَلْأَوَّاهُ الرَّحِیمُ بِالْحَبَشِیَّةِ. وقال ابن عباس: ((بَادِیَ الرَّأْیِ)) /۲۷/ مَا ظَهَرَ لَنَا. وقال مجاهد: ((اَلْجُودِیِّ))/۴۴/ جَبَلٌ بِالْجَزِیرَةِ. وقال الحسن: ((إِنَّكَ لَأَنْتَ الْحَلِیمُ)) /۸۷/ یَسْتَهْزِءُونَ بِهِ. وقال ابن عباس: ((أَقْلِعِی))/۴۴/: أَمْسِكِی. ((وفار التنور))/۴۰/: نَبَعَ الْمَاءُ، وقال عکرمة: وجهُ الارضِ.

## سورة هود [3]

**د کلماتو تشریح:**

**قوله: عَصِیبٌ: شَدِیدٌ:** په آیت مبارک کښې دی ﴿ وَقَالَ هٰذَا یَوْمٌ عَصِیبٌ ﴾ دَ نن ورځ سخته ده درنه ده. حضرت ابن عباس رضی الله عنهما فرمائی دَ عصب معنی ده شدید یعنی سخت.

**قوله: لَاجَرَمَ: بَلٰی:** په آیت کښې دی ﴿ لَاجَرَمَ أَنَّهُمْ فِی الْآخِرَةِ هُمُ الْأَخْسَرُونَ ﴾ حضرت ابن عباس رضی الله عنهما فرمائی چه لاجرم په معنی بلی دې یعنی ولې نه ضرور. [4]

---

[1]) معارف القرآن:۵۶۷/٤.

[2]) عمدة القاری: ۱۱۸ \ ۲۸۵_

[3]) دلته دَبخاری دَ نسخوپه الفاظوکښې دَتحقیق په ترتیب کښې اختلاف دې. مونږ دَخپل متن دَ ترتیب مطابق الفاظو تحقیق کړې دې.

[4]) وفی العمدة:۱۸/۲۸۷_ لاجرم: کلمة کانت فی الاصل بمنزلة لابدولا محالة، فجرت علی ذلک وکثرت حتی تحولت الی معنی القسم وصارت بمنزلة حقا، فلذلک یجاب عنه باللام ...[بقیه حاشیه په راروانه صفحه.

قوله: وقال غیره: وَحَاقَ: نزل، یَحِیقُ: ینزل: آیت مبارک کښې دی ﴿ وَحَاقَ بِهِمْ مَّا كَانُوا بِهٖ يَسْتَهْزِءُونَ ﴾ اوکوم څیزسره چه دې خلقو توقې مسخرې کولې هغه به دوی راګیرکړی یعنی په دوی به راپریوځی. د عکرمه غیر یعنی ابوعبیده وئیلی دی حاق په معنی نزل دی یعنی راکوزیږی په. یحیق: راکوزیدل دا لفظ په سورت فاطرکښې دې. ﴿ وَلَا يَحِيقُ الْمَكْرُ السَّيِّئُ إِلَّا بِأَهْلِهٖ ﴾ اودَ خرابو تدبیرونووبال به په دغه تدبیرکونکو باندې راپریوځی.

قوله: یَؤُوسٌ: فَعول من یَئِستُ: آیت مبارک کښې دی ﴿ وَلَئِنْ أَذَقْنَا الْإِنْسَانَ مِنَّا رَحْمَةً ثُمَّ نَزَعْنَاهَا مِنْهُ ۚ إِنَّهُ لَيَئُوسٌ كَفُورٌ ﴾ اوکه چرې مونږ انسانانوته دَخپلې مهربانئی خوند اومزه ورکولوسره دَهغوی نه په زور اخلو نوهغه نااميده اوناشکره کیږی. فرمائی آیت کښې یؤس فعول په وزن باندې دې اودَ یئست نه ماخوذ دې په معنی نااميده کیدل.

قوله: وقال مجاهد: تبتئس: تَحْزَنْ: په آیت مبارک کښې دی ﴿ فَلَا تَبْتَئِسْ بِمَا كَانُوا يَفْعَلُونَ ﴾ بیاتاسو هیڅ غم مه کوئی کوم څه چه هغه کوی. مجاهد رحمه الله بیان کړې دې چه په آیت کښې دَ تبتئس معنی ده تَحْزَنْ لَا تَبْتَئِسْ ای لَا تَحْزَنْ: غم مه کوه.

قوله: وَقَالَ أَبُومَيْسَرَةَ: اَلْأَوَّاهُ الرَّحِيمُ بِالْحَبَشِيَّةِ: په آیت مبارک کښې دی ﴿ إِنَّ إِبْرٰهِيمَ لَحَلِيمٌ أَوَّاهٌ مُّنِيبٌ ﴾ ابومیسره عمرو بن شرجیل فرمائی چه "أوّاه" په حبشی ژبه کښې مهربان اورحم دل ته وائی.

قوله: وقال ابن عباس: بَادِيَ الرَّأْيِ: مَا ظَهَرَ لَنَا: آیت مبارک کښې دی ﴿ هُمْ أَرَاذِلُنَا بَادِيَ الرَّأْيِ ﴾ هغه خلق زمونږ نه رذیلان دی په سرسری نظرکښې. حضرت ابن عباس رضی الله عنهما فرمائی چه بَادِیَ الرَّأی معنی ده "مَا ظَهَرَ لَنَا" کوم چه زمونږ په وړاندې بالکل ښکاره دی ظاهر دی.

قوله: وقال مجاهد: اَلْجُودِيُّ: جَبَلٌ بِالْجَزِيرَةِ: آیت مبارک کښې دی ﴿ وَاسْتَوَتْ عَلَى الْجُودِيِّ ﴾ اوکشتئی په جودی غرباندې راغله اودریده. مجاهد رحمه الله فرمائی چه جودی په جزیره کښې یوغردې (چه دَ شام په ملك کښې موصل سره نیزدې دجله او فرات په مینځ کښې دې).

قوله: وقال الحسن: إِنَّكَ لَأَنْتَ الْحَلِيمُ الرَّشِيدُ: يَسْتَهْزِئُونَ بِهٖ: آیت مبارک کښې دی

---

...بقیه ازحاشیه گذشته] کما یجاب بها عن القسم، الاتراهم یقولون: لاجرم لاتینک. ویقال: جرم فعل عندالبصریین، واسم عندالکوفیین، فاذا کان اسما یکون بمعنی حقا، ومعنی الایة: حقا انهم فی الاخرة هم الاخسرون، وعلی قول البصریین لاردلقول الکفار، وجرم معناه عندهم: کسب ای کسب کفر هم الخسارة فی الآخرة" وفی المفردات للراغب:۹۲" ومعنی حرم: کسب اوجنی... وقیل جرم وجرم بمعنی لکن خص بهذالموضع جرم، کما خص عمر بالقسم وان کان عمر وعمر بمعنی... وقد قیل فی ذلک اقوال اکثر هالیس بمرتضی عندالتحقیق..... لاجرم قبل: ان لا یتناول محذوفا نحولافی قوله: لااقسم"

﴿إِنَّكَ لَأَنتَ الْحَلِيمُ الرَّشِيدُ﴾ حضرت حسن بصری رحمه الله فرمائی چه کافرانوبه دا جمله دَ مسخرو په توګه حضرت شعیب علیه السلام ته ونیله.

**قوله: وقال ابن عباس: أقلعي: أمسكي:** په آیت مبارك کښې دی ﴿ وَقِيلَ يَا أَرْضُ ابْلَعِي مَاءَكِ وَيَا سَمَاءُ أَقْلِعِي﴾ اوحکم اوشوچه اې زمکې خپلې اوبه راکاږه او اې آسمانه ورول بند کړه. حضرت ابن عباس رضي الله عنهما فرمائی چه دَ أقلعي معنی ده بندشه، اودریږه.

**قوله: وفار التنور: نبع الماء، وقال عكرمة: وجه الأرض:** ﴿ حَتَّىٰ إِذَا جَاءَ أَمْرُنَا وَفَارَ التَّنُّورُ﴾ فرمائی چه فَارَ التَّنُّورُ معنی ده اوبه راخوټکیدل، عکرمه رحمه الله فرمائی چه دَتنور نه دَ زمکې مخ مراددې یعنی دَ زمکې دَمخ نه اوبه را خوټکیدل شروع شو.[1]

بعضې حضراتو دلته د تنور نه معروفه معنی اخستې ده او ونیلی ئې دی چه د حضرت آدم علیه السلام تنور مقام په "عین ورده"، د شام په ملك کې وو، هغه مراد دې دهغې نه اوبه راؤ وتلې.[2]
بعضو ونیلی دحضرت آدم علیه السلام اصل تنور کوفه کښې وو هغه مراددې.[3] نور اقوال هم دی.

۱۷۳ - باب: ﴿أَلَا إِنَّهُمْ يَثْنُونَ صُدُورَهُمْ لِيَسْتَخْفُوا مِنْهُ أَلَا حِينَ يَسْتَغْشُونَ ثِيَابَهُمْ يَعْلَمُ مَا يُسِرُّونَ وَمَا يُعْلِنُونَ إِنَّهُ عَلِيمٌ بِذَاتِ الصُّدُورِ﴾ /٥/

[۴۴۰۴/۴۴۰۶][4] حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ مُحَمَّدِ بْنِ صَبَّاحٍ حَدَّثَنَا حَجَّاجٌ قَالَ قَالَ ابْنُ جُرَيْجٍ أَخْبَرَنِي مُحَمَّدُ بْنُ عَبَّادِ بْنِ جَعْفَرٍ أَنَّهُ سَمِعَ ابْنَ عَبَّاسٍ يَقْرَأُ (أَلَا إِنَّهُمْ تَثْنَوْنِي صُدُورُهُمْ) قَالَ سَأَلْتُهُ عَنْهَا فَقَالَ أُنَاسٌ كَانُوا يَسْتَحْيُونَ أَنْ يَتَخَلَّوْا فَيُفْضُوا إِلَى السَّمَاءِ، وَأَنْ يُجَامِعُوا نِسَاءَهُمْ فَيُفْضُوا إِلَى السَّمَاءِ، فَنَزَلَ ذَلِكَ فِيهِمْ.

[۴۴۰۵] حَدَّثَنِي إِبْرَاهِيمُ بْنُ مُوسَى أَخْبَرَنَا هِشَامٌ عَنِ ابْنِ جُرَيْجٍ وَأَخْبَرَنِي مُحَمَّدُ بْنُ عَبَّادِ بْنِ جَعْفَرٍ أَنَّ ابْنَ عَبَّاسٍ قَرَأَ (أَلَا إِنَّهُمْ تَثْنَوْنِي صُدُورُهُمْ) قُلْتُ يَا أَبَا الْعَبَّاسِ مَا تَثْنَوْنِي صُدُورُهُمْ قَالَ كَانَ الرَّجُلُ يُجَامِعُ امْرَأَتَهُ فَيَسْتَحِي أَوْ يَتَخَلَّى فَيَسْتَحِي فَنَزَلَتْ (أَلَا إِنَّهُمْ يَثْنُونَ صُدُورَهُمْ).

[۴۴۰۶] حَدَّثَنَا الْحُمَيْدِيُّ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ حَدَّثَنَا عَمْرٌو قَالَ قَرَأَ ابْنُ عَبَّاسٍ (أَلَا إِنَّهُمْ يَثْنُونَ صُدُورَهُمْ لِيَسْتَخْفُوا مِنْهُ أَلَا حِينَ يَسْتَغْشُونَ ثِيَابَهُمْ) وَقَالَ غَيْرُهُ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ

---

[1] عمدة القاري:۱۸/۲۸۹.
[2] عمدة القاري: ۱۸\ ۲۸۹-
[3] عمدة القاري:۱۸/۲۸۸.
[4] اخرجه البخاري في كتاب التفسير باب "الا انهم يثنون صدورهم" رقم الحديث: ۴۴۰۴، ۴۴۰۵، ۴۴۰۶ وهذا الحديث لم يخرجه احدمن اصحاب الستة سوى البخاري.

(يَسْتَغْشُونَ) يُغَطُّونَ رُءُوسَهُمْ (سِيءَ بِهِمْ) سَاءَ ظَنُّهُ بِقَوْمِهِ. (وَضَاقَ بِهِمْ) بِأَضْيَافِهِ (بِقِطْعٍ مِنَ اللَّيْلِ) بِسَوَادٍ. وَقَالَ مُجَاهِدٌ (أُنِيبُ) أَرْجِعُ.

((سِيءَ بِهِمْ)) سَاءَ ظَنُّهُ بِقَوْمِهِ ((وَضَاقَ بِهِمْ))/۷۷: بِأَضْيَافِهِ. ((بِقِطْعٍ مِنَ اللَّيْلِ))/۸۱: بِسَوَادٍ. وَقَالَ مُجَاهِدٌ: ((أُنِيبُ))/۸۸: أَرْجِعُ.

**د ایت باب شان نزول:** ددې آیت مبارك مختلف شان نزول بیان کړې شوی دی. دلته امام بخاری رحمه الله دَ ابن عباس رضی الله عنهما روایت نقل کړې دې دکوم حاصل چه دادې چه صحابه کرامو کښې په بعض حضراتو باندې دَحیاء دومره غلبه اوشوه چه دَاستنجاء یاجماع وغیره ضروریات بشری په وخت به دَ بدن یوه حصه بربنډولوسره شرمیدل. چه الله تعالی جل جلاله هغوی ته ګوری دکوم دَ وجې نه چه به هغوی ټیټیدل او دَشرمګاه دَپټولو دَپاره به ئې سینه پلنوله اودپاسه به ئې څادر یاکپړه اچوله دې دَپاره چه دَ الله تعالی په وړاندې سترښکاره نه شی. الله تعالی دَدې قسم تکلفاتو اختیارولونه منع اوفرمائیله چنانچه په آیت کښې ارشاد دې "واوړئې! هغه خلق خپله سینه پلنه وی (اودَپاسه کپړه اچوی) دې دَپاره چه دَ الله تعالی نه پټ شی، واوړئې! کله چه دوی خپل ځان په کپړوسره پټه وی الله تعالی دَ هغوی پټوالې هم پیژنی اوښکاره والې هم، هغه خودَهغه رازونونه هم خبردار دې کوم چه په زړونو کښې دننه دی".

مطلب دادې چه کله انسان په یوحال کښې او په یووخت کښې هم دَالله تعالی نه پټیدې نه شی نویادَ بشری ضرورتونو متعلق داسې غلو اوذداسې تکلفاتونه کاراخستل صحیح نه دی.

ددې تفسیر مطابق داآیت خودَ مسلمانانو په باره کښې نازل شوې دې لیکن دَ نورو بعض مفسرینو خیال دې چه دا آیت دکافرانو او مشرکانوباره کښې نازل شوې دې. دکافرانو او مشرکانو رویه داوه چه دَحضورپاك دَ یوې خبرې اوریدودَپاره تیارنه وو. کله چه به ئې حضورپاك دَ لرې نه په راتلو لیدلو نودَ سینې مخ به ئې اړولو یا به په کپړه کښې مخ پټولو یا دَ مسخرو په توګه به ئې خپل سرونه او سینې ښکته ټیټولې. هم دغه شان چه کله به کافرانو دَ مسلمانانوخلاف منصوبې جوړولې نو په ټیټه او سینې په کپړوکښې اینغښتلوسره به ئې خبرې کولې دې دَپاره چه چرته حضورپاك اومسلمانانوته خبر اونه شی. الله تعالی آیت مبارك نازل کړوچه الله تعالی داټول حرکتونه پیژنی تردې چه دَهغوی دَزړونودَ رازونو او پټو خبرونه هم ښه خبردې.

چنانچه امام بخاری رحمه الله دَ ﴿يَثْنُونَ صُدُورَهُمْ﴾ نه پس شَكٌّ وَامْتِرَاءٌ فِي الْحَقِّ اضافه کولوسره دَدې دویم شان نزول طرف ته اشاره کړې ده. "شك وامتراء" دَ ﴿يَثْنُونَ صُدُورَهُمْ﴾ تفسیرنه دې بلکه دَ کافرانواومشرکانودَدغه فعل دَپاره په توګه دَعلت بیان کړې شوې دې چه داخلق داقسم حرکتونه کوی دا په حق کښې شك وامتراء دَ وجې نه کوی. ﴿يَثْنُونَ صُدُورَهُمْ﴾ هغوی خپلې سینې پلنې کړې او اړولې دی.

**قوله: ثَنَى الشَّيْءَ: ثَنْياً:** تاوول، راغونډول دَباب ضرب نه دې. علامه آلوسی رحمه الله روح المعانی کښې فرمائی چه ﴿يَثْنُونَ صُدُورَهُمْ﴾ یاخو دا اعراض عن الحق نه کنایه ده یعنی هغه

مشركان دَحق نه مخ اړوی دده کوی اویا په دې سره مجازًا اخفاء او پټولو معنی مراد ده یعنی هغه کافرانو کفریه خبرې په خپلو زړونو کښې پټه وی او یا دې نه حقیقی معنی مراد ده. چه کله داخلق رسول الله ﷺ وینی نو واپس کیږی.(¹) ددې دریواړو احتمالاتو په صورت کښې دَ آیت تعلق دکافرانو او مشرکانو واقعه سره دې او هم دا علامه آلوسی رحمه الله راجح ګرځولې چنانچه هغه فرمائی "والذی یقتضیه السیاق، ویستدعیه ربط الایات، کون الایة فی المشرکین" (²)

قوله: كَانُوا يَسْتَحْيُونَ أَنْ يَتَخَلَّوْا فَيُفْضُوا إِلَى السَّمَاءِ: (يَتَخَلَّوْا) يقضوا حاجة فى الخلاء وهم عراة (فَيُفْضُوا) فتظهر عورتهم فى الفضاء، ليس بينها وبين السماء حاجز یعنی هغوی به شرمیدل ددې خبرې نه چه قضاء حاجت اوکړی او کولاؤ فضا او آسمان طرف ته خپل ستر ښکاره کړی.

قوله: سِيءَ بِهِمْ: سَاءَ ظَنُّهُ بِقَوْمِهِ وَضَاقَ بِهِمْ: بِأَضْيَافِهِ: په آیت مبارك کښې دی ﴿وَلَمَّا جَاءَتْ رُسُلُنَا لُوطًا سِيءَ بِهِمْ وَضَاقَ بِهِمْ ذَرْعًا﴾ او کله چه زمونږ لیګلې شوې فرښتې لوط علیه السلام له راغلې نو لوط دَهغوی په راتلو سره پریشان شو او دَهغوی دَ راتللو په سبب زړه تنګې شو (دَخپل قوم نامعقول حرکت ته خیال کولو سره). فرمائی چه په آیت کښې سئ بهم معنی ده سَاءَ ظَنُّهُ بِقَوْمِهِ یعنی حضرت لوط دَ خپل نه بدګمان شو اودَ دې میلمنودَ راتګ دَ وجې نه. زړه تنګې شو داتفسیر دَ حضرت ابن عباس رضی الله عنهما دې.

قوله: بِقِطْعٍ مِنَ اللَّيْلِ: بِسَوَادٍ: آیت مبارك کښې دی ﴿فَأَسْرِ بِأَهْلِكَ بِقِطْعٍ مِنَ اللَّيْلِ وَلَا يَلْتَفِتْ مِنْكُمْ أَحَدٌ﴾ پس هغوی دَشپې په څه حصه کښې خپل کوروالوسره (دَدې ځائی نه بهر) لاړو او تاسو کښې دې څوك شاته هم نه ګوری. فرمائی چه په آیت کښې بِقِطْعٍ مِنَ اللَّيْلِ نه مراد دَ شپې توروالې دې داتفسیر دَحضرت ابن عباس رضی الله عنهما نه نقل دې.

قوله: وَقَالَ مُجَاهِدٌ: أُنِيبُ: أَرْجِعُ: آیت مبارك کښې دی ﴿وَمَا تَوْفِيقِي إِلَّا بِاللَّهِ عَلَيْهِ تَوَكَّلْتُ وَإِلَيْهِ أُنِيبُ﴾ او ماته چه څه توفیق کیږی صرف هم دَالله تعالی په امدادسره دې هم په هغه باندې یقین کوم او هم دَهغه طرف ته رجوع کوم. مجاهد رحمه الله بیان کړې چه په آیت کښې انیب په معنی ارجع دې یعنی زه رجوع کوم.

## ۱۷۴ - باب: قوله ﴿وَكَانَ عَرْشُهُ عَلَى الْمَاءِ﴾ /۷/

[۴۴۰۷] (³) حَدَّثَنَا أَبُو الْيَمَانِ أَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ حَدَّثَنَا أَبُو الزِّنَادِ عَنِ الْأَعْرَجِ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رضی الله عنه

(¹) روح المعانی: ۱۱/۲۰۹.

(²) روح المعانی: ۱۱/۲۱۰.

(³) واخرجه فی کتاب النفقات، باب فضل النفقة علی الاهل رقم الحدیث: ۵۳۵۲ (مع الفتح) وفی التوحید، باب لما خلقت بیدی: ۷۴۱۱ (مع الفتح) وباب، وکان عرشه علی الماء: ۷۴۱۹ ...[بقیه حاشیه په راروانه صفحه..

أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - قَالَ «قَالَ اللَّهُ عَزَّ وَجَلَّ أَنْفِقْ أُنْفِقْ عَلَيْكَ. وَقَالَ - يَدُ اللَّهِ مَلْأَى لاَ تَغِيضُهَا نَفَقَةٌ، سَحَّاءُ اللَّيْلَ وَالنَّهَارَ - وَقَالَ - أَرَأَيْتُمْ مَا أَنْفَقَ مُنْذُ خَلَقَ السَّمَاءَ وَالأَرْضَ فَإِنَّهُ لَمْ يَغِضْ مَا فِي يَدِهِ، وَكَانَ عَرْشُهُ عَلَى الْمَاءِ، وَبِيَدِهِ الْمِيزَانُ يَخْفِضُ وَيَرْفَعُ». (اعْتَرَاكَ) افْتَعَلْتَ مِنْ عَرَوْتُهُ أَيْ أَصَبْتُهُ، وَمِنْهُ يَعْرُوهُ وَاعْتَرَانِي (آخِذٌ بِنَاصِيَتِهَا) أَيْ فِي مِلْكِهِ وَسُلْطَانِهِ. عَنِيدٌ وَعَنُودٌ وَعَانِدٌ وَاحِدٌ، هُوَ تَأْكِيدُ التَّجَبُّرِ، (اسْتَعْمَرَكُمْ) جَعَلَكُمْ عُمَّارًا، أَعْمَرْتُهُ الدَّارَ فَهْيَ عُمْرَى جَعَلْتُهَا لَهُ.

(نَكِرَهُمْ) وَأَنْكَرَهُمْ وَاسْتَنْكَرَهُمْ وَاحِدٌ (حَمِيدٌ مَجِيدٌ) كَأَنَّهُ فَعِيلٌ مِنْ مَاجِدٍ. مَحْمُودٌ مِنْ حَمِدَ. سِجِّيلٌ الشَّدِيدُ الْكَبِيرُ. سِجِّيلٌ وَسِجِّينٌ وَاللاَّمُ وَالنُّونُ أُخْتَانِ، وَقَالَ تَمِيمُ بْنُ مُقْبِلٍ وَرَجْلَةٍ يَضْرِبُونَ الْبَيْضَ ضَاحِيَةً ضَرْبًا تَوَاصَى بِهِ الأَبْطَالُ سِجِّينَا [٧٠٥٧، ٧٤٨٣، ٦٩٧٦، ٦٩٩٤، ٥٠٣٧]

**قوله: انفق انفق عليك:** حضورپاك فرمائى چه الله تعالى فرمائى ته خرچ كوه نوزه به هم په تاخرچ اوكړم. مطلب داچه كوم سړې د الله تعالى په لاركښې خرچ كوى الله تعالى ده غې عوض اوبدله وركوى.

**قوله: يَدُ اللهِ مَلاى، لاَتَغِيضُهَا نَفَقَةٌ سَحَّاءُ اللَّيْلِ وَالنَّهَارِ:** د الله تعالى لاس د قدرت ډك دې د شپې ورځې يوشان خرچ په هغې كښې كمې اونقصان نه شى واقع كولې. غَاضَ، يَغِيضُ، غَيْضاً: كميدل، كمول لازم اومتعدى دواړه شان مستعمل دې.(١)

سحّاء: مسلسل بهيدونكې.(٢)

**قوله: وكان عرشه على الماء:** او د الله تعالى عرش په اوبوباندې دې يعنى د الله تعالى د عرش لاندې سمندردې د كوم مسافت چه د پنځوسوو ميلوبرابردې. لكه چه په حديث كښې راغلى دى.(٣)

بعض حضراتو وئيلى دى چه دې نه مراد د دنياسمندردې اومطلب دادې چه د الله تعالى د عرش خپې د دې زمكې په سمندركښې دى(٤) سره د دې چه ښكارى نه ليكن په نظرنه راتلل د نه

...بقيه ازحاشيه گذشته] (مع الفتح) وباب، ويريدون ان يبدلوا... رقم الحديث:٧٤٩٦ (مع الفتح) واخرجه مسلم فى زكاة، باب الحث على النفقة وتبشيرالمنفق بالخلف، رقم الحديث:٩٩٣ واخرجه النسائى فى السنن الكبرى فى التفسير، باب وكان عرشه على الماء، رقم الحديث:١٢٣٩.

(١) عمدة القارى:١٨/٢٩٣.

(٢) قوله: سحاء اى دائمة الصب والهطل بالعطاء، يقال: سح يسح فهوساح والمؤنث سحاء وهى فعلاء لاافعل لها، كهطلاء (عمدة القارى:١٨/٢٩٣)

(٣) لم اجدهذه المسافة المذكورة فيما بين يدى من المصادر.

(٤) قال فى تفسيرفتح البارى:٤/٣٢٧ وعبارة سليمان الجمل بل هو فى مكانه...[بقيه حاشيه په راروانه صفحه.

کيدو دليل نه شي کيدې. دَدې تفصيلي بحث به انشاء الله وړاندې کتاب التوحيد کښې راځي.

**قوله:** وَبِيَدِهِ الْمِيزَانُ يَخْفِضُ وَيَرْفَعُ: دَ ميزان نه خو يا ميزان عدل مراد دې او يا ميزان رزق مراد دې چه الله تعالى دچاد پاره غوارې راښکته کوى او دَ چاد پاره چه غوارې پورته کوى.[1]

((اعْتَرَاكَ))/۵۴: افْتَعَلَكَ، مِنْ عَرَوْتُهُ أَيْ أَصَبْتُهُ، وَمِنْهُ يَعْرُوهُ وَاعْتَرَانِي. ((آخِذٌ بِنَاصِيَتِهَا))/۵۶: أَيْ فِي مِلْكِهِ وَسُلْطَانِهِ. ((عَنِيدٌ))/۵۹: وَعَنُودٌ وَعَانِدٌ وَاحِدٌ، هُوَ تَأْكِيدُ التَّجَبُّرِ. ((اسْتَعْمَرَكُمْ))/۶۱: جَعَلَكُمْ عُمَّارًا، أَعْمَرْتُهُ الدَّارَ فَهِيَ عُمْرَى جَعَلْتُهَا لَهُ. ((نَكِرَهُمْ))/۷۰: وَأَنْكَرَهُمْ وَاسْتَنْكَرَهُمْ وَاحِدٌ. ((حَمِيدٌ مَجِيدٌ))/۵۹: كَأَنَّهُ فَعِيلٌ مِنْ مَاجِدٍ، مَحْمُودٌ مِنْ حَمِدَ. ((سِجِّيلٍ))/۸۲: الشَّدِيدُ الْكَبِيرُ، سِجِّيلٌ وَسِجِّينٌ، وَاللَّامُ وَالنُّونُ أُخْتَانِ، وَقَالَ تَمِيمُ بْنُ مُقْبِلٍ: وَرَجْلَةٍ يَضْرِبُونَ الْبَيْضَ ضَاحِيَةً ضَرْبًا تَوَاصَى بِهِ الْأَبْطَالُ سِجِّينَا.

**قوله:** اعْتَرَاكَ: افْتَعَلَكَ، مِنْ عَرَوْتُهُ أَيْ أَصَبْتُهُ، وَمِنْهُ يَعْرُوهُ وَاعْتَرَانِي: په آيت کښې دى ﴿ إِنْ نَقُولُ إِلَّا اعْتَرَاكَ بَعْضُ آلِهَتِنَا بِسُوءٍ ﴾ فرمائى په دې کښې اعتراك دَباب افتعال نه دې په مجرد کښې دَنصر نه دې وائى عَرَوْتُهُ ماهغه په مصيبت کښې اخته کړو هم دَدې نه دې يَعْرُوهُ او اِعْتَرَانِي. خلاصه دا چه لفظ نصر او افتعال دواړو نه هم په يو معنى کښې استعماليږى يعنى پيښيدل، لاحق کيدل، چاله سوال کونکې جوړيدل ورتلل، په مصيبت کښې اخته کيدل.

**قوله:** آخِذٌ بِنَاصِيَتِهَا: أَيْ فِي مِلْكِهِ وَسُلْطَانِهِ: ﴿ مَا مِنْ دَابَّةٍ إِلَّا هُوَ آخِذٌ بِنَاصِيَتِهَا إِنَّ رَبِّي عَلَى صِرَاطٍ مُسْتَقِيمٍ ﴾ په دې کښې آخِذٌ بِنَاصِيَتِهَا مطلب بيان کړو چه هر دابه دَ الله تعالى په قبضه او دهغه په حکومت کښې دې، هيڅ يو څيز دهغه دَ قبضه او قدرت نه بهر نه دې.

**قوله:** عَنِيدٌ: وَعَنُودٌ وَعَانِدٌ وَاحِدٌ، هُوَ تَأْكِيدُ التَّجَبُّرِ: آيت کښې دى ﴿ وَاتَّبَعُوا أَمْرَ كُلِّ جَبَّارٍ عَنِيدٍ ﴾ اوهغه خلق دَداسې خلقو په وينا روان شوچه ظالم او سرکش وو. فرمائى چه په آيت عنيد. عاند او عنود دَيولو يوه معنى ده يعنى سرکش اودا تجبر په معنى دَتکبر تاکيد دې او ددې مبالغه ده.

**قوله:** اِسْتَعْمَرَكُمْ: جَعَلَكُمْ عُمَّارًا، أَعْمَرْتُهُ الدَّارَ فَهِيَ عُمْرَى جَعَلْتُهَا لَهُ: آيت کښې دى ﴿هُوَ أَنْشَأَكُمْ مِنَ الْأَرْضِ وَاسْتَعْمَرَكُمْ فِيهَا فَاسْتَغْفِرُوهُ﴾ فرمائى چه په دې کښې اِسْتَعْمَرَكُمْ معنى ده تاسو ئى آباد کړئى، اَعْمَرْتُهُ الدَّارَ فَهِيَ عُمْرَى وائى يعنى ماهغه کور دَټول عمر دَپاره ده له ورکړو پس هغه عمرى دې.

---

...بقيه ازحاشيه گذشته] الذى هوفيه الان وهومافوق السموات السبع والماء فى المكان الذى هوفيه الان وهو ماتحت الارضين السبع.

[1]) عمدة القارى:۱۸/۲۹۳.

**قوله:** نَكِرَهُمْ: وَأَنْكَرَهُمْ وَاسْتَنْكَرَهُمْ وَاحِدٌ: آیت مبارك کښې دی ﴿ فَلَمَّا رَآَ أَيْدِيَهُمْ لَا تَصِلُ إِلَيْهِ نَكِرَهُمْ وَأَوْجَسَ مِنْهُمْ خِيفَةً ﴾ نوبیا هله اوکتل ابراهیم علیه السلام چه د دغه (فرښتو) لاس خوراك ته نه رسیږی نومتوحش یعنی اوویریدو او په زړه کښې دهغه نه ویره کښې شو. فرمائی چه ابوعبیده بیان کړې دې چه نَكِرَ ثلاثی مجرد او أَنْكَرَ ثلاثی مزیدفیه او اِسْتَنْكَرَ د باب استفعال نه د ټولویوه معنی ده.

**قوله:** حَمِيدٌ مَجِيدٌ: كَأَنَّهُ فَعِيلٌ مِنْ مَاجِدٍ. مَحْمُودٌ مِنْ حَمِدَ: آیت کښې دی ﴿ رَحْمَةُ اللَّهِ وَبَرَكَاتُهُ عَلَيْكُمْ أَهْلَ الْبَيْتِ إِنَّهُ حَمِيدٌ مَجِيدٌ ﴾ په دې کښې حمید اومجید دواړه د فعیل په وزن دی لیکن حمید د مفعول په معنی کښې دې او مجید د فاعل په معنی کښې دې.

**قوله:** سِجِّيلٌ: الشَّدِيدُ الْكَبِيرُ، سِجِّيلٌ وَسِجِّينٌ، وَاللَّامُ وَالنُّونُ أُخْتَانِ، وَقَالَ تَمِيمُ بْنُ مُقْبِلٍ:

وَرَجْلَةٍ يَضْرِبُونَ الْبَيْضَ ضَاحِيَةً ضَرْبًا تَوَاصَى بِهِ الْأَبْطَالُ سِجِّينًا [1]

په آیت کښې دی ﴿ وَأَمْطَرْنَا عَلَيْهَا حِجَارَةً مِنْ سِجِّيلٍ مَنْضُودٍ ﴾ په دې کښې د سجیل معنی ده سخت اولوئی، سجیل او سجین دواړه لغت دی اومعنی یوه ده. لام اونون دواړه خوئندې دی لکه چه د تمیم بن مقبل شعر دې "ډیر پیدل تلونکی داسې دی چه د چاشت په وخت کښې داسې سختې تورې وهی د چابهادرسړی چه وصیت کوی یا ډیر پیدل تلونکی داسې دی چه په خودونو باندې داسې سخت ګذارونه کوی دکوم چه بهادرسړی وصیت کوی."

**قوله:** وَرَجْلَةٍ: واؤ په معنی رب دې رجلة: د راجل جمع ده: پیدل تلونکې. الْبِيْضُ (دباء کسره سره) د ابیض جمع ده: سپینه توره، اویا دا د باء فتحه سره ده دغه وخت دا د بیضة جمع ده معنی خود. [2]

## باب (وَإِلَى مَدْيَنَ أَخَاهُمْ شُعَيْبًا)

إِلَى أَهْلِ مَدْيَنَ لِأَنَّ مَدْيَنَ بَلَدٌ، وَمِثْلُهُ (وَاسْأَلِ الْقَرْيَةَ) وَاسْأَلِ (الْعِيرَ) يَعْنِي أَهْلَ الْقَرْيَةِ {

---

[1]) وفی العمدة: ۱۸/۲۹۱"تمیم بن مقبل شاعر مخضرم، ادرک الجاهلیة والاسلام، والبیت المذکورمن جملة قصیدته التی ذکر فیها لیلی زوج ابیه وکان خلف علیها، فلما فرق الاسلام بینهما قال:

| | |
|---|---|
| طاف الخيال بنا ركبا يمانيا | ودون ليلى عواد لو تعدينا |
| منهم معروف آيات الكتاب وان | نعتل تكذب ليلى ما تمنينا |
| فان فينا صبوحا ان اريت به | ركبا بهيا وآلافا ثمانينا |
| ورجلة يضربون البيض ضاحية | ضربا تواصى به الابطال سجينا |

[2]) عمدة القاری: ۱۸/۲۹۱.

وَأَصْحَابُ } الْعِيرِ (وَرَاءَكُمْ ظِهْرِيًّا) يَقُولُ لَمْ تَلْتَفِتُوا إِلَيْهِ، وَيُقَالُ إِذَا لَمْ يَقْضِ الرَّجُلُ حَاجَتَهُ ظَهَرْتَ بِحَاجَتِي، وَجَعَلْتَنِي ظِهْرِيًّا، وَالظِّهْرِيُّ هَا هُنَا أَنْ تَأْخُذَ مَعَكَ دَابَّةً أَوْ وِعَاءً تَسْتَظْهِرُ بِهِ. (أَرَاذِلُنَا) سُقَّاطُنَا. (إِجْرَامِي) هُوَ مَصْدَرٌ مِنْ أَجْرَمْتُ وَبَعْضُهُمْ يَقُولُ جَرَمْتُ. الْفُلْكُ وَالْفَلَكُ وَاحِدٌ وَهِيَ السَّفِينَةُ وَالسُّفُنُ. (مُجْرَاهَا) مَدْفَعُهَا وَهُوَ مَصْدَرُ أَجْرَيْتُ، وَأَرْسَيْتُ حَبَسْتُ وَيُقْرَأُ (مَرْسَاهَا) مِنْ رَسَتْ هِيَ، وَ(مَجْرَاهَا) مِنْ جَرَتْ هِيَ وَ(مُجْرِيهَا وَمُرْسِيهَا) مِنْ فُعِلَ بِهَا، الرَّاسِيَاتُ ثَابِتَاتٌ.

**قوله: وَإِلَى مَدْيَنَ أَخَاهُمْ شُعَيْبًا إِلَى أَهْلِ مَدْيَنَ لِأَنَّ مَدْيَنَ بَلَدٌ، وَمِثْلُهُ (وَاسْأَلِ الْقَرْيَةَ) وَاسْأَلِ (الْعِيرَ):** په آیت کښې دی چه دمدین طرف ته مونږ دهغوی رور شعیب علیه السلام اولیږلو، یعنی دمدین خلقوطرف ته اشاره کول دی چه مضاف محذوف دې ځکه چه مدین یوښاردې اودغه شان واسال القریة او واسال العیردې یعنی مراداهل قریه اوهل عیردی، مطلب ذاچه په دې دواړومثالونوکښې هم محذوف دې، عیرپه کسره دعین قافلې ته وائی اومدین په اصل کښې دحضرت ابراهیم علیه السلام دیوځوئ نوم دې چاچه دا کلې آبادکړې وو اوورلره ئ هم خپل نوم مدین کیخودو.

**قوله: (وَرَاءَكُمْ ظِهْرِيًّا) يَقُولُ لَمْ تَلْتَفِتُوا إِلَيْهِ، وَيُقَالُ إِذَا لَمْ يَقْضِ الرَّجُلُ حَاجَتَهُ ظَهَرْتَ بِحَاجَتِي وَجَعَلْتَنِي ظِهْرِيًّا):** په آیت کښې ذی «قَالَ يَقَوْمِ أَرَهْطِيَ أَعَزُّ عَلَيْكُم مِّنَ اللَّهِ» ای زماقومه ایازماقوم ستاسوپه نزددالله تعالی په مقابله کښې ډیرعزت لرونکې دې اوتاسوالله تعالی شانه اوغورزولو. دهغه طرف ته التفات نه کوئی ، کله چه څوک دچاحاجت پوره نه کړی نوپه داسې موقع باندې عرب وائی ،ظهرت بحاجتی وجعلتی ظهریا ، یعنی زماحاجت دې شاته اوغورزولو او زه دې هم شاته اوغورزولم.

**قوله: (وَالظِّهْرِيُّ هَا هُنَا أَنْ تَأْخُذَ مَعَكَ دَابَّةً أَوْ وِعَاءً تَسْتَظْهِرُ بِهِ):** اود ،،ظهری،، مفهوم دلته دادې چه ته خپل ځان سره څه ځناوریاڅه لوښې واخلی ددې دپاره چه دهغې نه په وخت دضرورت څه امداد حاصل کړې ، داحصه دابوذر رحمه الله په روایت کښې نشته اوپه ظاهره همدغه صحیح ده .ځکه چه کومه معنی دلته بیان شویده په آیت کښې هغه معنی مرادنه ده، حضرت ګنګوهی رحمه الله فرمائی چه امام بخاری رحمه الله خودل غواړی چه ظهری په دې معنی کښې هم استعمالیږی اوههنا نه دسورة هود آیت طرف ته اشاره نه ده، بلکه دکلام طرف ته اشاره ده کومه چه دعون اومدد معنی کښې استعمالیږی یعنی زمونږ په خبرو اتروکښې اوپه محاورو کښې دا لفظ په دې معنی کښې هم استعمالیږی .[1]

[1] قوله والظهری ههنا ای حیث یستعمل فی معنی العون والمدد، ولیس اشاره الی مافی الایة لانه لیس فیها بالمعنی الذی ذکربعد قوله: ههنا(وانظرلامع الدراری: (۹ص۱۰۶)_

**قوله: (أَرَاذِلُنَا سقاطنا):** آيت كښې دى ، ﴿وَمَا نَرٰىكَ اتَّبَعَكَ اِلَّا الَّذِيْنَ هُمْ اَرَاذِلُنَا بَادِيَ الرَّاْيِ﴾ او مونږ ګورو چه ستا تابعدارى هم هغه خلقو كړيده چه په مونږ كښې بالكل رذيل دى په سرسرى نظر كښې فرمانى چه اراذلنا نه غورزيدلى اوكم حيثيت والا قوم مراد دى ،

**قوله: (إِجْرَامِي) هُوَ مَصْدَرٌ مِنْ أَجْرَمْتُ وَبَعْضُهُمْ يَقُولُ جَرَمْتُ:** آيت كښې دى ﴿قُلْ اِنِ افْتَرَيْتُهٗ فَعَلَيَّ اِجْرَامِيْ وَاَنَا بَرِيْٓءٌ مِّمَّا تُجْرِمُوْنَ﴾ تاسو اوفرمائى كه چرې مادا (قرآن) پخپله جوړكړې وى نوپه ما خوخپله ګناه ده اوچه كوم جرم تاسوكوئ زه دهغې نه خلاص يم فرمائى اجرام مصدر دې داجرمت باب افعال نه دې بعض حضرات ثلاثى مجرد جرمت نه دې ته ماخوذ وائى.

**قوله: (مُجْرَاهَا) مَدْفَعُهَا وَهُوَ مَصْدَرُ أَجْرَيْتُ، وَأَرْسَيْتُ حَبَسْتُ وَيُقْرَأُ (مَرْسَاهَا) مِنْ رَسَتْ هِيَ ، وَ (مَجْرَاهَا) مِنْ جَرَتْ هِيَ وَ (مُجْرِيهَا وَمُرْسِيهَا) مِنْ فُعِلَ بِهَا ، الرَّاسِيَاتُ ثَابِتَاتٌ:**

**په بسم الله مجريها و مرساها كې مختلف قراءتونه:** په آيت مبارک كښې ﴿بِسْمِ اللّٰهِ مَجْرٖىهَا وَمُرْسٰىهَا﴾ امام بخارى رحمه الله په دې كښې دريو قراءتونو ته اشاره كړيده .

① يوقراءت دې (مجراها ومرساها) ددې قراءت په صورت كښې دادواړه دباب افعال نه مصدرميمى دى. (۱) دمجراها تفسيرامام بخارى دمدفعها سره كړيدې اومراد دي نه كشتئ چلول دى . مرساها د (ارسيت) نه مصدر ميمى دې دكوم معنى چه دبندولوده ، مرسها يعنى ددې كشتئ بندول ،مطلب دادې چه دكشتئ چلول اوبندول همَ دالله تعالى دنوم سره دى.

② دويم قراءت دې (مجراها ومرساها) دميم په فتحه سره ددې قراءت په صورت كښې (مجراها) د (جرت هى) نه او (مرساها) د (درست هى) نه ماخوذدې اوددې معنى دچلولو اودبندولوراخى مطلب داچه ددې كشتئ چليدل اوددې بنديدل دالله تعالى په نوم سره دى . (دجرت) معنى اوچليدله ،(درست) معنى بند شوه، اودريده .

③ دريم قراءت دې (مجريها ومرسيها) ددې قراءت صورت كښې دواړه دباب افعال نه داسم فاعل صيغې دى اومطلب ئې دادې چه كشتئ چلونكې او اودرونكې هم الله تعالى دې .دې وخت كښې ''من فعل بها،، كښې به دفعل معروف صيغه وى اوكه مجرها ومرسها داسم فاعل په ځائې داسم مفعول جوړكړې مجراها ومرساها په معنى دمجريها ومرسابها نو ''من فعل بها،، كښې به دفعل مجهول صيغه وى اومطلب به داوى چه ددې كشتئ چلول اوبندول هم دالله تعالى په نوم

(۱) مصدر نه دى ځكه چه ددې باب نه مصدر افعال په وزن باندې راځى نوپه دې وجه مراد مصدر ميمى دې۔

سره دى اوپه دريم قراءت كښې اسم فاعل اواسم مفعول د دوؤ قراءتونو طرف ته اشاره اوشوه او په رومبنى قراءت كښې مجراها ومرسها كښې د مصدر ميمى اعتبار كړې شوې وو امام بخارى رحمه الله د قراءت د حفص طرف ته اشاره نه ده كړې كوم كښې چه مجرها ومرسها (بفتح الميم فى الاول وضم الميم فى الثانى) وارد شويدى ، په دې قراءت كښې اول د ثلاثى نه دې اودويم د رباعى نه دې .

## ١٧٥=باب قَوْلِهِ (وَيَقُولُ الْأَشْهَادُ هَؤُلَاءِ الَّذِينَ كَذَبُوا عَلَى رَبِّهِمْ أَلَا لَعْنَةُ اللَّهِ عَلَى الظَّالِمِينَ).

)وَاحِدُ الْأَشْهَادِ شَاهِدٌ مِثْلُ صَاحِبٍ وَأَصْحَابٍ.

[٤٤٠٨]حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ زُرَيْعٍ حَدَّثَنَا سَعِيدٌ وَهِشَامٌ قَالَا حَدَّثَنَا قَتَادَةُ عَنْ صَفْوَانَ بْنِ مُحْرِزٍ قَالَ بَيْنَا ابْنُ عُمَرَ يَطُوفُ إِذْ عَرَضَ رَجُلٌ فَقَالَ يَا أَبَا عَبْدِ الرَّحْمَنِ أَوْ قَالَ يَا ابْنَ عُمَرَ سَمِعْتَ النَّبِيَّ صلى الله عليه وسلم فِي النَّجْوَى فَقَالَ سَمِعْتُ النَّبِيَّ صلى الله عليه وسلم يَقُولُ «يُدْنَى الْمُؤْمِنُ مِنْ رَبِّهِ وَقَالَ هِشَامٌ يَدْنُو الْمُؤْمِنُ - حَتَّى يَضَعَ عَلَيْهِ كَنَفَهُ، فَيُقَرِّرُهُ بِذُنُوبِهِ تَعْرِفُ ذَنْبَ كَذَا يَقُولُ أَعْرِفُ، يَقُولُ رَبِّ أَعْرِفُ مَرَّتَيْنِ ، فَيَقُولُ سَتَرْتُهَا فِي الدُّنْيَا وَأَغْفِرُهَا لَكَ الْيَوْمَ ثُمَّ تُطْوَى صَحِيفَةُ حَسَنَاتِهِ، وَأَمَّا الْآخَرُونَ أَوِ الْكُفَّارُ فَيُنَادَى عَلَى رُءُوسِ الْأَشْهَادِ هَؤُلَاءِ الَّذِينَ كَذَبُوا عَلَى رَبِّهِمْ» وَقَالَ شَيْبَانُ عَنْ قَتَادَةَ حَدَّثَنَا صَفْوَانُ

اوګواه به وائى چه هم دغه خلق دى چا چه دخپل پروردګار په نسبت دروغ خبرې لګولې وى . واورئى چه دالله تعلى لعنت دې په ظالمانو باندې اشهاد دشاهد جمع ده لکه دصاحب چه اصحاب ،دلته داشهاد نه مراد فرښتې دى چه داعمالو ګواهى به وركوى .

## باب قَوْلِهِ (وَكَذَلِكَ أَخْذُ رَبِّكَ إِذَا أَخَذَ الْقُرَى وَهِيَ ظَالِمَةٌ إِنَّ أَخْذَهُ أَلِيمٌ شَدِيدٌ).

(الرِّفْدُ الْمَرْفُودُ) الْعَوْنُ الْمُعِينُ. رَفَدْتُهُ أَعَنْتُهُ (تَرْكَنُوا) تَمِيلُوا (فَلَوْلَا كَانَ) فَهَلَّا كَانَ (أُتْرِفُوا) أُهْلِكُوا. وَقَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ (زَفِيرٌ وَشَهِيقٌ) شَدِيدٌ وَصَوْتٌ ضَعِيفٌ.)

[٤٤٠٩] (١): حَدَّثَنَا صَدَقَةُ بْنُ الْفَضْلِ أَخْبَرَنَا أَبُو مُعَاوِيَةَ حَدَّثَنَا بُرَيْدُ بْنُ أَبِي بُرْدَةَ عَنْ أَبِي بُرْدَةَ عَنْ أَبِي مُوسَى -رضى الله عنه- قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- «إِنَّ

---

(١) واخرجه مسلم فى البر والصلة والادب باب تحريم الظلم رقم الحديث :٢٥٨٣) واخرجه الترمذى فى تفسيرباب ومن سورة هود رقم الحديث : ٣١١٠ واخرجه النسائى فى السنن الكبرى فى التفسيرباب وكذلك اخذ ربک رقم الحديث :١١٢٤٥ واخرجه ابن ماجه فى الفتن باب العقوبات رقم الحديث :٤٠١٨ _

اللَّهَ لَيُمْلِي لِلظَّالِمِ حَتَّى إِذَا أَخَذَهُ لَمْ يُفْلِتْهُ». قَالَ ثُمَّ قَرَأَ (وَكَذَلِكَ أَخْذُ رَبِّكَ إِذَا أَخَذَ الْقُرَى وَهِيَ ظَالِمَةٌ إِنَّ أَخْذَهُ أَلِيمٌ شَدِيدٌ)

**قوله:** ((الرِّفْدُ الْمَرْفُودُ) الْعَوْنُ الْمُعِينُ. رَفَدْتُهُ أَعَنْتُهُ): په آيت کښې دی ،(وَأُتْبِعُوا فِي هٰذِهٖ لَعْنَةً وَّيَوْمَ الْقِيٰمَةِ بِئْسَ الرِّفْدُ الْمَرْفُوْدُ) اوپه دې دنيا کښې هم هغوی پسې شاته لعنت اولګولی شو اوږقيامت په ورځ هم خراب انعام دې چه هغوی ته به ورکړې شی . فرمائی آيت کښې (الرِّفْدُ الْمَرْفُودُ) په معنی د الْعَوْنُ الْمُعِينُ يعنی امداد دې ،عرب وائی (رَفَدْتُهُ)ما دهغه مدد اوکړو د رفد معنی بخشش، انعام اومدد راځی ،

**قوله:** (تَرْكَنُوا) تَمِيلُوا): په آيت مبارک کښې دی ،(وَلَا تَرْكَنُوْٓا اِلَى الَّذِيْنَ ظَلَمُوْا )اواې مسلمانانو دظالمانو طرف ته (ياچه دهغوی په شان وی دهغوی طرف ته د زړونو د دوستئ اويا په اعمالواو احوالوکښې شراکت اومشابهت ته) مه ښکته کيږئ ،فرمائی چه (ترکنوا) د(تميلوا) په معنی کښې دې لاترکنوا مه مائل کيږی مه ښکته کيږئ.

**قوله:**(فَلَوْلَا كَانَ) فَهَلَّا كَانَ ): په آيت کښې دی (فَلَوْلَا كَانَ مِنَ الْقُرُوْنِ مِنْ قَبْلِكُمْ) نوبيا ولې تاسو هغه ډلونه نه شوئ کوم چه ستاسونه وړاندې وو. فرمائی آيت کښې د(فَلَوْلَا كَانَ) معنی (فَهَلَّا كَانَ) ده.

**قوله:** ((أُتْرِفُوا) أُهْلِكُوا...: په آيت کښې دی .(وَاتَّبَعَ الَّذِيْنَ ظَلَمُوْا مَآ اُتْرِفُوْا فِيْهِ وَكَانُوْا مُجْرِمِيْنَ) اونافرمانه خلق دهغه خوندونو شاته پريوتل چه هغوی ته ورکړې شوی وو اوهغه مجرم خلق وو.

فرمائی (اترفوا)په معنی (اهلکوا) دې يعنې .هلاک کړې شو. اصل کښې (ترف يترف)دباب سمع نه دې معنی ئې ده، خوشحاله کيدل ، دارام ژوندتيرول ، اودباب افعال نه د(اتراف) معنی ده دخوشحالئې اودولت مندئی نه سرکش اوخرابيدل اوهمدغه دهلاکت ذريعه ده. (اهکوا) د(اترفوا) تفسير باللازم دې.

**قوله:** (وَقَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ (زَفِيرٌ وَشَهِيقٌ) شَدِيدٌ وَصَوْتٌ ضَعِيفٌ: آيت کښې دی ( فَاَمَّا الَّذِيْنَ شَقُوْا فَفِي النَّارِ لَهُمْ فِيْهَا زَفِيْرٌ وَّشَهِيْقٌ) بياچه کوم خلق بدبخت وی هغه به په دوزخ کښې په داسې حال کښې وی چه په هغې کښې به هغوی چغې صورې وهی فرمائی چه حضرت ابن عباس رضی الله عنه اوفرمائيل چه زفير تيز آواز او شهيق روآوازته وائی . دلغت داماماتو په دې کښې مخلتف اقوال دی. بعض فرمائی زفير د خر ړومبنی آواز ته او شهيق د قچر آوازته وائی .

## =۱۷۷ باب قَوْلِهِ (وَأَقِمِ الصَّلَاةَ طَرَفَيِ النَّهَارِ وَزُلَفًا مِنَ اللَّيْلِ إِنَّ الْحَسَنَاتِ يُذْهِبْنَ السَّيِّئَاتِ ذَلِكَ ذِكْرَى لِلذَّاكِرِينَ)

(وَزُلَفًا) سَاعَاتٍ بَعْدَ سَاعَاتٍ وَمِنْهُ سُمِّيَتِ الْمُزْدَلِفَةُ الزُّلَفُ مَنْزِلَةٌ بَعْدَ مَنْزِلَةٍ وَأَمَّا زُلْفَى فَمَصْدَرٌ مِنَ الْقُرْبَى ،ازْدَلَفُوا اجْتَمَعُوا (أَزْلَفْنَا) جَمَعْنَا

[۴۴۱۰] حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا يَزِيدُ - هُوَ ابْنُ زُرَيْعٍ - حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ التَّيْمِيُّ عَنْ أَبِي عُثْمَانَ عَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ - رضي الله عنه - أَنَّ رَجُلًا أَصَابَ مِنَ امْرَأَةٍ قُبْلَةً، فَأَتَى رَسُولَ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - فَذَكَرَ ذَلِكَ لَهُ فَأُنْزِلَتْ عَلَيْهِ (وَأَقِمِ الصَّلَاةَ طَرَفَيِ النَّهَارِ وَزُلَفًا مِنَ اللَّيْلِ إِنَّ الْحَسَنَاتِ يُذْهِبْنَ السَّيِّئَاتِ ذَلِكَ ذِكْرَى لِلذَّاكِرِينَ). قَالَ الرَّجُلُ أَلِيَ هَذِهِ قَالَ «لِمَنْ عَمِلَ بِهَا مِنْ أُمَّتِي». [ر: ۵۰۳]

امام بخاري رحمه الله فرمائي پرله پسې راتلوته زلف وائي ،دا دزلفة جمع ده. ساعات هم پرله پسې راخي په دې وجه دې ته زلف اووئيلې شو مزدلفه ته هم مزدلفه په دې وجه مزدلفه وائي چه پرله پسې خلق رارسي . اوزلفي مصدر دې لکه قربى په معنى نژديوالى . دالفظ په سورة زمر کښې دې هلته په آيت مبارک کښې دی .(وَالَّذِينَ اتَّخَذُوا مِنْ دُونِهِ أَوْلِيَاءَ مَا نَعْبُدُهُمْ إِلَّا لِيُقَرِّبُونَا إِلَى اللَّهِ زُلْفَى) کوم خلقوچه دالله تعالى نه علاوه دوستان نيولى دى (هغوى وائي) چه مونږ خودهغوى عبادت کو، ددې دپاره چه هغوى مونږ دالله تعالى طرف ته دنزديکت درجې ته اورسوى .

**قوله**: أَنَّ رَجُلًا أَصَابَ مِنَ امْرَأَةٍ قُبْلَةً: دا سړې څوک وو، بعضوئيل عمروبن غزيه وو، بعضوئيل كعب بن عمرووو، بعضوئيل(نبهان تمار)وو اوبعضو عامربن قيس نوم اخستې دې.([1])

**قوله**: (إِنَّ الْحَسَنَاتِ يُذْهِبْنَ السَّيِّئَاتِ): بيشکه نيکئ بدئى لره ختموى يوبل آيت کښې دی .(إِنْ تَجْتَنِبُوا كَبَائِرَ مَا تُنْهَوْنَ عَنْهُ نُكَفِّرْ عَنْكُمْ سَيِّئَاتِكُمْ )([2])اوپه حديث شريف کښې راغلى دی،، الصلوات الخمس والجمعة الى الجمعة كفارة لما بينهن ما اجتنب الكبائر،،([3]) بعض حضراتو خودا وئيلى دى چه حسنات دسيئات دپاره کفاره هغه وخت جوړيږى چه دکبائرارتکاب ئې نه وى کړې ([4]) بعضو وئيلى دى چه دکبائروارتکاب شوې وى نو حسنات به صرف دصغائردپاره کفاره جوړيږى .بعضوئيلى دى چه سړې کله دحسنات اهتمام کوي نو هغه دګناهونونه محفوظ کيږى اوبيا دګناهونوارتکاب نه کوى ،داد معتزله رائې ده ،([5]) دجمهورومسلک دادې چه دحسنات په وجه دصغائروکفاره کيږى که هغه دکبائرارتکاب کړې وى که نه .([6])

## ۱۷۸- باب: تفسير سورة يُوسُفَ

وَقَالَ فُضَيْلٌ عَنْ حُصَيْنٍ عَنْ مُجَاهِدٍ (مُتَّكَأً) الأُتْرُجُّ قَالَ فُضَيْلٌ الأُتْرُجُّ بِالْحَبَشِيَّةِ مُتْكًا

---

[1]) عمدة القاري ج۱۸ص ۲۹۷_
[2]) (النساء :۳۱)_
[3]) مشكوة : ج۱ص۵۲)_
[4]) فتح البارى)ج ۸ص ۳۵۱)_ وتفسيرروح المعانى (ج۷ص۱۵۷)_
[5]) فتح البارى)ج ۸ص ۳۵۱)_ وتفسيرروح المعانى (ج۷ص۱۵۷)_
[6]) فتح البارى)ج ۸ص ۳۵۱)_ وتفسيرروح المعانى (ج۷ص۱۵۷)_

وَقَالَ ابْنُ عُيَيْنَةَ عَنْ رَجُلٍ عَنْ مُجَاهِدٍ مُتْكًا كُلُّ شَيْءٍ قُطِعَ بِالسِّكِّينِ.
وَقَالَ قَتَادَةُ (لَذُو عِلْمٍ). عَامِلٌ بِمَا عَلِمَ.
وَقَالَ سعيد ابْنُ جُبَيْرٍ صُوَاعٌ مَكُّوكُ الْفَارِسِيِّ الَّذِي يَلْتَقِي كَانَتْ تَشْرَبُ بِهِ الأَعَاجِمُ.
وَقَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ (تُفَنِّدُونِ) تُجَهِّلُونِ. وَقَالَ غَيْرُهُ غَيَابَةٌ كُلُّ شَيْءٍ غَيَّبَ عَنْكَ شَيْئًا فَهُوَ غَيَابَةٌ
وَالْجُبُّ الرَّكِيَّةُ الَّتِي لَمْ تُطْوَ. (بِمُؤْمِنٍ لَنَا) بِمُصَدِّقٍ. (أَشُدَّهُ) قَبْلَ أَنْ يَأْخُذَ فِي النُّقْصَانِ،
يُقَالُ بَلَغَ أَشُدَّهُ وَبَلَغُوا أَشُدَّهُمْ،

## سورة يوسف

**د کلماتو تشريح:**

**قوله:** (وَقَالَ فُضَيْلٌ عَنْ حُصَيْنٍ ...): حضرت مجاهد رحمه الله قول دې چه آيت مبارک «وَأَعْتَدَتْ لَهُنَّ مُتَّكَأً» کښې «متکا» معنی د «اترنج» ده کله نون په جيم کښې مدغم هم کړی اواترج وائی، دخه معنی چه نارنج ده، دغه شان فضيل هم وئيلی دی چه اترج ته حبشی ژبه کښې متکا وائی اوسفيان بن عينيه ديوسړی په واسطه دحضرت مجاهد رحمه الله نه نقل کړی دی ,,متکا هرهغه څيزته وائی چه په چاړه سره پريکړی شی. په دې لفظ کښې دوه قراء تونه دی، حضرت ابن عباس رضی الله عنه ابن عمر رضی الله عنه اومجاهدوغيره په قراءت کښې همزه نشته اولفظ متکا «دميم په ضمه اود تاء په فتحه اوتشديد اودهمزه په تنوين سره» دی، [1] ليکن دجمهورو قراء ت ,, متکا «دميم ضمه ، تا فتحه اوتشديد اوهمزه په تنوين سره» دې، امام بخاری رحمه الله دشپږو اوولفظونوتشريح کولونه پس وړاندې بيا په دې لفظ باندې کلام کوی.

**قوله:** (وَقَالَ قَتَادَةُ (لَذُو عِلْمٍ). عَامِلٌ بِمَا عَلِمَ: په آيت کښې دی «وَإِنَّهُ لَذُو عِلْمٍ لِمَا عَلَّمْنَاهُ» قتاده رحمه الله فرمائی دې کښې دذوعلم نه مراد هغه سړې دې چه په خپل علم باندې عمل کونکې وی.

**قوله:** (وَقَالَ سعيد ابْنُ جُبَيْرٍ صُوَاعٌ مَكُّوكُ الْفَارِسِيِّ الَّذِي يَلْتَقِي كَانَتْ تَشْرَبُ بِهِ الأَعَاجِمُ):

**صواع څه شې دې؟:** په آيت کښې دی «قَالُوا نَفْقِدُ صُوَاعَ الْمَلِكِ» حضرت سعيد بن جبير رحمه الله فرمائی چه صواع دفارس دخلقويوه پياله ده دکوموبه چه دواړه طرفونه يوبل سره ملاؤ شوې ووعجم خلقو به په دې کښې اوبه څکلې [2] مکوک «دميم فتحه کاف ضمه مشدده اوواوسکون سره» د

---

[1] روح المعانی : ج ۱۲ص۲۲۸) _
[2] وفی فيض الباری : ٤_

عراقیانو دیوې پیمانې نوم دې، دمصري بادشاه داصواع دچاندئي وواومرغلرې په دې لګیدلې وې ،لویوخلقوبه په دې کښې اوبه څکلې اوهغې نه پس به بیادپیمانې په توګه هم استعمالیدله .

**قوله: (وَقَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ (تُفَنِّدُونِ) تُجَهِّلُونِ):** په آیت کښې دی (اِنِّیْ لَاَجِدُ رِیْحَ یُوْسُفَ لَوْلَآ اَنْ تُفَنِّدُوْنِ) دیوسف علیه السلام پلاراوونیل که چرې تاسوخلق ماپه بوډاوالی کښې ګډې وډې خبرې کونکې نه ګنړئ نو(یوه خبره کوم چه) ماله خودیوسف بوئی راځی .حضرت ابن عباس رضی الله عنه بیان اوکړوچه په آیت کښې تفندون معنی تجهلون ده .یعنی که تاسوراته جاهل اونه وائې ،نقصان دعقل طرف ته منسوب نه کړئ .

**قوله: وَقَالَ غَيْرُهُ غَيَابَةُ الْجُبِّ: كُلُّ شَيْءٍ غَيَّبَ عَنْكَ شَيْئًا فَهُوَ غَيَابَةٌ:**

**دغیابة الجب نه څه مراد دې؟:** دحضرت ابن عباس رضی الله عنه نه سواغیریعنی ابوعبیده رحمه الله فرمائیلې دی چه آیت (وَاَلْقُوْهُ فِیْ غَیٰبَتِ الْجُبِّ) (غیابة) اطلاق په هرهغه څیزباندې کیږی چه تانه څه بل غائب کړی اوجب هغه کوهی ته وائی دکوم چه شپول اوغاړې نه وی جوړې شوې (۱)غیابة الجب نه مراد بعضې خلقودکوهی تیاره اخستې ده ،بعضوئیلی دی دینه مراد قعرینر دې. ځکه چه قعرکښې کله څه څیزپریوزی نوهغه به هغه پټ کړی اودپاس خلقوته هغه نه ښکاری. بعضې حضراتو وئیلی دی چه دینه مراددکوهی په مینځ کښې اوبه اود اوبودپاسه جوړشوی هغه طاخ دې چه دضرورت دپاره په کوهی کښې عام توګه باندې جوړولې شی . (۲)

**قوله: (بِمُؤْمِنٍ لَنَا) بِمُصَدِّقٍ لَنَا:** په آیت کښې دی ن(وَتَرَكْنَا يُوْسُفَ عِنْدَ مَتَاعِنَا فَاَكَلَهُ الذِّئْبُ وَمَآ اَنْتَ بِمُؤْمِنٍ لَّنَا وَلَوْ كُنَّا صٰدِقِيْنَ) اویوسف مونږ دخپل سامان سره پریخودوبیاهغه شرمخ اوخوړلو او تاسو خو زمونږ خبره منونکی نه ئې، یعنی تصدیق کونکې نه ئې (ځکه په مونږ ستاسو بدګمانی ده).

**قوله: (يُقَالُ بَلَغَ أَشُدَّهُ وَبَلَغُوا أَشُدَّهُمْ، وَقَالَ بَعْضُهُمْ وَاحِدُهَا شَدٌّ):**

**د بلغ اشده مصداق:** په آیت کښې دی .(وَلَمَّا بَلَغَ اَشُدَّهٗۤ اٰتَيْنٰهُ حُكْمًا وَّعِلْمًا) اشد نه مراد هغه عمردې چه دنقصان ،زوال او انحطاط نه اول وی په کوم کښې چه سړی دلوئیدلو په اعتبارسره مکمل شوې وی ،دیرشوکالوپورې سړې لوئیږی دې نه پس بیا انحطاط شروع کیږی او اشدد واحداوجمع دواړودپاره استعمالیږی .وائی (ابن بلغ اشده ،بلغوا اشدهم) بعضوخلقووئیلی دی ددې واحدشد دې .بعضهم نه سیبویه مراد دی ،(۳)

---

(۱) وقال الراغب فی المفردات : ۸۵ جب ای بئرلم نطو،وتسمیته بذلک امالکونه محفورا فی جیوب ای فی ارض غلیظه واماالانه قدجب والجب قطع الشئ من اصله ،،_

(۲) (روح المعانی :۱۲ ص۱۹۲)

(۳) عمدة القاری :ج ۱۸ص ۳۰۰) لیکن علامه آلوسی لیکلی دی چه ...[بقیه حاشیه په راروانه صفحه.

(وَالْمُتَّكَأُ مَا اتَّكَأْتَ عَلَيْهِ لِشَرَابٍ أَوْ لِحَدِيثٍ أَوْ لِطَعَامٍ. وَأَبْطَلَ الَّذِي قَالَ الْأُتْرُجُّ، وَلَيْسَ فِي كَلَامِ الْعَرَبِ الْأُتْرُجُّ، فَلَمَّا احْتُجَّ عَلَيْهِمْ بِأَنَّهُ الْمُتَّكَأُ مِنْ نَمَارِقَ فَرُّوا إِلَى شَرٍّ مِنْهُ، فَقَالُوا إِنَّمَا هُوَ الْمُتْكُ سَاكِنَةَ التَّاءِ، وَإِنَّمَا الْمُتْكُ طَرَفُ الْبَظْرِ وَمِنْ ذَلِكَ قِيلَ لَهَا مَتْكَاءُ وَابْنُ الْمَتْكَاءِ، فَإِنْ كَانَ ثَمَّ أُتْرُجٌّ فَإِنَّهُ بَعْدَ الْمُتَّكَإِ)

دائي دوباره ددي لفظ تشريح شروع كړه، مناسب داوه چه مذكوره تشريح، د ړومبنۍ تشريح سره مفصل وي، فرمائي المتكا (باب افتعال نه صيغه داسم مفعول (١) هغه څيزته وائي په كوم چه دځكلووخت كښې يا د خبروكولوپه وخت، يادخوراک په وخت كښې په مجلس كښې ږده لګوي دالفظ ,,مُتْك،، دې دې تاء سكون سره، حالانكه ,,مَتْك،، د ښځې د شرمګاه غاړې ته وائي (دښځې د سنت كولو نه پس چه د شرمګاه كومه حصه باقي پاتې كيږي هغې ته ,,مَتْك،، وائي. او هم په دې وجه (چه د كومې ښځې چه سنت نه وي شوي) هغې ته مَتْكَاء (ميم فتحه سره) واي اوهغې څوي ته ابن المتكاء وائي بياكه چرې هلته (مجلس زليخاكښې) نارنجان ووهغه به ئي هم دمسنداوتكيه نه پس راوړي وي.

**په ,,متكا،، كې دوه قراء تونه:** لكه چه دينه وړاندې تيرشوي چه په مذكوره آيت كښې دوه قراتونه دي يوقراء ت دجمهورو دې او دويم قراء ت دمجاهد رحمه الله وغيره نه منقول دې چه شاذ دې، د جمهورو قرأت ,,مُتَّكَأً،، دې او د مجاهد قرأت ,,مُتْكًا،، دې چه ددې معنى مجاهد اترج (نارنج) بيان كړې ده، امام بخارى رحمه الله دمجاهد رحمه الله دقراءت ترديد كوى اوفرمائي چه دمتک معنى كلام عرب كښې اترج نه ده بلكه ددې معنى دشرمګاه غاړه راځي چه په آيت كښې په يو شان هم صحيح نه ده.

ليكن حقيقت دادې چه دامام بخارى رحمه الله دااشكال صحيح نه دې، دا قراء ت دابن عباس رضي الله عنه نه مجاهد رحمه الله نقل كوى دې ته څنګه غلط وئيلى شي اود ,,متک،، معنى څنګه چه دشرمګاه غاړه راځي بالكل همدغه شان ددې معنى اترج هم راځي، اهل لغت ,,متک،، ليكې ته. (٢) نو دامام بخارى رحمه الله داوينا چه متک په معنى د اترج دعربوپه كلام كښې مستعمل نه دې محل نظر دې، بعضې حضراتووئيلى دى چه امام بخارى رحمه الله دلته دابوعبيده رحمه الله روند تقليد كړيدې څكه ددې غلطۍ ښكار شويدې، علامه عينى رحمه الله وقلد اباعبيده والآفة من التقليد، (٣)

...بقيه ازحاشيه گذشته] دسيبويه په نيزد داد ,, شدة جمع ده لكه نعة چه جمع دانعم دې امام فراء په نيزددا دشد جمع ده، لكه چه دصک جمع اصک راځي (اوګورئ روح المعانى :ج١٢ص٢٠٩)

(١) واصله موتكاء لانه من توكات فابدلت الواو تاءً وادغمت فى مثلها (روح المعانى :ج ٢ص٢٢٨)

(٢) روح المعانى :ج ١٢ص٢٢٨وعمدة القارى ج١٨ص ٣٠٠)

(٣) عمدة القارى (ج١٨ص٣٠١)

(شَغَفَهَا) يُقَالُ إِلَى شِغَافِهَا وَهُوَ غِلَافُ قَلْبِهَا، وَأَمَّا شَعَفَهَا فَمِنَ الْمَشْعُوفِ (أَصْبُ) أَمِيلُ. (أَضْغَاثُ أَحْلَامٍ) مَا لَا تَأْوِيلَ لَهُ، وَالضِّغْثُ مِلْءُ الْيَدِ مِنْ حَشِيشٍ وَمَا أَشْبَهَهُ، وَمِنْهُ (وَخُذْ بِيَدِكَ ضِغْثًا) لَا مِنْ قَوْلِهِ (أَضْغَاثُ أَحْلَامٍ) وَاحِدُهَا ضِغْثٌ (نَمِيرُ) مِنَ الْمِيرَةِ (وَنَزْدَادُ كَيْلَ بَعِيرٍ) مَا يَحْمِلُ بَعِيرٌ. (أَوَى إِلَيْهِ) ضَمَّ إِلَيْهِ، السِّقَايَةُ مِكْيَالٌ (تَفْتَأُ) لَا تَزَالُ. (حَرَضًا) مُحْرَضًا، يُذِيبُكَ الْهَمُّ (تَحَسَّسُوا) تَخَبَّرُوا. (مُزْجَاةٍ) قَلِيلَةٍ (غَاشِيَةٌ مِنْ عَذَابِ اللَّهِ) عَامَّةٌ مُجَلِّلَةٌ.

**قوله:** (شَغَفَهَا) يُقَالُ إِلَى شِغَافِهَا وَهُوَ غِلَافُ قَلْبِهَا، وَأَمَّا شَعَفَهَا فَمِنَ الْمَشْعُوفِ): په آيت كښې دى (قَدْ شَغَفَهَا حُبًّا) يعنى ديوسف عليه السلام محبت دهغې دزړه دپردې پورې اورسيدلو اوپه يو قراءت كښې په شعفها (دعين مهمله سره) هم راغلې دې [1] دا د مشعوف نه دې اومشعوف هغه سړى ته وائى دچازړه چه دمحبت په وجه سوزيدلې وى.

**قوله:** (أَصْبُ) أَمِيلُ: په آيت كښې دى (وَإِلَّا تَصْرِفْ عَنِّي كَيْدَهُنَّ أَصْبُ إِلَيْهِنَّ وَأَكُنْ مِنَ الْجَاهِلِينَ) او اې الله، كه هم ته زمانه ددوى دا دوونه اوپيچونه لرې نه كړې نوممكن ده چه زۀ هم ددوى طرف ته مائل شم. فرمائى چه په آيت كښې (اصب) په معنى (اميل) ده يعنى زۀ به مائل شم.

**قوله:** وَالضِّغْثُ مِلْءُ الْيَدِ مِنْ حَشِيشٍ وَمَا أَشْبَهَهُ، وَمِنْهُ (وَخُذْ بِيَدِكَ ضِغْثًا) لَا مِنْ قَوْلِهِ (أَضْغَاثُ أَحْلَامٍ) وَاحِدُهَا ضِغْثٌ): په آيت كښې دى قَالُوا أَضْغَاثُ أَحْلَامٍ وَمَا نَحْنُ بِتَأْوِيلِ الْأَحْلَامِ بِعَالِمِينَ امام بخارى رحمه الله داضغاث احلام نه هغه پريشانه خوب مراد دې دكوم چه څه تعبيرنه وى ددې مفرد ,,ضغث،، دې دضغث معنى وابنه اوددې په شان نورشيزونه (دكې وغيره) نه لاس ډكول راخى. سورة ص دا آيت هم په دې معنى كښې دې ليكن دلته سورة يوسف كښې دامعنى مراد نه ده، دلته ددې نه پريشانه خوب مراد دې (لامن قوله: اضغاث احلام) نه دې طرف ته اشاره ده. [2]

**قوله:** (نَمِيرُ) مِنَ الْمِيرَةِ: (په آيت كښې دى (وَنَمِيرُ أَهْلَنَا وَنَحْفَظُ أَخَانَا وَنَزْدَادُ كَيْلَ بَعِيرٍ) فرمائى ,,نمير،، ميرة،، نه ماخوذ دې دكوم معنى طعام اوغله ده، دباب ضرب (ماراهله .....ميرا) دكرخلقو دپاره غله راوړل. د (ونميراهلنا) معنى به وى ,,مونږ دخپل كوروالا دپاره غله اوطعام حاصل كړو (كيل بعير) نه مراد دومره غله كوم چه يو اوښ اوچتولې شى.

**قوله:** (أَوَى إِلَيْهِ) ضَمَّ إِلَيْهِ): په آيت كښې دى (وَلَمَّا دَخَلُوا عَلَى يُوسُفَ آوَى إِلَيْهِ أَخَاهُ) اوچه كله

---

[1] روح المعانى: ج ۱۲ص۲۲۶)_

[2] وفى المفردات للراغب: ۲۹۸الضغث قبضة ريحان اوحشيش وجمعه اضغاث قال وخذ بيدك ضغثا وبه شبه الاحلام المختلطة التى لايتبين حقائقها قالوا اضغاث احلام حزم اخلاط من الاحلام _

داخلق یعنی دیوسف علیہ السلام رونړه) یوسف علیہ السلام ته اورسیدل (اوبنیامین ئی پیش کړوچه مونږ ستاسودحکم موافق دا راوستلو) هغه خپل رور خپل خان سره کړو. فرمائی چه آیت کښې (اٰوٰی اِلَیۡہِ) معنی ده (ضم الیه) خپل خان سره ئې یوځائ کړو، خپل خان سره ئی ځائ ورکړو.

**قوله:** «اَلسِّقَایَۃُ مِکۡیَالٌ: په آیت کښې دی (فَلَمَّا جَهَّزَهُمۡ بِجَهَازِهِمۡ جَعَلَ السِّقَایَةَ فِیۡ رَحۡلِ اَخِیۡهِ) بیا چه کله یوسف علیہ السلام دهغه سامان تیار کړونو داوبوڅکلولوښې (همدغه پیمانه دغلې ورکولوهم وه) ئې دخپل ورور په سامان کښې کیخودله. فرمائی چه دسقایه معنی پیمانه ده.

**قوله:** (تَفۡتَؤُا) لَاتَزَالُ: په آیت دی (قَالُوۡا تَاللّٰهِ تَفۡتَؤُا تَذۡكُرُ يُوۡسُفَ حَتّٰى تَكُوۡنَ حَرَضًا اَوۡ تَكُوۡنَ مِنَ الۡهٰلِكِيۡنَ)

امام بخاری رحمہ اللہ فرمائی چه دې کښې ,, تفتوء ،، دلاتزال په معنی کښې دې ،، دلته لا،، محذوف دې اصل عبارت لاتفتا دې دکوم معنی چه همیشه ده اوحرضا، مصدر دمحرضا،، اسم مفعول په معنی کښې دې، په معنی د مضمحل ،،بیمار، امام بخاری رحمہ اللہ ددې تفسیر کړې ,,یُذِیبك الهمّ،، مطلب دادې چه هغوی به برابر یوسف علیہ السلام یادولوتردې چه دهغوی غم هغوی ویلی کړی وو.

**قوله:** (تَحَسَّسُوا) تَخَبَّرُوا: په آیت کښې دی (یٰبَنِیَّ اذۡهَبُوۡا فَتَحَسَّسُوۡا مِنۡ یُّوۡسُفَ وَاَخِیۡهِ) لاړشئ اویوسف او دهغه رور اولټوئ فرمائی چه آیت کښې تحسسوا،په معنی د(تخبروا) دې یعنی تاسو خبر واخلئ دتحس معنی ده خبراخستل ،لټول،تلاش کول.

**قوله:** (مُزۡجَاةٍ) قَلِیۡلَةٍ): آیت کښې دی (وَجِئۡنَا بِبِضَاعَةٍ مُّزۡجٰىةٍ) اومونږ خراب څیزراوړې دې،یعنی کمې پسې اوخراب قمیت موراوړې دې فرمائی چه آیت کښې دمزجاة معنی قلیل او ناقص ده.

**قوله:** (غَاشِیَةٌ مِنۡ عَذَابِ اللّٰهِ) عَامَّةٌ مُجَلِّلَةٌ): آیت کښې دی (اَفَاَمِنُوۡۤا اَنۡ تَاۡتِیَهُمۡ غَاشِیَةٌ مِّنۡ عَذَابِ اللّٰهِ اَوۡ تَاۡتِیَهُمُ السَّاعَةُ بَغۡتَةً وَّهُمۡ لَا یَشۡعُرُوۡنَ) د,, غاشیة تفسیراوکړو(عامة مجللة یعنی یولوئ عذاب (جلل الشئ تجلیلا) عام کیدل ،داد غاشیة صفت دې، دآیت مطلب دې آیا هغه خلق دې خبرې سره په امن کښې ووچه په دوی به دالله تعالی دعذاب نه یوخوریدونکې مصیبت راشی یاپه هغوی باندې ناځاپې قیامت راشی اوهغوی ته پته هم نه وی.

## ۱۷۹ = باب قوله: وَیُتِمُّ نِعۡمَتَهُ عَلَیۡكَ وَعَلٰۤی اٰلِ یَعۡقُوۡبَ كَمَاۤ اَتَمَّهَا عَلٰۤی اَبَوَیۡكَ مِنۡ قَبۡلُ اِبۡرٰهِیۡمَ وَاِسۡحٰقَ

[۴۴۱۱] وَقَالَ حَدَّثَنَا عَبۡدُ اللّٰهِ بۡنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا عَبۡدُ الصَّمَدِ عَنۡ عَبۡدِ الرَّحۡمٰنِ بۡنِ عَبۡدِ اللّٰهِ بۡنِ دِیۡنَارٍ عَنۡ اَبِیۡهِ عَنۡ عَبۡدِ اللّٰهِ بۡنِ عُمَرَ رضی الله عنهما - عَنِ النَّبِیِّ صلی الله علیه وسلم -

قَالَ «الْكَرِيمُ بْنُ الْكَرِيمِ بْنِ الْكَرِيمِ يُوسُفُ بْنُ يَعْقُوبَ بْنِ إِسْحَاقَ بْنِ إِبْرَاهِيمَ». [ر: ۳۲۰۲]

## ۱۸۰= باب قوله: لَقَدْ كَانَ فِي يُوسُفَ وَإِخْوَتِهِ آيَاتٌ لِلسَّائِلِينَ

[۴۴۱۲] حَدَّثَنِي مُحَمَّدٌ أَخْبَرَنَا عَبْدَةُ عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ عَنْ سَعِيدِ بْنِ أَبِي سَعِيدٍ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ - رضي الله عنه - قَالَ سُئِلَ رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - أَيُّ النَّاسِ أَكْرَمُ قَالَ « أَكْرَمُهُمْ عِنْدَ اللَّهِ أَتْقَاهُمْ ». قَالُوا لَيْسَ عَنْ هَذَا نَسْأَلُكَ. قَالَ « فَأَكْرَمُ النَّاسِ يُوسُفُ نَبِيُّ اللَّهِ ابْنُ نَبِيِّ اللَّهِ ابْنِ نَبِيِّ اللَّهِ ابْنِ خَلِيلِ اللَّهِ ». قَالُوا لَيْسَ عَنْ هَذَا نَسْأَلُكَ. قَالَ « فَعَنْ مَعَادِنِ الْعَرَبِ تَسْأَلُونِي ». قَالُوا نَعَمْ. قَالَ « فَخِيَارُكُمْ فِي الْجَاهِلِيَّةِ خِيَارُكُمْ فِي الإِسْلاَمِ إِذَا فَقِهُوا ». تَابَعَهُ أَبُو أُسَامَةَ عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ.

## ۱۸۱= باب قَوْلِهِ (قَالَ بَلْ سَوَّلَتْ لَكُمْ أَنْفُسُكُمْ أَمْرًا) (۳)

(سَوَّلَتْ) زَيَّنَتْ

[۴۴۱۳] حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيزِ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ سَعْدٍ عَنْ صَالِحٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ. قَالَ وَحَدَّثَنَا الْحَجَّاجُ حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ عُمَرَ النُّمَيْرِيُّ حَدَّثَنَا يُونُسُ بْنُ يَزِيدَ الأَيْلِيُّ قَالَ سَمِعْتُ الزُّهْرِيَّ سَمِعْتُ عُرْوَةَ بْنَ الزُّبَيْرِ وَسَعِيدَ بْنَ الْمُسَيَّبِ وَعَلْقَمَةَ بْنَ وَقَّاصٍ وَعُبَيْدَ اللَّهِ بْنَ عَبْدِ اللَّهِ عَنْ حَدِيثِ عَائِشَةَ زَوْجِ النَّبِيِّ - صلى الله عليه وسلم - حِينَ قَالَ لَهَا أَهْلُ الإِفْكِ مَا قَالُوا فَبَرَّأَهَا اللَّهُ، كُلٌّ حَدَّثَنِي طَائِفَةً مِنَ الْحَدِيثِ قَالَ النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - « إِنْ كُنْتِ بَرِيئَةً فَسَيُبَرِّئُكِ اللَّهُ، وَإِنْ كُنْتِ أَلْمَمْتِ بِذَنْبٍ فَاسْتَغْفِرِي اللَّهَ وَتُوبِي إِلَيْهِ ». قُلْتُ إِنِّي وَاللَّهِ لاَ أَجِدُ مَثَلاً إِلاَّ أَبَا يُوسُفَ (فَصَبْرٌ جَمِيلٌ وَاللَّهُ الْمُسْتَعَانُ عَلَى مَا تَصِفُونَ) وَأَنْزَلَ اللَّهُ (إِنَّ الَّذِينَ جَاءُوا بِالإِفْكِ) الْعَشْرَ الآيَاتِ.

[۴۴۱۴] حَدَّثَنَا مُوسَى حَدَّثَنَا أَبُو عَوَانَةَ عَنْ حُصَيْنٍ عَنْ أَبِي وَائِلٍ قَالَ حَدَّثَنِي مَسْرُوقُ بْنُ الأَجْدَعِ قَالَ حَدَّثَتْنِي أُمُّ رُومَانَ وَهْيَ أُمُّ عَائِشَةَ قَالَتْ بَيْنَا أَنَا وَعَائِشَةُ أَخَذَتْهَا الْحُمَّى، فَقَالَ النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - « لَعَلَّ فِي حَدِيثٍ تُحُدِّثَ ». قَالَتْ نَعَمْ وَقَعَدَتْ عَائِشَةُ قَالَتْ مَثَلِي وَمَثَلُكُمْ كَيَعْقُوبَ وَبَنِيهِ وَاللَّهُ الْمُسْتَعَانُ عَلَى مَا تَصِفُونَ.

دا آیت په سورة یوسف په دوو خایونوکښې دې، یودسورة یوسف په دویمه رکوع کښې دې ،کله چه حضرت یوسف علیه السلام دهغه رونړوبوتلو اوکوهې کښې ئې ورګذارکړو نو حضرت یعقوب علیه السلام ته هغوی اوونیل چه هغه شرمخ اوخوړلواودحضرت یوسف علیه السلام په قمیص ئې ددروغووینه اولګوله او رائیوړه حضرت یعقوب علیه السلام چه قمیص اوکتلونوئی فرمائیل (قَالَ

بَلْ سَوَّلَتْ لَكُمْ أَنْفُسُكُمْ أَمْرًا فَصَبْرٌ جَمِيلٌ، يعنى دا تاسوتا ستاسو زړونو يوه خبره جوړه کړه اوي هم صبربهتر دي.

حضرت مولانا شبيراحمد عثماني رحمه الله ددې آيت په فائده کښې ليکى : بنه چه کوم سړى په شام کښې ناست وى اود مصرنه ديوسف عليه السلام دقميص خوشبوئى ورله راځى نوهغه دبکرۍ په وينه دحضرت يوسف عليه السلام دوينى ګمان څنګه کولې شو. هغه اوريدو سره دروغ اوګڼړله اولکه څنګه چه په بعضې تفاسيروکښې دى ،وئيل ئى چه واقعى هغه شرمخ به ډيرحليم اومتين وى چه يوسف عليه السلام ئى يوړلو اودوينو لړلې قميص ئى ډير په احتياط سره صحيح سالم اووستلو اوکيخودو. ربنتيا دى چه ,, دروغګو را حافظه نه باشد ،، دوينو څاڅکى خونى ورکړه ولې داخيال ورته اونه شوچه قميص ئى بې ترتيبه رابنکلې اوشلولې پيش کړې وې حضرت يعقوب عليه السلام صفااوفرمائيل چه داټول ستاسوسازش اوستاسودزړونو نه جوړې شوې خبرې دى .زه صبر جميل اختياروم په کوم کښې چه نه دغيريه وړاندې څه ګيله وى اونه تاسونه دانتقام کوشش صرف دخپل خدائى نه کوم چه په دې صبر کښې زما امداد اوکړى اوپه خپل غيبى اعانت سره چه کومې خبرې تاسو وائى دهغې حقيقت داسې رابنکاره کړى چه په سلامتې سره يوسف عليه السلام سره دوباره ملاويدل رانصيب شي، معلوميږى چه حضرت يعقوب عليه السلام خبرکړيشوې ووچه په کوم امتحان کښې هغوى راګيرکړې شوى دى هغه به پوره کيږى اود يوې موډې متعين نه پس به ددې مصيبت نه خلاصې ملاويږى. موجوده وخت کښې لټون يا دانتقام تدبيرونه اختيارولو هيڅ فائده نشته ،يوسف عليه السلام به اوس نه ملاويږى اودا خبره ده چه نورخامن به مې په ټوله دنياکښې رسوا کيږى اوممکن ده چه په غصه کښې راشى اوحضرت يعقوب عليه السلام ته دنقصان رسولوکوشش اوکړى .(۱)

دويم ځائى کښې داآيت دسورة يوسف په لسمه رکوع کښې دې ،کله چه بنيامين حضرت يوسف عليه السلام خپل ځان سره حصارکړواوپه يوه خاص بهانه باندې ئى بنيامين دتلونه منع کړونوروڼړه ئى راغله اوحضرت يعقوب عليه السلام ته ئى اووئيل چه بنيامين غلا کړې وه دهغې په وجه ئى اونيولو نو هغه وخت هم حضرت يعقوب عليه السلام اوفرمائيل:

**د ايت کريمه په تفسير باندې يواشکال او دهغې جوابات:** اوس اشکال داپيدا کيږى چه په دې بله موقع باندې خوئى روڼړو ربنتيا وئيلى وو دهغې باوجود حضرت يعقوب عليه السلام دهغوى خبره دروغ اوګڼړله اودهغوى په خبره ئى اعتبار اونه کړو، حضرت يعقوب عليه السلام دالله تعالى نبى دې نوهغه يوه غلطه خبره څنګه کولې شى ؟

① ددې اشکال يوجواب خوشاه عبدالقادر رحمه الله ورکړې دې هغوى فرمائى داولنى ځل بې اعتبارې په وجه داخل هم حضرت يعقوب عليه السلام دځامنواعتبار اونه کړو ليکن دنبى کلام دروغ نه وى دځامنوجوړه شوې خبره وه. حضرت يوسف عليه السلام هم خوئ وونوکله چه د لکم خطاب

---

(۱) تفسير عثمانى : ۳۱۴_۱۵ فائده نمبر۱)_

دجنس "ابناء" طرف ته اوشو. (۱) ددې حاصل دادې چه داخل خامنوځه اووئیل هغه رښتیا وولیکن دحضرت یعقوب علیه السلام په مذکوره جمله کښې اشاره دحضرت یوسف علیه السلام دبهانې طرف ته وه

۲ حضرت مولانا شبیراحمد عثمانی رحمه الله یوبل جواب ورکړې دې هغوی فرمائی بعضې مفسرینو دامطلب اخستې دې چه تاسودلته نه دحفاظت څنګه وعده او اصرار کولوسره بوتلو هلته په رسیدوباندې دومره هم اونه کړیشو چه ددهٔ دسامان نه پیاله راوتلوسره غلا څنګه ثابته شوه کیدیشی چه بل چا پټه کړې وی مدافعت خوبه موکړې وو، دې وئیلوسره چه اول دده رور غلا کړې وه هغه جرم نی پوخ کړو که ستاسوپه زړه کښې خرابی نه وه نودالار به مونه اختیاروله ، اوس دخبروجوړولودپاره راغلی ئې (۲) ددې جواب مطلب دادې چه حضرت یعقوب علیه السلام د بنیامین په قصه کښې دتسویل نسبت په دې وجه کړې دې چه کله دبنیامین دکجاوې نه پیاله راؤوتله اوپه هغه باندې دغلا الزام اولګولې شونوهغه وخت ئی رونړو وئیلی وو. دبنیامین طرف ته هغوی دغلا نسبت اوکړو اوهغوی تحقیق نه ووکړې ،په دې وجه حضرت یعقوب علیه السلام دتسویل اسناد دهغوی طرف ته اوکړو. دغه شان چه هغوی کومه جزا اوسزاتجویزکړې وه چه چاسره پیمانه راووتله هغه دې اونیولې شی داسزاهغوی دخپل طرف نه مقرر کړې وه، دمصربادشاه سره دغل داسزا نه وه .

۳ دریم جواب داورکړې شوې دې چه دلته دحضرت یعقوب علیه السلام نه اجتهادی غلطی شوې اوهغه دخامنو رښتونې خبره اونه منله لیکن دهغوی رښتیا خبره نه منلویوه معقول وجه وه .ددې نه وړاندې دحضرت یوسف علیه السلام په حق کښې دهغوی تجربه شوې وه چه رونړونی دهوکې نه کار اخستې دې اوس دلته داخبره واضحه وه سارق قید کول اودغلا په بدله کښې هغه اخستل صرف دحضرت یعقوب علیه السلام دشریعت سزا وه،په بل شریعت کښې هغه وخت دغل داسزا مقررنه وه اونه دمصردبادشاه دقانون لاندې دغلا داسزاوه .حضرت یعقوب علیه السلام پوهه شوچه دغلا بنکاره کیدو نه پس هغوی دخپل شریعت مطابق څکه فتوی ورکړه چه بنیامین بندکړې په دې وجه هغوی هغه خبره غلطه اوګنړله اویوه صحیح خبره په دې وجه غلطه ګرځول چه دهغې دغلط کیدلوقرائن موجود وی هیڅ قابل جرح امرنه دې علامه آلوسی رحمه الله لیکی :

وذكر ابن المنير في توجيه هذا القول ههنا ......انهم كانوا عند ابيهم عليه السلام حينئذ متهمين ، وهم قمن باتهامه لما اسلفوه في حق يوسف عليه السلام وقامت عنده قرينة تؤكد التهمة تقويها وهو اخذ الملك له في السرقة ، ولم يكن ذلك الا من دينه لامن دين غيره من الناس ،فظن انهم الذين افتوه بذلك بعد ظهور السرقة التي ذكروها تعمدا ليتخلف دونهم ، واتهام من هو بحيث يتطرق اليه التهمة لا حرج فيه، لا سيما فيما يرجع الى الوالد مع الولد. (۳)

---

(۱) تفسیر عثمانی : ۳۱٤_۱۵ فائده نمبر۲)_
(۲) تفسیر عثمانی : ۳۱٤_۱۵ فائده نمبر۳)_
(۳) روح المعانی ج۱۳ص۳۹)_

# ۱۸۲=باب قَوْلِهِ (وَرَاوَدَتْهُ الَّتِي هُوَ فِي بَيْتِهَا عَنْ نَفْسِهِ وَغَلَّقَتِ الأَبْوَابَ وَقَالَتْ هَيْتَ لَكَ). (۴)

وَقَالَ عِكْرِمَةُ هَيْتَ لَكَ بِالْحَوْرَانِيَّةِ هَلُمَّ. وَقَالَ ابْنُ جُبَيْرٍ تَعَالَهْ

**قوله: هيت،،:** دهاء کسره اوفتح دواړه شان سره نقل کړې شوې دې ،عکرمه رضی الله عنه فرمائی چه داحورانی لغت دې اوهلم معنی کښې دې، حوران دشام دیوښار نوم وو[1]ددې طرف ته دامنسوب دی ،امام سدی رحمه الله فرمائی دادقبطی ژبې لفظ دې [2]اودحضرت ابن عباس رضی الله عنه نه منقول دی چه دادسریانۍ ژبې لفظ دې اوبعضې وائی چه داعبرانی ژبه کښې استعمالیږی لیکن دجمهورو رائې ده چه دالفظ دعربې ژبې دې .[3]

[۴۴۱۵]حَدَّثَنِي أَحْمَدُ بْنُ سَعِيدٍ حَدَّثَنَا بِشْرُ بْنُ عُمَرَ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ سُلَيْمَانَ عَنْ أَبِي وَائِلٍ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ مَسْعُودٍ قَالَ هَيْتَ لَكَ قَالَ وَإِنَّمَا نَقْرَؤُهَا كَمَا عُلِّمْنَاهَا (مَثْوَاهُ) مُقَامُهُ (أَلْفَيَا) وَجَدَا (أَلْفَوْا آبَاءَهُمْ) (أَلْفَيْنَا) وَعَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ (بَلْ عَجِبْتَ وَيَسْخَرُونَ)

**د سورة صافات ددې لفظ په سورة یوسف کې د ذکر کولو وجه:** د دې تعلق دسورة یوسف سره نه دې بلکه داپه سورة الصافات کښې واقع دې ،امام بخاری رحمه الله داولې دلته ذکر کړو، بعضې حضراتو ونیلی دی چه دائې دلته بې محل ذکرکړې دې. دلته ددې دراوړلو هیڅ مناسبت نشته [4] لیکن دبخاری بعضو شراحو ددې مناسبت بیان کړې دې چه حضرت عبدالله بن مسعود رضی الله عنه په قراءت کښې ,, بل عجبت ،، دتاء ضمه سره ده، او,,هیت ،، کښې هم یوقراءت نو ددې د راوړلوسره امام بخاری دې طرف ته اشاره کول غواړی لکه چه څنګه,, بل عجبت ،،کښې یوقراءت دتاء په ضمه سره دې دغه شان ,,هیت لک ،، کښې هم یو قراءت دتاء په ضمه سره دې .[5]

**په ``بل عجبت ویسخرون،، کې د عجبت په یو قراءت باندې د قاضی شریح یو اشکال او دهغې جواب:** قاضی شریح دحضرت عبدالله بن مسعود رضی الله عنه نه نقل شوې ,, بل عجبت ،، کښې دتاء دضمه والا قراءت رد کړې دې ځکه چه په دې صورت کښې به مطلب داشی چه الله تعالی

---

[1] عمدة القاری :۱۸ص۳۰۵)_

[2] فتح الباری :(ج ۸ص ۳۶٤)_

[3] فتح الباری :(ج ۸ص ۳۶٤)_

[4]عمدة القاری :۱۸ص۳۰۶)_

[5] قال الکرمانی رحمه الله شرحه البخاری :ج۱۷ص۱۶۳ فان قلت هذه فی سورة الصافات فلم ذکرماهنا؟ قلت لبیان ان ابن مسعودیقرا مضموماکما یقر اهیت مضموما وفی اللامع : ج۹ ۱۱۳_۱۱٤) قوله هیت لک قراء ابن مسعود رضی الله عنه بضم التاء والاخرون بفتحها وعلیه مدار اعتراض ابی وائل وکذلک اختلف ابی مسعود مع المجمهورفی قوله بل عجبت ولذلک اوردالمولف نظیرالاختلاف._

فرمائی زۀ تعجب کوم او تعجب خو هغه سړې کوی چه دحقیقت حال نه خبرنه وی ولې الله تعالی خو دهرحال حقیقت نه خبر دې نو دتعجب اسناد دالله تعالی طرف ته به صحیح نه وی لیکن ابراهیم نخعی رحمه الله فرمائی چه قاضی شریح دخپل علم په وجه په عجب اوحیراتتیا کښې اخته شوې دې اوهغه دحضرت عبدالله بن مسعود رضی الله عنه په شان دجلیل القدرصحابی اودقراءت دعالم قراءت ئې رد کړو. حالانکه رسول الله ﷺ سره اختصاص ساتونکې دومره لوئ صحابی یوقراءت دخپل خان نه خونه شی جوړولې بلکه خامخابه ئې درسول الله نه څه اوریدلې وی په دې وجه دقاضی شریح دا وینا چه مذکوره قراءت صحیح نه دې محل نظردے ،

ترکومې چه دقاضی شریح داشکال تعلق دې چه په دې صورت کښې به دتعجب اسناد دالله تعالی طرف ته شی نود دې یوجواب خودا دې چه دلته ..قل محذوف اومنلې شی یعنی اې نبی ﷺ تاسو اووائی چه ماته حیراتتیا ده په دې صورت کښې نواسنادبه دالله تعالی طرف ته نه کیږی اودویم جواب دادې که دتعجب نسبت دالله تعالی طرف ته هم وی نوبه هغه صورت کښې به ددې هم هغه معنی مراد اخستې شی چه دالله تعالی دشان لائق اوسزا وار وی. مثلا دا مطلب بیانولې شی چه زۀ داسې معامله کوم لکه څنګه چه تعجب کونکې معامله کوی په حقیقت کښې تعجب کول مراد نه دی .

[۴۴۱۶] حَدَّثَنَا الْحُمَيْدِيُّ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنِ الأَعْمَشِ عَنْ مُسْلِمٍ عَنْ مَسْرُوقٍ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ-رضي الله عنه-أَنَّ قُرَيْشًا لَمَّا أَبْطَئُوا عَنِ النَّبِيِّ -صلى الله عليه وسلم- بِالإِسْلاَمِ قَالَ « اللَّهُمَّ اكْفِنِيهِمْ بِسَبْعٍ كَسَبْعِ يُوسُفَ » فَأَصَابَتْهُمْ سَنَةٌ حَصَّتْ كُلَّ شَيْءٍ حَتَّى أَكَلُوا الْعِظَامَ حَتَّى جَعَلَ الرَّجُلُ يَنْظُرُ إِلَى السَّمَاءِ فَيَرَى بَيْنَهُ وَبَيْنَهَا مِثْلَ الدُّخَانِ قَالَ اللَّهُ (فَارْتَقِبْ يَوْمَ تَأْتِي السَّمَاءُ بِدُخَانٍ مُبِينٍ) قَالَ اللَّهُ (إِنَّا كَاشِفُو الْعَذَابِ قَلِيلاً إِنَّكُمْ عَائِدُونَ) أَفَيُكْشَفُ عَنْهُمُ الْعَذَابُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ وَقَدْ مَضَى الدُّخَانُ وَمَضَتِ الْبَطْشَةُ .[ر: ۹۶۲]

ددې روایت دترجمة الباب سره په ظاهره هیڅ تعلق په نظرنه راځی ځکه چه په روایت کښې دی چه رسول الله ﷺ دقریشو دپاره خیرې اوکړې دڅه په نتیجه کښې چه په هغوی قحط راغلو هغوی ﷺ په خیروکښې فرمائیلی وو «اللهم اکفنیهم بسبع کسبع یوسف» لیکن په روایت کښې صرف دحضرت یوسف علیه السلام نوم راتلل دمناسبت دپاره کافی نه دی بعضې حضراتو فرمائیلی دی چه ددې روایت په بل طریق کښې دی چه کله په قریشوباندې دقحط سختی شوه نو ابوسفیان رضی الله عنه دحضوراکرم ﷺ په خدمت حاضرشو اووئی ونیل چه تاسوخودصله رحمئ حکم ورکوئی.ستاسوقوم دولږې مرې دهغوی دپاره دعا اوکړئی،هغوی ﷺ دقریشو دظلمونو اودهغوی قصورمعاف کړواودهغوی دپاره ئی دعا اوکړه اوتیک هم هغه شان اوشو څنګه چه حضرت یوسف علیه السلام دخپلوروڼوظلمونه اودزلیخا قصورمعاف کړې ووااودهغوی نه ئې هیڅ قسم بدله نه وه اخستې.په دې مناسبت سره امام بخاری رحمه الله داحدیث دلته ذکرکړې دې.[1]

---

[1] عمدة القاری :ج۱۸ص۳۰۷)_

## ۱۸۳-باب قَوْلِهِ (فَلَمَّا جَاءَهُ الرَّسُولُ قَالَ ارْجِعْ إِلَى رَبِّكَ فَاسْأَلْهُ مَا بَالُ النِّسْوَةِ اللَّاتِي قَطَّعْنَ أَيْدِيَهُنَّ إِنَّ رَبِّي بِكَيْدِهِنَّ عَلِيمٌ قَالَ مَا خَطْبُكُنَّ إِذْ رَاوَدْتُنَّ يُوسُفَ عَنْ نَفْسِهِ قُلْنَ حَاشَ لِلَّهِ)

وَحَاشَ وَحَاشَى تَنْزِيهٌ وَاسْتِثْنَاءٌ (حَصْحَصَ) وَضَحَ

[۴۴۱۷] حَدَّثَنَا سَعِيدُ بْنُ تَلِيدٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ الْقَاسِمِ عَنْ بَكْرِ بْنِ مُضَرَ عَنْ عَمْرِو بْنِ الْحَارِثِ عَنْ يُونُسَ بْنِ يَزِيدَ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ سَعِيدِ بْنِ الْمُسَيَّبِ وَأَبِي سَلَمَةَ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ-رضی الله عنه- قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ-صلى الله عليه وسلم- «يَرْحَمُ اللَّهُ لُوطًا، لَقَدْ كَانَ يَأْوِي إِلَى رُكْنٍ شَدِيدٍ، وَلَوْ لَبِثْتُ فِي السِّجْنِ مَا لَبِثَ يُوسُفُ لَأَجَبْتُ الدَّاعِيَ، وَنَحْنُ أَحَقُّ مِنْ إِبْرَاهِيمَ إِذْ قَالَ لَهُ (أَوَلَمْ تُؤْمِنْ قَالَ بَلَى وَلَكِنْ لِيَطْمَئِنَّ قَلْبِي).

**عبد الرحمن بن القاسم**: داد امام مالک رحمه الله شاګرد دې اودهغه سلسله نسب داده عبدالرحمن بن القاسم بن خالد بن جنادة العتقی ،المصری.

امام ابوزرعه رحمه الله دهغوی باره کښې فرمائی ثقة رجل صالح،،

امام نسائی رحمه الله فرمائی ،،ثقة مامون احد الفقهاء،،

امام حاکم رحمه الله فرمائی ثقة مامون،، اوابن حبان رحمه الله کتاب الثقات کښې دهغه ذکر کړيدې.

دهغوی وفات ۲۱ صفر ۱۹۱ هجری کښې شوې اودولادت باره کښې ئې درې قوله دی ۱۲۸ھ ۱۲۱ھ او ۱۳۲ھ امام بخاری، امام نسائی اوامام ابوداؤد رحمه الله په ،،مراسیل کښې دهغوی نه روایت کوی. [۱]

### قوله: لقد کان یاوی الی رکن شدید):

د ''لقد کان یاوی الی رکن شدید،، معنی: یعنی حضرت لوط علیه السلام رکن شدید طرف ته مائل وو که د رکن شدید نه مراد الله تعالی وی اوظاهرخبره ده چه د الله تعالی نه سوا بل څوک رکن شدید کیدیشی په دې صورت کښې دهغوی دعا،، یرحم الله لوطا......،، دمدح په توګه به وی چه دهغوی مقام څومره لوئی دې ،څنګه څنګه مصیبتونه راغلل لیکن حضرت لوط علیه السلام کله

[۱] عبدالرحمن بن القاسم الفقیه مشهور صاحب مالک وراوی المدونة ،،من علم مالک ولیس له فی البخاری سوی هذالموضع والاسناد مسلسل بالمصریین الی یونس بن یزیدوالباقون مدنیون وفیه روایة الاقران لاعمروبن الحارث المصری بالفقیه المشهورمن اقران یونس بن یزید (وانظرفتح الباری :ج۸ص۲۶۸) دهغوی حالات اومذکوره تفصیل دپاره اوګورئ تهذیب الکمال :ج۱۷ص ۳۴۴ وابن خلکان :ج۳ص ۱۲۹ والجمع لابن القیسرانی :ج۱ص۲۹۳) والکاشف :۲ الترجمة ۳۰، وشذرات الذهب ج۱ص۳۲۹)_

هم غيرالله طرف ته رجوع اونه كړه بلكه هم دالله تعالى طرف ته ئى رجوع اختيار كړه ،دالله تعالى په هغوى باندې خاص رحمت وواودركن شديد نه خاندان اوقبيله هم مراد كيدلې شي په دې صورت كښې به مطلب داوى چه حضرت لوط عليه السلام خواهش اوكړو كه زماخوك مضبوط خاندان اوقبيله دلته وې نو دهغه خلقوبه داجراءت نه كيدو ،داخلق ما خوار او رسوا په دې وجه كوى چه زه يوازى اوتنها يم په دې صورت كښې دا دعا حضرت لوط عليه السلام ديوتسامح بيانولودپاره اوفرمائيله ،دهغوى نه دبشرى تقاضې په وجه دالغزش اوشو،الله تعالى هغه معاف كړلواوخپل رحمت ئى پرې نازل كړو،حضرت لوط عليه السلام نه پس الله تعالى هرنبى په يومستحكم قبله كښې راوليږلوچه هغوى ته په هيڅ يوه موقع ددې وينا ضرورت رانه شى چه افسوس زماخاندان وې نوزما دامداد دپاره به راتلو[1]

## ۱۸٤= باب قَوْلِهِ (حَتَّى إِذَا اسْتَيْأَسَ الرُّسُلُ)

[۴۴۱۸] حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيزِ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ سَعْدٍ عَنْ صَالِحٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ قَالَ أَخْبَرَنِي عُرْوَةُ بْنُ الزُّبَيْرِ عَنْ عَائِشَةَ - رضي الله عنها - قَالَتْ لَهُ وَهُوَ يَسْأَلُهَا عَنْ قَوْلِ اللَّهِ تَعَالَى (حَتَّى إِذَا اسْتَيْأَسَ الرُّسُلُ) قَالَ قُلْتُ أَكُذِبُوا أَمْ كُذِّبُوا قَالَتْ عَائِشَةُ كُذِّبُوا. قُلْتُ فَقَدِ اسْتَيْقَنُوا أَنَّ قَوْمَهُمْ كَذَّبُوهُمْ فَمَا هُوَ بِالظَّنِّ. قَالَتْ أَجَلْ لَعَمْرِي لَقَدِ اسْتَيْقَنُوا بِذَلِكَ. فَقُلْتُ لَهَا وَظَنُّوا أَنَّهُمْ قَدْ كُذِبُوا قَالَتْ مَعَاذَ اللَّهِ لَمْ تَكُنِ الرُّسُلُ تَظُنُّ ذَلِكَ بِرَبِّهَا. قُلْتُ فَمَا هَذِهِ الآيَةُ. قَالَتْ هُمْ أَتْبَاعُ الرُّسُلِ الَّذِينَ آمَنُوا بِرَبِّهِمْ وَصَدَّقُوهُمْ، فَطَالَ عَلَيْهِمُ الْبَلاَءُ، وَاسْتَأْخَرَ عَنْهُمُ النَّصْرُ حَتَّى اسْتَيْأَسَ الرُّسُلُ مِمَّنْ كَذَّبَهُمْ مِنْ قَوْمِهِمْ وَظَنَّتِ الرُّسُلُ أَنَّ أَتْبَاعَهُمْ قَدْ كَذَّبُوهُمْ جَاءَهُمْ نَصْرُ اللَّهِ عِنْدَ ذَلِكَ.

په دې باندې تفصيلى كلام په سورة بقرة كښې تيرشوې دې.

## باب تفسير سورة الرعد:

وَقَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ (كَبَاسِطِ كَفَّيْهِ) مَثَلُ الْمُشْرِكِ الَّذِي عَبَدَ مَعَ اللَّهِ إِلَهًا غَيْرَهُ كَمَثَلِ الْعَطْشَانِ الَّذِي يَنْظُرُ إِلَى خَيَالِهِ فِي الْمَاءِ مِنْ بَعِيدٍ، وَهُوَ يُرِيدُ أَنْ يَتَنَاوَلَهُ وَلاَ يَقْدِرُ. وَقَالَ غَيْرُهُ (سَخَّرَ) ذَلَّلَ. (مُتَجَاوِرَاتٌ) مُتَدَانِيَاتٌ. (الْمَثُلاَتُ) وَاحِدُهَا مَثُلَةٌ وَهْيَ الأَشْبَاهُ وَالأَمْثَالُ، وَقَالَ (إِلاَّ مِثْلَ أَيَّامِ الَّذِينَ خَلَوْا). (بِمِقْدَارٍ) بِقَدَرٍ (مُعَقِّبَاتٌ) مَلاَئِكَةٌ حَفَظَةٌ تُعَقِّبُ الأُولَى مِنْهَا الأُخْرَى، وَمِنْهُ قِيلَ الْعَقِيبُ. يُقَالُ عَقَّبْتُ فِي إِثْرِهِ، الْمِحَالُ الْعُقُوبَةُ. (كَبَاسِطِ كَفَّيْهِ إِلَى الْمَاءِ) لِيَقْبِضَ عَلَى الْمَاءِ. (رَابِيًا) مِنْ رَبَا يَرْبُو. (أَوْ مَتَاعٍ زَبَدٌ) الْمَتَاعُ مَا تَمَتَّعْتَ بِهِ. (جُفَاءً) أَجْفَأَتِ الْقِدْرُ إِذَا غَلَتْ فَعَلاَهَا الزَّبَدُ، ثُمَّ تَسْكُنُ فَيَذْهَبُ الزَّبَدُ بِلاَ مَنْفَعَةٍ، فَكَذَلِكَ يُمَيِّزُ الْحَقَّ مِنَ

[1] فتح البارى :(ج۶ص ٤۱۵ .كتاب احاديث الانبياء باب ولوطا اذقال لقومه .

البَاطِلِ . (الْمِهَادُ) الْفِرَاشُ . (يَدْرَءُونَ) يَدْفَعُونَ دَرَأْتُهُ دَفَعْتُهُ . (سَلَامٌ عَلَيْكُمْ) أَيْ يَقُولُونَ سَلَامٌ عَلَيْكُمْ . (وَإِلَيْهِ مَتَابِ) تَوْبَتِي . (أَفَلَمْ يَيْأَسْ) لَمْ يَتَبَيَّنْ . (قَارِعَةٌ) دَاهِيَةٌ (فَأَمْلَيْتُ) أَطَلْتُ مِنَ الْمَلِيِّ وَالْمُلَاوَةُ وَمِنْهُ مَلِيًّا ، وَيُقَالُ لِلْوَاسِعِ الطَّوِيلِ مِنَ الأَرْضِ مَلًى مِنَ الأَرْضِ (أَشَقُّ) أَشَدُّ مِنَ الْمَشَقَّةِ (مُعَقِّبَ) مُغَيِّرٌ.

وَقَالَ مُجَاهِدٌ (مُتَجَاوِرَاتٌ) طَيِّبُهَا ، وَخَبِيثُهَا السِّبَاخُ ، (صِنْوَانٌ) النَّخْلَتَانِ أَوْ أَكْثَرُ فِي أَصْلٍ وَاحِدٍ (وَغَيْرُ صِنْوَانٍ) وَحْدَهَا (بِمَاءٍ وَاحِدٍ) كَصَالِحِ بَنِي آدَمَ وَخَبِيثِهِمْ أَبُوهُمْ وَاحِدٌ السَّحَابُ الثِّقَالُ الَّذِي فِيهِ الْمَاءُ (كَبَاسِطِ كَفَّيْهِ) يَدْعُو الْمَاءَ بِلِسَانِهِ وَيُشِيرُ إِلَيْهِ فَلَا يَأْتِيهِ أَبَدًا (سَالَتْ أَوْدِيَةٌ بِقَدَرِهَا) تَمْلَأُ بَطْنَ وَادٍ (زَبَدًا رَابِيًا) زَبَدُ السَّيْلِ خَبَثُ الْحَدِيدِ وَالْحِلْيَةِ

## سورة الرعد

**د كلماتو تشريح:**

**قوله:** (. وَقَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ (كَبَاسِطِ كَفَّيْهِ) مَثَلُ الْمُشْرِكِ الَّذِي عَبَدَ مَعَ اللَّهِ إِلَهًا غَيْرَهُ كَمَثَلِ الْعَطْشَانِ الَّذِي يَنْظُرُ إِلَى خَيَالِهِ فِي الْمَاءِ مِنْ بَعِيدٍ، وَهُوَ يُرِيدُ أَنْ يَتَنَاوَلَهُ وَلَا يَقْدِرُ): په آيت كښې (وَالَّذِينَ يَدْعُونَ مِنْ دُونِهِ لَا يَسْتَجِيبُونَ لَهُمْ بِشَيْءٍ إِلَّا كَبَاسِطِ كَفَّيْهِ إِلَى الْمَاءِ لِيَبْلُغَ فَاهُ وَمَا هُوَ بِبَالِغِهِ) فرمائى چه په دې آيت كښې ئې دمشرك مثال بيان كړيدې چه الله تعالى سره دبل اله هم عبادت كوى ، نودده مثال دهغه تږى په شان دې چه دلرې نه په خپل تصور كښې اوبه وينى اوغواړى چه هغه اوبه حاصلې كړى خوبه هغې باندې نه قادر كيږى (دغه شان دامشرك دغيرالله عبادت په دې نيت سره كوى چه هغه به دده امداد كوى حالانكه هغه دده په امداد باندې قادر نه وى).

**قوله:** وَقَالَ غَيْرُهُ (سَخَّرَ) ذَلَّلَ: په آيت كښې دى (وَسَخَّرَ الشَّمْسَ وَالْقَمَرَ كُلٌّ يَجْرِي لِأَجَلٍ مُسَمًّى) اونمرسپوږمۍ ئې په كار كښې اولګول هريو (دې دواړونه) په مقرروخت باندې چليږى حضرت ابن عباس رضي الله عنهما ونيلى چه دسخرمعنى ذلل تابع جوړول، حكم منونكې .

**قوله:** (مُتَجَاوِرَاتٌ) مُتَدَانِيَاتٌ: په آيت كښې دى ,, وَفِي الْأَرْضِ قِطَعٌ مُتَجَاوِرَاتٌ،، دمتجاورات معنى ديوبل سره نزدې اوملاؤ شوى . [1]

**قوله:** (الْمَثُلَاتُ) وَاحِدُهَا مَثُلَةٌ وَهِيَ الْأَشْبَاهُ وَالْأَمْثَالُ ، وَقَالَ (إِلَّا مِثْلَ أَيَّامِ الَّذِينَ خَلَوْا): په آيت كښې دى وَقَدْ خَلَتْ مِنْ قَبْلِهِمُ الْمَثُلَاتُ، دمثلة جمع ده، ددې معنى اشباه

---

[1]) قال الراغب الاصفهانى وقد تصورمن المجارمعنى القرب فقيل لمن يقرب من غيره جاره وجاورقال تعالى ولى الارض قطعا متجاورات (المفرادات فى غريب القرآن ٣٤٠)_

او امثال راخى ،، فَهَلْ يَنْتَظِرُوْنَ اِلَّا مِثْلَ اَيَّامِ الَّذِيْنَ خَلَوْا مِنْ قَبْلِهِمْ ۚ دې آيت كښې هم د ،، مثل ،، مفهوم هم هغه دې چه په اولنى آيت كښې دې .

قوله: ((بِمِقْدَارٍ) بِقَدَرٍ: په آيت كښې دى ،، وَكُلُّ شَيْءٍ عِنْدَهٗ بِمِقْدَارٍ اوهرڅيزدالله تعالى په نزدپه يوخاص اندازه دې، فرمائى چه دمقدار معنى قدريعنى معين انداز ،مقرره اندازه چه نه دهغې نه وړاندې كيږى اونه كميږى .

قوله: (مُعَقِّبَاتٌ) مَلَائِكَةٌ حَفَظَةٌ تُعَقِّبُ الْأُوْلٰى مِنْهَا الْأُخْرٰى ، وَمِنْهُ قِيْلَ الْعَقِيْبُ . يُقَالُ عَقَّبْتُ فِيْ إِثْرِهٖ: په آيت كښې دى (لَهٗ مُعَقِّبٰتٌ مِّنْۢ بَيْنِ يَدَيْهِ وَمِنْ خَلْفِهٖ يَحْفَظُوْنَهٗ مِنْ اَمْرِ اللّٰهِ) فرمائى دې كښې دمعقبات نه مرادحفاظت كونكې هغه فرښتې دى دكوموچه ديوې ډلې نه پس بله ډله راځى : هم دينه عقيب دې ،هغه سړى ته وائى چه روستو راتلونكې وى او(عقب فى اثره) وائى چه كله تاسودهغوى په قدمونوباندې روستوروستو راځې .(1)

قوله: اَلْمِحَالُ الْعُقُوْبَةُ : په آيت كښې دى (وَهُمْ يُجَادِلُوْنَ فِي اللّٰهِ ۚ وَهُوَ شَدِيْدُ الْمِحَالِ) اوهغه خلق دالله تعالى باره كښې جهګړې كوى سره ددې چه هغه ډيرسخت نيونكې دې ،فرمائى په آيت كښې دمحال معنى عقبوت يعنى عذاب دې داتفسيردابوعبيد رحمه الله دې دحضرت مجاهد رحمه الله نه نقل دى چه دمحال معنى دسخت قوت والاده ،دمحال معنى حيله اوتدبيرهم راځى .

قوله: (رَابِيًا) مِنْ رَبَا يَرْبُوْ: په آيت كښې دى فَاحْتَمَلَ السَّيْلُ زَبَدًا رَّابِيًا ۚ، يعنى بياهغه سيلاب پورته راوړې پړسيدلې زګ ، د(رابيا : ربا، يربو) نه مشتق دې دكوم معنى چه پړسيدل ، راختل اوزياتيدل راځى .

قوله: (أَوْ مَتَاعٍ زَبَدٌ) اَلْمَتَاعُ مَا تَمَتَّعْتَ بِهٖ: په آيت كښې دى وَمِمَّا يُوْقِدُوْنَ عَلَيْهِ فِي النَّارِ ابْتِغَآءَ حِلْيَةٍ اَوْ مَتَاعٍ زَبَدٌ مِّثْلُهٗ ۚ فرمائى متاع هغه څيزته وائى دكوم نه چه ته فائده اوچته كړې يعنى لوښى وغيره (2) دآيت مطلب وړاندې راځى .

قوله: (جُفَاءً) أَجْفَأَتِ الْقِدْرُ إِذَا غَلَتْ فَعَلَاهَا الزَّبَدُ ، ثُمَّ تَسْكُنُ . فَيَذْهَبُ الزَّبَدُ بِلَا مَنْفَعَةٍ، فَكَذٰلِكَ يُمَيِّزُ الْحَقَّ مِنَ الْبَاطِلِ :په آيت كښې دى فَاَمَّا الزَّبَدُ فَيَذْهَبُ جُفَآءً ۚ .(يعنى بياهغه زګ اوچ شى اوختميږى، اجفات القدر وائى كله چه په کټوئى كښې جوش پيداشى اوزګ دهغې دپاسه راشى اوبيا په هغې كښې سكون راشى نوزګ بغير څه فائدې نه ختميږى .دغه شان الله تعالى حق دباطل نه جدا كوى ،باطل دزګ په شان ښكاره وى ليكن هغه خپل څه اثر

(1) قال الراغب فى المفردات ۳٤۰والتعقيب ان ياتى بشئ بعد اخر،يقال عقب الرس فى عدوه،فالله معقبات من بين يديه ومن خلفه اى ملائكة يتعاقبون عليه خافظين له .

(2) قال الراغب فى المفردات ٤٦۱ ويقال لماينتفع به فى البيت متاع وكل ماينتفع فى وجه مافهومتاع ومتعة ـــ

يا فائده نه پريږدي او څې ختميږي او زائل كيږي.

**قوله:** (الْمِهَادُ) الْفِرَاشُ: په آيت كښې دى وَمَأْوٰىهُمْ جَهَنَّمُ وَبِئْسَ الْمِهَادُ او دهغوى ټكانړه (دهميشه دپاره) دوزخ دې او ډير خراب دحصاريدو ځاى دې. فرمائى چه آيت كښې دمهاد معنى فراش ده يعنى بستره او دآرام ځاى.

**قوله:** (يَدْرَءُونَ) يَدْفَعُونَ دَرَأْتُهُ دَفَعْتُهُ: په آيت كښې دى وَيَدْرَءُونَ بِالْحَسَنَةِ السَّيِّئَةَ أُولَٰئِكَ لَهُمْ عُقْبَى الدَّارِ داخلق بدى په نيكئ سره لرې كوى (يعنى دبدسلوكئ مقابله په ښه سلوك سره كوى) فرمائى په آيت مبارك كښې د يدرؤن معنى ده يدفعون. د راته عنى: دفعته يعنى ما هغه لرې كړو.

**قوله:** (سَلَامٌ عَلَيْكُمْ) أَيْ يَقُولُونَ سَلَامٌ عَلَيْكُمْ: په آيت كښې دى ,,وَالْمَلَائِكَةُ يَدْخُلُونَ عَلَيْهِمْ مِنْ كُلِّ بَابٍ ۞ سَلَامٌ عَلَيْكُمْ بِمَا صَبَرْتُمْ فَنِعْمَ عُقْبَى الدَّارِ,, او فرښتې به هغوى له په هره دروازه راځى او وائى به ورته (دهرآفت او خطرې نه) صحيح سلامت ئې په وجه دهغې چه ته (په حق دين باندې مضبوط ولاړ وې نو په دې جهان كښې ستانجات ډير ښه دې. فرمائى د (سلام عليكم) نه اول په آيت مبارك كښې يقولون محذوف دې.

**قوله:** (وَإِلَيْهِ مَتَابِ) تَوْبَتِي: په آيت كښې دى ,, قُلْ هُوَ رَبِّي لَا إِلَٰهَ إِلَّا هُوَ عَلَيْهِ تَوَكَّلْتُ وَإِلَيْهِ مَتَابِ دهغه نه سوا څوك دعبادت لائق نشته ماهم په دې يقين كړې دې او هم هغه له به زه زرځم. فرمائى چه په آيت كښې د (اليه متاب) معنى ده (اليه توبت) يعنى دهغه طرف ته زما رجوع كول دې مقصد دادې چه متاب مصدر ميمى دې په معنى د رجوع.

**قوله:** . (قَارِعَةٌ) دَاهِيَةٌ: په آيت كښې دى ,, وَلَا يَزَالُ الَّذِينَ كَفَرُوا تُصِيبُهُمْ بِمَا صَنَعُوا قَارِعَةٌ او دا (دمكې) كافرخو به هميشه (هرورځ) هم په دې حالت كښې اوسيږى چه ددوى د كارونو يعنى بدعملونو په سبب څه ناځه حادثه پريوزى. (چرته قتل، چرته قيد او چرته شكست) فرمائى آيت كښې د قارعة معنى داهية يعنى تباه كونكې آفت ,سخت مصيبت.

**قوله:** (فَأَمْلَيْتُ) أَطَلْتُ مِنَ الْمَلِيِّ وَالْمُلَاوَةِ وَمِنْهُ مَلِيًّا، وَيُقَالُ لِلْوَاسِعِ الطَّوِيلِ مِنَ الْأَرْضِ مَلًى مِنَ الْأَرْضِ: په آيت كښې دى فَأَمْلَيْتُ لِلَّذِينَ كَفَرُوا ثُمَّ أَخَذْتُهُمْ فَكَيْفَ كَانَ عِقَابِ پس ما كافرانو ته ډهيل وركړو بيا ما هغوى راونيول نو څنګه عذاب وو (يعنى سخته سزا وه) فرمائى چه آيت كښې (امليت) په معنى د (اطلت) دې يعنى ما مهلت اوږد وركړو ډهيل مې وركړو، د (املى) (دميم په فتح او دلام په كسره او دياء په تشديد سره) او (ملاوة) دميم كسرې نه مشتق دې او هم دينه (مليا) ماخوذ دې. په قرآن كښې يوځاى كښې دې ,, واهجرنى مليا ،، او كولاؤ او اوږده زمكه يعنى صحرا او بيابان ته (ملا من الارض) وئيلې شى.

**قوله:** (أَشَقُّ) أَشَدُّ مِنَ الْمَشَقَّةِ: په آیت کښې دی ,,وَلَعَذَابُ الْاٰخِرَةِ اَشَقُّ" او ددې کافرانو دپاره د آخرعذاب ډیرزیات سخت دې ،فرمائی چه آیت کښې «اشق» په معنی د «اشد» دې چه دمشقت نه مشتق دې اوداسم تفضیل صیغه ده .

**قوله:** (أَفَلَمْ يَيْأَسْ) لَمْ يَتَبَيَّنْ: په آیت کښې دی اَفَلَمْ يَايْئَسِ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْٓا اَنْ لَّوْ يَشَآءُ اللّٰهُ لَهَدَى النَّاسَ جَمِيْعًا فرمائی دې کښې ,,لم ييئس ،، دلم يتبين ،، په معنی کښې دې یعنی آیاد ایمان په خاوندانو داخبره ظاهره شوې نه ده که چرې الله تعالی غوښتل نوټولوانسانانوته به ئی هدایت ورکړې وو. طبری دقاسم بن معن نه نقل کړی دی چه دا معنی دهوازن په لغت کښې ده هغوی وائی «يئست كذا اى علمته» (۱)

**قوله:** (. وَقَالَ مُجَاهِدٌ (مُتَجَاوِرَاتٌ) طَيِّبُهَا ، وَخَبِيثُهَا السِّبَاخُ: په آیت کښې دی وَفِي الْاَرْضِ قِطَعٌ مُّتَجٰوِرٰتٌ یعنی په زمکه کښې یوبل سره ملاوشوی مختلف قطعې دی په دې کښې چه کومې طیب وی نوهغه خوخورې وی دې نه ښه اوښکلې پیداوارحاصلیږی اوچه کومې ناکاره وی هغه بنجروی اوپه هغې کښې دراټوکولو صلاحیت نه وی دسباخ معنیٰ شور، بنجراوغیرآباد

**قوله:** ((صِنْوَانٌ) النَّخْلَتَانِ أَوْ أَكْثَرُ فِي أَصْلٍ وَاحِدٍ (وَغَيْرُ صِنْوَانٍ) وَحْدَهَا (بِمَاءٍ وَاحِدٍ) كَصَالِحِ بَنِي آدَمَ وَخَبِيثِهِمْ أَبُوهُمْ وَاحِدٌ: په آیت کښې دی ,,وَّنَخِيْلٌ صِنْوَانٌ وَّغَيْرُ صِنْوَانٍ يُّسْقٰى بِمَآءٍ وَّاحِدٍ فرمائی چه دوه کهجورې وی یاددوونه زیاتې اوپه یوه جرړه کښې راوتلې وی ،داټولې هم په یواوبواندې خړوب کیږی مطلب داچه نه ونه ،ددې میوې اوددې بناخونه هم په یوه زمکه اوپه یواوبوسره خړوب کیږی لیکن ددې باوجود دهغوی په جوړښ کښې اودهغې په خوندکښې فرق وی، همدغه شان دانسانانومثال دې چه دهغوی پلارهم یوحضرت آدم علیہ السلام دې لیکن یوبچې صالح پیداکیږی اوځوک خبيث النفس وی .

**قوله:** معقب : مغير: په آیت کښې دی وَاللّٰهُ يَحْكُمُ لَا مُعَقِّبَ لِحُكْمِهٖ" الله حکم کوی «ځه چه غواړی» ځوک دهغه حکم روستوکونکې نشته یعنی بدلونکې نشته .

**قوله:** السَّحَابُ الثِّقَالُ الَّذِي فِيهِ الْمَاءُ: په آیت کښې دی ,, هُوَالَّذِيْ يُرِيْكُمُ الْبَرْقَ خَوْفًا وَّطَمَعًا وَّيُنْشِئُ السَّحَابَ الثِّقَالَ هم هغه ذات دې چه تاسوته تندرښائی ځه سره چه «دهغې دراپریوتلو» ویره هم وی اوهغې نه دباران امیدهم وی اوراوچتوی درنې اوریځې فرمائی چه د «السحاب الثقال» نه مرادهغه اوریځې دی چه داوبوډکې وی سحاب اسم جنس دې ددې واحدسحابة دې معنی ئې اوریځې دی که په هغې کښې اوبه وی اوکه نه وی. ثقال دسحاب صفت دې د «سحاب ثقال»

---

(۱) عمدة القاری (ج۱۸ص۳۱۱)_

معنى شوه داوبونه ډكه اوريخ .

**قوله:** (فَسَالَتْ أَوْدِيَةٌ بِقَدَرِهَا) تَمْلَأُ بَطْنَ كُلِّ وَادٍ:

**د ايت كريمه** ''انزل من السماء ماء فسالت اودية،، **تفسير:** په آيت كښې دى أَنْزَلَ مِنَ السَّمَآءِ مَآءً فَسَالَتْ أَوْدِيَةٌ بِقَدَرِهَا يعنى الله تعالى دآسمان نه اوبه نازلې كړلې نوولې دخپل اندازې مطابق اوبهيدلې ،دوادئى خيټه يعنى دننه حصه داوبونه ډكه شوه .

**قوله:** (زَبَدًا رَابِيًا) زَبَدُ السَّيْلِ خَبَثُ الْحَدِيدِ وَالْحِلْيَةِ: په آيت كښې دى فَاحْتَمَلَ السَّيْلُ زَبَدًا رَّابِيًا (زبدارابيا) نه دسيلاب زګ مراد دې اوهم په دې كښې دى (أَوْ مَتَاعٍ زَبَدٌ مِّثْلُهُ) زبد مثله نه د اوسپنې اودكالى خيرې مراد دې داوسپنې اودكالودپاسه چه كوم زنګ وى په اوبوكښې د اور دپاسه ګرمولوسره هغه دزګ په شكل كښې ښكاره كيږى پوره آيت دې أَنْزَلَ مِنَ السَّمَآءِ مَآءً فَسَالَتْ أَوْدِيَةٌ بِقَدَرِهَا فَاحْتَمَلَ السَّيْلُ زَبَدًا رَّابِيًا ۖ وَمِمَّا يُوقِدُونَ عَلَيْهِ فِي النَّارِ ابْتِغَآءَ حِلْيَةٍ أَوْ مَتَاعٍ زَبَدٌ مِّثْلُهُ ۚ كَذَٰلِكَ يَضْرِبُ اللَّهُ الْحَقَّ وَالْبَاطِلَ ۚ فَأَمَّا الزَّبَدُ فَيَذْهَبُ جُفَآءً ۖ وَأَمَّا مَا يَنفَعُ النَّاسَ فَيَمْكُثُ فِي الْأَرْضِ ۚ كَذَٰلِكَ يَضْرِبُ اللَّهُ الْأَمْثَالَ ۞ دآيت مبارك ترجمه ده .الله تعالى دآسمان نه اوبه نازل كړلې بيا نالئ دخپل مقداربرابرې اوبهيدلې (يعنى په وړه نالئ كښې لږې اوبه په لويه نالئ كښې زياتې اوبه) بيا هغه سيلاب خشاک اوګنګرې راؤبهيول چه دهغه (اوبو) په مخ باندې راتلل اوكوم څيزونه چه په اوركښې دتنه دكالويانوروااسبابوجوړولوپه غرض سره ګرمولې شى په هغې كښې هم داسې خيرې (پاس) راځى .الله تعالى دحق اوباطل داسې مثال بيانوى. نوچه كوم خيرې وى هغه خوغورزولې شى اوكوم څيزچه دخلقو په كار راځى هغه په دنيا كښې پاتې كيږى .الله تعالى هم داسې مثالونه بيانوى .

علامه شبيراحمد عثمانى رحمه الله ددې تفسيركښې ليكى : دآسمان دطرف نه باران نازل شوپه څه سره چه ولې اولختى اوبهيدل ،په هره ناله كښې دهغې دظرف اوګنجائش په برابرچه څومره الله تعالى غوښتلې اوبه روانې كړلې ،په وړوكې كښې كمې اوپه لويوكښې زياتې .اوبه چه كله په زمكه روانې شوې نوخاوره اوګندګى (خځلې) يوځائ كيدوسره خرابې شوې ،بياخيرى او زګ وغيره اوړسيدل اوسرله راغلل لكه څنګه چه په تيزاوركښې سپين زر،سره زر، تانبا، اوسپنه اونورمعدنيات ويلې كيږى چه كالى، لوښې او اسلحه وغيره ترې نه جوړه كړى په هغې كښې هم داسې.زګ راؤچتيږى خولږساعت پس اوچ شى ياګډوډشى اوزګ لاړشى اوچه كوم اصلى دكار څيزوو(يعنى اوبه ياويلې شوى معدنيات) هم هغه په زمكه يا دزمكې دخاوندانوپه لاس كښې پاتې شى دكوم نه چه په مختلف طريقوسره خلق فائده اخلى هم دامثال دحق اوباطل اوګڼړه ، كله چه آسمانى وحى حق دين سره راكوزيږى اودښى آدموزړونه دخپل خپل لوښى اوطاقت په اندازه سره فيض حاصلوى نوبياحق اوباطل خپل مينځ كښې زيات شى نوخيرى راؤچتيدل عارضى اوبې بنياده دى . لږساعت پس ددې دجوش اوخروش پته نه وى چه كوم اصلى اودكارڅيزدزګ لاندې خښ شوې وى (يعنى حق اوصداقت) پس هم هغه پاتې شى .ګوره دالله تعالى بيان كړيشوى مثالونه څنګه عجيبه دى ،څنګه په مؤثره طريقه باندې ئې پوهه كړې چه په دنيا كښې كله حق اوباطل جنګى مقابله وى نودلږو ورځودپاره

باطل اوچت اوپورته ښکاری خوآخرباطل خورشي اوحق ظاهراوغالب پاتې شي .يومؤمن لره دباطل عارضي نمائش نه دهوکه نه دی خوړل پکار ،دغه شان چه کله دیوانسان په زړه کښې دا حق ورکوزشي .دلږ وخت دپاره دوهمونواووسوسوشورښکاره شي خودویریدلوخبره نه ده ،په لږ وخت کښې به داپورته کیدل کیني اوخالص حق به ثابت اومستقر پاتې شي .

## =۱۸۶ باب قَوْلِهِ (اللَّهُ يَعْلَمُ مَا تَحْمِلُ كُلُّ أُنْثَى وَمَا تَغِيضُ الأَرْحَامُ)(۱) غِيضَ نُقِصَ.

[۴۴۲۰] حَدَّثَنِي إِبْرَاهِيمُ بْنُ الْمُنْذِرِ حَدَّثَنَا مَعْنٌ قَالَ حَدَّثَنِي مَالِكٌ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ دِينَارٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ - رضي الله عنهما - أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - قَالَ « مَفَاتِيحُ الْغَيْبِ خَمْسٌ لاَ يَعْلَمُهَا إِلاَّ اللَّهُ لاَ يَعْلَمُ مَا فِي غَدٍ إِلاَّ اللَّهُ، وَلاَ يَعْلَمُ مَا تَغِيضُ الأَرْحَامُ إِلاَّ اللَّهُ وَلاَ يَعْلَمُ مَتَى يَأْتِي الْمَطَرُ أَحَدٌ إِلاَّ اللَّهُ، وَلاَ تَدْرِي نَفْسٌ بِأَيِّ أَرْضٍ تَمُوتُ، وَلاَ يَعْلَمُ مَتَى تَقُومُ السَّاعَةُ إِلاَّ اللَّهُ ». [ر: ۹۹۲]

الله تعالى ښه پوهيږي كوم چه په خيټه كښې ساتي هره ماده (يعنى هلك اوجينئ ،نيك اوبد) اوكوم چه په خيټه كښې راغونډيږي اولوئيږي (يعنى ښهٔ پوهيږي چه كوم ددې ښځوبه خيټو كښې كمې زياتې راځى كله يو بچې كله ډير، كله زرپيدا كيږي اوكله پس) غيض په معنى دنقص نه اشاره ده ديوبل آيت مبارك طرف ته چه په سورة هود كښې دې په كوم كښې چه دى (وغيض الماء) اوبه كمې شوې ، دتغيض اوغيض ماده يوه ده ،په دې وجه امام بخارى ﷫ دلته دالفظ ذكر كړو .

## ۱۸۷= تفسير سورة إِبْرَاهِيمَ

قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ (هَادٍ) دَاعٍ. وَقَالَ مُجَاهِدٌ صَدِيدٌ قَيْحٌ وَدَمٌ. وَقَالَ ابْنُ عُيَيْنَةَ (اذْكُرُوا نِعْمَةَ اللَّهِ عَلَيْكُمْ) أَيَادِيَ اللَّهِ عِنْدَكُمْ وَأَيَّامَهُ

وَقَالَ مُجَاهِدٌ (مِنْ كُلِّ مَا سَأَلْتُمُوهُ) رَغِبْتُمْ إِلَيْهِ فِيهِ (يَبْغُونَهَا عِوَجًا) يَلْتَمِسُونَ لَهَا عِوَجًا (وَإِذْ تَأَذَّنَ رَبُّكُمْ) أَعْلَمَكُمْ آذَنَكُمْ (رَدُّوا أَيْدِيَهُمْ فِي أَفْوَاهِهِمْ) هَذَا مَثَلٌ كَفُّوا عَمَّا أُمِرُوا بِهِ (مَقَامِي) حَيْثُ يُقِيمُهُ اللَّهُ بَيْنَ يَدَيْهِ (مِنْ وَرَائِهِ) قُدَّامِهِ. (لَكُمْ تَبَعًا) وَاحِدُهَا تَابِعٌ مِثْلُ غَيَبٍ وَغَائِبٍ (بِمُصْرِخِكُمْ) اسْتَصْرَخَنِي

اسْتَغَاثَنِي يَسْتَصْرِخُهُ مِنَ الصُّرَاخِ (وَلاَ خِلاَلٌ) مَصْدَرُ خَالَلْتُهُ خِلاَلاً، وَيَجُوزُ أَيْضًا جَمْعُ خُلَّةٍ وَخِلاَلٍ (اجْتُثَّتْ) اسْتُؤْصِلَتْ.

# سورة ابرهيم

**د كلماتو تشريح:**

**قوله: قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ (هَادٍ) دَاعٍ:** دسورة رعدپه آيت مبارك كښې ,,اِنَّمَآ اَنْتَ مُنْذِرٌ وَّلِكُلِّ قَوْمٍ هَادٍ دالفظ دسورة رعد په تفسير كښې نقل كول پكاروو كيديشى دكتابت دغلطۍ نه دلته ذكركړې شوى وى .

**قوله: وَقَالَ مُجَاهِدٌ صَدِيدٌ قَيْحٌ وَدَمٌ:** په آيت كښې دى مِنْ وَّرَآىِٕهٖ جَهَنَّمُ وَيُسْقٰى مِنْ مَّآءٍ صَدِيْدٍ دهغوى دوړاندې د دوزخ (عذاب) دې اودپيپ اوبه په پرې څكولې شى .اومجاهد رحمه الله فرمائى چه په آيت كښې دصديدمعنى وينه زه وې (پيپ) دې .

**قوله: (.وَقَالَ مُجَاهِدٌ (مِنْ كُلِّ مَا سَاَلْتُمُوْهُ) رَغِبْتُمْ اِلَيْهِ فِيهِ:** په آيت كښې دى ,,وَسَخَّرَ لَكُمُ الَّيْلَ وَالنَّهَارَ وَاٰتٰىكُمْ مِّنْ كُلِّ مَا سَاَلْتُمُوْهُ" په دې كښې مجاهد رحمه الله د (سالتموه) تفسير په (رغبتم اليه) سره كړيدې .يعنى دكوموخيزونوطرف ته چه ستارغبت دې الله تعالى هغه تاته دركړل د (رغب) په صله كښې ,,الى او,,فى ، دواړه استعماليږى ، ددې طرف ته اشارې كولودپاره امام رغبتم اليه فيه) اووئيل .

**قوله: (يَبْغُوْنَهَا عِوَجًا) يَلْتَمِسُوْنَ لَهَا عِوَجًا:** په آيت كښې دى ,,اَلَّذِيْنَ يَصُدُّوْنَ عَنْ سَبِيْلِ اللّٰهِ وَيَبْغُوْنَهَا عِوَجًا" اودالله تعالى دلارې نه منع كوى اوپه هغې كښې كوږوالې تلاش كوى. فرمائى چه په آيت كښې د (يبغونها) معنى (يلتمسون لها) ده يعنى دالله تعالى په لاركښې كوږوالې لټوى .

**قوله: (وَاِذْ تَاَذَّنَ رَبُّكُمْ) اَعْلَمَكُمْ آذَنَكُمْ:** فرمائى چه په آيت كښې (تاذن) په معنى د (اعلم) او (اذن) دې يعنى تاذن دايذان په معنى كښې دې ، اوايذان په معنى داعلان اوخبر كولوراځى مطلب دا چه كله ستارب تاته خبر دركړو .

**قوله: (رَدُّوا اَيْدِيَهُمْ فِي اَفْوَاهِهِمْ) هٰذَا مَثَلٌ كَفُّوا عَمَّا اُمِرُوا بِهِ:** په آيت كښې دى جَآءَتْهُمْ رُسُلُهُمْ بِالْبَيِّنٰتِ فَرَدُّوْٓا اَيْدِيَهُمْ فِيْٓ اَفْوَاهِهِمْ (١)

د ''فردوا ايديهم فى افواههم،، تفسير: امام فرمائى (رَدُّوْٓا اَيْدِيَهُمْ فِيْٓ اَفْوَاهِهِمْ) ضرب المثل دې ددې معنى (كفوا عما أمروا به) ده، اود آيت مطلب دادې. چه كله رسول الله ﷺ دې خلقو ته دلائل راوړل، نو هغوى خپل لاسونه خپلو خلو ته يوړل، يعنى د كوم څيز چه هغوى ته حكم وركړې

---

(١) قال الراغب قوله تعالى (فردوا ايديهم فى افواههم) قيل عضوا الانامل غيظاوقيل اومنوا الى السكوت واشاره وا باليدالى الفم وقيل رادوا ايديهم فى افواه الانبياء فاسكنوهم واستعمال الردفى ذلك تنبيها انهم فعلوا ذلك مرة بعد اخرى (المفردات للراغب :١٩٢)

شوې وو هغوی هغه اونه کړل، او «إِنَّا كَفَرْنَا بِمَا أُرْسِلْتُم بِهِ» نې اوونيل، بل خائې کې د کافرانو باره کښې ارشاد دې: «وَإِذَا خَلَوْا عَضُّوا عَلَيْكُمُ الْأَنَامِلَ مِنَ الْغَيْظِ» کله چه دوی خانله وی نو د غصې نه خپلې گوتې کټ کوی، هم ددې کیفیت دلته ذکر دې.

بعضې حضراتو مثل د میم کسرې سره ونیلې دې، بیا به ددې مطلب داوی چه «رَدُّوا أَيْدِيَهُمْ فِي أَفْوَاهِهِمْ» د (كفّوا عمّا أمروا به) په شان دې، او د دواړو به يو مطلب وی، بعضې حضراتو د أَفْوَاهِهِم د ضمير مرجع حضرات انبياء ﷺ اخستې دی، يعنی دغه کافرانو خپل لاسونه د پيغمبر ﷺ په خوله باندې کیخودل، مطلب دادې که کافرانو د انبياؤ نصحيت منلو نو ألټه دا کوشش به نې ولې کولو چه هغوی نې خبرې ته هم نه پريخودل، او د پيغمبرانو په خوله باندې به نې لاس کیخودلو او هغوی به نې د خبرو کولو نه بندول، يو مطلب داهم بيان کړې شوې دې چه د أيدى نه مراد نعمتونه دی يعنی نصيحتونه چه دا په اصل کې د الله تعالى نعمتونه دی، هغه نې د پيغمبرانو خولې ته واپس کړل يعنی ونې نه منل.

**قوله:** (مَقَامِي) حَيْثُ يُقِيمُهُ اللَّهُ بَيْنَ يَدَيْهِ: په آيت کښې دی ذَٰلِكَ لِمَنْ خَافَ مَقَامِي وَخَافَ وَعِيدِ دې کښې دمقامی نه مراد هغه ځائ دې چرته چه به الله تعالى بنده خپلې مخې ته اودروی (۱)

**قوله:** (لَكُمْ تَبَعًا) وَاحِدُهَا تَابِعٌ مِثْلُ غَيَبٍ وَغَائِبٍ: په آيت کښې دی إِنَّا كُنَّا لَكُمْ تَبَعًا فَهَلْ أَنتُم مُّغْنُونَ عَنَّا مِنْ عَذَابِ اللَّهِ مِن شَيْءٍ مونږ خلق (دنيا کښې) ستاسو تابع وو (تردې چه ددين کومه لار مونږ ته تاسوخودلې وه مونږ هم په هغې شواونن په مونږ باندې مصيبت دې) نوونيلی چه تاسو دالله تعالى دعذاب څه حصه زمونږ نه ختمولې شئ يعنی بالکل به نشئ بچ کیدلې نوڅه قدرې خوبه موبچ کولې شئ) فرمائی په آيت کښې تبعًا جمع ده ددې واحد تابع دې لکه غيب (دوو پيښونو سره) دغائب جمع ده اولکه چه د خادم جمع خدم ده.

**قوله:** (بِمُصْرِخِكُمْ) اسْتَصْرَخَنِي اسْتَغَاثَنِي يَسْتَصْرِخُهُ مِنَ الصُّرَاخِ: آيت کښې فَلَا تَلُومُونِي وَلُومُوا أَنفُسَكُم مَّا أَنَا بِمُصْرِخِكُمْ وَمَا أَنتُم بِمُصْرِخِيَّ د (ما انا بمصرخكم) معنی (ما انا بمغيثكم) ده، يعنی نه زه ستاسو امدادی جوړيدې شم اونه تاسوزما امدادی جوړيدې شئ عرب وائی (استصرخنى) هغه زمانه امداد اوغوښتلو، يستصرخه دصراخ نه ماخوذ دې دڅه معنی چه فرياد اوچغې راخې. (۲)

---

(۱) ای موافقی الذی یقف به العباد بین یدی الحساب یوم القیامة والی هذا ذهب الزجاج فالمقام اسم مکان واضافته الی ضمیره تعالی لکونه بین یدیه سبحانه تعالی وقال الفراء مصدر میمی اضیف الی الفاعل ای خاف قیامی علیه بالحفظ لاعماله ومراقبتی ایاه (روح المعانی :ج۱۳ص۲۰۰_

(۲)(ما انا بمصرخكم ای بمعینکم مماانتم فیه من العذاب یقال استصرخنی فاصرخته ای استغاثنی فاغثته واصله من الصراخ وهومدالصوت والهمزة للسلب کان المغیث یزیل صراخ المستغیث (روح المعانی ج۱۳ص۲۰۹)_

**قوله:** (وَلاَ خِلاَلَ) مَصْدَرُ خَالَلْتُهُ خِلاَلاً، وَيَجُوزُ أَيْضًا جَمْعُ خُلَّةٍ وَخِلاَلٍ: په آیت کښې دی مِّن قَبْلِ أَن يَأْتِيَ يَوْمٌ لَّا بَيْعٌ فِيهِ وَلَا خِلَالٌ، فرمائی دا دباب مفاعله نه دخالل مصدر دې په معنی ددوستی کولو اودا هم ممکن دی چه دا دخلة جمع وی دخه معنی چه دوستی راځی.

## ۱۸۸= باب قَوْلِهِ (كَشَجَرَةٍ طَيِّبَةٍ أَصْلُهَا ثَابِتٌ وَفَرْعُهَا فِي السَّمَاءِ * تُؤْتِي أُكُلَهَا كُلَّ حِينٍ)

[۴۴۲۱] حَدَّثَنِي عُبَيْدُ بْنُ إِسْمَاعِيلَ عَنْ أَبِي أُسَامَةَ عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ عَنْ نَافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ-رضي الله عنهما- قَالَ كُنَّا عِنْدَ رَسُولِ اللَّهِ-صلى الله عليه وسلم- فَقَالَ »أَخْبِرُونِي بِشَجَرَةٍ تُشْبِهُ أَوْ كَالرَّجُلِ الْمُسْلِمِ لاَ يَتَحَاتُّ وَرَقُهَا وَلاَ وَلاَ وَلاَ، تُؤْتِي أُكُلَهَا كُلَّ حِينٍ«. قَالَ ابْنُ عُمَرَ فَوَقَعَ فِي نَفْسِي أَنَّهَا النَّخْلَةُ، وَرَأَيْتُ أَبَا بَكْرٍ وَعُمَرَ لاَ يَتَكَلَّمَانِ، فَكَرِهْتُ أَنْ أَتَكَلَّمَ، فَلَمَّا لَمْ يَقُولُوا شَيْئًا قَالَ رَسُولُ اللَّهِ-صلى الله عليه وسلم-»هِيَ النَّخْلَةُ«. فَلَمَّا قُمْنَا قُلْتُ لِعُمَرَ يَا أَبَتَاهُ وَاللَّهِ لَقَدْ كَانَ وَقَعَ فِي نَفْسِي أَنَّهَا النَّخْلَةُ فَقَالَ مَا مَنَعَكَ أَنْ تَكَلَّمَ قَالَ لَمْ أَرَكُمْ تَكَلَّمُونَ، فَكَرِهْتُ أَنْ أَتَكَلَّمَ أَوْ أَقُولَ شَيْئًا. قَالَ عُمَرُ لأَنْ تَكُونَ قُلْتَهَا أَحَبُّ إِلَيَّ مِنْ كَذَا وَكَذَا.

**د ایت کریمه تفسیر:** دلته الله تعالی دکلمه طیبې اوکلمه خبیثه مثال بیان کړې دې. دکلمه طیبه نه مراد کلمه توحید، داللہ تعالی د معرفت خبرې، ایمان اوایمانیات، قرآن حمد اوثنا، تسبیح اوتهلیل ټول دی. (۱) اودکلمه خبیثه نه مراددکفرکلمه، دروغ خبره اوهره هغه خبره چه الله تعالی د مرضئ خلاف وی. (۲) دکلمې طیبې مثال ئې هغه شجرهٔ طیبه سره ورکړیدې دکومې جرړې چه دزمکې ژورالی پورې خورې وی اودکومې سوکه چه آسمان طرف ته اوچته وی، دینه مرادلکه چه دلته دبخاری په روایت کښې دی دکهجورې ونه ده اودکلمه خبیثه مثال ئې هغه ګنده ونې سره ورکړې دې دکومې جرړې چه دزمکې نه راویستلې شوې وی اوپه دې کښې مضبوطوالې نه وی دې نه حنظل ونه مراد ده (۳) په عموم لفظ کښې هره خرابه ونه شامليدې شی، مولانا شبیراحمد عثمانی رحمه الله لیکی:

,,د دواړو مثالونو حاصل داشوچه دمسلمانانودتوحید دعوی اوایمان پوخ اوربنتونې دې دکوم دلائل چه ډیرصفا صحیح اومضبوط دی، دفطرت سره دموافق کیدو په وجه ددې جرړې دزړونو بیخ ته کوزیږی اود نیکو اعمالو ښاخونه دقبولیت آسمان سره ملاویږی ,,اليه يصعد الكلم الطيب والعمل صالح يرفع،، ددې ښکلې اوخوږې میوو سره دموحدینوکار اوخله همیشه دخوندنه

(۱) روح المعانی ج۱۳ص۱۱۳)
(۲) روح المعانی ج۱۳ص۱۱۳)
(۳) روح المعانی ج۱۳ص۱۱۵)_

ړکه وی. لنډه داچه د حق اوصداقت اوتوحید اومعرفت همیشه شنه ونه ورخ په ورخ خوربړی غټیږی اومضبوطیدوسره اوچتیږی. ددې په خلاف ددروغو خبره اودشرک اوکفر باطل دعوې جرړې اوبنیاد هیڅ نه وی. په ناحق خبره ثابتولوکښې که هرڅومره زوراولګولې شی خود انسانی ضمیر اوفطرت نه مخالف کیدو په وجه دهغې جرړې دزړه ژوروالې ته نه رسی، لړشان خیال کولوسره هغه غلطې معلومیږی په دې وجه مشهوره ده چه د دروغو پښې نه وی یعنی دربنتیاؤ په شان په خپلوپښوباندې نه څی اونه دې سره په زړه کښې نورپیدا کیږی...(١)

# =١٨٩ باب (يُثَبِّتُ اللَّهُ الَّذِينَ آمَنُوا بِالْقَوْلِ الثَّابِتِ)

[٤٤٢٢] حَدَّثَنَا أَبُو الْوَلِيدِ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ قَالَ أَخْبَرَنِي عَلْقَمَةُ بْنُ مَرْثَدٍ قَالَ سَمِعْتُ سَعْدَ بْنَ عُبَيْدَةَ عَنِ الْبَرَاءِ بْنِ عَازِبٍ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - قَالَ «الْمُسْلِمُ إِذَا سُئِلَ فِي الْقَبْرِ يَشْهَدُ أَنْ لاَ إِلَهَ إِلاَّ اللَّهُ وَأَنَّ مُحَمَّدًا رَسُولُ اللَّهِ، فَذَلِكَ قَوْلُهُ (يُثَبِّتُ اللَّهُ الَّذِينَ آمَنُوا بِالْقَوْلِ الثَّابِتِ فِي الْحَيَاةِ الدُّنْيَا وَفِي الآخِرَةِ).

د ,,فى الحيٰوة الدنيا،، نه په دنیاکښې دمؤمن لا اله الا الله محمد رسول الله ګواهی ورکول مراد ده او,,فى الاخرة،، نه برزخ کښې د ده لا اله الا الله ګواهی ورکول مراد ده.(٢)

# ١٩١= باب (أَلَمْ تَرَ إِلَى الَّذِينَ بَدَّلُوا نِعْمَةَ اللَّهِ كُفْرًا).(٣)

(أَلَمْ تَرَ) أَلَمْ تَعْلَمْ كَقَوْلِهِ (أَلَمْ تَرَ كَيْفَ) (أَلَمْ تَرَ إِلَى الَّذِينَ خَرَجُوا) الْبَوَارُ الْهَلاَكُ، بَارَ يَبُورُ بَوْرًا (قَوْمًا بُورًا) هَالِكِينَ.

**قوله:** الم تر.. د،،الم تعلم،،معنی کښې دې لکه ,,الم ترکیف فعل ربك،،.. اوالم تر الى الذين خرجوا،، ،،،الم تر،،،الم تعلم،،په معنی کښې دی د(بدلوانعمة الله کفرا) یعنی دالله تعالی دنعمت شکرهغوی په کفر بدل کړو. الله تعالی دهغوی درهنمائې اوهدایت دپاره رسول راولیږلو چه په حقیقت کښې دالله تعالی ډیرلوئ نعمت وو، ددې نعمت دشکرتقاضا داوه چه هغه خلقودهغه خبره منلې وه اودهغه په تعلیماتو ئې عمل کړې وولیکن هغه خلقو ناشکری اوکړه اودالله تعالی درسول اودهغه دتعلیماتونه ئې انکار اوکړو.

# ١٩١ - باب تفسير سورة الْحِجْرِ

وَقَالَ مُجَاهِدٌ (صِرَاطٌ عَلَيَّ مُسْتَقِيمٌ) الْحَقُّ يَرْجِعُ إِلَى اللَّهِ وَعَلَيْهِ طَرِيقُهُ.
وَقَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ (لَعَمْرُكَ) لَعَيْشُكَ (قَوْمٌ مُنْكَرُونَ) أَنْكَرَهُمْ لُوطٌ
وَقَالَ غَيْرُهُ (كِتَابٌ مَعْلُومٌ) أَجَلٌ (لَوْمَا تَأْتِينَا) هَلاَّ تَأْتِينَا شِيَعٌ أُمَمٌ وَلِلأَوْلِيَاءِ أَيْضًا شِيَعٌ.
وَقَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ (يُهْرَعُونَ) مُسْرِعِينَ (لِلْمُتَوَسِّمِينَ) لِلنَّاظِرِينَ (سُكِّرَتْ)

---

(١) تفسير عثمانى:٣٤٣فائده نمر٣_
(٢) روح المعانى ج١٣ص١١٧)_

غُشِّيَتْ (بُرُوجًا) مَنَازِلَ لِلشَّمْسِ وَالْقَمَرِ (لَوَاقِحَ) مَلَاقِحَ مُلْقَحَةً (حَمَإٍ) جَمَاعَةُ حَمْأَةٍ وَهُوَ الطِّينُ الْمُتَغَيِّرُ وَالْمَسْنُونُ الْمَصْبُوبُ (تَوْجَلْ) تَخَفْ (دَابِرَ) آخِرَ (لَبِإِمَامٍ مُبِينٍ) الإِمَامُ كُلُّ مَا ائْتَمَمْتَ وَاهْتَدَيْتَ بِهِ (الصَّيْحَةُ) الْهَلَكَةُ.

## سورة الحِجرِ

**د كلماتو تشريح:**

**قوله:** وَقَالَ مُجَاهِدٌ: صِرَاطٌ عَلَيَّ مُسْتَقِيمٌ، الْحَقُّ يَرْجِعُ إِلَى اللَّهِ وَعَلَيْهِ طَرِيقُهُ: په آيت كښې دى هٰذَا صِرَاطٌ عَلَيَّ مُسْتَقِيمٌ دې على" د الى په معنى كښې دې اومطلب دا دې چه حق لارصراط مستقيم ده الله تعالى طرف ته تلونكې ده اوهم ددې حق لارتلونكې سړې الله تعالى ته رسيدې شى اودهغه رضاحاصلولې شى . داتعليق ابن ابى حاتم موصولا نقل كړې دې [1]علامه شبيراحمد عثمانى رحمه الله ددې آيت په تفسيركښې فرمائى بيشكه دبندګئ اواخلاص لارنيغه ماته رسى اوهم دازما صفااونيغه لار ده كوم كښې چه هيڅ دهوكه وغيره نشته ،كوم بندګان چه دبندګئ اواخلاص لار اختياروى هم هغه به دشيطان لعين نه په امن كښې وى اوڅوك چه ددې ملعون منه كوى نوهغه سره به دوزخ ته ځى .بعضې مفسرينو ,,هٰذَا صِرَاطٌ عَلَيَّ مُسْتَقِيمٌ په تهديد باندې محمول كړې دې يعنى اې ملعونه خلق دصراط مستقيم نه ګمراه كوې نوچرته به تختې هغه كومه لار ده چه زمونږ طرف ته نه ځى ،بيا زمونږ دسزا نه بچ شوى چرته تلې شى هغه وخت كښې به كلام داسې وى لكه چه وائى «افعل ماشئت فطريقك على» اوپه قرآن كښې بل ځائ كښې ارشاد دې : «ان ربك لبالمرصاد»[2]

**قوله:** (الإِمَامُ كُلُّ مَا ائْتَمَمْتَ وَاهْتَدَيْتَ بِهِ ): په آيت كښې دى ,, وَإِنَّهُمَا لَبِإِمَامٍ مُبِينٍ اودا دواړه (قوم) كلى په صفا لاره باندې واقع دى . فرمائى چه امام هرهغه څيزدې دكوم چه ته منه كوې اودچا په ذريعه چه لاربيا مومى ،امام په وزن فعال اسم دې په معنى دمقتداء ،لارخودونكې ،هر هغه څيز چه دهغې اقتداء اوپيروى اوكړې شى دكوم چه قصد او اراده اوكړې ،چونكه لارهم خودونكې ده په دې وجه يوه معنى دامام لارده .مبين ښكاره ،مطلب دا چه قوم لوط اواصحاب آيكه په كولاؤ لار باندې واقع دى چه دحجاز نه شام طرف ته ځى .

**قوله:** (وَقَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ (لَعَمْرُكَ) لَعَيْشُكَ : په آيت كښې دى ,,لَعَمْرُكَ إِنَّهُمْ لَفِي سَكْرَتِهِمْ يَعْمَهُونَ عمر (دعين په فتحه اوضمه سره) حيات اوژوندته وائى . دحضوراكرم صلى الله عليه وسلم دا خصوصيت دې چه الله تعالى دهغوى په عمرمبارك قسم خورى .

[1]) عمدة القارى : ج۶ص۱۹)_

[2]) تفسير عثمانى:۳۵۰فائده نمبر۱_

**قوله:** (قَوْمٌ مُنْكَرُونَ) أَنْكَرَهُمْ لُوطٌ: په آيت كښې دى ,,فَلَمَّا جَآءَ اٰلَ لُوْطِ ۨالْمُرْسَلُوْنَ ۙ قَالَ اِنَّكُمْ قَوْمٌ مُّنْكَرُوْنَ بياچه كله دا فرښتې دلوط عليه السلام خاندان له راغلې (نوفرښتې په شكل دبشروي نوځكه) وائى چه تاسوخلقوخواجنبى معلوميږئى . آيت كښې د (قوم منكرون) مفهوم دادې چه لوط عليه السلام دا فرښتې اجنبى اوګڼړلې.

**قوله:** وَقَالَ غَيْرُهُ (كِتَابٌ مَعْلُومٌ) أَجَلٌ: په آيت كښې دى ,,وَمَآ اَهْلَكْنَا مِنْ قَرْيَةٍ اِلَّا وَلَهَا كِتٰبٌ مَّعْلُوْمٌ اومونږ چه څومره كلى (دكفر په وجه) هلاک کړى دى دهغه ټولودپاره يومقرر وخت ليکلې وو. دحضرت ابن عباس رضي الله عنه نه غيريعنى ابوعبيده رحمه الله ونيلى دى چه په آيت كښې د كتاب نه مراد اجل يعنى موده ده نو د (كتاب معلوم) معنى شوه وخت مقرر.

**قوله:** (لَوْمَا تَأْتِينَا) هَلَّا تَأْتِينَا: په آيت كښې دى لَوْمَا تَاْتِيْنَا بِالْمَلٰٓئِكَةِ اِنْ كُنْتَ مِنَ الصّٰدِقِيْنَ كه چرې (ته د نبوت په دعوى كښې) رښتونې ئې نومونږ ته فرښتې ولې نه راولې . فرمائى په آيت مذكوره كښې ,,لو،، په معنى د ,,هلا،، دې يعنى ,,لو،، دتحضيض دپاره دې .

**قوله:** (شِيَعٌ أُمَمٌ وَلِلأَوْلِيَاءِ أَيْضًا شِيَعٌ: په آيت كښې دى وَلَقَدْ اَرْسَلْنَا مِنْ قَبْلِكَ فِيْ شِيَعِ الْاَوَّلِيْنَ دلته دشيع معنى امم هم كيدې شى اواولياء ته هم شيع ونيلې شى ،په اول صورت كښې به مطلب داوى چه مونږستانه وړاندې امتونوكښې رسولان ليږلى دى اوپه دويم صورت كښې به معنى داوى چه مونږ ستانه وړاندې تيروشووخلقوكښې هم رسولان ليګى وو په چاكښې چه به اتحاد اواتفاق وو اوديوبل دوستان به وو.

**قوله:** (لِلْمُتَوَسِّمِينَ) لِلنَّاظِرِينَ: په آيت كښې دى ,,اِنَّ فِيْ ذٰلِكَ لَاٰيٰتٍ لِّلْمُتَوَسِّمِيْنَ بيشكه په دې واقعه كښې ډيرې نښې دى دبصيرت دخاوندانودپاره .فرمائى چه په آيت كښې د متوسمين معنى ناظرين يعنى كتونكى ده .

**قوله:** (سُكِّرَتْ) غُشِّيَتْ: په آيت كښې دى ,,اِنَّمَا سُكِّرَتْ اَبْصَارُنَا بَلْ نَحْنُ قَوْمٌ مَّسْحُوْرُوْنَ زمونږ نظر بندى اوكړې شوه بلكه په مونږ خلقوباندې جادو کړې شوې دې. فرمائى چه سكرت په معنى غشيت دې يعنى پرده واچولې شوه . نظربندى اوكړيشوه .

**قوله:** (بُرُوجًا) مَنَازِلَ لِلشَّمْسِ وَالْقَمَرِ: په آيت كښې دى ,,وَلَقَدْ جَعَلْنَا فِى السَّمَآءِ بُرُوْجًا وَّزَيَّنّٰهَا لِلنّٰظِرِيْنَ ،، او البته مونږ په آسمان كښې دستورومقامات جوړکړې دى اودكتونكودپاره موښائسته کړىدى . فرمائى په آيت مذكوره كښې دبرج نه مراد دنمرسپوږمئى منزلونه دى.

**قوله:** (لَوَاقِحَ) مَلَاقِحَ مُلْقَحَةً (حَمَإٍ: په آيت كښې دى وَاَرْسَلْنَا الرِّيٰحَ لَوَاقِحَ فَاَنْزَلْنَا مِنَ السَّمَآءِ مَآءً فَاَسْقَيْنٰكُمُوْهُ دې كښې لواقح په معنى دملاقح دملقحة جمع ده، دې نه مراد هواګانې دى چه اوبه ئى اوچتې کړې وى لواقح ، دلاقحة جمع ده ،لاقحة اوملقحة معنى يوه ده .

**قوله:** جَمَاعَةُ حَمْأَةٍ وَهُوَ الطِّينُ الْمُتَغَيِّرُ وَالْمَسْنُونُ الْمَصْبُوبُ: په آيت كښې دى قَالَ لَمْ اَكُنْ

لِاَسْجُدَ لِبَشَرٍ خَلَقْتَهٗ مِنْ صَلْصَالٍ مِّنْ حَمَاٍ مَّسْنُوْنٍ دې کښې (حما، حماة (دح فتحه دميم سکون اودهمزه فتحه سره) جمع ده هغه خاورې ته وائي چه دسخاکيدو په وجه بدله شوې وې اودمسنون معنی ده هغه څيز چه قالب شوې وي . مطلب دا چه دانسان جوسه الله تعالی دکړنګيدلې خاورې نه پيدا کړه اوداخاوره دکومې نه چه دانسان تخليق په وجود کښې راغلو دانسان په قالب کښې واچولې شوه اوهغه دسخاکيدوپه وجه بدله شوه .صلصال هغه اوچې خاورې ته وائي چه داوچوالې دوجې آواز کوی اوکړنګيږی .(۱)

**قوله:** (تَوْجَلْ) تخف: په آيت کښې دی ,, قَالُوْا لَا تَوْجَلْ اِنَّا نُبَشِّرُكَ بِغُلٰمٍ عَلِيْمٍ هغوی اووئيل ته مه ويريږه څکه چه مونږ (فرښتې يو دالله تعالی دطرف نه مويوزيرې راوړې دې او) تاته ديوهلک زيرې درکووچه لوئ عالم به وی .فرمائی چه توجل په معنی دتخف ده يعنی آيت مذکوره کښې دلاتوجل معنی `` خوف مه کوه ، ويريږه مه ،،.

**قوله:** (دَابِرَ) آخِرَ: په آيت کښې دی وَقَضَيْنَآ اِلَيْهِ ذٰلِكَ الْاَمْرَ اَنَّ دَابِرَ هٰٓؤُلَآءِ مَقْطُوْعٌ مُّصْبِحِيْنَ اومونږ ددې فرښتوپه واسطه لوط علیہ السلام ته داحکم اوليګلو چه سحر کيدوسره به دهغوی جرړې پرې کړې شی . فرمائی چه په آيت کښې (دابر) په معنی د(اخر) دې يعنی جرړه ،بنياد دابر داسم فاعل صيغه ده، دهرڅيزدآخراوتابع په معنی کښې مستعمل دې .لِبَاِمَامٍ مُّبِيْنٍ)

**قوله:** (الصَّيْحَةُ) الْهَلَكَةُ: په آيت کښې دی فَاَخَذَتْهُمُ الصَّيْحَةُ مُصْبِحِيْنَ هغوی دسحرپه وخت کښې چغې (سخت آواز) راګير کړل ،فرمائی چه په آيت کښې دصيحة معنی هلاکت ده.

## ۱۹۲= باب قَوْلِهِ (إِلَّا مَنِ اسْتَرَقَ السَّمْعَ فَأَتْبَعَهُ شِهَابٌ مُبِينٌ)

[۴۴۲۴] (۲): حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ عَمْرٍو عَنْ عِكْرِمَةَ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ يَبْلُغُ بِهِ النَّبِيَّ - صلى الله عليه وسلم - قَالَ « إِذَا قَضَى اللَّهُ الأَمْرَ فِي السَّمَاءِ ضَرَبَتِ الْمَلاَئِكَةُ بِأَجْنِحَتِهَا خُضْعَانًا لِقَوْلِهِ كَالسِّلْسِلَةِ عَلَى صَفْوَانٍ - قَالَ عَلِيٌّ وَقَالَ غَيْرُهُ صَفْوَانٍ - يَنْفُذُهُمْ ذَلِكَ فَإِذَا فُزِّعَ عَنْ قُلُوبِهِمْ قَالُوا مَاذَا قَالَ رَبُّكُمْ، قَالُوا لِلَّذِي قَالَ الْحَقَّ وَهُوَ الْعَلِيُّ الْكَبِيرُ، فَيَسْمَعُهَا مُسْتَرِقُو السَّمْعِ، وَمُسْتَرِقُو السَّمْعِ هَكَذَا وَاحِدٌ فَوْقَ آخَرَ - وَوَصَفَ سُفْيَانُ بِيَدِهِ، وَفَرَّجَ بَيْنَ أَصَابِعِ يَدِهِ الْيُمْنَى، نَصَبَهَا بَعْضَهَا فَوْقَ بَعْضٍ - فَرُبَّمَا أَدْرَكَ الشِّهَابُ الْمُسْتَمِعَ، قَبْلَ أَنْ

---

(۱) قال الراغب فی المفردات :۲۸۴ اصل الصلصال ترددالصوت من الشئ اليابس ،، وسمی الطين الجاف صلصالا...والصلصلة بقية ماء سميت بذلک لحکاية صوت تحرک فی المزادة وقيل الصلصال المنتن من الطين.

(۲) واخرجه فی التفسيرباب حتی اذافزع عن قلوبهم رقم الحديث : ۴۵۲۲) وفی التوحيدباب فی المشيئة والارادة، رقم الحديث : ۴۷۸۱(مع الفتح) واخرجه ابن ماجه فی المقدمة رقم الحديث : ۱۹۴واخرجه الترمذی فی کتاب التفسيررقم الحديث :۳۲۲۳واخرجه ابوداؤد فی کتاب الحزوف رقم الحديث :۳۹۸۹۔

يَرْمِي بِهَا إِلَى صَاحِبِهِ، فَيُحْرِقَهُ وَرُبَّمَا لَمْ يُدْرِكْهُ حَتَّى يَرْمِيَ بِهَا إِلَى الَّذِي يَلِيهِ إِلَى الَّذِي هُوَ أَسْفَلَ مِنْهُ حَتَّى يُلْقُوهَا إِلَى الأَرْضِ - وَرُبَّمَا قَالَ سُفْيَانُ حَتَّى تَنْتَهِيَ إِلَى الأَرْضِ - فَتُلْقَى عَلَى فَمِ السَّاحِرِ، فَيَكْذِبُ مَعَهَا مِائَةَ كَذْبَةٍ فَيُصَدَّقُ، فَيَقُولُونَ أَلَمْ يُخْبِرْنَا يَوْمَ كَذَا وَكَذَا يَكُونُ كَذَا وَكَذَا، فَوَجَدْنَاهُ حَقًّا لِلْكَلِمَةِ الَّتِي سُمِعَتْ مِنَ السَّمَاءِ».

دحضرت ابوهريره ﷺ نه روايت دي چه رسول الله ﷺ فرمائيلي دي چه کله الله تعالی په آسمان کښې ديوکارفيصله فرمائی نوملائکې دالله تعالی دارشادپه وړاندې خپلې عاجزئی اوبې وسئی ښکاره کولودپاره وزرې وهې اودهغه وزرو وهلو آواز داسې وی لکه په غوږ کانړی چه زنځير راښکې شی . علی بن عبدالله مدينی فرمائيلی چه سفيان نه علاوه زمونږ بل استاذ (صفوان ينفذهم ذلك) فرمائيلی ، يوخوهغوی دصفوان فاء مفتوح لوستلې اوسفيان دا مجزوم لوستلې وه ،بل هغوی د(ينفذهم ذلك) اضافه اوکړه چه سفيان نه وه کړې يعنی الله تعالی داحکم فرښتو ته رسوی

**قوله:** إِذَا فُزِّعَ عَنْ قُلُوبِهِمْ قَالُوا مَاذَا قَالَ رَبُّكُمْ، قَالُوا لِلَّذِي قَالَ الْحَقَّ: بيا چه کله ددې فرښتودزړونونه دخوف هغه کيفيت ختم شی نوهغه مقرب فرښتونه تپوس کوی چه ستاسو رب څه څه اوکړه؟ نوهغه فرښتې دهغه ځيزباره کښې ښودنه کوی کوم چه الله تعالی فرمائيلی وی ,,الحق،، چه الله تعالی حق اوفرمائيل .وهوالعلی الکبيراوهغه بزرګ اواوچت دې .

اوس ددې خبرې تذکره په ملائکوکښې کيږی نوبت پناه هغه شيطانان اوری .

**قوله:** (فَيَسْمَعُهَا مُسْتَرِقُو السَّمْعِ، وَمُسْتَرِقُو السَّمْعِ هَكَذَا وَاحِدٌ فَوْقَ آخَرَ - وَوَصَفَ سُفْيَانُ بِيَدِهِ، وَفَرَّجَ بَيْنَ أَصَابِعِ يَدِهِ الْيُمْنَى، نَصَبَهَا بَعْضَهَا فَوْقَ بَعْضٍ: پټ پناه شيطانان داسې اوری چه يودپاسه بل اوبل دپاسه بل ،سفيان د(پوهه کولوپه غرض) دخپل ښی لاس ګوتې کولاؤ کړې اوبعضې په بعضوباندې کيخودلې اودهغې کيفيت ئې بيان کړو،نوبياکله خوداسې کيږی چه شهاب ثاقب دا اوريدنکی رانيسی اومخکښې دهغې نه چه دوی داخبره خپل صاحب ته اورسوی هغه سوزوی اوکله داسې کيږی چه هغه شهاب دا اوريدونکې خو نيولې نشی تردې چه هغه دا رسوی هغه شيطان طرف ته چه دهغه نه لاندې ورسره متصل وی بياهغه خپل متصل لاندينی ته اوتردې چه هغه خبره زمکې ته رسی. بياهغه خبره دجادوګرخلې ته رسولې شی اوهغه دې سره سل دروغ يوځائ کړی اوبيانوی .بيادې تصديق کولې شی اوددې يوې خبرې په بناخلق وائی چه ولې ده په فلانئې ورځ نه ووئيلې چه آئنده به داسې داسې کيږی اومونږ هغه صحيح اوموندل داتصديق دهغه خبرې دوجه کيږی چه آسمان نه ئې په غلا غولئې سره اوريدلې وی.

**قوله:** حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ حَدَّثَنَا عَمْرٌو عَنْ عِكْرِمَةَ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ إِذَا قَضَى اللَّهُ الأَمْرَ. وَزَادَ الْكَاهِنِ: يعنی په ړومبی روايت کښې راغلی دی

(فتلقی علی فم الساحر) دې روایت کښې (علی فم الساحر) نه پس د (الکاهن) لفظ اضافه هم دہ.

حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ حَدَّثَنَا عَمْرٌو عَنْ عِكْرِمَةَ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ إِذَا قَضَى اللَّهُ الْأَمْرَ. وَزَادَ الْكَاهِنِ. وَحَدَّثَنَا سُفْيَانُ فَقَالَ قَالَ عَمْرٌو سَمِعْتُ عِكْرِمَةَ حَدَّثَنَا أَبُو هُرَيْرَةَ قَالَ إِذَا قَضَى اللَّهُ الْأَمْرَ وَقَالَ عَلَى فَمِ السَّاحِرِ. قُلْتُ لِسُفْيَانَ قَالَ سَمِعْتُ عِكْرِمَةَ قَالَ سَمِعْتُ أَبَا هُرَيْرَةَ. قَالَ نَعَمْ. قُلْتُ لِسُفْيَانَ إِنَّ إِنْسَانًا رَوَى عَنْكَ عَنْ عَمْرٍو عَنْ عِكْرِمَةَ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ وَيَرْفَعُهُ أَنَّهُ قَرَأَ فُزِّعَ. قَالَ سُفْيَانُ هَكَذَا قَرَأَ عَمْرٌو. فَلَا أَدْرِي سَمِعَهُ هَكَذَا أَمْ لَا. قَالَ سُفْيَانُ وَهِيَ قِرَاءَتُنَا.

**د سند توضیح:**

**قوله:** حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ حَدَّثَنَا عَمْرٌو عَنْ عِكْرِمَةَ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ إِذَا قَضَى اللَّهُ الْأَمْرَ. وَزَادَ الْكَاهِنِ.: امام بخاري رحمه الله فرمائی چه علی مدینی بیان کړې دې چه مونږ د سفیان نه حدیث بیان کړو نو په هغې کښې د سند الفاظ وو (قال سمعت عکرمة ....) د اسناد سابق په طریق عنعنه وو او په هغې کښې د سماع تصریح ده او (علی فم الساحر) ئې اوونیل او د کاهن ذکرئې اونه کړو.

**قوله:** قُلْتُ لِسُفْيَانَ آنت سمعت عمرا قَالَ سَمِعْتُ عِكْرِمَةَ قَالَ سَمِعْتُ أَبَا هُرَيْرَةَ. قَالَ نَعَمْ: علی المدینی فرمائی چه ما د خپل استاذ سفیان نه تپوس اوکړو چه ستاسو استاذ عمرو بن دینار کله چه تاسو نه دا روایت بیان کړې وو نو هغه (سَمِعْتُ عِكْرِمَةَ سَمِعْتُ أَبَا هُرَيْرَةَ) الفاظو سره بیان کړې وو؟ سفیان اوونیل اوجی نو د سماع تصریح راغله.

**قوله:** قُلْتُ لِسُفْيَانَ إِنَّ إِنْسَانًا رَوَى عَنْكَ عَنْ عَمْرٍو عَنْ عِكْرِمَةَ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ: په "فاذا فزع عن قلوبهم" کښې دوه قراء تونه: علی بن عبدالله مدینی فرمائی چه ما د سفیان نه تپوس اوکړو چه یو سړي دا حدیث تاسو نه نقل کوی لیکن په دې کښې د سماع تصریح نشته او روایت مرفوع دې او په دې کښې ,,فزع،، اولوستلې شو (تپوس کونکی ته آیت مبارک ,حَتَّىٰ إِذَا فُزِّعَ عَنْ قُلُوبِهِمْ قَالُوا مَاذَا قَالَ رَبُّكُمْ قَالُوا الْحَقَّ وَهُوَ الْعَلِيُّ الْكَبِيرُ [1] کښې د (فزع) په قراءت کښې شك دې چه دا فزغ دہ یا فرغ. د جمهورو یو روایت فزع او بل روایت فرغ دہ)، نو سفیان اوونیل چه عمرو بن دینار خودا فزع لوستلې دې اوس ماته معلومه نه ده چه عمرو دا فزع اوریدلې لوستلې دې یا بغیرد اوریدونی لوستلې دې او سفیان اوونیل چه څنګه هغه فزع لوستلې دې نوزمونږ قراءت هم فزع دې.

---

[1]) سورة سبا ۲۳-

دلته يوه خبره خودا اوشوه چه هغه نه دې بيان كړې فزع ئې بيان كړې دې .مطلب به په دواړو صورتونوكښې يو وى خواشكال دا كيږى چه حضرت سفيان بن عينيه يوطرف ته فرمائى چه زمونږ قراءت فزع دې اوبل طرف ته فرمائى (فلا ادرى سمعه هكذا ام لا) نوچه كله دسماع علم نشته نودقراءت په مينځ كښې خودقياس دخل كيدې نشى نوبيا هغه داخپل قراءت څنګه اوګرځولو. ددې يو جواب خودادې چه سفيان (فلا ادرى سمعه هكذا ام لا) صرف دعمروبن دينارپه حواله سره ئې وئيلې دې چه ماته دهغه باره كښې معلومه نه ده چه هغه دخپل شيخ عكرمه نه اوريدلې نولوستلې ئې دې كه نه نوتركومې چه ددې آيت داوريدوتعلق دې نوډيره ممكنه ده چه سفيان دنوروشيخانونه دسماع سره دا قراءت اوريدلې وى. اوداهم ممكن ده چه دحضرت سفيان نقطه نظرداوى چه دسماع نه بغيرهم دقراءت اعتبار كول پكاردى كه په معنى كښې څه خرابى اونقص لازم نه راځى .

**شيطانان اوشهاب ثاقب** : دلته روايت كښې دشيطانانو آسمان ته تلل اودشهاب ثاقب په ذريعه هغه ويشتل اوتختول ذكردى .علامه شبيراحمد عثمانى رحمه الله په دې سلسله كښې ډيرجامع او نفيس بحث ليكى په كوم سره چه په دې سلسله كښې واردېدونكى اشكالات ختميږى ،هغوى ليكى : په آسمانونوباندې دشيطانانوهيڅ عمل دخل نه چليږى بلكه دنبى كريم ﷺ دبعثت نه پس خودهغوى هلته تيريدل هم نشى كيدلى .اوس دهغوى ډيركوشش داوى چه يوه شيطانى سلسله قائمه كړى آسمان ته نزدې اورسى اوعالم ملكوت ته نزدې شى اودغيبودخبرو خبرحاصلوى، نوپه دې هم دفرښتو څوكۍ كينولې شوې دى چه كله شيطانان داسې كوشش كوى نودبره نه پرې اور راګذارولې شى . دنصوص قرآن اواحاديث نه معلوميږى چه دتكوينى اومورو متعلق په آسمان باندې كله ديوې فيصلې علان په يوخاص كيفيت سره دبره نه ښكته درجې ته راشى آخرددنيا آسمان ته او دبخارى شريف ديوروايت موافق عنان (اوريځو) كښې فرښتې ددې تذكره كوى ، نودشيطانانوكوشش وى چه ددې معاملاتومتعلق غيبى معلومات حاصل كړى ،دغه شان لكه چه نن يوپيغام په وائرليس ،ټيلى فون څې نوهغه بعض خلق په لاركښې دجذب كولوتدبيرونه كوى ،ناڅاپى دبره نه دبم ګوله شهاب ثاقب) اوچوى اوهغه غيبى پيغامونه پټونكى يازخمى كړى او يا هلاك كړى په دې درز دروز كښې كه يوه نيمه خبره دشيطانانوپه لاس ورشى نوهغه دهلاكيدلونه وړاندې په تندئى سره نوروشيطانانوته اوهغه شيطانان خپلو دوستانوانسانانوته درسولو كوشش كوى .كاهنان خلق دې نيمګړې خبرې سره په سوونودروغ دخپل طرف نه يوځاى كړى اوعواموته غيبى خبرې ښائى كله چه يوه نيمه هغه آسمانى خبره رښتياشى نو دهغوى منونكى هغه دهغوى دپاره درښتياؤ ثبوت پيش كوى اوچه كله هغه په سوونوجوړې شوى خبرې دروغ ثابيږى نودهغې نه اغماض اوتغافل كوى. قرآن اوحديث ددې دوه واقعات بيانولوسره خبردارې وركړوچه كم نه كم اودوړې نه وړه رښتونى خبرې سرچشمه هم هغه عالم ملكوت دې دشيطانانو انسى اوجنى په خزانه كښې بغيردروغو اوافتراء نه بل هيڅ نشته .بله داچه آسمانى انتظامات دومره مكمل دى چه ديو شيطان هم داطاقت نشته چه هلته قدم كيږدى ياسره دډير كوشش دهغه

خایٔ انتظامات اوفیصلو باندې معتدبه طاقت حاصل کړی .باقی که چرته یوه نیمه جمله دفرښتونه اخوادیخوا واوری نوالله تعالی ددې اراده نه ده کړې چه دا بالکل بند کړی که هغه غوښتل نو ددې نه به ئی هم منع کړی وولیکن داخبره دهغه دحکمت برابره نه وه ،آخردانسی اوجنی شیطانانوته چه دځه په بابت معلومه ده چه کله به هم دغولولو اوګناه نه منع نشی نو دومره اوږد مهلت اودغولولواسباب اووسائل باندې طاقت ورکولو کښې به څه نه څه حکمت خوبه تول منی دغه شان حکمت دلته هم اوګڼړئی .

تنبیه : شیطانان همیشه دشهابونوپه ذریعه مړه کیږی مګرڅنګه چه په قطب جنوبی اوهمالیه اوچتې څوکې تحقیق کونکی مړه کیږی اونور دهغوی دا انجام ګوری او دامهم نه پریږدی نو هم په دې باندې دشیطانانودامسلسل کوشش هم قیاس کړئی.داخبره دې ښکاره وی چه قرآن اوحدیث دا نه دی خودلی چه دشهاب وجود صرف دشیطانانو رجم دپاره دې ،ممکنه ده چه ددې وجودسره نور ډیرمصالح تړلې وی اودضرورت په وخت کښې تری کارهم اخستلې شی[1]

## ۱۹۳= باب قَوْلِهِ (وَلَقَدْ كَذَّبَ أَصْحَابُ الْحِجْرِ الْمُرْسَلِينَ)

[۴۴۲۵] ۴۲۰۲- حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ الْمُنْذِرِ حَدَّثَنَا مَعْنٌ قَالَ حَدَّثَنِي مَالِكٌ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ دِينَارٍ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُمَرَ - رضى الله عنهما - أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - قَالَ لأَصْحَابِ الْحِجْرِ «لاَ تَدْخُلُوا عَلَى هَؤُلاَءِ الْقَوْمِ إِلاَّ أَنْ تَكُونُوا بَاكِينَ فَإِنْ لَمْ تَكُونُوا بَاكِينَ فَلاَ تَدْخُلُوا عَلَيْهِمْ أَنْ يُصِيبَكُمْ مِثْلُ مَا أَصَابَهُمْ».

## ۱۹۴= باب قَوْلِهِ (وَلَقَدْ آتَيْنَاكَ سَبْعًا مِنَ الْمَثَانِي وَالْقُرْآنَ الْعَظِيمَ)

[۴۴۲۶] حَدَّثَنِي مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ حَدَّثَنَا غُنْدَرٌ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ خُبَيْبِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ عَنْ حَفْصِ بْنِ عَاصِمٍ عَنْ أَبِي سَعِيدِ بْنِ الْمُعَلَّى قَالَ مَرَّ بِيَ النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - وَأَنَا أُصَلِّي فَدَعَانِي فَلَمْ آتِهِ حَتَّى صَلَّيْتُ ثُمَّ أَتَيْتُ فَقَالَ « مَا مَنَعَكَ أَنْ تَأْتِيَ » . فَقُلْتُ كُنْتُ أُصَلِّي . فَقَالَ « أَلَمْ يَقُلِ اللَّهُ (يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا اسْتَجِيبُوا لِلَّهِ وَلِلرَّسُولِ) ثُمَّ قَالَ أَلاَ أُعَلِّمُكَ أَعْظَمَ سُورَةٍ فِي الْقُرْآنِ قَبْلَ أَنْ أَخْرُجَ مِنَ الْمَسْجِدِ » فَذَهَبَ النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - لِيَخْرُجَ مِنَ الْمَسْجِدِ فَذَكَّرْتُهُ فَقَالَ (الْحَمْدُ لِلَّهِ رَبِّ الْعَالَمِينَ) هِيَ السَّبْعُ الْمَثَانِي وَالْقُرْآنُ الْعَظِيمُ الَّذِي أُوتِيتُهُ ».

[۴۴۲۷] حَدَّثَنَا آدَمُ حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي ذِئْبٍ حَدَّثَنَا سَعِيدٌ الْمَقْبُرِيُّ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رضى الله عنه قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صلى الله عليه وسلم « أُمُّ الْقُرْآنِ هِيَ السَّبْعُ الْمَثَانِي وَالْقُرْآنُ الْعَظِيمُ »

[1] تفسیر عثمانی:۳۴۸_۳۴۹فائده نمبر ٤_

## ۴- باب قوله (الذين جعلوا القرآن عضين) [1]

(المقتسمين) الذين حلفوا
ومنه (لا أقسم) أي أقسم وتقرأ لأقسم. (قاسمهما) حلف لهما ولم يحلفا له. وقال مجاهد (تقاسموا) تحالفوا.

[۴۴۲۸] حدثني يعقوب بن إبراهيم حدثنا هشيم أخبرنا أبو بشر عن سعيد بن جبير عن ابن عباس رضي الله عنهما (الذين جعلوا القرآن عضين) قال هم أهل الكتاب، جزءوه أجزاء، فآمنوا ببعضه وكفروا ببعضه.

[۴۴۲۹] حدثني عبيد الله بن موسى عن الأعمش عن أبي ظبيان عن ابن عباس رضي الله عنهما- (كما أنزلنا على المقتسمين) قال آمنوا ببعض وكفروا ببعض، اليهود والنصارى.

**قوله: (المقتسمين) الذين حلفوا:** په آيت کښې دی كَمَآ اَنْزَلْنَا عَلَى الْمُقْتَسِمِيْنَ فرمائی مقتسمين نه مراد هغه خلق دی چاچه قسم خوړلې وو. دا دحضرت صالح عليه السلام دقوم کافر خلق ووهغوی قسم خوړلې ووچه دشپې په تياره کښې به په حضرت صالح عليه السلام اودهغه په متبعينو باندې حمله اوکړو اوټول به ختم کړو. په سورة نمل کښې ددې پوره وضاحت راغلی دې ,,قَالُوْا تَقَاسَمُوْا بِاللّٰهِ لَنُبَيِّتَنَّهٗ وَاَهْلَهٗ ثُمَّ لَنَقُوْلَنَّ لِوَلِيِّهٖ مَا شَهِدْنَا مَهْلِكَ اَهْلِهٖ وَاِنَّا لَصٰدِقُوْنَ [2]

**قوله: (ومنه (لا أقسم) أي أقسم وتقرأ لأقسم:** اودمقتسمين نه لااقسم دې .دې کښې ,,لا زائده دې اومعنی ده زه قسم خورم .بعضودې ته لاقسم لوستلې دې په کوم کښې چه لام دتاکيدپاره دې داد ابن کثيرقراءت دې [3] دمقتسمين په مناسبت سره ئې داذکرکړې دې.

**قوله: (قاسمهما) حلف لهما ولم يحلفا له:** په سورة اعراف کښې دی ,,وَقَاسَمَهُمَآ اِنِّيْ لَكُمَا لَمِنَ النّٰصِحِيْنَ امام بخاری رحمه الله فرمائی چه په آيت کښې قاسمهما مطلب دادې چه شيطان دحضرت آدم عليه السلام اوبی بی حواء په وړاندې قسم خوړلې ووخوحضرت آدم عليه السلام اوبی بی حواء قسم نه وو خوړلې دې خبرې ته اشاره ده چه دلته په باب مفاعله کښې خاصيت دمشارکت نه دې، دطرفين نه قسم نه دې خوړلې شوې صرف شيطان قسم خوړلې وو د اعراف دې آيت طرف ته

---

[1] عضين اى متفرقه وقيل هوجمع عضة واصلها عضوة من عضى الشئ اذاجعلها اعضاء اى جزاءها اجزاء وقيل :اصلهاعضة فحذفت الهاء الاصلية.... وبعد الحذف جمع على عضين مثل ماجمع برة على برين على قلين (عمدة القاري :ج۱۹ص۱۳)_

[2] سورة النمل :۴۹_

[3] عمدة القاري :ج۱۹ص۱۳-

اشاره هم دمقتسمين په مناسبت سره كړې شوې ده.

**قوله: (وَقَالَ مُجَاهِدٌ (تَقَاسَمُوا) تَحَالَفُوا:** په سورة النمل كښې دى. ,,قَالُوا تَقَاسَمُوا بِاللَّهِ لَنُبَيِّتَنَّهُ وَأَهْلَهُ دا هم دقسم نه دې يعنى هغه ټولوقسم اوخوړلودسورة نمل دې آيت طرف ته اشاره هم د مقتسمين په مناسبت سره كړې ده.

**په ``كما انزلنا على المقتسمين،، كې د مقتسمين نه كوم خلق مراد دې؟:** په آيت مبارك كښې څوک خلق مراد دى په دې سلسله كښې درې اقواله مشهوردى.

① حضرت صالح عليه السلام اودهغوى متبعينوباندې دشپې په وخت حمله كونكى دهغوى دقوم كافران خلق وولكه چه وړاندې تيرشو.

② هغه شپاړس اوولس سړى چاچه قسم خوړلې ووچه هغوى به درسول الله ﷺ دخبرې اوريدو نه خلق منع كوى [١] په دواړو صورتونوكښې دالفظ دقسم نه ماخوذ دې خوددې يو دريم تفسير هم دې.

③ دمقتسمين نه هغه اهل كتاب مراد دى چه دقرآن اجزاء ئى جوړ كړې ووا وهغه ئى په ټكړو او حصوكښې تقسيم كړو داسې چه په يوه حصه به ايمان راوړى اود څه حصه نه به ئى انكار اوكړى. دباب په دواړوروايتونوكښې هم دغه تفسيربيان شوې دې او هم دغه تفسير راجح دې او جمهورواختيا كړې دې په دې صورت كښې مقتسمين دقسم نه نه بلكه قسمة نه ماخوذ دې اقتسام معنى وائى تقسيم كيدوته يعنى هغوى قرآن تقسيم كړې ووبه بعض حصوباندې عمل كولواوبه بعض باندې نه امام بخارى رحمه الله دواړه تفسيرونو طرف ته داشان اشاره كړې ده چه په شروع كښې اوفرمائيل (المقتسمين : الذين حلفوا) دې سره ئى اشاره اوكړله چه دا دقسم نه ماخوذ دې اوچه كوم دوه روايات ذكركړې شوهغې ته ئى اشاره اوكړه چه دا دقسمة نه ماخوذ دې. والله أعلم.

## ١٩٦- بَاب قَوْلِهِ (وَاعْبُدْ رَبَّكَ حَتَّى يَأْتِيَكَ الْيَقِينُ) (٥)

قَالَ سَالِمٌ (الْيَقِينُ) الْمَوْتُ

## =١٩٦ باب تفسير سورة النَّحْلِ

(رُوحُ الْقُدُسِ) جِبْرِيلُ (نَزَلَ بِهِ الرُّوحُ الأَمِينُ) (فِي ضَيْقٍ) يُقَالُ أَمْرٌ ضَيْقٌ وَضَيِّقٌ، مِثْلُ هَيْنٍ وَهَيِّنٍ وَلَيْنٍ وَلَيِّنٍ، وَمَيْتٍ وَمَيِّتٍ. وَقَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ (فِي تَقَلُّبِهِمْ) اخْتِلاَفِهِمْ. وَقَالَ مُجَاهِدٌ تَمِيدُ تَكَفَّأُ (مُفْرَطُونَ) مَنْسِيُّونَ وَقَالَ غَيْرُهُ (فَإِذَا قَرَأْتَ الْقُرْآنَ فَاسْتَعِذْ بِاللَّهِ) هَذَا مُقَدَّمٌ وَمُؤَخَّرٌ وَذَلِكَ أَنَّ الاِسْتِعَاذَةَ قَبْلَ الْقِرَاءَةِ وَمَعْنَاهَا الاِعْتِصَامُ بِاللَّهِ (قَصْدُ السَّبِيلِ) الْبَيَانُ الدِّفْءُ مَا اسْتَدْفَأْتَ (تُرِيحُونَ) بِالْعَشِيِّ وَتَسْرَحُونَ بِالْغَدَاةِ (بِشِقِّ) يَعْنِي الْمَشَقَّةَ.

---

[١] عمدة القارى :ج ١٩ص١٣ وتفسيرنسفى :ج٢ص٢٧٩ خو په دې كښې ددولسوسروذكر دې.

(عَلٰى تَخَوُّفٍ) تَنَقُّصٍ (الْأَنْعَامِ لَعِبْرَةً) وَهِيَ تُؤَنَّثُ وَتُذَكَّرُ، كَذٰلِكَ النَّعَمُ لِلْأَنْعَامِ جَمَاعَةُ النَّعَمِ (سَرَابِيلَ) قُمُصٌ (تَقِيكُمُ الْحَرَّ) وَأَمَّا (سَرَابِيلَ تَقِيكُمْ بَأْسَكُمْ) فَإِنَّهَا الدُّرُوعُ . (دَخَلًا بَيْنَكُمْ) كُلُّ شَيْءٍ لَمْ يَصِحَّ فَهُوَ دَخَلٌ . قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ (حَفَدَةً) مَنْ وَلَدَ الرَّجُلُ . السَّكَرُ مَا حُرِّمَ مِنْ ثَمَرَتِهَا، وَالرِّزْقُ الْحَسَنُ مَا أَحَلَّ اللّٰهُ، وَقَالَ ابْنُ عُيَيْنَةَ عَنْ صَدَقَةَ (أَنْكَاثًا) هِيَ خَرْقَاءُ، كَانَتْ إِذَا أَبْرَمَتْ غَزْلَهَا نَقَضَتْهُ. وَقَالَ ابْنُ مَسْعُودٍ الْأُمَّةُ مُعَلِّمُ الْخَيْرِ . { وَالْقَانِتُ الْمُطِيعُ } .

## سورة النحل

**د کلماتو تشریح:**

**قوله:** (رُوحُ الْقُدُسِ) جِبْرِيلُ (نَزَلَ بِهِ الرُّوحُ الْأَمِينُ) : په آیت کښې دی قُلْ نَزَّلَهُ رُوحُ الْقُدُسِ مِنْ رَّبِّكَ بِالْحَقِّ په دې کښې دروح القدس تفسیر امام بخاری رحمه الله حضرت جبرائیل علیه السلام کړی او ددې دپاره هغوی تائید دسورة الشعراء دآیت نَزَلَ بِهِ الرُّوْحُ الْاَمِيْنُ نه بیان کړو چه په دې کښې د«روح» اطلاق په حضرت جبرائیل علیه السلام باندې شوې دی .

**قوله:** (فِي ضَيْقٍ) يُقَالُ أَمْرٌ ضَيْقٌ وَضَيِّقٌ ، مِثْلُ هَيْنٍ وَهَيِّنٍ وَلَيْنٍ وَلَيِّنٍ ، وَمَيْتٍ وَمَيِّتٍ : په آیت کښې دی ,,وَلَا تَكُنْ فِيْ ضَيْقٍ مِّمَّا يَمْكُرُوْنَ امام بخاری رحمه الله فرمائی په دې کښې دوه لغته دی یوضَیْق (په سکون دیاء) اوبل ضَیِّق (په تشدید دیاء) لکه چه هَیْن وَهَیِّن وَلَیْن وَلَیِّن او وَمَیْتٍ وَمَیِّتٍ کښې دوه لغته دی . دامام بخاری رحمه الله دبیان مطابق وَمَیْتٍ «دیاء په سکون سره» او مَیِّتٍ ، په تشدید سره کښې هیڅ فرق نشته اهل لغتو په دواړو کښې لږشان فرق بیان کړې دې هغه داچه وَمَیْتٍ (په سکون دیاء) هغې ته وائی چه فی الحال مړشوې وی او مَیِّتٍ (په تشدید دیاء) عام دې ،که فی الحال چه څوک مړشو په دې ئی هم اطلاق کیږی اوکه څوک په مستقبل کښې مړکیدونکې دې دهغه د پاره هم ددې لفظ اطلاق کیږی [1] په سورة زمرکښې اِنَّكَ مَيِّتٌ وَّاِنَّهُمْ مَّيِّتُوْنَ [2] کښې ددې لفظ الطلاق هم دمستقبل په اعتبار سره کړې شوې دې .

---

[1] .قال الفيروز ابادی فی القاموس المحيط :ج ١ص ١٦٤) الميت مخففه الذی مات والميت والمائت الذی لم يمت بعد وقال الزبيدی فی تاج العروس : ج١ص٥٨٦ نقلا عن شيخه وعلى هذه التفرقة جماعة من الفقهاء والادباء ووعندی فيه نظرفانهم صرحو ابان الميت مخفف الياء ماخوذ وخفف من الميت المشده واذاكان ماخوذمنه فكيف يتصور الفرق فيهما فی الاطلاق حتى قال العلامة بن دحية ..... بانه خطا فی القياس ومخفف للسامع اما القياس فان الميت المخفف انمااصله ميت المشدد مخفف وتخفيه لم يحدث فيه معنى مخالفا لمعناه فی حال التشديد وفی لسان العرب :ج ٢ص٩١)_ قال الزجاج الميت الميت بالتشديد الاانه يخفف يقال ميت ميت والمعنى واحد

[2] الزمر:٣٠_

**قوله:** وَقَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ (فِي تَقَلُّبِهِمْ) اخْتِلَافِهِمْ: په آیت کښې دی ,, يَأْخُذَهُمْ فِي تَقَلُّبِهِمْ فَمَا هُمْ بِمُعْجِزِيْنَ بیا هغوی گرځیدونکی راګرځیدونکی (په یوآفت کښې) راګیرکړل.

حضرت ابن عباس رضی الله عنهما بیان کړې دې چه دفی تقلبهم معنی ده فی اختلافهم یعنی دهغوی په سفر او حضر کښې دهغوی په شپه اوورځ کښې الله تعالی هغوی راونیسی.

**قوله:** (وَقَالَ مُجَاهِدٌ تَمِيدُ تَكَفَّأُ: په آیت کښې دی ,, وَأَلْقَى فِي الْأَرْضِ رَوَاسِيَ أَنْ تَمِيدَ بِكُمْ الله تعالی په زمکه کښې لوئ لوئ غرونه خواره کړی دی دې دپاره چه زمکه تاسو واخلی اومتحرک اومضطرب مونه کړی، مجاهد رحمه الله دتمید تشریح تکفا سره کړې ده دځه معنی چه راواپس کیدل، رقیدونکي اوراپریوتونکې راخی. دمجاهد رحمه الله داتعلیق محمد موصولا نقل کړې دې.[1]

**قوله:** (مُفْرَطُونَ مَنْسِيُّونَ): په آیت کښې دی لَا جَرَمَ أَنَّ لَهُمُ النَّارَ وَأَنَّهُمْ مُفْرَطُونَ فرمائی دې کښې مفرطون منسيون په معنی کښې دې یعنی بیشکه دهغوی دپاره دقیامت په ورځ دوزخ دې اوهغه خلق به هیرکړیشی (په دوزخ کښې داچولونه پس بیابه دهغوی هیڅ خبرنشی اخستې) حضرت شیخ الهند رحمه الله ترجمه فرمائیلې ده محقق شوچه دهغوی دپاره اور دې اوهغه زیاتولې شی .یعنی دهغه خلقو دپاره دوزخ تیار دې دکوم طرف ته چه هغوی وړاندې کولې شی اوچرته په رسیدوباندې به لکه چه هغوی بالکل هیرکړې شی .اوپه هغوی به کله هم دمهربانۍ نظرنشی اچولې.

**قوله:** (وَقَالَ غَيْرُهُ (فَإِذَا قَرَأْتَ الْقُرْآنَ فَاسْتَعِذْ بِاللَّهِ) هَذَا مُقَدَّمٌ وَمُؤَخَّرٌ وَذَلِكَ أَنَّ الِاسْتِعَاذَةَ قَبْلَ الْقِرَاءَةِ وَمَعْنَاهَا الِاعْتِصَامُ بِاللَّهِ:

د ,,فاذا قرات القران فاستعذ بالله،، **تفسیر:** په ایت کښې دی فَإِذَا قَرَأْتَ الْقُرْآنَ فَاسْتَعِذْ بِاللَّهِ امام بخاري رحمه الله دابوعبيد رحمه الله په اتباع کښې فرمائی چه په دې آیت کښې تقدیم اوتاخیردې یعنی فَإِذَا قَرَأْتَ الْقُرْآنَ فَاسْتَعِذْ بِاللَّهِ اول ذکرکړې دې هغه مؤخربه وی اوچه فَإِذَا قَرَأْتَ الْقُرْآنَ فَاسْتَعِذْ بِاللَّهِ روستوذکرکړې شوې دې دابه وړاندې وی ځکه چه استعاذه دقرآن پاک دتلاوت نه وړاندې وی. جمهورعلماء دتقدیم اوتاخیرقائل نه دی هغوی وائی چه ,, فَإِذَا قَرَأْتَ الْقُرْآنَ فَاسْتَعِذْ بِاللَّهِ معنی ,, اذا اردت قراءة القران ،، ده یعنی چه کله دقرآن دتلاوت اراده اوکړئی نواستعاذه کوئی، علامه نووی اوحافظ ابن کثیر رحمه الله وغیره هم دغه معنی بیان کړې دې.[2] د استعاذه یعنی اعوذ بالله معنی امام بخاری رحمه الله بیان کړې ده ,, الاعتصام بالله،، یعنی الله تعالی سر مضبوط تعلق قائمول اودالله تعالی په پناه کښې راتلل.

[1] عمدة القاري : ج۱۹ص۱۵)_

[2] تفسیرابن کثیر :ج۲ص۵۸۶ والجامع لاحکام القرآن :ج۱ص ۸۶ روح المعانی : ۱۴ص۲۲۸_)

**تلاوت نه وړاندې دتعو ذ حکم** : دجمهورعلماو په نزد :قرآن شريف دتلاوت نه مخکښې تعوذ دې عطاء بن ابى رباح اونور حضرات وائى چه تعوذ وړاندې دقراءت نه واجب دې [1]
حضرت ابوهريره رضی الله عنه محمد بن سرين اوحضرت ابراهيم نخعى نه نقل شوى دى چه تعوذدقراءت نه پس پكاردې هغوى دآيت په ظاهرباندې نظركول سره دتعوذ مقام دقراءت نه پس تجويزكړې دې داؤد ظاهرى اوحمزه زيات هم دغه مذهب دې [2]
امام رازى رحمه الله دبعضې علماؤ نه نقل كړى دى چه تعوذ دقراءت نه وړاندې او روستو دواړو موقعو كښې پكار دې . [3]
بيا په دې كښې اختلاف دې چه تعوذ پټ وئيل پكار دى كه ښكاره .په مانځه كښې دننه دجمهور علماؤ په نزد تعوذ په تيزه نه دى وئيل پكار بلكه ابن قدامه رحمه الله فرمائيلى دى چه تعوذ په مانځه كښې پټ وئيل اجماعى اومتفق عليه مسئله ده .[4] دشوافع حضراتو نه په دې سلسله كښې دوه قوله نقل دى .يوقول خودا دې چه تعوذبه پټ وئيلى كيږى اودويم قول دې چه قارى له اختيار دې كه غواړى پټ دې وائى يا ښكاره . [5]

**قوله:** شـاكلته : ناحيته: دا لفظ دسورة بنى اسرائيل آيت كښې دى ,,قُلْ كُلٌّ يَّعْمَلُ عَلٰى شَاكِلَتِهٖ .. دلته ددې ذكر بې محل دې ناسخ سهواً دا دلته ذكركړې دې .[6]

وقال ابن عباس: (تسيمون) ترعون (قَصْدُ السَّبِيلِ) الْبَيَانُ الدِّفْءُ مَا اسْتَدْفَأْتَ (تُرِيحُونَ) بِالْعَشِيِّ وَتَسْرَحُونَ بِالْغَدَاةِ (بِشِقِّ) يَعْنِي الْمَشَقَّةَ . (عَلَى تَخَوُّفٍ) تَنَقُّصٍ (الأَنْعَامِ لَعِبْرَةً) وَهِيَ تُؤَنَّثُ وَتُذَكَّرُ، كَذَلِكَ النَّعَمُ لِلأَنْعَامِ جَمَاعَةُ النَّعَمِ (سَرَابِيلَ) قُمُصٌ (تَقِيكُمُ الْحَرَّ) وَأَمَّا (سَرَابِيلَ تَقِيكُمْ بَأْسَكُمْ) فَإِنَّهَا الدُّرُوعُ . (دَخَلاً بَيْنَكُمْ) كُلُّ شَيْءٍ لَمْ يَصِحَّ فَهُوَ دَخَلٌ. قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ (حَفَدَةً) مَنْ وَلَدَ الرَّجُلُ . السَّكَرُ مَا حُرِّمَ مِنْ ثَمَرَتِهَا ، وَالرِّزْقُ الْحَسَنُ مَا أَحَلَّ اللَّهُ، وَقَالَ ابْنُ عُيَيْنَةَ عَنْ صَدَقَةَ (أَنْكَاثًا) هِيَ خَرْقَاءُ، كَانَتْ إِذَا أَبْرَمَتْ غَزْلَهَا نَقَضَتْهُ. وَقَالَ ابْنُ مَسْعُودٍ الأُمَّةُ مُعَلِّمُ الْخَيْرِ. {وَالْقَانِتُ الْمُطِيعُ} .

**قوله:** (قَصْدُ السَّبِيلِ) الْبَيَانُ: په آيت كښې دى ,,وَعَلَى اللّٰهِ قَصْدُ السَّبِيْلِ وَمِنْهَا جَآئِرٌ ۚ وَلَوْ شَآءَ

[1] الجامع لاحكام القرآن :ج ١ص ٨٦
[2] فتح البارى :ج٨ص٣٨٥) ورح المعانى :ج ١٤ص٢٢٩)_
[3] تفسير كبير :ج ١ص ٦٠_
[4] قال موفق الدين احمدبن قدامه فى كتابه المغنى.. ج١ ص٢٨٣) ويسرالاستعاذة ولايجهر بهالااعلم فيه خلافا.
[5] قال شافعى رحمه الله فى كتابه الام ج١ص١٠٧ وايهما فعل الرجل اجزاء ان جهر او اخفى _
[6] مولانا رشيد احمد گنگوهى رحمه الله ددې يوه توجيه كړې دې ، ولعل الوجه فى ايراده ههنا التنبيه على ان قصده فى القراءة لاينبغى ان يكون الا لله ، وعلى هذا فالمناسب فى ترجمة الشاكلة ههنا من التنبيه (لامع الد رارى ج٩ص١١٦-١١٧)وفى الفتح :ج٨ص٣٨٥ شاكلته: ناحيته وقع فى رواية ابى ذر,,نيته.. يدل ناحيته _

لَهَدٰىكُمْ اَجْمَعِيْنَ » فرمائی چه په دې کښې د ,,قصد ،، معنی دبیانولوده .یعنی دهدایت او ضلالت بیان کول هم په الله تعالی باندې دې . بعضو قصدالسبیل تفسیر په صراط مستقیم سره کړې دې .(۱) یعنی نیغه لار الله تعالی ته رسی اوبعضې لارې (چه د دین خلاف دی) کږې هم دی او که الله اوغواړی نو تاسو ټولو له به نیغه لار درکړی.

**قوله:** ( الدِّفْءُ مَا اسْتَدْفَأْتَ: به په آیت کښې دی ,,وَالْاَنْعَامَ خَلَقَهَا لَكُمْ فِيْهَا دِفْءٌ وَّمَنَافِعُ وَمِنْهَا تَأْكُلُوْنَ فرمائی دې کښې دف ء نه مراد هغه څیزونه دی کوم نه چه تاسوګرمی حاصلونی دآیت مطلب دادې الله تعالی څناوریپدا کړی دی په دې کښې ستاسودپاره دګرمئی پیداکولو سامان دې (څکه چه دهغې دوړښتواوڅرمن نه استراوکپړې جوړیږی).

**قوله:** (تُرِيْحُوْنَ) بِالْعَشِيِّ وَتَسْرَحُوْنَ بِالْغَدَاةِ: په آیت کښې دی وَلَكُمْ فِيْهَا جَمَالٌ حِيْنَ تُرِيْحُوْنَ وَحِيْنَ تَسْرَحُوْنَ دتریحون معنی څناور څرول اومابنام وخت کښې راوستل اودتسرحون معنی دسحریه وخت کښې څرولوله بوتلل .مطلب دا دې چه څناور دسحروخت کښې څرن لره بوتلل اودمابنام په وخت کښې واپس راوستلوکښې ستاسو دپاره یوشان اوورونق دې (بِشِقِّ) يَعْنِي الْمَشَقَّةَ.(عَلٰى تَخَوُّفٍ)تَنَقُّصٍ

**قوله:** (الْأَنْعَامِ لَعِبْرَةً) وَهِيَ تُؤَنَّثُ وَتُذَكَّرُ، كَذٰلِكَ النَّعَمُ لِلْأَنْعَامِ جَمَاعَةُ النَّعَمِ: په آیت کښې دی وَاِنَّ لَكُمْ فِى الْاَنْعَامِ لَعِبْرَةً ۚ نُسْقِيْكُمْ مِّمَّا فِيْ بُطُوْنِهٖ ،، امام بخاری رحمه الله فرمائی چه لفظ انعام مذکر اومؤنث دواړه قسمه استعمالیږی . اودا دانعم جمع ده. نعم هم مذکر اومؤنث دواړه استعمالیږی .دلته انعام مذکر استعمال شوې دې نو ,,فی بطونه،، کښې ضمیر مذکرددې طرف ته راجع دې اوسورة مؤمنون کښې (نُسْقِيْكُمْ مِّمَّا فِيْ بُطُوْنِهَا(۲))دې هلته مؤنث استعمال شوې دې.

**قوله:** (بِشِقِّ بمعنی المشقة: په آیت کښې دی وَتَحْمِلُ اَثْقَالَكُمْ اِلٰى بَلَدٍ لَّمْ تَكُوْنُوْا بٰلِغِيْهِ اِلَّا بِشِقِّ الْاَنْفُسِ ۭ،، هغه به ستاسوبوج هم بار کړی داسې ښارته ئی اوړی چرته چه تاسوبغیر دځان محنت (مشقت) کښې اچولونه نشئی رسیدلې . فرمائی چه آیت کښې شق نه مراد مشقت اومحنت دې.

**قوله:** علی تخوف : تنقص: په آیت کښې دی اَوْ يَاْخُذَهُمْ عَلٰي تَخَوُّفٍ ۭ فَاِنَّ رَبَّكُمْ لَرَءُوْفٌ رَّحِيْمٌ یادا په کمولو اونیسی .لکه چه هلته قحط پریوزی اوبه مزه ختمیږی) مطلب دا دې چه بې ویرې کیدل نه دی پکار . دالله تعالی په ټولو قدرت حاصل دې .فرمائی په آیت کښې دتخوف معنی تنقص ده چه معنی ئی نمبربه نمبرکمیدل دی اوهم دغه تفسیرحضرت ابن عباس رضی الله عنه اومجاهد وغیره ائمه دتفسیرنه منقول دی اوهمدغه تفسیرحکیم الامت حضرت تهانوی رحمه الله

---

(۱)عمدة القاری :ج۱۹ص۱۶)_

(۲)سورة المؤمنون ۲۱_

هم کړي دي ،لکه چه ترجمه کښې کمول ظاهر دی . لفظ تخوف چه په ظاهره دخوف نه مشتق دي دځه معنی چه ویرول دی .

**قوله: (سَرَابِيلَ) قُمُصٌ (تَقِيكُمُ الْحَرَّ) وَأَمَّا (سَرَابِيلَ تَقِيكُمْ بَأْسَكُمْ) فَإِنَّهَا الدُّرُوعُ:**

په آیت کښې دی ، ، وَجَعَلَ لَكُمْ سَرَابِيلَ تَقِيكُمُ الْحَرَّ وَسَرَابِيلَ تَقِيكُمْ بَأْسَكُمْ ، دلته اول سرابیل (گرمئی نه دحفاظت دپاره دي) مراد قمیص اوکرتي دی اوبل سرابیل (چه په جنګ کښې دحفاظت دپاره دي) مراد ترینه زغرې دی .

**قوله: (دَخَلًا بَيْنَكُمْ) كُلُّ شَيْءٍ لَمْ يَصِحَّ فَهُوَ دَخَلٌ:** په آیت کښې دی تَتَّخِذُونَ أَيْمَانَكُمْ دَخَلًا بَيْنَكُمْ هغه څیز دکوم داخلول چه صحیح نه وی اوهغه په مینځ کښې واچوی هغې ته دخل وائی . دهوکه ،فساد . خیانت اوهریوملاوټ باندې ددخل اطلاق کیدیشی .

**قوله: (قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ (حَفَدَةً) مَنْ وَلَدَ الرَّجُلُ:** په آیت کښې دی وَاللَّهُ جَعَلَ لَكُمْ مِنْ أَنْفُسِكُمْ أَزْوَاجًا وَجَعَلَ لَكُمْ مِنْ أَزْوَاجِكُمْ بَنِينَ وَحَفَدَةً دې کښې بنین نه صلبی اولاد مراد دی اوحفدة نه نمسی مراد دی .

**قوله: (السَّكَرُ مَا حُرِّمَ مِنْ ثَمَرَتِهَا ، وَالرِّزْقُ الْحَسَنُ مَا أَحَلَّ اللَّهُ:** په آیت کښې دی وَمِنْ ثَمَرَاتِ النَّخِيلِ وَالْأَعْنَابِ تَتَّخِذُونَ مِنْهُ سَكَرًا وَرِزْقًا حَسَنًا ، شراب یابل څه مسکرچه دثمارنه تیارولې شی هغې ته سکروائی اورزق حسن هغه دي چه الله تعالی جائز اوحلال ګرځولي وی (۱)

**قوله: (وَقَالَ ابْنُ عُيَيْنَةَ عَنْ صَدَقَةَ (أَنْكَاثًا) هِيَ خَرْقَاءُ ، كَانَتْ إِذَا أَبْرَمَتْ غَزْلَهَا نَقَضَتْهُ:** (انکاثا) جمع نکث ، وهوالغزل یحل فتله فیعود کماکان قبل الفتل مفرق الاجزاء (هی خرقاء) حمقاء (نقضت) من النقض ، وستعمل لمعان منها : الهدم والابطال والحل بعد العقد ، (ابرمت) فتلت .

**په سند کې د صدقې نه کوم سړې مراد دې؟ په دې سلسله کې درې اقواله او په هغې کې د قول راجح تعین:** حضرت سفیان بن عینیه رحمه الله دصدقه نه نقل کړی دی دعلامه کرمانی رحمه الله خیال دې چه دصدقه نه امام بخاری رحمه الله شیخ صدقه بن الفضل مروزی مراد دې . حافظ ابن حجر رحمه الله ددې تردید کړې دې اودائې فرمائیلې دی چه دینه زما په خیال کښې صدقه ابن عمران قاضی اهواز مراددی . امام بخاری رحمه الله په خپل تاریخ او ابن حبان ،،په کتاب الثقات ، ،کښې صدقه ابوهذیل ذکرکړې دې چه دهغه نه سفیان بن عینیه روایت کوی اوبه ظاهردلته صدقه ابوهذیل مراد دې داشان تعلیقا دا رجال بخاری نه دې . په رجال بخاری باندې کارکونکو د

(۱) اشکال کیږی چه شراب خوحرام دی نودابه نعمتونوکښې څنګه ذکرکړې شومولانا رشید احمد ګنګوهی رحمه الله ددې جواب ورکوی ،، ولایبعدان یقال: ان الامتنان بمالم یسکر منها ،ولاشک جواز القدر الذی لایسکرمنها فصح لامتنان اویقال :ان الایة مکیة وتحریم المحرمات منها مدنی ،فصح الامتنان انزال الایة ،،لامع الدراری:ج۹ص ۱۱۷)۔

ده ذکرنه دي کړي. دکلام خلاصه دا شوه چه دلته صدقه باره کښې دري اقواله شو.

① يوقول دعلامه کرماني دي هغه فرمائي دينه صدقه بن الفضل مروزي مراد دي، صدقه ابن الفضل مروزي دامام بخاري شيخ دي اوسفيان بن عيينه نه روايت کوي سفيان دهغه شيخ ابن حبان په ,,کتاب الثقات،، کښې ليکي: صدقه ابن المروزي کنيته ابوالفضل يروي عن عيينة ......) دعلامه کرماني رحمه الله په دې قول باندې اشکال کيږي چه سفيان خودصدقه شيخ دې ،دلته شيخ دخپل شاګرد نه روايت کوي، دهغه شيخ نه دې صدقه بن الفضل دسفيان نه روايت کوي، علامه کرماني رحمه الله ددې جواب ورکوي چه سفيان خودصدقه شيخ دې، دلته شيخ دخپل شاګرد نه روايت کوي اوداسې کيږي چه ډيرخل شيخ دخپل شاګرد نه روايت کوي.

دعلامه کرماني رحمه الله په قول باندې اعتراض دا اوکړې شو چه مذکوره روايت د ابن جرير اوابن ابي حاتم (عن ابن عيينه عن صدقه عن السدي) په طريق سره نقل شوې دې. اوصدقه بن الفضل سدي اودهغه اصحاب نه دي ليدلي نوحافظ ابن حجر فرمائي (ويكتفى في الرد عليه ما اخرجناه من تفسير جرير وابن ابي حاتم من رواية صدقه هذا عن السدي فان صدقه بن الفضل المروزي ما ادرك السدي ولا سحاب السدي.......) په دې وجه دکرماني رحمه الله قول ضعيف دې.

② حافظ ابن حجر رحمه الله ليکي دي چه دينه صدقه ابن ابي عمران مراددې ځکه چه دابن عيينه دهغه نه روايت ثابت دې. داقول هم ضعيف دې ځکه چه دسفيان بن عيينه رور محمدبن عيينه دهغه نه روايت کوي ،علامه مزي رحمه الله ددې تصريح کړې ده ،دسفيان دده نه روايت په عام توګه کتب رجال کښې ذکرنه دې ،

③ دريم قول صحيح معلوميږي دادي چه دينه صدقه ابوهذيل مراد دې ځکه چه امام بخاري رحمه الله تاريخ کبير، ، کښې فرمائي (صدقه ابو الهذيل عن السدي روى عنه ابن عيينه) تقريبا هم دغه الفاظ ابن حبان رحمه الله ذکر کړي دي، صدقه ابوهذيل تفصيلي حالات اوپيژندګلي درجال په کتابونو کښې نه ملاويږي [1]

**د ايت کريمه ``ولاتکونوا کالتي نقضت غزلها،، تفسير:** هغه فرمائي چه آيت ((وَلَا تَكُونُوا كَالَّتِي نَقَضَتْ غَزْلَهَا مِنْ بَعْدِ قُوَّةٍ أَنْكَاثًا)) کښې په مکه کښې اوسيدونکې يوه ليونئ او ديوانه ښځې ذکر دې چه دهغې نامه خرقاء يا ريطه بنت عمرو وه [2] دې به دسحر نه ترغرمې پورې سپړسې تارکول بيا به ئې دا تارشوې سپړسې ټوټې کول .په آيت مبارک کښې وعدې ماتولومثال بيان

---

[1]) دحافظ ابن حجر رحمه الله داقوال دپاره اوګورئي فتح الباري :ج۸ص۲۸۷) علامه کرماني رحمه الله دقول دپاره اوګورئي شرح الکرماني :ج۱۷۱۷۶ دامام بخاري رحمه الله دقول دپاره اوګورئي التاريخ الکبير :ج ٤ص ۲۹٤ دابن حبان رحمه الله دقول دپاره اوګورئ کتاب الثقات :ج۶ص۴۶۷ و ج۸ص ۳۲۱ اودعلامه مزي دقول دپاره اوګورئي تهذيب الکمال ج۱۳ص۱۳۹ترجمة : ۲۸۶۶_

[2]) فتح الباري :ج۸ ص۳۸۷)_

كړي دي ، شيخ الاسلام مولاناشبيراحمد عثماني رحمه الله ليكي: يعنى وعده كول اوهغه ماتول داسې بې وقوفتوب دې لکه چه يوښځه توله ورځ سپړسې تار كړي اوبيا تارشوي سپړسې دمابنام په وخت كښې ذره ذره كړي په مكه كښې به يوې ليونې ښځې هم داسې كول مطلب دا چه معاهدې كلو صرف كچه تارپه شان ګڼړل چه كله اوغواړي نو يوځاۍ كړي اوكله اوغواړي نودخپل ګوتو په حركت سره بې پروانې سره ماته كړي . ډيره ناپوهي اوليونتوب دې، چه دخبراعتبار پاتې نه شوددنيا نظام به خراب شي دقول اواقرارپه پاندنى سره دعدل اوانصاف تله نيغه پاتې كيديشي . كوم قومونه چه دعدل اونصاف دقانون نه اخواشي اوصرف دخپل غرض اومقصد كارونه شروع كړي نودهغوى په نزد معاهدې صرف دماتولودپاره پاتې كيږي ،چرته چه معاهدقوم دخپل ځان نه كمزورې اوليدو نومعاهدات ني دردنى په ټوكړنى كښې اوغورزول .([1])

# ۱۹۸=باب قوله (وَمِنكُم مَّن يُرَدُّ إِلَى أَرْذَلِ الْعُمُرِ).

[۴۴۳۰] حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ حَدَّثَنَا هَارُونُ بْنُ مُوسَى أَبُو عَبْدِ اللَّهِ الأَعْوَرُ عَنْ شُعَيْبٍ عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ - رضى الله عنه - أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - كَانَ يَدْعُو «أَعُوذُ بِكَ مِنَ الْبُخْلِ وَالْكَسَلِ، وَأَرْذَلِ الْعُمُرِ، وَعَذَابِ الْقَبْرِ، وَفِتْنَةِ الدَّجَّالِ، وَفِتْنَةِ الْمَحْيَا وَالْمَمَاتِ». [ر: ۲۶۶۸]

ارزل عمرهغه عمرته وائى په كوم كښې چه انسان سراسردنورومحتاج وى ، دينه هغوى ﷺ پناه غوښتې ده .

# ۱۹۹=باب . سورة بَنِي إِسْرَائِيلَ

[۴۴۳۱] ([2]) حَدَّثَنَا آدَمُ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ قَالَ سَمِعْتُ عَبْدَ الرَّحْمَنِ بْنَ يَزِيدَ. قَالَ سَمِعْتُ ابْنَ مَسْعُودٍ - رضى الله عنه - قَالَ فِي بَنِي إِسْرَائِيلَ وَالْكَهْفِ وَمَرْيَمَ إِنَّهُنَّ مِنَ الْعِتَاقِ الأُوَلِ، وَهُنَّ مِنْ تِلاَدِي. قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ (فَسَيُنْغِضُونَ) يَهُزُّونَ. وَقَالَ غَيْرُهُ نَغَضَتْ سِنُّكَ أَىْ تَحَرَّكَتْ.

## سورة بَنِي إِسْرَائِيلَ

حضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه دسورة بنى اسرائيل ، سورة كهف اوسورة مريم متعلق اوفرمائيل چه دا داولې درجې دښكلې سورتونونه دى .يعنى دا دپخوانۍ زمانې په شروع

[1]) تفسيرعثمانى :ج۳۶۷فائده نمبر ٤_

[2]) اوخرجه البخاري ايضافى التفسيرباب سورة الانبياء رقم الحديث :٤٤٦٢ وباب تاليف القرآن رقم الحديث ٤٧٠٨ وهذا الحديث لم يخرجه احد من اصحاب السنة سوى البخارى _

کښې نازل شوې سورتونه دی زاودازما زوړ محفوظ مال دې عتاق: دعتق جمع ده .څه معنی چه ښکلې اوښخوانی دہ .تلاد پخوانی هغه مال چه کوم انسان سره دزړې زمانی راسې وی.

قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ (فَسَيُنْغِضُونَ) يَهُزُّونَ. وَقَالَ غَيْرُهُ نَغَضَتْ سِنُّكَ أَيْ تَحَرَّكَتْ. وَقَضَيْنَا إِلَى بَنِي إِسْرَائِيلَ ) أَخْبَرْنَاهُمْ أَنَّهُمْ سَيُفْسِدُونَ، وَالْقَضَاءُ عَلَى وُجُوهٍ (وَقَضَى رَبُّكَ) أَمَرَ رَبُّكَ، وَمِنْهُ الْحُكْمُ (إِنَّ رَبَّكَ يَقْضِي بَيْنَهُمْ)، وَمِنْهُ الْخَلْقُ (فَقَضَاهُنَّ سَبْعَ سَمَوَاتٍ). (نَفِيرًا) مَنْ يَنْفِرُ مَعَهُ. (وَلِيُتَبِّرُوا) يُدَمِّرُوا (مَا عَلَوْا). (حَصِيرًا) مَحْبِسًا مَحْصَرًا (حَقَّ) وَجَبَ (مَيْسُورًا) لَيِّنًا. (خِطْئًا) إِثْمًا، وَهُوَ اسْمٌ مِنْ خَطِئْتُ، وَالْخَطَأُ مَفْتُوحٌ مَصْدَرُهُ مِنَ الإِثْمِ، خَطِئْتُ بِمَعْنَى أَخْطَأْتُ. (تَخْرِقَ) تَقْطَعَ. (وَإِذْ هُمْ نَجْوَى) مَصْدَرٌ مِنْ نَاجَيْتُ، فَوَصَفَهُمْ بِهَا، وَالْمَعْنَى يَتَنَاجَوْنَ (رُفَاتًا) حُطَامًا (وَاسْتَفْزِزْ) اسْتَخِفَّ (بِخَيْلِكَ) الْفُرْسَانِ، وَالرَّجْلُ الرَّجَّالَةُ وَاحِدُهَا رَاجِلٌ مِثْلُ صَاحِبٍ وَصَحْبٍ، وَتَاجِرٍ وَتَجْرٍ. (حَاصِبًا) الرِّيحُ الْعَاصِفُ، وَالْحَاصِبُ أَيْضًا مَا تَرْمِي بِهِ الرِّيحُ وَمِنْهُ (حَصَبُ جَهَنَّمَ) يُرْمَى بِهِ فِي جَهَنَّمَ، وَهُوَ حَصَبُهَا، وَيُقَالُ حَصَبَ فِي الأَرْضِ ذَهَبَ، وَالْحَصَبُ مُشْتَقٌّ مِنَ الْحَصْبَاءِ وَالْحِجَارَةِ. (تَارَةً) مَرَّةً وَجَمَاعَتُهُ تِيَرَةٌ وَتَارَاتٌ (لَأَحْتَنِكَنَّ) لَأَسْتَأْصِلَنَّهُمْ يُقَالُ احْتَنَكَ فُلَانٌ مَا عِنْدَ فُلَانٍ مِنْ عِلْمٍ اسْتَقْصَاهُ. (طَائِرَهُ) حَظَّهُ. قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ كُلُّ سُلْطَانٍ فِي الْقُرْآنِ فَهُوَ حُجَّةٌ. (وَلِيٌّ مِنَ الذُّلِّ) لَمْ يُحَالِفْ أَحَدًا..

### د کلماتو تشریح:

**قوله: وَقَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ (فَسَيُنْغِضُونَ) يَهُزُّونَ. وَقَالَ غَيْرُهُ نَغَضَتْ سِنُّكَ أَيْ تَحَرَّكَتْ:** په آیت کښې دی ,,قُلِ الَّذِي فَطَرَكُمْ أَوَّلَ مَرَّةٍ فَسَيُنْغِضُونَ إِلَيْكَ رُءُوسَهُمْ ددې معنی يهزون دہ یعنی هغوی خپل سرونه خوزوی اوحضرت ابن عباس رضی الله عنهما غیرمعنی ابوعبید رحمه الله وئیلی دی «نغضت سنك» معنی تحرکت یعنی ستاغاښ اوخوزیدو.په مجرد کښې داباب ضرب اونصرنه استعمالیږی .نقض الشئ، تغغا: خوزیدل حرکت کول.ينغضون باب افعال نه متعدی دې په معنی دخوزیدلو اوحرکت کولو.

**قوله: (وَقَضَيْنَا إِلَى بَنِي إِسْرَائِيلَ أَخْبَرْنَاهُمْ أَنَّهُمْ سَيُفْسِدُونَ، وَالْقَضَاءُ عَلَى وُجُوهٍ (وَقَضَى رَبُّكَ) أَمَرَ رَبُّكَ، وَمِنْهُ الْحُكْمُ (إِنَّ رَبَّكَ يَقْضِي بَيْنَهُمْ)، وَمِنْهُ الْخَلْقُ (فَقَضَاهُنَّ سَبْعَ سَمَوَاتٍ):** په آیت کښې دی وَقَضَيْنَا إِلَى بَنِي إِسْرَائِيلَ فِي الْكِتَابِ لَتُفْسِدُنَّ فِي الْأَرْضِ مَرَّتَيْنِ وَلَتَعْلُنَّ عُلُوًّا كَبِيرًا په دې کښې دقضينا معنی اخبرنا ده یعنی موږ حضرت جبرائیل علیه السلام ته خبرکړې ووچه هغوی به فساد کوی . دلفظ قضا مختلف معنې راځی .

① حکم ورکول. لکه قضی ربك :ستا رب حکم ورکړو.

② فیصله کول. لکه ان ربك يقضي بينهم : ستارب دهغوی په مینځ کښې فیصله اوکړه.

③ پیدا کول. لکه فقضاهن سبع سوات یعنی الله تعالی اووه آسمانونه پیدا کړل.

اسماعیل بن احمد نیشاپوري.. کتاب الوجوه والنظائر، کښې لیکي چه لفظ قضا په قرآن کښې پنځلس معنو کښې استعمال شوي دي حافظ ابن حجر رحمه الله ددې تفصیل نقل کړي دي [۱]

قوله: (نَفِيرًا) مَنْ يَنْفِرُ مَعَهُ: په آیت کښې دی.. وَجَعَلْنٰكُمْ اَكْثَرَ نَفِيْرًا هغه خلقو ته وائی چه څوک چاسره تلونکی وی یعنی د دښمن د مقابلې د پاره یوخایٔ وتونکی خلق

قوله: (وَلِيُتَبِّرُوا) يُدَمِّرُوا (مَا عَلَوْا): په آیت کښې دی.. وَلِيُتَبِّرُوْا مَا عَلَوْا تَتْبِيْرًا یعنی چه په کوم څیز هغوی غالب راشی هغه هلاک اوبرباد کړی

قوله: (حَصِيرًا) مَحْبِسًا مَحْصَرًا: په آیت کښې دی وَجَعَلْنَا جَهَنَّمَ لِلْكٰفِرِيْنَ حَصِيْرًا د حصیر معنی ده محبس و محصر یعنی جیل او قید خانه

قوله: (حَقَّ) وَجَبَ): په آیت کښې دی.. فَحَقَّ عَلَيْهَا الْقَوْلُ فَدَمَّرْنٰهَا تَدْمِيْرًا پس په هغوی (یعنی هغه کلي والوباندې) حجت تمامیږی بیامونږ هغه کلی غرق (برباد) کړو. فرمانی چه په آیت کښې حق په معنی د وجب دې یعنی ثابته شوه. ختمه شوه اوبعضې مفسرینو تفسیر کړې دې وجب علیها العذاب.

قوله: (مَيْسُورًا) لَيِّنًا: په آیت کښې دی .. فَقُلْ لَّهُمْ قَوْلًا مَّيْسُوْرًا نو هغوی سره په نرمئی خبره کوه فرمانی چه په آیت کښې د میسور معنی ده لین یعنی نرم اومهین ده.

قوله: (خِطْئًا) إِثْمًا، وَهُوَ اسْمٌ مِنْ خَطِئْتُ، وَالْخَطَأُ مَفْتُوحٌ مَصْدَرُهُ مِنَ الْإِثْمِ، خَطِئْتُ بِمَعْنَى أَخْطَأْتُ: په آیت کښې دی.. اِنَّ قَتْلَهُمْ كَانَ خِطْاً كَبِيْرًا په دې کښې دخطاء معنی گناه ده کښې دلته درې خبرې بیان کړی دی اوبه دریواړو کښې غلطی شوېده. خطاء په کسره دخاء، ته هغه اسم مصدر ونیلی دې خطئت حالانکه هغه مصدر دې خطاء (په فتح دخاء) ته هغه مصدر ونیلې دې حالانکه هغه داخطاء اسم مصدر دې اوخطئت ته داخطات معنی کښې وئیلې دی حالانکه د ثلاثی مجرد نه ددې معنی په قصد سره گناه کول دی اوباب افعال نه بلاعمد گناه کول دی [۲]

دلته دعبارت په آخر کښې دی.. من الاثم خطئت بمعنی اخطاءت، په دې کښې تقدیم او تاخیر دې اصل عبارت داسې کیدل پکار دی.. خطئت من الاثم بمعنی اخطاءت یعنی خطئت چه دگناه په معنی کښې دې په معنی د اخطاءت دې دغه شان علامه عینی رحمه الله فرمائی .. ای خطئت الذی اخذ معناه من الاثم بمعنی اخطائت.

[۱] فتح الباری: ج۸ص۳۸۹_

[۲] عمدة القاری: ۱۹ص۲۰ وفی مختار الصحاح الخطء.. الذنب وهو مصدر (خطئ) بالکسر_

**قوله:** (تَخْرِقَ) تَقْطَعَ: په آيت كښې دى ,, وَلَا تَمْشِ فِي الْاَرْضِ مَرَحًا ۚ اِنَّكَ لَنْ تَخْرِقَ الْاَرْضَ وَلَنْ تَبْلُغَ الْجِبَالَ طُوْلًا » او په زمكه باندې په فخرسره مه ګرځه (ځكه) چه ته (په زمكه باندې پښه ايږدې) نو نه زمكه شلولې شې او نه خپل بدن اوږدولې شې چه دغرونواوچتوالى ته اورسې . فرمانى چه آيت كښې دلن تخرق معنى لن تقطع يعنى ته به زمكه پرې نكړې شى اوفاصله به پوره نه كړې شى ځكه چه زمكه ډيره لويه ده عرب وائى ,, فلان اخرق من فلان،، معنى فلانى دفلانى نه زيات سفراوكړو.

**قوله:** (وَاِذْ هُمْ نَجْوٰى) مَصْدَرٌ مِنْ نَاجَيْتُ، فَوَصَفَهُمْ بِهَا، وَالْمَعْنَى يَتَنَاجَوْنَ: په آيت كښې دى نَحْنُ اَعْلَمُ بِمَا يَسْتَمِعُوْنَ بِهٖٓ اِذْ يَسْتَمِعُوْنَ اِلَيْكَ وَاِذْ هُمْ نَجْوٰٓى اِذْ يَقُوْلُ الظّٰلِمُوْنَ اِنْ تَتَّبِعُوْنَ اِلَّا رَجُلًا مَّسْحُوْرًا په دې كښې نجوى دناجيت مصدر دې اوپه ,,هم.. باندې مبالغة ددې حمل كړې شوې دې اومعنى ده ,,واذهم يتناجون،، يعنى چه كله هغوى په خپل مينځ كښې پټې خبرې كوى

**قوله:** (رُفَاتًا) حُطَامًا: په آيت كښې دى.. وَقَالُوْٓا ءَاِذَا كُنَّا عِظَامًا وَّرُفَاتًا ءَاِنَّا لَمَبْعُوْثُوْنَ خَلْقًا جَدِيْدًا [1] د رفاتا معنى حطاما ده يعنى څه چه كوم وخت مونږ هډوكى جوړيږو اوذره ذره اوميده شونوبيابه مونږ ژوندى كولې شو.

**قوله:** (وَاسْتَفْزِزْ) اسْتَخِفَّ (بِخَيْلِكَ) الْفُرْسَانِ، وَالرَّجْلُ الرَّجَّالَةُ وَاحِدُهَا رَاجِلٌ مِثْلُ صَاحِبٍ وَصَحْبٍ، وَتَاجِرٍ وَتَجْرٍ: په آيت كښې دى وَاسْتَفْزِزْ مَنِ اسْتَطَعْتَ مِنْهُمْ بِصَوْتِكَ وَاَجْلِبْ عَلَيْهِمْ بِخَيْلِكَ وَرَجِلِكَ دابالكل امام دابوعبيده رحمه الله كلام نقل كړې دې داستفزز معنى استخف يعنى سپک كنړل. دحق لارې نه اخواكول. بخيلك نه شهسوار مراددې او رجل او رجالة جمع ده. ددې مفرد راجل دې لكه دصاحب جمع ده صحب او دتاجر جمع تجرراځى .دآيت مطلب دا دې اودهغوى نه چه په چاستا قدرت رسى خپل آواز(وسوسه) سره هغوى دحق لارې نه واړوه دهدايت دلارې نه هغوى اخواديخواكړه اوپه هغوى پسې خپل سواره اوپياده راوله په آيت كښې شيطان ته خطاب دې.

**قوله:** (حَاصِبًا) الرِّيحُ الْعَاصِفُ، وَالْحَاصِبُ أَيْضًا مَا تَرْمِي بِهِ الرِّيحُ وَمِنْهُ (حَصَبُ جَهَنَّمَ) يُرْمَى بِهِ فِي جَهَنَّمَ، وَهُوَ حَصَبُهَا، وَيُقَالُ حَصَبَ فِي الْأَرْضِ ذَهَبَ، وَالْحَصَبُ مُشْتَقٌّ مِنَ الْحَصْبَاءِ وَالْحِجَارَةِ: په آيت كښې دى اَوْ يُرْسِلَ عَلَيْكُمْ حَاصِبًا ثُمَّ لَا تَجِدُوْا لَكُمْ وَكِيْلًا حاصب سيلئي ته وائى اوحاصب هغه كانكراوشګې ته هم وائى كوم چه هوااوچت كړى اووئ غورزوى اوهم دې نه حصب جهنم ماخوذ دې چه په سورة انبياء كښې دې ,, اِنَّكُمْ وَمَا

---

[1]) قوله رفاتا قال مجاهد ترابا وقيل :حطاما والرفات كل مايكسرويبلى من كل شئ (تفسير البغوى: ج۳ص۱۱۸)

تَعْبُدُوْنَ مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ حَصَبُ جَهَنَّمَ اَنْتُمْ لَهَا وٰرِدُوْنَ يعنى ددوزخ خشاک ځکه چه هغوى به په دوزخ کښې غورزولې شى .اوحصب حصباء نه مشتق دې په معنى دکانړى ځکه چه کانړى او کانکر غورزولې شى په دې وجه دې ته حصب وائى داخبره دې ښکاره وى چه دلته داشتقاق نه اصطلاحى اشتقاق مراد نه دې لکه چه دفعل اشتقاق دمصدرنه کيږى بلکه اشتقاق نه صرف دلته مناسبت مراد دې عبارت کښې ..الحجارة،، د،،الحصباء،،تفسيردې.

**قوله:** (تَارَةً) مَرَّةً وَجَمَاعَتُهُ تِيَرَةٌ وَتَارَاتٌ: په آيت کښې دى.. اَمْ اَمِنْتُمْ اَنْ يُّعِيْدَكُمْ فِيْهِ تَارَةً اُخْرٰى تارة دمرة په معنى کښې دې ددې جمع تيرة اوتارات راځى

**قوله:** (لَأَحْتَنِكَنَّ) لَأَسْتَاصِلَنَّهُمْ يُقَالُ احْتَنَكَ فُلَانٌ مَا عِنْدَ فُلَانٍ مِنْ عِلْمٍ اسْتَقْصَاهُ: په آيت کښې دى .. لَئِنْ اَخَّرْتَنِ اِلٰى يَوْمِ الْقِيٰمَةِ لَاَحْتَنِكَنَّ ذُرِّيَّتَهٗ اِلَّا قَلِيْلًا دې کښې داحتنکن معنى دد زه به دهغه استيصال کوم. يعنى دبيخه به ئى راؤباسم [1]عرب وائى احتنك فلان ماعندفلان من علم ددې معنى ده استقصاء يعنى فلانکى سړى سره چه څومره علم ووفلانکى شاګردهغه ټول حاصل کړو، ددې اخرته اورسيدو اودائې راګير کړو.

**قوله:** قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ كُلُّ سُلْطَانٍ فِي الْقُرْآنِ فَهُوَ حُجَّةٌ: په آيت کښې دى .. فَقَدْ جَعَلْنَا لِوَلِيِّهٖ سُلْطٰنًا يوبل ځائ کښې دى وَّاجْعَلْ لِّيْ مِنْ لَّدُنْكَ سُلْطٰنًا نَّصِيْرًا حضرت ابن عباس رضي الله عنه فرمائى چه په قرآن کريم کښې دسلطان لفظ چرته چه هم راغلې دې هغه دحجت په معنى کښې دې

**قوله:** (وَلِيٌّ مِنَ الذُّلِّ) لَمْ يُحَالِفْ أَحَدًا..:په آيت کښې دى وَلَمْ يَكُنْ لَّهٗ وَلِيٌّ مِّنَ الذُّلِّ وَكَبِّرْهُ تَكْبِيْرًا يعنى دکمزورتى په وجه څوک دهغه امدادى نشته .. ولى من الذل،، تفسير کړې دې له يحالف احدا يعنى الله تعالى داسې نه دې چه دکمزورتى په بناچاسره وعده کړې وى اوڅوک ئى حليف جوړکړې وى اودضروت په وخت هغه دالله تعالى امداد له راشى ځکه چه الله تعالى دچامحتاج نه دې دهرقسم کمزورتى اونقص نه پاک اومنزه دې.

## ۲۰۰= باب قَوْلِهِ (أَسْرَى بِعَبْدِهِ لَيْلًا مِنَ الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ).

[۴۴۳۲] حَدَّثَنَا عَبْدَانُ حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ أَخْبَرَنَا يُونُسُ ح وَحَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ صَالِحٍ حَدَّثَنَا عَنْبَسَةُ حَدَّثَنَا يُونُسُ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ قَالَ ابْنُ الْمُسَيَّبِ قَالَ أَبُو هُرَيْرَةَ أُتِيَ رَسُولُ اللّٰهِ - صلى

[1] قال البغوى فى معالم التنزيل :ج۳ص۱۲۲) لاحتنکن ذريته اى لاستاصلنهم بالاضلال يقال احتنک الجراد الزوع اذا اكله وقيل هومن قول العرب حنک الدابة اذاشد فى حنکها الاسفل حبلا يقودها اى لاقودتهم كيف شئت وقيل لاستولين عليهم بالاغواء۔

الله عليه وسلم - لَيْلَةَ أُسْرِيَ بِهِ بِإِيلِيَاءَ بِقَدَحَيْنِ مِنْ خَمْرٍ وَلَبَنٍ، فَنَظَرَ إِلَيْهِمَا فَأَخَذَ اللَّبَنَ قَالَ جِبْرِيلُ الْحَمْدُ لِلَّهِ الَّذِي هَدَاكَ لِلْفِطْرَةِ، لَوْ أَخَذْتَ الْخَمْرَ غَوَتْ أُمَّتُكَ.

**قوله: الْحَمْدُ لِلَّهِ الَّذِي هَدَاكَ لِلْفِطْرَةِ:** يعنى فطرت اسلاميه لره هغوى ﷺ اختيار كړو، هدايت اوضلالت ئى لبن اوخمربه شكل كښې پيش كړې شونو هغوى ﷺ لبن اختيار كړه اوهدايت طرف ئى خوښ كړو. كه چرې هغوى ﷺ خمراختيار كړې وې نودابه دضلالت انتخاب وو اودهغوى ﷺ امت به په ګمراهئى كښې اخته شوې وو.

[۴۴۳۳] حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ صَالِحٍ حَدَّثَنَا ابْنُ وَهْبٍ قَالَ أَخْبَرَنِي يُونُسُ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ قَالَ أَبُو سَلَمَةَ سَمِعْتُ جَابِرَ بْنَ عَبْدِ اللَّهِ - رضي الله عنهما - قَالَ سَمِعْتُ النَّبِيَّ - صلى الله عليه وسلم - يَقُولُ «لَمَّا كَذَّبَنِي قُرَيْشٌ قُمْتُ فِي الْحِجْرِ، فَجَلَّى اللَّهُ لِي بَيْتَ الْمَقْدِسِ فَطَفِقْتُ أُخْبِرُهُمْ عَنْ آيَاتِهِ وَأَنَا أَنْظُرُ إِلَيْهِ». زَادَ يَعْقُوبُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ حَدَّثَنَا ابْنُ أَخِي ابْنِ شِهَابٍ عَنْ عَمِّهِ «لَمَّا كَذَّبَنِي قُرَيْشٌ حِينَ أُسْرِيَ بِي إِلَى بَيْتِ الْمَقْدِسِ». نَحْوَهُ. (قَاصِفًا) رِيحٌ تَقْصِفُ كُلَّ شَيْءٍ.

## ۲۰۱= باب قَوْلِهِ تَعَالَى (وَلَقَدْ كَرَّمْنَا بَنِي آدَمَ)

) كَرَّمْنَا) وَأَكْرَمْنَا وَاحِدٌ (ضِعْفَ الْحَيَاةِ) عَذَابَ الْحَيَاةِ وَعَذَابَ الْمَمَاتِ (خِلاَفَكَ) وَخَلْفَكَ سَوَاءٌ (وَنَأَى) تَبَاعَدَ (شَاكِلَتِهِ) نَاحِيَتِهِ، وَهْيَ مِنْ شَكْلِهِ (صَرَّفْنَا) وَجَّهْنَا (قَبِيلاً) مُعَايَنَةً وَمُقَابَلَةً، وَقِيلَ الْقَابِلَةُ لأَنَّهَا مُقَابِلَتُهَا وَتَقْبَلُ وَلَدَهَا (خَشْيَةَ الإِنْفَاقِ) أَنْفَقَ الرَّجُلُ أَمْلَقَ، وَنَفِقَ الشَّىْءُ ذَهَبَ (قَتُورًا) مُقَتِّرًا. (لِلأَذْقَانِ) مُجْتَمَعُ اللَّحْيَيْنِ، وَالْوَاحِدُ ذَقَنٌ. وَقَالَ مُجَاهِدٌ (مَوْفُورًا) وَافِرًا (تَبِيعًا) ثَائِرًا، وَقَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ نَصِيرًا. (خَبَتْ) طَفِئَتْ. وَقَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ (لاَ تُبَذِّرْ) لاَ تُنْفِقْ فِي الْبَاطِلِ ___ (ابْتِغَاءَ رَحْمَةٍ) رِزْقٍ (مَثْبُورًا) مَلْعُونًا (لاَ تَقْفُ) لاَ تَقُلْ (فَجَاسُوا) تَيَمَّمُوا. يُزْجِي الْفُلْكَ يُجْرِي الْفُلْكَ (يَخِرُّونَ لِلأَذْقَانِ) لِلْوُجُوهِ.

### د كلماتو تشريح:

**قوله: (قَاصِفًا) تَقْصِفُ كُلَّ شَيْءٍ:** په آيت كښې دى ,, فَيُرْسِلَ عَلَيْكُمْ قَاصِفًا مِّنَ الرِّيحِ قاصف هغه سخت طوفان ته وائى چه هر څيز د بيخ نه راوباسى اوغورزوى.

**قوله: (ضِعْفَ الْحَيَاةِ) عَذَابَ الْحَيَاةِ وَعَذَابَ الْمَمَاتِ:** په آيت كښې دى إِذًا لَّأَذَقْنَٰكَ ضِعْفَ الْحَيَوٰةِ وَضِعْفَ الْمَمَاتِ ،، ابو عبيده رحمه الله دهې تفسيركړې دې ,, ضعف عذاب الحياة وضعف عذاب الممات ابوعبيده رحمه الله او بعضو وئيلى دى ,, عذابا ضعفا فى الحياة وعذابا ضعفا فى الممات ،، موصوف عذابا حذف كړې دې صفت ،، ضعفا ، ئې ددې قائم مقام كړې دې اوبيائې ددې اضافت كړې دې[1]

[1]) قال البغوى فى معالم التنزيل: ج٣ص١٢٧ يعنى اضعفنالک العذاب... [بقيه حاشيه په راروانه صفحه..

قوله: (طَائِرَهُ) حَظَّهُ: په آیت کښې دی ..وَكُلَّ إِنْسَانٍ أَلْزَمْنَاهُ طَائِرَهُ فِي عُنُقِهِ وَنُخْرِجُ لَهُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ كِتَابًا يَلْقَاهُ مَنْشُورًا اومونږ هر (عمل کونکی) انسان عمل (که نیک وی که بد) دهغه دغاړې هار جوړ کړې ایخودې دې (یعنی دهرسړی عمل هغه سره لازم اوملزوم دې) فرمانی په آیت کښې د طائر معنی حظه ده دځه معنی چه حصې قسمت اونصیب ده

قوله: (خِلَافَكَ) وَخَلْفَكَ سَوَاءٌ: په آیت مبارک کښې دی وَإِذًا لَا يَلْبَثُونَ خِلَافَكَ إِلَّا قَلِيلًا اوهغه وخت به هغه هم ستانه پس نه ډیر کم وخت دپاره حصارشی فرمانی چه خلافت (په کسره دخاء اوخلفك په فتح دخاء) دواړه برابر دی

قوله: (وَنَأَى) تَبَاعَدَ: په آیت کښې دی وَإِذَا أَنْعَمْنَا عَلَى الْإِنْسَانِ أَعْرَضَ وَنَأَى بِجَانِبِهِ اوچه کله مونږ انسان ته نعمت ورکوو نومخ اړوی اوډډه کوی فرمانی آیت کښې ونائ په معنی تباعد دې یعنی لرې شو

قوله: (شَاكِلَتِهِ) نَاحِيَتِهِ، وَهِيَ مِنْ شَكْلِهِ: په آیت کښې دی قُلْ كُلٌّ يَعْمَلُ عَلَى شَاكِلَتِهِ د شاکلته تفسیرئې په ناحية سره کړې دې اومعنی ئې طرف ،لار اوطریقه ده اودا دشکل نه ماخوذ دې دشکل معنی ده مثل په شان (دلته زمونږ دمتن په نسخه کښې شکله داسم په ځای شکلته فعل دې دآیت مطلب دادې چه هر انسان په خپله خپله طریقه ،نیت . طبیعت اومذهب باندې روان دې اوهم په هغې باندې عمل کوی . (۱)

قوله: (قَبِيلًا) مُعَايَنَةً وَمُقَابَلَةً، وَقِيلَ الْقَابِلَةُ لِأَنَّهَا مُقَابِلَتُهَا وَتَقْبَلُ وَلَدَهَا: په آیت کښې دی ..أَوْ تَأْتِيَ بِاللَّهِ وَالْمَلَائِكَةِ قَبِيلًا په دې کښې دقبیلا معنی ده دسترګو په وړاندې. مخامخ به دې کافرانو ونیل چه مونږ دهغه وخت پورې ایمان نه راوړو ترکومې چه ته الله تعالی اوفرښتې زمونږ مخامخ نه راولې اومونږ هغوی مخامخ اونه وینو، دقبیلا معنی مخامخ ،نوهم په دې مناسبت وړاندې فرمانی چه دائی ته قابله ځکه وائی چه هغه دښځې مخامخ کښې دچاچه بچې پیدا کیږی اودهغې بچې اخلی اوقبلوی

قوله: (خَشْيَةَ الْإِنْفَاقِ أَنْفَقَ الرَّجُلُ أَمْلَقَ، وَنَفِقَ الشَّيْءُ ذَهَبَ: په آیت کښې دی إِذًا لَأَمْسَكْتُمْ .. خَشْيَةَ الْإِنْفَاقِ وَكَانَ الْإِنْسَانُ قَتُورًا ددې معنی ده فقر (انفق الرجل) ونیلې شی اذا املق کله چه هغه محتاج اوفقیرشی، نفق الشئ ونیلی شی کله چه هغه خیزختم شی .

قوله: (قَتُورًا) مُقَتِّرًا: په آیت کښې دی وَكَانَ الْإِنْسَانُ قَتُورًا قتور په معنی دمقتر دې یعنی بخیل .

---

...بقیه ازحاشیه گذشته] فی الدنیا والاخرة وقیل الضعف هوالعذاب سمی ضعفا لضاعف الالم فیه ـ

(۱) قال ابن عباس علی ناحیته قال الحسن وقتاده علی نیته وقال مقاتل :علی خلیقته قال الفراء علی طریقته التی جبل علیها وقیل علی السبیل الذی اختاره لنفسه وهومن الشکل یقال :لست علی شکل وشاکلتی وکلها لغات متقاربة (وانظر تفسیر البغوی :ج۳ص۱۳۳ـ

**قوله:** (لِلأَذْقَان) مُجْتَمَعُ اللَّحْيَيْنِ ، وَالْوَاحِدُ ذَقَنٌ: په آيت كښې دى يَخِرُّونَ لِلأَذْقَانِ سُجَّدًا ددواړو جامودو يوځاى كيدو ځاى ته ذقن وائى او ددې جمع اذقان راځى.

**قوله:** (تَبِيعًا) ثَائِرًا، وَقَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ نَصِيرًا: په آيت كښې دى ,, ثُمَّ لَا تَجِدُوا لَكُمْ عَلَيْنَا بِهِ تَبِيعًا دې كښې تبيعا د ثائر په معنى كښې دې، ثائر ديت غوښتونكې او بدله اخستونكى ته وائى او حضرت ابن عباس رضي الله عنه اوفرمائيل چه تبيعا په معنى نصير ادې .ديت طلب كونكې هم يو قسم مددګاروى.

**قوله:** (يَخِرُّونَ لِلأَذْقَانِ) لِلْوُجُوهِ: هغوى پرمخې راپريوزى ځكه چه ذقن هم په مخ كښې وى ددې دپاره الاذقان اوفرمائيلې شو.

## ۲۰۲=باب قَوْلِهِ (إِذَا أَرَدْنَا أَنْ نُهْلِكَ قَرْيَةً أَمَرْنَا مُتْرَفِيهَا)

[۴۴۳۴] حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ أَخْبَرَنَا مَنْصُورٌ عَنْ أَبِي وَائِلٍ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ قَالَ كُنَّا نَقُولُ لِلْحَيِّ إِذَا كَثُرُوا فِي الْجَاهِلِيَّةِ أَمِرَ بَنُو فُلَانٍ.

حَدَّثَنَا الْحُمَيْدِيُّ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ وَقَالَ أَمِرَ.

حضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه نه روايت دې چه كله به دجاهليت په زمانه كښې ديوې قبيلې خلق ډيرزيات شونو مونږ به وئيل ,, امربنوفلان،، يعنى فلانكې قبليه زياته شوه دحميدى په طريق كښې امربنوفلان دې .دامام بخارى رحمه الله مقصد آيت ،،امرنا فيها....، كښې مختلف قراتونو طرف ته اشاره كول دى.

په ''امرنا مترفيها،، كې مختلف قراءتونه: ① دجمهورو قراءت امرنا،، دې باب نصر نه ،،امر امرا.. معنى حكم وركول، په دې صورت كښې به دآيت ترجمه وى كله چه مونږ يو كلې هلاک كول غواړونو مونږ دهغې ښه ژوند تيرونكوته حكم وركوو .مطلب داچه دانبياء كرامو په ذريعه مونږ هغوى ته دايمان او اطاعت حكم وركوو .بياچه كله هغوى ګناه كوى نو مونږ هغوى تباه كوو .مولاناشبيراحمد عثمانى رحمه الله فرمائى :يعنى چه كله دبدوعملونو په وجه يو كلې تباه كول وى نوهسې ئى داسې ناڅاپى نه رانيسى اوهلاكوى ئى ،بلكه دحجت داتمام نه پس سزا وركولې شى .اول دپيغمبريادهغه دنائبينو په ذريعه زبانى خدائى احكام هغوى ته رسولې شى خاصكر دهغې ځائى مالدارانو او د اثر او رسوخ خلقوته دچا دمنلواونه منلو اثرپه اكثروخلقووى خبرولې شى كله چه دالوئ خلق سره دپوهې دالله تعالى پيغام ردكوى اوښه په ارت مټ نافرمانيانى كوى اود ټول كلى فضا مسموم اومكدر يعنى خرابوى هغه وخت هغه كلې خپل ځان ښكاره مجرم ثابت كړى اوداالله تعالى دعذاب حقدار شى .(۱)

---

(۱) تفسيرعثمانى :۳۷۶فائده نمبر ۶_

خلاصه دكلام داشوه چه ,,امرنامترفيها،، كښې دفسق اوفجورحكم مرادنه دې چه اشكال اوكړيشى چه الله تعالى څنګه دفسق اوفجورحكم وركوى قُلْ اِنَّ اللّٰهَ لَا يَاْمُرُ بِالْفَحْشَآءِ اوبلكه دحكم نه مراددانبياء په ذريعه مترفين ته دايمان اواطاعت حكم دې.([1])
دغه شان ديوكلى دتباهئ اوبربادئ اراده هله كولې شى كله چه هغوى په بدوعملونوكښې آخرى حد ته اورسى نوبيا داتمام حجت دپاره دهغې ځائ مالدارانوخلقوته دالله تعالى پيغام رسولې شى اوچه كله هغوى دا هيراوشاته ئې كړى نوپه هغوى عذاب راځى .داخوپه هغه صورت كښې دى كله چه د,,امرنا.. معنى دحكم كولودپاره راشى خودامرنامعنى دډير والى هم راځى لكه چه دلته دحميدى په طريق كښې امربنوفلان په معنى ,,كثير،، راځى په دې صورت كښې به ترجمه وى كله چه مونږ يوكلې هلاكول غواړونوهلته دمالدارانوشميرزياتوو. هغوى فسق اوګناه كوى نومونږ هغوى تباه كړو.

② قراءت دابن عباس رضي الله عنهما نه نقل كړيشوې دې,,امرنامترفيها،، امردباب سمع نه دې معنى ئې دوړاندې كيدلواوزياتيدلوده. دلته ددې معنى كثرنا ده متعدى ده يعنى دې كلى كښې مونږ دعيش پرستوخلقوشميرزياتوو دامتعدى اولازم دواړه قسمه استعماليږى وائى امربنوفلان فلانكې خاندان زيات شو. امرالله تعالى دې هغوى زيات كړى.

## ۲۰۳= باب (ذُرِّيَّةَ مَنْ حَمَلْنَا مَعَ نُوحٍ إِنَّهُ كَانَ عَبْدًا شَكُورًا)

[۴۴۲۵] حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ مُقَاتِلٍ أَخْبَرَنَا عَبْدُ اللَّهِ أَخْبَرَنَا أَبُو حَيَّانَ التَّيْمِيُّ عَنْ أَبِي زُرْعَةَ بْنِ عَمْرِو بْنِ جَرِيرٍ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ-رضى الله عنه- قَالَ أُتِيَ رَسُولُ اللَّهِ-صلى الله عليه وسلم- بِلَحْمٍ، فَرُفِعَ إِلَيْهِ الذِّرَاعُ، وَكَانَتْ تُعْجِبُهُ، فَنَهَسَ مِنْهَا نَهْسَةً ثُمَّ قَالَ « أَنَا سَيِّدُ النَّاسِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ، وَهَلْ تَدْرُونَ مِمَّ ذَلِكَ يُجْمَعُ النَّاسُ الأَوَّلِينَ وَالآخِرِينَ فِي صَعِيدٍ وَاحِدٍ، يُسْمِعُهُمُ الدَّاعِي، وَيَنْفُذُهُمُ الْبَصَرُ، وَتَدْنُو الشَّمْسُ، فَيَبْلُغُ النَّاسَ مِنَ الْغَمِّ وَالْكَرْبِ مَا لاَ يُطِيقُونَ وَلاَ يَحْتَمِلُونَ فَيَقُولُ النَّاسُ أَلاَ تَرَوْنَ مَا قَدْ بَلَغَكُمْ أَلاَ تَنْظُرُونَ مَنْ يَشْفَعُ لَكُمْ إِلَى رَبِّكُمْ فَيَقُولُ بَعْضُ النَّاسِ لِبَعْضٍ عَلَيْكُمْ بِآدَمَ فَيَأْتُونَ آدَمَ عليه السلام فَيَقُولُونَ لَهُ أَنْتَ أَبُو الْبَشَرِ خَلَقَكَ اللَّهُ بِيَدِهِ. وَنَفَخَ فِيكَ مِنْ رُوحِهِ، وَأَمَرَ الْمَلاَئِكَةَ فَسَجَدُوا لَكَ، اشْفَعْ لَنَا إِلَى رَبِّكَ، أَلاَ تَرَى إِلَى مَا نَحْنُ فِيهِ أَلاَ تَرَى إِلَى مَا قَدْ بَلَغَنَا فَيَقُولُ آدَمُ إِنَّ رَبِّي قَدْ غَضِبَ الْيَوْمَ غَضَبًا لَمْ يَغْضَبْ قَبْلَهُ مِثْلَهُ وَلَنْ يَغْضَبَ بَعْدَهُ مِثْلَهُ، وَإِنَّهُ نَهَانِي عَنِ الشَّجَرَةِ فَعَصَيْتُهُ، نَفْسِي نَفْسِي نَفْسِي، اذْهَبُوا إِلَى غَيْرِي

---

[1]) واختار الطبرى قراءت الجهور واختارفى تاويلها حملها على الظاهر وقال المعنى امرنا مترفيها بالطاعة فعصوا(فتح البارى :ج۸ص۳۹۵) وقال بعض السلف ان الامرفى قوله تعالى امرنامترفيها امرتكوينى قدرى بالفسق وقوله تعالى ان الله تعالى لايامربالفحشاء معناه نفى الامرالتشريعى فلامنافاة(تفسيرعثمانى :۳۷۶)_

، اذْهَبُوا إِلَى نُوحٍ، فَيَأْتُونَ نُوحًا فَيَقُولُونَ يَا نُوحُ إِنَّكَ أَنْتَ أَوَّلُ الرُّسُلِ إِلَى أَهْلِ الأَرْضِ، وَقَدْ سَمَّاكَ اللَّهُ عَبْدًا شَكُورًا اشْفَعْ لَنَا إِلَى رَبِّكَ، أَلَا تَرَى إِلَى مَا نَحْنُ فِيهِ فَيَقُولُ إِنَّ رَبِّي عَزَّ وَجَلَّ قَدْ غَضِبَ الْيَوْمَ غَضَبًا لَمْ يَغْضَبْ قَبْلَهُ مِثْلَهُ، وَلَنْ يَغْضَبَ بَعْدَهُ مِثْلَهُ، وَإِنَّهُ قَدْ كَانَتْ لِي دَعْوَةٌ دَعَوْتُهَا عَلَى قَوْمِي نَفْسِي نَفْسِي نَفْسِي اذْهَبُوا إِلَى غَيْرِي، اذْهَبُوا إِلَى إِبْرَاهِيمَ، فَيَأْتُونَ إِبْرَاهِيمَ، فَيَقُولُونَ يَا إِبْرَاهِيمُ، أَنْتَ نَبِيُّ اللَّهِ وَخَلِيلُهُ مِنْ أَهْلِ الأَرْضِ اشْفَعْ لَنَا إِلَى رَبِّكَ أَلَا تَرَى إِلَى مَا نَحْنُ فِيهِ فَيَقُولُ لَهُمْ إِنَّ رَبِّي قَدْ غَضِبَ الْيَوْمَ غَضَبًا لَمْ يَغْضَبْ قَبْلَهُ مِثْلَهُ وَلَنْ يَغْضَبَ بَعْدَهُ مِثْلَهُ، وَإِنِّي قَدْ كُنْتُ كَذَبْتُ ثَلَاثَ كَذَبَاتٍ - فَذَكَرَهُنَّ أَبُو حَيَّانَ فِي الْحَدِيثِ. نَفْسِي نَفْسِي نَفْسِي، اذْهَبُوا إِلَى غَيْرِي اذْهَبُوا إِلَى مُوسَى، فَيَأْتُونَ مُوسَى، فَيَقُولُونَ يَا مُوسَى أَنْتَ رَسُولُ اللَّهِ، فَضَّلَكَ اللَّهُ بِرِسَالَتِهِ وَبِكَلَامِهِ عَلَى النَّاسِ، اشْفَعْ لَنَا إِلَى رَبِّكَ أَلَا تَرَى إِلَى مَا نَحْنُ فِيهِ فَيَقُولُ إِنَّ رَبِّي قَدْ غَضِبَ الْيَوْمَ غَضَبًا لَمْ يَغْضَبْ قَبْلَهُ مِثْلَهُ، وَلَنْ يَغْضَبَ بَعْدَهُ مِثْلَهُ، وَإِنِّي قَدْ قَتَلْتُ نَفْسًا لَمْ أُومَرْ بِقَتْلِهَا، نَفْسِي نَفْسِي نَفْسِي، اذْهَبُوا إِلَى غَيْرِي، اذْهَبُوا إِلَى عِيسَى، فَيَأْتُونَ عِيسَى فَيَقُولُونَ يَا عِيسَى أَنْتَ رَسُولُ اللَّهِ وَكَلِمَتُهُ أَلْقَاهَا إِلَى مَرْيَمَ وَرُوحٌ مِنْهُ، وَكَلَّمْتَ النَّاسَ فِي الْمَهْدِ صَبِيًّا اشْفَعْ لَنَا أَلَا تَرَى إِلَى مَا نَحْنُ فِيهِ فَيَقُولُ عِيسَى إِنَّ رَبِّي قَدْ غَضِبَ الْيَوْمَ غَضَبًا لَمْ يَغْضَبْ قَبْلَهُ مِثْلَهُ، وَلَنْ يَغْضَبَ بَعْدَهُ مِثْلَهُ - وَلَمْ يَذْكُرْ ذَنْبًا - نَفْسِي نَفْسِي نَفْسِي، اذْهَبُوا إِلَى غَيْرِي اذْهَبُوا إِلَى مُحَمَّدٍ - صلى الله عليه وسلم - فَيَأْتُونَ مُحَمَّدًا - صلى الله عليه وسلم - فَيَقُولُونَ يَا مُحَمَّدُ أَنْتَ رَسُولُ اللَّهِ وَخَاتَمُ الأَنْبِيَاءِ، وَقَدْ غَفَرَ اللَّهُ لَكَ مَا تَقَدَّمَ مِنْ ذَنْبِكَ وَمَا تَأَخَّرَ، اشْفَعْ لَنَا إِلَى رَبِّكَ أَلَا تَرَى إِلَى مَا نَحْنُ فِيهِ فَأَنْطَلِقُ فَآتِي تَحْتَ الْعَرْشِ، فَأَقَعُ سَاجِدًا لِرَبِّي عَزَّ وَجَلَّ ثُمَّ يَفْتَحُ اللَّهُ عَلَيَّ مِنْ مَحَامِدِهِ وَحُسْنِ الثَّنَاءِ عَلَيْهِ شَيْئًا لَمْ يَفْتَحْهُ عَلَى أَحَدٍ قَبْلِي ثُمَّ يُقَالُ يَا مُحَمَّدُ ارْفَعْ رَأْسَكَ، سَلْ تُعْطَهْ، وَاشْفَعْ تُشَفَّعْ، فَأَرْفَعُ رَأْسِي، فَأَقُولُ أُمَّتِي يَا رَبِّ، أُمَّتِي يَا رَبِّ فَيُقَالُ يَا مُحَمَّدُ أَدْخِلْ مِنْ أُمَّتِكَ مَنْ لَا حِسَابَ عَلَيْهِمْ مِنَ الْبَابِ الأَيْمَنِ مِنْ أَبْوَابِ الْجَنَّةِ وَهُمْ شُرَكَاءُ النَّاسِ فِيمَا سِوَى ذَلِكَ مِنَ الأَبْوَابِ، ثُمَّ قَالَ وَالَّذِي نَفْسِي بِيَدِهِ إِنَّ مَا بَيْنَ الْمِصْرَاعَيْنِ مِنْ مَصَارِيعِ الْجَنَّةِ كَمَا بَيْنَ مَكَّةَ وَحِمْيَرَ، أَوْ كَمَا بَيْنَ مَكَّةَ وَبُصْرَى».
[ر: ٣١٦٢]

**د شفاعت حديث او ددې تشريح:** دا حديث شفاعت دې، امام بخارى رحمه الله كتاب الانبياء كښې هم ددې حديث تخريج كړې دې خودلته ئې دا حديث په تفصيل سره ذكر كړې دې. امام مسلم او امام ترمذى هم حديث شفاعت نقل كړې دې.[1]

[1]) الحديث اخرجه البخارى فى كتاب احاديث الانبياء باب قول الله تعالى ارسلنا نوحا الى قومه وباب وقول الله عزوجل واتخذالله ابراهيم خليلا وفى تفسير سورة بنى اسرائيل هنا ...[بقيه حاشيه په راروانه صفحه.

ددې حاصل دادې چه قيامت په ورځ به ميدان حشر کښې کله ټول خلق راجمع کړيشي اودهغه ځاى په خطرناکه ګرمئى اودلړزيدونکې ويرې دوجه نه به ناقابل برداشت تکليف اومصيبت کښې وى نودوى په مينځ کښې به مشوره اوشي چه يو داسې شخصيت له تلل پکار دى چه الله تعالى ته سفارش اوکړى ،نوخلق به حضرت آدم عليه السلام له راشى اوهغه ته به دسفارش دپاره اووائى خوهغه به انکار اوکړى اودحضرت نوح عليه السلام طرف ته دورتللو مشوره به ورکړى خلق به حضرت نوح عليه السلام له راشى حضرت نوح عليه السلام به ورته دحضرت ابراهيم عليه السلام مشوره ورکړى ،حضرت ابراهيم عليه السلام به ورته دحضرت موسى عليه السلام مشوره ورکړى .اوحضرت موسى عليه السلام به ورته دحضرت عيسى عليه السلام دپاره اووائى اوحضرت عيسى عليه السلام به ورته حضرت سروردوعالم محمد مصطفى ﷺ خواته دتلو مشوره ورکړى .نوخلق به نبى کريم ﷺ له راشى هغوى به دالله تعالى نه دسفارش کولودرخواست اوکړى ، حضوراکرم ﷺ به دعرش لاندې الله تعالى ته مخامخ په سجده پريوزى اودالله تعالى داسې تعريف اوثنابه بيانوى چه دهغوى ﷺ نه وړاندې به چاته هم د تعريف اوثنا داسې کلمې نه وى خودلې شوى .دنبى کريم ﷺ سفارش به قبول کړيشى اوالله تعالى به ارشاد اوکړى اې محمد: سر اوچت کړه غواړه تاته به درکولې شى سفارش کوه ستاسفارش به قبولې شى. حضور ﷺ به فرمائى امتى يارب امتى يارب،امتى يارب،، ارشادبه اوشى اې محمد ﷺ ته دخپل امت نه هغه کسان په چاچه حساب نشته دجنت ښى طرف دروازه باندې داخل کړه . دينه علاوه په باقى دروازو باندې هم دنوروخلقو سره داخليدلې شى .بيا حضوراکرم ﷺ اوفرمائيل په هغه ذات مې دې قسم وى دچادقدرت په قبضه کښې چه زما خان دې دجنت دغاړوبه دواړو طرفونوکښې مکه اوحميريامکه اوبصرى هومره فاصله ده

**قوله: (يُسْمِعُهُمُ الدَّاعِي ، وَيَنفُذُهُمُ الْبَصَرُ**: يعنى ميدان حشربه داسې هواروى چه په دې کښې اوازکونکې به ټولوته خپل اواز اورولې شى اوهرطرف ته نظررسولې شى .يعنى ټولوته کتلې شى .دلته لفظ ينفذهم باره کښې اختلاف دې چه دا دباب افعال نه دې که دمجرد نه دې. اختلاف دا دې چه دال سره دې که ذال سره ، د محدثينو حضراتو په نزد داکثرذال سره د مجرد نه. ينفذهم لولى يعنى نظربه په ټولوکښې نفوذ کولې شى . ابوحاتم سجستانى داپه دال سره ينفدهم لولى اوترجمه کوى ،،يبلغ اولهم واخرهم ،،يعنى هغه به نظراول اوآخرته رسولې شى (١) بيا دلته دنظرنه دمخلوق نظر مراد دې ابوعبيده رحمه الله دالله تعالى نظر مراد اخستې دې ليکن هغه قول راجح نه دې څکه چه دالله کتل ټولو خلقو ته په هرحال کښې محيط دى .که

...بقيه ازحاشيه گذشته] وفى كتاب التوحيد باب قول الله وجوه يومئذ ناضرة الى ربها ناظرة وفى كتاب الرقاق باب صفت الجنة والنار واخرجه مسلم فى كتاب الايمان باب اثبات الشفاعة واخراج الموحدين من النار :ج١ص١١ والترمذى فى صفة القيامة باب ماجاء فى الشفاعة رقم ٢٤٣٤_

(١) شرح مسلم للنووى :ج١ ص١١١) وفتح الملهم :ج١ص٢٦٧_٢٦٨ وفتح البارى :ج٨ص٣٩٦)_

خلق په يوميدان كښې وى يا په مختلفو مقاماتو كښې وى .دلته دخلقو نظر مراد دې ټول به په يوميدان كښې داسې جمع وى هر نظر به ټول ليديشى .(۱)

**قوله: وَتَدْنُو الشَّمْسُ:** اونمر به نزدې شى بعضې رواياتو كښې ,, قدر الميل،، اضافه هم ده.(۲)

يعنى ديوميل په اندازه به شى .راوى وئيلى دى چه دانشى متعين كيدې چه ددې ميل سره دمسافت ميل دې يامكحله اوسرمه دانۍ په مينځ كښې چه كوم سلائى وى هغې ته هم ميل وائى هغه مراد دې بهرحال كه دمسافت والا ميل هم مراد وى نوبيا هم دهغې دګرمى دسختوالى اندازه نشى كولې .نن دنمر فاصله په لاكهونو ميلونونه زياته ده خوددې په ګرمۍ اوسيزلوسره سرې ليونې كيږى نو هغه وخت به دګرمۍ څه حال وى .

**قوله: (وَإِنِّى قَدْ كُنْتُ كَذَبْتُ ثَلَاثَ كَذَبَاتٍ - فَذَكَرَهُنَّ أَبُو حَيَّانَ فِى الْحَدِيثِ:**

**د ثلاث كذبات تفصيل:** ددې دريو كذبات تفصيل په كتاب الانبياء كښې تيرشويدې هلته دروايت الفاظ دې ,,لم يكذب ابراهيم عليه السلام الاثلاث كذبات : ثنتين منهن فى ذات الله عزوجل **قوله**: انى سقيم وقوله بل فعله كبيرهم هذا ،وقال بيناهو ذات يوم وسارة ، اذاتى على جبار من الجبابرة ،فقيل له : ان هاهنا رجلا معه امراة من احسن الناس ،فارسل اليه ، فساله عنها فقال : من هذه ،؟ قال هذه اختى فاتى سارة قال ياسارة ليس على وجه الارض مؤمن غيرى وغيرك وان هذا سالنى عنك فاخبرته انك اختى فلاتكذبينى.(۳)دلته اشكال پيدا كيږى چه دحضرت ابراهيم عليه السلام متعلق قرآن اوفرمائيل,,وَاذْكُرْ فِى الْكِتٰبِ اِبْرٰهِيْمَ ۚ اِنَّهٗ كَانَ صِدِّيْقًا نَّبِيًّا اوصديق هغه چاته وائى چه دهغه رګونو كښې صدق ورننوتې وى ،دچانه چه د دروغو صادر كيدلو هډواحتمال باقى نه وى ،نوسره دصديق كيدو دحضرت ابراهيم عليه السلام نه د دروغو ارتكاب څنګه اوشو؟ ددې اشكال جواب دا دې چه په اصل كښې داكذب نه وو توريه ود. حضرت ابراهيم عليه السلام انى سقيم ،،اوفرمائيلو ددې نه دهغوى مطلب داووچه دخپل نه تللو دپاره څه ذليل پيش كولونه قاصريم كوم چه تاسواومنئى زه سقيم الحجة يم تاسونه شم قائل كولې ظاهره ده چه حضرت ابراهيم عليه السلام كه دا وئيلې چه تاسو داختر خوشحالو دپاره ځۍ اوهلته خوبه هم شرك كوئى دالله تعالى دتوحيد عقيدې خلاف به كوئى اوداجائز اوصحيح نه ده نوخلق به ددې خبرې دپاره هيڅ كله هم نه ووتيارشوى .(۴)

اوداهم ممكن دى چه انى سقيم نه وقتى توګه باندې په هغه وخت كښې بيمار كيدل مراد وى بلكه مطلب دا چه زۀ مستقبل كښې بيمار كيدونكې يم داسم فاعل صيغه دمستقبل دپاره په كثرت سره استعماليږى (۵)

(۱) فتح البارى (ج۸ص۳۹۶ وشرح مسلم للنووى :ج۱ص۱۱۱وفتح الملهم :۱ج ۳۹۷ص۳۹۸_
(۲) فتح البارى ،كتاب الرقاق باب صفة الجنة والنار:ج۱۱ص۴۳۲)_
(۳) صحيح البخارى (مع فتح البارى كتاب الانبياء باب واتخذ الله ابراهيم خليلا رقم :۳۳۵۸_
(۴) فتح البارى :ج۶ص۳۹۱ كتاب الانبياء باب واتخذ الله ابراهيم خليلا _
(۵)فتح البارى :ج۶ص۳۹۱ كتاب الانبياء باب واتخذ الله ابراهيم خليلا _

امام نووی رحمه الله نقل کړی دی چه حضرت ابراهیم علیه السلام واقعة هغه وخت بیماروو اودهغه تبه وه حافظ ابن حجر رحمه الله دابعید ګرځولې دې ځکه چه په هغه صورت کښې به بیا دانه صراحتا کذب وی اونه تعریضا (۱) اودا مطلب هم کیدې شی چه ستاسو شرکی حرکتونوسره موافقت کولو دپاره زما طبیعت تیارنه دې دهغوی سره موافق نه کیدل ئی بیمارئې سره تعبیرکړل علامه شبیراحمد عثمانی رحمه الله فَنَظَرَ نَظْرَةً فِي النُّجُومِ فَقَالَ إِنِّي سَقِيمٌ لاندې لیکی : دهغوی په قوم کښې دنجوم زور وو، حضرت ابراهیم علیه السلام هغوی ته دخودلوپه غرض ستوروته اوکتل اوونی فرمائل چه زماطبعیت ټیک نه دې (اوداسې په دنیاکښې څوک دې چه دهغه طبیعت به په هرقسم ټیک وی څه ناڅه دننه عوارض په بهرنی خو وی ،هم دا تکلیف څه کم وو چه هر وخت به ئې د قوم حالت کتلو او خفه کیدو به) یا دامطلب چه زه بیماریدونکې یم (بیماری نوم دې دمزاج دبرابر کیدونه اخوا کیدل ، نودمرګ نه وړاندې هرسړی ته داپیش کیدونکې دې) بهر حال دابرهیم علیه السلام مراد صحیح وو ستورو ته کتل او انی سقیم ونیلونه خلقودا مطلب اوګنړو چه دنجوم په ذریعه هغه دا معلومه کړه چه زردې بیماریدونکې یم .هغه خلق دمیلې دپاره دښارنه بهرتلل. داکلام اوریدلوسره حضرت ابراهیم علیه السلام ځان سره دبوتلونه معذور اوګنړلو نویوازې پریخودلواولاړل . دحضرت ابراهیم علیه السلام غرض هم داووچه ځان له یوه موقع ملاؤ شی نو ددې دروغژنو خدایانوخبر به واخلم بت خانې ته لاړلو اوبتانوته ئې خطاب اوکړلوچه دا خوراکونه اونذرونه ستاسو مخې ته پراته دې ولې نه خورئی سره ددې چه ستاسو شکلونه دخوراک کونکو دی .پورتنی تقریرنه معلومه شوه چه د حضرت ابراهیم علیه السلام انی سقیم وینا دواقعی مطلب په اعتبار سره دروغ نه وه اومخاطبینوچه کوم مطلب اوګنړلو دهغې په اعتبار سره خلاف واقعه وه . ددې دپاره په بعض احادیث صحیحه کښې په دې د کذب اطلاق کړې شوې دې حلانکه په حقیقت کښې مباح ده . لکه په حدیث هجرت کښې ,, ممن الرجل ،، دجواب باره کښې رسول الله اوفرمائیل ,,من الماء،، اودابوبکرصدیق رضی الله عنه دیوسوال په جواب کښې اوفرمائیل ،، رجل یهدینی السبیل ،، اودا توریه هم چونکه دابراهیم علیه السلام داوچتې مرتبې دشان په لحاظ خلاف اولی وه نوپه دې قاعده ,,حسنات الابرار سیئات المقربین ،، حدیث کښې داذنب ګرځولې شوې دې .(۲)

دغه شان قَالَ بَلْ فَعَلَهُ كَبِيرُهُمْ هَذَا فَاسْأَلُوهُمْ کښې هم توریه ده اودامشروط ده ,,إِنْ كَانُوا يَنْطِقُونَ سره مطلب دادې که چرې دابتان خبرې کولې شی نوبیابه دې لوئ داکار کړې وی اوکه خبرې نشی کولې نوبیا به بل چا داکارکړې وی .(۳)

(۱)فتح الباری :ج۶ص ۳۹۱ کتاب الانبیاء باب واتخذ الله ابراهیم خلیلا ـ

(۲) تفسیرعثمانی :۵۹۸ فائده نمبر۸ـ

(۳)فتح الباری :ج۶ص۳۹۲ کتاب احادیث الانبیاء باب واتخذالله ابراهیم خلیلاـ

علامه زمحشری رحمه الله فرمائی چه دحضرت ابراهیم علیه السلام مقصود دبت دپاره ددې کارثابتول نه دی بلکه داکارئی هم خپل طرف ته یوبلیغ تعریفی طریقه سره منسوب کول وو. کوم کښې چه کافرانوپورې خندل هم وو. داپه مثال سره داسې اوګنړئی چه تاسوبنکلې خطاط ئی، تاسویوتحریراولیکلوستاسویو بل ملګرې چه هغه له دقلم نیولوطریقه هم نه ورځی تانه تپوس اوکړی چه دا تحریرچالیکلې دې؟ ته هغه ته په جواب کښې اووائی داتا لیکلې دې په دې جواب کښې مقصد هیڅ چرې دانه وی چه دا واقعی هغه لیکلې دې بلکه په دې کښې دتحریر خپل طرف ته نسبت ګرځول مقصد دې اوورسره مخاطب سره توقه مسخره هم مقصد وی [1]

دغه شان حضرت ابراهیم علیه السلام اوفرمائیل قَالَ بَلْ فَعَلَهٗ كَبِيْرُهُمْ هٰذَا اهغوی له پوهیدل پکاروو چه داکارکونکې خو موجود دې نوبیا ولې تپوس کوی دې نه پس وړاندې حضرت ابراهیم علیه السلام خندا فرمائی فَسْـَٔلُوْهُمْ اِنْ كَانُوْا يَنْطِقُوْنَ.

امام کسائی علیه السلام ددې یوه بله توجیه کړې ده .چه ،،فعله،، ځان له جمله ده .کبیرهم ددې فاعل نه دې بلکه کبیرهم هذا مستقل جمله مستانفه ده یعنی فعله من فعله داکارئی اوکړو چاچه هم اوکړو اوددې بتانولوئ دا دې په دې توجیه کښې چه کوم تکلف دې هغه ظاهر دې .[2] شیخ الاسلام مولانا شبیراحمد عثمانی رحمه الله لیکی :یعنی زمانه دتپوس ضرورت نشته بلکه که دافرض کړې شی دا لوئ چه صحیح سالم ولاړ دې اودماتولو ځیزهم هغه سره دې داکارئی کړې وی نودبحث اوتحقیق په وخت کښې دالزام اوتبکیت په توګه دا دعوی کوم چه دې لوئ بت داتول واړه مات کړل اوس تاسوسره څه دلیل دې چه ده نه دی کړی . آیاپه دنیا کښې داسې نه کیږی چه لوئ ماران واړه اولوئ کبان واړه کبان خوری .لوئ باشاهان واړه حکومتونه تباه کوی .په دې وجه زمااوستاسوپه مینځ کښې بهترین صورت دا دې چه تاسو پخپله ددې معبودانو نه تپوس اوکړئ چه دا څه قصه شوې ده . که دوی چرته څه وینا کولې شی نویه داسې اهم معامله کښې به دې وینا سره زما د رښتیا او دروغوفیصله به اونه کړی

**ددې سلسلې یوه تنبیه:** زمونږ دتقریرنه معلومه شوه چه ،،بَلْ فَعَلَهٗ كَبِيْرُهُمْ هٰذَا ،، ویناکول دواقعه خلاف خبر ورکولو په توګه نه ووکوم ته چه حقیقتا دروغ اووئیلې شی بلکه دهغوی دتحقیق اوتجهیل دپاره یوفرضی احتمال ئی ددعوی په صورت کښې واخستلواودتعریض اوالزام کلام ئی کړې وو لکه چه په عام توګه بحث اومناظروکښې کیږی . دې ته دروغ نشی وئیلې اوپه ظاهرد درغو صورت معلومیږی ځکه په بعضې احادیثو کښې په دې باندې د لفظ کذب اطلاق کیږی مفسرینو ددې دپاره توجیه کښې نورهم محمل بیان کړی دی مګر زمونږ په نزد هم داتقریر ډیرصفابې تکلف او اقرب الی الروایات دې [3]

---

[1] تفسیر کشاف :۳۰ص ۱۲٤)_
[2] فتح الباری :ج۶ص ۳۹۲ کتاب الانبیاء باب واتخذ الله ابراهیم خلیلا _
[3] تفسیرعثمانی :٤۳۶ فائده نمبر ۱_

اودریمه خبره دحضرت ابراهیم علیه السلام خپلې بی بی حضرت ساره ته ،،هذه اختی،،ونیل دی دا هم توریه ده اومطلب داووچه داخوت دینیه په اعتبارسره دازما خورده .هغوی دا ګنړل لکه چه نسبی قرابت په اعتبار سره ئی خوربنائی
البته دلته یواشکال کیږی چه کله دا خبرې دروغ نه وې بلکه دتوریه په زمره کښې داخلې وې نوبیاحضرت ابراهیم علیه السلام دا په کذبات سره ولې تعبیر کړې ددې جواب دا دې چه دا توریې هم د حضرت ابراهیم علیه السلام دمرتبې داوچتوالی په اعتبار سره خلاف اولی وې په دې وجه په دې قاعده حسنات الابرار سیئات المقربین دا هغوی کذب اوګرخولې

**قوله: (یَا عِیسَی أَنتَ رَسُولُ اللَّهِ وَکَلِمَتُهُ أَلْقَاهَا إِلَى مَرْیَمَ وَرُوحٌ مِنْهُ**: حضرت عیسی علیه السلام الله تعالی په کلمه ,,کن،،سره پیدا کړې دې .دتوالد اوتناسل ظاهری واسطې نوبت دهغه په پیدا کیدو کښې نه دې راغلې شیخ محی الدین عربی رحمه الله لیکی چه کلمه وائی ،،لفظ وضع لمعنی مفرد،، ته .څنګه چه په کلمه کښې معنی پټه وی دغه شان په حضرت عیسی علیه السلام کښې حقیقت ملکیه مستور وو، صورة خوهغه بشرووپه هغه کښې حقیقت ملکیه موجودوو.

**نقش آدم معنی جبرائیل رسته از جمله هوا وقال وقیل**

ترجمه :یعنی په صورت کښې انسان خوپه حقیقت کښې دجبرائیل په صفاتوموصوف دې. نه دخواهشاتوغلبه اونه په قیل اوقال کښې حجت بازی .
اوحضرت عیسی علیه السلام ته خوکلمة الله ونیلې شوې دی اوقرآن ونیلی دی الیه یصعد الکلم الطیب په دې وجه هغوی آسمان ته اوچت کړیشو.
محی الدین ابن عربی رحمه الله وائی چه دحضرت عیسی علیه السلام دنیوی پیدائش دموردخیتې نه شوې دې لکه چه ,,وَکَلِمَتُهُ أَلْقَاهَا إِلَى مَرْیَمَ نه معلومیږی خو اصل مولد دهغه عالم قدس وو ددې دپاره الله تعالی تبارک وتعالی دلږې مودې نه پس هغه واپس خپل اصل وطن عالم قدس ته اوغوبنتلو.
**په ``کلمته القاها الی مریم وروح منه،، کې د روح متعلق د علماؤ اقوال** وړاندې فرمائی وَرُوحٌ مِنْهُ، یعنی الله په خپل خاص حکم دحضرت عیسی علیه السلام روح مخلوق من امرالله،، دا ،،من،، ابتدائیه دې تبعیضیه نه دې [1] غرض دا دې چه دحضرت عیسی علیه السلام په پیدائش کښې دمادې دخل

[1] (وروح منه : قیل هوروح کسائر الارواح الاان الله تعالی اضافه الی نفسه تشریفا وقیل الروح هو النفخ الذی نفخ جبرئیل علیه السلام فی درع مریم واضافه الی نفسه لانه کان یامره وقیل الروح الوحی (وانظرمعالم التنزیل :ج ۱ص۵۰۲ صورة النساء) ویحکی ان طبیبا نصرانیا ناظر علی بن الحسین الواقدی فقال له ان فی کتابکم ما یدل علی ان عیسی علیه السلام جزء منه تعالی وتلاهذه الایة فقرالواقدی قوله تعالی وسخرلکم مافی السموات وما فی الارض جمیعا منه فقا اذن یلزم ان یکون جمیع الانبیا ء جزء منه سبحانه وتعالی علواکبیرا فانقطع النصرانی فاسلم (روح المعانی ...[بقیه حاشیه په راروانه صفحه.

نشته ، دصلب والد دخل نشته . اودروح الوتل آسمانونو طرف ته وی ددې دپاره حضر عیسی ﷺ الله تعالى آسمان طرف ته اوچت کړو. دلته په روایت کښې دی چه حضرت عیسی ﷺ به اوفرمائی چه تاسو محمد ﷺ له لاړشئ نو خلق به دحضور اکرم ﷺ په خدمت کښې حاضرشی .یوروایت کښې دی چه حضرت عیسی ﷺ به پخپله خلقوسره دحضور اکرم ﷺ په خدمت کښې حاضریږی نو دې نه دیوحدیث مفهوم واضح کیږی کوم کښې چه هغوی ﷺ فرمائیلی دی چه عیسی ﷺ په ټولوپیغمبرانوکښې ماته نزدې دې [1] په عام توګه ددې مطلب دابیان کولې شی چه دعیسی ﷺ اوهغوی ﷺ په مینځ کښې بل نبی نه دې مبعوث شوې خوددې روایت په بناددې یومطلب دا هم شوچه په قیامت کښې د حضرت عیسی ﷺ اوحضوراکرم ﷺ قرب یعنی نزدیکت ظاهریږی په دې توګه چه دشفاعت د درخواست دپاره خلقوسره د نبی کریم ﷺ په خدمت کښې حضرت عیسی ﷺ هم راځی .نولکه په قیامت کښې دهغوی قرب دنبی کریم ﷺ سره وی .

**قوله: وَقَدْ غَفَرَ اللَّهُ لَكَ مَا تَقَدَّمَ مِنْ ذَنْبِكَ وَمَا تَأَخَّرَ:**

د ''**قد غفرالله لک ما تقدم من ذنبک وما تاخر**''، **تشریح:** حضرت شاه صاحب ﷫ فرمائی چه داخطاب تشریف دې اوددې مطلب دا دې چه الله تعالی هغوی ﷺ ته په دنیا کښې داتسلی ورکړې ده چه په آخرت کښې به ستاپه یوه خبره هم نیول نه کیږی نولکه هغوی ﷺ به دشفاعت اوسفارش دپاره دالله تعالی په دربار کښې پیش کیدیشی .[2] بعضې حضراتو وئیلی دی چه دکوموحضراتونه صدور د ذنب کیږی دهغوی مرتبه دهغې سره نشی برابریدلې دچانه چه صدور ذنب نه وی شوې .دنورو انبیاء کرامو نه دهغوی دمرتبې په اعتبار سره صدور د ذنب شوې وونوځکه هغوی دشفاعت جرات اونه کړې شواورسول الله ﷺ دصدورذنب نه محفوظ وو ددې دپاره هغوی ﷺ په شفاعت باندې تیار شو. حافظ ابن تیمیه اودهغوی په اتباع کښې حافظ ابن قیم ﷫ دا قاعده رد کړې ده چه دکوم سړی نه صدروذنب شوې وی هغه دهغه سړی برابرې دې نشی .دچانه چه صدور ذنب نه وی شوې .ځکه چه ډیر خلې دګناه صادریدو نه پس سړې توبه کوی نودهغه درجه دهغه سړی برابریدې شی دچانه چه ګناه نه وی صادرشوې بلکه زیاتیدې هم شی .امام بیهقی ,,مناقب شافعی،، کښې لیکلی دی چه ,, ماتقدم

---

...بقیه ازحاشیه گذشته] ج۶ص۲۵ سورة النساء) وقال ابن العربی فی احکام القرآن :ج۱ص۵۱۷ اختلف العلماء فیه علی ستة اقوال الاول انها نفخة فی جیب درعها وسمیت النفخة روحا لانها تکون من الریح الثانی ان الروح الحیاة الثالث ان معنی الروح رحمة الرابع ان روح صورة لماخلق الله تعالی آدم اخرج من صلبه ذریته وصور هم فعیسی من تلک الارواح ادخله فی مریم واختار هذا ابی بن کعب وقیل فی الخامس روح صورة صورها الله تعالی ابتداء وجهها فی مریم وقیل فی السادس سر روح منه یعنی من جبرئیل وهو معنی کلام الله القاها الیه وروح منه ای القاء الکلمة کان من الله ثم من جبرئیل _

[1] وفی جامع الاصول فی احادیث الرسول :ج۸ص۵۲۳) والفاظه انا اولی الناس بابن مریم فی الدنیا والاخرة.

[2] ولم تحت هذه الایة ولکنه ذکره فی فیض الباری : ج ٤ص ۹۱ تحت قوله تعالی ○○اعملوماشئتم ..._

من ذنبك،، نه هغه قصورمراد دې كوم چه دنبوت نه وړاندې صادر شوى وى او..ماتاخر،، نه مراد عصمت دې چه الله تعالى دنبوت وركولونه پس هغوى ﷺ معصوم جوړكړلو اوبيا:هغوى ﷺ نه هيڅ ګناه اوقصورصادر نه شو [1] بعضې حضراتو ونيلى دى چه درسول الله ﷺ وړاندينى اوروستوتولې خطاګانې الله تعالى معاف كړې وې ددې دپاره حضرت عيسى عليه السلام به دهغوى ﷺ په خدمت كښې دورتلو مشوره وركوى چه په دې مقام شفاعت كښې بالفرض كه څه تقصيرهم شوې وى نوهغه هم دعام معافې لاندې اول راغلې دى.[2]

**قوله**: فَأَقُولُ أُمَّتِي يَارَبِّ، أُمَّتِي يَارَبِّ: دلته دا شكال پيدا كيږى چه ټول مخلوق حضور اكرم ﷺ له ورغلواوهغوى دسفارش وعده هم فرمائيلې ،نوبياهغوى صرف دخپل امت سفارش ولې كوى اودنورو خلقو سفارش نه كوى ددې جواب دادې چه دلته په روايت كښې اختصار دې كنى حضور اكرم ﷺ به دحساب شروع كولودپاره دټولو خلقو سفارش كوى په رواياتوكښې ددې ذكرموجود دې .هغه به شفاعت كبرى وى دلته روايت كښې دخپل امت دپاره شفاعت صغرى ذكر دې.[3]

**قوله**: إِنَّ مَا بَيْنَ الْمِصْرَاعَيْنِ مِنْ مَصَارِيعِ الْجَنَّةِ كَمَا بَيْنَ مَكَّةَ وَحِمْيَرَ، أَوْكَمَا بَيْنَ مَكَّةَ وَبُصْرَى: دجنت په دوو دروازو كښې به دومره فاصله وى څومره چه دمكې اوحميرپه مينځ كښې ياوئى فرمائيل څومره چه دمكې اوبصرې په مينځ . دمختلف ښارونو نومونه هغوى ﷺ اخستى دى ، داپه دې اعتبار سره چه دكومې علاقې خلق هغوى ﷺ ته مخاطب دى هغوى دخپلوښارونوفاصله باندې پوهيږى دلته دا شك كيديشى چه دادومره لويه دروازه خوبه ښه نه معلوميږى .ددې جواب دا دې چه په اصل كښې ددروازو لوئې والې اووړوكوالى او ددې مناسبت اوښائسته والى تعلق اوانحصار دعمارت په لوئى والى وړوكوالى باندې وى .كه عمارت ډير لوئ وى نو وړه دروازه ښه نه ښكارى اوظاهره ده دجنت عمارت خوبه ډير عظيم وى نوپه دې وجه ددې دروازې هم لوئى وى

---

[1] داقول علامه نووى شرح مسلم ج١ص١٠٩ كښې قاضى عياض طرف ته منسوب كړې دې مناقب بيهقى زمونږ سره نشته البته دامام شافعى رحمه الله احكام القرآن كوم چه امام بيهقى جمع كړو په دې كښې دى سئل الشافعى عن قول الله عزوجل انا فتحنا لك فتحنامبينا ليغفرلك الله ماتقدم من ذنبك وماتاخرقال معناه (ما تقدم) من ذنب ابيك آدم وهبته لك (وماتاخر) من ذنوب امتك ادخلهم الجنة بشفاعتك (وانظر احكام القرآن للشافعى رحمه الله :٣٨ـ

[2] فتح الملهم :ج١ص ٣٦٤)ـ

[3] قوله يا محمد ادخل من امتك هذه القطعة فى الشفاعة الصغرى وكانت الاولى فى الكبرى لفتح باب الحساب وحاصله ان العالم مجموعه اذا احتاج الى شافع لم يسرعنهم مارابهم غير النبى صلى الله عليه وسلم واذا وصل الامرالى كل من الامم تكفل كل نبى لامته .......(فيض البارى : ٤ص١٩٨)ـ

## ۲۰۴= باب قَوْلِهِ (وَآتَيْنَا دَاوُدَ زَبُورًا)

[ ۴۴۳۲ ] حَدَّثَنِي إِسْحَاقُ بْنُ نَصْرٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ عَنْ مَعْمَرٍ عَنْ هَمَّامٍ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ -رضي الله عنه- عَنِ النَّبِيِّ -صلى الله عليه وسلم- قَالَ «خُفِّفَ عَلَى دَاوُدَ الْقِرَاءَةُ، فَكَانَ يَأْمُرُ بِدَابَّتِهِ لِتُسْرَجَ، فَكَانَ يَقْرَأُ قَبْلَ أَنْ يَفْرُغَ». يَعْنِي الْقُرْآنَ. [ر: ۱۹۶۷]

دحضرت داؤد علیہ السلام دپاره دزبور قراءت آسان کړې شوې وو هغه به دخپل خاروی دپاره دزین ترلو حکم ورکولو اودزین دتړلونه وړاندې به هغوی ټول زبور لوستلې وو. دامعجزه وه. علامه سیوطي رحمہ اللہ دبعضو بزرګانو متعلق نقل کړی دی چه هغوی به په یوه ورځ اوشپه کښې نهه خل قرآن پاک ختمولواوشیخ سهرودی علیہ السلام به یوه ورځ کښې.شپیته خل قرآن ختمولو. دحضرت شاه اسماعیل شهد باره کښې راغلی دی چه هغوی دمازیګرنه ترمابنامه پورې په ترتیل سره قرآن مجید ختم کړې وو.(۱)

**طئ زمان او طئ مکان**: دصوفیاؤ په اصطلاح کښې دې ته طی زمان،، وائی اویو وی ،،طی مکان ،، مثلا یوپه ډیر لږ وخت کښې ددې ځائی نه مکې معظمې ته اورسی .شیخ ابن عربی ،،فتوحات ،، کښې داقسم ډیر واقعات نقل کړی دی. یوه واقعه ئې لیکلې ده چه جوهری یوخل وده شو. خوب ئې اولیدو چه هغه بغداد ته تلې دې اوهلته ئې یوې ښځې سره واده کړې دې اودهغې نه دده ډیر بچی پیدا شوی دی. کله چه دخوب نه بیدار شو نوخه موده پس یوه ښځه دبغدادنه راغله اوهغې دعوی اوکړه چه جوهری هغې سره نکاح کړې ده اودا ماشومان دهغه دی. شیخ مجدد احمد سرهندی علیہ السلام ددې واقعه نه انکار کړې دې او دائې صحیح نه ده ګرځولې. مولانا انور شاه کشمیری علیہ السلام فرمائیلی دی چه زمایه نزد په دې کښې هیڅ بعد شته او د،،طی زمان،، دباب نه ئې دا ګرځولې ده.(۲)

## ۲۰۵= باب (قُلِ ادْعُوا الَّذِينَ زَعَمْتُمْ مِنْ دُونِهِ فَلَا يَمْلِكُونَ كَشْفَ الضُّرِّ عَنْكُمْ وَلَا تَحْوِيلًا).

[۴۴۳۷] (۳) حَدَّثَنِي عَمْرُو بْنُ عَلِيٍّ حَدَّثَنَا يَحْيَى حَدَّثَنَا سُفْيَانُ حَدَّثَنِي سُلَيْمَانُ عَنْ إِبْرَاهِيمَ عَنْ أَبِي مَعْمَرٍ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ (إِلَى رَبِّهِمُ الْوَسِيلَةَ) قَالَ كَانَ نَاسٌ مِنَ الإِنْسِ

---

(۱) فیض الباری :ج ٤ص۱۹۷_

(۲) فیض الباری :ج ٤ص۱۹۸_۱۹۹)_

(۳) اخرجه البخاری ایضا فی التفسیررقم الحدیث :٤٧١٥(مع الفتح) واخرجه مسلم فی التفسیر باب اولئک الذین یدعون یبتغون رقم الحدیث :۳۰۳ واخرجه النسائی فی السنن الکبری فی التفسیرباب قوله تعالی قل ادعوالذین زعمتم رقم الحدیث :۱۱۲۸۷_

يَعْبُدُونَ نَاسًا مِنَ الْجِنِّ، فَأَسْلَمَ الْجِنُّ، وَتَمَسَّكَ هَؤُلَاءِ بِدِينِهِمْ. زَادَ الْأَشْجَعِي عَنْ سُفْيَانَ عَنِ الْأَعْمَشِ. (قُلِ ادْعُوا الَّذِينَ زَعَمْتُمْ). [۴۴۳۸]

دآيت ترجمه ده تاسواووايئى چه راوغواړه هغه څوک په چا چه تاسو دالله تعالى نه سوا دمعبود ګمان كولو(كله چه هغه راؤغواړى) نونه به هغوى ستا تكليف كم كولې شى اونه به هغه بدلولې شى .حضرت عبدالله بن مسعود ﷺ ددې آيت په تفسيركښې فرمائى چه څه خلقوبه دپيريانو عبادت كولو. هغه پيريان خومسلمانان شو اودهغوى عبادت كونكى همدغه شان په شرک اوكفركښې اخته وو. دهغوى ذكرپه دې آيت كښې شوې دې چه هغه پيريان كوم چه دې خلقو معبودان جوړ كړې ووهغوى په هيڅ قسم نفع اونقصان باندې قدرت نه لرى .

## =۲۰۶ باب قَوْلِهِ (أُولَئِكَ الَّذِينَ يَدْعُونَ يَبْتَغُونَ إِلَى رَبِّهِمُ الْوَسِيلَةَ) الْآيَةَ.

[۴۴۳۸] حَدَّثَنَا بِشْرُ بْنُ خَالِدٍ أَخْبَرَنَا مُحَمَّدُ بْنُ جَعْفَرٍ عَنْ شُعْبَةَ عَنْ سُلَيْمَانَ عَنْ إِبْرَاهِيمَ عَنْ أَبِي مَعْمَرٍ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ - رضى الله عنه - فِي هَذِهِ الْآيَةِ (الَّذِينَ يَدْعُونَ يَبْتَغُونَ إِلَى رَبِّهِمُ الْوَسِيلَةَ) قَالَ نَاسٌ مِنَ الْجِنِّ {كَانُوا} يُعْبَدُونَ فَأَسْلَمُوا. [ر: ۴۴۳۷]

## =۲۰۷ باب (وَمَا جَعَلْنَا الرُّؤْيَا الَّتِي أَرَيْنَاكَ إِلَّا فِتْنَةً لِلنَّاسِ)

[۴۴۳۹] حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ عَمْرٍو عَنْ عِكْرِمَةَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رضى الله عنه (وَمَا جَعَلْنَا الرُّؤْيَا الَّتِي أَرَيْنَاكَ إِلَّا فِتْنَةً لِلنَّاسِ) قَالَ هِيَ رُؤْيَا عَيْنٍ أُرِيَهَا رَسُولُ اللَّهِ صلى الله عليه وسلم لَيْلَةَ أُسْرِيَ بِهِ (وَالشَّجَرَةَ الْمَلْعُونَةَ) شَجَرَةُ الزَّقُّومِ. [ر: ۳۶۷۵]

دلته درؤيا په تفسيركښې اختلاف دې ،حضرت عبدالله بن عباس ﷺ فرمائى چه ددې رؤيا نه مراد رؤيا عين د ې اوداهغه ده چه په ليلة السراء كښې حضور ﷺ ته دبيدارئى په حالت كښې دمسجدحرام نه مسجد اقصى پورې اوبيا دهغه ځائ نه داووآسمانونو پورې اوخودلې شو بعضونيلى دى چه درؤيا نه رؤيا بدر مراد دې په كوم كښې چه حضور ﷺ ته دقتل شوو دغورزيدو ځاى خودلې شوې دې .([1])

بعضې حضراتو وئيلى دى چه دې نه مراد رؤيا حديبيه ده چه حضور ﷺ ته په خوب كښې اوخودلې شوچه تا احرام تړلې دې اوتاسره دصحابه كرامودلې احرام تړلې دې اوټول دعمرې ادا كولو دپاره تلى ئى .([2])

بهرحال اقوال مختلف دى حضرت ابن عباس ﷺ چه حبرالامة او رئيس المفسرين دې په دې وجه دهغوى رائې ته به ترجيح وركولې شى .

---

[1]) روح المعانى :ج ۱۵ص۱۰۷_

[2]) الجامع الاحكام القران ج۱۰ص۲۸۲ خومذكوره دواړه قوله ضعيف دى ځكه چه آيت مكى دې او درؤيا بدر اوحديبيه تعلق مدينې سره دې ـ

## ۲۰۸ = باب قوله (إن قرآن الفجر كان مشهودا) .(۹)

قال مجاهد صلاة الفجر.

[۴۴۴۰] حدثني عبد الله بن محمد حدثنا عبد الرزاق أخبرنا معمر عن الزهري عن أبي سلمة وابن المسيب عن أبي هريرة رضي الله عنه عن النبي - صلى الله عليه وسلم - قال « فضل صلاة الجميع على صلاة الواحد خمس وعشرون درجة، وتجتمع ملائكة الليل وملائكة النهار في صلاة الصبح » . يقول أبو هريرة اقرءوا إن شئتم (وقرآن الفجر إن قرآن الفجر كان مشهودا) [ر: ۶۲۲]

**د قران الفجر د مشهور كيدو مختلف وجوه:** دسحريه وخت كښې قرآن لوستل مشهود ګرځولې شوى دې ددې مختلف وجوهات بيان کړې شوى دى .

① دابوهريره ﷺ په روايت كښې دى چه دسحريه وخت كښې دشپې او ورځې فرښتې حاضريږى .

② بعضې حضراتو وئيلى دى چه دې وخت كښې دالله تعالى دقدرت شواهد ښکاره کیږی ،دې وخت كښې دشپې تيارې دورځ په رڼړا كښې بدليږى اوخوب چه اخت الموت دې داشتباه اواستيقاظ سره بدليږى .[1]

③ بعضې حضراتووئيلى دى چه دې وخت كښې مونځ ګذار خپلې بسترې پريږدى اوحاضريږى په دې وجه دې ته مشهود اووئيلې شو .[2]

④ بعضې حضراتووئيلى دى چه په دې كښې دې خبرې طرف ته ترغيب دې چه دقرآن الفجر حق دا دې چه په دې كښې ګڼړو خلقو له حاضرى وركول پكار دى .[3]

مجاهد رحمه الله فرمائى چه دقرآن الفجر نه دسحر مونځ مراد دې ،اكثر ائمه تفسير ، ابن كثير، قرطبى ، اومظهرى رحمه الله همدغه مراد اخستې دې .[4]

## ۲۰۹ = باب قوله (عسى أن يبعثك ربك مقاما محمودا)

[۴۴۴۱] [5] حدثني إسماعيل بن أبان حدثنا أبو الأحوص عن آدم بن علي قال سمعت

---

[1]) روح المعانى : ج۱۵ص۱۳۷)_

[2]) روح المعانى : ج۱۵ص۱۳۷)_

[3]) روح المعانى : ج۱۵ص۱۳۷)_ التفسير ابن كثير (ج۳ص۵۵ وروح المعانى :ج ۸ ص۱۳۵ والتفسير الكبير:ج۲۱ص۲۷ والقرطبى : ج ۱۰ ص۳۰۲)

[4]) التفسير ابن كثير (ج۳ص۵۵ وروح المعانى :ج ۸ ص۱۳۵ والتفسير الكبير:ج۲۱ص۲۷ والقرطبى : ج ۱۰ ص۳۰۲) _

[5])واخرجه النسائى فى سنن الكبرى فى التفسير باب قوله تعالى عسى ...[بقيه حاشيه په راروانه صفحه.

ابْنَ عُمَرَ رضي الله عنهما يَقُولُ إِنَّ النَّاسَ يَصِيرُونَ يَوْمَ الْقِيَامَةِ جُثًا، كُلُّ أُمَّةٍ تَتْبَعُ نَبِيَّهَا، يَقُولُونَ يَا فُلَانُ اشْفَعْ، حَتَّى تَنْتَهِيَ الشَّفَاعَةُ إِلَى النَّبِيِّ - صلى الله عليه وسلم - فَذَلِكَ يَوْمَ يَبْعَثُهُ اللَّهُ الْمَقَامَ الْمَحْمُودَ.

ابوالاحوص نوم سلام بن سليم دې ،دوى روايت كوى دآدم بن على عجلى بصرى نه آدم بن على نه بخارى كښې صرف دغه يوروايت دې .

**ادم بن على** : ابن سعد ,,طبقات ،، كښې داهل كوفه طبقه ثانيه كښې دې ذكر كړې دې . هغه دحضرت عمربن الخطاب رضي الله عنه نه روايت كوى اوده نه سفيان ثورى وشعبه ، اسرائيل بن يونس ،ابراهيم بن طهمان ، امام بخارى اوامام نسائى روايت كوى .

امام جرح وتعديل يحيى بن معين د ده باره كښې فرمائى ,,ثقة،،

امام نسائى دهغوى باره كښې فرمائى ,,ليس به باس،،

ابن حبان ,,ثقات،، كښې دده ذكر كړې دې .

هشام بن عبدالملك بن مروان دحكومت په زمانه كښې دهغه وفات شوې دې .(١)

**د اذان نه پس دعا:**

[۴۴۴۲] حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَيَّاشٍ حَدَّثَنَا شُعَيْبُ بْنُ أَبِي حَمْزَةَ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ الْمُنْكَدِرِ عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ - رضي الله عنهما - أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - قَالَ «مَنْ قَالَ حِينَ يَسْمَعُ النِّدَاءَ اللَّهُمَّ رَبَّ هَذِهِ الدَّعْوَةِ التَّامَّةِ وَالصَّلَاةِ الْقَائِمَةِ، آتِ مُحَمَّدًا الْوَسِيلَةَ وَالْفَضِيلَةَ، وَابْعَثْهُ مَقَامًا مَحْمُودًا الَّذِي وَعَدْتَهُ، حَلَّتْ لَهُ شَفَاعَتِي يَوْمَ الْقِيَامَةِ».

رَوَاهُ حَمْزَةُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ عَنْ أَبِيهِ عَنِ النَّبِيِّ - صلى الله عليه وسلم -.

**په دعا كې د ''الدرجة الرفيعة،، ذكر نشته:** دلته په روايت كښې ,,آت محمدا الوسيلة والفضيلة ،،نه پس ،، والدرجة الرفيعة ،، ذكرنشته . په صحيح روايت كښې ددې لفظ ثبوت نه ملاويږى البته ابن السنى ،عمل اليوم والليلة ،،كښې ,,, الدرجة الرفيعة ،، ذكركړې دې (٢) دحافظ ابن تيميه رحمه الله په فتاوى كښې هم ددې لفظ ذكر موجود دې (٣) هغه تهول خويا سهوناسخ دى يا بيا

---

...بقيه ازحاشيه گذشته] ان يبعثك ربك مقاما محمودا رقم الحديث : ١١٢٩٤ وهذا الحديث لم يخرجه احد من اصحاب الستة سوى البخارى _

(١) دمذكوره تفصيل دپاره اوګورئى فتح البارى : ٨ص ٤٠٠ وتهذيب الكمال : ج٢ص٣٠٨_٣٠٩ وطبقات ابن سعد ]٦ ص٢٢٥ والجرح والتعديل :ج ١ص٢٦٧_

(٢) عمل اليوم الليلة :٨٨_

(٣) (فتاوى ابن ابن تيميه : ج١ص١٩٢ قال ملا على القارى فى كتابه : الصنوع فى معرفة الحديث الموضوع :١٠٠حديث : الدرجة الرفيعة فيمايقال بعد الاذان قال السخاوى لم اره ...[بقيه حاشيه په راروانه صفحه..

اصل مصنفينو ته دهوكه لګيدلې ځکه چه په يوصحيح سند کښې هم دا الفاظ نقل نه دى ، دا روايت کتاب الاذان کښې تشريح سره تيرشوې دې .

## ٢١٠= باب (وَقُلْ جَاءَ الْحَقُّ وَزَهَقَ الْبَاطِلُ إِنَّ الْبَاطِلَ كَانَ زَهُوقًا)

يَزْهَقُ يَهْلِكُ.

[٤٤٤٣] حَدَّثَنَا الْحُمَيْدِي حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنِ ابْنِ أَبِي نَجِيحٍ عَنْ مُجَاهِدٍ عَنْ أَبِي مَعْمَرٍ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ مَسْعُودٍ - رضي الله عنه - قَالَ دَخَلَ النَّبِي - صلى الله عليه وسلم - مَكَّةَ وَحَوْلَ الْبَيْتِ سِتُّونَ وَثَلاثُمِائَةِ نُصُبٍ فَجَعَلَ يَطْعُنُهَا بِعُودٍ فِي يَدِهِ وَيَقُولُ (جَاءَ الْحَقُّ وَزَهَقَ الْبَاطِلُ إِنَّ الْبَاطِلَ كَانَ زَهُوقًا) (جَاءَ الْحَقُّ وَمَا يُبْدِءُ الْبَاطِلُ وَمَا يُعِيدُ).

## ٢١١= باب (وَيَسْأَلُونَكَ عَنِ الرُّوحِ).

[٤٤٤٤] حَدَّثَنَا عُمَرُ بْنُ حَفْصِ بْنِ غِيَاثٍ حَدَّثَنَا أَبِي حَدَّثَنَا الأَعْمَشُ قَالَ حَدَّثَنِي إِبْرَاهِيمُ عَنْ عَلْقَمَةَ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ - رضي الله عنه - قَالَ بَيْنَا أَنَا مَعَ النَّبِي - صلى الله عليه وسلم - فِي حَرْثٍ وَهُوَ مُتَّكِئٌ عَلَى عَسِيبٍ إِذْ مَرَّ الْيَهُودُ، فَقَالَ بَعْضُهُمْ لِبَعْضٍ سَلُوهُ عَنِ الرُّوحِ، فَقَالَ مَا رَابَكُمْ إِلَيْهِ، وَقَالَ بَعْضُهُمْ لاَ يَسْتَقْبِلُكُمْ بِشَيْءٍ تَكْرَهُونَهُ فَقَالُوا سَلُوهُ فَسَأَلُوهُ عَنِ الرُّوحِ فَأَمْسَكَ النَّبِي - صلى الله عليه وسلم - فَلَمْ يَرُدَّ عَلَيْهِمْ شَيْئًا، فَعَلِمْتُ أَنَّهُ يُوحَى إِلَيْهِ، فَقُمْتُ مَقَامِي، فَلَمَّا نَزَلَ الْوَحْيُ قَالَ (وَيَسْأَلُونَكَ عَنِ الرُّوحِ قُلِ الرُّوحُ مِنْ أَمْرِ رَبِّي وَمَا أُوتِيتُمْ مِنَ الْعِلْمِ إِلاَّ قَلِيلاً) [ر: ١٢٥]

**قوله:** (مَا رَابَكُمْ إِلَيْهِ: بصيغة الماضى من الريب وذكره فى (النهاية) بضم الهاء (ما رابكم اليه) اى ما اربكم وحاجتكم الى سؤاله وفى نسخة (ما رابكم) اى فكركم وفى العينى قال الخطابى الصواب (ما اربكم) اى ماحاجتكم.

**د روح متعلق د يهوديانو سوال:** روايت کښې دى چه دحضور اکرم ﷺ نه يهوديانو دروح باره کښې سوال اوکړو نوحضور اکرم ﷺ هغوى ته هيڅ جواب ورنه کړو په دې کښې دقرآن شريف

...بقيه ازحاشيه گذشته] فى شئ من الروايات وقال الحافظ ابن حجر فى التلخيص الحبير: ج١ص٢١٠ وليس فى شئ من طرق هذا الحديث ذكر (الدرجة الرفيعة) وزيادة بعضهم فى اخر هذا الدعا (يا ارحم الراحمين) ليست ايضا فى شئ من طرق هذا الحديث وقال الشيخ عبد الفتاح ابوغده رحمه الله فى تعليقات المصنوع: ١٠١ فلاتقال ايضا ولاتزاد _

دا آيت نازل شو ,,وَيَسْئَلُوْنَكَ عَنِ الرُّوْحِ قُلِ الرُّوْحُ مِنْ اَمْرِ رَبِّيْ وَمَآ اُوْتِيْتُمْ مِّنَ الْعِلْمِ اِلَّا قَلِيْلًا،، كښې تنوين دتقليل دپاره دې يعنى ستاعلم اقل قليل دې ځكه چه ته علم دحواس په ذريعه حاصلوې اوحواس دروح احاطه نشى كولې نوته دروح متعلق ډير نه شي پوهيدلې. دوه عالم امر مجرد عن الماده دې ،روح دعالم خلق څيز نه دې چه داپه ماديات كښې اوشميرلې شى بلكه هغه دعالم امر څيز دې اومادې نه مجرد دې. علامه آلوسى رحمه الله په روح المعانى كښې فرمائى چه دعالم امر اوعالم خلق اصطلاح دروستو پيداوار دې ،په حضور ﷺ باندې چه كله قرآن نازليدلونو دا اصطلاح دروستو پيداوار دې ،په حضور ﷺ باندې چه كله قرآن نازليدلو نو داصطلاح نه وه نو دا اصطلاح په آيت قرآنى باندې منطبق كول صحيح نه دى. هغوى ليكى:

ثم ان لي في هذا الوجه وقفة فان الظاهران اطلاق عالم الامر على الكائن من غير تحصل من مادة وتولد من اصل ،واطلاق عالم الخلق على خلافه محض اصطلاح لايعرف العرب ولا يعرفونه وفي الاستدلال عليه بقوله تعالى ,, الاله الخلق والامر،، مالايخفى على منصف،،(1)

**عالم خلق اوعالم امر** : دعالم خلق اودعالم امر اصطلاح روستنئ پيداوار دې خوعلماء دقرآن آيت الاله الخلق والامرنه دا اصطلاح اخذ كړې ده. په دې دواړو اصطلاح باندې رڼړا اچولوسره شيخ الاسلام مولانا شبيراحمد عثمانى رحمه الله ليكى:

يوعالم دامرلفظ دې دكوم چه مناسب تشريح ضرورى ده. اودكوم پوهيدلوسره اميد دې چه دروح پيژندګلوكولو كښې به ډيرامداد ملاوشى. دسورة عراف الاله الخلق والامر ,, دامردخلق ،، په مقابله كښې ساتلې دې دځه نه چه مونږ په دې نتيجه باندې رسوچه دالله تعالى په نزد دوه مده بالكل جداجدا دى. يوخلق امر،مخلوقات په يومعين اومحكم نظام باندې چلول كوم ته چه تدبير اوتصريف وئيلې شى امرشو. اَللّٰهُ الَّذِيْ خَلَقَ سَبْعَ سَمٰوٰتٍ وَّمِنَ الْاَرْضِ مِثْلَهُنَّ يَتَنَزَّلُ الْاَمْرُ بَيْنَهُنَّ لِتَعْلَمُوْٓا اَنَّ اللّٰهَ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيْرٌ الله تعالى اول دآسمان اوزمكې ټوله مشينرى جوړه كړه كوم ته چه ,,خلق ،، وائى ،هره وړه اولويه پرزه ئى ښه په صحيح اندازه باندې تياره كړه كوم ته چه تقدير،، وئيلى شوې دې ،، قَدَّرَهٗ تَقْدِيْرًا،، ټولې پرزې يوځائ كړې اومشين فټ كړې شو كوم ته چه ,,تصوير ،،وائى وَلَقَدْ خَلَقْنٰكُمْ ثُمَّ صَوَّرْنٰكُمْ داټول افعال دخلق په مدكښې وو، اوس ضروت ووچه كوم مشين په كوم كاركښې لګول دى اودې لګولې شى آخرمشين چالوكولودپاره ,,امرالهى،،بجلى راپريخودې شوه. دې امرالهى ته اوفرمائيلى شو،، اِنَّمَآ اَمْرُهٗٓ اِذَآ اَرَادَ شَيْئًا اَنْ يَّقُوْلَ لَهٗ كُنْ فَيَكُوْنُ په ځائ كښې ډيرپه وضاحت سره ,,امركن ،،په خلق جسدباندې مرتب كولوسره ارشاد اوفرمائيلې شوپه خَلَقَهٗ مِنْ تُرَابٍ ثُمَّ قَالَ لَهٗ كُنْ فَيَكُوْنُ بلكه ظاهرېږى چه په قرآن كښې ,,كن فيكون،، مضمون په څومره ځايونوكښې راغلې دې عام توګه باندې دخلق اوابداع دذكرنه پس

---

(1) روح المعانى :ج١٥ص ١٥٤_

راغلی دي کوم سره چه خیال تیریږی چه کلمه د ,,کن،، خطاب خلق ، ،نه پس د تدبیر اوتصریف دپاره کیږی. والله اعلم.

بهرحال دلته دامرمعنی حکم دي اوهغه حکم دا دي لکه چه څنګه لفظ ,,کن،، سره تعبیرکړي شو او,,کن ، دجنس کلامه نه دي چه دالله تعالی صفت قدیم دي څنګه چه مونږ دهغه ټول صفات ئي دشک شبهې نه بغیر تسلیم کوو دکلام الله اوکلمة الله متعلق هم دغه مسلک ساتل پکار دی ،خلاصه مطلب داشوچه روح سره اکثروځایونوکښې په قرآن کښې دامرلفظ استعمال شوي دي ،مثلا قُلِ الرُّوْحُ مِنْ اَمْرِ رَبِّیْ ، ، وَکَذٰلِکَ اَوْحَیْنَآ اِلَیْکَ رُوْحًا مِّنْ اَمْرِنَا ، ، یُنَزِّلُ الْمَلٰٓئِکَةَ بِالرُّوْحِ مِنْ اَمْرِهٖ عَلٰی مَنْ یَّشَآءُ مِنْ عِبَادِهٖٓ،،

من عباده اول تیرشوچه امر,, دکلمې دکن نه یعنی هغه کلام انشائی کوم نه چه دمخلوقاتو تدبیر اوتصریف په دې طریقه باندې اوکړې شي په کوم چه دایجاد اوتکوین غرض مرتب وی نوثابته شوه چه دروح مبدا ء دالله تعالی صفت کلام دی کوم چه دصفت علم ماتحت دي. (۱)

**ایا د روح دحقیقت علم چاته کیدشي؟** : دبعضې متاخرینوصوفیه رائې ده چه دروح دحقیقت علم چاته نشی کیدي اودروح په حقیقت کښې بحث اوغور اوفکر کول دادب خلاف دی.(۲)

داخبره صحیح نه ده، یونبی یارسول ته دوحی په ذریعه یا یوولی ته دکشف اوحقیقت معلوملول دعام انسان دوس کارنه دي څنګه چه دروح خالق دصفاتوپه ذریعه پیژندل کیږی دغه شان روح هم دغه دصفاتوپه ذریعه پیژندلي کیږی.

متکلمین وائی چه روح یو لطیف نورانی بدن دي اودانسان په بدن کښې هغه داسې ورننوتلې دي کله عرق ګلاب کښې ، اواوربه کوئله کښې ورننوتلې وی .(۳)

فلسفیان وائی چه روح یوجوهر دي چه مجرد عن الماده دي . دبدن سره ددې تعلق دتصرف او تدبیر دي ،هغه په بدن کښې نه داخل دي نه خارج نه بدن سره متصل دي اونه منفصل . دمسلمانانونه امام راغب اصفهانی رحمه الله اوحجة الاسلام امام غزالی رحمه الله هم داقول اختیار کړې دي.(۴)

اودا هر څه په دې وجه وائی چه دروح دحقیقت صحیح علم نشته ددې دپاره ددې دپاسه د خارج کیدو یا داخل کیدو څه خاص حکم هم نشی لګولي.

**ایا روح اونفس یو دی که جدا جدا ؟** : بعضې علماء وائی چه روح اونفس یو دي ، ابن زید داکثرو علماء دا قول نقل کړې دي اوابن حبیب اندلسی دواړه جدا جدا ګرځولي دی . ابن منده

---

(۱) تفسیر عثمانی (۳۸۷فائده نمبر ٤ _

(۲) روح المعانی ج۱۵ص ۱۵٤ وفتح الباری :ج۸ ص۴۰۳_٤۰٤)_

(۳)روح المعانی :ج۱۵ص۱۵۵ علامه ابن قیم رحمه الله همدا قول صحیح ګرځولي دي اوپه دې باندې دیو سلونه زیات دلائل پیش کړی دی ؛اوګورئی کتاب الروح :۳۱۷_۲۹۰_

(۴) روح المعانی ج۱۵ص۱۵۶ _

د دواړو په مينځ فرق کولو سره فرمائى ,, ان النفس طيبة نارية والروح نورية روحانية ،، بعضو وئيلى دى النفس ناسوتية الروح لاهوتية ،،.[1]
علامه ابن قيم رحمه الله کتاب الروح کښې رمبنی قول اختيار کړى دى اوهم دائى راجح گرځولې دى[2]، ابن العربى دويم قول خق گرځولې دى .[3] اوعلامه آلوسى رحمه الله فرمائيلى دى چه حق دا دى چه دواړه من وجه متحد هم دى اومن وجه مختلف هم دى .[4]
**دمولانا انورشاه کشميرى رحمه الله تحقيق** : علامه شبيرا حمدعثمانى رحمه الله روح مجر ديا جسم نورانى لطيف کيدومتعلق دمولانا انورشاه کشميرى رحمه الله په حواله سره ليکى :
پاتې شوه دامسئله چه روح جوهر مجرد دې لکه څنگه چه اکثرحکماء قديم او دصوفيه مذهب دې ياجسم نورانى لطيف لکه چه دجمهورو اهل حديثو وغيره رائې ده په دې کښې زماپه نزد قول فيصل هغه دې کوم چه دبقية السلف بحرالعلوم علامه سيد انورشانه صاحب رحمه الله فرمائيلې دى په الفاظو دعارف جامى دلته درې څيزونه دى
① هغه جواهر چه په هغې کښې ماده اوکميت دواړه وى لکه زمونږ بدنونه ماديه .
② هغه جواهر چه په هغې کښې ماده نه وى صرف کميت وى کوم ته چه صوفيه اجسام مثاليه وائى
③ هغه جواهر چه دماده اوکميت دواړو نه خالى وى کوم ته چه صوفيه ارواح وائى ،هغه دصوفيه په نزدبدن مثالى سره يادېږى چه کله په بدن مادى کښې درگډېږى اوبدن مادى په شان اندامونه لرى ، دا روح دمادى بدون نه کله جدا کيږى اوددې جدائې په حالت کښې هم يوقسم مجهول الکيفيت علاقه بدن سره ساتى دڅه په وجه چه په بدن باندې دمرگ حالت نه شروع کيږى لکه دحضرت على رضى الله عنه دوينا موافق چه بغوى ,, الله يتوفى الانفس حين موتها،، په تفسير کښې نقل کړو هغه وخت روح پخپله جدا کيږى مگر ددې شعاع بدن ته رسى او دژوندى پاتې کيدو سبب جوړېږى لکه نمر چه په لاکهونوميله لرې د شعاگانو په ذريعه زمکه گرمه ساتى ،بهرحال دشرع خاوندان چه کله روح ثابتوى نوصوفيه ته ددې نه انکار نشته بلکه هغوى ددې دپاسه يوبل روح مجر د منى په کوم کښې چه هيڅ استحاله نشته بلکه ددغه روح مجر هم يوبل روح وى او په آخره کښې دکثرت هغه ټوله سلسله راغونډه شى ,,امرربى،، په وحدت باندې ختم شى نو دانکار ضرورت نشته .[5]
**يو اشکال اودهغې جواب** : دلته چاته دا اشکال کيديشى چه روح ته په ماقبل کښې جوهر مجرد يا جسم نورانى اووئيلې شو اوقرآن ديته ,,امرربى،، گرځولې دې ، دامرنه مراد د ,,کن ،،

---

[1] روح المعانى ج١٥ص١٥٧_٥٨
[2] کتاب الروح لابن قيم :٣٤٨،٣٥١وروح المعانى ج١٥ص١٥٨_
[3] فتح البارى ج ٨ ص٤٠٣_
[4] روح المعانى ج١٥ص١٥٨_
[5] تفسيرعثمانى: ٣٨٨ فائده نمبر ٤_

حكم دې چه دكلام يوقسم دې نودا حكم جوهر مجرد يا جسم نورانى لطيف شكل څنګه اختيار ولې شى ؟ ددې اشكال جواب وركولوسره مولانا شبير احمد عثمانى رحمه الله فرمائى داداسې اوګنړئى چه ټول عاقلان په دې متفق دى چه مونږ په خوب كښې كوم اشكال اوصور وينو بعضې وختونو كښې هغه صرف زمونږ خيالات وى چه درياب زمرې غر وغيره په شكلونو كښې ښكارى .اوس دغور كولومقام دې چه خيالات چه اعراض دى اودماغوسره قائم دى هغه څنګه جواهر اوجسام جوړشو اوڅنګه په هغې كښې داجسامو لوازم اوخواص پيداشو.كله چه ديوسړى په قوت مصوره كښې هغه دومره طاقت ايخودې دې چه هغه دخپل طاقت موافق غير مجسم خيالاتوته بدنى ډانچه ورواچوى اوپه هغې كښې هم هغه خواص اوآثار دالله تعالى په حكم سره پيدا كړى چه په عالم بيدارئى كښې اجساموسره تړلې وو نوآيا دې ورې نمونې كتلوسره مونږ دومره نه شو پوهيدلې چه ممكن ده دقادر مطلق اومصور برحق جل وعلا امر بې كيف سره دصفت قائمه بذاته تعالى كيدو سره په يو يا ډيرو صورتونو كښې ښكاره سشى ، داصورتونه مونږ په ارواح ،فرښتې يا څه بل نوم باندې يا دوو، هغه ارواح ملائكه وغيره ټول حادث دى او امرالهى ، ،په حال دقديم پاتې شو نوهيڅ شبه نشته چه روح انسانى ,,امربى،په حال دقديم پاتې شونوهيڅ شبه نشته چه روح انسانى ,,امرربى ، ،مظهردې . داضرورى نه دى چه دمظهرټول احكام اوآثار په ظاهره باندې جارى وى.([1])

**د روح قسمونه** : بعضې حضراتو دروح دوه قسمونه بيان كړې دى ،يوروح طبى اوبل روح شرعى ،په دې آيت كښې دروح شرعى ذكركړې دې اوهمدغه روح دشرعى اعمالو مكلف دې . حضرت شاه ولى الله رحمه الله ليكلى دى چه روح طبى مركوب دې او روح شرعى راكب دې. دروح طبى نه اخلاط اربعه پيدا كيږى .([2])

قاضى ثناء الله پانى پتى رحمه الله فرمائى دروح دوه قسمونه دى .علوى اوسفلى .روح علوى مادې نه مجرد دالله تعالى يومخلوق دې دكوم دحقيقت پيژندګلو چه مشكل ده، اهل كشف ته ددې مقام دعرش دپاسه خودلې كيږى څكه چه هغه دعرش نه مه ډير لطيف دې ، روح علوى په نظر كشفى ښكته پورته يا په پنځو درجوكښې محسوس كيږى ، قلب ،روح ،سر،خفى ، اخفى داټول دعالم امر دلطائف نه دى .

او روح سفلى هغه بخار لطيف دې چه دانسانى بدن عناصر اربعه اور اوبه خاروه هوا نه پيدا كيږى اوهم دې ورح سفلى ته نفس وئيلې كيږى .دغه شان انسان د لسو څيزونو مجموعه ده په كوم كښې چه پنځه په عالم خلق اوپنځه عالم امر سره متعلق دى .قلب روح سرخفى اخفى ت تعلق عالم امر يره او اور اوبه خوره او هوا دې خلورونه پيدا كيدونكى بخار تعلق عالم خلق سره دى . الله تعالى روح سفلى كوم ته چه نفس وائى داوراح علويه مذكوره آئينه جوړه كړې ده ددې عكس هم د ددې روح سفلى په آئينه كښې راځى اود ارواح علويه آثار اوكيفات په دې

---

[1]) تفسيرعثمانى: ٣٨٨ فائده نمبر ٤ _

[2]) حجة الله البالغة مع ترجمه اردودو نعمة الله السابغة : ج١ص٣٨ _

کښې منتقل کوی اوهم دغه آثار کوم چه په نفوسوکښې پیدا کیږی دهریو فرد دپاره ارواح ونیلې شی.[1]

**ایا په روح باندې مرګ راځی؟** : په دې سلسله کښې داهل علم اختلاف دې ، دبعضوخیال دې چه روح باندې مرګ راځي خکه چه روح نفس انسانی نوم دې اوپه هرنفس باندې مرګ راتلل دقرآن دآیت نه ثابت دې كُلُّ نَفْسٍ ذَآئِقَةُ الْمَوْتِ كُلُّ مَنْ عَلَيْهَا فَانٍ ، کله چه په ملائکه باندې مرګ راځی نوږ په ارواح بشریه باندې به په طریقه اولی مرګ راتلې شی [2] خود علماء دیوبندې خیال دې چه په روح باندې مرګ نه راځی خکه چه دانسانی بدن نه دروح جدا کیدلونه پس دهغه په نعمتونو یا عذاب کښې کیدل داحادیث صریحه نه ثابت دی دکوم تقاضا چه دا ده چه په روح باندې مرګ نه راځی ګنی بیا دروح په نعمت اوعذاب کښې کیدل څه معنی لری ؟ باقی په کومو نصوصوکښې چه په هرڅیز باندې دمرګ راتلو ذکر دې هغه په خپل ځای صحیح دی خو دبدن نه روح جدا کیدل مرګ سره تعبیر کولې شی علامه آلوسی رحمه الله لیکی :

موت الروح هو مفارقتها الجسد ،فان ارید بموتها هذ القدر فهی ذائقة الموت وان اریدانها تعدم وتضمحل فهی لاتموت مفارقة ماشاء الله تعالى ثم تعود الى الجسد وتهلى معه في نعيم اوعذاب ابدالابدين ودهر الداهرين،،[3] قرآن یوبل ځائی کښې دکافرانواشکال نقل کړی دې . وَقَالُوا أَءِذَا ضَلَلْنَا فِي الْأَرْضِ أَءِنَّا لَفِي خَلْقٍ جَدِيدٍ ددې نه پس ئې ددې جواب ورکړو ,,قُلْ يَتَوَفَّاكُم مَّلَكُ الْمَوْتِ الَّذِي وُكِّلَ بِكُمْ ثُمَّ إِلَىٰ رَبِّكُمْ تُرْجَعُونَ،، حضرت شاه عبدالقادر رحمه الله اشکال اوکړو چه دلته په اشکال اوجواب کښې مطابقت نشه ،بیائی پخپله اوفرمائیل چه کافرانومرګ عدم محض ګنړلوالله تعالی جواب ورکړو چه مرګ عدم محض نه دې بلکه روح یوه مقرره فرښته راوباسی اواوړی ،بالکل هغه نه فنا کیږی.[4]

**دلته په ایت کې د روح نه څه مراد دې؟** : دکوم روح باره کښې چه یهودیانو سوال کړې وو دهغې نه کوم روح مراد دې؟ په دې سلسله کښې ډیر زیات اقوال دی.

① روح انسانی ② روح حیوانی ③ جبرائیل علیه السلام ④ حضرت عیسی علیه السلام ⑤ قرآن، ⑥ یوخاص مخلوق ⑦ وحی [5]امام رازی اوامام قرطبی رحمه الله روح انسانی والاقول ته ترجیح ورکړې ده .[6] علامه قرطبی یوه خبره بله هم کړې ده چه سوال کونکې خویهودی وو اویهودیان حضرت عیسی علیه السلام ته روح ونیلونه منکر دی په دې وجه حضرت عیسی علیه السلام مراد نه دې، دغه شان

---

[1] تفسیر مظهری :ج ۵ص۴۸۵)_
[2] روح المعانی : ۱۵ص۱۵۹)_
[3] روح المعانی :۱۵ص۱۵۹)_
[4] تفسیرعثمانی :۵۵۳ فائده نمبر ۷_
[5] فتح الباری ج ۸ص۴۹۲ وتفسیر کبیر ج۲۱ص۳۸_۳۹_
[6] تفسیر کبیر :ج۲۱ص۳۶ والجامع لاحکام القرآن :ج ۱۰ ص ۳۲۴_

هغوی دحضرت جبرائیل علیه السلام دفرښتي کیدوقائل نه دی نو به دې وجه هغه هم مرادنه دې حافظ ابن قیم رحمه الله فرمانیلی دی چه روح انسانی یو داسې څیزدې کوم چه ټول منی ، ددې تذکره چه قرآن کوم ځائ هم کړې ده هلته ددې دپاره لفظ ,,نفس ،، استعمال کړې دې د روح لفظ ئې نه دې استعمال کړې کوم نه چه ثابتیږی چه دکوم روح باره کښې چه هغه سوال کړې دې دهغې نه هم هغه روح مراد دې دکوم ذکرچه په آیت مبارک کښې ,,یوم یقوم الروح والملائکة صفا،، دې یعنې جبرائیل امین روح المعانی مراد نه دې .[1] خو حافظ ابن حجر رحمه الله دحافظ ابن قیم خبره مرجوح گرخولې ده اوفرمائی چه راجح هم دغه دی چه سوال دانسانی روح متعلق وو[2]

## ۲۱۲= باب (وَلَا تَجْهَرْ بِصَلَاتِكَ وَلَا تُخَافِتْ بِهَا)

[۴۴۴۵] [3]: حَدَّثَنَا يَعْقُوبُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ حَدَّثَنَا هُشَيْمٌ حَدَّثَنَا أَبُو بِشْرٍ عَنْ سَعِيدِ بْنِ جُبَيْرٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ - رضی الله عنهما - فِي قَوْلِهِ تَعَالَى (وَلَا تَجْهَرْ بِصَلَاتِكَ وَلَا تُخَافِتْ بِهَا) قَالَ نَزَلَتْ وَرَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - مُخْتَفٍ بِمَكَّةَ، كَانَ إِذَا صَلَّى بِأَصْحَابِهِ رَفَعَ صَوْتَهُ بِالْقُرْآنِ فَإِذَا سَمِعَهُ الْمُشْرِكُونَ سَبُّوا الْقُرْآنَ وَمَنْ أَنْزَلَهُ، وَمَنْ جَاءَ بِهِ، فَقَالَ اللَّهُ تَعَالَى لِنَبِيِّهِ - صلى الله عليه وسلم - (وَلَا تَجْهَرْ بِصَلَاتِكَ) أَيْ بِقِرَاءَتِكَ، فَيَسْمَعَ الْمُشْرِكُونَ، فَيَسُبُّوا الْقُرْآنَ، (وَلَا تُخَافِتْ بِهَا) عَنْ أَصْحَابِكَ فَلَا تُسْمِعُهُمْ (وَابْتَغِ بَيْنَ ذَلِكَ سَبِيلًا)

[۴۴۴۶] [4]: حَدَّثَنِي طَلْقُ بْنُ غَنَّامٍ حَدَّثَنَا زَائِدَةُ عَنْ هِشَامٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ عَائِشَةَ - رضی الله عنها - قَالَتْ أُنْزِلَ ذَلِكَ فِي الدُّعَاءِ.

دلته د حضرت ابن عباس رضی الله عنهما د رومبی روایت نه معلومیږی چه دا آیت د مونځ د قراءت باره کښې نازل شوې دې او وروستو د حضرت عائشې رضی الله عنها د روایت نه معلومیږی چه دا آیت د دعا باره کښې نازل شوې دې،[5] په ظاهر په دواړو کښې تعارض معلومیږی.

---

[1] کتاب الروح :۲۴۳وفتح الباری :ج۸ص۴۰۳_

[2] فتح الباری :۸ص۴۰۳_

[3] وایضا اخرجه فی التوحید باب قوله تعالی وانزله بعلمه رقم الحدیث :۷۴۹ وباب قوله تعالی واسروا قولکم رقم الحدیث :۷۵۲۵ وباب قول النبی صلی الله علیه وسلم الماهربالقرآن مع سفرة الکرام لبرر رقم الحدیث :۷۵۴۷واخرجه مسلم فی الصلاة باب التوسط فی القرآءة فی الصلاة الجهریة رقم الحدیث : ۴۴۶واخرجه الترمذی فی کتاب التفسیر باب ومن سورة نبی اسرائیل رقم الحدیث :۳۱۴۶ واخرجه النسائی فی السنن الکبری باب صفة الصوة رقم الحدیث :۱۰۸۴_

[4] واخرجه فی الدعوات باب الدعاء فی الصلاة رقم الحدیث :۶۳۲۷ (مع الفتح) وفی التوحید باب واسروا قولکما واجهروابه رقم الحدیث ۷۵۲۷(مع الفتح) وهذ الحدیث من افراده (عمدة القاری :ج ۱۹ص۳۵)_

[5] د حضرت ابن عباس رضی الله عنهما نه هم ددې مفهوم یو روایت منقول دې لکه ...[بقیه حاشیه په راروانه صفحه.

ددې يو جواب خودادې چه دعا چونکې جز د مونځ او جزء د قراءت دې، دلته جزء ونيلو سره کُل مراد اخستې دې د دعا نه هم مراد د مونځ قراءت دې.(١)
او دويم جواب دا هم کيدې شي چه ممکن ده د آيت نزول دوه ځل شوې وی يوځل د مونځ د قراءت باره کې اودويم ځل د دعا باره کې.

## ٢١٣- باب تفسير سورة الكهف

سُورَةُ الْكَهْفِ وَقَالَ مُجَاهِدٌ تَقْرِضُهُمْ [١٧] تَتْرُكُهُمْ وَكَانَ لَهُ ثُمُرٌ [٣٠٣] ذَهَبٌ وَفِضَّةٌ وَقَالَ غَيْرُهُ جَمَاعَةُ الثَّمَرِ بَاخِعٌ [٦] مُهْلِكٌ أَسَفًا [٦] نَدَمًا الْكَهْفُ الْفَتْحُ فِي الْجَبَلِ وَالرَّقِيمُ الْكِتَابُ مَرْقُومٌ [المطففين: ٢٠] مَكْتُوبٌ مِنَ الرَّقْمِ [٩] رَبَطْنَا عَلَى قُلُوبِهِمْ [١٣] أَلْهَمْنَاهُمْ صَبْرًا لَوْلَا أَنْ رَبَطْنَا عَلَى قَلْبِهَا شَطَطًا إِفْرَاطًا الْوَصِيدُ [١٨] الْفِنَاءُ جَمْعُهُ وَصَائِدُ وَوُصُدٌ وَيُقَالُ الْوَصِيدُ الْبَابُ مُؤْصَدَةٌ [البلد: ٢٠ والهمزة: ٨] مُطْبَقَةٌ آصَدَ الْبَابَ وَأَوْصَدَ بَعَثْنَاهُمْ [١٩] أَحْيَيْنَاهُمْ أَزْكَى [١٩] أَكْثَرُ وَيُقَالُ أَحَلُّ وَيُقَالُ أَكْثَرُ رَيْعًا قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ أُكُلَهَا وَلَمْ تَظْلِمْ [٣٣] لَمْ تَنْقُصْ وَقَالَ سَعِيدٌ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ الرَّقِيمُ اللَّوْحُ مِنْ رَصَاصٍ كَتَبَ عَامِلُهُمْ أَسْمَاءَهُمْ ثُمَّ طَرَحَهُ فِي خِزَانَتِهِ فَضَرَبَ اللَّهُ عَلَى آذَانِهِمْ فَنَامُوا وَقَالَ غَيْرُهُ وَأَلَتْ تَئِلُ تَنْجُو وَقَالَ مُجَاهِدٌ مَوْئِلًا [٥٨] مَحْرِزًا لَا يَسْتَطِيعُونَ سَمْعًا [١٠١] لَا يَعْقِلُونَ

## سورة الكهف

**د کلماتو تشريح:**

**قوله: وَقَالَ مُجَاهِدٌ: تَقْرِضُهُمْ تَتْرُكُهُمْ:** په آيات کښې دی "واذا غربت تقرضهم ذات الشمال" يعنې د نمر د ډوبيدو په وخت کښې هغه پريږدی او ګس طرف ته کوزيږی، مطلب دا دې چه د نمر ډوبيدو په وخت کښې هم په هغوی باندې دهوپ اوګرمی نه پريوځی د مجاهد رحمه الله دا تعليق حنظلی رحمه الله موصولاً ذکر کړې دې.(٢) علامه شبيراحمد عثمانی رحمه الله ليکی: "الله تعالی په خپل قدرت کامله سره هغه ته د داسې ځائ طرف ته لارخودنه اوکړه چرته چه په امن اواطمينان سره آرام کوی، نه د ځائ د تنګيدونه زړه ويريږی اونه ئې يو وخت نمر تنګ کړی، غار د دننه نه کولاؤ او هوا دار وو اولکه څنګه چه ابن کثير رحمه الله ليکلی دی، دشمال طرف ته کيدو په وجه په داسې شکل او صورت واقع دې چه په هغې کښې به نمر د ضرورت

---

...بقيه ازحاشيه گذشته] چې علامه عينی ليکلی دی: وروی عن ابن عباس رضی الله عنهما مثل ما روی عن عائشة رواه ابن مردويه من حديث اشعث.عن عكرمة عن ابن عباس نزلت هذه الآية "ولا تجهر بصلاتک" في الدعاء.. (وانظر عمدة القاری ١١٩\٣٥)

(١) عمدة القاری ١١٩\٣٥)

(٢) (عمدة القاری: ١٩/٣٦-

مطابق رسيدو اوبغير دَ څه تكليف وركولونه به وتلو. (١)

**قوله: وَكَانَ لَهُ ثُمُرٌ: ذَهَبٌ وَفِضَّةٌ وَقَالَ غَيْرُهُ: جَمَاعَةُ الثَّمَرِ:** " وَفَجَّرْنَا خِلَالَهُمَا نَهَرًا، وَكَانَ لَهُ ثُمُرٌ" په دې كښې دوه قرأته دى، بعضې كښې قرأت ثُمُرٌ (ثا او دَ ميم دَ پيش سره) دَ كوم معنى چه سره زر او سپين زر ده، دَ عاصم قراءت ثَمَرٌ (دَ ثا او ميم دَ زبر سره) دې په معنى دَ ميوې. دَ دې متعلق مجاهد رحمه الله نه غير يعنى قتاده رحمه الله وئيلى دى چه داد ثُمُرٌ (په پيشونوسره) جمع ده اودَ ثَمَرٌ ثَمَرَةٌ جمع ده، ثَمَرَةٌ واحد دې، دَ دې جمع ثَمَرٌ بيادَ دې جمع ثِمَارٌ او بيادَ دې جمع ثُمُرٌ ده.

**قوله: بَاخِعٌ: مُهْلِكٌ:** په آيت مبارك كښې دى " فَلَعَلَّكَ بَاخِعٌ نَفْسَكَ عَلَى آثَارِهِمْ إِن لَّمْ يُؤْمِنُوا بِهَٰذَا الْحَدِيثِ أَسَفًا " كيديشى چه تاسودَ هغوى نه روستو خپل ځانونه هلاك كونكې ئى دَ غم نه. كه چرې دا خلق دا مضمون (قرآن) باندې ايمان راوڼرى. امام فرمائى چه په آيت كريمه كښې " بَاخِعٌ" په معنى "مُهْلِكٌ " يعنى هلاك كونكې دې.

**قوله: أَسَفًا: نَدَمًا:** په ذكرشوى آيت شريف كښې دى "إِن لَّمْ يُؤْمِنُوا بِهَٰذَا الْحَدِيثِ أَسَفًا " په دې كښې "أَسَفًا" په معنى "نَدَمًا" يعنى دَ پښيمانتيا په وجه تاسو دَ خپل نفس هلاك كونكې ئى، دا تفسير دَ ابوعبيده دې. حضرت قتاده "أَسَفًا" تفسير "حَزَنًا" سره كړې دې يعنى دَ غم دَ وجه نه تاسو خپل ځانونه هلاك كونكې ئى.

**قوله: الْكَهْفُ: الْفَتْحُ فِي الْجَبَلِ:** په آيت كښې دى "أَمْ حَسِبْتَ أَنَّ أَصْحَابَ الْكَهْفِ وَالرَّقِيمِ كَانُوا مِنْ آيَاتِنَا عَجَبًا" آيا ته دا خيال كوې چه كهف او رقيم والا زمونږ په عجائباتو كښې څه دَ حيرانتيا څيز وو، كهف غار ته وائى. علامه شبير عثمانى ليكى:

**د اصحاب كهف قصه:** دَ الله تعالى دَ لوئې قدرت په لحاظ دَ اصحاب كهف قصه چه وړاندې ذكر ده، عجيبه نه ده، او كومه چه دَ حد نه زياته عجيبه اوګنړلې شى، زمكه، آسمان، سپوږمۍ، نمر وغيره پيداكول، دَ دوئ محكم نظام قائمول، انسان ضعيف البنيان يعنى دَ كمزورى بنياد خاوند ته په ټولوباندې فضيلت وركول، په انسانانو كښې انبياء كرام راليګل، دَ هغوى لږ او كمزورې ډلې دَ لويولويو كبركونكو په مقابله كښې كامياب جوړول، خاتم الانبياء او رفيق غار حضرت ابوبكرصديق رضي الله عنه دَ دښمنانو نه راويستل، په غار ثوركښې درې ورځې حصارول، دَ كافرانو دَ غاردَ خلې پورې راتلل، بيادَ هغوى ناكامه واپس كيدل، آخر دَ كورونوپريخودونكو يوموټې بې آسرې خلق ئى په ټول جزيرة العرب بلكه مشرق او مغرب كښې په دومره لږه موده كښې غالب او كامياب كړل. آيا دا قسمه بې

---

(١) فوائدعثمانى فائده ٨ ص ٣٩٤)

شمیره څیزونه دَ اصحاب کهف قصه نه څه کم عجیبه دی؟
حقیقت دا دې چه یهودو مشوره ورکړې وه چه دَ محمد ﷺ نه دَ امتحان دَ پاره درې سوالونه اوکړئی، روح څه څیز دې؟ دَ اصحاب کهف څه قصه ده؟ اودَ ذوالقرنین څه قصه ده؟ دَ اصحاب کهف قصې ته دَ عجیبه کیدو په حیثیت هغوی خاص اهمیت ورکړې وو، دَ هغې دَ پاره په دې آیت کښې اوخودل چه دا دومره عجیبه نه ده څومره چه ئی تاسو ګنړئی، دینه ډیر عجیبه او حیرانونکی دَ قدرت نښې موجود دی.
وړاندې دَ اصحاب کهف قصه اول اجمالاً او بیا مفصلاً بیان فرمائیلې ده، وائی چه دا یو څو خوانان دَ روم دَ یو ظالم او جابر بادشاه په زمانه کښې وو دَ چا نامې چه بعضو دقیانوس خودلې، بادشاه ډیر سخت بت پرست وو او جبر او اکراه سره به ئی دَ بت پرستئی خورونه کوله. عامو خلقو به دَ سختئی او تکلیف دَ ویرې او دَ دنیاوی څوورخونفع په لالچ کښې خپل مذهب پریخودو او بت پرستی اختیار کړې وه. په هغه وخت کښې یو څو خوانان دَ چا تعلق چه دَ سلطنت دَ مشرانو نه ووچه دَ یو مخلوق په خاطر دَ خالق ناراض کول صحیح نه دی. دَ هغوی زړونه دَ الله تعالی دَ ویرې او دَ تقوی دَ نور نه ډك وو، الله تعالی دَ صبر اواستقلال، توکل او تبتل دَ دولت نه پوره کړی وو. دَ بادشاه په وړاندې تلو سره هم هغوی دَ ﴿لَن نَّدْعُوَ مِن دُونِهِ إِلَٰهًا ۖ لَّقَدْ قُلْنَا إِذًا شَطَطًا﴾ نعره اولګوله اودَ ایمانی بهادرئ او استقلال څرګندونه کولوسره کتونکی ساکن او حیران کړل. دَ بادشاه دَ هغوی په خوانئی څه رحم راغلو او څه نور مشاغل او مصالح مانع شو چه هغوی فوراً قتل کړی، دَ یوڅوورځو مهلت ئی ورکړو چه هغوی په خپله معامله کښې غور او فکر اوکړی. هغوی مشوره اوکړه چه دَ داسې فتنې په وخت کښې چه کله دَ جبر او تشدد نه عاجز شی او دَ پښو خوئیدو ویره هم وی، به دا مناسب وی چه ښار سره نزدې چرته غار کښې پټ شی اودَ واپسئی دَ پاره دَ مناسب موقع انتظار اوکړی. دعا ئی اوکړه چه اې الله ته په خپله خاص مهربانئی اورحمت سره زمونږ کار جوړ کړې او دَ رشد او هدایت په لار کښې زمونږ ټول انتظام ټیك کړې. آخر دَ ښار نه ووتل او نزدې یو غار کښې پناه واخستله او خپل مینځ کښې یو کس مقرر کړو چه په بدله جامه څه وخت ښار ته لاړ شی او دَ ضرورت سامان واخلی او راوړی او دَ ښار دَ ټولو خبرونو او احوالو نه ټول خبرکړی. کوم سړې چه په دې کار مقرر شوې وو هغه یوه ورځ دا خبر ورکړو چه په ښار کښې نن په سرکاری توګه زمونږ لټون دې او زمونږ خپل خپلوان مجبورولې شی چه زمونږ پته اوښائی، دا خبرې کیدې چه الله تعالی په ټولو ناڅاپې خوب راوستلو. وئیلې شی چه سرکاری اهلکارو ډیر تلاش اوکړو خو څه پته اونه لګیده. ستړې شو او کیناستل او دَ بادشاه په مشوره باندې دَ اوسپنې په تختئی دَ هغه خوانانو نومونه او مناسب حالات اولیکل او په خزانه کښې کیخوده چه راتلونکې نسلونه یاد اوساتی چه یوه ډله په حیرانونکی طریقه سره ورکه شوې ده. ممکن ده چه په وړاندې دَ هغوی څه پته اولګی او دَ بعض عجیبه واقعاتو څرګندونه اوشی.
دا خوانان په کوم مذهب وو؟په دې کښې اختلاف دې،بعضوئیلی دی نصرانی یعنی اصل دین مسیحی پیروکار وو،خو ابن کثیر دَ قرائن نه دَ دې ترجیح ورکړې ده چه دَ اصحاب

كهف قصه دَ حضرت مسيح عليه السلام نه وړاندې ده. والله اعلم (۱)

**د اصحاب كهف غار كوم ځائې دې؟**: دَ اصحاب كهف دَ غار په محل وقوع كښې اختلاف دې ليكن راجح قول دا دې چه مذكوره غار په اردن كښې واقع دې. (۲)

---

(۱) (تفسير عثماني(ص۳۹۳)-

(۲)(دَ اصحاب كهف دا غار چرته چه هغوى درې سووكالوپورې اوده وو كوم ځائ دې؟ په دې سلسله كښې دَ علماء او محققينو رائې ډيره مختلف ده، بعضو وئيلى دى په اردن كښې واقع دې، دَ بعضو خيال دې په شام كښې دې، بعضې وائى يمن كښې دې او بعضې وائى چه د اندلس په ښار غرناطه كښې دې. خودَ اكثرو مفسرينو رائې ده چه د ترك ښار افسس سره نزدې واقع دې، دَ افسس ښار اسلامى نوم طرسوس دې،دا ښار پولسم صدى قبل مسيح كښې جوړشوې وو او روستو بيا دا د بت پرستئ يو ډير لوئى مركز جوړ شو. مولانا شيرعلى شاه صاحب تفسير سوره الكهف (ص۶۱) باندې دَ علامه عينى په حواله سره ليكى: "وذهب معظم المفسرين الى ان الكهف المبحوث عنه واقع فى "افسس" المعروف بطرسوس، لانه كان مركز اهاالعبادة الاصنام،ولما امن بعض شبان هذه المدينة حسب فطرتهم السليمة، اجبرهم الملك الجبار على عبادة الاصنام فاووا الى كهف واقع فى جبل بمسافة"

اومولانا محمد تقى عثمانى صاحب "جهان ديده" (ص۲۱۸) باندې ليكى:

په مسيحى مصادر كښې تقريباً په جزم سره دا بيان كړې شوې دې چه دا واقعه دَ تركى ښار افسس سره نزدې پيښه شوې وه، او هم هلته دَ يو غار باره كښې وئيلى شى چه دا دَ اصحاب كهف غار دې. كيدېشى چه هم دَ دې مسيحى رواياتو دَ اثر لاندې ډيرو مسلمانانو مفسرينو او مؤرخينو هم دَ اصحاب كهف محل وقوع هم افسس خودلې دې. ولې دَ آخرى دور اكثر محققينو دې ته ترجيح وركړې چه دا مذكوره غار په اردن كښې واقع دې. مولانا حفظ الرحمن صاحب سيوهاروى رحمه الله په "قصص القرآن" كښې مولاناسيد سليمان ندوى صاحب رحمه الله "تاريخ ارض القرآن" كښې،مولانا ابوالكلام آزاد "تفسيرسوره كهف" كښې، مولانا مفتى محمد شفيع صاحب رحمه الله په "معارف القرآن" كښې، دَ اردن محقق تيسير ظبيان"موقع اصحاب كهف" كښې، رفيق وفا دجانى"اكتشاف كهف اصحاب الكهف" كښې او مولانا محمد تقى عثمانى صاحب "جهان ديده" كښې هم دې قول ته دَ دلائلو او شواهدوپه بنياد ترجيح وركړې ده. دَ مولانا ابوالكلام آزاد او مولانا حفظ الرحمن سيوهاروى وغيره دَ تحقيق حاصل دا دې چه دَ اردن د مشهور تاريخى ښار پټرا كا اصل نوم "رقيم" وو او كوم چه رومى حكومت بدل كړواو"پټرا" ئې كړو او دا غار هم دې سره نزدې چرته واقع دې. خو په ۱۹۵۳ء كښې دَ اردن محقق تيسير ظبيان صاحب ته معلومه شوه چه عمان سره نزدې په يو غر كښې داسې غار واقع دې كوم كښې چه څه قبرونه او دَ مړو ډهانچې موجود دى هغه دَ دې په لټون كښې ووتلو او دَ دې په معلومولو كښې كامياب شو. هغوى دَ آثار قديمه محكمه متوجه كړه نو هغوى په ۱۹۶۱ء كښې دَ هغې نړول شروع كړه، او چه څومره اثرى تحقيق اوشو دَ هغې نه داسې شواهد او قرائن ملاويږى دَ څه نه چه دَ هغوى دَ دې رائې تائيد كيږى چه په قرآن كښې ذكرشوې كهف همدغه دې.

په قرآن كريم كښې چه دَ دې غار كوم صفتونه بيان شوى دى په دې غاركښې هغه موندلې شى. په قرآن كښې دى " وَتَرَى الشَّمْسَ إِذَا طَلَعَت تَّزَاوَرُ عَن كَهْفِهِمْ ذَاتَ الْيَمِينِ وَإِذَا غَرَبَت تَّقْرِضُهُمْ ذَاتَ الشِّمَالِ وَهُمْ فِي فَجْوَةٍ مِّنْهُ " په دې غاركښې صورت حال داسې دې چه نمر يو وخت هم دننه نه راځى بلكه دَ ډوبيدو او راختو په وخت كښې ښى او كس طرف ته تيريږى. دغه شان په قرآن كښې په دې غار دَ پاسه دَ خلقو دَ جمات جوړولو دَ ارادې هم ذكر دې، اود مذكوره غار دَ پاسه هم يو جمات

**قوله:** وَالرَّقِيمُ الْكِتَابُ مَرْقُومٌ مَكْتُوبٌ مِنَ الرَّقْمِ: په آيت کښې دى "أَمْ حَسِبْتَ أَنَّ أَصْحَابَ الْكَهْفِ وَالرَّقِيمِ كَانُوا مِنْ آيَاتِنَا عَجَبًا"

**د رقیم مصداق:** د رقیم په معنی کښې د علماء مختلف اقوال دی:

---

مونډلې شویدې.

په دې نوې معلوم شوې غار کښې چه کوم پیسې (سکې) پرتې ملاؤشویدې، په هغې کښې څه سکې د تراجان د زمانې دی د چاباره کښې چه د اکثرو محققینوبینا ده چه همدغه هغه مشرک بادشاه وو د چا د زور ظلم نه چه تنګ شوی وو او اصحاب کهف په غارکښې پناه اخستې وه، دې نه هم ذکر شوې رائې ته تقویت ملاویږی.

استاد محترم مولانا تقی عثمانی صاحب د دې رائې په تائید کښې دلائل او شواهد ذکر کولونه پس لیکی: " بهرکیف: د دومره زړې واقعې د محل وقوع په باره کښې په حتمی توګه سل فیصد په یقین سره څه ونیل خو مشکل دی ولې په دې کښې شك نشته چه تراوسه پورې د څومره مقاماتو باره کښې د اصحاب کهف د مقام کیدو رائې څرګندونه کړیشوې ده په دې ټولوکښې چه کوم شواهد او قرائن د دې غارباره کښې دی د بل یو غارپه حق کښې دومره قرائن موجود نه دی.... دا غارد عمان ښار ۷ کلومیټر په جنوب کښې واقع دې اود اردن د مرکزی شاهراه چه د عقبه نه عمان پورې ځی. دینه د دې فاصله ۳ کلومیټر ده. غار په دریو حصوکښې تقسیم شویدې. یوه حصه ښکته کولو سره نیغه د شمال پورې ځی، دونم طرف ته په ښی لاس مشرق طرف ته تاویږی او دریم ګس لاس مغرب طرف ته. مشرقی او مغربی طرف ته آته تابوت په شکل کښې قبرونه ښکاره دی. د غار چه کومه حصه د جنوب نه شمال طرف ته نیغه تلې ده هغه تقریبا سپاټ دې اود دې باره کښې تیسیر ظبیان صاحب خیال دا دې چه هم دغه "فجوی" د کوم ذکر چه په قرآن کریم کښې راغلې دې". (جهان دیده:۲۲۲-۲۲۳)

د اردن محقق تیسیر ظبیان اود هغه ځائ ماهر اثریات رفیق دجانی د دې غار متعلق د خپلې رائې په تائید کښې مستقل کتابونه لیکلی دی لیکن په دې کښې څه شك نشته چه د دې قسم په غارکښې په مختلفو زمانو او مختلفو علاقوکښې پیداکیدل او کیدیشی چه راپیداکیږی.

ابن عطیه د اندلس په ښارکښې د غرناطه ښارسره نزدې د دې قسم غار په دې کښې مړو ډهانچو او دې سره نزدې د جمات کتلو ذکرکړې دې، او وائی: ذهبت بنفسی اربع وخمسمائة، فوجدت الا جساد علی هذه الحالة المسموعة، وعند ذلک الکهف مسجدو عمارة قدیمة من طراز الروم" او ابوحیان اندلسی هم دې قول ته راجح ګرځولې (اوګوره البحر المحیط: ۱۰۲/۶) دې نه په ظاهره دا معلومیږی چه دا قسمه واقعات په مختلفو زمانواو مختلفو علاقوکښې پیښیږی. د کفر او شرك په تیاروکښې د یو څو نیك بختو د توحید شمع روښانه کړه او ښارونه ئې پریخودل او غارونوته تلل او عبادت کور یوځل نه بلکه څوځل شویدی. ترکومې چه د دې غار تعلق دې د کوم ذکر چه په قرآن کښې ذکر دې د دې متعلق یو حتمی خبره څکه نشی کیدې چه بخپله الله تعالی اود هغه د رسول ﷺ د دې متعلق تعین نه دې فرمائیلې چه هغه مقصود نه دې. حافظ ابن کثیر رحمه الله لیکی:

"وقداخبر الله تعالی بذلک، واراد منا فهمه وتدبره، ولم یخبرنا بمکان هذا الکهف فی ای البلاد من الارض، اذالافائدة لنافیه، ولاقصد شرعی، وقد تکلف بعض المفسرین فذکروا فیه اقوالاً.... والله اعلم بای بلادالله هو.ولوکان لنا فیه مصلحة دینیة، لارشدناالله تعالی ورسوله الیه، فقد قال صلی الله علیه وسلم: ما ترکت شیئاً یقربکم الی الجنة، ویباعدکم من النار الاوقد علمتکم به، فاعلمنا الله تعالی بصفته، ولم یعلمنا بمکانه، فقال: وتری الشمس اذا طلعت الایة- (تفسیر ابن کثیر: ۷۵/۳)

① دَ دې معنی کتاب ده، هم دینه مرقوم په معنی دَ مکتوب ده او دا دَ رقم نه ماخوذ دې، دَ وخت بادشاه دَ هغوی دَ لټولو نه پس د هغوی نومونه دَ کانړې په تختئی لیکلې وو نو په دې وجه دوئی ته اصحاب الرقیم هم وئیلې شی. حضرت سعید بن جبیر رضی الله عنه نه هم دا نقل دی. (١) اودَ مفسرینو په نیز همدغه قول مشهوردې. امام بخاری رحمه الله همدا قول اختیار کړیدې. په دې وجه دَ حضرت سعید رضی الله عنه تعلیق دَ بخاری په بعضې نسخوکښې ذکر دې کوم چه ابن منذر موصولاً نقل کړیدې.

② رقیم دَ هغه غرنوم دې دَ کوم په مینځ کښې چه دغه غار واقع وو (٢)

③ رقیم دَ هغه وادئ نوم دې چرته چه په غر کښې دغه غار وو کوم کښې چه اصحاب کهف پټ شوی وو، قتاده وغیره دَ دې تائید کړیدې.(٣)

④ دَ اصحاب کهف دَ سپی نوم دې (٤)

⑤ دَ هغه دراهمو نوم دې چه کوم هغوی سره وو(٥)

⑥ دَ هغه کلی نوم دې کوم کښې چه اصحاب کهف اوسیدل، دَ حضرت ابن عباس رضی الله عنه نه نقل دی چه دا ایله (عقبه) سره نیزدې دَ یو ښارنوم دې.متاخرینو محققینو علماء کرام اکثریت دا صحیح ګرځولې دې، مولانا حفظ الرحمن سیوهاروی رحمه الله لیکی:

"دَ تاریخی او اثری تحقیقاتو په وړاندې همدا آخری قوم صحیح.اودَ قرآن کریم دَ بیان مطابق دې او باقی اقوال صرف قیاسونه او تخمینې دی. خلیج عقبه (ایله) نه شمال طرف ته د اوږدوشوو غرونو یو دوه متوازې سلسلې ملاویږی هم په دې کښې دَ یو غره څوکه دَ انباط دارالحکومت رقیم آباد وو" (٦)

فائده: علامه شبیراحمدعثمانی رحمه الله لیکې: "رقیم دَ غرډډ یعنی غار ته وائی او دَ مرقوم په معنی هم راځی یعنی لیکلې شوې څیز، د مسندعبدبن حمید په یو روایت کښې دی کوم ته چه حافظ علی شرط البخاری وئیلې دې. دَ ابن عباس رضی الله عنه نه دَ رقیم بله معنی نقل ده. یعنی اصحاب کهف او اصحاب الرقیم هم دَ یوې ډلې دوه القاب دی. په غارکښې دَ

---

(١)(واختاره سعید بن جبیر، ومجاهد (فتح القدیر: ٢٧٢/٣)-

(٢)(تفسیر البیضاوی: ٣/١-

(٣)(قصص القرآن:٢٥٤/٣-

(٤)(تفسیرسورة کهف: ٥٧-

(٥)(الصاوی: ٤/٣ -

(٦)(قصص القرآن: ٢٥٤/٣-٢٦١. تیسیر ظبیان او رفیق وفادجانی عمان سره نیزدې کوم غار معلوم کړیدې دَ هلته ته تول سِل میټره فاصله باندې یو وړوکې غوندې کلی دې چه "رجیب" بللې شی، د هغوی خیال دې چه دا دَ رقیم وران کړیشوې شکل دې. څکه چه دَ هغه ځایَ اکثر خلق قاف په جیم او میم په باء سره بدلوی او وائی. حکومت اردن اوس په سرکاری توګه دَ دې کلی نوم هم "رقیم" کړې دې (اوګورئی موقع اصحاب کهف ١١٨ او جهان دیده: ٢٢١) -

اوسيدو په وجه هغوى ته اصحاب كهف وائى او د هغوى د نومونو او صفتونو وغيره تختئى ليكلې كيخودې وه نو په دې وجه اصحاب رقيم يادېدل مگر مترجم محقق (شيخ الهند رحمه الله) رومبنى معنى اخستې ده او بهرصورت اصحاب كهف او اصحاب رقيم ئى يو گرخولى دى. د بعض علماؤ رائې دا ده چه د اصحاب الرقيم قصه په قرآن پاك كښې نه ده ذكر شوې صرف د عجيبه كيدو په لحاظ د اصحاب كهف په تذكره كښې د هغې حواله وركړېشويده. او په حقيقت كښې د اصحاب رقيم د غار هغه درې كسان دى چه د باران نه تختيدلى وو او په غاركښې پناه اخستې وه. د بره نه يو لوئ كاڼړې راپريوتلو او د غار خُله ئى بنده كړه. په هغه وخت كښې هر سړى د خپل عمر مقبول ترين عمل حواله وركړه او د الله تعالى ته ئى فرياد اوكړو او په مزه مزه د غار خُله كولاؤ شوه. امام بخارى رحمه الله د اصحاب كهف ترجمه كولو نه پس د حديث الغار يو مستقل عنوان قائم كړې دې او په هغې كښې د هغه دريو كسانو قصه په تفصيل سره ذكر كولو سره دې طرف ته اشاره وركړې چه اصحاب رقيم دا خلق دى. طبرانى او بزار په سند حسن د نعمان بن بشير نه مرفوعاً روايت كړې چه رسول الله ﷺ به د اصحاب رقيم ذكر فرمائيلو او دا د دريو كسانو قصه ئى بيان كړه. والله اعلم" دوئم لفظ امام بخارى رحمه الله "رقيم" په مناسبت سره "مرقوم" ذكر كړې چه په سورة مطففين كښې واقع دې "كتاب مرقوم" يعنى ليكلې شوې دفتر.

**قوله: رَبَطْنَا عَلَى قُلُوبِهِمْ أَلْهَمْنَاهُمْ صَبْرًا لَوْلَا أَنْ رَبَطْنَا عَلَى قَلْبِهَا:** رَبَطْنَا عَلَى قُلُوبِهِمْ معنى دہ، مونږ د هغوى په زړونو كښې صبرواچولو. د سورة قصص آيت "لَوْلَا أَنْ رَبَطْنَا عَلَى قَلْبِهَا" همدغه معنى ده، يعنى كه مونږ د حضرت موسى عليه السلام د موربه زړه كښې صبر نه وو اچولې.

**قوله: شَطَطًا إِفْرَاطًا:** په آيت مبارك كښې دى "لَن نَّدْعُوَ مِن دُونِهِ إِلَٰهًا لَّقَدْ قُلْنَا إِذًا شَطَطًا" مونږ خو به داپريږدو او د بل يو معبود به هيڅ كله هم عبادت اونه كړو. (ځكه چه كه مونږ داسې اوكړه) نو په دې صورت كښې به مونږ يقيناً ډيره بې ځايه خبره كړې وى. امام فرمائى چه په آيت كښې "شَطَطًا" په معنى د "افراطاً" دى، يعنى د حدنه زياتې كول، غلطه او بې ځايه خبره كول.

**قوله: الْوَصِيدُ الْفِنَاءُ جَمْعُهُ وَصَائِدُ وَوُصُدٌ وَيُقَالُ الْوَصِيدُ الْبَابُ:** په آيت كښې دى "وَكَلْبُهُم بَاسِطٌ ذِرَاعَيْهِ بِالْوَصِيدِ" يعنى د هغوى سپې دواړه لاسونه د دروازې په چوكاټ خواره كړې وو. "وصيد" معنى غولې او صحن دې او د دې معنى دروازه هم بيان كړېشويده.

**قوله: مُؤْصَدَةٌ مُطْبَقَةٌ آصَدَ الْبَابَ وَأَوْصَدَ:** دا په سورة همزه كښې دى "انها عليهم مؤصدة" يعنى كافران به دوزخ كښې واچوى او دروازې به بند كړى "اصدالباب" دروازه بندول، د وصيد په مناسبت سره دلته ذكر كړېشو.

**قوله: بَعَثْنَاهُمْ أَحْيَيْنَاهُمْ:** په آيت مبارك كښې دى "ثُمَّ بَعَثْنَاهُمْ لِنَعْلَمَ أَيُّ الْحِزْبَيْنِ أَحْصَىٰ لِمَا لَبِثُوا أَمَدًا" بيا مونږ هغوى (د خوب نه) بيدار كړل، دې دپاره چه مونږ (په ظاهرى توگه هم) معلوم

كړوچه كومه ډله دَ هغوى دَ اوسيدو دَ مودې نه خبر وه، امام فرمائى په آيت كښې "بَعَثْنَاهُمْ" معنى ده مونږ هغوى ژوندى كړل يعنى دَ خوب نه چه اخوالموت دې مونږ هغوى بيدار كړل.

**قوله: أَزْكَى أَكْثَرُ وَيُقَالُ أَحَلُّ وَيُقَالُ أَكْثَرُ رَيْعًا:** "فَلْيَنْظُرْ أَيُّهَا أَزْكَى طَعَامًا" بيا گوره كوم خوراك ازكى دې، په دې كښې "أَزْكَى" معنى "اكثر" هم كيديشى، په دغه وخت كښې به دا زكاة په معنى نماء نه ماخوذ وى يعنى چه دَ اكثرو ښارونو والا خوراك دې. او دَ دې معنى دَ "احل" هم بيان شويده، په دغه وخت كښې به دا زكاة په معنى دَ طهارت نه ماخوذ وى يعنى چه كوم صفا او حلال خوراك وى هغه راوړى، اودَ دې معنى "اكثر ريعاً" هم بيان شويده، په كوم كښې چه نماء ډيره وى دَ ريع معنى نماء او زياتوالې راځى. [1]

**قوله: قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ أُكُلَهَا وَلَمْ تَظْلِمْ لَمْ تَنْقُصْ:** په آيت مبارك كښې دى "كِلْتَا الْجَنَّتَيْنِ آتَتْ أُكُلَهَا وَلَمْ تَظْلِمْ مِنْهُ شَيْئًا" يعنى دواړه باغونه خپلې ميوې راوړى، په دې كښې يو باغ په خپلو ميوو كښې څه كمې نه دې كړې. په دې كښې "أُكُلَهَا" ذكر كړوخودَ دې تفسير ئې بيان نه كړو، په حاشيه كښې دَ دې تفسير بيان شويدې "ثَمَرَهَا" يعنى "أُكُلَهَا" معنى ميوه دانه ده. او دَ "لَمْ تَظْلِمْ" معنى ده يو باغ په خپلو ميوو كښې څه كمى اونه كړه.

**قوله: فَضَرَبَ اللَّهُ عَلَى آذَانِهِمْ فَنَامُوا:**

د ''فضربنا على اذانهم....،، معنى: په آيت كښې دى "فَضَرَبْنَا عَلَى آذَانِهِمْ فِي الْكَهْفِ سِنِينَ عَدَدًا" بيا مونږ دَ هغوى په غوږ كښې خبرور كړو په دې غاركښې دَ شمير يو څو كاله. دَ هغې نتيجه دا شوه چه په كالونو پورې په دې غركښې اوده پراته وو دَ اخوا ديخوا هيڅ خبر دَ هغوى غوږونوته نه رسيدو. "ضَرَبَ عَلَى آذَانِ" دَ خوب نه كنايه ده، مولانا ابوالكلام آزاد په دې معنى باندې اشكال كړې دې چه په عربى كښې دَ خوب دَ پاره "ضَرَبَ عَلَى آذَانِ" تعبيرنه ملاويږى، په دې وجه دَ دې معنى دَ هغوى په نيز دا ده چه دَ دنيا دَ طرف ته دَ هغوى غوږونه بند شو. [2]

خو عام مفسرين وائى چه دا يو قسم استعاره ده، دَ ژور خوب حالت ته "ضَرَبَ عَلَى آذَانِ" دَ حالت سره تشبيه وركړې شويده. مولانا حفظ الرحمن سيوهاروى رحمه الله دَ جمهورو علماؤ ذكر شوې معنې ته ترجيح وركولو سره ليكى:

زمونږ په نيز دَ مفسرينو تفسير راجح دې او دا استعاره دَ هرې ژبې په محاوراتوكښې مونډلې شى. مثلاً كله چه مور دَ غيږې بچى ته دَ اوده كيدو دَ پاره الله هو وائى نو هغه په

---

[1] (عمدة القارى: ۱۹/۳۷-

[2] اوگوره ترجمان قرآن: ۲/۳۷۶-سوره الكهف-

لاس او غوږ باندې ټپوى، په دې وجه په اردو ژبه کښې "کانوں کو تهپکى دينا" د خوب راوستو د پاره وائي، نو شيخ الهند نورالله مرقده د دې جملې ترجمه داشان کوى "بيا اوټپول مونږ غوږونه د هغوى په دې غارکښې د شمير يو څوکالونه" دې نه علاوه په عربى ژبه کښې "ضَرَبَ عَلَىٰ آذَانِهِ" په معنى "منعه ان يسمع" راتلو سره د اوريدو ډير صورتونه دى، يو دا چه يو سړى ځنګل کښې د غار ته ډډ لاړو کيناستو او د دنياد خبرونه د هغه غوږونه ناآشنا شو دونم دا چه هغه کونړ شو او د اوريدونه معذوره شو. دريم دا چه هغه اوده شو او د نورو ظاهرى حواس په شان غوږونه هم د اوريدونه پاتې شو نو "ضَرَبَ عَلَىٰ آذَانِ" تعبير د دې ټولو صورتونو د پاره يو شان قابل استعمال دې او استعاره او تشبيه ده نو د دريواړو معنو د پاره ده. البته د مولانا آزاد په تفسيرکښې دا اشکال ضرور او لازم راځى چه که "ضَرَبَ عَلَىٰ آذَانِ" معنى دا ده چه د هغوى غوږونه د دنياد طرف ته بند شوى وو. يعنى هغوى د بيدارئى په حالت کښې د عام ژوند مطابق د کلى نه د غرېه يو غارکښې راهبانه ژوندون تيرولو نو بيا به د دې آيت څه معنى وى "وَكَذَٰلِكَ بَعَثْنَاهُمْ لِيَتَسَاءَلُوا بَيْنَهُمْ قَالَ قَائِلٌ مِّنْهُمْ كَمْ لَبِثْتُمْ قَالُوا لَبِثْنَا يَوْمًا أَوْ بَعْضَ يَوْمٍ" آيا دا آيت په خپله صفا معنى کښې ظاهروى نه چه د "ضَرَبَ عَلَىٰ آذَانِ" صفا تعبير هم هغه دې چه د جمهورو مفسرينوپه نيز صحيح او راجح دې. يعنى هغوى اوده شوى وو بلکه په داسې موقع باندې "بعثناهم" د تعبير تقاضا خو دا ده چه د مفسرينو د تفسير نه علاوه بله معنى اخستل قطعاً بې محله ده" ]راوګورئى قصص القرآن: ۳/۲۷۰-۲۷۱-

قوله: وَقَالَ غَيْرُهُ وَأَلَتْ تَئِلُ تَنْجُو وَقَالَ مُجَاهِدٌ مَوْئِلًا مُحْرِزًا: په آيت کښې دى "بَل لَّهُم مَّوْعِدٌ لَّن يَجِدُوا مِن دُونِهِ مَوْئِلًا" د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما غير اوفرمائيل چه "وال، يئل" د باب ضرب نه په معنى د خلاصى بيامو ندل دې نو موئل د خلاصى ځائ ته وئيلې شى. مجاهد رحمه الله د دې معنى محرز بيان کړې ده، يعنى د حفاظت ځائ، دواړه معنې هم يو مفهوم اداکوى.

قوله: لَا يَسْتَطِيعُونَ سَمْعًا لَا يَعْقِلُونَ: په آيت شريف کښې دى "الَّذِينَ كَانَتْ أَعْيُنُهُمْ فِي غِطَاءٍ عَن ذِكْرِي وَكَانُوا لَا يَسْتَطِيعُونَ سَمْعًا" د دې آخرى جز تفسير باللازم اوکړو يعنى هغه ډېره کوى، د اوريدو د پاره تيارنه دې په دې وجه پوهيږى هم نه.

## [۲۱۴] باب: وَكَانَ الْإِنسَانُ أَكْثَرَ شَيْءٍ جَدَلًا

[۴۴۴۷] حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ حَدَّثَنَا يَعْقُوبُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ بْنِ سَعْدٍ حَدَّثَنَا أَبِي عَنْ صَالِحٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ قَالَ أَخْبَرَنِي عَلِيُّ بْنُ حُسَيْنٍ أَنَّ حُسَيْنَ بْنَ عَلِيٍّ أَخْبَرَهُ عَنْ عَلِيٍّ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ طَرَقَهُ وَفَاطِمَةَ قَالَ أَلَا تُصَلِّيَانِ

دا روايت دلته مختصر ذکرکړې شويدې، کتاب الصلاة کښې "باب تحريض النبى صلى الله عليه وسلم على

قيام الليل تحت دا روايت پوره ذكر كړې شويدې. د كوم په آخره كښې چه هغه مذكوره آيت ذكر كړې شويدې. (۱) او هم د هغه مفصل روايت د مناسبت په وجه دا روايت امام دلته راوړې دې.

رَجْمًا بِالْغَيْبِ لَمْ يَسْتَبِنْ فُرُطًا يُقَالُ نَدَمًا سُرَادِقُهَا مِثْلُ السُّرَادِقِ وَالْحُجْرَةِ الَّتِي تُطِيفُ بِالْفَسَاطِيطِ يُحَاوِرُهُ مِنَ الْمُحَاوَرَةِ لَكِنَّا هُوَ اللَّهُ رَبِّي أَيْ لَكِنْ أَنَا هُوَ اللَّهُ رَبِّي ثُمَّ حَذَفَ الْأَلِفَ وَأَدْغَمَ إِحْدَى النُّونَيْنِ فِي الْأُخْرَى وَفَجَّرْنَا خِلَالَهُمَا نَهَرًا يَقُولُ بَيْنَهُمَا زَلَقًا لَا يَثْبُتُ فِيهِ قَدَمٌ هُنَالِكَ الْوَلَايَةُ مَصْدَرُ الْوَلِيِّ عُقُبًا عَاقِبَةٌ وَعُقْبَى وَعُقْبَةٌ وَاحِدٌ وَهِيَ الْآخِرَةُ قِبَلًا وَقُبُلًا وَقَبَلًا اسْتِئْنَافًا لِيُدْحِضُوا لِيُزِيلُوا الدَّحْضُ الزَّلَقُ

**د كلماتو تشريح:**

**قوله: رَجْمًا بِالْغَيْبِ: لَمْ يَسْتَبِنْ:** "وَيَقُولُونَ خَمْسَةٌ سَادِسُهُمْ كَلْبُهُمْ رَجْمًا بِالْغَيْبِ" معنى ده په دوى باندې حقيقت واضحه نه دې، صرف په اټكل او اندازه سره وائى.

د قرآن په دې آيت كښې دا سبق خودلې شويدې، چه د فضول بحثونونه پرهيز كول پكار دى. قرآن د اصحاب كهف د واقعه هغه حصې تفصيل سره بيان كړې چه د تذكير پاره فائده مندې وې، خو هغه جزئيات چه صرف تاريخى حيثيت ئى لرلو. مثلاً دا چه د هغه خوانان شميرڅه وو؟ دهغوى عمرونه څه وو؟هغوى په غاركښې څومره موده مقيم وو؟ د قرآن دې اسلوب د دې قسمه بحثونوكښې سوچ او فكركولونه منع كړيده. وئى فرمائيل "قُلْ رَّبِّيْٓ اَعْلَمُ بِعِدَّتِهِمْ مَّا يَعْلَمُهُمْ اِلَّا قَلِيْلٌ ۥ فَلَا تُمَارِ فِيْهِمْ اِلَّا مِرَآءً ظَاهِرًا ۥ وَّلَا تَسْتَفْتِ فِيْهِمْ مِّنْهُمْ اَحَدًا"

د حضرت ابن عباس رضي الله عنه نه روايت دې چه د هغه قليل نه زه هم يم چاته چه د هغوى د شمير متعلق علم دې(۲)وئى فرمائيل چه هغه اووه وو اواتم د هغوى سپې وو او دا د دې د پاره چه الله تعالى د شمير متعلق او دوه قوله ذكر كولونه پس اوفرمائيل "رَجْمًا بِالْغَيْبِ" خود دريم قول ذكر كولونه پس داسې يوه خبره نه ده كړې په دې وجه هم دغه صحيح شمير دې.

**قوله: فرطا: ندما:** په آيت مبارك كښې دى "وَكَانَ اَمْرُهٗ فُرُطًا" د فُرُطًا ترجمه ندماً سره كړيده يعنى د هغوى معامله د پښيمانتيا او شرمندګئى ذريعه جوړه شوه.

**قوله: سرادقها: مثل السرادق، والحجرة التى تطيف بالفساطيط:** آيت مبارك كښې دى "اِنَّآ اَعْتَدْنَا

---

(۱)(هلته د روايت الفاظ دا دى: "ان على بن ابى طالب رضى الله عنه اخبره ان رسول الله صلى الله عليه وسلم طرقه، وفاطمة بنت النبى صلى الله عليه وسلم ليلة. فقال: الا تصليان؟ فقلت: يارسول الله، انفسنا بيدالله، فاذاشاء ان يبعثنا، بعثنا. فانصر فحين قلت ذلك، ولم يرجع الى شيئا. ثم سمعته. وهو مول. يضرب فخذه، وهويقول: وكان الانسان اكثر شئ جدلا" (صحيح البخارى، كتاب التهجد، باب تحريض النبى صلى الله عليه وسلم على قيام الليل: ۱۵۲/۱) -

(۲)(تفسيرابن كثير:۷۸/۳ و تفسيرالدرالمنثور: ۲۱۷/٤-

لِلظّٰلِمِيْنَ نَارًا ۙ اَحَاطَ بِهِمْ سُرَادِقُهَا " يعنى مونږ دَ ظالمانو دَ پاره أور تيار كړې دې دَ دې أور پړدو كښې به دوى راګيرشوى وى. امام فرمائيلى دى" مثل السرادق" لكه څنګه چه دَ څلورو واړو طرفونو دَ پردې دَ پاره قناتونه لګوى همدغه شان به هلته هم دَ څلورو واړو طرفونه دَ أور پردې لګيدلې وى. دَ دې دوئم مثال دَ هغه حجرې غوندې دې چه په خيموكښې راګيره شوى وى. فساطيط دَ فسطاط جمع ده په معنى دَ خيمې.

قوله: يحاورة: من المحاورة: آيت كښې دى " فَقَالَ لِصَاحِبِهٖ وَهُوَ يُحَاوِرُهٗۤ اَنَا اَكْثَرُ مِنْكَ مَالًا وَّاَعَزُّ نَفَرًا " بيانى اوونيل خپل ملګرى ته كله چه هغه سره خبرې كولې، ماسره تانه زيات مال دې او دَ ډيرعزت والا خلق دى يحاوره دَ محاورة نه مشتق دې دَ كوم معنى چه خبرې كول دى.

قوله: لَكِنَّا هُوَ اللّٰهُ رَبِّي أَيْ لَكِنْ أَنَا هُوَ اللّٰهُ رَبِّي ثُمَّ حَذَفَ الْأَلِفَ وَأَدْغَمَ إِحْدَى النُّونَيْنِ فِي الْأُخْرَى: آيت مبارك كښې دى " لٰكِنَّا هُوَ اللّٰهُ رَبِّيْ وَلَاۤ اُشْرِكُ بِرَبِّيْۤ اَحَدًا " يعنى زه خو همدغه وايم چه هم هغه الله زما رب دې او زه خپل رب سره څوك شريك نه منم "لٰكِنَّا" په اصل كښې "لكن انا" وو، دَ انا همزه حذف كړې شو او "لكن" نون "انا" په نون كښې مدغم كړې شو نو "لٰكِنَّا" شو.

قوله: زلقا: لا يثبت فيه قدم: " فَتُصْبِحَ صَعِيْدًا زَلَقًا " چه هغه باغ صفاميدان شى پاتې شى. امام فرمائى چه"زلقا" معنى ده داسې صفا او غوړ په كوم چه قدم نه اودرېږى او اوخوئيږى.

قوله: هنالك الولاية: مصدر الولي: " هُنَالِكَ الْوَلَايَةُ لِلّٰهِ الْحَقِّ " هلته امداد كول هم دَ الله تعالى چه حق دې كار دې "ولاية" دَ "ولى" مصدر دې دَ څه معنى چه امداد او نصرت دې.

قوله: عقبا: عاقبة وعقبى واحد، وهي الاخرة: آيت كښې دى " هُوَ خَيْرٌ ثَوَابًا وَّخَيْرٌ عُقْبًا " دَ دې ثواب دَ ټولونه ښه دې اودَ دې انجام دَ ټولونه ښه دې. امام فرمائى "عقبا" په معنى دَ "عاقبة" دې، عاقبة او عقبى هم يوه معنى ده يعنى آخرت

قوله: قِبَلًا، وقُبُلًا، وقَبَلًا: استينافا: آيت مبارك كښې دى " اَوْ يَاْتِيَهُمُ الْعَذَابُ قُبُلًا " چه يا راشى عذاب دَ هغوى په وړاندې" په دې كښې دَ قُبُلًا معنى استيناف او استقبال دې، قِبَلًا (په زير دَ قاف او زبر دَ با) قُبُلًا(دَدوو پيشونو) او قَبَلًا (دَ دوو زبر) دَ ټولو معنى امام هم يو خودلې ده. خو مشهور دا دى چه قِبَلًا معنى "عيانا" ده او قُبُلًا دَ قَبِيل جمع ده دَ مختلف رنګونو دَ پاره استعماليږى (١) او دَ قَبَلًا معنى استيناف ده.

---

(١)(عمدة القارى: ١٩/٣٩-

**قوله:** ليدحضوا: ليزيلوا: الدحض: الزالق: په آيت مبارك كښې دى "وَيُجَادِلُ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا بِالْبَاطِلِ لِيُدْحِضُوْا بِهِ الْحَقَّ" دَ حض معنى خوئيدل راځى او چه كله باب افعال ته يوړلې شى نو دَ زائل كولو معنى به وى ځكه دَ خوئيدو نه پس سړې په خپل ځائ نه پاتې كيږى او زائل كيږى.

## [۲۱۵] باب: وَإِذْ قَالَ مُوسَى لِفَتَاهُ لَا أَبْرَحُ حَتَّى أَبْلُغَ مَجْمَعَ الْبَحْرَيْنِ أَوْ أَمْضِيَ حُقُبًا زَمَانًا وَجَمْعُهُ أَحْقَابٌ

په آيت كښې دى "وَإِذْ قَالَ مُوسَى لِفَتَاهُ لَا أَبْرَحُ حَتَّى أَبْلُغَ مَجْمَعَ الْبَحْرَيْنِ أَوْ أَمْضِيَ حُقُبًا" ياد كړه هغه وخت چه كله موسى عليه السلام خپل خادم ته اووئيل چه زه به يوشان مزل كوم ترهغه وخت پورې چه زه اورسم هغه ځائ ته چرته چه دوه دريابونه په خپل مينځ كښې يوځائ شوى دى يا به د اوږدې مودې پورې ګرځم. فرمائى چه "حقب" اوږدې زمانې ته وائى اود دې جمع "احقاب" ده.

[۴۴۴۸] حَدَّثَنَا الْحُمَيْدِيُّ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ دِينَارٍ قَالَ أَخْبَرَنِي سَعِيدُ بْنُ جُبَيْرٍ قَالَ قُلْتُ لِابْنِ عَبَّاسٍ إِنَّ نَوْفًا الْبِكَالِيَّ يَزْعُمُ أَنَّ مُوسَى صَاحِبَ الْخَضِرِ لَيْسَ هُوَ مُوسَى صَاحِبَ بَنِي إِسْرَائِيلَ فَقَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ كَذَبَ عَدُوُّ اللَّهِ حَدَّثَنِي أُبَيُّ بْنُ كَعْبٍ أَنَّهُ سَمِعَ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ إِنَّ مُوسَى قَامَ خَطِيبًا فِي بَنِي إِسْرَائِيلَ فَسُئِلَ أَيُّ النَّاسِ أَعْلَمُ فَقَالَ أَنَا فَعَتَبَ اللَّهُ عَلَيْهِ إِذْ لَمْ يَرُدَّ الْعِلْمَ إِلَيْهِ فَأَوْحَى اللَّهُ إِلَيْهِ إِنَّ لِي عَبْدًا بِمَجْمَعِ الْبَحْرَيْنِ هُوَ أَعْلَمُ مِنْكَ قَالَ مُوسَى يَا رَبِّ فَكَيْفَ لِي بِهِ قَالَ تَأْخُذُ مَعَكَ حُوتًا فَتَجْعَلُهُ فِي مِكْتَلٍ فَحَيْثُمَا فَقَدْتَ الْحُوتَ فَهُوَ ثَمَّ فَأَخَذَ حُوتًا فَجَعَلَهُ فِي مِكْتَلٍ ثُمَّ انْطَلَقَ وَانْطَلَقَ مَعَهُ بِفَتَاهُ يُوشَعَ بْنِ نُونٍ حَتَّى إِذَا أَتَيَا الصَّخْرَةَ وَضَعَا رُءُوسَهُمَا فَنَامَا وَاضْطَرَبَ الْحُوتُ فِي الْمِكْتَلِ فَخَرَجَ مِنْهُ فَسَقَطَ فِي الْبَحْرِ فَاتَّخَذَ سَبِيلَهُ فِي الْبَحْرِ سَرَبًا وَأَمْسَكَ اللَّهُ عَنِ الْحُوتِ جِرْيَةَ الْمَاءِ فَصَارَ عَلَيْهِ مِثْلَ الطَّاقِ فَلَمَّا اسْتَيْقَظَ نَسِيَ صَاحِبُهُ أَنْ يُخْبِرَهُ بِالْحُوتِ فَانْطَلَقَا بَقِيَّةَ يَوْمِهِمَا وَلَيْلَتَهُمَا حَتَّى إِذَا كَانَ مِنَ الْغَدِ قَالَ مُوسَى لِفَتَاهُ آتِنَا غَدَاءَنَا لَقَدْ لَقِينَا مِنْ سَفَرِنَا هَذَا نَصَبًا قَالَ وَلَمْ يَجِدْ مُوسَى النَّصَبَ حَتَّى جَاوَزَا الْمَكَانَ الَّذِي أَمَرَ اللَّهُ بِهِ فَقَالَ لَهُ فَتَاهُ أَرَأَيْتَ إِذْ أَوَيْنَا إِلَى الصَّخْرَةِ فَإِنِّي نَسِيتُ الْحُوتَ وَمَا أَنْسَانِيهِ إِلَّا الشَّيْطَانُ أَنْ أَذْكُرَهُ وَاتَّخَذَ سَبِيلَهُ فِي الْبَحْرِ عَجَبًا قَالَ فَكَانَ لِلْحُوتِ سَرَبًا وَلِمُوسَى وَلِفَتَاهُ عَجَبًا فَقَالَ مُوسَى ذَلِكَ مَا كُنَّا نَبْغِي فَارْتَدَّا عَلَى آثَارِهِمَا قَصَصًا قَالَ رَجَعَا يَقُصَّانِ آثَارَهُمَا حَتَّى انْتَهَيَا إِلَى الصَّخْرَةِ فَإِذَا رَجُلٌ مُسَجًّى ثَوْبًا فَسَلَّمَ عَلَيْهِ مُوسَى فَقَالَ الْخَضِرُ وَأَنَّى بِأَرْضِكَ السَّلَامُ قَالَ أَنَا مُوسَى قَالَ مُوسَى بَنِي إِسْرَائِيلَ قَالَ نَعَمْ أَتَيْتُكَ لِتُعَلِّمَنِي مِمَّا عُلِّمْتَ رَشَدًا قَالَ إِنَّكَ لَنْ تَسْتَطِيعَ مَعِيَ صَبْرًا يَا مُوسَى إِنِّي عَلَى عِلْمٍ مِنْ عِلْمِ اللَّهِ عَلَّمَنِيهِ لَا تَعْلَمُهُ أَنْتَ وَأَنْتَ عَلَى عِلْمٍ مِنْ عِلْمِ اللَّهِ عَلَّمَكَهُ اللَّهُ لَا أَعْلَمُهُ فَقَالَ مُوسَى سَتَجِدُنِي إِنْ شَاءَ اللَّهُ صَابِرًا وَلَا أَعْصِي لَكَ أَمْرًا فَقَالَ لَهُ الْخَضِرُ

فَإِنِ اتَّبَعْتَنِي فَلَا تَسْأَلْنِي عَنْ شَيْءٍ حَتَّى أُحْدِثَ لَكَ مِنْهُ ذِكْرًا فَانْطَلَقَا يَمْشِيَانِ عَلَى سَاحِلِ الْبَحْرِ فَمَرَّتْ سَفِينَةٌ فَكَلَّمُوهُمْ أَنْ يَحْمِلُوهُمْ فَعَرَفُوا الْخَضِرَ فَحَمَلُوهُمْ بِغَيْرِ نَوْلٍ فَلَمَّا رَكِبَا فِي السَّفِينَةِ لَمْ يَفْجَأْ إِلَّا وَالْخَضِرُ قَدْ قَلَعَ لَوْحًا مِنْ أَلْوَاحِ السَّفِينَةِ بِالْقَدُومِ فَقَالَ لَهُ مُوسَى قَوْمٌ قَدْ حَمَلُونَا بِغَيْرِ نَوْلٍ عَمَدْتَ إِلَى سَفِينَتِهِمْ فَخَرَقْتَهَا لِتُغْرِقَ أَهْلَهَا لَقَدْ جِئْتَ شَيْئًا إِمْرًا قَالَ أَلَمْ أَقُلْ إِنَّكَ لَنْ تَسْتَطِيعَ مَعِيَ صَبْرًا قَالَ لَا تُؤَاخِذْنِي بِمَا نَسِيتُ وَلَا تُرْهِقْنِي مِنْ أَمْرِي عُسْرًا قَالَ وَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَكَانَتِ الْأُولَى مِنْ مُوسَى نِسْيَانًا قَالَ وَجَاءَ عُصْفُورٌ فَوَقَعَ عَلَى حَرْفِ السَّفِينَةِ فَنَقَرَ فِي الْبَحْرِ نَقْرَةً فَقَالَ لَهُ الْخَضِرُ مَا عِلْمِي وَعِلْمُكَ مِنْ عِلْمِ اللَّهِ إِلَّا مِثْلُ مَا نَقَصَ هَذَا الْعُصْفُورُ مِنْ هَذَا الْبَحْرِ ثُمَّ خَرَجَا مِنَ السَّفِينَةِ فَبَيْنَا هُمَا يَمْشِيَانِ عَلَى السَّاحِلِ إِذْ أَبْصَرَ الْخَضِرُ غُلَامًا يَلْعَبُ مَعَ الْغِلْمَانِ فَأَخَذَ الْخَضِرُ رَأْسَهُ بِيَدِهِ فَاقْتَلَعَهُ بِيَدِهِ فَقَتَلَهُ فَقَالَ لَهُ مُوسَى أَقَتَلْتَ نَفْسًا زَاكِيَةً بِغَيْرِ نَفْسٍ لَقَدْ جِئْتَ شَيْئًا نُكْرًا قَالَ أَلَمْ أَقُلْ لَكَ إِنَّكَ لَنْ تَسْتَطِيعَ مَعِيَ صَبْرًا قَالَ وَهَذِهِ أَشَدُّ مِنَ الْأُولَى قَالَ إِنْ سَأَلْتُكَ عَنْ شَيْءٍ بَعْدَهَا فَلَا تُصَاحِبْنِي قَدْ بَلَغْتَ مِنْ لَدُنِّي عُذْرًا فَانْطَلَقَا حَتَّى إِذَا أَتَيَا أَهْلَ قَرْيَةٍ اسْتَطْعَمَا أَهْلَهَا فَأَبَوْا أَنْ يُضَيِّفُوهُمَا فَوَجَدَا فِيهَا جِدَارًا يُرِيدُ أَنْ يَنْقَضَّ قَالَ مَائِلٌ فَقَامَ الْخَضِرُ فَأَقَامَهُ بِيَدِهِ فَقَالَ مُوسَى قَوْمٌ أَتَيْنَاهُمْ فَلَمْ يُطْعِمُونَا وَلَمْ يُضَيِّفُونَا لَوْ شِئْتَ لَاتَّخَذْتَ عَلَيْهِ أَجْرًا قَالَ هَذَا فِرَاقُ بَيْنِي وَبَيْنِكَ إِلَى قَوْلِهِ ذَلِكَ تَأْوِيلُ مَا لَمْ تَسْطِعْ عَلَيْهِ صَبْرًا فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَدِدْنَا أَنَّ مُوسَى كَانَ صَبَرَ حَتَّى يَقُصَّ اللَّهُ عَلَيْنَا مِنْ خَبَرِهِمَا قَالَ سَعِيدُ بْنُ جُبَيْرٍ فَكَانَ ابْنُ عَبَّاسٍ يَقْرَأُ وَكَانَ أَمَامَهُمْ مَلِكٌ يَأْخُذُ كُلَّ سَفِينَةٍ صَالِحَةٍ غَصْبًا وَكَانَ يَقْرَأُ وَأَمَّا الْغُلَامُ فَكَانَ كَافِرًا وَكَانَ أَبَوَاهُ مُؤْمِنَيْنِ

## [۲۱۶] بَاب: قَوْلِهِ فَلَمَّا بَلَغَا مَجْمَعَ بَيْنِهِمَا نَسِيَا حُوتَهُمَا فَاتَّخَذَ سَبِيلَهُ فِي الْبَحْرِ سَرَبًا مَذْهَبًا يَسْرُبُ يَسْلُكُ وَمِنْهُ وَسَارِبٌ بِالنَّهَارِ

[۴۴۴۹] حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ مُوسَى أَخْبَرَنَا هِشَامُ بْنُ يُوسُفَ أَنَّ ابْنَ جُرَيْجٍ أَخْبَرَهُمْ قَالَ أَخْبَرَنِي يَعْلَى بْنُ مُسْلِمٍ وَعَمْرُو بْنُ دِينَارٍ عَنْ سَعِيدِ بْنِ جُبَيْرٍ يَزِيدُ أَحَدُهُمَا عَلَى صَاحِبِهِ وَغَيْرُهُمَا قَدْ سَمِعْتُهُ يُحَدِّثُهُ عَنْ سَعِيدِ بْنِ جُبَيْرٍ قَالَ إِنَّا لَعِنْدَ ابْنِ عَبَّاسٍ فِي بَيْتِهِ إِذْ قَالَ سَلُونِي قُلْتُ أَيْ أَبَا عَبَّاسٍ جَعَلَنِي اللَّهُ فِدَاءَكَ بِالْكُوفَةِ رَجُلٌ قَاصٌّ يُقَالُ لَهُ نَوْفٌ يَزْعُمُ أَنَّهُ لَيْسَ بِمُوسَى بَنِي إِسْرَائِيلَ أَمَّا عَمْرٌو فَقَالَ لِي قَالَ قَدْ كَذَبَ عَدُوُّ اللَّهِ وَأَمَّا يَعْلَى فَقَالَ لِي قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ حَدَّثَنِي أُبَيُّ بْنُ كَعْبٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مُوسَى رَسُولُ اللَّهِ عَلَيْهِ السَّلَامُ قَالَ ذَكَّرَ النَّاسَ يَوْمًا حَتَّى إِذَا فَاضَتِ الْعُيُونُ وَرَقَّتِ الْقُلُوبُ وَلَّى فَأَدْرَكَهُ رَجُلٌ فَقَالَ أَيْ رَسُولَ اللَّهِ هَلْ فِي الْأَرْضِ أَحَدٌ أَعْلَمُ مِنْكَ قَالَ لَا

فعتب عليه إذ لم يرد العلم إلى الله قيل بلى قال أى رب فأين قال بمجمع البحرين قال أى رب اجعل لى علما أعلم ذلك به فقال لى عمرو قال حيث يفارقك الحوت وقال لى يعلى قال خذ نونا ميتا حيث ينفخ فيه الروح فأخذ حوتا فجعله فى مكتل فقال لفتاه لا أكلفك إلا أن تخبرنى بحيث يفارقك الحوت قال ما كلفت كثيرا فذلك قوله جل ذكره وإذ قال موسى لفتاه يوشع بن نون ليست عن سعيد قال فبينما هو فى ظل صخرة فى مكان ثريان إذ تضرب الحوت وموسى نائم فقال فتاه لا أوقظه حتى إذا استيقظ نسى أن يخبره وتضرب الحوت حتى دخل البحر فأمسك الله عنه جرية البحر حتى كأن أثره فى حجر قال لى عمرو هكذا كأن أثره فى حجر وحلق بين إبهاميه واللتين تليانهما لقد لقينا من سفرنا هذا نصبا قال قد قطع الله عنك النصب ليست هذه عن سعيد أخبره فرجعا فوجدا خضرا قال لى عثمان بن أبى سليمان على طنفسة خضراء على كبد البحر قال سعيد بن جبير مسجى بثوبه قد جعل طرفه تحت رجليه وطرفه تحت رأسه فسلم عليه موسى فكشف عن وجهه وقال هل بأرضى من سلام من أنت قال أنا موسى قال موسى بنى إسرائيل قال نعم قال فما شأنك قال جئت لتعلمنى مما علمت رشدا قال أما يكفيك أن التوراة بيديك وأن الوحى يأتيك يا موسى إن لى علما لا ينبغى لك أن تعلمه وإن لك علما لا ينبغى لى أن أعلمه فأخذ طائر بمنقاره من البحر وقال والله ما علمى وما علمك فى جنب علم الله إلا كما أخذ هذا الطائر بمنقاره من البحر حتى إذا ركبا فى السفينة وجدا معابر صغارا تحمل أهل هذا الساحل إلى أهل هذا الساحل الآخر عرفوه فقالوا عبد الله الصالح قال قلنا لسعيد خضر قال نعم لا نحمله بأجر فخرقها ووتد فيها وتدا قال موسى أخرقتها لتغرق أهلها لقد جئت شيئا إمرا قال مجاهد منكرا قال ألم أقل إنك لن تستطيع معى صبرا كانت الأولى نسيانا والوسطى شرطا والثالثة عمدا قال لا تؤاخذنى بما نسيت ولا ترهقنى من أمرى عسرا لقيا غلاما فقتله قال يعلى قال سعيد وجد غلمانا يلعبون فأخذ غلاما كافرا ظريفا فأضجعه ثم ذبحه بالسكين قال أقتلت نفسا زكية بغير نفس لم تعمل بالحنث وكان ابن عباس قرأها زكية زاكية مسلمة كقولك غلاما زكيا فانطلقا فوجدا جدارا يريد أن ينقض فأقامه قال سعيد بيده هكذا ورفع يده فاستقام قال يعلى حسبت أن سعيدا قال فمسحه بيده فاستقام لو شئت لاتخذت عليه أجرا قال سعيد أجرا نأكله وكان وراءهم وكان أمامهم قرأها ابن عباس أمامهم ملك يزعمون عن غير سعيد أنه هدد بن بدد والغلام المقتول اسمه يزعمون جيسور ملك يأخذ كل سفينة غصبا فأردت إذا هى مرت به أن يدعها لعيبها فإذا جاوزوا أصلحوها فانتفعوا بها ومنهم من يقول سدوها بقارورة ومنهم من يقول بالقار كان أبواه مؤمنين وكان كافرا فخشينا أن يرهقهما

طُغْيَانًا وَكُفْرًا أَنْ يَحْمِلَهُمَا حُبُّهُ عَلَى أَنْ يُتَابِعَاهُ عَلَى دِينِهِ فَأَرَدْنَا أَنْ يُبْدِلَهُمَا رَبُّهُمَا خَيْرًا مِنْهُ زَكَاةً لِقَوْلِهِ أَقَتَلْتَ نَفْسًا زَكِيَّةً وَأَقْرَبَ رُحْمًا هُمَا بِهِ أَرْحَمُ مِنْهُمَا بِالْأَوَّلِ الَّذِي قَتَلَ خَضِرٌ وَزَعَمَ غَيْرُ سَعِيدٍ أَنَّهُمَا أُبْدِلَا جَارِيَةً وَأَمَّا دَاوُدُ بْنُ أَبِي عَاصِمٍ فَقَالَ عَنْ غَيْرِ وَاحِدٍ إِنَّهَا جَارِيَةٌ

**قوله:** اخبرني يعلى بن مسلم وعمروبن دينار، عن سعيد بن جبير يزيد احدهما على صاحبه، وغيرهما سمعته يحدثه عن سعيد:

**د سند توضيح:** د هشام بن يوسف استاذ ابن جريج فرمائي چه مانه يعلى بن مسلم او عمروبن دينار د حضرت سعيد بن جبير رضي الله عنه په واسطه بيان اوکړو او دې دواړوکښې يو د خپل ملګرى نه څه الفاظ زيات اووئيل اودغه دواړو (يعلى بن مسلم او عمرو بن دينار) د يو بل سرى نه هم ما واوريده چه د حضرت سعيد بن جبير رضي الله عنه نه ئې حديث بيانولو. حاصل دا چه د ابن جريج درې شيخان وو① يعلى بن مسلم ② عمرو بن دينار ③غيرهما د ړومبنو دوو نه علاوه، امام بخارى رحمه الله د هغه نو په وړاندې روايت کښې ذکر کړې دې. فرمائى قال لى عثمان بن ابى سليمان

**قوله:** سربا: مذهبا، يسرب: يسلك، ومنه: "وسارب بالنهار": "فَاتَّخَذَ سَبِيلَهُ فِي الْبَحْرِ سَرَبًا" نو هغه کب په درياب کښې خپله لاره په سرنګ جوړولو سره جوړه کړه. امام فرمائى چه په آيت کښې "سربا" د "مذهبا" په معنى کښې دې يعنى لاره، د تلو ځائ. يسرب: يسلك: هغه ځى او د سورة رعد په آيت کښې (وَسَارِبٌ بِالنَّهَارِ) هم دينه دې يعنى د ورځې تلونکې.

**قوله:** اقتلت نفسا زكية بغير نفس، لم تعمل بالحنث، وكان ابن عباس يقراها زكية: زاكية: مسلمة، كقولك: غلاما زكيا: حضرت موسى عليه السلام حضرت خضر عليه السلام ته اووئيل چه تايو بې ګناه انسان بغير د څه بدلې قتل کړو، چا چه هيڅ ګناه نه وه کړې. حضرت ابن عباس رضي الله عنه "زكية" په ځائ به "زاكية" لوستلو په معنى مسلمة لکه غلاما زكيا کښې دې.

## [۲۱۷] بَاب: فَلَمَّا جَاوَزَا قَالَ لِفَتَاهُ آتِنَا غَدَاءَنَا لَقَدْ لَقِينَا مِنْ سَفَرِنَا هَذَا نَصَبًا

قَالَ أَرَأَيْتَ إِذْ أَوَيْنَا إِلَى الصَّخْرَةِ فَإِنِّي نَسِيتُ الْحُوتَ إِلَى قَوْلِهِ عَجَبًا صُنْعًا عَمَلًا حِوَلًا تَحَوُّلًا قَالَ ذَلِكَ مَا كُنَّا نَبْغِ فَارْتَدَّا عَلَى آثَارِهِمَا قَصَصًا إِمْرًا وَنُكْرًا دَاهِيَةً يَنْقَضَّ يَنْقَاضُ كَمَا تَنْقَاضُ السِّنُّ لَتَخِذْتَ وَاتَّخَذْتَ وَاحِدٌ رُحْمًا مِنَ الرُّحْمِ وَهِيَ أَشَدُّ مُبَالَغَةً مِنَ الرَّحْمَةِ وَنَظُنُّ أَنَّهُ مِنَ الرَّحِيمِ وَتُدْعَى مَكَّةُ أُمَّ رُحْمٍ أَيِ الرَّحْمَةُ تَنْزِلُ بِهَا

**قوله: امرًا، ونكرًا: داهية:** يوآيت مبارك كښې دی "لَقَدْ جِئْتَ شَيْئًا إِمْرًا" او دوئم آيت كښې دی "لَقَدْ جِئْتَ شَيْئًا نُكْرًا" فرمائی چه امرًا او نكرًا معنی ده داهية: مصيبت، لويه معامله او مجاهد امرًا ترجمه منكرًا كړيده، يعنی ناخبره اوحيرانونكې كار.

**قوله: صنعاً: عملاً:** "وَهُمْ يَحْسَبُوْنَ اَنَّهُمْ يُحْسِنُوْنَ صُنْعًا" اوهغوی گڼړی چه هغوی ښه كاركوی په دې كښې صنعاً دَ عملاً په معنی كښې دې.

**قوله: حولا: تحولاً:** "لَا يَبْغُوْنَ عَنْهَا حِوَلًا" هغه خلق به دَ جنت نه چرته تلل نه غواړی. فرمائی دَ حولا په تحولاً معنی كښې دی يعنی گرځيدل واپس كيدل. مولاناشبيراحمدعثمانی رحمه الله فرمائی: "يعنی دَ هميشه دَ پاره پاتې كيدو سره به سترې كيږی نه. هر وخت به تازه په تازه نعمتونه ملاويږی. هيڅ كله به خواهش نه كوی چه مونږ چرته بدل كړيشو.

**قوله: ينقض: ينقاض، كما تنقاض السن:** آيت كښې دی "فَوَجَدَا فِيْهَا جِدَارًا يُّرِيْدُ اَنْ يَّنْقَضَّ فَاَقَامَهٗ" دې دواړو هلته يو ديوال اوليدو چه پريوتلو نو حضرت خضر عليه السلام دا نيغ كړو. فرمائی (يَنْقَضَّ) او ينقاض دَ دواړو هم يوه معنی ده يعنی پريوتل، لكه چه وائی تنقاض السن دَ غاښ پريوتل.

**قوله: لتخذت، واتخذت واحد:** "قَالَ لَوْ شِئْتَ لَاتَّخَذْتَ عَلَيْهِ اَجْرًا" حضرت موسی عليه السلام اوفرمائيل كه تاسو غوښتل نو په دې كار به دې اجرت اخستې وې، فرمائی چه آيت په يو قراءت كښې "لتخذت" تخذت (دَ باب سمع) او اتخذت (باب انفعال) نه دې دَ دواړو معنی يوه ده يعنی اسختل.

**قوله: رحماً: من الرحيم، وهي اشد مبالغة من الرحمة، ونظن انه من الرحيم، وتدعى مكة ام رحم، اي الرحمة تنزل بها:** "خَيْرًا مِّنْهُ زَكٰوةً وَّاَقْرَبَ رُحْمًا" فرمائی "رُحْمًا" "رحيم" نه ماخوذ دې په معنی رشته داری خپلولی او په دې كښې "رحمة" نه زياته مبالغه دې او يو خيال دا هم دې چه "رحما" "رحيم" نه ماخوذ دی، مكې ته "ام الرحم" وائی ځكه چه هلته دَ الله تعالی رحمت نازليږی. علامه كرمانی رحمه الله فرمائی:

قوله: "من الرحيم" بكسر الحاء بمعنى القرابة، وهي اشد مبالغة من الرحمة هي رقة والتعطف، لاستلزام القرابة الرقة غالبا من غير عكس، فظن بعضهم انه مشتق من الرحيم الذی من الرحمة، وغرضه انه بمعنى القرابة، لا الرقة، وعند البعض بالعكس (۱)

[۴۴۵۰] حَدَّثَنِي قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ قَالَ حَدَّثَنِي سُفْيَانُ بْنُ عُيَيْنَةَ عَنْ عَمْرِو بْنِ دِينَارٍ

---

(۱) (شرح الكرمانی: ۱۷/۱۹۹-

عَنْ سَعِيدِ بْنِ جُبَيْرٍ قَالَ قُلْتُ لِابْنِ عَبَّاسٍ إِنَّ نَوْفًا الْبِكَالِيَّ يَزْعُمُ أَنَّ مُوسَى بَنِي إِسْرَائِيلَ لَيْسَ بِمُوسَى الْخَضِرِ فَقَالَ كَذَبَ عَدُوُّ اللَّهِ حَدَّثَنَا أُبَيُّ بْنُ كَعْبٍ عَنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ قَامَ مُوسَى خَطِيبًا فِي بَنِي إِسْرَائِيلَ فَقِيلَ لَهُ أَيُّ النَّاسِ أَعْلَمُ قَالَ أَنَا فَعَتَبَ اللَّهُ عَلَيْهِ إِذْ لَمْ يَرُدَّ الْعِلْمَ إِلَيْهِ وَأَوْحَى إِلَيْهِ بَلَى عَبْدٌ مِنْ عِبَادِي بِمَجْمَعِ الْبَحْرَيْنِ هُوَ أَعْلَمُ مِنْكَ قَالَ أَيْ رَبِّ كَيْفَ السَّبِيلُ إِلَيْهِ قَالَ تَأْخُذُ حُوتًا فِي مِكْتَلٍ فَحَيْثُمَا فَقَدْتَ الْحُوتَ فَاتَّبِعْهُ قَالَ فَخَرَجَ مُوسَى وَمَعَهُ فَتَاهُ يُوشَعُ بْنُ نُونٍ وَمَعَهُمَا الْحُوتُ حَتَّى انْتَهَيَا إِلَى الصَّخْرَةِ فَنَزَلَا عِنْدَهَا قَالَ فَوَضَعَ مُوسَى رَأْسَهُ فَنَامَ قَالَ سُفْيَانُ وَفِي حَدِيثِ غَيْرِ عَمْرٍو قَالَ وَفِي أَصْلِ الصَّخْرَةِ عَيْنٌ يُقَالُ لَهَا الْحَيَاةُ لَا يُصِيبُ مِنْ مَائِهَا شَيْءٌ إِلَّا حَيِيَ فَأَصَابَ الْحُوتَ مِنْ مَاءِ تِلْكَ الْعَيْنِ قَالَ فَتَحَرَّكَ وَانْسَلَّ مِنَ الْمِكْتَلِ فَدَخَلَ الْبَحْرَ فَلَمَّا اسْتَيْقَظَ مُوسَى قَالَ لِفَتَاهُ آتِنَا غَدَاءَنَا الْآيَةَ قَالَ وَلَمْ يَجِدِ النَّصَبَ حَتَّى جَاوَزَ مَا أُمِرَ بِهِ قَالَ لَهُ فَتَاهُ يُوشَعُ بْنُ نُونٍ أَرَأَيْتَ إِذْ أَوَيْنَا إِلَى الصَّخْرَةِ فَإِنِّي نَسِيتُ الْحُوتَ الْآيَةَ قَالَ فَرَجَعَا يَقُصَّانِ فِي آثَارِهِمَا فَوَجَدَا فِي الْبَحْرِ كَالطَّاقِ مَمَرَّ الْحُوتِ فَكَانَ لِفَتَاهُ عَجَبًا وَلِلْحُوتِ سَرَبًا قَالَ فَلَمَّا انْتَهَيَا إِلَى الصَّخْرَةِ إِذْ هُمَا بِرَجُلٍ مُسَجًّى بِثَوْبٍ فَسَلَّمَ عَلَيْهِ مُوسَى قَالَ وَأَنَّى بِأَرْضِكَ السَّلَامُ فَقَالَ أَنَا مُوسَى قَالَ مُوسَى بَنِي إِسْرَائِيلَ قَالَ نَعَمْ قَالَ هَلْ أَتَّبِعُكَ عَلَى أَنْ تُعَلِّمَنِي مِمَّا عُلِّمْتَ رَشَدًا قَالَ لَهُ الْخَضِرُ يَا مُوسَى إِنَّكَ عَلَى عِلْمٍ مِنْ عِلْمِ اللَّهِ عَلَّمَكَهُ اللَّهُ لَا أَعْلَمُهُ وَأَنَا عَلَى عِلْمٍ مِنْ عِلْمِ اللَّهِ عَلَّمَنِيهِ اللَّهُ لَا تَعْلَمُهُ قَالَ بَلْ أَتَّبِعُكَ قَالَ فَإِنِ اتَّبَعْتَنِي فَلَا تَسْأَلْنِي عَنْ شَيْءٍ حَتَّى أُحْدِثَ لَكَ مِنْهُ ذِكْرًا فَانْطَلَقَا يَمْشِيَانِ عَلَى السَّاحِلِ فَمَرَّتْ بِهِمْ سَفِينَةٌ فَعُرِفَ الْخَضِرُ فَحَمَلُوهُمْ فِي سَفِينَتِهِمْ بِغَيْرِ نَوْلٍ يَقُولُ بِغَيْرِ أَجْرٍ فَرَكِبَا السَّفِينَةَ قَالَ وَوَقَعَ عُصْفُورٌ عَلَى حَرْفِ السَّفِينَةِ فَغَمَسَ مِنْقَارَهُ فِي الْبَحْرِ فَقَالَ الْخَضِرُ لِمُوسَى مَا عِلْمُكَ وَعِلْمِي وَعِلْمُ الْخَلَائِقِ فِي عِلْمِ اللَّهِ إِلَّا مِقْدَارُ مَا غَمَسَ هَذَا الْعُصْفُورُ مِنْقَارَهُ قَالَ فَلَمْ يَفْجَأْ مُوسَى إِذْ عَمَدَ الْخَضِرُ إِلَى قَدُومٍ فَخَرَقَ السَّفِينَةَ فَقَالَ لَهُ مُوسَى قَوْمٌ حَمَلُونَا بِغَيْرِ نَوْلٍ عَمَدْتَ إِلَى سَفِينَتِهِمْ فَخَرَقْتَهَا لِتُغْرِقَ أَهْلَهَا لَقَدْ جِئْتَ الْآيَةَ فَانْطَلَقَا إِذَا هُمَا بِغُلَامٍ يَلْعَبُ مَعَ الْغِلْمَانِ فَأَخَذَ الْخَضِرُ بِرَأْسِهِ فَقَطَعَهُ قَالَ لَهُ مُوسَى أَقَتَلْتَ نَفْسًا زَكِيَّةً بِغَيْرِ نَفْسٍ لَقَدْ جِئْتَ شَيْئًا نُكْرًا قَالَ أَلَمْ أَقُلْ لَكَ إِنَّكَ لَنْ تَسْتَطِيعَ مَعِيَ صَبْرًا إِلَى قَوْلِهِ فَأَبَوْا أَنْ يُضَيِّفُوهُمَا فَوَجَدَا فِيهَا جِدَارًا يُرِيدُ أَنْ يَنْقَضَّ فَقَالَ بِيَدِهِ هَكَذَا فَأَقَامَهُ فَقَالَ لَهُ مُوسَى إِنَّا دَخَلْنَا هَذِهِ الْقَرْيَةَ فَلَمْ يُضَيِّفُونَا وَلَمْ يُطْعِمُونَا لَوْ شِئْتَ لَاتَّخَذْتَ عَلَيْهِ أَجْرًا قَالَ هَذَا فِرَاقُ بَيْنِي وَبَيْنِكَ سَأُنَبِّئُكَ بِتَأْوِيلِ مَا لَمْ تَسْتَطِعْ عَلَيْهِ صَبْرًا فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَدِدْنَا أَنَّ مُوسَى صَبَرَ حَتَّى يَقُصَّ عَلَيْنَا مِنْ أَمْرِهِمَا قَالَ وَكَانَ ابْنُ عَبَّاسٍ يَقْرَأُ وَكَانَ أَمَامَهُمْ مَلِكٌ يَأْخُذُ كُلَّ سَفِينَةٍ صَالِحَةٍ غَصْبًا وَأَمَّا الْغُلَامُ فَكَانَ كَافِرًا

په ذکرشوی دریوارو بابونوکښې امام بخاری رحمه الله کښې حدیث خضر ذکر کړې دې. دا حدیث په کتاب العلم کښې "باب ماذکر فی ذهاب موسی علیه السلام فی البحر الی الخضر علیه السلام او باب مایستحب للعالم اذاسئل ای الناس اعلم" تحت تیرشویدې (١) اودَ دې متعلق تفصیلی بحثونه هم هلته تیرشوی دی.

## [۲۱۸] بَاب قُلْ هَلْ نُنَبِّئُكُمْ بِالْأَخْسَرِينَ أَعْمَالًا

[۴۴۵۱] (٢) حَدَّثَنِي مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ جَعْفَرٍ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ عَمْرِو بْنِ مُرَّةَ عَنْ مُصْعَبِ بْنِ سَعْدٍ قَالَ سَأَلْتُ أَبِي قُلْ هَلْ نُنَبِّئُكُمْ بِالْأَخْسَرِينَ أَعْمَالًا هُمْ الْحَرُورِيَّةُ قَالَ لَا هُمْ الْيَهُودُ وَالنَّصَارَى أَمَّا الْيَهُودُ فَكَذَّبُوا مُحَمَّدًا صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَأَمَّا النَّصَارَى فَكَفَرُوا بِالْجَنَّةِ وَقَالُوا لَا طَعَامَ فِيهَا وَلَا شَرَابَ وَالْحَرُورِيَّةُ الَّذِينَ يَنْقُضُونَ عَهْدَ اللَّهِ مِنْ بَعْدِ مِيثَاقِهِ وَكَانَ سَعْدٌ يُسَمِّيهِمْ الْفَاسِقِينَ

حضرت مصعب بن سعد دَ خپل والد صاحب حضرت سعدبن ابی وقاص رضی الله عنه نه تپوس اوکړو چه په آیت مبارك کښې "بِالْأَخْسَرِينَ أَعْمَالًا" نه کوم خلق مراد دی؟ آیا دَ دې نه حروری یعنی خارجی مراد دی؟ حضرت سعد رضی الله عنه اوفرمائیل دلته دَ دې نه یهود او نصاری مراد دی: یهودیانوخو دَ نبی کریم صلی الله علیه وسلم تکذیب کړې وو په دې وجه ئې ټول اعمال ضائع شو او نصاری دَ جنت نه انکار کړې او وئیلې په دې کښې به دَ خوراك څښاك هیڅ څیز نه ملاویږی. ترکومې چه دَ حروریه یعنی خوارجو تعلق دې نو دې نه مراد هغه خلق دی چاچه دَ الله تعالی عهد او میثاق مات کړو، حضرت سعد رضی الله عنه به هغوی ته فاسق وئیل.

په روایت کښې دی چه نصاری دَ جنت انکار اوکړو، حضرت کشمیری رحمه الله اوفرمائیل نصاری دَ روحانی جنت قائل دی دَ حسی جنت قائل نه دی (٣) دَ هغوی دا مذهب دَ فلسفې نقطه نظر سره نیزدې دې، هغوی هم دَ حسی جنت قائل نه دی لیکن بې شکه دَ نصاری دا خیال دَ تحریف پیداوار دې. دَ حسی جنت نقطه نظر دَ مذاهب سماویه اجماعی مسئله ده، دَ دې دَ پاره نصرانی آسمانی تعلیم خلاف هډو سوال نه پیداکیږی.

---

(١) (صحیح بخاری باب ماذکر فی ذهاب موسی فی البحر الی الخضر: ١٧/١ وایضا فی باب الخروج فی طلب العلم علی نفس الصفحة وباب ما یستحب للعالم اذاسئل ای الناس اعلم: ٢٣/١-

(٢) (واخرجه النسائی فی السنن الکبری فی التفسیر. باب قوله تعالی: هل ننبئکم بالاخسرین اعمالا. رقم الحدیث: ١١٣١٣، وهذا الحدیث لم یخرجه احد من اصحاب الستة سوی البخاری-

(٣) (فیض الباری: ٢٠٢/٤-

## [۲۱۹] باب أولئك الذين كفروا بآيات ربهم ولقائه فحبطت أعمالهم الآية

[۴۴۵۲] (۱) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ حَدَّثَنَا سَعِيدُ بْنُ أَبِي مَرْيَمَ أَخْبَرَنَا الْمُغِيرَةُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ قَالَ حَدَّثَنِي أَبُو الزِّنَادِ عَنِ الْأَعْرَجِ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ عَنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ إِنَّهُ لَيَأْتِي الرَّجُلُ الْعَظِيمُ السَّمِينُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ لَا يَزِنُ عِنْدَ اللَّهِ جَنَاحَ بَعُوضَةٍ وَقَالَ اقْرَءُوا فَلَا نُقِيمُ لَهُمْ يَوْمَ الْقِيَامَةِ وَزْنًا وَعَنْ يَحْيَى بْنِ بُكَيْرٍ عَنِ الْمُغِيرَةِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ عَنْ أَبِي الزِّنَادِ مِثْلَهُ

**دَ قيامت په ورځ به وزن دَ څه څيز وي؟:** بعضې حضراتودَ دې حديث نه استدلال کړې دې چه وزن به د سړو وي. په دې سلسله کښې دَ اهل علم اختلاف دې چه دَ قيامت په ورځ به وزن دَ اعمالو کيږي يا دَ اعمالودَ صحيفو وي يا دَ اشخاصو وي دريواړه قوله دي.

① بعضې حضرات وائي چه وزن به دَ اشخاصو کيږي هغوي دَ باب حديث نه استدلال کړې دې او حضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه متعلق دَ نبي کريم ﷺ دَ دې ارشاد نه استدلال کوي چه امام احمد رحمه الله روايت کړيدې، چه هغوي ﷺ دَ هغه متعلق فرمائيلي دي"اتعجبون من دقة ساقيه، والذي نفسي بيده، لهما في الميزان أثقل من احد (۲)

②اوبعضې حضرات وائي چه وزن به دَ اعمالو دَ صحيفو وي، داحضرات دَ بطاقه دَ حديث نه استدلال کوي کوم چه امام ترمذي رحمه الله نقل کړيدې چه دَ قيامت په ورځ به يو سړې راوستلې شي په ميزان کښې به يو طرف ته دَ هغه دَ اعمالو په بدله کښې يوکم سل صحيفې وي او په بله کښې به يوه بطاقه يعني پرچه کيخودې شي کوم کښې چه به صرف "لااله الاالله" ليکلې وي، نو دَ بطاقه طرف چاپړې به دروندشي. (۳)

③ليکن ډير علماء وائي چه وزن به دَ اعمالوکيږي، الله جل شانه به نيک اعمالو ته ښه او بدو اعمالو خراب صورت کښې بدل کړي او دا صورتونه به په تله کښې کيخودې شي. دا حضرات دَ حضرت براء بن عازب رضي الله عنه دَ روايت نه استدلال کوي چه په قبرکښې مؤمن ته يو ښکلې ځوان دَ چا نه چه به خوشبو خوريږي راشي هغه به دَ ده نه تپوس اوکړي چه ته څوک ئې؟ نو هغه ځوان به په جواب کښې اووائي "اناعملك الصالح" زه ستا هغه نيک عمل يم او دَ کافر او منافق باره کښې به دَ دې خلاف کيږي. (۴) دَ دې حديث نه معلومه شوه چه اعمال به

---

(۱)(واخرجه مسلم في صفات المنافقين واحكامهم، کتاب صفة القيامة والجنة والنار، رقم الحديث: ۲۷۸۵-

(۲)(رواه احمد: ۴۲۰/۱ کذافي تفسير سورة الکهف: ۲۹۵-

(۳)(سنن الترمذي، کتاب الايمان، باب ماجاء فيمن يموت، وهو يشهد ان لااله الاالله:۲۵/۵ رقم ۲۶۳۹-

(۴)(رواه احمد: ۲۸۷/۵ کذافي تفسير سورة الکهف:۲۹۵ —

دَ صورت شكل اختيار كړى نو وزن په دَ اعمالو وى. باقى حديث باب او آيت "فلانقيم لهم يوم القيامة وزنا" مطلب دا دې چه دَ الله تعالى په نيز به دَ هغې هيڅ اهميت نه وى. حضرت كشميرى رحمه الله فرمائى: قوله "فلانقيم لهم يوم القيامة وزنا" يعنى مع كون الكفار لحياشحيما فى الدنيا، ليس لاعمالهم وزن عندالله تعالى وقد استدل منه على وزن الاشخاص ايضاً، والصواب ان المرادمنه وزن الاعمال فقط، وانما تعرض الى عدم وزن انفسهم، اشارى الى انهم ممن لاعبادة بهم عندالله تعالى (١)

## [٢٢٠] باب: تفسير سورة مريم

قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ أَسْمِعْ بِهِمْ وَأَبْصِرْ اللَّهُ يَقُولُهُ وَهُمُ الْيَوْمَ لَا يَسْمَعُونَ وَلَا يُبْصِرُونَ فِي ضَلَالٍ مُبِينٍ يَعْنِي قَوْلَهُ أَسْمِعْ بِهِمْ وَأَبْصِرْ الْكُفَّارُ يَوْمَئِذٍ أَسْمَعُ شَيْءٍ وَأَبْصَرُهُ لَأَرْجُمَنَّكَ لَأَشْتِمَنَّكَ وَرِئْيًا مَنْظَرًا وَقَالَ أَبُو وَائِلٍ عَلِمَتْ مَرْيَمُ أَنَّ التَّقِيَّ ذُو نُهْيَةٍ حَتَّى قَالَتْ إِنِّي أَعُوذُ بِالرَّحْمَنِ مِنْكَ إِنْ كُنْتَ تَقِيًّا وَقَالَ ابْنُ عُيَيْنَةَ تَؤُزُّهُمْ أَزًّا تُزْعِجُهُمْ إِلَى الْمَعَاصِي إِزْعَاجًا وَقَالَ مُجَاهِدٌ إِدًّا عِوَجًا قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ وِرْدًا عِطَاشًا أَثَاثًا مَالًا إِدًّا قَوْلًا عَظِيمًا رِكْزًا صَوْتًا غَيًّا خُسْرَانًا وَقَالَ مُجَاهِدٌ فَلْيَمْدُدْ فَلْيَدَعْهُ وَقَالَ غَيْرُهُ بُكِيًّا جَمَاعَةُ بَاكٍ صِلِيًّا صَلِيَ يَصْلَى نَدِيًّا وَالنَّادِي وَاحِدٌ مَجْلِسًا

### سُورَةُ كهيعص

**قوله: قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ أَسْمِعْ بِهِمْ وَأَبْصِرْ اللَّهُ يَقُولُهُ وَهُمُ الْيَوْمَ لَا يَسْمَعُونَ وَلَا يُبْصِرُونَ:** آيت كښې دى "أَسْمِعْ بِهِمْ وَأَبْصِرْ يَوْمَ يَأْتُونَنَا لَٰكِنِ الظَّالِمُونَ الْيَوْمَ فِي ضَلَالٍ مُبِينٍ" حضرت ابن عباس رضى الله عنه اوفرمائيل چه "أَسْمِعْ بِهِمْ وَأَبْصِرْ" دادَ الله تعالى ارشاد دې اودَ دې مطلب دا دې چه په قيامت كښې كله دوى مونږ له راشى نو لوئ كتونكې او لوئ اوريدونكې به وى خو په دنيا كښې په دې وخت نه حق خبره اورى او نه دَ حقائقوته دَ كتلودَ پاره تيار دى.(٢) "فِي ضَلَالٍ مُبِينٍ" يو تفسير هم امام بخارى رحمه الله دلته نقل نه كړو، آيت دلته ختميږى په دې وجه دَ دې ذكر دلته كړې دې. باقى "فِي ضَلَالٍ مُبِينٍ" مطلب دادې چه په دنيا كښې نه حق اورى او نه حقائقوته ګورى، داتعليق ابن ابى حاتم موصولاً نقل كړيدې. (٣)

صيغهٔ تعجب "أَسْمِعْ بِهِمْ وَأَبْصِرْ" باندې دا اشكال كيږى چه تعجب كول خودَ الله تعالى دَ شان

---

(١)(فيض البارى: ٢٠٣/٤-

(٢)(لامع الدرارى: ١٣١/٩-١٣٢ وقال الشيخ زكريا رحمه الله تعليقاته: ١٣١/٩ "والمراد بقوله تعالى" مكن الظالمون اليوم..." اى فى الدنيا، وقوله تعالى: "فى ضلال مبين" معناه لايسمعون ولايصرون، قوله: لايسمعون ولايبصرون تفسير لقوله: "فى ضلال مبين

(٣)(عمدة القارى: ٥٠/١٩_

سره مناسب نه دى او تعجب خو ناواقف ته كيږى نو دَ دې جواب دا كيديشى. چه دَ الله تعالى كمال بنديګانو سره دَ محاوراتو مطابق وى په دې وجه په كومه موقع چه دَ تعجب اظهاركولې شى الله تعالى هلته تعجب ذكر كوى چه بې تكلفه مطلب باندې پوهه شى. دَ دې كيفيت څه وى؟ مونږ دې نه خبر نه يو. فان الحق ان كل ماورد به الشرع فهو ثابت فى جنابه تعالى نعم لابد ان ينزه جنابه مايجب التنزيه له([1])

**د كلماتو تشريح:**

**قوله:** لَأَرْجُمَنَّكَ: لَأَشْتِمَنَّكَ: په آيت كښې دى "يَٰٓإِبْرَٰهِيمُ ۖ لَئِن لَّمْ تَنتَهِ لَأَرْجُمَنَّكَ ۖ وَٱهْجُرْنِى مَلِيًّا" فرمائى چه په آيت كښې معنى ده "زه به تاته كنځل كوم" كوم كښې چه دې طرف ته اشاره ده چه دَ رجم نه مراد رجم باللسان دې رجم بالحجارة مراد نه دې، بعضې حضرات وهل هم مراد واخستو ([2])

**قوله:** وَرِءْيًا مَنظَرًا: آيت كښې دى "وَكَمْ أَهْلَكْنَا قَبْلَهُم مِّن قَرْنٍ هُمْ أَحْسَنُ أَثَٰثًا وَرِءْيًا" معنى سامان او اسباب دې او رئيا معنى دَ منظر ده يعنى هغوى سره سازوسامان هم ښه وو او په كتلوكښې هم ډير ښكلې په نظر راتله.

**قوله:** وَقَالَ أَبُو وَائِلٍ عَلِمَتْ مَرْيَمُ أَنَّ التَّقِيَّ ذُو نُهْيَةٍ حَتَّى قَالَتْ إِنِّي أَعُوذُ بِالرَّحْمَٰنِ مِنكَ إِن كُنتَ تَقِيًّا بَاب قَوْلِهِ وَأَنذِرْهُمْ يَوْمَ الْحَسْرَةِ: داتعليق په بعض نسخوكښې نشته، امام بخارى رحمه الله دا تعليق دَ دينه اول په كتاب الانبياء كښې "باب قول الله عزوجل: واذكر فى الكتاب مريم..." تحت صفحه ۴۶۸ باندې ذكر كړيدې، ابووائل شقيق بن سلمه فرمائى چه حضرت مريم ته داخبره معلومه وه چه پرهيزګاره سړې دَ عقل خاوند وى او خراب كارنه منع كيږى نوهله خو ئى. فرښته دَ پردى سړى په شكل كښې كتلوسره اووئيل "ماته ستانه دَ رحمن پناه، كه ته متقى او ويره لرونكې ئى" علامه شبيراحمد عثمانى صاحب دَ دې آيت تحت ليكى: بى بى مريم په اول ځل كښې پوهه شوه چه څوك سړې دې په خان له ځائ كښې اچانك يو سړې مخې ته راتللو سره قدرتى توګه باندې اوويريدله او دَ خپل حفاظت فكر ئى شروع كړو مګر معلوميږى چه دَ فرښتې په مخ دَ تقوى او طهارت انوار پرقيدل نو هم دومره وينا كول ئى پوره اوګڼړل چه زه ستانه دَ رحمن په پناه كښې راځم كه ستا په زړه كښې دَ الله تعالى ويره وى نو زما نه به لاړ شې او ماسره به څه غرض نه كوې. نهية: عقل ينهاه عن فعل القبيح، نهية عقل ته وائى.

**قوله:** وَقَالَ ابْنُ عُيَيْنَةَ: تَؤُزُّهُمْ: أَزًّا تُزْعِجُهُمْ إِلَى الْمَعَاصِي إِزْعَاجًا: آيت كښې دى

---

[1] (ملخص من حاشية البدرالسارى (جزو ٤ ص٢٠٣)-

[2] (عمدة القارى: ١٩/٥٠-

"اَلَمۡ تَرَ اَنَّاۤ اَرۡسَلۡنَا الشَّیٰطِیۡنَ عَلَی الۡکٰفِرِیۡنَ تَؤُزُّهُمۡ اَزًّا" (ته چه دَ دغه كفارو په ګمراهئی باندې خفه كيږې نو) آيا تاته معلومه نه ده چه مونږ شيطانان په كافرانو باندې ورخلاص كړى دى هغوى كافران ښه راوچتوى. حضرت سفيان بن عينيه رحمه الله فرمائى "تؤزهم" معنى شيطانان چه هغوى دَ ګناهونوطرف ته ديكه كوى.

**قوله:** وَقَالَ مُجَاهِدٌ: إِدًّا عِوَجًا: آيت كښې دى "لَقَدۡ جِئۡتُمۡ شَیۡـًٔا اِدًّا" تا ارتكاب اوكړو دَ داسې څيز چه كوګ دې په بعضې نسخوكښې دى "لدا: عوجا" "فَاِنَّمَا یَسَّرۡنٰهُ بِلِسَانِکَ لِتُبَشِّرَ بِهِ الۡمُتَّقِیۡنَ وَ تُنۡذِرَ بِهٖ قَوۡمًا لُّدًّا" لدًّا معنى بيان شويده كوګ قوماًلدا كوګ قوم، جګړه مار قوم، عِوَجا او عُوَجا دواړه قسمه لوستلې شويدې معنى دَ دواړو يو شان ده. دې نه پس اداً تفسير دَ قول عظيم سره كړې دې. دا ارشاد دَ الله تعالى اولاد ثابت كولو "اَنۡ دَعَوۡا لِلرَّحۡمٰنِ وَلَدًا" باندې فرمائيلې شويدې او بې شكه داغلط هم دې او ګران هم.

**قوله:** قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ: وِرْدًا: عِطَاشًا: آيت كښې دى "وَّ نَسُوۡقُ الۡمُجۡرِمِیۡنَ اِلٰی جَهَنَّمَ وِرۡدًا"[1] مونږ به په هغه ورځ مجرمان دَ دوزخ طرف ته دَ تندې په حالت كښې شړو.

**قوله:** أَثَاثًا: مَالًا: "هُمۡ اَحۡسَنُ اَثَاثًا وَّ رِءۡیًا" (ترجمه تيره شويده) په دې كښې دَ اثاثا معنى دَ مال ده.

**قوله:** رِكْزًا: صَوْتًا: آيت كښې دى "وَ کَمۡ اَهۡلَکۡنَا قَبۡلَهُمۡ مِّنۡ قَرۡنٍ ؕ هَلۡ تُحِسُّ مِنۡهُمۡ مِّنۡ اَحَدٍ اَوۡ تَسۡمَعُ لَهُمۡ رِکۡزًا" يعنى څومره بدبخته قومونه دَ خپلو جرمونو په بدله كښې هلاك كړيشوى دى. نن دَ هغوى دَ پښوكش كړپ يا دَ هغوى دَ خراب ګړارى آواز هم نه راځى. امام بخارى رحمه الله ركز تفسير په صوت سره كړيدې ليكن ركزصوت خفى يعنى په مزه آواز ته وائى.

**قوله:** غَيًّا: خُسْرَانًا: آيت كښې دى "وَاتَّبَعُوا الشَّهَوٰتِ فَسَوۡفَ یَلۡقَوۡنَ غَیًّا" دَ "غَيًّا" معنى ده خسران تاوان نقصان. حضرت ابن عباس رضي الله عنه نه نقل دى چه غى دَ دوزه دَ يوداسې غار نوم دې كوم نه چه پخپله دوزخ آمان غواړى. [2]زمونږ په هندوستانى نسخه كښې دَ "غَيًّا" په ځاى عتيا معنى حدنه بهركيدو او انتهائى درجې ته دَ رسيدو ده. آيت كښې دى "وَّقَدۡ بَلَغۡتُ مِنَ الۡکِبَرِ عِتِیًّا" اوزه دَ بوډاوالى انتهائى درجې ته رسيدلې يم. په عامو نسخوكښې دا لفظ نشته بلكه غيا دې دَ كوم معنى چه خسران دې لكه چه پورته ذكرشو.

**قوله:** بُكِيًّا: جماعة باك: آيت مبارك كښې دى "خَرُّوۡا سُجَّدًا وَّ بُکِیًّا" ابوعبيده رضي الله عنه بكيا دَ باك

---

[1] (قوله: وردا جماعة يردون الماء، اسم على لفظ المصدر (عمدة القارى: ۵۲/۱۹)-

[2] (وعن ابن مسعود: الغى وادفى جهنم. بعيد القعر. وعن عطاء. الغى وادفى جهنم. يسيل قيحاً ودما. وعن كعب. هووافى جهنم. ابعد هاقعرا واشدهاحرا-(عمدة القارى: ۵۱/۱۹)

جمع گرځولي ده هم دا امام نقل کوی خو په دې باندې اشکال دې چه دَ بکاء جمع خو بکاة راځي لکه دَ قاضي جمع چه قضاة ده لیکن علامه عیني رحمه الله فرمائي چه بکیا اصل کښې بکوی په وزن دَ فعول دې. لکه قاعد جمع چه قعود ده. بکوی کښې واؤ او یاء دواړه جمع شو او په دې کښې ړومبې یعني واؤ ساکن دې په دې وجه واؤ په یاء سره بدل کړې شو او بیا دَ یاء په یاء باندې ادغام اوکړیشو اودَ ضمه دَ یاء په وجه په زیر سره بدله شوه نو بکیا شو.

**قوله: صلیاً: صلي، یصلي:** آیت کښې دی "ثُمَّ لَنَحْنُ أَعْلَمُ بِالَّذِينَ هُمْ أَوْلَىٰ بِهَا صِلِيًّا" فرمائي صلیا صلي یصلي نه ماخوذ دې دَ څه معنی چه په اُورکښې دَ داخلیدلو او سوزیدلو راځي، مطلب دا دې چه مونږ ته معلومه دی هغه خلق چه په اُورکښې دَ داخلیدلو ډیر لائق او ډیر مناسب دی.

**قوله: ندیاً: والنادي واحد: مجلساً:** په آیت کښې دی "أَيُّ الْفَرِيقَيْنِ خَيْرٌ مَقَامًا وَأَحْسَنُ نَدِيًّا" فرمائي دَ ندی او نادی دواړو معنی مجلس ده.

**قوله: وقال مجاهد: لیمدد: فلیدعه:** آیت مبارك کښې دی "قُلْ مَنْ كَانَ فِي الضَّلَالَةِ فَلْيَمْدُدْ لَهُ الرَّحْمَٰنُ مَدًّا" یعني اووایه چه په گمراهئ کښې پراته دی نو پکار دی چه دوی آزاد پریږدی رحمن په هغه لار دَ تلودَ پاره چه دَ نیك اوبد خبرورکولونه پس کله چه څوك په خپله مرضئ سرد دَ بدئ لار اختیار کړی نو هم هغه به دَ دې ذمه وار وی، فلیمدد تفسیر فلیدعه سره کړیدې. دا زمونږ دَ متن په نسخه کښې نشته په هندوستانی نسخه کښې دې.[1]

## [۲۲۱] باب: وانذرهم یوم الحسرة

[۴۴۵۳] حَدَّثَنَا عُمَرُ بْنُ حَفْصِ بْنِ غِيَاثٍ حَدَّثَنَا أَبِي حَدَّثَنَا الْأَعْمَشُ حَدَّثَنَا أَبُو صَالِحٍ عَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُؤْتَى بِالْمَوْتِ كَهَيْئَةِ كَبْشٍ أَمْلَحَ فَيُنَادِي مُنَادٍ يَا أَهْلَ الْجَنَّةِ فَيَشْرَئِبُّونَ وَيَنْظُرُونَ فَيَقُولُ هَلْ تَعْرِفُونَ هَذَا فَيَقُولُونَ نَعَمْ هَذَا الْمَوْتُ وَكُلُّهُمْ قَدْ رَآهُ ثُمَّ يُنَادِي يَا أَهْلَ النَّارِ فَيَشْرَئِبُّونَ وَيَنْظُرُونَ فَيَقُولُ هَلْ تَعْرِفُونَ هَذَا فَيَقُولُونَ نَعَمْ هَذَا الْمَوْتُ وَكُلُّهُمْ قَدْ رَآهُ فَيُذْبَحُ ثُمَّ يَقُولُ يَا أَهْلَ الْجَنَّةِ خُلُودٌ فَلَا مَوْتَ وَيَا أَهْلَ النَّارِ خُلُودٌ فَلَا مَوْتَ ثُمَّ قَرَأَ وَأَنْذِرْهُمْ يَوْمَ الْحَسْرَةِ إِذْ قُضِيَ الْأَمْرُ وَهُمْ فِي غَفْلَةٍ وَهَؤُلَاءِ فِي غَفْلَةٍ أَهْلُ الدُّنْيَا وَهُمْ لَا يُؤْمِنُونَ

---

[1] (واخرجه مسلم فی الجنة وصفة نعیمها واهلها، باب النار یدخلها الجبارون، رقم الحدیث: ۲۸۴۹ وباب وانذهم یوم الحسرة قم الحدیث: ۱۱۳۱۶ واخرجه الترمذی فی التفسیر، باب سوری مریم، رقم الحدیث: ۳۱۵۶ واخرجه النسائی فی السنن الکبری فی التفسیر رقم الحدیث: ۱۱۳۱۶-

**قوله: یؤتی بالموت کهیئة کبش املح:** (۱)مرګ به دَ برګ ګډ په شکل کښې راوستې شي. دلته اشکال دا پیدا کیږی چه مرګ خو یو عرض دې دا به دَ ګډ په شکل کښې څنګه راوستې شي. علامه مارزی رحمه الله فرمائیل چه دا کلام علی سبیل التمثیل یعنی دَ مثال په توګه دې دینه مقصود صرف دا دې چه آئنده به چا له مرګ نه راځی. (۲) بعضو وئیلی دی چه په اصل کښې به هم ګډ راوستې شی او دَ خلقو په خیال کښې به دا خبره واچولې شی چه دا مرګ دې. (۳)- خو اکثر حضرات وائی چه هم مرګ ته به الله تعالی دَ ګډ شکل ورکړی (۴)- دَ اعراض دَ اجسام په شکل کښې بدلون څه مستبعد نه دې بلکه جدید سائنس خو داسې آلات ایجادکړی دی کوم سره چه اعراض په جسم کښې مخامخ راځی نو که دَ آخرت په حالاتوکښې داسې واقعه اوشی نو په دې باندې هیڅ قسم اشکال نشی کیدې.

**قوله: فیشرئبون، وینظرون:** نوسټ به اوچتوی او ګوری به. اشراب (دَ اقشعر په وزن) سټ اوچتول او کتل.

**قوله: یاأهل الجنة، خلود، فلاموت، ویاأهل النار، خلود، فلاموت:** مرګ به حلال کړیشی او هغې نه پس به دا اعلان کیږی، ذبح کونکې به حضرت جبرائیل علیه السلام وی، بعضو وئیلی دی حضرت یحیی علیه السلام به ئی ذبح کوی ځکه چه دَ هغوی نوم دَ حیات نه مشتق دې او حیات دَ مرګ منافی دې.(۵) ـ

**جنت او دوزخ دائمی دې:** دینه پس به اهل جنت دَ همیشه دَ پاره په جنت کښې او اهل دوزخ به دَ همیشه دَ پاره دوزخ کښې وی دَ جمهوروبلکه دَ ټولو اهل سنت والجماعت همدغه عقیده ده. البته علامه ابن تیمیه رحمه الله اودَ هغوی شاګرد ابن القیم رحمه الله وائی چه جنت خو به دائمی وی خودَ دوزخ عذاب دائمی نه دې. دَ یوې اوږدې مودې پورې به دوزخ وی کوم چه الله تعالی خلود سره تعبیر کړیدې اودَ دې نه پس به دَ الله تعالی په فضل اوکرم سره دوزخ او دوزخیان ختم کړی (۶)- خودَ هغوی دا قول شاذ او دَ جمهورو دَ عقیدې خلاف (۷)- اودَ هغه ټولو نصوصو سره متعارض دې کوم کښې چه دَ خلودفی النار تصریح راغلې ده. که دوزخ

---

(۱)(ابیض یشوبه سواد (تعلیقات البخاری للدکتور مصطفی:۱۷۶۰/٤)

(۲)(عمة القاری۵۲/۱۹ ورفع الصوت بذبح الموت للسیوطی:۹۶ فتح الباری:٤۲۱/۱۱ کتاب الرقاق

(۳)(اوګورئی الحاوی للفتاوی للسیوطی، رفع الصوت بذبح الموت:۹۶

(۴)(عمدة القاری:۵۲/۱۹

(۵)(عمدة القاری:۵۲/۱۹ وفیض الباری:۲۰۳/٤

(۶)( اوګورئی العرف الشذی شرح جامع الترمذی، باب ماجاء فی خلود اهل الجنة والنار:۸۲/۲، والصواعق المرسلة لابن القیم

(۷)(قال الالوسی رحمه الله فی روح المعانی:۱٤۶/۱۲ "وانت تعلم ان خلود الکفار مماجمع علیه المسلمون، ولاعبرة بالمخالف، والقواطع اکثر من ان تحصی"

ځمول وو نو بيا د انبياء ﷺ سره د كافرانودا مقابله او د انبياء ﷺ زحمتونه او تكليفونه اوچتول تول به بې فائدې او بې مقصده كيږى د دې وجه نه د اهل سنت والجماعة دا عقيده ده چه څنګه د جنت د پاره خلود دې دغه شان د دوزخ د پاره هم خلود يعنى هميشه والې دې.ددې نورتفصيل ان شاء الله كتاب الرقاق كښې باب صفة الجنة والنار په ذيل كښې راځى.

## [۲۲۲] بَاب وَمَا نَتَنَزَّلُ إِلَّا بِأَمْرِ رَبِّكَ لَهُ مَا بَيْنَ أَيْدِينَا وَمَا خَلْفَنَا

[۴۴۵۴] حَدَّثَنَا أَبُو نُعَيْمٍ حَدَّثَنَا عُمَرُ بْنُ ذَرٍّ قَالَ سَمِعْتُ أَبِي عَنْ سَعِيدِ بْنِ جُبَيْرٍ عَنْ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِجِبْرِيلَ مَا يَمْنَعُكَ أَنْ تَزُورَنَا أَكْثَرَ مِمَّا تَزُورُنَا فَنَزَلَتْ وَمَا نَتَنَزَّلُ إِلَّا بِأَمْرِ رَبِّكَ لَهُ مَا بَيْنَ أَيْدِينَا وَمَا خَلْفَنَا

## [۲۲۳] بَاب قَوْلِهِ أَفَرَأَيْتَ الَّذِي كَفَرَ بِآيَاتِنَا وَقَالَ لَأُوتَيَنَّ مَالًا وَوَلَدًا

[۴۴۵۵] حَدَّثَنَا الْحُمَيْدِيُّ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ الْأَعْمَشِ عَنْ أَبِي الضُّحَى عَنْ مَسْرُوقٍ قَالَ سَمِعْتُ خَبَّابًا قَالَ جِئْتُ الْعَاصَ بْنَ وَائِلٍ السَّهْمِيَّ أَتَقَاضَاهُ حَقًّا لِي عِنْدَهُ فَقَالَ لَا أُعْطِيكَ حَتَّى تَكْفُرَ بِمُحَمَّدٍ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقُلْتُ لَا حَتَّى تَمُوتَ ثُمَّ تُبْعَثَ قَالَ وَإِنِّي لَمَيِّتٌ ثُمَّ مَبْعُوثٌ قُلْتُ نَعَمْ قَالَ إِنَّ لِي هُنَاكَ مَالًا وَوَلَدًا فَأَقْضِيكَهُ فَنَزَلَتْ هَذِهِ الْآيَةُ أَفَرَأَيْتَ الَّذِي كَفَرَ بِآيَاتِنَا وَقَالَ لَأُوتَيَنَّ مَالًا وَوَلَدًا رَوَاهُ الثَّوْرِيُّ وَشُعْبَةُ وَحَفْصٌ وَأَبُو مُعَاوِيَةَ وَوَكِيعٌ عَنْ الْأَعْمَشِ

## [۲۲۴] بَاب قَوْلِهِ أَطَّلَعَ الْغَيْبَ أَمْ اتَّخَذَ عِنْدَ الرَّحْمَنِ عَهْدًا قَالَ مَوْثِقًا

[۴۴۵۶] حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ كَثِيرٍ أَخْبَرَنَا سُفْيَانُ عَنْ الْأَعْمَشِ عَنْ أَبِي الضُّحَى عَنْ مَسْرُوقٍ عَنْ خَبَّابٍ قَالَ كُنْتُ قَيْنًا بِمَكَّةَ فَعَمِلْتُ لِلْعَاصِ بْنِ وَائِلٍ السَّهْمِيِّ سَيْفًا فَجِئْتُ أَتَقَاضَاهُ فَقَالَ لَا أُعْطِيكَ حَتَّى تَكْفُرَ بِمُحَمَّدٍ قُلْتُ لَا أَكْفُرُ بِمُحَمَّدٍ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَتَّى يُمِيتَكَ اللَّهُ ثُمَّ يُحْيِيَكَ قَالَ إِذَا أَمَاتَنِي اللَّهُ ثُمَّ بَعَثَنِي وَلِي مَالٌ وَوَلَدٌ فَأَنْزَلَ اللَّهُ أَفَرَأَيْتَ الَّذِي كَفَرَ بِآيَاتِنَا وَقَالَ لَأُوتَيَنَّ مَالًا وَوَلَدًا أَطَّلَعَ الْغَيْبَ أَمْ اتَّخَذَ عِنْدَ الرَّحْمَنِ عَهْدًا قَالَ مَوْثِقًا لَمْ يَقُلْ الْأَشْجَعِيُّ عَنْ سُفْيَانَ سَيْفًا وَلَا مَوْثِقًا

**د ايت كريمه شان نزول:** په روايت كښې د آيت مبارك شان نزول بيان كړيشويدې. حضرت خباب فرمائى چه زه په مكه كښې لوهار ووم او ما د عاص بن وائل د پاره يوه توره جوړه كړې وه، د پيسو غوښتود پاره زه هغه له راغلم نو هغه وئيل چه تركومې دې د محمد ﷺ انكار نه وى كړې تاته به پيسې درنه كړم. ماوئيل چه زه د محمد ﷺ د نبوت انكار نه كوم كه تا الله تعالى مړ كړې او بيا دې راژوندې ولې نه كړې. هغه وئيل كه الله تعالى ما مړ كړې او بيا ژوندې شم نو هغه وخت به هم ما سره مال او اولاد وى (نو ته بيا هغه وخت كښې زما نه اجرت واخله) په دې واقعه باندې دا مذكوره آيت نازل شو.

عبيدالله بن عبدالرحمن اشجعى هم دا روايت د سفيان ثورى نه روايت كړيدې خو په هغې كښې نه د تورې جوړيدو ذكر دې اونه د لفظ "عهد" تفسير "موثقا" نقل دې.

**قوله: عهدًا: موثقاً:** "طَلَعَ الْغَيْبَ أَمِ اتَّخَذَ عِنْدَ الرَّحْمٰنِ عَهْدًا" آيا دا سړې په غيبوخبردار شو يا د د الله تعالى نه وعده اخستې ده.په دې كښې د "عَهْدًا" معنى موثقا ده په معنى مضبوط اقرار.

## [٢٢٥] بَاب كَلَّا سَنَكْتُبُ مَا يَقُولُ وَنَمُدُّ لَهُ مِنَ الْعَذَابِ مَدًّا

[٤٤٥٧] حَدَّثَنَا بِشْرُ بْنُ خَالِدٍ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ جَعْفَرٍ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ سُلَيْمَانَ سَمِعْتُ أَبَا الضُّحَى يُحَدِّثُ عَنْ مَسْرُوقٍ عَنْ خَبَّابٍ قَالَ كُنْتُ قَيْنًا فِي الْجَاهِلِيَّةِ وَكَانَ لِي دَيْنٌ عَلَى الْعَاصِ بْنِ وَائِلٍ قَالَ فَأَتَاهُ يَتَقَاضَاهُ فَقَالَ لَا أُعْطِيكَ حَتَّى تَكْفُرَ بِمُحَمَّدٍ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ وَاللَّهِ لَا أَكْفُرُ حَتَّى يُمِيتَكَ اللَّهُ ثُمَّ يَبْعَثَكَ قَالَ فَذَرْنِي حَتَّى أَمُوتَ ثُمَّ أُبْعَثَ فَسَوْفَ أُوتَى مَالًا وَوَلَدًا فَأَقْضِيكَ فَنَزَلَتْ هَذِهِ الْآيَةُ أَفَرَأَيْتَ الَّذِي كَفَرَ بِآيَاتِنَا وَقَالَ لَأُوتَيَنَّ مَالًا وَوَلَدًا

## [٢٢٦] بَاب قَوْلِهِ عَزَّ وَجَلَّ وَنَرِثُهُ مَا يَقُولُ وَيَأْتِينَا فَرْدًا وَقَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ الْجِبَالُ هَدًّا هَدْمًا

آيت مبارك كښې دى "تَنْشَقُّ الْأَرْضُ وَتَخِرُّ الْجِبَالُ هَدًّا" اوزمكه به اوشليږى او غرونه به مات شى. حضرت ابن عباس رضي الله عنهما فرمائى چه په آيت كښې "هَدًّا" په معنى "هَدْمًا" دې.

[٤٤٥٨] حَدَّثَنَا يَحْيَى حَدَّثَنَا وَكِيعٌ عَنِ الْأَعْمَشِ عَنْ أَبِي الضُّحَى عَنْ مَسْرُوقٍ عَنْ خَبَّابٍ قَالَ كُنْتُ رَجُلًا قَيْنًا وَكَانَ لِي عَلَى الْعَاصِ بْنِ وَائِلٍ دَيْنٌ فَأَتَيْتُهُ أَتَقَاضَاهُ فَقَالَ لِي لَا أَقْضِيكَ حَتَّى تَكْفُرَ بِمُحَمَّدٍ قَالَ قُلْتُ لَنْ أَكْفُرَ بِهِ حَتَّى تَمُوتَ ثُمَّ تُبْعَثَ قَالَ وَإِنِّي لَمَبْعُوثٌ مِنْ بَعْدِ الْمَوْتِ فَسَوْفَ أَقْضِيكَ إِذَا رَجَعْتُ إِلَى مَالٍ وَوَلَدٍ قَالَ فَنَزَلَتْ أَفَرَأَيْتَ الَّذِي كَفَرَ بِآيَاتِنَا وَقَالَ لَأُوتَيَنَّ مَالًا وَوَلَدًا أَطَّلَعَ الْغَيْبَ أَمِ اتَّخَذَ عِنْدَ الرَّحْمَنِ عَهْدًا كَلَّا سَنَكْتُبُ مَا يَقُولُ وَنَمُدُّ لَهُ مِنَ الْعَذَابِ مَدًّا وَنَرِثُهُ مَا يَقُولُ وَيَأْتِينَا فَرْدًا

## [٢٢٧] بَاب: تفسير سُورَةُ طٰهٰ

قَالَ ابْنُ جُبَيْرٍ بِالنَّبَطِيَّةِ أَيْ طَهْ يَا رَجُلُ يُقَالُ كُلُّ مَا لَمْ يَنْطِقْ بِحَرْفٍ أَوْ فِيهِ تَمْتَمَةٌ أَوْ فَأْفَأَةٌ فَهِيَ عُقْدَةٌ وَقَالَ مُجَاهِدٌ أَلْقَى صَنَعَ أَزْرِي ظَهْرِي فَيُسْحِتَكُمْ يُهْلِكَكُمْ الْمُثْلَى تَأْنِيثُ الْأَمْثَلِ يَقُولُ بِدِينِكُمْ يُقَالُ خُذْ الْمُثْلَى خُذْ الْأَمْثَلَ ثُمَّ ائْتُوا صَفًّا يُقَالُ هَلْ أَتَيْتَ الصَّفَّ الْيَوْمَ يَعْنِي الْمُصَلَّى الَّذِي يُصَلَّى فِيهِ فَأَوْجَسَ فِي نَفْسِهِ خَوْفًا فَذَهَبَتْ الْوَاوُ مِنْ خِيفَةً لِكَسْرَةِ الْخَاءِ فِي جُذُوعِ أَيْ عَلَى جُذُوعِ النَّخْلِ خَطْبُكَ بَالُكَ مِسَاسَ مَصْدَرُ مَاسَّهُ مِسَاسًا لَنَنْسِفَنَّهُ لَنَذْرِيَنَّهُ قَاعًا يَعْلُوهُ الْمَاءُ وَالصَّفْصَفُ الْمُسْتَوِي مِنْ الْأَرْضِ وَقَالَ مُجَاهِدٌ أَوْزَارًا أَثْقَالًا مِنْ زِينَةِ الْقَوْمِ

وَهِيَ الْحُلِيُّ الَّتِي اسْتَعَارُوا مِنْ آلِ فِرْعَوْنَ وَهِيَ الْأَثْقَالُ فَقَذَفْتُهَا فَأَلْقَيْتُهَا أَلْقَى صَنَعَ فَنَسِيَ مُوسَى هُمْ يَقُولُونَهُ أَخْطَأَ الرَّبَّ لَا يَرْجِعُ إِلَيْهِمْ قَوْلًا الْعِجْلِ هَمْسًا حِسُّ الْأَقْدَامِ حَشَرْتَنِي أَعْمَى عَنْ حُجَّتِي وَقَدْ كُنْتُ بَصِيرًا فِي الدُّنْيَا قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ بِقَبَسٍ ضَلُّوا الطَّرِيقَ وَكَانُوا شَاتِينَ (١) فَقَالَ إِنْ لَمْ أَجِدْ عَلَيْهَا مَنْ يَهْدِي الطَّرِيقَ آتِكُمْ بِنَارٍ تُوقِدُونَ وَقَالَ ابْنُ عُيَيْنَةَ أَمْثَلُهُمْ أَعْدَلُهُمْ طَرِيقَةً وَقَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ هَضْمًا لَا يُظْلَمُ فَيُهْضَمُ مِنْ حَسَنَاتِهِ عِوَجًا وَادِيًا وَلَا أَمْتًا رَابِيَةً سِيرَتَهَا حَالَتَهَا الْأُولَى النُّهَى التُّقَى ضَنْكًا الشَّقَاءُ هَوَى شَقِيَ بِالْوَادِي الْمُقَدَّسِ الْمُبَارَكِ طُوًى اسْمُ الْوَادِي يَفْرُطُ عُقُوبَةً بِمِلْكِنَا بِأَمْرِنَا مَكَانًا سِوًى مَنْصَفٌ بَيْنَهُمْ يَبَسًا يَابِسًا عَلَى قَدَرٍ مَوْعِدٍ لَا تَنِيَا تَضْعُفَا

**د كلماتو تشريح:**

**قوله: قَالَ ابْنُ جُبَيْرٍ بِالنَّبَطِيَّةِ أَيْ طه يَا رَجُلُ:**

**د طه معنى:** حضرت سعيد بن جبير فرمائي چه "طه" معنى په نبطى ژبه كښې "يارجل" ده، بعضې حضراتو وئيلى دى دا "وطئ" نه دَ امر حاضر صيغه ده، اصل كښې طاالارض دې يعنى خپلې پښې په زمكه كيږدئى. په "طه" كښې "ها" كنايه ده دَ ارض نه، په يو روايت كښې دى چه نبى كريم ﷺ په شروع كښې دَ تهجدو مونځ كولو سره به په يوه پښه اودريدو او دونمه پښه به ئې اوچتوله نو الله تعالى "طه" نازل كړو اى طا الارض يعنى اعتمد على الارض بقدمك (٢)- بعضو وئيلې دى دا دَ الله تعالى په نومونوكښې يو نوم دې، الله تعالى په دې سره قسم خوړلې دې. (٣)- اودَ بعضوخيال دې چه دا دَ حروف مقطعات نه دې.(٤) په دې كښې مختلف قراءتونه دى مشهور قراءت طه (بفتح الطاء والهاء) دې، يو قراءت طه (بكسرة الطاء والهاء) دې. يو قراءت طه (بفتح الطاء وسكون الهاء) (٥)

**په حرم شريف كې په يوه خپه اودريدو سره د امام ابوحنيفه رحمه الله د نيم قران لوستلو متعلق يوه فائده:** پورته يو روايت ذكر كړيشو چه حضور اكرم ﷺ به په شروع كښې تهجدو مونځ په يوه پښه باندې په ولاړه كولو، دَ امام ابوحنيفه رحمه الله باره كښې راځى چه هغوى په حرم شريف كښې په يوه پښه اودريدونيم قرآن ئې ختم كړو او په دونمه پښه اودريدو اونور نيم

---

(١) (شاتين) جمع شات، اى فى ايام الشتاء، حيث البرد والامطار، اوالمراد ان الامطار كانت تهطل عليهم. (سوى) قرا حجازى وابو عمرو وعلى بكسر السن، وقرا حفص بضمها، وقرا عيرهم بفتحا-

(٢) (عمدة القارى:١٩/٥٦

(٣) (عمدة القارى:١٩/٥٦

(٤) (عمدة القارى:١٩/٥٦

(٥) (عمدة القارى:١٩/٥٦.

قرآن ئی ختم کړو. په دې اعتراض اوشو چه دا قسم عمل د سنت خلاف دې خو د دې روایت په موجودګئی کښې دې عمل ته مطلقاً خلاف سنت نشي ونیلې کیدې.(۱)

**قوله: يقال: كل مالم ينطق بحرف، اوفيه تمتمة، اوفأفأة، فهي عقدة:** آیت کښې دی "وَاحْلُلْ عُقْدَةً مِّنْ لِّسَانِيْ" زما د ژبې غوټه کولاؤ کړې دلته د "عقدة" تشریح کولو سره فرمائی چه د چا د ژبې نه چه یو حرف هم نه اوځي، یا په دې کښې تمتمه یعنی تتوالې وی (۲) یعنی ژبه ئی انخلی یا د خبرو په وخت کښې تاتا آواز راوځي، یا فافاه وی یعنی د خبرو په وخت کښې د فافا په شانه آواز راوځي. په دې ټولوصورتونوباندې د عقده اطلاق کیږی. د حضرت موسی علیه السلام ژبه به هم انختله، په آیت کښې هغه د لکنت ختمولو د پاره دعا کړیده.

**قوله: ازري: ظهري:** آیت کښې دی "هٰرُوْنَ اَخِي اشْدُدْ بِهٖٓ اَزْرِيْ" زما د رور هارون په ذریعه زما ملامضبوطه کړه. فرمائی آیت کښې ازری په معنی ظهری دې، بعض وائی چه ازر په معنی د قوت دې.

**قوله: فيسحتكم: يهلككم:** "لَا تَفْتَرُوْا عَلَى اللّٰهِ كَذِبًا فَيُسْحِتَكُمْ بِعَذَابٍ" په الله تعالی باندې دروغ او افتراء مه کوئی چه الله تعالی تاسو هلاك کړی. دې کښې یسحتکم معنی د هلاکولو ده.

**قوله: المثلى تأنيث الأمثل، يقول: بدينكم، يقال: خذ المثلى، خذ الأمثل:** آیت کښې دی "وَيَذْهَبَا بِطَرِيْقَتِكُمُ الْمُثْلٰى" یعنی یوبه سی دادواړه ستا بهترین دین. فرمائی چه مثلی د امثل مونث دې اود دې معنی افضل راځي. دلته د دینه دین مراد دې ځکه چه دین هم افضل وی، وائی خُذِ الْمُثْلٰى وَالْأَمْثَلَ اعلی او افضل تاسو واخلئی.

**قوله: ثم ائتوا صفا، يقال: هل أتيت الصف اليوم، يعني المصلى الذي يصلى فيه:** آیت کښې دی "فَاَجْمِعُوْا كَيْدَكُمْ ثُمَّ ائْتُوْا صَفًّا" یعنی ټول یوځائ شئی(دوی ته ماتې ورکولو) تدبیر اوکړئی بیا قطار جوړکړئی راشئی، وائی هل اتیت الصف الیوم یعنی آیا ته دې صف ته راغلې وې کوم کښې چه مونځ ادا کیږی، په آیت کښې هم د صفا معنی مصلی او عیدګاه ده لیکن قطار جوړول او راتلل مراد کیدیشی لکه چه حضرت شیخ الهند مولانا محمود الحسن رحمه الله ذکر کړیدی. (۳)-

**قوله: فأوجس: في نفسه خوفا، فذهبت الواو من خيفة، لكسرة الخاء:** آیت کښې دی "فَاَوْجَسَ فِيْ نَفْسِهٖ خِيْفَةً مُّوْسٰى" پس موسی علیه السلام په خپل زړه کښې څه ویره غوندې محسوس

---

(۱)(فیض الباری: ۴/۲۰۵)-

(۲)(والتمتمة: الترددبالتاء فی الکلام، والفافاة: الترددبالفاء (عمدة القاری:۱۹/۵۶)-

(۳)(تفسیرعثمانی ص ۴۲۱ سوره طه

كړه. امام فرمائى چه په آيت كښې "فَأَوْجَسَ فِي نَفْسِهِ خِيفَةً مُّوسَىٰ" معنى اضمر خوفاً ده. يعنى په زړه كښې ويره وه، بيا وړاندې خيفة كښې تعليل بيان كړو چه په اصل كښې دا خوفة وو، واؤ دَ ماقبل كسرې په وجه سره په ياء بدل كړو نو خيفة شو.

**قوله:** فِي جُذُوعِ: أَيْ عَلَىٰ جُذُوعِ النَّخْلِ: "وَلَأُصَلِّبَنَّكُمْ فِي جُذُوعِ النَّخْلِ" اوتاسو ټولو به زه دَ كهجورو په تنو په سولئى كړم. فرمائى "فِي جُذُوعِ..." كښې "في" په معنى دَ "على" ده.

**قوله:** خَطْبُكَ: بَالُكَ: "قَالَ فَمَا خَطْبُكَ يَا سَامِرِيُّ" موسى عليه السلام اوفرمائيل اې سامرى! ستا څه حال دې؟ دې كښې "خطب" په معنى "بال" دې يعنى حالت

**قوله:** مِسَاسَ: مَصْدَرُ مَاسَّهُ مِسَاسًا: "قَالَ فَاذْهَبْ فَإِنَّ لَكَ فِي الْحَيَاةِ أَن تَقُولَ لَا مِسَاسَ" موسى عليه السلام (سامرى) ته اووئيل زه، ستا د پاره په ژوندكښې دا سزا ده چه ته به دا وائې اوګرځې به "لامساس" ماسره لاس مه لګوئى. فرمائى "مساس" دَ باب مفاعله مصدر دې.

**قوله:** لَنَنسِفَنَّهُ لَنُذْرِيَنَّهُ: آيت كښې دى "لَّنُحَرِّقَنَّهُ ثُمَّ لَنَنسِفَنَّهُ فِي الْيَمِّ نَسْفًا" يعنى مونږ به دا سخې اوسوزوو او بيا به دا اوشيندو او په درياب به ئى لاهوكړو.

**قوله:** قَاعًا: يَعْلُوهُ الْمَاءُ، وَالصَّفْصَفُ الْمُسْتَوِي مِنَ الْأَرْضِ: آيت كښې دى "فَيَذَرُهَا قَاعًا صَفْصَفًا" قاعاً معنى ده داسې هواره زمكه په كومه چه اوبه بهيدونكې راشى او صفصف هوارې زمكې ته وائى.

**قوله:** مِنْ زِينَةِ الْقَوْمِ: وَهِيَ الْحُلِيُّ الَّتِي اسْتَعَارُوا مِنْ آلِ فِرْعَوْنَ: آيت كښې دى "وَلَٰكِنَّا حُمِّلْنَا أَوْزَارًا مِّن زِينَةِ الْقَوْمِ" فرمائى چه زِينَةِ الْقَوْمِ نه مراد هغه كالى دى چه بنى اسرائيلو دَ فرعون دَ قوم نه عارية اخستې وو.

**قوله:** أَلْقَى: صَنَعَ: آيت كښې دى "فَقَذَفْنَاهَا فَكَذَٰلِكَ أَلْقَى السَّامِرِيُّ" مونږ هغه كالى ورواچول، بيا دغه شان سامرى هم اوكړه يعنى هغه هم خپل كالى واچول، دَ بنى اسرائيلو سره دَ فرعون دَ قوم كالى. يا خو ئى دَ هغوى نه قرض اخستې وو يا په غنيمت كښې اخستې وو، هغه ئى ويلى كړې وو او سامرى يو سخې غوندې جوړكړې وو چه دَ هغې نه به دَ غوا آواز راوتلو نو هغې ته ئى معبود وئيل.

**قوله:** فَنَسِيَ: مُوسَى هُمْ يَقُولُونَهُ: أَخْطَأَ الرَّبَّ، لَا يَرْجِعُ إِلَيْهِمْ قَوْلًا: الْعِجْلُ: آيت كښې دى "هَٰذَا إِلَٰهُكُمْ وَإِلَٰهُ مُوسَىٰ فَنَسِيَ أَفَلَا يَرَوْنَ أَلَّا يَرْجِعُ إِلَيْهِمْ قَوْلًا" سامرى او دَ هغه متبعينو وئيل چه ستاسو اودَ موسى عليه السلام معبود خو دا دې، موسى عليه السلام خو هيركړيدې، دَ رب په پيژندګلو كښې موسى عليه السلام نه غلطى شويدې. (په كوه طور باندې دَ الله تعالى په طلب كښې تلې وو الله تعالى دَ هغې په جواب كښې فرمائى) آيا هغه خلق دومره هم نه ګورى چه هغه سخې خو نه دَ دوى دَ څه خبرې جواب وركولې شى اونه دَ هغوى په څه ضرر يا نفع كښې څه قدرت

لري. په لايرجع كښې ضمير عجل طرف ته راجع دې كوم چه امام وړاندې ذكر كړيدې.

**قوله: هَمْسًا: حِسُّ الْأَقْدَامِ:** "وَخَشَعَتِ الْأَصْوَاتُ لِلرَّحْمٰنِ فَلَا تَسْمَعُ إِلَّا هَمْسًا" اوټول آوازونه به دَ الله تعالى په وړاندې ښكته شي او دَ پښې كش كړپ نه بغير به هيڅ نه اورى. فرمائى همسا دَ پښو كشار ته وائى.

**قوله: حَشَرْتَنِي أَعْمٰى: عَنْ حُجَّتِي:** يعنى په آيت كښې دَ اعمى كيدلو دامطلب نه دې چه په سترګو به نابينا وى مطلب دا دې چه دې به په دليل نه پوهيږى.

**قوله: وَقَالَ ابْنُ عُيَيْنَةَ: أَمْثَلُهُمْ أَعْدَلُهُمْ: طَرِيقَةً:** آيت كښې دى "إِذْ يَقُولُ أَمْثَلُهُمْ طَرِيقَةً إِنْ لَبِثْتُمْ إِلَّا يَوْمًا" كله چه په دوى كښې دَ ټولونه زيات رائې وركونكې دا سې وائى چه تاسو خو به هم يوه ورځ (قبر كښې) پاتې شوې ئى، حضرت سفيان بن عينيه رحمه الله فرمائى چه "أَمْثَلُهُمْ" دَ "أَعْدَلُهُمْ" په معنى كښې دې يعنى دَ عقل او پوهې په اعتبار سره بهتر او دَ رائې خاوند.

**قوله: وَقَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ: هَضْمًا: لَا يُظْلَمُ، فَيُهْضَمُ مِنْ حَسَنَاتِهِ:** فَلَا يَخَافُ ظُلْمًا وَلَا هَضْمًا" نونه به دَ زياتى ويره وى او نه دَ كمى. حضرت ابن عباس رضي الله عنهما فرمائى چه "هَضْمًا" معنى ده په ده ظلم نشي كولې چه دَ ده په نيكو كښې كمې اوكړيشى.

**قوله: عِوَجًا: وَادِيًا، وَلَا أَمْتًا: رَابِيَةً:** په آيت كښې دى "لَا تَرٰى فِيهَا عِوَجًا وَلَا أَمْتًا" نو په دې كښې به نه څه كوږوالې وينى او نه څه اوچتوالې. فرمائى "عِوَجًا" معنى وادى او لختې دې او "أَمْتًا" نه غونډئى او اوچتوالې مراددې.

**قوله: سِيرَتَهَا: حَالَتَهَا:** "سَنُعِيدُهَا سِيرَتَهَا الْأُولٰى" مونږ به هغوى دَ هغوى په اولنى حالت كښې واپس كوو، فرمائى دې كښې "سِيرَةً" معنى دَ "حَالَةً" ده.

**قوله: الْأُولٰى: النُّهٰى:** نهى په اصل كښې عقل ته وائى دلته دَ دې تشريح تقى سره كړيده، دَ دې د پاره چه كوم خلق تقوى اختياروى هم هغه په حقيقت كښې عقل مند وى.

**قوله: ضَنْكًا: الشَّقَاءُ:** "وَمَنْ أَعْرَضَ عَنْ ذِكْرِي فَإِنَّ لَهُ مَعِيشَةً ضَنْكًا" اوچه كوم سړې زما دَ دې نصيحت نه ډډه كوى دَ هغه دپاره به يوتنګ ژوندون وى. فرمائى په دې كښې "ضَنْكًا" معنى ده بدبختى، دا تفسيردَ ابن عباس رضي الله عنهما نه منقول دې نورو مفسيرينو "ضَنْكًا" تفسير "ضَيِّقًا" سره كړې يعنى تنګ

**قوله: هَوٰى: شَقِيَ:** "وَمَنْ يَحْلِلْ عَلَيْهِ غَضَبِي فَقَدْ هَوٰى" اوپه كوم سړى چه زما غضب واقع كيږى هغه بالكل تيرشوې يعنى بدبخت شو، "هَوٰى" معنى ده بخت شو.

**قوله: الْمُقَدَّسِ: الْمُبَارَكُ: طُوًى اسْمُ الْوَادِي:** "إِنَّكَ بِالْوَادِ الْمُقَدَّسِ طُوًى" ته په يوه مباركه

وادئی طوی کښې نی، "الْمُقَدَّسِ" معنی ده مبارکه او طوی دَ وادئی نوم دې.

**قوله: بِمَلْكِنَا: بِأَمْرِنَا:** "قَالُوا مَا أَخْلَفْنَا مَوْعِدَكَ بِمَلْكِنَا" هغوی وئیل مونږ تاسره دَ وعدې خلاف ورزی په خپل اختیار سره نه ده کړې، په دې کښې "بِمَلْكِنَا" معنی ده په خپل حکم او اختیارسره.

**قوله: مَكَانًا سُوًى: مَنْصَفُ بَيْنَهُمْ:** "لَا نُخْلِفُهُ نَحْنُ وَلَا أَنْتَ مَكَانًا سُوًى" دَ کومې وعدې چه مونږ نه خلاف ورزی کوو نه تاسو په څه هوار ځائ کښې. فرمائی "مَكَانًا سُوًى" معنی ده داسې ځائ چه دَ هغې په مینځ کښې نیم نیم یعنی برابروی.

**قوله: يَبَسًا: يَابِسًا:** "فَاضْرِبْ لَهُمْ طَرِيقًا فِي الْبَحْرِ يَبَسًا" نو دَ هغوی دَ پاره په دریاب کښې اوچه لار جوړه کړه. فرمائی "يَبَسًا" په معنی "يَابِسًا" دې یعنی اوچه او دا دَ "طریق" صفت دې.

**قوله: عَلَى قَدَرٍ: مَوْعِدٍ:** آیت کښې دی "ثُمَّ جِئْتَ عَلَى قَدَرٍ يَا مُوسَى" بیا اې موسی علیه السلام! ته په یو مقرر وخت باندې راغلې. فرمائی آیت کښې "عَلَى قَدَرٍ" معنی "عَلَى مَوْعِدٍ" یعنی یو مقرر وخت.

**قوله: لَا تَنِيَا: تَضْعُفَا:** آیت مبارك کښې دی "وَلَا تَنِيَا فِي ذِكْرِي" او تاسو دواړه زما په یاد یعنی ذکر کښې سستی مه کوئی. فرمائی "لَا تَنِيَا" معنی ده تاسو دواړه کمزورې کیږئی مه، سست کیږئی مه.

## [۲۲۸] بَاب: وَاصْطَنَعْتُكَ لِنَفْسِي

[۴۴۵۹] حَدَّثَنَا الصَّلْتُ بْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا مَهْدِيُّ بْنُ مَيْمُونٍ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ سِيرِينَ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ عَنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ الْتَقَى آدَمُ وَمُوسَى فَقَالَ مُوسَى لِآدَمَ أَنْتَ الَّذِي أَشْقَيْتَ النَّاسَ وَأَخْرَجْتَهُمْ مِنَ الْجَنَّةِ قَالَ آدَمُ أَنْتَ مُوسَى الَّذِي اصْطَفَاكَ اللَّهُ بِرِسَالَتِهِ وَاصْطَفَاكَ لِنَفْسِهِ وَأَنْزَلَ عَلَيْكَ التَّوْرَاةَ قَالَ نَعَمْ قَالَ فَوَجَدْتَهَا كُتِبَ عَلَيَّ قَبْلَ أَنْ يَخْلُقَنِي قَالَ نَعَمْ فَحَجَّ آدَمُ مُوسَى

**قوله: اليم البحر:**

**د حضرت ادم او حضرت موسیٰ علیهما السلام ملاقات او مناظره کله اوشوه؟:** حضرت آدم علیه السلام او حضرت موسی علیه السلام په مینځ کښې دا مناظر او ملاقات کله اوشو؟ په دې سلسله کښې دَ علماؤ مختلف اقوال دی.

① بعضې حضراتو وئیلی دی چه کیدیشی چه هم دَ حضرت موسی علیه السلام په ژوند کښې دَ هغوی دَ روح دَحضرت آدم علیه السلام روح سره اتصال شوې وی او هغه وخت دا خبرې شوی وی[۱]

② بعضو وئیلی دی چه دا هم ممکن دی چه مذکوره مکالمه په خوب کښې شوی وی[۲]-

---

[۱] (دا دَ حضرت شاه ولی الله رحمه الله رائې ده اوګورئی التعلیق الصبیح:۷۷/۱ و حجة الله البالغه-

[۲] (فتح الباري ۵۰۷/۱۱

③ بعض حضرات وائی ممکن دی چه د حضرت موسی علیه السلام د پاره د حضرت آدم علیه السلام قبر کولاؤ شوې وی او د هغوی روح حاضر شوې وی او دا خبرې کړې وی (۱)-

④اکثر حضرات وائی چه مذکوره مناظره حضرت آدم علیه السلام او حضرت موسی علیه السلام د وفات نه پس په آسمان باندې شویدې، علامه ابن عبدالبر، یحیی بن سعید قطان او فضل الله تورپشتی وغیره علماؤ همدغه رائې ده (۲)-

⑤اویو قول دا هم دې چه مذکوره مکالمه تر اوسه پورې نه ده واقع شوې. په آخرت کښې به دا مکالمه وی، دلالت علی الیقین د پاره د ماضی صیغې سره تعبیر کړیشویده.(۳) والله اعلم

**قوله: فَوَجَدْتَهَا كُتِبَ عَلَيَّ قَبْلَ أَنْ يَخْلُقَنِي:** د وړاندینی باب په روایت کښې دی اتلومنی علی امر کتبه الله علی قبل ان یخلقنی اوقدره علی قبل ان یخلقنی علامه تورپشتی رحمه الله فرمائیلی دی چه د دې مطلب دا دې چه الله تعالی دا زما د پیدائش نه هم اول په لوح محفوظ کښې مقدر فرمائیلې وو د کوم مطلب چه دا ووچه هغه به خپل وخت خامخا کیږی، نو چه کله وخت راغلونو دا څنګه ممکن وو چه امر مقدر او د الله تعالی د علم خلاف هغه عمل ممنوع به نه کیدلو، نو ته په ما باندې الزام خو اچوې او تاته سبب ظاهری یعنی زما کسب او اختیار خو یاد پاتې دې لیکن اصل څیز یعنی تقدیر نه تا نظر واړولو (۴)

**یو اشکال او د هغې جوابونه:** په دې حدیث باندې یو مشهور اشکال کیږی، حضرت آدم علیه السلام تقدیر بهانه جوړه کړیده او اعتذار بالتقدیر جائز نه دې ځکه چه ګناه کونکې تقدیر ته په کتلو باندې ګناه نه کوی بلکه د خپل نفس په تقاضا باندې کوی.

① د دې یوجواب دا ورکړیشویدې چه دا مکالمه په دې دنیا کښې نه ده شوې بلکه دا په عالم علوی او د عالم ارواح واقعه ده چرته چه بنده مکلف بالشرع نه دې د دې د پاره د دې دنیا احکام د هغه دنیا په احکامو باندې قیاس کول صحیح نه دی. (۵)-

② دونم جواب علامه ابن تیمیه رحمه الله ورکړیدې کوم چه حضرت کشمیری رحمه الله خوښ فرمائیلې دې (۶)- هغوی فرمائی اعتذار بالتقدیر په دوه قسمه دې، یو دا چه د ګناه ارتکاب کولو د پاره سرې د تقدیر حواله ورکړی چه په دې ګناه او جرم کښې زما هیڅ قصور نشته دا لیکلې شوې تقدیر دې، بې شکه داسې اعتذار بالتقدیر صحیح نه دې او قطعاً ناجائزدې. دونم دا چه د ګناه نه توبه اوکړی خوسره د دې ئی زړه مطمئن نه وی نو د خپل زړه د تسلئی د پاره اعتذار بالتقدیر جائزدې. حضرت آدم علیه السلام هم د توبې نه پس

(۱)(فتح الباری، کتاب القدر، باب تحاج ادم و موسی عندالله: ۵۰۶/۱۱
(۲)(فتح الباری، کتاب القدر، باب تحاج ادم و موسی عندالله: ۵۰۶/۱۱و شرح الطیبی، کتاب الایمان:۲۱۸/۱
(۳)(عمدة القاری:۶۰/۱۹
(۴)( اوګورئی شرح الطیبی: ۲۱۸/۱ کتاب الایمان، الایمان بالقدر-
(۵)(فیض الباری: ۲۰۶/۴
(۶)(فیض الباری: ۲۰۶/۴

صرف د خپل زړه د تسلئ د پاره اعتذار بالتقدير کړيدې. (۱)- دا حديث وړاندې په كتاب القدر كښې راغى (۲) په دې حديث اود تقدير متعلق تفصيلي بحث به ان شاء الله هلته راځي.

## [۲۲۹] بَاب وَلَقَدْ أَوْحَيْنَا إِلَى مُوسَى أَنْ أَسْرِ بِعِبَادِي فَاضْرِبْ لَهُمْ طَرِيقًا فِي الْبَحْرِ يَبَسًا

لَا تَخَافُ دَرَكًا وَلَا تَخْشَى فَأَتْبَعَهُمْ فِرْعَوْنُ بِجُنُودِهِ فَغَشِيَهُمْ مِنَ الْيَمِّ مَا غَشِيَهُمْ وَأَضَلَّ فِرْعَوْنُ قَوْمَهُ وَمَا هَدَى الْيَمُّ الْبَحْرُ

[۴۴۶۰] حَدَّثَنِي يَعْقُوبُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ حَدَّثَنَا رَوْحٌ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ حَدَّثَنَا أَبُو بِشْرٍ عَنْ سَعِيدِ بْنِ جُبَيْرٍ عَنْ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا قَالَ لَمَّا قَدِمَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْمَدِينَةَ وَالْيَهُودُ تَصُومُ يَوْمَ عَاشُورَاءَ فَسَأَلَهُمْ فَقَالُوا هَذَا الْيَوْمُ الَّذِي ظَهَرَ فِيهِ مُوسَى عَلَى فِرْعَوْنَ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَحْنُ أَوْلَى بِمُوسَى مِنْهُمْ فَصُومُوهُ

## [۲۳۰] بَاب قَوْلِهِ فَلَا يُخْرِجَنَّكُمَا مِنَ الْجَنَّةِ فَتَشْقَى

[۴۴۶۱] حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ حَدَّثَنَا أَيُّوبُ بْنُ النَّجَّارِ عَنْ يَحْيَى بْنِ أَبِي كَثِيرٍ عَنْ أَبِي سَلَمَةَ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ عَنْ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ حَاجَّ مُوسَى آدَمَ فَقَالَ لَهُ أَنْتَ الَّذِي أَخْرَجْتَ النَّاسَ مِنَ الْجَنَّةِ بِذَنْبِكَ وَأَشْقَيْتَهُمْ قَالَ قَالَ آدَمُ يَا مُوسَى أَنْتَ الَّذِي اصْطَفَاكَ اللَّهُ بِرِسَالَتِهِ وَبِكَلَامِهِ أَتَلُومُنِي عَلَى أَمْرٍ كَتَبَهُ اللَّهُ عَلَيَّ قَبْلَ أَنْ يَخْلُقَنِي أَوْ قَدَّرَهُ عَلَيَّ قَبْلَ أَنْ يَخْلُقَنِي قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَحَجَّ آدَمُ مُوسَى

## [۲۳۱] باب: تفسير سُورَةُ الْأَنْبِيَاءِ

[۴۴۶۲] حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ حَدَّثَنَا غُنْدَرٌ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ قَالَ سَمِعْتُ عَبْدَ الرَّحْمَنِ بْنَ يَزِيدَ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ قَالَ بَنِي إِسْرَائِيلَ وَالْكَهْفُ وَمَرْيَمُ وَطه وَالْأَنْبِيَاءُ هُنَّ مِنَ الْعِتَاقِ الْأُوَلِ وَهُنَّ مِنْ تِلَادِي وَقَالَ قَتَادَةُ جُذَاذًا قَطَّعَهُنَّ وَقَالَ الْحَسَنُ فِي فَلَكٍ مِثْلِ فَلْكَةِ الْمِغْزَلِ يَسْبَحُونَ يَدُورُونَ قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ نَفَشَتْ رَعَتْ لَيْلًا يُصْحَبُونَ يُمْنَعُونَ أُمَّتُكُمْ أُمَّةً وَاحِدَةً قَالَ دِينُكُمْ دِينٌ وَاحِدٌ وَقَالَ عِكْرِمَةُ حَصَبُ حَطَبُ بِالْحَبَشِيَّةِ وَقَالَ غَيْرُهُ أَحَسُّوا تَوَقَّعُوا مِنْ أَحْسَسْتُ خَامِدِينَ هَامِدِينَ وَالْحَصِيدُ مُسْتَأْصَلٌ يَقَعُ عَلَى الْوَاحِدِ وَالِاثْنَيْنِ

---

(۱) (فيض البارى: ۴/۲۰۶-۲۰۷.

(۲) (صحيح البخارى مع فتح البارى، كتاب القدر، باب تحاج آدم وموسى عندالله ۱۱/۵۰۵ رقم ۶۶۱۴-

وَالْجَمِيعِ لَا يَسْتَحْسِرُونَ لَا يُعْيُونَ وَمِنْهُ حَسِيرٌ وَحَسَرْتُ بَعِيرِى عَمِيقٌ بَعِيدٌ نُكِسُوا رُدُّوا صَنْعَةَ لَبُوسٍ الدُّرُوعُ تَقَطَّعُوا أَمْرَهُمْ اخْتَلَفُوا الْحَسِيسُ وَالْحِسُّ وَالْجَرْسُ وَالْهَمْسُ وَاحِدٌ وَهُوَ مِنَ الصَّوْتِ الْخَفِيِّ آذَنَّاكَ أَعْلَمْنَاكَ آذَنْتُكُمْ إِذَا أَعْلَمْتَهُ فَأَنْتَ وَهُوَ عَلَى سَوَاءٍ لَمْ تَغْدِرْ وَقَالَ مُجَاهِدٌ لَعَلَّكُمْ تُسْأَلُونَ تُفْهَمُونَ ارْتَضَى رَضِيَ التَّمَاثِيلُ الْأَصْنَامُ السِّجِلُّ الصَّحِيفَةُ

## باب تفسير سورة الأنبياء

**د كلماتو تشريح**

**قوله:** وَقَالَ قَتَادَةُ: جُذَاذًا: قَطَّعَهُنَّ: آيت كښې دى "فَجَعَلَهُمْ جُذَاذًا إِلَّا كَبِيرًا لَّهُمْ" يعنى حضرت ابراهيم عليه السلام دَ لوئ بت نه علاوه ټول بتان ټکړې ټکړې کړل، جذاذاً (دَ جيم پيش سره) دَ اکثروقراءت دې، اودَ کسائي قراءت جذاذاً (دَجيم په زيرسره) دې چه دَ جَذِيذٌ جمع ده او جذاد مفرد، تثنيه او جمع ټولودَ پاره استعماليږى (١) دا تعليق حنظلى موصولاً نقل کړيدې (٢)

**قوله:** وَقَالَ الْحَسَنُ: فِي فَلَكٍ: مِثْلِ فَلْكَةِ الْمِغْزَلِ، يَسْبَحُونَ: يَدُورُونَ: آيت کښې دى "وَكُلٌّ فِي فَلَكٍ يَسْبَحُونَ" حضرت حسن بصرى رحمه الله فرمائى چه په نمر او سپوږمئى کښې هريوخپله دائره کښې لکه دَ څرخې په شان تاويږى، معزل: څرخه، فلكه دَ څرخې پلئى، دَ څرخې دَ اوسپنې هغه ډنډه په کوم چه دَ څرخې کولوپه وخت کښې پاغونده جوړيږى.

**قوله:** قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ: نَفَشَتْ: رَعَتْ لَيْلًا: آيت کښې دى "إِذْ نَفَشَتْ فِيهِ غَنَمُ الْقَوْمِ" په دې پټى کښې (د شپې په وخت) دَ قوم چيلئى څرن کوى، حضرت ابن عباس رضى الله عنهما فرمائى نفشت معنى دَ شپې په وخت کښې دَ څرن ده،دَ حضرت ابن عباس رضى الله عنهما دا تعليق ابن ابى حاتم موصولاً نقل کړيدې (٣)

**قوله:** يُصْحَبُونَ: يُمْنَعُونَ: آيت کښې دى "وَلَا هُم مِّنَّا يُصْحَبُونَ" او نه به هغه زمونږ نه بند کړيشى. فرمائى آيت يصحبون معنى ده يمنعون، مطلب دا دې چه هغوى به زمونږ دَ عذاب نه هيڅ څوك بندنه کړيشى.

**قوله:** أُمَّتُكُمْ أُمَّةً وَاحِدَةً: قَالَ: دِينُكُمْ دِينٌ وَاحِدٌ: آيت کښې دى "إِنَّ هَٰذِهِ أُمَّتُكُمْ أُمَّةً وَاحِدَةً" يعنى ستاسو ټولوخلقو دين يو دې. ټول انبياء په اصول کښې متحد دى اودَ فروع اختلاف دَ زمان او مکان دَ وجه نه دې او هغه مذموم نه دى اصل څيز په اصول کښې اتحاد

---

(١)(عمدة القارى ك١٩/٦٣-

(٢)(عمدة القارى ك١٩/٦٣-

دي. حضرت ابن عباس رضي الله عنهما فرمائی چه په دې كښې امةً دَ دين په معنى كښې دې. طبرى دا موصولاً نقل كړيدى. (۱)

**قوله:** وَقَالَ عِكْرِمَةُ: حَصَبُ: حَطَبُ بِالْحَبَشِيَّةِ: آيت كښې دى "إِنَّكُمْ وَمَا تَعْبُدُونَ مِنْ دُونِ اللَّهِ حَصَبُ جَهَنَّمَ" بې شكه تاسو او چه دَ چا بغيردَ الله تعالى نه عبادت كوئى، ټول دَ دوزخ خشاك ئى، حضرت عكرمه رحمه الله فرمانيلى چه حصب حبشى ژبه كښې لرګى او خشاك ته وائى.

**قوله:** وَقَالَ غَيْرُهُ: أَحَسُّوا: تَوَقَّعُوا، مِنْ أَحْسَسْتُ: آيت كښې دى "فَلَمَّا أَحَسُّوا بَأْسَنَا إِذَا هُمْ مِنْهَا يَرْكُضُونَ" كله چه هغوى زمونږ دَ عذاب انديښته محسوس كړه نودَ هغه ځاىٔ نه اوتختيدل، حضرت عكرمه نه غير يعنى حضرت ابوعبيده اووئيل چه احسوامعنى ده توقعوا يعنى كله چه هغوى زمونږ دَ عذاب توقع اوكړه او انديښنه ئى محسوس كړه.

**قوله:** خَامِدِينَ: هَامِدِينَ: آيت كښې دى "حَتَّى جَعَلْنَاهُمْ حَصِيدًا خَامِدِينَ" تردې چه مونږ هغوى داسې (نيست او نابود) كړل لكه چه فصل كټ شوې وى او اُور سوړ شوې وى، فرمائى په آيت كښې "خامدين" په معنى دَ "هامدين" ده "همد" (س) "هموداً" دَ اُور مړكيدل او يخيدل. "خامدين" تركيب كښې دې احتماله دى ①دا دَ "حصيداً" صفت دې "حصيداً" كښې مفرد، تثنيه او جمع ټول برابر دى ②دا دَ "حصيداً" نه بدل دې ③ دا دَ "جعلناهم" ضمير مفعول "هم" نه حال دې.

**قوله:** حَصِيدٌ: مُسْتَأْصَلٌ، يَقَعُ عَلَى الْوَاحِدِ، وَالِاثْنَيْنِ، وَالْجَمِيعِ: "حَتَّى جَعَلْنَاهُمْ حَصِيدًا" دې كښې حصيداً معنى دَ جرړونه پريشوې. مفرد، تثنيه او جمع ټولو باندې دَ دې اطلاق كيږى.

**قوله:** لَا يَسْتَحْسِرُونَ: لَا يُعْيُونَ، وَمِنْهُ: حَسِيرٌ، وَحَسَرْتُ بَعِيرِي: آيت كښې دى "لَا يَسْتَكْبِرُونَ عَنْ عِبَادَتِهِ وَلَا يَسْتَحْسِرُونَ" هغوى دَ الله تعالى دَ عبادت نه نه ډډه كوى او نه ستړې كيږى، دَ سورة ملك آيت "يَنْقَلِبْ إِلَيْكَ الْبَصَرُ خَاسِئًا وَهُوَ حَسِيرٌ" كښې حسير هم دَ دينه دې يعنى واپس كيږى به تاله ستا نظر ردكړيشوې ستړې شوې او وائى حسرت بعيرى ماخپل اوبن ستړې كړو.

**قوله:** عَمِيقٌ: بَعِيدٌ: په سورة حج كښې دى "يَأْتِينَ مِنْ كُلِّ فَجٍّ عَمِيقٍ" په دې كښې دَ "عميق" معنى "بعيد" ده، دا لفظ په سورة انبياء كښې نه دې، سورة حج كښې دې او غالبًا دَ كاتب په سهو دلته راغلې دې.

---

(۱) (فتح البارى ۸/۴۳-

**قوله: نُكِسُوا: رُدُّوا:** "ثُمَّ نُكِسُوْا عَلٰى رُءُوْسِهِمْ" حضرت شيخ الهند رحمه الله د دې ترجمه داسې کړېده "بيا پړمخې شو سر ښکته کونکې" يعني د شرم د وجه سترګې نشوې ملاوولې، امام فرمائي چه "نُكِسُوا" معنی ده "رُدُّوا" يعني هغوی اولټه سرښکته واپس کړې شو(د کفرطرف ته) ليکن ابوعبيده "نُكِسُوا" تفسير "قلبوا" سره کړېدې يعني هغوی پړمخې کړېشو.

**قوله: صَنْعَةَ لَبُوسٍ: الدُّرُوعُ:** آيت کښې دی "وَعَلَّمْنٰهُ صَنْعَةَ لَبُوْسٍ لَّكُمْ لِتُحْصِنَكُمْ مِّنْۢ بَاْسِكُمْ" اومونږ هغوی ته (يعنی حضرت داؤد عليه السلام ته)د زغرو جوړول اوښودل ستاسو خلقو د ګټې د پاره، چه تاسو د يو بل د حملې نه بچ کړی، فرمائي چه په آيت کښې د لبوس نه زغرې مراد دی، لبوس د لبس جمع ده د کوم معنی چه لباس ده، د اوسپنې زغره، دلته آخری معنی مراد ده.

**قوله: تَقَطَّعُوا أَمْرَهُمْ: اخْتَلَفُوا:** آيت کښې دی "وَتَقَطَّعُوْٓا اَمْرَهُمْ بَيْنَهُمْ ؕ كُلٌّ اِلَيْنَا رٰجِعُوْنَ" اوهغه خلقو په خپل دين کښې اختلاف پيدا کړو، ټول مونږ طرف ته واپس کيدونکی دی. فرمائي "وَتَقَطَّعُوْٓا اَمْرَهُمْ" معنی هغوی اختلاف اوکړو.

**قوله: الْحَسِيسُ: وَالْحِسُّ، وَالْجَرْسُ وَالْهَمْسُ وَاحِدٌ وَهُوَ مِنَ الصَّوْتِ الْخَفِيِّ:** آيت کښې دی "لَا يَسْمَعُوْنَ حَسِيْسَهَا" هغه خلق يعنی جنتيان به د دوزخيانو کش کړپ هم نه اوری. فرمائي حَسِيسُ، حِسُّ، جَرْسُ او هَمْسُ د دې ټولو هم يوه معنی ده يعنی ټيټ آواز.

**قوله: آذَنَّاكَ: أَعْلَمْنَاكَ: آذَنْتُكُمْ: إِذَا أَعْلَمْتَهُ: فَأَنْتَ وَهُوَ عَلَى سَوَاءٍ: لَمْ تَغْدِرْ:** په سورة حم سجده کښې دی "قَالُوْٓا اٰذَنّٰكَ ۙ مَا مِنَّا مِنْ شَهِيْدٍ" يعنی کافران به وائی چه مونږ تاسو ته اوښودل چه په مونږ کښې څوک د کفر او شرک د جرم اقرار نه کوو، دوی به دروغ وائي اود خپل جرم نه به انکاری وی. په دې کښې "آذَنَّاكَ" معنی بيان شويده مونږ تاته اطلاع اوکړه، سورة حم سجده دا آيت د سورة انبياء د دې آيت سره مناسبت باندې راوړې "فَاِنْ تَوَلَّوْا فَقُلْ اٰذَنْتُكُمْ عَلٰى سَوَآءٍ ؕ" يعنی هغه خلق (د حجت د پوره کيدو نه پس) که اعراض کوی نو هغوی ته اووايه چه ماتاسوته اطلاع کړېده (چه اوس زمونږ په مينځ کښې هيڅ صلح نشته د څه علم چه ماته او تاسوټولو ته شويدې او مونږ ټول په دې کښې برابر يو چاته به هيڅ دهوکه نه وی).

ابوعبيده د دې لفظ تشريح کولو کښې فرمائي "اذا انذرت عدوك واعلمته ذلك، ونبذت اليه الحرب، حتى تكون انت وهو على سواء، فقد اذنته" ([1])- يعنی چه کله ته دښمن اوويروې او ته هغه ته د حملې خبرورکړې او د جنګ خبره هغه ته اورسوې تردې چه د دې جنګ متعلق تاسو په هغه دواړو اطلاع ګانو کښې برابرشئ نو هغه وخت به وئيلې شي "اذنته"

[1] (فتح البارى: ۸/۴۳۷)

**قوله:** وَقَالَ مُجَاهِدٌ: لَعَلَّكُمْ تُسْأَلُونَ: تُفْهَمُونَ: آیت کښې دی "لَا تَرْكُضُوا وَارْجِعُوا إِلَىٰ مَا أُتْرِفْتُمْ فِيهِ وَمَسَاكِنِكُمْ لَعَلَّكُمْ تُسْأَلُونَ" تیخته مه کوئی او خپل دَ عیش سامان او خپلو کورونو طرف ته واپس لاړشئی کیدیشی چه تاسو نه څوك تپوس اوکړی، مولانا شبیراحمدعثمانی رحمه الله فرمائی: "یعنی چه کله دَ الله تعالی عذاب مخامخ راغلو نو غوښتل ئی چه دَ هغه ځائ نه اوتختی او په تیخته ځان بچ کړی، هغه وخت په تکوینی توګه اوونیلې شو چه چرته تختئی، اودریږئی او هم دیخوا واپس شئی چرته مو چه عیش کولو او کوم ځائ کښې مو چه ډیر دَ تنعم سامان جمع کړې ایخودې وو. کیدیشی چه هلته تاسو نه څوك تپوس اوکړی چه حضرت! هغه مال دولت، زور او طاقت نشته چرته لاړه؟ هغه سامانونه چرته لاړل؟ اوچه کوم نعمتونه الله تعالی درکړی وو دَ هغې شکر مو ترکوم ځائ پورې ادا کړې وو؟ یا دا چه تاسو لوئ سړی وئی دَ چا به چه په هره موقع تپوس کیدو اوس هم هلته لاړشئی دَ تختیدو ضرورت نشته چه خلق دَ خپلو اهمو کارونو کښې تاسو سره مشوره اوکړیشی او ستاسو رائې معلومې کړیشی".(داتولې خبرې تحکماً کړیشوی دی). حضرت مجاهد رحمه الله فرمائی چه تسئلون معنی **تفهمون** ده، کیدیشی چه تاسو پوهه شئی.

**قوله:** ارْتَضَى: رَضِيَ: "وَلَا يَشْفَعُونَ إِلَّا لِمَنِ ارْتَضَىٰ وَهُمْ مِنْ خَشْيَتِهِ مُشْفِقُونَ" او هغوی (فرښتې) سفارش نه کوی مګر دهغوی دَ چاد پاره چه دَ الله تعالی خوښه وی او هغوی ټول دَ الله تعالی دَ هیت نه ویریږی. فرمائی چه آیت کښې ارتضی معنی رضی ده، راضی کیدل، خوښول، مولاناشبیر احمد عثمانی رحمه الله دَ دې آیت لاندې لیکې: "یعنی دَ الله تعالی دَ مرضئی معلومولونه بغیرهغه فرښتې هم دَ چا سفارش نه کوی، دَ مؤمنانو موحدانونه الله تعالی راضی وی دَ دې دَ پاره به دَ هغوی په حق کښې په دنیااوآخرت کښې استغفار کول دَ هغوی وظیفه ده"

**قوله:** التَّمَاثِيلُ: الْأَصْنَامُ: آیت کښې دی "مَا هَٰذِهِ التَّمَاثِيلُ الَّتِي أَنْتُمْ لَهَا عَاكِفُونَ" دا بتان څه دی دَچا دعبادت دپاره تاسوکلك ناست ئی(یعنی لږشان دَ دوی اصلیت او حقیقت خو بیان کړئ آخرد کانړی پخپله تراشلې بت خدائی څنګه جوړشو) فرمائی آیت کښې **تماثیل** معنی بت ده.

**قوله:** السِّجِلُّ: الصَّحِيفَةُ: آیت کښې دی "يَوْمَ نَطْوِي السَّمَاءَ كَطَيِّ السِّجِلِّ لِلْكُتُبِ" په کومه ورځ چه مونږ اسمانونه داسې راغونډکړو لکه څنګه چه دَ لیکلی شوی مضمون صحیفه راغونډولې شی.

**د سجل په معنی کې مختلف اقوال:** فرمائی چه صحیفې ته سجل وئیلی شی دلته دَ سجل همدغ معنی بیان کړیشویده.لیکن امام ابوداؤد، نسائی او طبری یو روایت نقل کړیدې چه سجل دَ یو صحابی نوم دې چه دَ رسول الله صلی الله علیه وسلم کاتب وو (۱)- او علامه سهیلی نقل کړیدی

---

(۱)(فتح الباری:۸/۴۳۷

چه سجل په دوئم آسمان كښې د هغه فرښتې نوم دې چاله چه د پير او جمعرات په ورځ كراماً كاتبين د خلقو اعمال راوړى راځى.(١) - علامه ثعلبى او سهيلى د دې خبرې نه انكار كړيدې چه سجل د رسول الله ﷺ د يوكاتب نوم دې ځكه چه د هغوى په كاتبانو كښې د دې نوم صحابى ذكر نه ملاويږى. (٢)- ليكن حافظ ابن حجر رحمه الله د سهيلى دا قول رد كړيدې. هغه فرمائى چه ابن منده او ابونعيم د ابن نمير په طريق سره د حضرت عمر رضي الله عنه روايت نقل كړيدې په كوم كښې چه دى "كان للنبى صلى الله عليه وسلم كاتب، يقال له: سجل" ابن مردويه هم دا روايت نقل كړيدې (٣)- البته حافظ ابن كثير رحمه الله دا روايت منكر او حافظ مزى دا موضوع ګرځولې دې (٤)- ليكن حافظ ابن حجر د دې نورې طريق هم بيان كړى دى (٥)-

## [٢٣٢] بَاب كَمَا بَدَأْنَا أَوَّلَ خَلْقٍ نُعِيدُهُ وَعْدًا عَلَيْنَا

[٤٤٦٣] حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ حَرْبٍ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ الْمُغِيرَةِ بْنِ النُّعْمَانِ شَيْخٌ مِنْ النَّخَعِ عَنْ سَعِيدِ بْنِ جُبَيْرٍ عَنْ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا قَالَ خَطَبَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ إِنَّكُمْ مَحْشُورُونَ إِلَى اللَّهِ حُفَاةً عُرَاةً غُرْلًا كَمَا بَدَأْنَا أَوَّلَ خَلْقٍ نُعِيدُهُ وَعْدًا عَلَيْنَا إِنَّا كُنَّا فَاعِلِينَ ثُمَّ إِنَّ أَوَّلَ مَنْ يُكْسَى يَوْمَ الْقِيَامَةِ إِبْرَاهِيمُ أَلَا إِنَّهُ يُجَاءُ بِرِجَالٍ مِنْ أُمَّتِي فَيُؤْخَذُ بِهِمْ ذَاتَ الشِّمَالِ فَأَقُولُ يَا رَبِّ أُصَيْحَابِي فَيُقَالُ لَا تَدْرِي مَا أَحْدَثُوا بَعْدَكَ فَأَقُولُ كَمَا قَالَ الْعَبْدُ الصَّالِحُ وَكُنْتُ عَلَيْهِمْ شَهِيدًا مَا دُمْتُ فِيهِمْ إِلَى قَوْلِهِ شَهِيدٌ فَيُقَالُ إِنَّ هَؤُلَاءِ لَمْ يَزَالُوا مُرْتَدِّينَ عَلَى أَعْقَابِهِمْ مُنْذُ فَارَقْتَهُمْ

فَأَقُولُ: يَارَبِّ، أُصَيْحَابِي، فَيُقَالُ: إِنَّ هَؤُلَاءِ لَمْ يَزَالُوا مُرْتَدِّينَ عَلَى أَعْقَابِهِمْ مُنْذُ فَارَقْتَهُمْ

نبى كريم ﷺ به د قيامت په ورځ الله تعالى ته اوفرمائى "اې زما ربه! دا خو زما صحابه دى" ارشادبه اوشى "داخلق خوپه خپلو پوندو د اسلام نه مرتدشوى وو كله چه تاسو د دوى نه جدا شونې".

**اشكال او د هغې جوابونه:** دلته په ظاهره اشكال كيږى چه آيا صحابه د رسول الله ﷺ د وفات نه پس د اسلام نه اوړيدلى وو، ښكاره خبره ده چه داسې خو نه ده نوبيا د دې جملې څه مطلب دې؟

① د دې يوجواب دا دې چه په حديث كښې "اصحابي" نه مراد هغه خلق دى چه د نبى كريم ﷺ د وفات نه پس مرتد شوى وو او حضرت صديق اكبر رضي الله عنه هغوى سره جنګ كړې وو،

---

(١)(فتح البارى:٨/٤٣٧)
(٢)(فتح البارى:٨/٤٣٧)
(٣)(فتح البارى:٨/٤٣٧)
(٤)(تفسير ابن كثير :٣/٢٠٠)
(٥)(فتح البارى:٨/٤٣٧)

هغوی ته اصحاب په دې وجه اووئيلې شو چه هغوی په نبی کريم ﷺ باندې ايمان راوړې وو، هغوی صحابی نه وو علامه خطابی رحمه الله فرمائی "لم يرتد من الصحابة احد وانما ارتد قوم من جفاة الاعراب ممن لا نصرة له فى الدين، وذلك لا يوجب قدحا فى الصحابة المشهورين" (١)-

⑫ دوئم جواب داورکړيشو چه حديث کښې "اصحابی" نه د هغوی ﷺ په ژوند کښې په هغوی ﷺ باندې ايمان راوړل او د هغوی د صحبت بابرکت نه فائده منډکيدونکی کسان مراد دی خو د ارتداد نه دلته ارتداد عن الاسلام مراد نه دې بلکه ارتداد عن الاستقامی علی الدين مراد دې چه په دې حضراتو کښې يوڅوکسانو حقوق اسلام کماحقه نه دی اداکړی بلکه د هغوی نه څه کوتاهئی شويدی او د بعضې نامناسبه خبرو مرتکب شويدی نو حافظ رحمه الله ليکی: قال البيضاوی: ليس قوله: "مرتدين" نصاً فى کونهم ارتدوا عن الاسلام، بل يحتمل ذلک، ويحتمل ان يراد انهم عصاة المؤمنين المرتدون عن الاستقامة، يبدلون الاعمال الصالحة بالسئة" (٢)- حافظ ابن حجر رحمه الله د دې جواب په تائيد کښې څه روايات هم نقل کړيدی او د هغه ميلان هم دې طرف ته معلوميږی (٣)- دا حديث د سورة مائده په تفسير کښې تيرشويدې او د دې متعلق نور بحثونه ان شاء الله وړاندې په کتاب الرقاق کښې راځی.

# باب: تفسير سُورَةُ الْحَجِّ

وَقَالَ ابْنُ عُيَيْنَةَ الْمُخْبِتِينَ الْمُطْمَئِنِّينَ

## سُورَةُ الْحَجِّ

آيت کښې دی "وَبَشِّرِ الْمُخْبِتِينَ ﴿﴾" حضرت سفيان بن عيينه فرمائی چه په دې آيت کښې د (مُخْبِتِينَ ﴿﴾) معنی مطمئن او د راضی اوسيدونکوده. د آيت مطلب دا دې چه تاسو هغه خلقو ته زيرې واوروئی چه څوک د الله تعالی په احکامو باندې مطمئن او راضی دی يا د الله تعالی په ذکر سره اطمينان حاصلونکی دی.

وَقَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ فِي إِذَا تَمَنَّى أَلْقَى الشَّيْطَانُ فِي أُمْنِيَّتِهِ إِذَا حَدَّثَ أَلْقَى الشَّيْطَانُ فِي حَدِيثِهِ فَيُبْطِلُ اللَّهُ مَا يُلْقِي الشَّيْطَانُ وَيُحْكِمُ آيَاتِهِ وَيُقَالُ أُمْنِيَّتُهُ قِرَاءَتُهُ إِلَّا أَمَانِيَّ يَقْرَءُونَ وَلَا يَكْتُبُونَ

امام بخاری رحمه الله ددې آيت تفسير کړې دې: ﴿وَمَآ أَرْسَلْنَا مِن قَبْلِكَ مِن رَّسُولٍ وَلَا نَبِيٍّ إِلَّآ إِذَا تَمَنَّىٰٓ أَلْقَى الشَّيْطَٰنُ فِيٓ أُمْنِيَّتِهِۦ فَيَنسَخُ اللَّهُ مَا يُلْقِي الشَّيْطَٰنُ ثُمَّ يُحْكِمُ اللَّهُ ءَايَٰتِهِۦ﴾

د "وما ارسلنا من قبلک من رسول ولا نبی الا اذا تمنّٰی القی الشيطان فی أُمنيته"، تفسير: د دې

(١) (فتح الباری و کتاب الرقاق، باب الحشر: ٣٨٥/١١
(٢) (فتح الباری، کتاب الرقاق، باب الحشر: ٣٨٦/١١
(٣) (فتح الباری، کتاب الرقاق، باب الحشر: ٣٨٦/١١

آیت په تفسیر کښې مفسرینو مختلف آراء دی کوم کښې چه یوڅو دا دی:

① تمنی لفظ په عربی کښې دَ دوو معنودَ پاره استعمالیږی، یوه معنی خو هغه ده چه په اردو کښې استعمالیږی یعنی دَ یو څیز خواهش او آرزو کول، اوپه آیت کښې هم دا معنی مراد کیدې شی. په دې صورت کښې به دَ آیت ترجمه داوی "تاسونه وړاندې مونږ نه څوك رسول داسې لیږلې دې نه نبی، چاسره چه دا معامله نه وی پیښه شوې چه، چه کله هغه خواهش اوکړو (چه دَ هغه تبلیغ عام وی اودَ هغه قوم ایمان راوړی) نو شیطان دَ هغه په خواهش کښې حائل شو(چه دَ هغه دَ تبلیغ په لارکښې دې بندیزونه پیداکړی او مشکلات پیداکړی) نو الله تعالی دَ شیطان اچولې شوی بندیزونه ختموی او خپل آیاتونه کلکوی" دغه شان چه دَ دې قوم دَ کومو نیك بختو په قسمت کښې دَ ایمان همیشه نیك بختی لیکلې وی هغوی ایمان راوړی، اودَ شیطان اودرولې شوی بندیزونه دَ هغه دَ ایمان راوړو په لارکښې خنډان نشی جوړیدلې، الله تعالی خپل آیاتونه او دَ نبی سره کړیشوې وعدې کلکوی"

دَ آیات دا تفسیر ډیرو حضراتوکړیدې (۱)- او مولانا انورشاه کشمیری رحمه الله "فیض الباری" کښې هم دا اختیار کړیدې (۲)- مولانابدر عالم میرتهی رحمه الله "البدر الساری" کښې لیکی:

"فمعنی تمنی انه یتمنی الایمان لامته، ویحب لهم الخیر والرشد، والصلاح، والنجاح، فهذه امنیة کل رسول، ونبی، والقاء الشیطان فیهایکون بمایلقیه فی قلوب امة الدعوة من الوساوس الموجبة لکفر بعضهم، ویرحم الله المؤمنین، فینسخ ذلك من قلوبهم ویحکم فیها الایات الدالة علی الوحدانیة والرسالة (۳)-

② "تمنی" دونمه معنی تلاوت او لوستل دی. امنیة معنی قراءت ده.امام بخاری رحمه الله دلته هم دغه معنی بیان کړیده او په دلیل کښې دَ سورة بقره آیت پیش کړیدې. "وَمِنْهُمْ أُمِّيُّونَ لَا يَعْلَمُونَ الْكِتٰبَ إِلَّآ أَمَانِيَّ" په دې کښې "امانی" یقرؤون معنی کښې دې. حکیم الامت مولانا اشرف علی تهانوی رحمه الله هم دغه مراد اخستې دې (۴)- اوشیخ الاسلام مولانا شبیراحمدعثمانی رحمه الله هم دیته ترجیح ورکړیده، هغوی لیکی: "دَ احقر په خیال کښې بهترین او آسان ترین تفسیر هغه دې چه د هغې مختصر اصل دَ سلفو نه منقول وی یعنی "تمنی" په معنی قراءت، تلاوت یا تحدیث او "امنیة" په معنی دَ متلویا حدیث واخستلې شی، مطلب دا دې چه دَ پخوانه دا عادت راروان دې چه کله به یو نبی یا رسول څه خبره کوله یا دَ الله تعالی آیات به ئې لوستلو اورولو نو شیطان دَ هغه بیان شوې خبره یا آیت کښې قسم قسم شکونه اچول،

---

(۱)(روح المعانی: ۱۷/۱۷۵ وتفسیر کبیر: ۲۳/۵٤

(۲)(فیض الباری: ٤/۲۷، هغوی دَ دې ترجمه کړیده "یو نبی نه دې چه هغه امیدنه وی ترلې، دَ خپل نبی متعلق به هغه ته هدایت کیږی نو شیطان دَ هغه خلقو په زړونوکښې کوګوالې پیدا کړو اودَ هغوی خواهش ئې پوره کیدو ته نه دې پریخې او په هغې کښې ئې رکاوټ نه وی اچولې

(۳)(البدرالساری الی فیض الباری: ٤/۲۰۸

(٤)(بیان القرآن: ۲/۷۸

يعنى دَ بعض خبرو متعلق دَ ډيروخلقو په زړونوكښې وسوسې اچولوسره شك شبهې پيدا كولې مثلاً نبى كريم ﷺ آيت "حُرِّمَتْ عَلَيْكُمُ الْمَيْتَةُ" لوستلو سره واورولو، نو شيطان دا شك واچولو چه ګورئ خپل وژلې شوې حلال او دَ الله تعالى وژلې شوې حرام ګڼړى يا هغوى ﷺ آيت "إِنَّكُمْ وَمَا تَعْبُدُونَ مِنْ دُونِ اللَّهِ حَصَبُ جَهَنَّمَ" اولوستلو نو هغه شك پيدا كړو چه "وَمَا تَعْبُدُونَ مِنْ دُونِ اللَّهِ" كښې حضرت مسيح عليه السلام ،عزير عليه السلام او دَ الله تعالى ملائكې هم شاملې دى.يا هغوى ﷺ دَ حضرت مسيح عليه السلام باره كښې اوفرمائيل "وكلمته القاها الى مريم وروح منه" شيطان اوګڼړل چه دَ دې نه دَ حضرت مسيح عليه السلام ابنيت او الوهيت ثابتيږى، دَ دې شيطانى القاء باطل كيدو او رد كښې پيغمبر عليه السلام دَ الله تعالى هغه آياتونه اوروى چه بالكل صفا او محكم دى او داسې پخې خبرې ښائى دَ كوم په اوريدو چه هيڅ شك شبهې كولوګنجائش نه پاتې كيږى. دَ متشابهاتو ظاهرى سطح اخستلو سره شيطان چه كومه اغوا كوى نو آيات محكمات دَ هغې جرړې پريكوى دَ كوم په اوريدو سره ټول شك شبهې يو دم ختميږى. دا دوه قسمه آياتونه ولې نازلولې شى؟ شيطانانو ته داسې دَ وسوسې او تصرف موقع ولې وركولې شى؟ اودَ آياتو كوم احكام چه روستوكولې شى دَ شروع نه ولې نشى كولې؟ دا هر څه دَ الله تعالى دَ غيرمحدود علم او حكمت سره ظاهريږى. الله تعالى دا دنيا علماً او عملاً دَ امتحان كور جوړكړيدې او په دا قسمه كاروايانوكښې دَ بنديګانو امتحان دې چه كوم سړې دَ خپل زړه دَ بيمارئې يا سختئى په وجه دَ شك شبهو په ترمه كښې اينختې پاتې كيږى او كوم يو پوهه سړې دَ خپل علم او تحقيق په طاقت سره دَ ايمان او جنات اوچت مقام ته په رسيدو باندې ساه اخلى"(1) -

③دَ دې آيت يو دريم تفسير دَ يوې قصې په شكل كښې بيانولې شى چه يو ځل نبى كريم ﷺ دَ سورة النجم تلاوت فرمائيلوكله چه هغوى ﷺ "افرأيتم اللات والعزى ومناة الثالثة الاخرى" ته اورسيدل نو دَ هغوى دَ ژبې مباركې نه دا الفاظ ادا شو "تلك الغرانيق العلى، وان شفاعتهن لترتجى" (يعنى زمونږ دا معبود دَ اوچتې درجې بتان دى دَ دوى دَ شفاعت اميدساتلې شى) مشركانو چه دا جمله واوريده نوډير زيات خوشحاله شو چه نن نبى كريم ﷺ زمونږ دَ معبودانو تعريف اوكړلو، كله چه دَ سورة په ختميدوباندې هغوى ﷺ سجده اوكړه نو مسلمانانوسره مشركانو هم سجده اوكړه. روستو حضرت جبرائيل عليه السلام راغلو او هغوى اووئيل دا دوه جملې خوشيطان ملاوُ كړيدى، په دې باندې هغوى ﷺ سخت پريشانه شو نو الله تعالى دَ هغوى ﷺ دَ تسلئې او اطمينان دَ پاره دَ سورة حج دا مذكوره آيت نازل اوفرمائيلو چه تاسو نه وړاندې پيغمبرانو سره هم داسې شويدى.

دا قصه ډيرو مفسرينو او محدثينو نقل كړيده، بغوى "معالم التنزيل" كښې، ابن جرير په خپل تفسير كښې، ابن سعد "طبقات" كښې، ابن اسحاق "سيرت" كښې، جلال الدين

(1)(تفسيرعثمانى: ٤٥٠ فائده نمبر ٤

"جلالين" كښې او ابن ابي حاتم، "ابن مردويه" او طبراني وغيره د احاديثو په خپلو كتابونو كښې نقل كړيدى. ([1])- اكثرو حضراتو دا قصه بالكل غلطه اوموضوعى ګرځولې ده او علامه بيهقى، حافظ ابن كثير، قاضى عياض، قاضى ابوبكربن العربي، ابن خزيمه، امام رازى، قرطبى، علامه عينى، علامه شوكانى او علامه آلوسى ﷺ د دې ترديدكړيدې، نووى، كرمانى،ذهبى او ابومنصور ماتريدى ﷺ هم ترديدكړيدې.

محمد بن اسحاق بن خزيمه رحمه الله فرمائيلى "هذامن وضع الزنادقة" ([2])- اودَ دې په ردكښې مستقل يوكتاب ليكلې دې، امام قرطبى رحمه الله فرمائى "وليس منهاشئى يصح"([3])-علامه خازن رحمه الله فرمائى "انه لم يروهااحدمن اهل الصحة ولااسندها ثقة بسندصحيح اوسليم متصل"([4])-امام ابوالسعود ليكى:" وهوالمردودعندالمحققين" ([5])- امام رازى فرمائى "هذه القصة موضوعة" ([6])- ابن العرابى فرمائى "ذكرالطبرى فى ذلك روايات كثيرة باطلة،لااصل لها"فتح البارى:۸/۴۳۹- قاضى عياض "الشفاء" كښې فرمائيلى دى"يكفيك فى توهين هذالحديث انه لم يخرجه احدمن اهل الصحة ولارواه ثقة بسندصحيح سليم متصل"([7])- او علامه قنوى رحمه الله فرمائى "وهومردودعند المحققين......بل يجب ان يكون مردوداعندجميع المسلمين" ([8])- ليكن ابن حجر، علامه زمخشرى ([9])- او حافظ ابن جرير([10])- داقصه صحيح ګڼړى، حافظ ابن حجر رحمه الله دَ دې قصې مختلف طرق ذكركولونه پس ليكى: "وكلها سوى طريق سعيدبن جبيراماضعيف والامنقطع لكن كثرة الطرق تدل على ان للقصة اصلا، مع ان لها طريقين اخرين مرسلين، رجالهماعلى شرط الصحيحين، احدهماماأخرجه

---

[1]) اوګورئى معالم التنزيل: ۲۹۲/۳-۲۹۳، تفسير ابن جرير:۱۳۲/۹، وطبقات بن سعد:۲۰۵/۱ ذكر سبب رجوع اصحاب النبى صلى الله عليه وسلم من ارض الحبشة والروض الانف:۲۳۹/۱، وجلالين:۲۸٤/۲، وجامع البيان على هامش الجلالين : ۲۸٤ قال الحافظ فى الفتح:۴۳۹/۸ "وقداخرجه ابن ابى حاتم والطبرى، وابن المنذر، واخرجه البزار، وابن مردويه، وكذااخرجه النحاس، وذكره ابن اسحاق فى السيرة، وكذلك موسى بن عقبة فى المغازى"

[2])(تفسير كبير:۵۰/۲۳

[3])(تفسيرقرطبى:۸۰/۱۲

[4])(خازن:۲۳/۵

[5])(تفسيرابى السعود: ۲۵۶/۶

[6])(تفسيرابن كبير:۵۱/۲۳

[7])(تفسيرقرطبى:۸۲/۱۲

[8])(حاشية القنوى على تفسير البيضاوى:۲۸۶/۵

[9])(تفسير ابن جرير:۱۳۲/۹

[10])(تفسير ابن جرير:۱۳۲/۹

الطبري من طريق يونس بن يزيدعن ابن شهاب.... والثاني ايضامااخرجه من طريق المعتمربن سليمان وحمادبن سلمة عن داودبن ابي هندعن ابي العالية" وړاندې چه کوم خلق دا قصه صحيح نه ګڼړی په هغوی باندې رد کولوسره ليکی: "وجميع ذلك لايتمشى على القواعد،فان الطرق اذاكثرت، وتباينت مخارجها دل ذلك على ان لها اصلا، وقدذكرت ان ثلاثة اسانيدمنهاعلى شرط الصحيح، وهى مراسيل يحتج بمثلهامن يحتج بالمرسل، وكذا من لايحتج به لاعتضاد بعضها ببعض"(١)- دَ حافظ ابن حجر رحمه الله مقصددا دې چه دَ نورو طرق نه علاوه دَ دې قصې درې طرق صحيح او مرسل دی، په دې کښې دوه طرق ابن جرير رحمه الله ذکرکړيدی او دَ يو بزاز رحمه الله تخريج کړيدې. دا ټول طرق وړاندې کولو سره دَ انصاف خبره همدغه ده چه دَ دې قصې څه اصل ضرورشته. رواياتو ته ضعيف وئيلوسره دا رد کولې نشی. او چه کله قصه دَ رواياتوپه بنياد صحيح اومنلې شی نو په دې باندې اشکال کيږی چه رسول الله ﷺ په مبارکه ژبه باندې شيطان ته څنګه قدرت حاصل شو چه هغه دَ نبی کريم ﷺ په ژبه مبارکه باندې دَ دې شرکيه الفاظو القاء اوکړه. دا خوبه ټولو نصوصو سره معارض دې. که چرې دا صحيح اومنلې شی نو بيا خو به پوره دين مشکوک شی نو په دې وجه چه کومو حضراتو دا قصه دَ رواياتو په بنياد صحيح منلې ده هغوی دَ دې مختلف توجيهات پيش کړيدی، حافظ ابن حجر رحمه الله اووه توجيهات نقل کړيدی.

① دې وخت کښې هغوی له خوب ورغلې وو اودَ دې بې خبرئی په حالت کښې دا الفاظ وتلې. خو دا توجيه صحيح نه ده، څکه چه شيطان ته په خوب کښې هم په هغوی ﷺ باندې قدرت حاصل نه دې.

② هغوی ﷺ شيطان مجبوره کړو او په غيراختياری حالت کښې دا الفاظ دَ هغوی ﷺ دَ ژبې مبارکې نه اووتل. ليکن دا توجيه هم صحيح نه ده، په شيطان کښې دهغوی ﷺ دَ مجبوره کولو طاقت نشته، پخپله دَ هغوی وينا ده "ماكان لى عليكم من سلطان" که شيطان ته داسې قدرت حاصل وې نو بيا به چا هم دَ الله تعالى اطاعت نشو کولې.

③ بعضو وئيل چه مشرکانو دَ خپلو معبودانو کله ذکر کولو نو مذکوره الفاظ به ئې وئيل، او هغوی ﷺ دا الفاظ دَ هغه نه څوځل اوريدلی وو په دې وجه دَ هغوی په ژبه دَ هغه معبودانو ذکر کولوا په وخت کښې مذکوره الفاظ سهواً جاری شو. ليکن قاضی عياض رحمه الله دا توجيه هم ردکړيده چه دَ هغوی ﷺ نه داسې سهوه ممکن وه.

④ بعضو وئيلی چه هغوی ﷺ دا الفاظ توبيخًا وئيلی وو، قاضې عياض فرمائيلی چه دا قسمه الفاظ هغه وخت کښې توبيخًا وئيلې کيدېشی چه کله دَ سړی په ذهن کښې څه قرينه وی، دَ باقلانی ميلان هم دې طرف ته معلوميږی.

⑤ بعضې وائی مشرکانو کښې دا الفاظ چا وئيلی ووابن عاشوره وغيره دَ ويونکی نوم ابن

(١)(فتح البارى:٨/٤٣٩، ورسره نوراوګورئی الكافى الشاف فى تخريج احاديث الكشاف:٣/١٦٤-١٦٥

الزبعرى ليكلي دي (۱)-
⑨يوقول داهم دي چه "الغرانيق" نه فرشتي مراد دى، دَ مشركانو معبودان بتان مراد نه دى، ليكن مشركانو چه دا كله په خپلو بتانوباندي محمول كړله نو الله تعالى دا دواړه جملي منسوخ كړي او خپل آياتونه ئې مستحكم او مضبوط كړل.
⑥ يوه توجيه دا كړيشويده چه رسول الله ﷺ "ومناة الثالثة الاخرى" باندي وقف اوكړو نو شيطان په دي مينځ كښي دا الفاظ اووئيل، دا اوګنړلي شو چه دا هغوى ﷺ وئيلى دى. (۲)- قاضي عياض او ابن العربي دا توجيه خوښه كړيده، حافظ ابن حجر هم دا راجح ګرځولي (۳)- دا توجيهات قاضى عياض كړيدى او قاضى عياض دا قصه صحيح نه منى ليكن دا توجيهات هغوى روايت على السبيل الفرض والتقدير ثابت منلو نه پس نقل كړيدي. ليكن چه كومه توجيه حافظ ابن حجر رحمه الله راجح ګرځولي ده دَ دي رواياتو جواب نشي جوړيدي په كوموكښي چه دَ دي خبري صراحت شويدي چه دا مذكوره الفاظ شيطان دَ نبى كريم ﷺ دَ مباركي ژبي نه ادا كړل. حقيقت دا دي چه دا مذكوره قصه موضوع، دروغ او غلطه ده اودَ دي په غلط ثابتولو باندي ډير شهادتونه دى.
داقصه چه په كوموسندونوسره نقل شويده هغه محمدبن قيس، محمدبن كعب قرظه، عروه بن زبير، ابوصالح، ابوالعاليه، سعيد بن جبير، ضحاك، ابوبكربن عبدالرحمن بن حارث بن حارث، قتاده، مجاهد، سدى، زهرى او حضرت ابن عباس رضي الله عنهما باندي ختميږى،دَ حضرت ابن عباس رضي الله عنهما نه علاوه په دي كښي هم صحابى نشته او دا واقعه چه كوم وخت كښي پيښه شويده هغه وخت ابن عباس رضي الله عنهما بالكل ماشوم وو، دَ هغوى نه علاوه دَ بل يو صحابى نه دا واقعه نه ده نقل،كه دا قصه واقعة داسي تفصيل سره وي نو په نورو صحابه كراموكښي به دَ چانه ضرور نقل وه. دَ بل چا نه نه نقل كيدل پخپله دَ دي دليل دي چه دا روايت صحيح نه دي. په كومو رواياتوكښي چه دا قصه نقل ده هغي نه معلوميږى چه دا دَ كال ۵ نبوى واقعه ده (۴)- اود سورة حج مذكوره آيت په كال ۱ هجرى كښي نازل شويدي. په دي وجه دَ دي قصي واقع كيدل اود سورة حج مذكوره آيت نازليدلو په مينځ كښي دَ نهوكالو فاصله ده. دا نهه كاله فاصله پخپله دَ دي خبري ثبوت دي چه دَ مذكوره قصي دي

(۱)(التحرير والتنوير:۳۰۴/۱۶
(۲)(دَ ذكر شوى اوو توجيهاتو او تفصيل دَ پاره اوګورئى فتح البارى:۴۳۹/۸-۴۴۰ او دا اوومه توجيه علامه قشيرى هم اختيار كړيده اوګګورئى لطائف الاشارات: ۲۲۶/۴
(۳)(فتح البارى: ۴۴۰/۸
(۴)(په بعضو رواياتوكښي دي چه دَ دي قصي خبر دَ حبشي طرف ته هجرت كونكوصحابه كرامو ته هغه وخت اورسيده كله چه دَ هغوى دَ هجرت دري مياشتي شويدي وي. هغوى ته چا اووئيل چه په مكه كښي مسلمانانو او مشركينو ټول په يو ځائ سجده اوكړه او اختلافات ئې ختم كړل، دوى كښي بعضو بيا دَ مكي رخ اوكړو دلته چه راورسيده نو معلومه شوه چه خبر غلط وو او هجرت حبشه دَ معتبرو رواياتو په لحاظ په كال ۵ نبوى كښي پيښ شوي وو

آیت سره هیڅ تعلق نشته ځکه چه هرسړي په دې خبره په آسانئ سره پوهیدې شی که چرې داسې واقعه حقیقتاً پیښه شوې وه اورسول الله ﷺ ته دَ دې نه څه پریشانی شوې وه نود دې پریشانئ دَ ختمولو او دَ هغوی ﷺ دَ تسلئ دَ پاره به نهه کاله پس آیت نه نازلیدلو بلکه زر به څه وحی راتلله. بیا په دې روایاتوکښې چه مشرکانوهم دَ سورة په اختتام باندې مسلمانانوسره سجده اوکړه ځکه چه دَ هغوی دَ معبودانو ذکر راغلې وو، فرض کړه دا کلمات دَ نبی کریم ﷺ دَ ژبې مبارکې نه ادا شوی هم وی نو دَ دې نه وړاندې آیت باندې هم غور اوکړئ. "اَلَكُمُ الذَّكَرُ وَلَهُ الْاُنْثٰى ۞ تِلْكَ اِذًا قِسْمَةٌ ضِيْزٰى ۞ اِنْ هِىَ اِلَّآ اَسْمَآءٌ سَمَّيْتُمُوْهَآ اَنْتُمْ وَاٰبَآؤُكُمْ مَّآ اَنْزَلَ اللّٰهُ بِهَا مِنْ سُلْطٰنٍ ؕ اِنْ يَّتَّبِعُوْنَ اِلَّا الظَّنَّ وَمَا تَهْوَى الْاَنْفُسُ ۚ وَلَقَدْ جَآءَهُمْ مِّنْ رَّبِّهِمُ الْهُدٰى ۞" دَ سورة نجم دَ آخره پورې مضمون دَ دې فقرو خلاف دې. اوس دا خبره څنګه اومنلې شی چه مشرکانو په دې وجه سجده اوکړه چه دَ هغوی ﷺ دَ ژبې مبارکې نه دَ هغوی دَ معبودانو په حق کښې تعریفی فقرې وتلې وې، بلکه مشرکین چه دَ اسلام هر څیز ته دَ تنقید په نظرد کتلو عادت وو، هغوی له خود قرآن په دې تضادبیانئ باندې اشکال کول پکار وو چه یو طرف ته دَ هغوی دَ معبودانوتعریف کیږی او بل طرف ته دَ هغوی تردید ډیر په زور اوشور سره کیږی.
بیا دا واقعه دَ نورو نصوصو سره متعارض ده، په دې کښې دی چه شیطان راغلو اودَ هغوی ﷺ دَ ژبې نه ئې دا الفاظ نقل کړل حالانکه دَ قرآن متعلق ارشاد دې "لَا يَاْتِيْهِ الْبَاطِلُ مِنْۢ بَيْنِ يَدَيْهِ وَلَا مِنْ خَلْفِهٖ ؕ تَنْزِيْلٌ مِّنْ حَكِيْمٍ حَمِيْدٍ ۞" اودَ هغوی ﷺ متعلق اوفرمائیلې شو "وَمَا يَنْطِقُ عَنِ الْهَوٰى ۞ اِنْ هُوَ اِلَّا وَحْيٌ يُّوْحٰى ۞"
علامه آلوسی رحمه الله روح المعانی کښې دَ دې قصې دَ عدم صحت اووه دلیلونه بیان کړی (۱) اودَ تفصیل سره دا ردکولو نه پس لیکی: "ولعمری ان القول بان هذاالخبر مما القاه الشیطان علی بعض السنة الرواة...... اهون من القول بان حدیث الغرانیق مما القاه الشیطان علی لسان رسول الله صلی الله علیه وسلم ثم نسخه سبحانه وتعالی" (۲)- "یعنی داخبره منل ډیر آسان دې چه دا حدیث دَ رسول الله ﷺ په ژبه القاء کړې وو او بیا الله تعالی دا منسوخ کړو" البته دا اشکال باقی پاتې کیږی چه کله دَ دې قصې څه حقیقت نشته نو بیا دومره لویه خبره دَ دومره راویانو په ذریعه څنګه مشهوره شوه سره دَ دې چه په دې کښې بعض نوموړی بزرګان او مشهور محدث هم دی؟ دَ دې جواب دا دې چه اصل قصه دَ حدیث په معتبر کتابونوکښې موجود دی، بخاری، مسلم، ابوداؤد، نسائی او مسنداحمد کښې اصل واقعه داسې ده چه نبی کریم ﷺ سورة نجم تلاوت اوفرمائیلو، په آخره کښې هغوی ﷺ سجده اوکړه نومسلمانانو او مشرکانو ټولو هغوی سره سجده اوکړه (۳)- دَ سورة نجم په تفسیرکښې امام بخاری رحمه الله

---

(۱) (روح المعانی: ۱۷/۱۷۷-۱۷۸
(۲) (روح المعانی: ۱۷/۱۸۲
(۳) (الحدیث اخرجه البخاری فی تفسیرسورة النجم، باب "فاسجدوا الله ...[بقیه حاشیه په راروانه صفحه.

حضرت ابن عباس رضي الله عنه نه روايت نقل كړيدې دَ كوم الفاظ دى "سجد النبى صلى الله عليه وسلم بالنجم، وسجد معه المسلمون والمشركون، والجن والانس"(١)- ښكاره خبره ده دَ قرآن خپل يو تاثيردې بيا دَ رسول الله صلى الله عليه وسلم دَ ژبې مباركې نه دَ دې اداكيدلو په ټولو باندې يو وجد غوندې حالت شروع كړو او پوره مجمع په سجده باندې پريوتله. ډيره ممكن ده چه روستو مشركانو كښې څه خلق په هغه خپل وقتي تاثر باندې پښيمانه شوې وى او هغوى هسې دا خبره كړې وى چه مونږ خو دَ محمد صلى الله عليه وسلم دَ ژبې نه دا فقره اوريدلې وه په دې وجه مونږ هم هغوى سره په سجده پريوتلو، په دې وجه بعض ثقه راويان هم په دې غلط روايت كښې اخته شو او قصه دَ خپل اصلى صورت په ځاى په بل انداز كښې بيان شوه. والله اعلم بالصواب. دَ مشركانو دَ سجدې كولو وجه حضرت شاه ولى الله رحمه الله بيان كړيده چه آيت نجم تلاوت په وخت كښې دَ الله تعالى دَ قهر تجلى ښكاره شوې وه دَ هغې په وجه مشركان بې اختياره په سجدې ته تلې وو.

وَقَالَ مُجَاهِدٌ مَشِيدٌ بِالْقَصَّةِ. وَقَالَ غَيْرُهُ (يَسْطُونَ) يَفْرُطُونَ مِنَ السَّطْوَةِ، وَيُقَالُ يَسْطُونَ يَبْطُشُونَ (وَهُدُوا إِلَى الطَّيِّبِ مِنَ الْقَوْلِ) أُلْهِمُوا. قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ (بِسَبَبٍ) بِحَبْلٍ إِلَى سَقْفِ الْبَيْتِ. (تَذْهَلُ) تُشْغَلُ.

**قوله:** وَقَالَ مُجَاهِدٌ مَشِيدٌ بِالْقَصَّةِ: آيت كښې دى "وَبِئْرٍ مُعَطَّلَةٍ وَقَصْرٍ مَشِيدٍ" دې كښې مشيد معنى ده كوم چه په چونه وغيره سره مضبوط جوړكړيشوې وى، شيد او قصة چونې ته وائى.

**قوله:** وَقَالَ غَيْرُهُ (يَسْطُونَ) يَفْرُطُونَ مِنَ السَّطْوَةِ، وَيُقَالُ يَسْطُونَ يَبْطُشُونَ: آيت كښې دى "يَكَادُونَ يَسْطُونَ بِالَّذِينَ يَتْلُونَ عَلَيْهِمْ آيَاتِنَا" دَ مجاهد نه غير يعنى ابوعبيده ونيلى دى چه دې كښې يسطون معنى دَ حدنه زياتې كونكې ده، دا سطوة نه مشتق دې دَ كوم معنى چه حمله ده. بعضو دَ دې معنى دَ نيولو سره كړيده.

**قوله:** وهدوا الى الطيب من القول: الهموا: يعنى دهغوى په زړونو كښې ښه خبره واچوله.

**قوله:** وقال ابن عباس: بسبب: بحبل الى سقف البيت: "فَلْيَمْدُدْ بِسَبَبٍ إِلَى السَّمَاءِ" په دې كښې د سبب معنى رسئى ده، اود سماء نه د كور چت مراد دې يعنى هغوى دَ خپل كور د چته پورې يوه رسئ اوتړى او دې سره خپله مرئى خفه كړى.

**قوله:** تذهل تشغل: آيت كښې دى "يَوْمَ تَرَوْنَهَا تَذْهَلُ كُلُّ مُرْضِعَةٍ عَمَّا أَرْضَعَتْ" په كومه ورځ

...بقيه ازحاشيه گذشته] واعبدوا" رقم ٤٥٨١ وفى سجودالقران، باب سجدة النجم، وباب ماجاء فى سجودالقران وسنتها، واخرجه مسلم فى المساجد، باب سجودالتلاوة، رقم ٤٥٨١، وابوداؤد فى الصلاة، باب من راى فيها السجودو رقم ١٤٠٦، والنسائى فى الافتتاح باب السجودفى النجم: ١٦٠/٢

(١)(صحيح البخارى، كتاب التفسير، باب فاسجدوالله واعبدوا، رقم ٤٥٨١

چه دَ قيامت زلزله اووينى چه ټولې ښځې ورکونکې ښځې خپل ښځي روونكي بچې هير كړي.
فرمائي آيت كښې تذهل معنى ده تشغل: شغل عنه، غافل كيدل.

## [۲۳۴] بَاب وَتَرَى النَّاسَ سُكَارَى

[۴۴۶۴] حَدَّثَنَا عُمَرُ بْنُ حَفْصٍ حَدَّثَنَا أَبِي حَدَّثَنَا الْأَعْمَشُ حَدَّثَنَا أَبُو صَالِحٍ عَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ اللَّهُ عَزَّ وَجَلَّ يَوْمَ الْقِيَامَةِ يَا آدَمُ يَقُولُ لَبَّيْكَ رَبَّنَا وَسَعْدَيْكَ فَيُنَادَى بِصَوْتٍ إِنَّ اللَّهَ يَأْمُرُكَ أَنْ تُخْرِجَ مِنْ ذُرِّيَّتِكَ بَعْثًا إِلَى النَّارِ قَالَ يَا رَبِّ وَمَا بَعْثُ النَّارِ قَالَ مِنْ كُلِّ أَلْفٍ أُرَاهُ قَالَ تِسْعَ مِائَةٍ وَتِسْعَةً وَتِسْعِينَ فَحِينَئِذٍ تَضَعُ الْحَامِلُ حَمْلَهَا وَيَشِيبُ الْوَلِيدُ وَتَرَى النَّاسَ سُكَارَى وَمَا هُمْ بِسُكَارَى وَلَكِنَّ عَذَابَ اللَّهِ شَدِيدٌ فَشَقَّ ذَلِكَ عَلَى النَّاسِ حَتَّى تَغَيَّرَتْ وُجُوهُهُمْ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ يَأْجُوجَ وَمَأْجُوجَ تِسْعَ مِائَةٍ وَتِسْعَةً وَتِسْعِينَ وَمِنْكُمْ وَاحِدٌ ثُمَّ أَنْتُمْ فِي النَّاسِ كَالشَّعْرَةِ السَّوْدَاءِ فِي جَنْبِ الثَّوْرِ الْأَبْيَضِ أَوْ كَالشَّعْرَةِ الْبَيْضَاءِ فِي جَنْبِ الثَّوْرِ الْأَسْوَدِ وَإِنِّي لَأَرْجُو أَنْ تَكُونُوا رُبُعَ أَهْلِ الْجَنَّةِ فَكَبَّرْنَا ثُمَّ قَالَ ثُلُثَ أَهْلِ الْجَنَّةِ فَكَبَّرْنَا ثُمَّ قَالَ شَطْرَ أَهْلِ الْجَنَّةِ فَكَبَّرْنَا قَالَ أَبُو أُسَامَةَ عَنْ الْأَعْمَشِ تَرَى النَّاسَ سُكَارَى وَمَا هُمْ بِسُكَارَى وَقَالَ مِنْ كُلِّ أَلْفٍ تِسْعَ مِائَةٍ وَتِسْعَةً وَتِسْعِينَ وَقَالَ جَرِيرٌ وَعِيسَى بْنُ يُونُسَ وَأَبُو مُعَاوِيَةَ سَكْرَى وَمَا هُمْ بِسَكْرَى

**قوله: من كل الف تسعمائة وتسعة وتسعين:**

**په زرو کې يوکم زر بعث النار....** دلته فرمائيلې شويدى چه په زرو كښې يوكم زر بعث النار دى او يو به جنت ته ځى او وړاندې په كتاب الرقاق كښې يو روايت راځى په هغې كښې دى چه په سلوكښې به يو كم سل دوزخ ته ځى او يو به جنت ته ځى (۱)- كله چه په سلوكښې يوځى نو په زروكښې به لس ځى، په ظاهره په دواړو روايتونوكښې تعارض دې. دَ دې جواب دا ورکړیشود دې ځائ روايات دَ ياجوج ماجوج په اعتبار سره دى اودَ كتاب الرقاق روايت دَ نورو كفارو او مشركانو په اعتبار سره دې چه په دوى كښې به يوكم سل دوزخ ته ځى او يو به مؤمن وى چه جنت ته به ځى.

**قوله: وَإِنِّي لَأَرْجُو أَنْ تَكُونُوا رُبُعَ أَهْلِ الْجَنَّةِ:**

**دَ "وانى لارجو ان تكونوا ربع اهل الجنة"، معنى:** دلته تدريجى اضافه ده اوتاته څلورمې، بيادَ دريمې او بيا دَ نيمې خبردرکړيشو او داهم ممکن ده چه دا شميرمختلف اوقاتواو مختلف مرحلو په اعتبارسره وى، په شروع كښې به دَ امت مسلمه شمير څلورمې حصې برابر وى بيا به يوه زمانه روستوراشى چه په جنتيانوكښې به زياتوالې اوشى نوشمير به دريمې

---

(۱) (كتاب الرقاق، باب كيف الحشر: ۹۶۶/۲

حصې برابر شي او په دريمه مرحله كښې به دَ دريمې نه نيمی حصې پورې شي (١)- دَ ترمذی په يو روايت كښې راځي چه په جنت كښې به شپږ شلې صفونه وی په دې كښې به اتيا صفونه دَ دې امت وی او څلويښت به دَ باقی امتونو وی (٢)- دينه معلوميږی چه دَ نبی كريم ﷺ دَامت شميربه جنت كښې دوه ثلث يعنې دَ نيم نه زيات به وی، دا به په حقيقت كښې څلورمه مرحله وی كوم كښې به چه شمير دَ نيم نه زيات شی او دوه ثلث ته به اورسی. حضرت كشميری رحمه الله اوفرمائيل چه دوثلث كيدل دَ ترمذی په روايت سره دَ دې امت دَ فضيلت علامت ګرځولې شويدې. احناف هم دَ نبی كريم ﷺ په امت كښې دوه ثلث دی چه دَ دوی دَ فضيلت علامت دې. (٣)-

## [۲۳۵] بَاب وَمِنَ النَّاسِ مَنْ يَعْبُدُ اللَّهَ عَلَى حَرْفٍ

شَكٍّ فَإِنْ أَصَابَهُ خَيْرٌ اطْمَأَنَّ بِهِ وَإِنْ أَصَابَتْهُ فِتْنَةٌ انْقَلَبَ عَلَى وَجْهِهِ خَسِرَ الدُّنْيَا وَالْآخِرَةَ إِلَى قَوْلِهِ ذَلِكَ هُوَ الضَّلَالُ الْبَعِيدُ أَتْرَفْنَاهُمْ وَسَّعْنَاهُمْ

[۴۴۶۵] حَدَّثَنِي إِبْرَاهِيمُ بْنُ الْحَارِثِ حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ أَبِي بُكَيْرٍ حَدَّثَنَا إِسْرَائِيلُ عَنْ أَبِي حَصِينٍ عَنْ سَعِيدِ بْنِ جُبَيْرٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا قَالَ وَمِنَ النَّاسِ مَنْ يَعْبُدُ اللَّهَ عَلَى حَرْفٍ قَالَ كَانَ الرَّجُلُ يَقْدَمُ الْمَدِينَةَ فَإِنْ وَلَدَتِ امْرَأَتُهُ غُلَامًا وَنُتِجَتْ خَيْلُهُ قَالَ هَذَا دِينٌ صَالِحٌ وَإِنْ لَمْ تَلِدِ امْرَأَتُهُ وَلَمْ تُنْتَجْ خَيْلُهُ قَالَ هَذَا دِينُ سُوءٍ

**قوله: أَتْرَفْنَاهُمْ وَسَّعْنَاهُمْ:** داپه سورة حج كښې نشته بلكه سورة مؤمنون كښې دی " وَقَالَ الْمَلَأُ مِنْ قَوْمِهِ الَّذِينَ كَفَرُوا وَكَذَّبُوا بِلِقَاءِ الْآخِرَةِ وَأَتْرَفْنَاهُمْ فِي الْحَيَاةِ الدُّنْيَا " دې كښې اترفناهم معنی بيان شويده مونږ هغوی ته دَ دنياپه ژوندكښې وسعت او دَ عيش فراخی وركړيده، دا لفظ دَ كاتب دَ سهو نه دلته راغلې دې. (٤)-

**قوله: عَلَى حَرْفٍ: شَكٍّ:** آيت كښې دی " وَمِنَ النَّاسِ مَنْ يَعْبُدُ اللَّهَ عَلَى حَرْفٍ " اوپه خلقوكښې بعض هغه دی چه د الله تعالی عبادت كوی په شك سره، "حرف" غاړې ته وائی او امام دَ دې تشريح شك سره كړيده، علامه احمدعثمانی رحمه الله فرمائی: "يعنی بعض كسان صرف دَ دنيا په غرض دين اختياروی اودَ هغوی زړه مذبذب وی، كه په دين كښې داخل شی اودَ دنيا خيګړه اووينی نو په ښكاره په بندګئی قائم وی او چه تكليف بياموسی نو پريږدی، يوخوادنيالاړه او بل خوا دين لاړ، په غاړه ولاړ دې يعنی زړه ئی تراوسه پورې نه اخوا دې او نه ديخوا، لكه چه څوك دَ كور په غاړه ولاړ وی كله چه غواړی نو اوځی اوتختی."

---

(١)(فيض البارى: ٤/٢٠٩)
(٢)(فيض البارى: ٤/٢٠٩)
(٣)(فيض البارى: ٤/٢٠٩)
(٤)(عمدة القارى: ١٩/٦٩)

## [۲۳۶] باب هَذَانِ خَصْمَانِ اخْتَصَمُوا فِي رَبِّهِمْ

[۴۴۶۶] حَدَّثَنَا حَجَّاجُ بْنُ مِنْهَالٍ حَدَّثَنَا هُشَيْمٌ أَخْبَرَنَا أَبُو هَاشِمٍ عَنْ أَبِي مِجْلَزٍ عَنْ قَيْسِ بْنِ عُبَادٍ عَنْ أَبِي ذَرٍّ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ أَنَّهُ كَانَ يُقْسِمُ قَسَمًا إِنَّ هَذِهِ الْآيَةَ هَذَانِ خَصْمَانِ اخْتَصَمُوا فِي رَبِّهِمْ نَزَلَتْ فِي حَمْزَةَ وَصَاحِبَيْهِ وَعُتْبَةَ وَصَاحِبَيْهِ يَوْمَ بَرَزُوا فِي يَوْمِ بَدْرٍ رَوَاهُ سُفْيَانُ عَنْ أَبِي هَاشِمٍ وَقَالَ عُثْمَانُ عَنْ جَرِيرٍ عَنْ مَنْصُورٍ عَنْ أَبِي هَاشِمٍ عَنْ أَبِي مِجْلَزٍ قَوْلَهُ

[۴۴۶۷] حَدَّثَنَا حَجَّاجُ بْنُ مِنْهَالٍ حَدَّثَنَا مُعْتَمِرُ بْنُ سُلَيْمَانَ قَالَ سَمِعْتُ أَبِي قَالَ حَدَّثَنَا أَبُو مِجْلَزٍ عَنْ قَيْسِ بْنِ عُبَادٍ عَنْ عَلِيِّ بْنِ أَبِي طَالِبٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ أَنَا أَوَّلُ مَنْ يَجْثُو بَيْنَ يَدَيِ الرَّحْمَنِ لِلْخُصُومَةِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ قَالَ قَيْسٌ وَفِيهِمْ نَزَلَتْ هَذَانِ خَصْمَانِ اخْتَصَمُوا فِي رَبِّهِمْ قَالَ هُمُ الَّذِينَ بَارَزُوا يَوْمَ بَدْرٍ عَلِيٌّ وَحَمْزَةُ وَعُبَيْدَةُ وَشَيْبَةُ بْنُ رَبِيعَةَ وَعُتْبَةُ بْنُ رَبِيعَةَ وَالْوَلِيدُ بْنُ عُتْبَةَ

## [۲۳۷] باب: تفسير سُورَةُ الْمُؤْمِنُونَ

قَالَ ابْنُ عُيَيْنَةَ سَبْعَ طَرَائِقَ سَبْعَ سَمَوَاتٍ لَهَا سَابِقُونَ سَبَقَتْ لَهُمُ السَّعَادَةُ قُلُوبُهُمْ وَجِلَةٌ خَائِفِينَ قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ هَيْهَاتَ هَيْهَاتَ بَعِيدٌ بَعِيدٌ فَاسْأَلِ الْعَادِّينَ الْمَلَائِكَةَ لَنَاكِبُونَ لَعَادِلُونَ كَالِحُونَ عَابِسُونَ وَقَالَ غَيْرُهُ مِنْ سُلَالَةٍ الْوَلَدُ وَالنُّطْفَةُ السُّلَالَةُ وَالْجِنَّةُ وَالْجُنُونُ وَاحِدٌ وَالْغُثَاءُ الزَّبَدُ وَمَا ارْتَفَعَ عَنِ الْمَاءِ وَمَا لَا يُنْتَفَعُ بِهِ يَجْأَرُونَ يَرْفَعُونَ أَصْوَاتَهُمْ كَمَا تَجْأَرُ الْبَقَرَةُ عَلَى أَعْقَابِكُمْ رَجَعَ عَلَى عَقِبَيْهِ سَامِرًا مِنَ السَّمَرِ وَالْجَمِيعُ السُّمَّارُ وَالسَّامِرُ هَاهُنَا فِي مَوْضِعِ الْجَمْعِ تُسْحَرُونَ تَعْمَوْنَ مِنَ السِّحْرِ

## سُورَةُ الْمُؤْمِنُونَ

**د کلماتو تشریح:**

**قوله:** قَالَ ابْنُ عُيَيْنَةَ: سَبْعَ طَرَائِقَ سَبْعَ سَمَوَاتٍ: آیت کښې دی "وَلَقَدْ خَلَقْنَا فَوْقَكُمْ سَبْعَ طَرَائِقَ" یعنی مونږ ستاسو دَ پاسه اووه آسمانونه جوړ کړل، په آسمان باندې دَ "طرائق" اطلاق خو یا دَ دې دپاره اوکړېشوه چه هغه دَ فرښتودَ تګ راتګ لارې دی یا دَ دې دَ پاره تطارق معنی راځی، دَ یوځیز په بل ځیز باندې کیدلوته وائی طارق النعل کله چه یوه څپلئی په بله څپلئی باندې کیخودېشوې وی، نوآسمانونه هم دَ یو بل دَ پاسه دی دَ دې دَ پاره دې ته سبع طرائق سره تعبیرکړېشو. (۱)-

**قوله:** لَهَا سَابِقُونَ: سَبَقَتْ لَهُمُ السَّعَادَةُ: "أُولَٰئِكَ يُسَارِعُونَ فِي الْخَيْرَاتِ وَهُمْ لَهَا سَابِقُونَ" یعنی دَ

(۱) (عمدة القاری: ۱۹/ ۷۰ والکشاف: ۳/ ۱۷۹

اول نه هغوی ته دَ سعادت شرف حاصل دې، په دې بنا هغه دَ نیکو طرف ته وړاندې کیږی او وړاندیوالې کوی.

**قوله: قُلُوبُهُمْ وَجِلَةٌ: خَائِفِينَ:** "وَالَّذِينَ يُؤْتُونَ مَا آتَوا وَّقُلُوبُهُمْ وَجِلَةٌ أَنَّهُمْ إِلَىٰ رَبِّهِمْ رَاجِعُونَ" اوکوم خلق چه (دَ الله تعالی په لارکښې) ورکړه کوی، او چه څه ورکوی نو دَ هغوی زړه دَ دینه ویریږی چه هغوی دَ خپل رب طرف ته واپس کیدونکی دی یعنی څه پته ده چه هلته به قبول شوی وی که نه، وړاندې به په کارراشی که نه، دَ الله تعالی په لارکښې خرچ کولوسره دا شك وی، په خپل عمل باندې مغروره نه وی، دَ نیکئی کولوسره ویریږی، امام فرمائی "قُلُوبُهُمْ وَجِلَةٌ" معنی ده دَ هغوی زړونه ویریږی.

**قوله: هَيْهَاتَ هَيْهَاتَ: بَعِيدٌ بَعِيدٌ:** آیت کښې دی "هَيْهَاتَ هَيْهَاتَ لِمَا تُوعَدُونَ" "بعید ډیر بعیدډې هغه خبره دَ کومې چه تاسره وعده کولې شی کافروائی چه څومره دَ عقل نه لرې خبره ده چه دَ هډوکې ذرې په خاوروکښې دَ ملاویدو نه پس به بیا دَ قبرونونه انسانان جوړیږی راپاسی به؟ داسې مهمل خبره منلوته څوك تیار دی. حضرت ابن عباس رضی الله عنه فرمائی آیت کښې "هَيْهَاتَ" معنی بَعِيدٌ: لرې ده.

**قوله: فَاسْأَلِ الْعَادِّينَ: الْمَلَائِكَةَ:** آیت کښې دی "قَالُوا لَبِثْنَا يَوْمًا أَوْ بَعْضَ يَوْمٍ فَاسْأَلِ الْعَادِّينَ" دې کښې دَ عادین نه مراد دَ شمیر او حساب ساتلو فرښتې دی.

**قوله: لَنَاكِبُونَ: لَعَادِلُونَ:** "وَإِنَّ الَّذِينَ لَا يُؤْمِنُونَ بِالْآخِرَةِ عَنِ الصِّرَاطِ لَنَاكِبُونَ" بیشکه کوم خلق چه په آخرت باندې ایمان نه لری دَ نیغې لارې نه اخواکیدونکی دی. فرمائی لناکبون معنی عادلون اخواکیدونکی دډه کونکی ده، عدل عنه ډډه کول.

**قوله: كَالِحُونَ: عَابِسُونَ:** "تَلْفَحُ وُجُوهَهُمُ النَّارُ وَهُمْ فِيهَا كَالِحُونَ" دَ هغوی مخونه به اُور اوسوزوی او په دې کښې به دوی خراب او بدشکله شی. فرمائی کالحون معنی ده تریوتندی، اوران شوی شکل.

**قوله: وَقَالَ غَيْرُهُ: مِنْ سُلَالَةٍ: الْوَلَدُ، وَالنُّطْفَةُ السُّلَالَةُ:** آیت کښې دی "وَلَقَدْ خَلَقْنَا الْإِنسَانَ مِن سُلَالَةٍ مِّن طِينٍ" فرمائی چه ولد او نطفې ته سلالة وائی، پورته عبارت کښې "الولد" دَ سلالة تفسیر نه دې بلکه "الولد" او "النطفة" معطوف معطوف علیه یوځائ شوی مبتدا دی او السلالة خبر دې، ولد دَ مور دَ رحم نه په راښکلوراځی، په دې وجه دیته سلاله وائی. نطفه هم دَ شانه راښکلې کیږی راځی نو په دې وجه په دې باندې هم دَ سلاله اطلاق کیږی. سل الشئ—سلا: راښکل، سلالة هغه څیز چه دَ بل څیز نه راښکلې شوې وی، نچوړ شوې وی،

خلاصه او نچوړ (١)-

**قوله:** وَالْجِنَّةُ وَالْجُنُونُ وَاحِدٌ: آیت کښې دی "اَمْ يَقُولُونَ بِهٖ جِنَّةٌ" فرمائی چه جنة او جنون دواړو یوه معنی ده.

**قوله:** وَالْغُثَاءُ: الزَّبَدُ، وَمَا ارْتَفَعَ عَنِ الْمَاءِ، وَمَا لَا يُنْتَفَعُ بِهٖ: آیت کښې دی "فَجَعَلْنٰهُمْ غُثَآءً فَبُعْدًا لِّلْقَوْمِ الظّٰلِمِيْنَ" غثاء معنی زګ ده یعنی هغه څیزچه دَ اوبو دَ پاسه اوچتیږی او دَ کوم نه چه هیڅ فائده نشی حاصلولې.

## [۲۳۸] باب: تفسیر سورة النور

مِنْ خِلَالِهٖ مِنْ بَيْنِ أَضْعَافِ السَّحَابِ سَنَا بَرْقِهٖ وَهُوَ الضِّيَاءُ مُذْعِنِينَ يُقَالُ لِلْمُسْتَخْذِي مُذْعِنٌ أَشْتَاتًا وَشَتَّى وَشَتَاتٌ وَشَتٌّ وَاحِدٌ وَقَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ سُورَةٌ أَنْزَلْنَاهَا بَيَّنَّاهَا وَقَالَ غَيْرُهُ سُمِّيَ الْقُرْآنُ لِجَمَاعَةِ السُّوَرِ وَسُمِّيَتِ السُّورَةُ لِأَنَّهَا مَقْطُوعَةٌ مِنَ الْأُخْرَى فَلَمَّا قُرِنَ بَعْضُهَا إِلَى بَعْضٍ سُمِّيَ قُرْآنًا وَقَالَ سَعْدُ بْنُ عِيَاضٍ الثُّمَالِيُّ الْمِشْكَاةُ الْكُوَّةُ بِلِسَانِ الْحَبَشَةِ وَقَوْلُهُ تَعَالَى إِنَّ عَلَيْنَا جَمْعَهُ وَقُرْآنَهُ تَأْلِيفَ بَعْضِهِ إِلَى بَعْضٍ فَإِذَا قَرَأْنَاهُ فَاتَّبِعْ قُرْآنَهُ فَإِذَا جَمَعْنَاهُ وَأَلَّفْنَاهُ فَاتَّبِعْ قُرْآنَهُ أَيْ مَا جُمِعَ فِيهِ فَاعْمَلْ بِمَا أَمَرَكَ وَانْتَهِ عَمَّا نَهَاكَ اللّٰهُ وَيُقَالُ لَيْسَ لِشِعْرِهِ قُرْآنٌ أَيْ تَأْلِيفٌ وَسُمِّيَ الْفُرْقَانَ لِأَنَّهُ يُفَرِّقُ بَيْنَ الْحَقِّ وَالْبَاطِلِ وَيُقَالُ لِلْمَرْأَةِ مَا قَرَأَتْ بِسَلًا قَطُّ أَيْ لَمْ تَجْمَعْ فِي بَطْنِهَا وَلَدًا وَيُقَالُ فِي فَرَضْنَاهَا أَنْزَلْنَا فِيهَا فَرَائِضَ مُخْتَلِفَةً وَمَنْ قَرَأَ فَرَّضْنَاهَا يَقُولُ فَرَضْنَا عَلَيْكُمْ وَعَلَى مَنْ بَعْدَكُمْ وَقَالَ مُجَاهِدٌ أَوِ الطِّفْلِ الَّذِينَ لَمْ يَظْهَرُوا لَمْ يَدْرُوا لِمَا بِهِمْ مِنَ الصِّغَرِ وَقَالَ الشَّعْبِيُّ أُولِي الْإِرْبَةِ مَنْ لَيْسَ لَهُ أَرَبٌ وَقَالَ طَاوُسٌ هُوَ الْأَحْمَقُ الَّذِي لَا حَاجَةَ لَهُ فِي النِّسَاءِ وَقَالَ مُجَاهِدٌ لَا يُهِمُّهُ إِلَّا بَطْنُهُ وَلَا يَخَافُ عَلَى النِّسَاءِ

### سُورَةُ النُّورِ

**د کلماتو تشریح:**

**قوله:** مِنْ خِلَالِهٖ: مِنْ بَيْنِ أَضْعَافِ السَّحَابِ: آیت کښې دی "فَتَرَى الْوَدْقَ يَخْرُجُ مِنْ خِلٰلِهٖ" یعنی ته به اووینې باران چه دَ اوریځود مینځ به به راوځی خلال د خلل جمع ده، مینځ او دَ دوو څیزونو په مینځ کښې خالی ځائ ته وائی، ابوعبیده تفسیر "مِنْ بَيْنِ أَضْعَافِ السَّحَابِ" قط په قط دَ اوریځود مینځ نه باران راوځی.

**قوله:** سَنَا بَرْقِهٖ: الضِّيَاءُ: "يَكَادُ سَنَا بَرْقِهٖ يَذْهَبُ بِالْاَبْصَارِ" دَ دې اوریځ دَ بجلئی دَ پرق حالت دا

---

(١)(عمدة القاری:۱۹/۷۱، والمردات فی غریب القرآن:۲۳۷

دي چه داسي ښکاري لکه چه اوس به درنه نظر یوسي. فرمائي چه "سنابرقه" معنی ده رنړا ، برق.

**قوله:** الْمِشْكَاةُ الْكُوَّةُ بِلِسَانِ الْحَبَشَةِ: "مَثَلُ نُورِهٖ كَمِشْكٰوةٍ فِيْهَا مِصْبَاحٌ" دَ دې دَ رنړامثال دَ هغه طاخ په شان دې کوم کښې چه یوه ډیوه ایخودې شوې وی. فرمائي "مشکاة" معنی په حبشي ژبه کښې روشندان او طاخ ده.

**قوله:** مُذْعِنِينَ: يُقَالُ لِلْمُسْتَخْذِي مُذْعِنٌ: آیت کښې دی "وَاِنْ يَّكُنْ لَّهُمُ الْحَقُّ يَاْتُوْۤا اِلَيْهِ مُذْعِنِيْنَ" یعنی که دَ دې منافقانو که په چا باندې حق وتلې نو سټ ښکته به تاله فیصلې کولو دَ پاره راتلل، دوی ته خو پته ده چه فیصله به په عدل او انصاف سره زمونږ په حق کښې وی او چه کله دوی په ناحقه ویښود فیصلې دَ پاره تاله نه راځي او پوهیږي چه هلته دَ چا رعایت به نه وی. فیصله به دَ حق برابره وی نو دوی به ناکامه وی. عاجزی او اطاعت کونکوته "مستخذی" یعنی مذعن وائي.

**قوله:** أَشْتَاتًا: وَشَتَّى وَشَتَاتٌ وَشَتٌّ وَاحِدٌ: آیت کښې دی "لَيْسَ عَلَيْكُمْ جُنَاحٌ اَنْ تَاْكُلُوْا جَمِيْعًا اَوْ اَشْتَاتًا" یعنی په تاسو باندې هیڅ ګناه نشته که غواړئی نو یو ځائ اوخورئی او یا جدا جدا، امام بخاری رحمه الله دَ ابوعبیده په اتباع کښې فرمائي چه اَشْتَاتًا وَشَتّٰى وَشَتَاتٌ وَشَتٌّ دَ څلوروواړو معنی یوه ده خو نورحضرات فرمائي اشتات جمع ده، اودَ دې مفرد شت دې.(۱) ـدَ ابوعبیده دَ کلام نه دا تاثر ملاویږي چه اشتات، شت جمع نه ده بلکه شت معنی کښې مستقل لفظ دې.

**قوله:** وَقَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ: سُورَةٌ أَنْزَلْنَاهَا: بَيَّنَّاهَا: په عامونسخو کښې داشان دی، قاضی عیاض رحمه الله وئیلی دی چه صحیح عبارت دا دې. "انزلناها وفرضناها" بيناها۔ بيناها: فرضناها تفسیردې. انزلناها تفسیرنه دې. دَ طبری دَ روایت نه دَ قاضی عیاض دَ قول تائیدکیږی (۲)- طبری دَ علی ابن ابی طلحه طریق نه ابن عباس رضی الله عنهما قول نقل کړیدې "فرضناها يقول: بيناها"(۳)-

**قوله:** وَقَالَ غَيْرُهُ: سُمِّيَ الْقُرْآنُ لِجَمَاعَةِ السُّوَرِ، وَسُمِّيَتِ السُّورَةُ، لِأَنَّهَا مَقْطُوعَةٌ مِنَ الْأُخْرَى فَلَمَّا قُرِنَ بَعْضُهَا إِلَى بَعْضٍ، سُمِّيَ قُرْآنًا: دَ حضرت ابن عباس رضی الله عنهما غیر یعنی ابوعبیده وئیلی دی قران ته قران په دې وجه وائي چه دَ قرآن معنی دَ جمع کولو دی، او په قرآن کښې سورتونه راجمع کړیشوی دی نو ځکه دې ته قرآن وائي. او سورة ته سورة په

(۱)(فتح الباری:۸/۴۴۷
(۲)(فتح الباری: ۸/۴۴۷
(۳)(فتح الباری:۸/۴۴۷

دي وجه وائي چه د "سورة" نه ماخوذ دي او "سورة بقية الشئ" ته وائي "بقية الشئ" نه جدا وي، ځكه سورة د بل سورة نه جدا وي. كله چه بعضې سورتونه د نورو بعضو سورتونو سره يو ځاى كړې شو نو د هغې نوم قرآن كيخودې شو.

قوله: وَقَوْلُهُ تَعَالَى: إِنَّ عَلَيْنَا جَمْعَهُ وَقُرْآنَهُ: تَأْلِيفَ بَعْضِهِ إِلَى بَعْضٍ: سورة قيامه دا آيت هم "قران" په معنى د بعضو حصو بعضوسره ملاوول دى.

قوله: وَيُقَالُ: لَيْسَ لِشِعْرِهِ قُرْآنٌ، أَيْ تَأْلِيفٌ: كله چه د چا اشعار د چا په مجموعه كښې نه وى جمع شوى نو وئيلى كيږى چه د هغه د اشعارود پاره قرآن نشته يعنى هغه نه دى جمع شوى.

قوله: وَيُقَالُ لِلْمَرْأَةِ: مَا قَرَأَتْ بِسَلًا قَطُّ، أَيْ لَمْ تَجْمَعْ فِي بَطْنِهَا وَلَدًا: د ښځې متعلق وينا ده ماقرأت بسلاقط يعنى هغې په خپله خيټه كښې بچې نه دې جمع كړې. په دې كښې دې خبرې ته اشاره ده چه قرآن د قراء نه هم مشتق كيد يشى، قرأ معنى هم د جمع كولو راځى.

قوله: أَوِ الطِّفْلِ الَّذِينَ لَمْ يَظْهَرُوا: لَمْ يَدْرُوا لِمَا بِهِمْ مِنَ الصِّغَرِ: آيت كښې دى "أَوِ الطِّفْلِ الَّذِينَ لَمْ يَظْهَرُوا عَلَى عَوْرَاتِ النِّسَاءِ" يا په داسې هلكانو باندې چه د ښځو د پردې د خبرونه لاتراوسه خبرنه دى (يعنى داسې نابالغه ماشومان كوم چه د شهوت نه خبرنه دى دهغوى نشته) امام فرمائى چه لم يظهروا معنى ده هغوى د ماشوم والى په وجه نه پيژنى.

## [٢٣٩] بَاب قَوْلِهِ عَزَّ وَجَلَّ وَالَّذِينَ يَرْمُونَ أَزْوَاجَهُمْ وَلَمْ يَكُنْ لَهُمْ شُهَدَاءُ إِلَّا أَنْفُسُهُمْ فَشَهَادَةُ أَحَدِهِمْ أَرْبَعُ شَهَادَاتٍ بِاللَّهِ إِنَّهُ لَمِنَ الصَّادِقِينَ

[٤٤٦٨] حَدَّثَنَا إِسْحَاقُ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ يُوسُفَ حَدَّثَنَا الْأَوْزَاعِيُّ قَالَ حَدَّثَنِي الزُّهْرِيُّ عَنْ سَهْلِ بْنِ سَعْدٍ أَنَّ عُوَيْمِرًا أَتَى عَاصِمَ بْنَ عَدِيٍّ وَكَانَ سَيِّدَ بَنِي عَجْلَانَ فَقَالَ كَيْفَ تَقُولُونَ فِي رَجُلٍ وَجَدَ مَعَ امْرَأَتِهِ رَجُلًا أَيَقْتُلُهُ فَتَقْتُلُونَهُ أَمْ كَيْفَ يَصْنَعُ سَلْ لِي رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ ذَلِكَ فَأَتَى عَاصِمٌ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ يَا رَسُولَ اللَّهِ فَكَرِهَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْمَسَائِلَ فَسَأَلَهُ عُوَيْمِرٌ فَقَالَ إِنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَرِهَ الْمَسَائِلَ وَعَابَهَا قَالَ عُوَيْمِرٌ وَاللَّهِ لَا أَنْتَهِي حَتَّى أَسْأَلَ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ ذَلِكَ فَجَاءَ عُوَيْمِرٌ فَقَالَ يَا رَسُولَ اللَّهِ رَجُلٌ وَجَدَ مَعَ امْرَأَتِهِ رَجُلًا أَيَقْتُلُهُ فَتَقْتُلُونَهُ أَمْ كَيْفَ يَصْنَعُ فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَدْ أَنْزَلَ اللَّهُ الْقُرْآنَ فِيكَ وَفِي صَاحِبَتِكَ فَأَمَرَهُمَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِالْمُلَاعَنَةِ بِمَا سَمَّى اللَّهُ فِي كِتَابِهِ فَلَاعَنَهَا ثُمَّ قَالَ يَا رَسُولَ اللَّهِ إِنْ حَبَسْتُهَا فَقَدْ ظَلَمْتُهَا فَطَلَّقَهَا فَكَانَتْ سُنَّةً لِمَنْ كَانَ بَعْدَهُمَا فِي الْمُتَلَاعِنَيْنِ ثُمَّ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ انْظُرُوا فَإِنْ

جاءت به أسحم أدعج العينين عظيم الأليتين خدلج الساقين فلا أحسب عويمرا إلا قد صدق عليها وإن جاءت به أحيمر كأنه وحرة فلا أحسب عويمرا إلا قد كذب عليها فجاءت به على النعت الذي نعت به رسول الله صلى الله عليه وسلم من تصديق عويمر فكان بعد ينسب إلى أمه

## [۲۴۰] باب والخامسة أن لعنة الله عليه إن كان من الكاذبين

[۴۴۶۹] حدثني سليمان بن داود أبو الربيع حدثنا فليح عن الزهري عن سهل بن سعد أن رجلا أتى رسول الله صلى الله عليه وسلم فقال يا رسول الله أرأيت رجلا رأى مع امرأته رجلا أيقتله فتقتلونه أم كيف يفعل فأنزل الله فيهما ما ذكر في القرآن من التلاعن فقال له رسول الله صلى الله عليه وسلم قد قضي فيك وفي امرأتك قال فتلاعنا وأنا شاهد عند رسول الله صلى الله عليه وسلم ففارقها فكانت سنة أن يفرق بين المتلاعنين وكانت حاملا فأنكر حملها وكان ابنها يدعى إليها ثم جرت السنة في الميراث أن يرثها وترث منه ما فرض الله لها

## [۲۴۱] باب ويدرأ عنها العذاب أن تشهد أربع شهادات بالله إنه لمن الكاذبين

[۴۴۷۰] حدثني محمد بن بشار حدثنا ابن أبي عدي عن هشام بن حسان حدثنا عكرمة عن ابن عباس أن هلال بن أمية قذف امرأته عند النبي صلى الله عليه وسلم بشريك ابن سحماء فقال النبي صلى الله عليه وسلم البينة أو حد في ظهرك فقال يا رسول الله إذا رأى أحدنا على امرأته رجلا ينطلق يلتمس البينة فجعل النبي صلى الله عليه وسلم يقول البينة وإلا حد في ظهرك فقال هلال والذي بعثك بالحق إني لصادق فلينزلن الله ما يبرئ ظهري من الحد فنزل جبريل وأنزل عليه والذين يرمون أزواجهم فقرأ حتى بلغ إن كان من الصادقين فانصرف النبي صلى الله عليه وسلم فأرسل إليها فجاء هلال فشهد والنبي صلى الله عليه وسلم يقول إن الله يعلم أن أحدكما كاذب فهل منكما تائب ثم قامت فشهدت فلما كانت عند الخامسة وقفوها وقالوا إنها موجبة قال ابن عباس فتلكأت ونكصت حتى ظننا أنها ترجع ثم قالت لا أفضح قومي سائر اليوم فمضت فقال النبي صلى الله عليه وسلم أبصروها فإن جاءت به أكحل العينين سابغ الأليتين خدلج الساقين فهو لشريك ابن سحماء فجاءت به كذلك فقال النبي صلى الله عليه وسلم لولا ما مضى من كتاب الله لكان لي ولها شأن

**د لعان ایتونه دچا متعلق نازل شوی؟**: دلته دا اشکال کیږی چه دَدې نه اول حضرت سهل بن ساعد رضی الله عنه دَ روایت نه معلومیږی چه دَ لعان آیت دَ حضرت عویمرعجلانی متعلق نازل شوی دی او حضرت ابن عباس رضی الله عنهما دَ روایت نه معلومیږی چه حضرت هلال ابن امیه باره کښې نازل شویدې. بعضو وئیلی دی چه مذکوره آیات حضرت عویمر رضی الله عنه باره کښې نازل شویدې او بعضودې خبرې ته ترجیح ورکړیده چه دا دَ حضرت هلال بن امیه متعلق نازل شویدې.

علامه قرطبی رحمه الله میلان دې طرف ته معلومیږی چه دَ دې نزول دوه ځل اوشو لیکن حافظ ابن حجر رحمه الله اوفرمائیل چه دَ لعان دَ آیت نازلیدل خو په حقیقت کښې حضرت هلال ابن امیه دَ قصې متعلق دې. البته روستو دَ حضرت عویمر رضی الله عنه سره هم داسې واقعه پیښه شویده په دې وجه رسول الله صلی الله علیه وسلم دَ ذکر شوی آیت فیصله هغه ته هم اولوستله او واوروله، دَ دې تائیددې خبرې نه هم کیږی چه دَ حضرت هلال په قصه کښې دَ حدیث الفاظ دی "فنزل جبریل" ولې دَ حضرت عویمر رضی الله عنه په واقعه کښې دَ حدیث الفاظ دی "قد انزل الله فیك" دَ کوم مطلب چه دا دې تا سره پیښه شوې واقعې غوندې په یوې واقعه کښې دَدې حکم نازل شویدې.[1]

دَ لعان متعلق نور بحث به انشاء الله وړاندې باب اللعان کښې راځی، دلته دَ آیت متعلق شیخ الاسلام مولانا شبیراحمدعثمانی تفسیری حاشیه نقل کولې شی، علامه لیکی: "چه په خپله ښځه دَ زناتهمت اولګوی، اولاً به دَ دې نه څلور ګواه غوښتلې شی که پیش کړیشی نو په ښځه به دَ زنا حد جاری کولې شی او که ګواه رانه وړیشی نوهغه ته به وئیلی شی چه څلور ځل به قسم اوخوری او بیان به کوی چه هغه پخپله دې دعوی کښې رښتونې دې (یعنی کوم تهمت چه هغه په خپله ښځه لګولې دې په هغې کښې دې دروغ نه وائی) نو لکه دَ څلورو ګواهانو په ځائ پخپله دَ ده څلور حلفیه شهادتونه شو او په آخرکښې به په پنځم ځل دا الفاظ وائی که هغه په خپله دې دعوی کښې دروغژن وی نو په ده دَ الله لعنت او غضب، که دَ ذکر شوی الفاظو وئیلو نه انکار اوکړی نو قیدکولې به شی او حاکم به دې مجبوروی چه یا خودَ خپلودروغووئیلو اقرار اوکړی نو قذف حدبه اولګی او یا پنځه ځل هغه الفاظ اووائی چه پورته ذکر شو نو بیا به ښځې ته وئیلی شی چه څلورځل دې قسم اوخوری او بیان دې اوکړی چه دا سړې په تهمت لګولوکښې درغژن دې او په پنځم ځل دا الفاظ اووائی چه دَ الله تعالی غضب دې وی په دې ښځه که دا سړې په خپله دعوی کښې رښتونې وی، چه ترکومې پورې دا ښځه دا الفاظ اونه وائی ترهغه وخته پورې به په قیدکښې وی او مجبورولې به شی چه یا خوصفا دَ سړی دَ عوی تصدیق اوکړی نو بیا به په دې دَ زناحدجاری کولې شی او یا دې په ذکر شوی الفاظودَ ده تکذیب اوکړی که هغې هم دَ سړی په شان الفاظ اووئیل او دَ لعان نه فارغه شوه نو دې ښځې سره صحبت او دواعی صحبت ټول حرام شو. بیا که سړی دیته طلاق ورکړو نوڅیره ښه ده ګنی قاضی به په دواړو کښې

[1] (فتح الباری:۸/ ٤٥٠)

جدائى اوكړى. كه دواړه رضامند نه وى يعنى په ژبه سره اووائى چه ما په دوى كښې جدا والې اوكړو نو دا جداوالې به د طلاق بائن په حكم كښې وى[1] ( )-
د دې آياتونو د نازليدلو متعلق ابن جرير، ابن ابى حاتم او ابن حبان رائې ده چه په شعبان سنه ۹هجرى كښې دا نازل شوى دى، حافظ ابن حجر رحمه الله په نيزد راجح دا دى چه د دې آياتونو نازليدل د غزوه تبوك نه پس په كال ۱۰هجرى كښې شوى دى[2] ( )-
د باب حديث نه دا معلومه شوه چه د لعان نه پس دې حمل نه كوم بچې پيدا شو هغه به د دې د خاوند طرف ته نه منسوب كيږى بلكه د هغه نسبت به د هغه مورطرف ته كيږى، نبى كريم ﷺ د حضرت عويمر عجلانى رضي الله عنه اوهلال بن اميه رضي الله عنه متعلق همدغه فيصله اوفرمائيله.

## [۲۴۲] بَاب قَوْلِهِ وَالْخَامِسَةَ أَنَّ غَضَبَ اللَّهِ عَلَيْهَا إِنْ كَانَ مِنَ الصَّادِقِينَ

[۴۴۷۱] حَدَّثَنَا مُقَدَّمُ بْنُ مُحَمَّدِ بْنِ يَحْيَى حَدَّثَنَا عَمِّي الْقَاسِمُ بْنُ يَحْيَى عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ وَقَدْ سَمِعَ مِنْهُ عَنْ نَافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا أَنَّ رَجُلًا رَمَى امْرَأَتَهُ فَانْتَفَى مِنْ وَلَدِهَا فِي زَمَانِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَأَمَرَ بِهِمَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَتَلَاعَنَا كَمَا قَالَ اللَّهُ ثُمَّ قَضَى بِالْوَلَدِ لِلْمَرْأَةِ وَفَرَّقَ بَيْنَ الْمُتَلَاعِنَيْنِ

## [۲۴۳] بَاب إِنَّ الَّذِينَ جَاءُوا بِالْإِفْكِ عُصْبَةٌ مِنْكُمْ

لَا تَحْسِبُوهُ شَرًّا لَكُمْ بَلْ هُوَ خَيْرٌ لَكُمْ لِكُلِّ امْرِئٍ مِنْهُمْ مَا اكْتَسَبَ مِنَ الْإِثْمِ وَالَّذِي تَوَلَّى كِبْرَهُ مِنْهُمْ لَهُ عَذَابٌ عَظِيمٌ أَفَّاكٌ كَذَّابٌ

[۴۴۷۲] حَدَّثَنَا أَبُو نُعَيْمٍ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ مَعْمَرٍ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ عُرْوَةَ عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا وَالَّذِي تَوَلَّى كِبْرَهُ قَالَتْ عَبْدُ اللَّهِ بْنُ أُبَيٍّ ابْنُ سَلُولَ

## [۲۴۴] بَاب لَوْلَا إِذْ سَمِعْتُمُوهُ ظَنَّ الْمُؤْمِنُونَ وَالْمُؤْمِنَاتُ بِأَنْفُسِهِمْ خَيْرًا

وَقَالُوا هَذَا إِفْكٌ مُبِينٌ ۝ لَوْلَا جَاءُوا عَلَيْهِ بِأَرْبَعَةِ شُهَدَاءَ فَإِذْ لَمْ يَأْتُوا بِالشُّهَدَاءِ فَأُولَئِكَ عِنْدَ اللَّهِ هُمُ الْكَاذِبُونَ ۝

[۴۴۷۳] حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ بُكَيْرٍ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ يُونُسَ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ قَالَ أَخْبَرَنِي عُرْوَةُ بْنُ الزُّبَيْرِ وَسَعِيدُ بْنُ الْمُسَيَّبِ وَعَلْقَمَةُ بْنُ وَقَّاصٍ وَعُبَيْدُ اللَّهِ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُتْبَةَ بْنِ مَسْعُودٍ عَنْ حَدِيثِ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا زَوْجِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حِينَ قَالَ لَهَا أَهْلُ الْإِفْكِ مَا قَالُوا فَبَرَّأَهَا اللَّهُ مِمَّا قَالُوا وَكُلٌّ حَدَّثَنِي طَائِفَةً مِنَ الْحَدِيثِ وَبَعْضُ حَدِيثِهِمْ يُصَدِّقُ بَعْضًا وَإِنْ كَانَ بَعْضُهُمْ أَوْعَى لَهُ مِنْ بَعْضٍ الَّذِي حَدَّثَنِي عُرْوَةُ عَنْ عَائِشَةَ

---

[1] (تفسير عثمانى: ۴۶۷ فائده نمبر ۱
[2] (فتح البارى: ۳۹۷/۹ وتكملة فتح الملهم: ۲۳۴/۱

رضي الله عنها أن عائشة رضي الله عنها زوج النبي صلى الله عليه وسلم قالت كان رسول الله صلى الله عليه وسلم إذا أراد أن يخرج أقرع بين أزواجه فأيتهن خرج سهمها خرج بها رسول الله صلى الله عليه وسلم معه قالت عائشة فأقرع بيننا في غزوة غزاها فخرج سهمي فخرجت مع رسول الله صلى الله عليه وسلم بعدما نزل الحجاب فأنا أحمل في هودجي وأنزل فيه فسرنا حتى إذا فرغ رسول الله صلى الله عليه وسلم من غزوته تلك وقفل ودنونا من المدينة قافلين آذن ليلة بالرحيل فقمت حين آذنوا بالرحيل فمشيت حتى جاوزت الجيش فلما قضيت شأني أقبلت إلى رحلي فإذا عقد لي من جزع ظفار قد انقطع فالتمست عقدي وحبسني ابتغاؤه وأقبل الرهط الذين كانوا يرحلون لي فاحتملوا هودجي فرحلوه على بعيري الذي كنت ركبت وهم يحسبون أني فيه وكان النساء إذ ذاك خفافا لم يثقلهن اللحم إنما تأكل العلقة من الطعام فلم يستنكر القوم خفة الهودج حين رفعوه وكنت جارية حديثة السن فبعثوا الجمل وساروا فوجدت عقدي بعدما استمر الجيش فجئت منازلهم وليس بها داع ولا مجيب فأممت منزلي الذي كنت به وظننت أنهم سيفقدونني فيرجعون إلي فبينا أنا جالسة في منزلي غلبتني عيني فنمت وكان صفوان بن المعطل السلمي ثم الذكواني من وراء الجيش فأدلج فأصبح عند منزلي فرأى سواد إنسان نائم فأتاني فعرفني حين رآني وكان رآني قبل الحجاب فاستيقظت باسترجاعه حين عرفني فخمرت وجهي بجلبابي ووالله ما كلمني كلمة ولا سمعت منه كلمة غير استرجاعه حتى أناخ راحلته فوطئ على يديها فركبتها فانطلق يقود بي الراحلة حتى أتينا الجيش بعدما نزلوا موغرين في نحر الظهيرة فهلك من هلك وكان الذي تولى الإفك عبد الله بن أبي ابن سلول فقدمنا المدينة فاشتكيت حين قدمت شهرا والناس يفيضون في قول أصحاب الإفك لا أشعر بشيء من ذلك وهو يريبني في وجعي أني لا أعرف من رسول الله صلى الله عليه وسلم اللطف الذي كنت أرى منه حين أشتكي إنما يدخل علي رسول الله صلى الله عليه وسلم فيسلم ثم يقول كيف تيكم ثم ينصرف فذاك الذي يريبني ولا أشعر بالشر حتى خرجت بعدما نقهت فخرجت معي أم مسطح قبل المناصع وهو متبرزنا وكنا لا نخرج إلا ليلا إلى ليل وذلك قبل أن نتخذ الكنف قريبا من بيوتنا وأمرنا أمر العرب الأول في التبرز قبل الغائط فكنا نتأذى بالكنف أن نتخذها عند بيوتنا فانطلقت أنا وأم مسطح وهي ابنة أبي رهم بن عبد مناف وأمها بنت صخر بن عامر خالة أبي بكر الصديق وابنها مسطح بن أثاثة فأقبلت أنا وأم مسطح قبل بيتي وقد فرغنا من شأننا فعثرت أم مسطح في مرطها فقالت تعس مسطح فقلت لها بئس ما قلت أتسبين رجلا شهد بدرا قالت أي هنتاه أولم تسمعي ما قال قالت قلت وما قال فأخبرتني بقول أهل الإفك فازددت مرضا على

مرض فلما رجعت إلى بيتي ودخل علي رسول الله صلى الله عليه وسلم تعني سلم ثم
قال كيف تيكم فقلت أتأذن لي أن آتي أبوي قالت وأنا حينئذ أريد أن أستيقن الخبر
من قبلهما قالت فأذن لي رسول الله صلى الله عليه وسلم فجئت أبوي فقلت لأمي يا أمتاه
ما يتحدث الناس قالت يا بنية هوني عليك فوالله لقلما كانت امرأة قط وضيئة عند رجل
يحبها ولها ضرائر إلا كثرن عليها قالت فقلت سبحان الله أولقد تحدث الناس بهذا قالت
فبكيت تلك الليلة حتى أصبحت لا يرقأ لي دمع ولا أكتحل بنوم حتى أصبحت أبكي فدعا
رسول الله صلى الله عليه وسلم علي بن أبي طالب وأسامة بن زيد رضي الله عنهما
حين استلبث الوحي يستأمرهما في فراق أهله قالت فأما أسامة بن زيد فأشار على رسول
الله صلى الله عليه وسلم بالذي يعلم من براءة أهله وبالذي يعلم لهم في نفسه من الود فقال
يا رسول الله أهلك ولا نعلم إلا خيرا وأما علي بن أبي طالب فقال يا رسول الله لم يضيق
الله عليك والنساء سواها كثير وإن تسأل الجارية تصدقك قالت فدعا رسول الله صلى الله
عليه وسلم بريرة فقال أي بريرة هل رأيت من شيء يريبك قالت بريرة لا والذي بعثك بالحق
إن رأيت عليها أمرا أغمصه عليها أكثر من أنها جارية حديثة السن تنام عن عجين أهلها
فتأتي الداجن فتأكله فقام رسول الله صلى الله عليه وسلم فاستعذر يومئذ من عبد الله
بن أبي ابن سلول قالت فقال رسول الله صلى الله عليه وسلم وهو على المنبر يا معشر
المسلمين من يعذرني من رجل قد بلغني أذاه في أهل بيتي فوالله ما علمت على
أهلي إلا خيرا ولقد ذكروا رجلا ما علمت عليه إلا خيرا وما كان يدخل على أهلي إلا معي
فقام سعد بن معاذ الأنصاري فقال يا رسول الله أنا أعذرك منه إن كان من الأوس
ضربت عنقه وإن كان من إخواننا من الخزرج أمرتنا ففعلنا أمرك قالت فقام سعد بن
عبادة وهو سيد الخزرج وكان قبل ذلك رجلا صالحا ولكن احتملته الحمية فقال لسعد
كذبت لعمر الله لا تقتله ولا تقدر على قتله فقام أسيد بن حضير وهو ابن عم سعد بن معاذ
فقال لسعد بن عبادة كذبت لعمر الله لنقتلنه فإنك منافق تجادل عن المنافقين
فتثاور الحيان الأوس والخزرج حتى هموا أن يقتتلوا ورسول الله صلى الله عليه وسلم قائم
على المنبر فلم يزل رسول الله صلى الله عليه وسلم يخفضهم حتى سكتوا وسكت قالت
فبكيت يومي ذلك لا يرقأ لي دمع ولا أكتحل بنوم قالت فأصبح أبواي عندي وقد بكيت
ليلتين ويوما لا أكتحل بنوم ولا يرقأ لي دمع يظنان أن البكاء فالق كبدي قالت
فبينما هما جالسان عندي وأنا أبكي فاستأذنت علي امرأة من الأنصار فأذنت لها فجلست
تبكي معي قالت فبينا نحن على ذلك دخل علينا رسول الله صلى الله عليه وسلم فسلم
ثم جلس قالت ولم يجلس عندي منذ قيل ما قيل قبلها وقد لبث شهرا لا يوحى إليه في

شأني قالت فتشهد رسول الله صلى الله عليه وسلم حين جلس ثم قال أما بعد يا عائشة فإنه قد بلغني عنك كذا وكذا فإن كنت بريئة فسيبرئك الله وإن كنت ألممت بذنب فاستغفري الله وتوبي إليه فإن العبد إذا اعترف بذنبه ثم تاب إلى الله تاب الله عليه قالت فلما قضى رسول الله صلى الله عليه وسلم مقالته قلص دمعي حتى ما أحس منه قطرة فقلت لأبي أجب رسول الله صلى الله عليه وسلم فيما قال قال والله ما أدري ما أقول لرسول الله صلى الله عليه وسلم فقلت لأمي أجيبي رسول الله صلى الله عليه وسلم قالت ما أدري ما أقول لرسول الله صلى الله عليه وسلم قالت فقلت وأنا جارية حديثة السن لا أقرأ كثيرا من القرآن إني والله لقد علمت لقد سمعتم هذا الحديث حتى استقر في أنفسكم وصدقتم به فلئن قلت لكم إني بريئة والله يعلم أني بريئة لا تصدقوني بذلك ولئن اعترفت لكم بأمر والله يعلم أني منه بريئة لتصدقني والله ما أجد لكم مثلا إلا قول أبي يوسف قال فصبر جميل والله المستعان على ما تصفون قالت ثم تحولت فاضطجعت على فراشي قالت وأنا حينئذ أعلم أني بريئة وأن الله مبرئي ببراءتي ولكن والله ما كنت أظن أن الله منزل في شأني وحيا يتلى ولشأني في نفسي كان أحقر من أن يتكلم الله في بأمر يتلى ولكن كنت أرجو أن يرى رسول الله صلى الله عليه وسلم في النوم رؤيا يبرئني الله بها قالت فوالله ما رام رسول الله صلى الله عليه وسلم ولا خرج أحد من أهل البيت حتى أنزل عليه فأخذه ما كان يأخذه من البرحاء حتى إنه ليتحدر منه مثل الجمان من العرق وهو في يوم شات من ثقل القول الذي ينزل عليه قالت فلما سري عن رسول الله صلى الله عليه وسلم سري عنه وهو يضحك فكانت أول كلمة تكلم بها يا عائشة أما الله عز وجل فقد برأك فقالت أمي قومي إليه قالت فقلت لا والله لا أقوم إليه ولا أحمد إلا الله عز وجل فأنزل الله عز وجل إن الذين جاءوا بالإفك عصبة منكم لا تحسبوه العشر الآيات كلها فلما أنزل الله هذا في براءتي قال أبو بكر الصديق رضي الله عنه وكان ينفق على مسطح بن أثاثة لقرابته منه وفقره والله لا أنفق على مسطح شيئا أبدا بعد الذي قال لعائشة ما قال فأنزل الله ولا يأتل أولو الفضل منكم والسعة أن يؤتوا أولي القربى والمساكين والمهاجرين في سبيل الله وليعفوا وليصفحوا ألا تحبون أن يغفر الله لكم والله غفور رحيم قال أبو بكر بلى والله إني أحب أن يغفر الله لي فرجع إلى مسطح النفقة التي كان ينفق عليه وقال والله لا أنزعها منه أبدا قالت عائشة وكان رسول الله صلى الله عليه وسلم يسأل زينب ابنة جحش عن أمري فقال يا زينب ماذا علمت أو رأيت فقالت يا رسول الله أحمي سمعي وبصري ما علمت إلا خيرا قالت وهي التي كانت تساميني من أزواج

رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَعَصَمَهَا اللَّهُ بِالْوَرَعِ وَطَفِقَتْ أُخْتُهَا حَمْنَةُ تُحَارِبُ لَهَا فَهَلَكَتْ فِيمَنْ هَلَكَ مِنْ أَصْحَابِ الْإِفْكِ

## [٢٤٥] بَاب قَوْلِهِ وَلَوْلَا فَضْلُ اللَّهِ عَلَيْكُمْ وَرَحْمَتُهُ فِي الدُّنْيَا وَالْآخِرَةِ

لَمَسَّكُمْ فِيمَا أَفَضْتُمْ فِيهِ عَذَابٌ عَظِيمٌ وَقَالَ مُجَاهِدٌ تَلَقَّوْنَهُ يَرْوِيهِ بَعْضُكُمْ عَنْ بَعْضٍ تُفِيضُونَ تَقُولُونَ

[٤٤٧٤] حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ كَثِيرٍ أَخْبَرَنَا سُلَيْمَانُ عَنْ حُصَيْنٍ عَنْ أَبِي وَائِلٍ عَنْ مَسْرُوقٍ عَنْ أُمِّ رُومَانَ أُمِّ عَائِشَةَ أَنَّهَا قَالَتْ لَمَّا رُمِيَتْ عَائِشَةُ خَرَّتْ مَغْشِيًّا عَلَيْهَا

## [٢٤٦] بَاب إِذْ تَلَقَّوْنَهُ بِأَلْسِنَتِكُمْ وَتَقُولُونَ بِأَفْوَاهِكُمْ مَا لَيْسَ لَكُمْ بِهِ عِلْمٌ

وَتَحْسَبُونَهُ هَيِّنًا وَهُوَ عِنْدَ اللَّهِ عَظِيمٌ

[٤٤٧٥] حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ مُوسَى حَدَّثَنَا هِشَامُ بْنُ يُوسُفَ أَنَّ ابْنَ جُرَيْجٍ أَخْبَرَهُمْ قَالَ ابْنُ أَبِي مُلَيْكَةَ سَمِعْتُ عَائِشَةَ تَقْرَأُ إِذْ تَلِقُونَهُ بِأَلْسِنَتِكُمْ

## [٢٤٧] بَاب وَلَوْلَا إِذْ سَمِعْتُمُوهُ قُلْتُمْ مَا يَكُونُ لَنَا أَنْ نَتَكَلَّمَ بِهَذَا

سُبْحَانَكَ هَذَا بُهْتَانٌ عَظِيمٌ

[٤٤٧٦] حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنَّى حَدَّثَنَا يَحْيَى عَنْ عُمَرَ بْنِ سَعِيدِ بْنِ أَبِي حُسَيْنٍ قَالَ حَدَّثَنِي ابْنُ أَبِي مُلَيْكَةَ قَالَ اسْتَأْذَنَ ابْنُ عَبَّاسٍ قَبْلَ مَوْتِهَا عَلَى عَائِشَةَ وَهِيَ مَغْلُوبَةٌ قَالَتْ أَخْشَى أَنْ يُثْنِيَ عَلَيَّ فَقِيلَ ابْنُ عَمِّ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَمِنْ وُجُوهِ الْمُسْلِمِينَ قَالَتْ ائْذَنُوا لَهُ فَقَالَ كَيْفَ تَجِدِينَكِ قَالَتْ بِخَيْرٍ إِنْ اتَّقَيْتُ قَالَ فَأَنْتِ بِخَيْرٍ إِنْ شَاءَ اللَّهُ زَوْجَةُ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَلَمْ يَنْكِحْ بِكْرًا غَيْرَكِ وَنَزَلَ عُذْرُكِ مِنْ السَّمَاءِ وَدَخَلَ ابْنُ الزُّبَيْرِ خِلَافَهُ فَقَالَتْ دَخَلَ ابْنُ عَبَّاسٍ فَأَثْنَى عَلَيَّ وَوَدِدْتُ أَنِّي كُنْتُ نِسْيًا مَنْسِيًّا حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنَّى حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَهَّابِ بْنُ عَبْدِ الْمَجِيدِ حَدَّثَنَا ابْنُ عَوْنٍ عَنْ الْقَاسِمِ أَنَّ ابْنَ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ اسْتَأْذَنَ عَلَى عَائِشَةَ نَحْوَهُ وَلَمْ يَذْكُرْ نِسْيًا مَنْسِيًّا

حضرت عائشه رضی الله عنها د زنکدن وخت وو، حضرت ابن عباس رضی الله عنه د هغوی په خدمت کښې د حاضرئی کولواجازت اوغوښتلو(امام احمداو ابن سعد په روايت کښې دی چه اجازت د حضرت عائشه رضی الله عنها د غلام ذکوان په ذريعه غوښتلې وو) (١)حضرت عائشه رضی الله عنها اوفرمائيل

(١)(فتح الباری:٨/٤٨٣)

چه ماته دا اندیښنه وه چه دې راشي نو زما تعریف به کوي(اوپه تعریف سره په سړي کښې ځان خوښې راپیداکیږي او داوخت داسې دې چه په دې کښې سړي له د الله تعالی طرف ته متوجه کیدل پکاردي،خپل طرف ته توجه کول یوشان هم مناسب نه دی په دې وجه اجازت ورکولوکښې تشویش وو) نو اووئیلې شوچه هغه د نبی کریم ﷺ د تره خوئی دې اود اوچت شان مسلمانانونه دې په دې وجه د دوی لحاظ کول ضروری دی. حضرت عائشه رضی الله عنها اوفرمائیل اجازت ورکړه. حضرت ابن عباس رضی الله عنهما اوفرمائیل تاسو خپل ځان څنګه ګڼړئی؟ وئی فرمائیل که په ماکښې د الله تعالی ویره وی نو بیا خو هم خیر او خیر دی. حضرت ابن عباس رضی الله عنهما د هغې تعریف شروع کړو چه انشاء الله تاسو به په خیرسره ئی ځکه چه تاسو د رسول الله ﷺ بی بی ئې، تاسو نه علاوه نبی کریم ﷺ یوې پیغلې سره نکاح نه ده کړې او ستا عذر او براءت خو د آسمان نه نازل شوې. د حضرت ابن عباس رضی الله عنهما د تشریف اوړلونه پس د هغوی په خدمت کښې حضرت عبدالله بن زبیر رضی الله عنهما داخل شو نو وئی فرمائیل. "دخل ابن عباس، فاثنی علی،وددت انی کنت نسیا منسیا"ابن عباس رضی الله عنهما داخلیدو سره زما تعریف اوکړوزما دا خواهش دې چه زه خو چرته هیره غوندې ووم. دې جملې نه د حضرت عائشه صدیقه رضی الله عنها د الله تعالی نه ویره، بې نفسی اود تقوی اوچت مقام اندازه لګیدشی. د حدیث افک ترجمه او تفصیل کتاب المغازی کښې تیرشویدې. (١)-

## [۲۴۸]بَاب يَعِظُكُمُ اللَّهُ أَنْ تَعُودُوا لِمِثْلِهِ أَبَدًا

[۴۴۷۷]حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ يُوسُفَ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ الْأَعْمَشِ عَنْ أَبِي الضُّحَى عَنْ مَسْرُوقٍ عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا قَالَتْ جَاءَ حَسَّانُ بْنُ ثَابِتٍ يَسْتَأْذِنُ عَلَيْهَا قُلْتُ أَتَأْذَنِينَ لِهَذَا قَالَتْ أَوَلَيْسَ قَدْ أَصَابَهُ عَذَابٌ عَظِيمٌ قَالَ سُفْيَانُ تَعْنِي ذَهَابَ بَصَرِهِ فَقَالَ حَصَانٌ رَزَانٌ مَا تُزَنُّ بِرِيبَةٍ وَتُصْبِحُ غَرْثَى مِنْ لُحُومِ الْغَوَافِلِ قَالَتْ لَكِنْ أَنْتَ

## [۲۴۹]بَاب وَيُبَيِّنُ اللَّهُ لَكُمُ الْآيَاتِ وَاللَّهُ عَلِيمٌ حَكِيمٌ

[۴۴۷۸]حَدَّثَنِي مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي عَدِيٍّ أَنْبَأَنَا شُعْبَةُ عَنْ الْأَعْمَشِ عَنْ أَبِي الضُّحَى عَنْ مَسْرُوقٍ قَالَ دَخَلَ حَسَّانُ بْنُ ثَابِتٍ عَلَى عَائِشَةَ فَشَبَّبَ وَقَالَ حَصَانٌ رَزَانٌ مَا تُزَنُّ بِرِيبَةٍ وَتُصْبِحُ غَرْثَى مِنْ لُحُومِ الْغَوَافِلِ قَالَتْ لَسْتَ كَذَاكَ قُلْتُ تَدَعِينَ مِثْلَ هَذَا يَدْخُلُ عَلَيْكِ وَقَدْ أَنْزَلَ اللَّهُ وَالَّذِي تَوَلَّى كِبْرَهُ مِنْهُمْ فَقَالَتْ وَأَيُّ عَذَابٍ أَشَدُّ مِنْ الْعَمَى وَقَالَتْ وَقَدْ كَانَ يَرُدُّ عَنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

## [۲۵۰]بَاب إِنَّ الَّذِينَ يُحِبُّونَ أَنْ تَشِيعَ الْفَاحِشَةُ فِي الَّذِينَ آمَنُوا لَهُمْ عَذَابٌ أَلِيمٌ فِي الدُّنْيَا وَالْآخِرَةِ وَاللَّهُ يَعْلَمُ وَأَنْتُمْ لَا تَعْلَمُونَ وَلَوْلَا فَضْلُ اللَّهِ عَلَيْكُمْ وَرَحْمَتُهُ

---

(١)(کشف الباری کتاب المغازی: ۳۳۸

وَأَنَّ اللَّهَ رَءُوفٌ رَحِيمٌ تَشِيعُ تَظْهَرُ وَقَوْلُهُ وَلَا يَأْتَلِ أُولُو الْفَضْلِ مِنْكُمْ وَالسَّعَةِ أَنْ يُؤْتُوا أُولِي الْقُرْبَى وَالْمَسَاكِينَ وَالْمُهَاجِرِينَ فِي سَبِيلِ اللَّهِ وَلْيَعْفُوا وَلْيَصْفَحُوا أَلَا تُحِبُّونَ أَنْ يَغْفِرَ اللَّهُ لَكُمْ وَاللَّهُ غَفُورٌ رَحِيمٌ

[۴۴۷۹] وَقَالَ أَبُو أُسَامَةَ عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ قَالَ أَخْبَرَنِي أَبِي عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ لَمَّا ذُكِرَ مِنْ شَأْنِي الَّذِي ذُكِرَ وَمَا عَلِمْتُ بِهِ قَامَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيَّ خَطِيبًا فَتَشَهَّدَ فَحَمِدَ اللَّهَ وَأَثْنَى عَلَيْهِ بِمَا هُوَ أَهْلُهُ ثُمَّ قَالَ أَمَّا بَعْدُ أَشِيرُوا عَلَيَّ فِي أُنَاسٍ أَبَنُوا أَهْلِي وَايْمُ اللَّهِ مَا عَلِمْتُ عَلَى أَهْلِي مِنْ سُوءٍ وَأَبَنُوهُمْ بِمَنْ وَاللَّهِ مَا عَلِمْتُ عَلَيْهِ مِنْ سُوءٍ قَطُّ وَلَا يَدْخُلُ بَيْتِي قَطُّ إِلَّا وَأَنَا حَاضِرٌ وَلَا غِبْتُ فِي سَفَرٍ إِلَّا غَابَ مَعِي فَقَامَ سَعْدُ بْنُ مُعَاذٍ فَقَالَ ائْذَنْ لِي يَا رَسُولَ اللَّهِ أَنْ نَضْرِبَ أَعْنَاقَهُمْ وَقَامَ رَجُلٌ مِنْ بَنِي الْخَزْرَجِ وَكَانَتْ أُمُّ حَسَّانَ بْنِ ثَابِتٍ مِنْ رَهْطِ ذَلِكَ الرَّجُلِ فَقَالَ كَذَبْتَ أَمَا وَاللَّهِ أَنْ لَوْ كَانُوا مِنَ الْأَوْسِ مَا أَحْبَبْتَ أَنْ تُضْرَبَ أَعْنَاقُهُمْ حَتَّى كَادَ أَنْ يَكُونَ بَيْنَ الْأَوْسِ وَالْخَزْرَجِ شَرٌّ فِي الْمَسْجِدِ وَمَا عَلِمْتُ فَلَمَّا كَانَ مَسَاءُ ذَلِكَ الْيَوْمِ خَرَجْتُ لِبَعْضِ حَاجَتِي وَمَعِي أُمُّ مِسْطَحٍ فَعَثَرَتْ وَقَالَتْ تَعِسَ مِسْطَحٌ فَقُلْتُ أَيْ أُمِّ تَسُبِّينَ ابْنَكِ وَسَكَتَتْ ثُمَّ عَثَرَتِ الثَّانِيَةَ فَقَالَتْ تَعِسَ مِسْطَحٌ فَقُلْتُ لَهَا أَيْ أُمِّ أَتَسُبِّينَ ابْنَكِ فَسَكَتَتْ ثُمَّ عَثَرَتِ الثَّالِثَةَ فَقَالَتْ تَعِسَ مِسْطَحٌ فَانْتَهَرْتُهَا فَقَالَتْ وَاللَّهِ مَا أَسُبُّهُ إِلَّا فِيكِ فَقُلْتُ فِي أَيِّ شَأْنِي قَالَتْ فَبَقَرَتْ لِي الْحَدِيثَ فَقُلْتُ وَقَدْ كَانَ هَذَا قَالَتْ نَعَمْ وَاللَّهِ فَرَجَعْتُ إِلَى بَيْتِي كَأَنَّ الَّذِي خَرَجْتُ لَهُ لَا أَجِدُ مِنْهُ قَلِيلًا وَلَا كَثِيرًا وَوُعِكْتُ فَقُلْتُ لِرَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَرْسِلْنِي إِلَى بَيْتِ أَبِي فَأَرْسَلَ مَعِي الْغُلَامَ فَدَخَلْتُ الدَّارَ فَوَجَدْتُ أُمَّ رُومَانَ فِي السُّفْلِ وَأَبَا بَكْرٍ فَوْقَ الْبَيْتِ يَقْرَأُ فَقَالَتْ أُمِّي مَا جَاءَ بِكِ يَا بُنَيَّةُ فَأَخْبَرْتُهَا وَذَكَرْتُ لَهَا الْحَدِيثَ وَإِذَا هُوَ لَمْ يَبْلُغْ مِنْهَا مِثْلَ مَا بَلَغَ مِنِّي فَقَالَتْ يَا بُنَيَّةُ خَفِّفِي عَلَيْكِ الشَّأْنَ فَإِنَّهُ وَاللَّهِ لَقَلَّمَا كَانَتِ امْرَأَةٌ حَسْنَاءُ عِنْدَ رَجُلٍ يُحِبُّهَا لَهَا ضَرَائِرُ إِلَّا حَسَدْنَهَا وَقِيلَ فِيهَا وَإِذَا هُوَ لَمْ يَبْلُغْ مِنْهَا مَا بَلَغَ مِنِّي قُلْتُ وَقَدْ عَلِمَ بِهِ أَبِي قَالَتْ نَعَمْ قُلْتُ وَرَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَتْ نَعَمْ وَرَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَاسْتَعْبَرْتُ وَبَكَيْتُ فَسَمِعَ أَبُو بَكْرٍ صَوْتِي وَهُوَ فَوْقَ الْبَيْتِ يَقْرَأُ فَنَزَلَ فَقَالَ لِأُمِّي مَا شَأْنُهَا قَالَتْ بَلَغَهَا الَّذِي ذُكِرَ مِنْ شَأْنِهَا فَفَاضَتْ عَيْنَاهُ قَالَ أَقْسَمْتُ عَلَيْكِ أَيْ بُنَيَّةُ إِلَّا رَجَعْتِ إِلَى بَيْتِكِ فَرَجَعْتُ وَلَقَدْ جَاءَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَيْتِي فَسَأَلَ عَنِّي خَادِمَتِي فَقَالَتْ لَا وَاللَّهِ مَا عَلِمْتُ عَلَيْهَا عَيْبًا إِلَّا أَنَّهَا كَانَتْ تَرْقُدُ حَتَّى تَدْخُلَ الشَّاةُ فَتَأْكُلَ خَمِيرَهَا أَوْ عَجِينَهَا وَانْتَهَرَهَا بَعْضُ أَصْحَابِهِ فَقَالَ اصْدُقِي رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَتَّى أَسْقَطُوا لَهَا بِهِ فَقَالَتْ سُبْحَانَ اللَّهِ وَاللَّهِ مَا عَلِمْتُ عَلَيْهَا إِلَّا مَا يَعْلَمُ الصَّائِغُ عَلَى تِبْرِ الذَّهَبِ الْأَحْمَرِ وَبَلَغَ الْأَمْرُ إِلَى ذَلِكَ الرَّجُلِ الَّذِي قِيلَ لَهُ فَقَالَ سُبْحَانَ اللَّهِ وَاللَّهِ مَا كَشَفْتُ كَنَفَ أُنْثَى قَطُّ قَالَتْ عَائِشَةُ فَقُتِلَ شَهِيدًا فِي سَبِيلِ اللَّهِ قَالَتْ وَأَصْبَحَ أَبَوَايَ عِنْدِي

فَلَمْ يَزَالَا حَتَّى دَخَلَ عَلَيَّ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَقَدْ صَلَّى الْعَصْرَ ثُمَّ دَخَلَ وَقَدْ اكْتَنَفَنِي أَبَوَايَ عَنْ يَمِينِي وَعَنْ شِمَالِي فَحَمِدَ اللّٰهَ وَأَثْنَى عَلَيْهِ ثُمَّ قَالَ أَمَّا بَعْدُ يَا عَائِشَةُ إِنْ كُنْتِ قَارَفْتِ سُوءًا أَوْ ظَلَمْتِ فَتُوبِي إِلَى اللّٰهِ فَإِنَّ اللّٰهَ يَقْبَلُ التَّوْبَةَ مِنْ عِبَادِهِ قَالَتْ وَقَدْ جَاءَتْ امْرَأَةٌ مِنَ الْأَنْصَارِ فَهِيَ جَالِسَةٌ بِالْبَابِ فَقُلْتُ أَلَا تَسْتَحْيِ مِنْ هَذِهِ الْمَرْأَةِ أَنْ تَذْكُرَ شَيْئًا فَوَعَظَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَالْتَفَتُّ إِلَى أَبِي فَقُلْتُ لَهُ أَجِبْهُ قَالَ فَمَاذَا أَقُولُ فَالْتَفَتُّ إِلَى أُمِّي فَقُلْتُ أَجِيبِيهِ فَقَالَتْ أَقُولُ مَاذَا فَلَمَّا لَمْ يُجِيبَاهُ تَشَهَّدْتُ فَحَمِدْتُ اللّٰهَ وَأَثْنَيْتُ عَلَيْهِ بِمَا هُوَ أَهْلُهُ ثُمَّ قُلْتُ أَمَّا بَعْدُ فَوَاللّٰهِ لَئِنْ قُلْتُ لَكُمْ إِنِّي لَمْ أَفْعَلْ وَاللّٰهُ عَزَّ وَجَلَّ يَشْهَدُ إِنِّي لَصَادِقَةٌ مَا ذَاكَ بِنَافِعِي عِنْدَكُمْ لَقَدْ تَكَلَّمْتُمْ بِهِ وَأُشْرِبَتْهُ قُلُوبُكُمْ وَإِنْ قُلْتُ إِنِّي قَدْ فَعَلْتُ وَاللّٰهُ يَعْلَمُ أَنِّي لَمْ أَفْعَلْ لَتَقُولُنَّ قَدْ بَاءَتْ بِهِ عَلَى نَفْسِهَا وَإِنِّي وَاللّٰهِ مَا أَجِدُ لِي وَلَكُمْ مَثَلًا وَالْتَمَسْتُ اسْمَ يَعْقُوبَ فَلَمْ أَقْدِرْ عَلَيْهِ إِلَّا أَبَا يُوسُفَ حِينَ قَالَ فَصَبْرٌ جَمِيلٌ وَاللّٰهُ الْمُسْتَعَانُ عَلَى مَا تَصِفُونَ وَأُنْزِلَ عَلَى رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ سَاعَتِهِ فَسَكَتْنَا فَرُفِعَ عَنْهُ وَإِنِّي لَأَتَبَيَّنُ السُّرُورَ فِي وَجْهِهِ وَهُوَ يَمْسَحُ جَبِينَهُ وَيَقُولُ أَبْشِرِي يَا عَائِشَةُ فَقَدْ أَنْزَلَ اللّٰهُ بَرَاءَتَكِ قَالَتْ وَكُنْتُ أَشَدَّ مَا كُنْتُ غَضَبًا فَقَالَ لِي أَبَوَايَ قُومِي إِلَيْهِ فَقُلْتُ لَا وَاللّٰهِ لَا أَقُومُ إِلَيْهِ وَلَا أَحْمَدُهُ وَلَا أَحْمَدُكُمَا وَلَكِنْ أَحْمَدُ اللّٰهَ الَّذِي أَنْزَلَ بَرَاءَتِي لَقَدْ سَمِعْتُمُوهُ فَمَا أَنْكَرْتُمُوهُ وَلَا غَيَّرْتُمُوهُ وَكَانَتْ عَائِشَةُ تَقُولُ أَمَّا زَيْنَبُ ابْنَةُ جَحْشٍ فَعَصَمَهَا اللّٰهُ بِدِينِهَا فَلَمْ تَقُلْ إِلَّا خَيْرًا وَأَمَّا أُخْتُهَا حَمْنَةُ فَهَلَكَتْ فِيمَنْ هَلَكَ وَكَانَ الَّذِي يَتَكَلَّمُ فِيهِ مِسْطَحٌ وَحَسَّانُ بْنُ ثَابِتٍ وَالْمُنَافِقُ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ أُبَيٍّ وَهُوَ الَّذِي كَانَ يَسْتَوْشِيهِ وَيَجْمَعُهُ وَهُوَ الَّذِي تَوَلَّى كِبْرَهُ مِنْهُمْ هُوَ وَحَمْنَةُ قَالَتْ فَحَلَفَ أَبُو بَكْرٍ أَنْ لَا يَنْفَعَ مِسْطَحًا بِنَافِعَةٍ أَبَدًا فَأَنْزَلَ اللّٰهُ عَزَّ وَجَلَّ وَلَا يَأْتَلِ أُولُو الْفَضْلِ مِنْكُمْ إِلَى آخِرِ الْآيَةِ يَعْنِي أَبَا بَكْرٍ وَالسَّعَةِ أَنْ يُؤْتُوا أُولِي الْقُرْبَى وَالْمَسَاكِينَ يَعْنِي مِسْطَحًا إِلَى قَوْلِهِ أَلَا تُحِبُّونَ أَنْ يَغْفِرَ اللّٰهُ لَكُمْ وَاللّٰهُ غَفُورٌ رَحِيمٌ حَتَّى قَالَ أَبُو بَكْرٍ بَلَى وَاللّٰهِ يَا رَبَّنَا إِنَّا لَنُحِبُّ أَنْ تَغْفِرَ لَنَا وَعَادَ لَهُ بِمَا كَانَ يَصْنَعُ

## [۲۵۱] بَابُ وَلْيَضْرِبْنَ بِخُمُرِهِنَّ عَلَى جُيُوبِهِنَّ

[۴۴۸۰] وَقَالَ أَحْمَدُ بْنُ شَبِيبٍ حَدَّثَنَا أَبِي عَنْ يُونُسَ قَالَ ابْنُ شِهَابٍ عَنْ عُرْوَةَ عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا قَالَتْ يَرْحَمُ اللّٰهُ نِسَاءَ الْمُهَاجِرَاتِ الْأُوَلَ لَمَّا أَنْزَلَ اللّٰهُ وَلْيَضْرِبْنَ بِخُمُرِهِنَّ عَلَى جُيُوبِهِنَّ شَقَقْنَ مُرُوطَهُنَّ فَاخْتَمَرْنَ بِهَا

[۴۴۸۱] حدثنا ابونعيم حدثنا ابراهيم بن نافع عن الحسن بن مسلم عن صفية بنت شيبة ان عائشة رضی الله عنها كانت تقول لما نزلت هذه الاية واليضربن بخمرهن على جيوبهن اخذن ازرهن فشققنها من قبل الحواشی فاختمرن بها

حضرت عائشه رضي الله عنها فرمائي چه كله الله تعالى دا آيت نازل كړو وَلْيَضْرِبْنَ بِخُمُرِهِنَّ عَلَى جُيُوبِهِنَّ (اوخپلي لوپټې په خپلو ګريوانونو باندې واچوئى) نود مهاجرو او انصارو ښځو خپل څادرونه اوشلول او د هغې لوپټې او پړونى جوړ كړل. د جهالت په زمانه كښې به ښځو په عام توګه د داسې لوپټې د استعمال رواج وو چه لوپټه به ئى په سر واچوله نو دواړه پلوونه به ئى په اوږو شاته پريخودل د څه په وجه به چه غاړه او سينه كولاؤ وه، اسلام غاړه او سينه پټولو حكم وركړو.(١)-

## [٢٥٢] باب: تفسير سُورَةُ الْفُرْقَانِ

وَقَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ هَبَاءً مَنْثُورًا مَا تَسْفِي بِهِ الرِّيحُ مَدَّ الظِّلَّ مَا بَيْنَ طُلُوعِ الْفَجْرِ إِلَى طُلُوعِ الشَّمْسِ سَاكِنًا دَائِمًا عَلَيْهِ دَلِيلًا طُلُوعُ الشَّمْسِ خِلْفَةً مَنْ فَاتَهُ مِنَ اللَّيْلِ عَمَلٌ أَدْرَكَهُ بِالنَّهَارِ أَوْ فَاتَهُ بِالنَّهَارِ أَدْرَكَهُ بِاللَّيْلِ وَقَالَ الْحَسَنُ هَبْ لَنَا مِنْ أَزْوَاجِنَا وَذُرِّيَّاتِنَا قُرَّةَ أَعْيُنٍ فِي طَاعَةِ اللَّهِ وَمَا شَيْءٌ أَقَرَّ لِعَيْنِ الْمُؤْمِنِ مِنْ أَنْ يَرَى حَبِيبَهُ فِي طَاعَةِ اللَّهِ وَقَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ ثُبُورًا وَيْلًا وَقَالَ غَيْرُهُ السَّعِيرُ مُذَكَّرٌ وَالتَّسَعُّرُ وَالاضْطِرَامُ التَّوَقُّدُ الشَّدِيدُ تُمْلَى عَلَيْهِ تُقْرَأُ عَلَيْهِ مِنْ أَمْلَيْتُ وَأَمْلَلْتُ الرَّسُّ الْمَعْدِنُ جَمْعُهُ رِسَاسٌ مَا يَعْبَأُ يُقَالُ مَا عَبَأْتُ بِهِ شَيْئًا لَا يُعْتَدُّ بِهِ غَرَامًا هَلَاكًا وَقَالَ مُجَاهِدٌ وَعَتَوْا طَغَوْا وَقَالَ ابْنُ عُيَيْنَةَ عَاتِيَةٍ عَتَتْ عَنِ الْخُزَّانِ

## سُورَةُ الْفُرْقَانِ

**د كلماتو تشريح:**

**قوله:** وَقَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ: هَبَاءً مَنْثُورًا: مَا تَسْفِي بِهِ الرِّيحُ: آيت كښې دى "وَقَدِمْنَا إِلَى مَا عَمِلُوا مِنْ عَمَلٍ فَجَعَلْنَاهُ هَبَاءً مَنْثُورًا" يعنى مونږ د هغوى د اعمالوطرف ته راغلو نو مونږ هغه الوتونكې خاوره جوړه كړه، هغوى د اخلاص او ايمان نه خالي وو. حضرت ابن عباس رضي الله عنهما فرمائي چه "هَبَاءً مَنْثُورًا" هغه څيز ته وائى كوم چه هوا اوچت كړى او الوزوى يعنى دوړې وغيره. د حضرت حسن بصرى رحمه الله نه منقول دى چه دينه مراد د خاورو دوړو هغه باريكې ذرې دى چه د دروازې په سورى كښې د نمرپه رڼاكښې ښكارى (٢)-

**قوله:** مَدَّ الظِّلَّ: مَا بَيْنَ طُلُوعِ الْفَجْرِ إِلَى طُلُوعِ الشَّمْسِ: آيت كښې دى "أَلَمْ تَرَ إِلَى رَبِّكَ كَيْفَ مَدَّ الظِّلَّ وَلَوْ شَاءَ لَجَعَلَهُ سَاكِنًا ثُمَّ جَعَلْنَا الشَّمْسَ عَلَيْهِ دَلِيلًا" يعنى تا خپل رب نه دې ليدلې چه هغه د صبح صادق نه واخله تر نمر راختوپورې سورې څنګه اوږد كړو، كه الله تعالى غوښتلې نو دا به ئى د هميشه د پاره قائم ساتلې وو. بيا مونږ د نمر راختل په دې سورى دليل جوړ كړو يعنى نمر د سورى په كمى او اوږدوالى باندې علامت وى، د سورى پيژندګلو

(١)(عمدة القارى:١٩/٩٢)
(٢)(عمدة القارى:١٩/٩٣)

هم دَ نمر په ذريعه ممكن دى، دَ نمرنه بغيرسورې نشى پيژندلې. "ثُمَّ جَعَلْنَا الشَّمْسَ عَلَيْهِ دَلِيلًا" په دې كښې دَ شمس نه مرادا دَ نمر راختل دى.

**قوله: خِلْفَةً: مَنْ فَاتَهُ مِنَ اللَّيْلِ عَمَلٌ، أَدْرَكَهُ بِالنَّهَارِ، أَوْ فَاتَهُ بِالنَّهَارِ، أَدْرَكَهُ بِاللَّيْلِ:** آيت كښې دى "وَهُوَ الَّذِي جَعَلَ اللَّيْلَ وَالنَّهَارَ خِلْفَةً" الله تعالى هغه ذات دې چا چه شپه او ورځ په يو بل پسې راتلونكې جوړه كړه. دَ خلفة په تشريح كښې فرمائى چه دَ چانه دَ شپې څه عمل فوت شى نو هغه دَ ورځې كولې شى اوكه دَ ورځې فوت شى نو دَ شپې كولې شى.

دَ خلفة يو مراد خو هم هغه دې چه شپه دَ ورځې مخالف تياره ده او ورځ دَ شپې په خلاف رڼرا ده، يا داسې اووايه چه كله شپه لويه وى او ورځ وړه وى او كله ورځ لويه وى او شپه وړه وى يا به داسې ونيلى شى چه شپه دَ ورځې په ځائ راځى او ورځ دَ شپې په ځائ راځى اودَ يو بل قائمقام وى. بخارى څلورمه معنى بيان كړيده، چه دَ شپې عمل پاتې شى نو دَ ورځې پوره كړنې او كه دَ ورځې عمل پاتې شى نو دَ شپې پوره كړنې([1]).

**قوله: وَقَالَ الْحَسَنُ: هَبْ لَنَا مِنْ أَزْوَاجِنَا وَذُرِّيَّاتِنَا قُرَّةَ أَعْيُنٍ فِي طَاعَةِ اللَّهِ، وَمَا شَيْءٌ أَقَرَّ لِعَيْنِ الْمُؤْمِنِ مِنْ أَنْ يَرَى حَبِيبَهُ فِي طَاعَةِ اللَّهِ:** حضرت حسن بصرى رحمه الله فرمائى چه په آيت كښې "قرة عين" نه مراد دا دې چه الله تعالى هغوى ته دَ خپل اطاعت او فرمانبردارئى توفيق وركړى، دَ مؤمن دَ سترګو يخوالې دَ دې خبرې نه ډير په بل څه څيزكښې كيديشى چه هغه خپل محبوب دَ الله تعالى په اطاعت او فرمانبردارئى كښې اووينى.

**قوله: ثُبُورًا: وَيْلًا:** "دَعَوْا هُنَالِكَ ثُبُورًا" داكافران به هلته (دوزخ كښې) هلاكت غوارى. فرمائى آيت كښې ثبور معنى هلاكت او دَمرګ دې.

**قوله: السَّعِيرُ مُذَكَّرٌ وَالتَّسَعُّرُ وَالِاضْطِرَامُ التَّوَقُّدُ الشَّدِيدُ:** آيت كښې دى "وَأَعْتَدْنَا لِمَنْ كَذَّبَ بِالسَّاعَةِ سَعِيرًا" اومونږ دوزخ تيار كړيدې دَ هغه سړى دپاره چه قيامت دروغ ګڼړى. فرمائى چه سعير لفظ مذكر دې او تسعر او اضطرام معنى ده ښه بل كړيشوې، مشتعل كيدل.

**قوله: تُمْلَى عَلَيْهِ: تُقْرَأُ عَلَيْهِ، مِنْ أَمْلَيْتُ وَأَمْلَلْتُ:** آيت كښې دى "وَقَالُوا أَسَاطِيرُ الْأَوَّلِينَ اكْتَتَبَهَا فَهِيَ تُمْلَى عَلَيْهِ بُكْرَةً وَأَصِيلًا" يعنى هغوى اووئيل چه دَ اولنوخلقو قصې هغوى ليكلې

---

[1] (واخرجه عبدالرزاق عن معمر عن الحسن مثله. عن ابن عباس وقتادة: خلفة يعنى عوضا وخلفا. يقوم احدهما مكان صاحبه. فمن فاته عمله فى احدهما. قضاه فى الاخر. عن مجاهد: يعنى جعل كل واحدمنهما مخالفاللاخر. فجعل هذااسود. وهذابيض. وعن ابى زيديعنى اذاجاء احدهماذهب الاخر. فهمايتعاقبان فى الظل والضياء. والزيادة والنقصان (عمدة القارى:١٩/٩٣)

كيخوديدى يا په چا ليكلى دى او سحر ماښام هم دَ هغې ليكل كوى. په دې كښې تملى عليه معنى ده په دې باندې لوستلې شى. دا دَ اَمْلَيْتُ او اَمْلَلْتُ نه دې. إمْلاء ناقص يائى او املال مضاعف دَ دواړو معنى يوه ده.

**قوله: الرَّسُّ: الْمَعْدِنُ، جَمْعُهُ رِسَاسٌ:**

**د رس معنى:** آيت كښې دى "وَعَادًا وَّثَمُوْدَا وَاَصْحٰبَ الرَّسِّ وَقُرُوْنًا بَيْنَ ذٰلِكَ كَثِيْرًا۝" ابوعبيده دَ دې تشريح معدن يعنى غوږ سره كړيده. بعض حضراتو وئيلى دى چه رس كوهي ته وائى، قوم ثمود سره كوهيان ډير وو په دې وجه هغوى ته اصحاب الرس اووئيلې شو (١)- بعضو وئيلى دى چه دا دَ يونهر نوم دې اودا خلق دَ دې په غاړه آباد وو په دې وجه دوى ته اصحاب الرس اووئيلې شو (٢)- ليكن په دې ټولواقوالوكښې هيڅ تضاد نشته،دَ دې ټولو په وجه دوى ته اصحاب الرس اووئيلې شو.

**قوله: مَا يَعْبَأُ: يُقَالُ: مَا عَبَأْتُ بِهِ شَيْئًا: لَا يُعْتَدُّ بِهِ:** آيت كښې دى "قُلْ مَا يَعْبَؤُا بِكُمْ رَبِّىْ لَوْلَا دُعَآؤُكُمْ" ته وايه زما رب ستاسو هيڅ پرواه نه ساتى، كه تاسو هغه راؤنه بلئ، عرب وائى ماعبات به شيئاً مادَ هغوى څه پرواه اونه كړه.

**قوله: غَرَامًا: هَلَاكًا:** "اِنَّ عَذَابَهَا كَانَ غَرَامًا۝" بيشكه دَ دوزخ عذاب تباهى ده، دې كښې غراما معنى ده هلاكت.

**قوله: وَعَتَوْا: طَغَوْا:** "وَعَتَوْعُتُوًّا كَبِيْرًا۝" اودې خلقو ډيره لويه سركشى اوكړه، عتواً معنى سركشى كول.

**قوله: عَاتِيَةٍ: عَتَتْ عَنِ الْخُزَّانِ:** آيت كښې دى "وَاَمَّا عَادٌ فَاُهْلِكُوْا بِرِيْحٍ صَرْصَرٍ عَاتِيَةٍ۝" او عاديان چه كوم وو هغوى په يوتيزه هوا سره هلاك كړيشو، عاتيه معنى ده تيزه او تنده او دلته دا معنى بيان كړې دى، هغه هوا چه په هواګانوباندې مقررشوو فرښتوباندې سركشى اوكړې. خزان خازن جمع ده، دلته دينه هواګانې چلونكې فرښتې مراد دى.

## [٢٥٣] بَاب قَوْلِهِ الَّذِينَ يُحْشَرُونَ عَلَى وُجُوهِهِمْ إِلَى جَهَنَّمَ أُولَئِكَ شَرٌّ مَكَانًا وَأَضَلُّ سَبِيلًا

[٤٤٨٢] (٣) حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا يُونُسُ بْنُ مُحَمَّدٍ الْبَغْدَادِيُّ حَدَّثَنَا شَيْبَانُ عَنْ قَتَادَةَ حَدَّثَنَا أَنَسُ بْنُ مَالِكٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ أَنَّ رَجُلًا قَالَ يَا نَبِيَّ اللَّهِ يُحْشَرُ الْكَافِرُ عَلَى

(١) (فتح البارى:٨/٤٩١ وتفسير كشاف:٣/٣٨٠ ومعالم التنزيل:٣/٣٦٩

(٢) (الجامع لاحكام القران:١٣/٣٣

(٣) (واخرجه ايضاً فى كتاب الرقاق باب الحشر رقم الحديثك ٦٥٢٣ ...[بقيه حاشيه په راروانه صفحه..

وَجْهِهِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ قَالَ أَلَيْسَ الَّذِي أَمْشَاهُ عَلَى الرِّجْلَيْنِ فِي الدُّنْيَا قَادِرًا عَلَى أَنْ يُمْشِيَهُ عَلَى وَجْهِهِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ قَالَ قَتَادَةُ بَلَى وَعِزَّةِ رَبِّنَا

## [٢٥٤] بَاب قَوْلِهِ وَالَّذِينَ لَا يَدْعُونَ مَعَ اللَّهِ إِلَهًا آخَرَ

وَلَا يَقْتُلُونَ النَّفْسَ الَّتِي حَرَّمَ اللَّهُ إِلَّا بِالْحَقِّ وَلَا يَزْنُونَ وَمَنْ يَفْعَلْ ذَلِكَ يَلْقَ أَثَامًا الْعُقُوبَةَ

[٤٤٨٣] حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا يَحْيَى عَنْ سُفْيَانَ قَالَ حَدَّثَنِي مَنْصُورٌ وَسُلَيْمَانُ عَنْ أَبِي وَائِلٍ عَنْ أَبِي مَيْسَرَةَ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ ح قَالَ وَحَدَّثَنِي وَاصِلٌ عَنْ أَبِي وَائِلٍ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ سَأَلْتُ أَوْ سُئِلَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَيُّ الذَّنْبِ عِنْدَ اللَّهِ أَكْبَرُ قَالَ أَنْ تَجْعَلَ لِلَّهِ نِدًّا وَهُوَ خَلَقَكَ قُلْتُ ثُمَّ أَيٌّ قَالَ ثُمَّ أَنْ تَقْتُلَ وَلَدَكَ خَشْيَةَ أَنْ يَطْعَمَ مَعَكَ قُلْتُ ثُمَّ أَيٌّ قَالَ أَنْ تُزَانِيَ بِحَلِيلَةِ جَارِكَ قَالَ وَنَزَلَتْ هَذِهِ الْآيَةُ تَصْدِيقًا لِقَوْلِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَالَّذِينَ لَا يَدْعُونَ مَعَ اللَّهِ إِلَهًا آخَرَ وَلَا يَقْتُلُونَ النَّفْسَ الَّتِي حَرَّمَ اللَّهُ إِلَّا بِالْحَقِّ وَلَا يَزْنُونَ

ويحيى هوابن سعيدالقطان وسفيان هوالثورى ومنصور هوابن المعتمر وسليمان هوالاعمش وابووائل شقيق بن سلمة وابوميسرة عمروبن شرجيل الهمدانى وعبدالله هوابن مسعود وواصل هوابن حيان الكوفى

دا حديث سفيان ثورى د دريومشائخويعنى منصور، سليمان او واصل نه نقل كړيدې چه دا لاندينى دى: ① سفيان، عن منصور وعن ابى وائل، عن ابى ميسرة، عن عبدالله ② سفيان، عن سليمان، عن ابى وائل، عن ابى ميسرة، عن عبدالله ③ سفيان، عن واصل، عن ابى وائل، عن عبدالله

**د سند توضيح:** په اول دوو طريق كښې ابووائل او حضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه په مينځ كښې ابوميسره دې او آخرى طريق كښې ابووائل او حضرت عبدالله په مينځ كښې ابوميسره واسطه نشته. دا روايت دلته يحيى بن سعيدالقطان سفيان نه نقل كړيدې، عبدالرحمن بن مهدى هم سفيان نه مذكوره دريواړه طريق نه دا روايت نقل كړيدې. په دې كښې دَ واصل په طريق كښې هم ابوميسره ذكر دې. علامه عينى اوفرمائيل "والصواب اسقاط ابى ميسرة من رواية واصل"[1]- يعنى صحيح خبره دا ده چه دَ واصل په طريق كښې ابوميسره واسطه نشته. والله اعلم

---

...بقيه ازحاشيه گذشته] واخرجه مسلم فى صفات المنافقين واحكامهم باب يحشرالكافرعلى وجهه رقم الحديث: ٢٨٠٦ واخرجه النسائى فى السنن الكبرى فى التفسيرفى التفسيرباب قوله تعالى: الذين يحشرون على وجوههم الى جهنم رقم الحديث:١١٣٦٧

[1])عمدة القارى ک١٩/٩٦

[۴۴۸۴] حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ مُوسَى أَخْبَرَنَا هِشَامُ بْنُ يُوسُفَ أَنَّ ابْنَ جُرَيْجٍ أَخْبَرَهُمْ قَالَ أَخْبَرَنِي الْقَاسِمُ بْنُ أَبِي بَزَّةَ أَنَّهُ سَأَلَ سَعِيدَ بْنَ جُبَيْرٍ هَلْ لِمَنْ قَتَلَ مُؤْمِنًا مُتَعَمِّدًا مِنْ تَوْبَةٍ فَقَرَأْتُ عَلَيْهِ وَلَا يَقْتُلُونَ النَّفْسَ الَّتِي حَرَّمَ اللَّهُ إِلَّا بِالْحَقِّ فَقَالَ سَعِيدٌ قَرَأْتُهَا عَلَى ابْنِ عَبَّاسٍ كَمَا قَرَأْتَهَا عَلَيَّ فَقَالَ هَذِهِ مَكِّيَّةٌ نَسَخَتْهَا آيَةٌ مَدَنِيَّةٌ الَّتِي فِي سُورَةِ النِّسَاءِ

[۴۴۸۵] حَدَّثَنِي مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ حَدَّثَنَا غُنْدَرٌ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ الْمُغِيرَةِ بْنِ النُّعْمَانِ عَنْ سَعِيدِ بْنِ جُبَيْرٍ قَالَ اخْتَلَفَ أَهْلُ الْكُوفَةِ فِي قَتْلِ الْمُؤْمِنِ فَرَحَلْتُ فِيهِ إِلَى ابْنِ عَبَّاسٍ فَقَالَ نَزَلَتْ فِي آخِرِ مَا نَزَلَ وَلَمْ يَنْسَخْهَا شَيْءٌ

[۴۴۸۶] حَدَّثَنَا آدَمُ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ حَدَّثَنَا مَنْصُورٌ عَنْ سَعِيدِ بْنِ جُبَيْرٍ قَالَ سَأَلْتُ ابْنَ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا عَنْ قَوْلِهِ تَعَالَى فَجَزَاؤُهُ جَهَنَّمُ قَالَ لَا تَوْبَةَ لَهُ وَعَنْ قَوْلِهِ جَلَّ ذِكْرُهُ لَا يَدْعُونَ مَعَ اللَّهِ إِلَهًا آخَرَ قَالَ كَانَتْ هَذِهِ فِي الْجَاهِلِيَّةِ

د سورة فرقان په دريو آياتونو باندې امام بخاري رحمه الله ابواب قائم کړي دي. اولنۍ آيت دې: "وَالَّذِينَ لَا يَدْعُونَ مَعَ اللَّهِ إِلَٰهًا آخَرَ وَلَا يَقْتُلُونَ النَّفْسَ الَّتِي حَرَّمَ اللَّهُ إِلَّا بِالْحَقِّ وَلَا يَزْنُونَ ۚ وَمَن يَفْعَلْ ذَٰلِكَ يَلْقَ أَثَامًا" په دې آيت باندې باب قائمولو سره امام د دې لاندې څلور احاديثو تخريج کړيدې. دوئم آيت دې "يُضَاعَفْ لَهُ الْعَذَابُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ وَيَخْلُدْ فِيهِ مُهَانًا" دې لاندې هم يو روايت نقل کړيدې، دريم آيت دې "إِلَّا مَن تَابَ وَآمَنَ وَعَمِلَ عَمَلًا صَالِحًا فَأُولَٰئِكَ يُبَدِّلُ اللَّهُ سَيِّئَاتِهِمْ حَسَنَاتٍ ۗ وَكَانَ اللَّهُ غَفُورًا رَّحِيمًا" د دې لاندې هم يو روايت نقل کړيدې. دې آياتونو نه معلوميږي که يو سړې د قتل عمد مرتکب وی نو د توبې نه پس د ده معافي به اوشي خود سورة النساء د آيت نه ملعوميږي چه د ده توبه نه قبليږي. د مؤمن د قتل ارتکاب کونکې به هميشه هميشه په دوزخ کښې وی اود ده معافي به نه وی. د آيت الفاظ دی "وَمَن يَقْتُلْ مُؤْمِنًا مُّتَعَمِّدًا فَجَزَاؤُهُ جَهَنَّمُ خَالِدًا فِيهَا"

**د سورة فرقان او د سورة نساء د ايتونو متعلق د حضرت ابن عباس رضی الله عنهما سوال او دهغه جواب:** حضرت ابن عباس رضي الله عنهما نه د دې متعلق سوال اوکړيشو نو دلته په رواياتوکښې د دوی نه دوه قسمه جواب مروی دې. يو دا چه د سورة فرقان آيت د کوم نه چه د مؤمن د قتل د مرتکب معافي معلوميږي منسوخ دې اود دې د پاره ناسخ سورة النساء والا آيت دې او هغه مدنی دې نود ده د پاره اوس د توبې ګنجائش نشته.

په دوئم روايت کښې چه د هغوی نه د دې متعلق سوال اوکړيشو نو هغوی اوفرمائيل چه سورة النساء آيت چا نه دې منسوخ کړې اود ټولونه په آخره کښې هغه نازل شويدې اود سورة فرقان آيت د اهل شرك په باره کښې دې چه کوموخلقو د جاهليت په زمانه کښې او د شرك په زمانه کښې قتل کړې وی او بيا ئې توبه کړې وی او ايمان ئې راوړې وی نود هغوی متعلق اوونيلې شو چه د هغوی توبه به قبليږی اودوی به نه نيولې کيږی. د اولنی جواب په رو سره حضرت ابن عباس رضي الله عنهما د سورة النساء آيت ناسخ او د فرقان آيت منسوخ منلې دې او د دوئم جواب په رو سره هغه ناسخ منسوخ نه بلکه دواړه مصداق جدا جدا ګرځوی چه د سورة نساء د آيت تعلق د اسلام راوړلونه پس قتل مؤمن ارتکاب سره دې او د سورة فرقان

آيت د هغه خلقو باره كښې دي چه د اسلام نه وړاندې د قتل ارتكاب كړې وى. بهرحال دلته د دې دواړو جوابونونه معلوميږى چه هغه د قاتل مؤمن د توبې قائل نه دې ليكن دا د جمهورو مسلك نه دې، جمهور علماء وائى چه د شرك نه علاوه هره ګناه معاف كيديشى. بلكه بعض حضرات سورة نساء آيت ته منسوخ او فرقان آيت ته ناسخ وائى. د حضرت ابن عباس رضي الله عنه نه هم يو قول د جمهورو موافق مروى دې. بعض حضراتو ونيلى دى چه حضرت ابن عباس رضي الله عنه مسلك د جمهورو مطابق دې البته هغوى په دې سلسله كښې چه څه ونيلى دى چه د قاتل مؤمن د پاره معافى نشته داد تغليظ اوتشديد اود قتل ذرائع د منع كولو د پاره مصلحتا ونيلى دى. د دې متعلق بحث د سورة نساء د آيت لاندې تيرشوې دې هلته اوګورئ([1])

## [٢٥٥] بَاب يُضَاعَفْ لَهُ الْعَذَابُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ وَيَخْلُدْ فِيهِ مُهَانًا

[٤٤٨٧] حَدَّثَنَا سَعْدُ بْنُ حَفْصٍ حَدَّثَنَا شَيْبَانُ عَنْ مَنْصُورٍ عَنْ سَعِيدِ بْنِ جُبَيْرٍ قَالَ قَالَ ابْنُ أَبْزَى سَلْ ابْنَ عَبَّاسٍ عَنْ قَوْلِهِ تَعَالَى وَمَنْ يَقْتُلْ مُؤْمِنًا مُتَعَمِّدًا فَجَزَاؤُهُ جَهَنَّمُ خَالِدًا فِيهَا وَقَوْلِهِ وَلَا يَقْتُلُونَ النَّفْسَ الَّتِي حَرَّمَ اللَّهُ إِلَّا بِالْحَقِّ حَتَّى بَلَغَ إِلَّا مَنْ تَابَ وَآمَنَ فَسَأَلْتُهُ فَقَالَ لَمَّا نَزَلَتْ قَالَ أَهْلُ مَكَّةَ فَقَدْ عَدَلْنَا بِاللَّهِ وَقَدْ قَتَلْنَا النَّفْسَ الَّتِي حَرَّمَ اللَّهُ إِلَّا بِالْحَقِّ وَأَتَيْنَا الْفَوَاحِشَ فَأَنْزَلَ اللَّهُ إِلَّا مَنْ تَابَ وَآمَنَ وَعَمِلَ عَمَلًا صَالِحًا إِلَى قَوْلِهِ غَفُورًا رَحِيمًا

## [٢٥٦] بَاب إِلَّا مَنْ تَابَ وَآمَنَ وَعَمِلَ عَمَلًا صَالِحًا فَأُولَئِكَ يُبَدِّلُ اللَّهُ سَيِّئَاتِهِمْ حَسَنَاتٍ وَكَانَ اللَّهُ غَفُورًا رَحِيمًا

[٤٤٨٨] حَدَّثَنَا عَبْدَانُ أَخْبَرَنَا أَبِي عَنْ شُعْبَةَ عَنْ مَنْصُورٍ عَنْ سَعِيدِ بْنِ جُبَيْرٍ قَالَ أَمَرَنِي عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ أَبْزَى أَنْ أَسْأَلَ ابْنَ عَبَّاسٍ عَنْ هَاتَيْنِ الْآيَتَيْنِ وَمَنْ يَقْتُلْ مُؤْمِنًا مُتَعَمِّدًا فَسَأَلْتُهُ فَقَالَ لَمْ يَنْسَخْهَا شَيْءٌ وَعَنْ وَالَّذِينَ لَا يَدْعُونَ مَعَ اللَّهِ إِلَهًا آخَرَ قَالَ نَزَلَتْ فِي أَهْلِ الشِّرْكِ

## [٢٥٧] بَاب فَسَوْفَ يَكُونُ لِزَامًا أَيْ هَلَكَةً

[٤٤٨٩] حَدَّثَنَا عُمَرُ بْنُ حَفْصِ بْنِ غِيَاثٍ حَدَّثَنَا أَبِي حَدَّثَنَا الْأَعْمَشُ حَدَّثَنَا مُسْلِمٌ عَنْ مَسْرُوقٍ قَالَ قَالَ عَبْدُ اللَّهِ خَمْسٌ قَدْ مَضَيْنَ الدُّخَانُ وَالْقَمَرُ وَالرُّومُ وَالْبَطْشَةُ وَاللِّزَامُ فَسَوْفَ يَكُونُ لِزَامًا

**د قيامت د علاماتو نه خومره علامتونه تيرشوى دى:** حضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه فرمائى چه د قيامت د نښونه پنځه څيزونه تيرشوى دى ① دخان ② شق القمر ③ روم باندې غلبه

---

[1] (كشف البارى

④ بطشه ⑤ لزام. دَ دخان ذكر په سورة دخان كښې دى. "فَارْتَقِبْ يَوْمَ تَأْتِي السَّمَآءُ بِدُخَانٍ مُّبِينٍ" اودَ شق القمر تذكره په سورة انبياء كښې ده "اِقْتَرَبَتِ السَّاعَةُ وَانْشَقَّ الْقَمَرُ" دَ روم ذكر په سورة روم كښې دى "غُلِبَتِ الرُّوْمُ ۙ فِيْٓ اَدْنَى الْاَرْضِ" اودَ بطشه ذكر په سورة دخان كښې دې "يَوْمَ نَبْطِشُ الْبَطْشَةَ الْكُبْرٰى ۚ اِنَّا مُنْتَقِمُوْنَ" اودَ لزام ذكر دَ سورة فرقان په آيت باب كښې دې. په دې كښې خو دوه نښې په اتفاق سره تيرې شوى دى، يو شق القمر او دوئم دَ روم مغلوبيت او باقى درې نښې دخان، بطشه او لزام باره كښې اختلاف دې. حضرت ابن مسعود رضي الله عنه په نيزد دخان نه مراد هغه لوګې دې چه دَ نبى كريم ﷺ په زمانه كښې چه قريشو ته دَ ولږې دَ زياتوالي په وجه محسوس كيدو. اودَ بطشه نه مراد غزوه بدر په موقع دَ كافرانو قتلول مراد دى اودَ لزام نه دَ هغوى قيد او بند مراد دې. ليكن نور حضرات فرمائي چه دخان نه مراد هغه لوګې دې چه قيامت سره نزدې به راوچتيږى او په ټولو خلقو به خوريږى البته نيكان به دَ دې اثر ډير سپك محسوس كوى او كافران او منافقان به دَ دې دَ اثر نه بې هوشه كيږى، دغه شان بطشه او لزام نه مراد دَ قيامت په ورځ دَ كافرانو رانيول او دوزخ كښې اچول اودَ هغوى هلاكيدل دى.(١) ليكن په دې كښې هيڅ تضاد نشته دواړه توجيهات مراد كيدې شي.

## [٢٥٨] باب: تفسير سُورَةُ الشُّعَرَاءِ

وَقَالَ مُجَاهِدٌ تَعْبَثُونَ تَبْنُونَ هَضِيمٌ يَتَفَتَّتُ إِذَا مُسَّ مُسَحَّرِينَ الْمَسْحُورِينَ لَيْكَةُ وَالْأَيْكَةُ جَمْعُ أَيْكَةٍ وَهِيَ جَمْعُ شَجَرٍ يَوْمِ الظُّلَّةِ إِظْلَالُ الْعَذَابِ إِيَّاهُمْ مَوْزُونٍ مَعْلُومٍ كَالطَّوْدِ كَالْجَبَلِ وَقَالَ غَيْرُهُ لَشِرْذِمَةٌ الشِّرْذِمَةُ طَائِفَةٌ قَلِيلَةٌ فِي السَّاجِدِينَ الْمُصَلِّينَ قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ لَعَلَّكُمْ تَخْلُدُونَ كَأَنَّكُمْ الرِّيعُ الْأَيْفَاعُ مِنَ الْأَرْضِ وَجَمْعُهُ رِيَعَةٌ وَأَرْيَاعٌ وَاحِدُهُ رِيعَةٌ مَصَانِعَ كُلُّ بِنَاءٍ فَهُوَ مَصْنَعَةٌ فَرِهِينَ مَرِحِينَ فَارِهِينَ بِمَعْنَاهُ وَيُقَالُ فَارِهِينَ حَاذِقِينَ تَعْثَوْا هُوَ أَشَدُّ الْفَسَادِ عَاثَ يَعِيثُ عَيْثًا الْجِبِلَّةَ الْخَلْقُ جُبِلَ خُلِقَ وَمِنْهُ جُبُلًا وَجِبِلًا وَجُبْلًا يَعْنِي الْخَلْقَ قَالَهُ ابْنُ عَبَّاسٍ

## سُورَةُ الشُّعَرَاءِ

**د كلماتو تشريح:**

**قوله:** وَقَالَ مُجَاهِدٌ: تَعْبَثُونَ: تَبْنُونَ: آيت كښې دى "اَتَبْنُوْنَ بِكُلِّ رِيْعٍ اٰيَةً تَعْبَثُوْنَ" آياهره اوچته زمكه باندې يوه نښه جوړوئى فضول، مولانا شبيراحمدعثمانى ليكى: "دې خلقو ته ډير شوق وودَ اوچتو او مضبوطو منارو دَ جوړولو، دَ چانه چه څه كار اونه څې مګرنوم ئې اوشى اودَ اوسيدو عمارتونه به ئې هم ډير مزيدار جوړول، دَ مال ضائع كولو دَ پاره به ئې په دې كښې استاذئى خودلې، لكه دا به ئې ګنړل چه هميشه دلته اوسيدل دى او يادګارونه او

(١)(معالم التنزيل للبغوى: ١٤٩/٤

عمارتونه کله به نه بربادیږی (لیکن نن اوګوره د هغې ګنډرې هم باقی نه دی)" حضرت مجاهد فرمائی چه په آیت کښې تعبثون په معنی تبنون ده، یعنی بې ضرورته اوچتې اوچتې منارې جوړولې کوم نه چه هیڅ فائده تشنه عبث خرچ کوی.

**قوله: هَضِيمٌ: يَتَفَتَّتُ إِذَا مُسَّ:** آیت کښې دی "فِيْ جَنّٰتٍ وَّعُيُوْنٍ ۝ وَّزُرُوْعٍ وَّنَخْلٍ طَلْعُهَا هَضِيْمٌ ۝" یعنی باغونوکښې او چینوکښې او پټوکښې او په کهجوروکښې چه د هغې تیغونه نرم وی، تاسوله د عیش ګولود پاره به پریخودې شی، نه داسې نه ده. مجاهد فرمائی چه هضیم اطلاق په هغه غونچه باندې کیږی چه لاس لګولوسره ذره ذره کیږی (اودا حالت د اوچیدونه پس کیږی)

**قوله: مُسَحَّرِيْنَ: الْمَسْحُوْرِيْنَ:** آیت کښې دی "قَالُوْٓا اِنَّمَآ اَنْتَ مِنَ الْمُسَحَّرِيْنَ ۝" فرمائی دې کښې مسحرین په معنی د مسحورین ده یعنی چه په چا باندې جادو کړیشوی وی.

**قوله: لَيْكَةَ: وَالْأَيْكَةُ جَمْعُ أَيْكَةٍ وَهِيَ جَمْعُ شَجَرٍ:** آیت کښې دی "كَذَّبَ اَصْحٰبُ لْئَيْكَةِ الْمُرْسَلِيْنَ ۝"
امام نافع، ابن کثیر او ابن عامرقراءت لیکة دې اوباقی حضرات "الایکة" لولی([1]) امام فرمائی چه لیکة او الایکة ایکة جمع ده د ونوجنګلئی او ځنګل ته وائی (مفر او جمع کښې صرف د لازم فرق دې) ([2])- علامه عینی دا پورته ذکر شوې عبارت غلط ګڼړی او فرمائی چه صحیح عبارت داسې پکاردې "الليكة، والايكة مفردايك، اويقال: جمعها ايك" يعنی الليكة او الايك "ايك" مفرد دې، یا داسې وئیلې شی چه د دې جمع ایك دې ([3])- بعض حضرات وائی چه "لیکة" د ښارنوم دې او "ایکة" د ونوجنګلئی او ځنګل ته وائی ([4])- دا دواړه یو ګرځول صحیح نه دی.

**قوله: يَوْمِ الظُّلَّةِ: إِظْلَالُ الْعَذَابِ إِيَّاهُمْ:** آیت کښې دی "فَكَذَّبُوْهُ فَاَخَذَهُمْ عَذَابُ يَوْمِ الظُّلَّةِ ۝" يوم الظلة نه هغه ورځ مراد ده، په کوم کښې چه عذاب په هغوی باندې سورې وی.

**قوله: مَوْزُوْنٍ: مَعْلُوْمٍ:** سورة حج کښې دی "وَاَنْۢبَتْنَا فِيْهَا مِنْ كُلِّ شَيْءٍ مَّوْزُوْنٍ ۝" موزون هغه څیز چه وزن شوی وی یعنی معین او معلوم وی، دا لفظ دلته د کاتب په سهو راغلې دې. ([5])-

**قوله: كَالطَّوْدِ: كَالْجَبَلِ:** آیت کښې دی "فَانْفَلَقَ فَكَانَ كُلُّ فِرْقٍ كَالطَّوْدِ الْعَظِيْمِ ۝" نوهغه دریاب اوشلیدو نو هره یوه حصه د لوئ غرپه شان شوه، حضرت شاه عبدالقادر صاحب رحمه الله لیکی:

---

[1] (عمدة القاری: ۱۹/۹۸)

[2] (قال الشيخ الانور في الفيض: ۴/۲۱۸ هی شجرة يقال للواحدة، ايكة، وللاشجار الكثير، الايكة فبين مفرده وجمعه فرق باللام

[3] (عمدة القاری: ۱۹/۹۸)

[4] (عمدة القاری: ۱۹/۹۸)

[5] (قال العينی: هذاغيرواقع فی محله فانه فی سورة الحجر وكانه من جهل الناسخ (عمدة القاری: ۱۹/۹۹)

اوبه ډیرې زورې وې، دولسوخایونوسره اوشلیدې اوچې لارې جوړې شوې. د بنی اسرائیلو دولس قبیلې جدا جدا په هغې کښې تیرې شوې او په مینځ کښې د اوبوغرونه ولاړ پاتې شو. فرمائی آیت کښې طود معنی غرده.

**قوله: لَشِرْذِمَةٌ: الشِّرْذِمَةُ طَائِفَةٌ قَلِيلَةٌ:** اِنَّ هٰٓؤُلَآءِ لَشِرْذِمَةٌ قَلِيْلُوْنَ ۞ " دا خلق لږه شان ډله وه. فرمائی شرذمة معنی ده لږه شان ډله.

**قوله: فِي السّٰجِدِيْنَ: الْمُصَلِّيْنَ:** آیت کښې دی " اَلَّذِیْ یَرٰىكَ حِیْنَ تَقُوْمُ ۞ وَتَقَلُّبَكَ فِی السّٰجِدِیْنَ ۞ " فرمائی په دې کښې ساجدین د مصلین په معنی کښې دی یعنی الله هغه ذات دې چه تا د مانځه د پاره ولاړوینی او په مونځ کذاروکښې ستا نقل اوحرکت وینی، یعنی حضور اکرم ﷺ په کوم وخت کښې د مؤمنانو د احوال تفقد فرمائیلو او دابه ئې کتل چه مونځ صحیح کوی که نه، د ارکان تعدیل او د مانځه نور آدابو رعایت کوی که نه، دغه وخت کښې الله تعالی تاته ګوری.

**آیا د حضور اکرم ﷺ والدین مؤمنان وو؟** ابوجعفر نحاس په معانی القرآن کښې ددې یو بل مطلب نقل کړیدې هغه فرمائی چه وتقلبك فی الساجدین مطلب دا دې چه الله تعالی هغوی ﷺ ته په اصلاب طاهره سره په ارحام طاهره کښې منتقل کړو (۱)-قاضی ماوری د حضرت ابن عباس رضی الله عنه نه هم دغه تفسیرنقل کړیدې (۲)اوحافظ جلال الدین سیوطی رحمه الله هم په دې باندې اعتماد کولو سره "مسالك الحنفا" کښې دا ثابت کړی دی چه د حضور ﷺ والدین مؤمنان وو بلکه د هغوی خو دا خیال دې چه د هغوی ﷺ نه په عمود نسب کښې د جناب عبدالله نه واخله حضرت آدم علیه السلام پورې یوهم کافر نه دې تیرشوې.(۳) - حافظ شمس الدین ابن ناصر دمشقی وئیلی دی:

تنقل احمد نورا عظیما ... تلألأ فی جباه الساجدینا

تقلب فیهم قرنا فقرنا ... الی ان جاء خیر المرسلینا (۴)

د حضور اکرم ﷺ د والدینو باره کښې راجح قول همدغه دې چه هغوی مؤمنان شوی دی(۵)- امام مسلم رحمه الله په کتاب الایمان کښې یو روایت نقل کړیدې هغې سره د هغوی ﷺ

---

(۱)(مسالک الحنفا:۲۲۱ وروح المعانی:۱۹/۱۳۷-۱۳۸ والحاوی للفتاوی فی رسالة: مسالک احنفا فی والدی المصطفی:۲/۲۱۰ للسیوطی-

(۲)(قال الماوردی فی تفسیره "النکت والعیون":۳/۱۸۵: وتقلبک فی الساجدین: فیه ستة تاویلات. احدها من نبی الی نبی حتی اخرجک نبیا. قاله ابن عباس

(۳)(مسالک الحنفا فی والدی المصطفی رسالة للسیوطی شاملة فی الحاوی للفتاوی:۲/۲۱۰-۲۱۶

(۴)(الحاوی للفتاوی. مسالک الحنفاء:۲۲۱

(۵)(قال الالوسی رحمه الله فی روح المعانی:۱۹/۱۳۸: واستدل بالایة علی ...[بقیه حاشیه په راروانه صفحه..

والدغیر ناجي کیدل معلومیږی (۱)- او هم امام مسلم رحمه الله په جنائز کښې یو روایت نقل کړیدې چه د هغې نه د هغوی ﷺ مور بی بی غیرناجی کیدل معلومیږی (۲)- لیکن ابن شاهین په "کتاب الناسخ والمنسوخ" کښې او خطیب بغدادی په "کتاب السابق واللاحق" کښې یو روایت نقل کړې دې چه الله تعالی د هغوی ﷺ مورژوندنی کړه او هغې ایمان راوړو دې نه پس د هغوی وفات اوشو (۳)- د سیوطی رائې دا ده چه حضور ﷺ والدین د اصحاب الفطره نه وو او که اصحاب الفطره چرې مشرك نه وی نود هغوی په حق کښې د نجات فیصله ده. د امام مسلم رحمه الله په روایت باندې علامه سیوطی کلام کړیدې. (۴)- لیکن دا مسئله بهرحال ګرانه ده او د عقیدې سره د دې څه داسې تعلق هم نشته چه د انسان د خلاصی دارومدار په دې باندې وی په دې وجه په دې سلسله کښې سکوت اختیارول ډیر بهتر او مناسب دی.

**فائده:** علامه شبیراحمد عثمانی رحمه الله د دې آیت په تفسیر کښې فرمائی یعنی چه کله ته تهجد د پاره پاڅې او د متوسلینِ خبره اخلې چه د الله تعالی په یاد کښې دی که غافل دی (موضح) یا چه ته کله د مانځه د پاره اودریږې او په جمع کښې ښکته پورته کیدل(رکوع سجده وغیره)کوې او د مقتدیانو خیال ساتې او بعض سلفوونیلی دی چه د ساجدین نه د هغوی نیکونه مراد دی یعنی د هغوی ﷺ نور د یو نبی صلب نه د بل نبی صلب ته وربدلیدل او په آخره کښې نبی کیدل اوتشریف راوړل. بلکه بعضې مفسرینو هم دې لفظ نه د حضور ﷺ د والدینو په ایمان استدلال کړیدې. (۵)-

**قوله: وَقَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ: لَعَلَّكُمْ تَخْلُدُونَ: كَأَنَّكُمْ:** آیت کښې دی "وَتَتَّخِذُونَ مَصَانِعَ لَعَلَّكُمْ تَخْلُدُونَ" یعنی تاسو په مکانونو او مناروکښې کاریګرئ جوړوئی چه تاسو به همیشه په دې کښې اوسیږئی، حضرت ابن عباس رضی الله عنه فرمائی چه دې کښې لعل حرف مشبه بالفعل د کان په معنی کښې دې یعنی دا د ترجی د پاره نه دې بلکه د تشبیه د پاره دې.

مولانا انورشاه کشمیری رحمه الله فرمائی: "اشار الی الجواب عن الاشکال المشهور، ان التمنی والترجی

---

...بقیه ازحاشیه گذشته] ایمان ابویه صلی الله علیه وسلم. کماذهب الیه کثیر من اجلة اهل السنة وانااخشی الکفر علی من یقول فیهما. رضی الله تعالی عنهما

(۱)(د حدیث الفاظ دی: "عن انس ان رجلاقال لرسول صلی الله علیه وسلم این ابی؟ قال: فی النار. قال: فلما قفی و دعاه. فقال: ان ابی واباک فی النار" صحیح مسلم کتاب الایمان باب بیان ان من مات علی الکفر فهو فی النار: ۱/۱۱۴)

(۲)(الحدیث اخرجه ملسم فی الجنائز: ۱/۳۱۴ عن ابی هریرة قال: زارالنبی صلی الله علیه وسلم قبرامه. فبکی، وابکی من حوله. فقال صلی الله علیه وسلم: استاذنت ربی فی ان استغفرلها. فلم یؤذن لی. واستاذنته فی ان ازورقبرها. فاذن لی. فزوروا القبور. فانها تذکرکم الموت

(۳)(الحاوی للفتاوی. مسالک الحنفا: ۲/۲۳۰

(۴)(التحاوی للفتاوی. مسالک الحنفا والدی المصطفی: ۲/۲۲۶-۲۲۷

(۵)(تفسیرعثمانی ص۵۰۱ سورة الشعراء آیت ۲۱۸-۲۱۹

محال فى جنابه تعالى، فما معنى الفاظ الترجي ونحوه، فاجاب عنه انه فى القران بمعنى كانكم" (1)۔

**قوله:** الرِّيعُ: الأَيْفَاعُ مِنَ الأَرْضِ، وَجَمْعُهُ رِيَعَةٌ وَأَرْيَاعٌ، وَاحِدُهُ رِيعَةٌ: "أَتَبْنُونَ بِكُلِّ رِيعٍ آيَةً تَعْبَثُونَ" آياتاسو په هره اوچته زمکه باندې د لوبو د پاره يو نښه جوړوئ. فرمائى چه ريع معنى د اوچتې زمکې راځى، د دې جمع ريعة (د را په کسره، ياء په فتحه سره) او ارياع راځى اود دې مفرد ريعة (راپه کسره اوياء په سکون سره) دې.

**قوله:** مَصَانِعَ: كُلُّ بِنَاءٍ فَهُوَ مَصْنَعَةٌ: آيت کښې دى "وَتَتَّخِذُونَ مَصَانِعَ لَعَلَّكُمْ تَخْلُدُونَ" تاسو لوئ لوئ آبادئ جوړوئ لکه چه تاسو به په دنيا کښې د هميشه د پاره اوسيږئ، مصانع مصنعة جمع ده او هرعمارت ته مصنعة وائى.

**قوله:** فَرِهِينَ: مَرِحِينَ فَارِهِينَ بِمَعْنَاهُ وَيُقَالُ: فَارِهِينَ: حَاذِقِينَ: "وَتَنْحِتُونَ مِنَ الْجِبَالِ بُيُوتًا فَرِهِينَ" او تاسو اوچت اوچت غرونه تراشئ او کورونه جوړوئ. فرمائى چه آيت کښې فرهين معنى ده اوچت، فخر کونکى فرهين او فارهين دواړو يوه معنى ده. او يوقول داهم دې چه فارهين په معنى د حاذقين دې ماهر او تجربه کار.

**قوله:** تَعْثَوْا: هُوَ أَشَدُّ الْفَسَادِ- عَاثَ يَعِيثُ عَيْثًا: "وَلَا تَعْثَوْا فِي الْأَرْضِ مُفْسِدِينَ" فرمائى چه تعثوا معنى ده سخت فساد، د آيت ترجمه ده، اوتاسو په زمکه کښې فساد مه خوروئ. تعثوا د باب نصر نه دې، عاث يعيث وئيلوسره امام اشاره اوکړه چه د نصر او ضرب نه د دې هم يوه معنى دد.

**قوله:** الْجِبِلَّةَ: الْخَلْقُ: "وَاتَّقُوا الَّذِي خَلَقَكُمْ وَالْجِبِلَّةَ الْأَوَّلِينَ" او اوويريږئ د هغه الله تعالى نه چا چه تاسو او ټول مخکينى مخلوقات پيدا کړى. فرمائى چه جبلة معنى مخلوق دې جُبِلَ معنى خُلِقَ

## [٢٥٩] بَاب وَلَا تُخْزِنِي يَوْمَ يُبْعَثُونَ

[٤٤٩٠] وَقَالَ إِبْرَاهِيمُ بْنُ طَهْمَانَ عَنْ ابْنِ أَبِي ذِئْبٍ عَنْ سَعِيدِ بْنِ أَبِي سَعِيدٍ الْمَقْبُرِيِّ عَنْ أَبِيهِ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ عَنْ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ إِنَّ إِبْرَاهِيمَ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ يَرَى أَبَاهُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ عَلَيْهِ الْغَبَرَةُ وَالْقَتَرَةُ الْغَبَرَةُ هِيَ الْقَتَرَةُ

[٤٤٩١] حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ حَدَّثَنَا أَخِي عَنْ ابْنِ أَبِي ذِئْبٍ عَنْ سَعِيدٍ الْمَقْبُرِيِّ عَنْ أَبِي

---

(1) (فيض البارى: ٢١٨/٤)

هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ يَلْقَى إِبْرَاهِيمُ أَبَاهُ فَيَقُولُ يَا رَبِّ إِنَّكَ وَعَدْتَنِي أَنْ لَا تُخْزِيَنِي يَوْمَ يُبْعَثُونَ فَيَقُولُ اللَّهُ إِنِّي حَرَّمْتُ الْجَنَّةَ عَلَى الْكَافِرِينَ

يعني اې ربه! مارسوا نه کړې، په کومه ورځ چه به ټول اوچتولې شی او زما پلار اوبنبې بېشکه هغه د ګمراهانونه وو.

دلته دا شبه کیږی چه حضرت ابراهیم علیه السلام د الله تعالی طرف ته د وعده خلافئی نسبت کوی او په دې وجه بعضې علماؤ د دې روایت د صحت نه انکارهم کړیدې. (۱)- لیکن جمهور علماء وائی چه په دې کښې د وعده خلافئی نسبت الله تعالی طرف ته منسوب کول مقصود نه دی بلکه دا کلام استعطاف دې. د الله تعالی رحمت غوښتلودپاره به حضرت ابراهیم علیه السلام دا درخواست کوی نو الله تعالی به د خپل خلیل سره نرمی کوی او د آذر شکل به بدل کړیشی او چاته به معلومه نه وی چه دا د حضرت ابراهیم علیه السلام پلار دې. (۲)-

**فائده:** علامه عثمانی رحمه الله فرمائي چه دا دعائی د پلار د مرګ نه پس کړیده مګربل خایٔ کښې تصریح راغلې ده چه کله چه د هغه دښمن الله تعالی معلوم شو نو د براءت او ویزارئی څرګندونه ئی اوفرمائیله کماقال تعالی: "وَمَا كَانَ اسْتِغْفَارُ إِبْرٰهِيمَ لِأَبِيهِ إِلَّا عَنْ مَّوْعِدَةٍ وَّعَدَهَا إِيَّاهُ فَلَمَّا تَبَيَّنَ لَهُ أَنَّهُ عَدُوٌّ لِّلّٰهِ تَبَرَّأَ مِنْهُ" او که "إِنَّهُ كَانَ مِنَ الضَّآلِّينَ" کښې "کان" ترجمه "وه" په خایٔ "ده" سره اوکړیشی نو بیا هیڅ اشکال نشته څکه چه په ژوند کښې د ایمان راوړلوامکان وو نو د دعا حاصل دا دې چه اې الله دې په ایمان مشرف کړه او د کفر د زمانې خطاګانې معاف کړه.

## [۲۶۰] بَابٌ وَأَنْذِرْ عَشِيرَتَكَ الْأَقْرَبِينَ وَاخْفِضْ جَنَاحَكَ أَلِنْ جَانِبَكَ

[۴۴۹۲] حَدَّثَنَا عُمَرُ بْنُ حَفْصِ بْنِ غِيَاثٍ حَدَّثَنَا أَبِي حَدَّثَنَا الْأَعْمَشُ قَالَ حَدَّثَنِي عَمْرُو بْنُ مُرَّةَ عَنْ سَعِيدِ بْنِ جُبَيْرٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا قَالَ لَمَّا نَزَلَتْ وَأَنْذِرْ عَشِيرَتَكَ الْأَقْرَبِينَ صَعِدَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى الصَّفَا فَجَعَلَ يُنَادِي يَا بَنِي فِهْرٍ يَا بَنِي عَدِيٍّ لِبُطُونِ قُرَيْشٍ حَتَّى اجْتَمَعُوا فَجَعَلَ الرَّجُلُ إِذَا لَمْ يَسْتَطِعْ أَنْ يَخْرُجَ أَرْسَلَ رَسُولًا لِيَنْظُرَ مَا هُوَ فَجَاءَ أَبُو لَهَبٍ وَقُرَيْشٌ فَقَالَ أَرَأَيْتَكُمْ لَوْ أَخْبَرْتُكُمْ أَنَّ خَيْلًا بِالْوَادِي تُرِيدُ أَنْ تُغِيرَ عَلَيْكُمْ أَكُنْتُمْ مُصَدِّقِيَّ قَالُوا نَعَمْ مَا جَرَّبْنَا عَلَيْكَ إِلَّا صِدْقًا قَالَ فَإِنِّي نَذِيرٌ لَكُمْ بَيْنَ يَدَيْ عَذَابٍ شَدِيدٍ فَقَالَ أَبُو لَهَبٍ تَبًّا لَكَ سَائِرَ الْيَوْمِ أَلِهَذَا جَمَعْتَنَا فَنَزَلَتْ تَبَّتْ يَدَا أَبِي لَهَبٍ وَتَبَّ مَا أَغْنَى عَنْهُ مَالُهُ وَمَا كَسَبَ

[۴۴۹۳] حَدَّثَنَا أَبُو الْيَمَانِ أَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ أَخْبَرَنِي سَعِيدُ بْنُ الْمُسَيَّبِ وَأَبُو سَلَمَةَ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ أَنَّ أَبَا هُرَيْرَةَ قَالَ قَامَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حِينَ أَنْزَلَ

---

(۱)(فتح الباری:۸/۵۰۰)

(۲)(عمدة القاری:۱۹/۱۰۱)

اللَّهُ وَأَنْذِرْ عَشِيرَتَكَ الْأَقْرَبِينَ قَالَ يَا مَعْشَرَ قُرَيْشٍ أَوْ كَلِمَةً نَحْوَهَا اشْتَرُوا أَنْفُسَكُمْ لَا أُغْنِي عَنْكُمْ مِنَ اللَّهِ شَيْئًا يَا بَنِي عَبْدِ مَنَافٍ لَا أُغْنِي عَنْكُمْ مِنَ اللَّهِ شَيْئًا يَا عَبَّاسُ بْنَ عَبْدِ الْمُطَّلِبِ لَا أُغْنِي عَنْكَ مِنَ اللَّهِ شَيْئًا وَيَا صَفِيَّةُ عَمَّةَ رَسُولِ اللَّهِ لَا أُغْنِي عَنْكِ مِنَ اللَّهِ شَيْئًا وَيَا فَاطِمَةُ بِنْتَ مُحَمَّدٍ سَلِينِي مَا شِئْتِ مِنْ مَالِي لَا أُغْنِي عَنْكِ مِنَ اللَّهِ شَيْئًا تَابَعَهُ أَصْبَغُ عَنِ ابْنِ وَهْبٍ عَنْ يُونُسَ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ

**د انزار څلور صورتونه:** د انذار څلور صورتونه دی. انذار عشیره، انذارقوم، انذار عرب او انذارجمیع بنی آدم. د هغوی ﷺ نبوت خود ټولوډپاره عام وو په دې وجه د انذار دا څلور صورتونه نبی کریم ﷺ اختیار فرمائیلی. علامه زمحشری رحمه الله لیکلی دی چه "قُلْ هُوَ اللّٰهُ اَحَدٌ" او "قُلْ اَعُوْذُ بِرَبِّ الْفَلَقِ" او "قُلْ اَعُوْذُ بِرَبِّ النَّاسِ" دریواړه سورتونه مسلسل دی او په دې کښې "قل" راوړلې شو، دې نه اول "تَبَّتْ يَدَآ اَبِيْ لَهَبٍ وَّتَبَّ" کښې "قل" راونړلې شو چه ابولهب د هغوی ﷺ تره وو، که په دې کښې "قل" راوړلې شوې وو نود دې نسبت د حضور ﷺ طرف ته کیدو، اود هغوی دا عنوان اختیارول د مکارم اخلاق مطابق نه وو په دې وجه الله تعالی د خپل حبیب په رعایت سره "قل" په شروع کښې نازل نه کړو بلکه الله تعالی د هغه د پاره نیغ په نیغه "تَبَّتْ يَدَآ اَبِيْ لَهَبٍ وَّتَبَّ" نازل کړو. -

## [۲۶۱] باب: تفسير سورة النمل

وَالْخَبْءُ مَا خَبَأْتَ لَا قِبَلَ لَا طَاقَةَ الصَّرْحُ كُلُّ مِلَاطٍ اتُّخِذَ مِنَ الْقَوَارِيرِ وَالصَّرْحُ الْقَصْرُ وَجَمَاعَتُهُ صُرُوحٌ وَقَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ وَلَهَا عَرْشٌ سَرِيرٌ كَرِيمٌ حُسْنُ الصَّنْعَةِ وَغَلَاءُ الثَّمَنِ يَأْتُونِي مُسْلِمِينَ طَائِعِينَ رَدِفَ اقْتَرَبَ جَامِدَةً قَائِمَةً أَوْزِعْنِي اجْعَلْنِي وَقَالَ مُجَاهِدٌ نَكِّرُوا غَيِّرُوا وَأُوتِينَا الْعِلْمَ يَقُولُهُ سُلَيْمَانُ الصَّرْحُ بِرْكَةُ مَاءٍ ضَرَبَ عَلَيْهَا سُلَيْمَانُ قَوَارِيرَ أَلْبَسَهَا إِيَّاهُ

**د کلماتو تشریح:**

**قوله: وَالْخَبْءُ: مَا خَبَأْتَ:** آیت کښې دی "اَلَّا يَسْجُدُوْا لِلّٰهِ الَّذِيْ يُخْرِجُ الْخَبْءَ فِي السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ" فرمائی چه په آیت کښې الخبء معنی پټ څیز ده. یعنی سجده به ولې الله تعالی ته نه کوی چه پټ څیزونه د آسمان او زمکې نه راوباسی، شاه عبدالقادر رحمه الله فرمائی ملاچرګك رزق دې د شګونه چینجی راویستل او خوړل، نه دانه خوری نه میوه، کیدیشی په دې وجه د يخرج الخبء خاص توګه باندې ذکراوکړیشو (دا قول د ملاچرګك قرآن کریم نقل کړیدې)[1]

[1])(تفسیر عثمانی ص۵۰۸ سورة النمل آیت ۲۵

**قوله:** لَاقِبَلَ: لَاطَاقَةَ: "اِرْجِعْ اِلَيْهِمْ فَلَنَاْتِيَنَّهُمْ بِجُنُوْدٍ لَّا قِبَلَ لَهُمْ بِهَا" بيا دې معلومه وى چه مونږ به هغوى له داسې لښكرې راولو دَ كوم مقابله چه به دَ هغوى نه اونه شى. فرمائى دې كښې لاقبل معنى لاطاقة ده، يعنى په هغوى كښې به دَ دغه لښكرونه دَ خان ساتلوطاقت نه وى.

**قوله:** الصَّرْحُ: كُلُّ مِلَاطٍ اتُّخِذَ مِنَ الْقَوَارِيرِ وَالصَّرْحُ: آيت كښې دى "قِيْلَ لَهَا ادْخُلِى الصَّرْحَ" هغه ته اووئيلې شو چه محل ته دننه شه، صرح هر هغه گارې ته ائى چه دَ شيشې نه جوړېږى اوډ صرح معنى محل هم ده او وړاندې دَدې معنى تالاب هم ليكلې ده دَ دې جمع صروح ده.

**قوله:** وَلَهَا عَرْشٌ عظيم سَرِيْرٌ كَرِيْمٌ حُسْنُ الصَّنْعَةِ وَغَلَاءُ الثَّمَنِ: آيت كښې دى "وَلَهَا عَرْشٌ عَظِيْمٌ" اوبلقيس سره يو لوئ تخت دې. فرمائى چه عرش عظيم معنى ده يوښكلې او دَ ښه كاريگرئى او بيش قيمته تخت.

**قوله:** مُسْلِمِيْنَ: طَائِعِيْنَ: "قَالَ يٰٓاَيُّهَا الْمَلَؤُا اَيُّكُمْ يَاْتِيْنِىْ بِعَرْشِهَا قَبْلَ اَنْ يَّاْتُوْنِىْ مُسْلِمِيْنَ" سليمان عليه السلام اوفرمائيل اې درباريانو تاسوكښې به څوك دَ بلقيس تخت ماله راوړى اول دَ هغې نه چه هغه خلق خبرشى او ماله راشى. فرمائى چه مسلمين معنى مطيع او حكم منونكى.

**قوله:** رَدِفَ: اقْتَرَبَ: "قُلْ عَسٰٓى اَنْ يَّكُوْنَ رَدِفَ لَكُمْ بَعْضُ الَّذِىْ تَسْتَعْجِلُوْنَ" تاسو اووائې خومره عجيبه ده چه دَ كوم عذاب تاسو دَ تندئى شور كوئې په هغې كښې څه تاسوته نزدې راورسيدو. فرمائى چه ردف معنى زررارسيدل.

**قوله:** جَامِدَةً: قَائِمَةً: "وَتَرَى الْجِبَالَ تَحْسَبُهَا جَامِدَةً" اوتاسو غرونه ته گورئى په دې حال كښې چه تاسو هغه قائم گنړئى (چه دابه هميشه قائم او دائم وى حالانكه دَ قيامت په ورځ به دَ تول دَ مالوچو غوندې په هواكښې الوزى) جامدة معنى قائمة

**قوله:** اَوْزِعْنِىْ: اجْعَلْنِىْ: "رَبِّ اَوْزِعْنِىْٓ اَنْ اَشْكُرَ نِعْمَتَكَ الَّتِىْٓ اَنْعَمْتَ عَلَىَّ وَعَلٰى وَالِدَىَّ" فرمائى آيت كښې اوزعنى معنى اجعلنى يعنى اې زما ربه ما داسې جوړكړې چه زه ستا دَ دې نعمت شكر ادا كړم چه تا ماته او زما موربلار ته وركړيدې.

**قوله:** نَكِّرُوْا: غَيِّرُوْا: "قَالَ نَكِّرُوْا لَهَا عَرْشَهَا" نكروا معنى ده ته دَ دې صورت بدل كړه.

**قوله:** وَاُوْتِيْنَا الْعِلْمَ: يَقُوْلُهُ سُلَيْمَانُ:

واوتينا العلم،، د چا مقوله ده: آيت كښې دى "قَالَتْ كَاَنَّهُ هُوَ وَاُوْتِيْنَا الْعِلْمَ مِنْ قَبْلِهَا وَكُنَّا مُسْلِمِيْنَ" مجاهد رحمه الله فرمائى چه په آيت كښې "وَاُوْتِيْنَا الْعِلْمَ" دَ حضرت سليمان عليه السلام مقوله ده. په دې صورت كښې من قبلها كښې ضمير بلقيس طرف ته راجع به وى، يعنى حضرت سليمان عليه السلام اوفرمائيل چه دَ دې ښځې نه اول مونږ ته علم راكړې شويدې. ليكن دونم قول دا دې چه دا دَ بلقيس مقوله ده، په دې صورت كښې من قبلها ضمير معجزې طرف ته راجع دې او مطلب به دا وى چه دَ دې معجزې نه اول مونږ ته علم شوې وو چه سليمان صرف بادشاه نه

دي دَ الله تعالى مقرب بنده دې او دَ دې دَ پاره مونږ دَ هغه دَ فرمانبردارئ، منلو او انقياد لاره اختيار كړله. حافظ ابن حجر رحمه الله رومبنى قول ته ترجيح وركړيده. (١)-ليكن علامه عينى رحمه الله (٢)- حضرت تهانوى رحمه الله (٣)- اوحضرت مولانا شبيراحمد عثمانى رحمه الله دوئم قول ته ترجيح وركړيده، اودَ سياق او سباق نه دَ دوئم قول تائيد كيږى. (٤)-

**قوله: الصَّرْحُ: بِرْكَةُ مَاءٍ، ضَرَبَ عَلَيْهَا سُلَيْمَانُ قَوَارِيرَ:** "قِيْلَ لَهَا ادْخُلِي الصَّرْحَ" الصرح معنى دَ اوبوتالاب په كوم چه حضرت سليمان عليه السلام شيشه لګولې وه، نوچه كله بلقيس ته په محل كښې دَ داخليدو دَ پاره اوونيلې شو نو هغې پينځې راوچتې كړې او پښې ئې ښكاره شوې. مولانا شبيراحمد عثمانى رحمه الله ليكى: "حضرت سليمان عليه السلام په ديوان خانه كښې ناست وو په هغې كښې دَ كانړو په ځاى شيشې فرش وو، صفاشيشه به دَ لرينه ښكاريده لكه چه اوبه خوزيږى. اوممكن ده چه دَ شيشې لاندې واقعى اوبه وې يعنى حوض په شيشه باندې پټ كړې وى. هغې په اوبوكښې ننوتلو دَ پاره پښې كولاوْ كړې سليمان عليه السلام اوفرمائيل چه دا دَ شيشې فرش دې اوبه نه دى، هغې ته دَ خپل عقل قصور او دَ عقل كمال معلوم شو، پوهه شوه چه په دين كښې هم دې څه ګنړى هغه به صحيح وى، اودا هم معلومه شوه چه په كوم سازوسامان دَ هغې قوم فخر كولو دلته دَ هغې نه ډير موجود دې. نولكه چه سليمان عليه السلام هغه خبرداره كړه په آفتاب اودَ ستورو په پرقار باندې عاشقه كيدلوسره هغه خداى ګنړل هم داسې يوه دهوكه ده. لكه چه سرې شيشه اووينى او دَ اوبوګمان پرې كوى.

## [٢٦٢] باب: تفسير سورة القصص

(كُلُّ شَيْءٍ هَالِكٌ إِلَّا وَجْهَهُ) إِلَّا مُلْكَهُ، وَيُقَالُ إِلَّا مَا أُرِيدَ بِهِ وَجْهُ اللَّهِ. وَقَالَ مُجَاهِدٌ (الْأَنْبَاءُ) الْحُجَجُ.

## سورة القصص

**قوله: (كُلُّ شَيْءٍ هَالِكٌ إِلَّا وَجْهَهُ) إِلَّا مُلْكَهُ، وَيُقَالُ إِلَّا مَا أُرِيدَ بِهِ وَجْهُ اللَّهِ:** آيت كښې دى "وجهه" نه مراد دَ الله تعالى حكومت دې او دا هم اوونيلې شو چه دَ دې نه مراد هغه نيك اعمال دى چه دَ الله تعالى دَ رضادپاره كړيشوې وى.

**قوله: وقال مجاهد: فعميت عليهم الانباء: الحجج:** آيت كښې دى "فَعَمِيَتْ عَلَيْهِمُ الْأَنْبَاءُ يَوْمَئِذٍ" نو په هغه ورځ به دَ هغوى نه ټول دلائل ورك شى. مجاهد رحمه الله فرمائى چه الانباء نه دلائل مراد دى يعنى دې منكرانوسره به په هغه ورځ هيڅ دليل او حجت نه وى.

---

(١)(فتح البارى:٨/٥٠٥)

(٢)(عمدة القارى:١٩/١٠٤)

(٣)(بيان القران:٢/٨٨)

(٤)(تفسير عثمانى:٥٠٧فائده نمبر٢)

[٢٦٣] باب قوله (إِنَّكَ لَا تَهْدِي مَنْ أَحْبَبْتَ وَلَكِنَّ اللَّهَ يَهْدِي مَنْ يَشَاءُ)

[٤٤٩٤] حَدَّثَنَا أَبُو الْيَمَانِ أَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ أَخْبَرَنِي سَعِيدُ بْنُ الْمُسَيَّبِ عَنْ أَبِيهِ قَالَ لَمَّا حَضَرَتْ أَبَا طَالِبٍ الْوَفَاةُ جَاءَهُ رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - فَوَجَدَ عِنْدَهُ أَبَا جَهْلٍ وَعَبْدَ اللَّهِ بْنَ أَبِي أُمَيَّةَ بْنِ الْمُغِيرَةِ، فَقَالَ «أَيْ عَمِّ قُلْ لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ، كَلِمَةً أُحَاجُّ لَكَ بِهَا عِنْدَ اللَّهِ». فَقَالَ أَبُو جَهْلٍ وَعَبْدُ اللَّهِ بْنُ أَبِي أُمَيَّةَ أَتَرْغَبُ عَنْ مِلَّةِ عَبْدِ الْمُطَّلِبِ فَلَمْ يَزَلْ رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - يَعْرِضُهَا عَلَيْهِ، وَيُعِيدَانِهِ بِتِلْكَ الْمَقَالَةِ حَتَّى قَالَ أَبُو طَالِبٍ آخِرَ مَا كَلَّمَهُمْ عَلَى مِلَّةِ عَبْدِ الْمُطَّلِبِ، وَأَبَى أَنْ يَقُولَ لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ. قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - «وَاللَّهِ لَأَسْتَغْفِرَنَّ لَكَ مَا لَمْ أُنْهَ عَنْكَ». فَأَنْزَلَ اللَّهُ (مَا كَانَ لِلنَّبِيِّ وَالَّذِينَ آمَنُوا أَنْ يَسْتَغْفِرُوا لِلْمُشْرِكِينَ) وَأَنْزَلَ اللَّهُ فِي أَبِي طَالِبٍ، فَقَالَ لِرَسُولِ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - (إِنَّكَ لَا تَهْدِي مَنْ أَحْبَبْتَ وَلَكِنَّ اللَّهَ يَهْدِي مَنْ يَشَاءُ).

**آيا ابوطالب مسلمان شوي وو؟**: د آيت باب باره كښې خودلي شوى دي‌چه د ابوطالب باره كښې نازل شوې دې اود اهل حق همدغه مسلك دې چه د ابوطالب انتقال په حالت د كفر كښې شوې دې. ابن اسحاق په خپل سيرت كښې يو روايت نقل كړيدې چه ابوطالب د مرګ په وخت كښې خپلو شونډو له حركت وركولو، حضرت عباس رضي الله عنه چه د هغه رور وو هغه غوږ كيخودو نو واورېده نو هغوى ﷺ ته ئې عرض اوكړو وراره دې خو هم هغه كلمه لولى د كومې چه تامطالبه كړې وه، هغوى ﷺ اوفرمائيل ما نه ده اوريدلې (١)-

**د بخارى په روايت باندې د شبلى نعمانى مرحوم اعتراض او دهغې جواب**: شبلى نعمانى رحمه الله د امام بخارى رحمه الله په دې روايت تبصره كولوسره ليكي: "د ابوطالب د اسلام متعلق اختلاف دې ليكن د بخارى دا روايت قابل حجت نه دې چه آخرى راوى مسيب دې چه د فتح مكه په وخت كښې اسلام راوړو اود ابوطالب د وفات په وخت كښې موجودنه وو. په دې وجه علامه عينى د دې حديث په شرح كښې ليكى چه روايت مرسل دې. د ابن اسحاق په سلسله روايت كښې عباس بن عبدالله بن معبد او حضرت عبدالله بن عباس رضي الله عنهما دې. دا دواړه ثقه دى. ليكن د مينځ يو راوى دلته هم پاتې شو په دې بنا باندې د دواړو روايتونو د استناد په درجه كښې ډير فرق نشته.(٢) - ليكن د علامه شبلى دا خيال صحيح نه دې اول دا وينا چه حضرت مسيب رضي الله عنه د مكې د فتح په وخت كښې اسلام راوړې وو او د ابوطالب د وفات په وخت كښې موجود نه وو. دا د واقدى او مصعب زبيرى قول دې. (٣)- نورمحدثين حضرات

(١)(سيرة ابن هشام مع الروض الانف:١/٢٥٩-٢٦٠)

(٢)(سيرة النبى:١/١٤٩)

(٣)(تهذيب التهذيب:١٠/١٥٢ والاصابة:٣/٤٢٠ رقم الترجمة:٧٩٩٦ د دوى د حالاتوډپاره اوګورئى تهذيب الكمال:٢٧/٥٨٥ واسد الغابة:٤/٣٦٦ والاستيعاب:٣/١٤٠٠ وتاريخ البخارى الكبير:٧/ الترجمة:١٧٨٢

وائی چه حضرت مسیب رضی الله عنه د فتح مکه نه ډیر وړاندې اسلام راوړې وو (١)- دوئمه خبره دا ده چه د ابن اسحاق سند منقطع دې او پریخودې شوې راوی صحابی نه دې، پخپله ابن اسحاق هم د امام بخاری په شان د استناد اعلی درجه نه لری، په دې وجه د بخاری او ابن اسحاق روایات یو شان گرځول صحیح نه دی. بلکه دا خبره شبلی پخپله لیکلې ده ابن اسحاق چه په احتجاج کښې کله یوازې وی نو کافی نه دې. د علامه شبلی شاګرد مولاناسیدسلیمان ندوی د خپل استاذ ذکرشوی خیال سره اختلاف کولوسره لیکی: "د مصنف دې نظریې سره زما اتفاق نشته ځکه چه د بخاری د روایت آخرې راوی حضرت مسیب رضی الله عنه دې چه صحابی دې، ښکاره خبره ده چه د صحابی دا روایت به د صحابی نه وی نو په دې وجه مراسیل صحابه حجت دې او د ابن اسحاق روایت منقطع دې او پریخودې شوې راوی صحابی نه دې او پخپله ابن اسحاق هم د استناد اعلی درجه نه لری، په دې وجه دواړه روایتونه یوشان نشی ګرځولې کیدې. دینه علاوه د حضرت مسیب رضی الله عنه د دې روایت په تائیدکښې پخپله د حضرت عباس رضی الله عنه هغه روایت دې چه هم د دې مسیب رضی الله عنه د روایت نه پورته صحیح بخاری کښې موجود دې په کوم کښې چه ذکر دې "حضرت عباس رضی الله عنه معلومه کړه چه یارسول الله ﷺ استاسو تره (ابوطالب) ته تاسو نه څه فائده اورسیده چه هغه به ستاسو حفاظت کولو او ستاسو د پاره به ستاسو دښمنانو سره په مقابله وو. وئی فرمائیل هغه به د دوزخ په اورکښې صرف د ګیټوپورې وی مګر د دې اثر هم دماغوته رسی، که چرې زه نه وم نو هغه به د دوزخ په لاندینئی طبقه کښې وو. دینه معلومه شوه چه پخپله د حضرت عباس رضی الله عنه په علم کښې وو چه د هغه خاتمه د توحید په اقرار باندې نه ده شوې(٢)

قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ (أُولِي الْقُوَّةِ) لَا يَرْفَعُهَا الْعُصْبَةُ مِنَ الرِّجَالِ. (لَتَنُوءُ) لَتُثْقِلُ. (فَارِغًا) إِلَّا مِنْ ذِكْرِ مُوسَى. (الْفَرِحِينَ) الْمَرِحِينَ. (قُصِّيهِ) اتَّبِعِي أَثَرَهُ، وَقَدْ يَكُونُ أَنْ يَقُصَّ الْكَلَامَ (نَحْنُ نَقُصُّ عَلَيْكَ). (عَنْ جُنُبٍ) عَنْ بُعْدٍ عَنْ جَنَابَةٍ وَاحِدٌ، وَعَنِ اجْتِنَابٍ أَيْضًا، يَبْطِشُ وَيَبْطُشُ. (يَأْتَمِرُونَ) يَتَشَاوَرُونَ. الْعُدْوَانُ وَالْعَدَاءُ وَالتَّعَدِّي وَاحِدٌ. (آنَسَ) أَبْصَرَ. الْجِذْوَةُ قِطْعَةٌ غَلِيظَةٌ مِنَ الْخَشَبِ، لَيْسَ فِيهَا لَهَبٌ، وَالشِّهَابُ فِيهِ لَهَبٌ. وَالْحَيَّاتُ أَجْنَاسٌ الْجَانُّ وَالْأَفَاعِي وَالْأَسَاوِدُ. (رِدْءًا) مُعِينًا. قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ (يُصَدِّقُنِي) وَقَالَ غَيْرُهُ (سَنَشُدُّ) سَنُعِينُكَ كُلَّمَا عَزَّزْتَ شَيْئًا فَقَدْ جَعَلْتَ لَهُ عَضُدًا. مَقْبُوحِينَ مُهْلَكِينَ. (وَصَّلْنَا) بَيَّنَّاهُ وَأَتْمَمْنَاهُ. (يُجْبَى) يُجْلَبُ. (بَطِرَتْ) أَشِرَتْ. (فِي أُمِّهَا رَسُولًا) أُمُّ الْقُرَى مَكَّةُ وَمَا حَوْلَهَا. (تُكِنُّ) تُخْفِي. أَكْنَنْتُ الشَّيْءَ أَخْفَيْتُهُ، وَكَنَنْتُهُ أَخْفَيْتُهُ وَأَظْهَرْتُهُ. (وَيْكَأَنَّ اللَّهَ) مِثْلُ أَلَمْ تَرَ أَنَّ اللَّهَ (يَبْسُطُ

---

(١)(عمدة القاری:۸/۱۸۰ کتاب الجنائز باب اذاقال المشرک عندالموت: لااله الاالله وتهذیب التهذیب:۱۰/۱۵۲

(٢) حاشیه سیرة النبی:۱/۱۵۰ وقال السهیلی فی الروض الانف:۱/۲۵۸: ان الصحیح من الاثر اثبت لابی طالب الوفاة علی الکفر والشرک-

الرِّزْقَ لِمَنْ يَشَاءُ وَيَقْدِرُ) يُوَسِّعُ عَلَيْهِ وَيُضَيِّقُ عَلَيْهِ.

د کلماتو تشریح:

قوله: قال ابن عباس: اولي القوة: لايرفعها العصبة من الرجال: آيت کښې دی "وَاٰتَيْنٰهُ مِنَ الْكُنُوْزِ مَآ اِنَّ مَفَاتِحَهٗ لَتَنُوْٓاُ بِالْعُصْبَةِ اُولِي الْقُوَّةِ" فرمائی چه دَ قارون دَ خزانو کنجیانې دَ طاقتورو سړو ډلې هم نه شوې اوچتولې، عصبة جماعت او ډلې ته وائی. آيت کښې لتنؤ په معنی کښې بیان کړې دې هغه کنجیانو به بښکته کول، دَ بوج نه به طاقتور سړی بښکته کیدل.

قوله: فارغا: الا من ذكر موسى: آيت کښې دی "وَاَصْبَحَ فُؤَادُ اُمِّ مُوْسٰى فٰرِغًا" یعنی دَ حضرت موسی علیه السلام د مور زړه د حضرت موسی علیه السلام دَ ذکر نه علاوه دَ هرڅیز نه فارغ او خالی وو.

قوله: الفرحين: المرحين: "اِنَّ اللّٰهَ لَا يُحِبُّ الْفَرِحِيْنَ" بې شکه الله تعالی غرور کونکی نه خوښوی. آيت کښې فرحين معنی ده مرحين غرور کونکی، مرح (س) مرحاً فخر کول.

قوله: قصيه: اتبعي اثره وقد يكون: ان يقص الكلام نحن نقص عليك: "وَقَالَتْ لِاُخْتِهٖ قُصِّيْهِ" قصیه معنی ده دَ هغې نه روستوروستوخه، دا لفظ کلام او قصه بیانولو معنی کښې هم راځی لکه په سورة یوسف کښې دی "نَحْنُ نَقُصُّ عَلَيْكَ"

قوله: عن جنب: عن بعد عن جنابة واحد وعن اجتناب ايضا: آيت کښې دی "فَبَصُرَتْ بِهٖ عَنْ جُنُبٍ وَّهُمْ لَا يَشْعُرُوْنَ" (ترجمه تیره شوه) دې کښې عن جنب معنی ده، دَ دلرینه، عن جنابة او عن اجتناب هم دغه معنی ده.

قوله: يأتمرون: يتشاورون: "قَالَ يٰمُوْسٰٓى اِنَّ الْمَلَاَ يَاْتَمِرُوْنَ بِكَ لِيَقْتُلُوْكَ" وئیل اې موسی علیه السلام! درباریان ستا متعلق مشوره کوی چه تا قتل کړی، فرمائی يأتمرون معنی په خپل مینځ کښې مشوره کوی.

قوله: العدوان والعداء والتعدي واحد: "فَلَا عُدْوَانَ عَلَيَّ وَاللّٰهُ عَلٰى مَا نَقُوْلُ وَكِيْلٌ" فرمائی عدوان، عداء او تعدی هم په یوه معنی کښې دی یعنی زیاتې.

قوله: آنس: ابصر: "اٰنَسَ مِنْ جَانِبِ الطُّوْرِ نَارًا" انس معنی ده اوکتل، یعنی حضرت موسی علیه السلام دَ کوه طور طرف ته اُور اولیدو.

قوله: الجذوة: قطعة غليظة من الخشب ليس فيها لهب والشهاب فيه لهب: آيت کښې فرمائی "اَوْ جَذْوَةٍ مِّنَ النَّارِ لَعَلَّكُمْ تَصْطَلُوْنَ" یا دَ اُور سکروټه راوړم چه ته ګرمه شې، فرمائی چه جذوة دَ لرګی پیړې ټوټې ته وائی کوم کښې چه شغله نه وی انګار او شهاب هغه وی کوم کښې چه شغله وی لکه په سورة نمل کښې دی "اَوْ اٰتِيْكُمْ بِشِهَابٍ قَبَسٍ...."

**قوله: والحيات اجناس الجان والافاعى والاساود:** دَ مارانو مختلف اقسام او اجناس وى، يو قسم دَ هغوى ځان دى دَ كوم تذكره چه په دې سورة كښې راغې "فَلَمَّا رَاٰهَا تَهْتَزُّ كَاَنَّهَا جَآنٌّ وَّلّٰى مُدْبِرًا" دا يو وړوكې پړقيدونكى سپين مار وى، يو افاعى دې دا دَ افعى جمع ده، دا ښځه وى نرته افعوان وائى او يو قسم اساود دې دا دَ اسود جمع ده، دا دَ تور رنګ دَ ټولونه خطرناك مار وى. بهر حال دا مختلف قسمونه دى او په دې ټولو باندې حية اطلاق كيږى.

**قوله: ردا معينا قال ابن عباس: لكى يصدقنى:** آيت كښې دى "وَاَخِىْ هٰرُوْنُ هُوَ اَفْصَحُ مِنِّىْ لِسَانًا فَاَرْسِلْهُ مَعِىَ رِدْاً يُّصَدِّقُنِىْٓ" دې كښې "ردا" معنى معين او امدادى دې، يعنى زما رور هارون دَ ژبې په اعتبار سره مانه زيات فصيح دې هغه زما معين او مددګار جوړكړه راوليګه چه هغه زما تصديق اوكړه.

**قوله: سنشد: سنعينك:** آيت كښې دى "قَالَ سَنَشُدُّ عَضُدَكَ بِاَخِيْكَ" ونى فرمائيل مونږ اوس ستارور ستا دَ مټو طاقت جوړوو. فرمائى چه نشد معنى هم مدد كوو عضد تشريح كولوسره امام فرمائى چه "كلما عززت شيئا فقد جعلت له عضدا" كوم څيز ته چه ته هم قوت اورسوې نوته دَ هغه مټې جوړيږې. عزز تعزيزا طاقت رسول، تائيد كول.

**قوله: مقبوحين: مهلكين:** آيت كښې دى "وَيَوْمَ الْقِيٰمَةِ هُمْ مِّنَ الْمَقْبُوْحِيْنَ" فرمائى مقبوحين معنى ده مهلكين يعنى دَ قيامت په ورځ دَ هلاكيدونكونه وى.

**قوله: وصلنا: بيناه واتممناه:** "وَلَقَدْ وَصَّلْنَا لَهُمُ الْقَوْلَ لَعَلَّهُمْ يَتَذَكَّرُوْنَ" دې كښې وصلنا معنى ده بيناه، واتممناه يعنى مونږ دا كلام بيان كړو او پوره موكړو دې دَپاره چه نصيحت حاصل كړى.

**قوله: يجبى: يجلب:** آيت كښې دى "يُجْبٰٓى اِلَيْهِ ثَمَرٰتُ كُلِّ شَىْءٍ" فرمائى يجبى معنى يجلب يعنى چرته چه هرقسم ميوې رابنكلوسره راوړى.

**قوله: بطرت: اشرت:** آيت كښې دى "وَكَمْ اَهْلَكْنَا مِنْ قَرْيَةٍۭ بَطِرَتْ مَعِيْشَتَهَا" اوډير داسې كلى مونږ تباه كړى دى چه دَ خپل عيش په سامان به ئې ناز كولو. بطرت معنى اشرت فخر تكبر او لوئى كول، علامه شبيراحمد عثمانى رحمه الله ليكى: "يعنى دَ عربودَ دښمننې نه څه ويريږى دَ الله تعالى دَ عذاب نه اوويريږه، ګورې نه څومره قومونه تيرشوى دى دَ چا چه په خپل عيش او عشرت باندې غرور وو كله چه هغوى كبر او سركشى اختيار كړه الله تعالى څنګه تباه او برباد كړل چه نن دَ دنيا په مخ باندې دَ هغوى نوم او نشان باقى پاتې نه شو. دا كنډرې دَ هغوى دَ كلو نښې پاتې دى كوموكښې چه څوك اوسيدونكى نشته. بغيردَ دې نه چه چرته مسافر په كښې دَ لږ ساعت دَ پاره آرام اوكړى يا دَ الله تعالى دَ قدرت دَ عبرت تماشه كتلودپاره هلته وركوزشى".

**قوله: في امها رسولا: ام القرى مكة وما حولها:** "وَمَا كَانَ رَبُّكَ مُهْلِكَ الْقُرٰى حَتّٰى يَبْعَثَ فِيْٓ اُمِّهَا رَسُوْلًا" ستا رب د كلو تباه كونكي نه دي ترهغه وخت پورې چه د هغوى لوئ كلى ته رسول اونه ليگى. علامه شبيراحمدعثمانى رحمه الله فرمائى: "يعنى الله تعالى هغه وخت پورې كلې نه غرقه وى تركوم وخت پورې چه د هغې د لوئى مقام ته هوښيارونكې پيغمبر اونه ليگى (د صدرمقام تخصيص كيدېشى په دې وجه شوې وې چه د هغې اثر ترلرې پورې رسى او د ښارونو اوسيدونكى نسبتا سليم العقل وى) د مخ د زمكې د آبادو صدر مقام مكه معظمه وه" امام فرمائى په آيت مذكوره كښې "امها" نه مراد مكه اود دې اطراف دى.

**قوله: تكن: تخفى اكننت الشئ: اخفيته وكمننته اخفيته واظهرته:** آيت كښې دى "وَرَبُّكَ يَعْلَمُ مَا تُكِنُّ صُدُوْرُهُمْ وَمَا يُعْلِنُوْنَ" او ستا رب پوهيږى په هغه څيزونو كوم چه د هغوى سينې پټوى او كوم چه هغوى ښكاره كوى. فرمائى چه تكن معنى تخفى يعنى پټوى. عرب وائى "اكننت الشئ" ما دا پټ كړو. وكننته (ازباب نصر) ما دا پټ كړو، هغه ظاهر كړو د اضداد نه دې.

**قوله: يبسط الرزق لمن يشاء ويقدر: يوسع عليه ويضيق عليه:** آيت كښې دى "وَيْكَاَنَّ اللّٰهَ يَبْسُطُ الرِّزْقَ لِمَنْ يَّشَآءُ مِنْ عِبَادِهٖ وَيَقْدِرُ" فرمائى په آيت كښې يبسط معنى ده الله تعالى د هغوى رزق زياتوى او يقدرمعنى رزق كښې تنگى كول دى.

**قوله: ويكان الله: مثل: الم تران الله يبسط الرزق لمن يشاء ويقدر:**

**د لفظ ''ويكان،، تحقيق:** ايا تاسو اونه ليدوچه الله تعالى د چا د پاره غوارى رزق زياتوى (اوچا دپاره غوارى) تنگوى. په هندوستانى نسخوكښې "ويك ان" جدا جدا ليكلى دى او په مصرى نسخو كښې "ويكان" يوځائ ليكلې شوى دى. صاحب الجمل فرمائى باجماع المصاحف دا كلمه متصل منلې شويده. د دې جدا جدا ليكل صحيح نه دى. (١)- البته په قراء كښې اختلاف دې، عاصم د اسم اعتباركوى او په مينځ كښې وقف نه كوى ليكن كسائى "وى" باندې وقف كوى او ابوعمرو بن العلاء "ويك" باندې وقف كوى. (٢)- بيا په دې كښې هم اختلاف دې چه دا كلمه مفرده ده يا كلمه مركبه، بعضې حضراتوئيلى دى دا مفرد ده او "الم تر" معنى كښې ده لكه چه امام بخارى رحمه الله نقل كړى دى او بعضو وئيلى دى دا مركب ده، "وى" او "كان" نه "وى" "اعجب" په معنى كښې كلمه تعجب ده او "كان" حرف تشبيه ده ليكن تشبيه معنى دلته ختمه كړيشوه معنى ده (٣)- "اعجب ان الله...." او بعضې

---

(١)(تعليقات لامع الدرارى:١٤٣/٩ وتفسيرجمل

(٢)(تعليقات لامع الدرارى:١٤٣/٩

(٣)(روح المعانى:١٢٤/٣

حضرات وائی چه دا "ويلك ان الله" په معنی کښې دې "ويلك" کښې لام د تخفيف په غرض سره حذف کړېشو "ويك ان الله" جوړشو (۱)-

## [۲۶۴] باب إِنَّ الَّذِي فَرَضَ عَلَيْكَ الْقُرْآنَ الآيَةَ

[۴۴۹۵] حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ مُقَاتِلٍ أَخْبَرَنَا يَعْلَى حَدَّثَنَا سُفْيَانُ الْعُصْفُرِيُّ عَنْ عِكْرِمَةَ عَنْ ابْنِ عَبَّاسٍ لَرَادُّكَ إِلَى مَعَادٍ قَالَ إِلَى مَكَّةَ

## [۲۶۵] باب: تفسير سورة العنكبوت

قال مجاهد وكانوا مستبصرين ضللة وقال غيره الحيوا الحي واحد وليعلمن الله علم الله ذلك انما هي بمنزلة فليميز الله كقوله ليميز الله الخبيث من الطيب اثقالا مع اثقالهم اوزارامع اوزارهم.

## سورة العنكبوت

**د كلماتو تشريح:**

**قوله:** قال مجاهد: وكانوا مستبصرين: ضللة: آيت کښې دی "وَزَيَّنَ لَهُمُ الشَّيْطٰنُ أَعْمَالَهُمْ فَصَدَّهُمْ عَنِ السَّبِيلِ وَكَانُوا مُسْتَبْصِرِينَ" مجاهد رحمه الله فرمائی چه د مستبصرين معنی گمراه ده، د آيت مطلب دې "شيطان د هغوی په نظر کښې د هغوی اعمال ښائسته جوړ کړی دی نو هغې دوی د حق د لارې نه منع کړل او هغوی گمراه وو".

**قوله:** فليعلمن الله: علم الله ذلك انما هي بمنزلة فليميز الله ك **قوله:** ليميز الله الخبيث من الطيب:

**د ايت "فليعلمن الله الذين صدقوا..." متعلق يو اشكال او د حضرت شيخ الهند رحمه الله جواب:** آيت کښې دی "فَلَيَعْلَمَنَّ اللّٰهُ الَّذِينَ صَدَقُوا وَلَيَعْلَمَنَّ الْكٰذِبِينَ" دلته په ظاهره اشکال کيږی چه د الله تعالی علم خو ازلی دې "ليعلمن" صيغه مستقبل ده نو د الله تعالی د پاره مستقبل کښې علم ثابتول به څنګه صحيح وی؟ امام بخاری رحمه الله فرمائيلی دی چه صيغه خو د مستقبل ده ليکن په معنی کښې ماضی دې، اوس سوال دا پيدا کيږی نو بيا د مستقبل صيغه ولې استعمال کړې شو؟ د دې جواب امام بخاری "انماهی بمنزلة..." سره ورکړيدې يعنی دلته د علم نه علم تمييز مراد دې. د هرڅيز اجمالی او تفصيلی علم د الله تعالی ازلی دې او په دې کښې د څبرو شك او اجمال پورې نشته ليکن په دې کښې هيڅ شك نشته چه علم تمييز محدثات په وجود کښې د راتلونه پس کيږی. په دې وجه دلته د مستقبل صيغه استعمال

---

(۱) (عمدة القاری: ۱۹/۱۰۷ و تفسير الكشاف: ۳/۴۳۴

کړې شوه. دَ دې سوال په جواب کښې شیخ الهند رحمه الله لیکي: "آیت چه حتی نعلم او فلیعلمن او لمایعلم الله او لنبلونکم او الالنعلم وغیره کلمات موجود دی، دې ټولونه په ظاهر په پوهه کښې راځی چه الله تعالی ته نعوذبالله دَ دې څیزونوعلم روستوشوې وو، دَ دې څیزونو دَ وجودنه وړاندې علم نه وو. حالانکه دَ هغه علم دَ هرڅیز سره قدیم دې. "وَكَانَ اللّٰهُ بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيْمًا" علماؤ په څو قسمه دَ دې جواب ورکړیدې. بعضوَ علم نه متمیز او جدا جدا کول مراد اخستې دې، بعضو دَ امتحان معنی اخستې، چا علم په معنی دَ رؤیت اخستې، چا مستقبل په معنی دَ ماضی کړې، بعضو حدوث علم دَ نبی او مؤمنانوطرف ته یا مخاطبینو طرف ته واپس کړیدې. بعضې اکابر محققینو علم حالی چه ورستو وجود معلوم متحقق کیږی په کوم چه جزا او سزا مدح و ذم مترتب کیږی مراد اخستې دې او هم دا ئې خوښ کړې دې. بعضې راسخین مدققین دَ دې متعلق دوه خبرې ډیر دقیق او انیق بیان فرمائیلی.

دَ اول خلاصه دا ده چه حسب ارشاد "وَاَنَّ اللّٰهَ قَدْ اَحَاطَ بِكُلِّ شَيْءٍ عِلْمًا" ټول څیزونه دَ اول نه تراخره پورې حقیر او عظیم، قلیل او کثیر دَ الله تعالی په وړاندې دی اودَ ټولو علم په یوځائ هغه ته دې. دَ هغه په علم کښې تقدم او تاخر هیڅ کله نشته. مګر په خپل مینځ کښې دَ یوبل په نسبت بیشکه مقدم او مؤخر ګنړلې شی، نودَ الله تعالی دَ علم په حساب ټول په ټول په منزله دَ شئ واحد موجود دی په دې وجه هلته دَ ماضی حال او مستقبل راویستل بالکل غلط به وی البته دَ خپل مینځ تقدم او تاخریه وجه دا دریواړه زمانې بالبداهت به جدا جدا راوځی. نو جناب باری کله دَ حسب موقع او حکمت دَ معلومیدلو په لحاظ سره کلام کوی اوکله دَ دې وقائع دَ تقدم او تاخر لحاظ کیږی، په اول صورت کښې خوهمیشه دَ یو فریق دقیق په لحاظ سره دَ ماضی صیغه یا دَ حال صیغه استعمالیږی، اودَ استقبال صیغه نشې استعمالیدې او په دوئم صورت کښې دَ ماضی په موقع کښې ماضی او حال موقع کښې دَ حال او استقبال په ځائ استقبال راوړلې شی. او چرته چه دَ آئنده وقائع دَ ماضی په الفاظوکښې بیان کړې دې لکه "وَنَادٰى اَصْحٰبُ الْجَنَّةِ" وغیره تو هلته دا لحاظ دې چه الله تعالی ته ټول مستحضر او په وړاندې دی او کوم ځائ کښې چه تیرشوی واقعات دَ استقبال په صیغه سره بیان شوی دی لکه هم په دې آیت کښې نو هلته هم دا په خیال کښې دی چه دا نسبت دَ خپل ماقبل مستقبل دې، دَ علم الهی په لحاظ سره استقبال نه دې چه دَ هغه په علم کښې دَ حدوث وهم وی.

دَ دوئم تحقیق خلاصه دا ده چه مونږ ته دَ څیزونو علم په دوو طریقوسره حاصلیږی، یو بغیردَ واسطې او بل سره دَ واسطې. مثلاً اُور خو کله په سترګو وینو او کله اُورزمونږ نه چرته پټ وی خو لوګی کتلوسره دَ اُور یقین کیږی او اکثر دا دواړه علمونه په یو ځائ موجود وی. مثلاً که اُور دَ نزدې نه اووینی نو لوګی به هم هغې سره په نظر راشی نو په داسې صورت کښې به دَ اُور علم په دواړو طریقو سره حاصل شی. یو خو بغیرواسطې څکه چه په سترګو اُور وینی، دوئم په واسطه سره یعنی دَ اُور علم دَ لوګی په واسطه سره او دا دواړه علمونه هم په یوځائ دی. وړاندې روستونه دی شوی خو علم په واسطه سره په علم

بغيردَ واسطې كښې دا ورننوتې وي چه دا په خيال كښې هم نه راځي. على هذا القياس كله دَ دوو شيٸنو علم بغيردَ واسطې نه هم په يو ځاىٔ حاصليږي مثلاً اُور او لوګې په يوځاىٔ اوګوري. دغه شان كله دَ يو شي علم بغيردَ واسطې او بل شي علم دَ رومبى شي په واسطه سره يو ځاىٔ حاصليږي. مثلاً دَ لوګې علم بغيردَ واسطې اودَ اُور علم په واسطه دَ لوګې سره، يا دَ اُور علم بغيردَ واسطې او دَ لوګې علم په واسطه سره دواړه يوځاىٔ پيدا كيږي مګر چه څنګه دې قلم په لاس كښې راواخستو او ليكې نو په هر صورت كښې قلم او لاس ملاويږي خو وائي داسې چه اول لاس بيا قلم خوزوه،دغه شان عقل سليم دَ يوځاىٔ كيدو سره بغيردَ واسطې دَ شي علم سره دَ واسطې دَ شي په علم باندې ضرور مقدم ګڼري.

كله چه دا خبرې معلومې شوې نو اوس واورئې چه الله تعالى ته چه عليم ذات دې دَ ټولو شيٸنوعلم په دواړه شانه دې. بغيرواسطې او سره دَ واسطې په يوځاىٔ يعنى دَ لوازم ملزومات نه او دَ ملزومات دَ لوازم نه او دواړه علمونه دَ ازل نه برابر يو ځاىٔ دى او قديم دى. نو علم بلاواسطه په طريقه مذكوره سره مقدم او علم بالواسطه مؤخر اووايه. او چه كوم ځاىٔ كښې دَ الله تعالى په علم كښې دَ استقبال صيغه يادَ استقبال معنى موندلې شى نو دَ علم بالواسطه په لحاظ سره دې. دَ زمانې په اعتبار سره څه تفاوت او لريوالې نشته. او چرته چه ماضى يا حال مستعمل دى هلته علم بلاواسطه مراد دې اودَ علم بالواسطه په اعتبار سره كلام فرمائيلوكښې دا حكمت دې چه دَ الله تعالى دَ كلام مخاطب سړي دې او هغوى ته اكثر دَ شيٸنوعلم بالواسطه كيږي او چرته چه جناب باري په خپل علم كښې دَ مستقبل صيغه استعمال كړيده هغه هم هغه امور دى چه بنى آدم ته بلاواسطه نشى معلوميدلې. كه په داسې موقع كښې بنى آدم نه په اعتبار دَ علم بلاواسطه كلام كولې شو نو په هغه باندې به پوره الزام نه وو او چه كوم ځاىٔ دا مصلحت نه وي په اعتبار دَ علم بلاواسطه صيغه ماضى يا حال استعمالولې شى مګر بنى آدم ته دَ دې شيٸنوعلم بلاواسطه كيدې نشى او دَ دې واسطوعلم دَ هغوى دَ وجود نه اول بنى آدم ته ممكن نه دې. په دې وجه دَ هغه ټول علوم برابر نشى حاصليدې نو هغه الله تعالى په خپل ځان باندې قياس كولوسره دَ مستقبل دَ صيغې نه حدوث ګڼري او حيرانيږي چه دَ الله تعالى په علم كښې حدوث ثابت شو. مګر پوهه خلق چه دَ مذكوره نكتې نه خبر وي ټول دَ يو بل مطابق ګڼري. (١)-

**قوله: اثقالا مع اثقالهم: اوزارامع اوزارهم:** آيت كښې دى "وَلَيَحْمِلُنَّ أَثْقَالَهُمْ وَأَثْقَالًا مَّعَ أَثْقَالِهِمْ"

فرمائى دې كښې اثقال معنى اوزار ده چه جمع ده دَ وزر په معنى دَ بوج، علامه شبيراحمد عثمانى رحمه الله فرمائي: "يعنې دروغژن دى او ستا بوج يوه رتئى هم نشى سپكولې، او خپل بوج درنوى. يو خود هغوى دَ ذاتى ګناه بار وو اوس دَ نور په اغواء او اضلال سره دې كښې نورهم زياتې كوى، حضرت شاه صاحب ليكى چه څوك غواړي چه دوستى اوكړي او دَ چا ګناه په خپل سر واخلي، نودا به نه وي مګر څوك ئې چه ګمراه كړل اودَ هغه په غولولو سره

(١)(تفسير عثمانى:٢٧-٢٨

هغه ګناه اوکړه، نو هغه ګناه په ده باندې هم ده او په هغه باندې هم. لکه چه په حدیث کښې راغلي دي چه په دنیاکښې څوك په ناحقه سره قتل کړې ذ هغه ذ ګناه حصه ذ حضرت آدم علیه السلام ړومبی ځوئ (قابیل) ته رسی، چا چه اول دا خرابه لار راویستلې.

## [۲۶۶] باب: تفسیر سورة الم غلبت الروم

قال مجاهد یحبرون ینعمون فلا یربو عند الله من أعطى عطیة یبتغي أفضل منه فلا أجر له فیها قال مجاهد یحبرون ینعمون یمهدون یسوون المضاجع الودق المطر قال ابن عباس هل لکم مما ملکت أیمانکم في الآلهة وفیه تخافونهم أن یرثوکم کما یرث بعضکم بعضا یصدعون یتفرقون فاصدع وقال غیره ضعف وضعف لغتان وقال مجاهد السوأی الإساءة جزاء المسیئین

## الم غلبت الروم

**ذ کلماتو تشریح:**

**قوله: یحبرون .ینعمون :** "فَأَمَّا الَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ فَهُمْ فِي رَوْضَةٍ يُحْبَرُونَ" هغه خلق چه ایمان ئې راوړې وو او ښه کارونه ئې کړې وو هغه خو به (ذجنت)باغونوکښې خوشحاله وي. فرمائي چه یحبرون معنی ینعمون: هغه به په نعمتونو کښې وي.

**قوله: فلا یربو عند الله: من أعطى عطیة یبتغي أفضل منه فلا أجر له فیها :** آیت کښې دی "وَمَا آتَيْتُم مِّن رِّبًا لِّيَرْبُوَ فِي أَمْوَالِ النَّاسِ فَلَا يَرْبُو عِندَ اللَّهِ" یعنی په سود باندې تاسو کومې روپئی وغیره ورکونی دي ذ پاره چه په مال کښې زیاتوالې اوشی نو هغه ذ الله تعالی په نیزد نه زیاتیږي. فرمائي آیت کښې "فَلَا يَرْبُو عِندَ اللَّهِ" مطلب دا دې چه کوم سړې چاته ذ زیات اخستلو په غرض څه ورکړی نو ذ هغه په ورکړه کښې ذ هغه ذ پاره هیڅ اجر به نه وي. ذ سود په ذریعه ذ مال ذ زیاتی مثال داسې دې لکه ذ بدن پړسوب چه ذ مرګ پیغام دې او ذ زکوة په ذریعه چه په مال کښې په ظاهره کوم کمې په نظر راځی هغه داسې دې لکه ذ جلاب په ذریعه ذ فاسد مادو تنقیه یعنی صفائی کول ذ کوم انجام چه صحت دې.

**قوله: فلانفسهم یمهدون: یسوون المضاجع :** آیت کښې دی "وَمَنْ عَمِلَ صَالِحًا فَلِأَنفُسِهِمْ يَمْهَدُونَ" فرمائي یمهدون معنی ده خپل ځان ذ پاره بسترې سیده کوی، خوروی، یعنی چه کوم خلق نیك عمل کوی نو لکه چه خپل ځان ذ پاره (جنت یا قبرکښې) بسترې او فرش خوروی.

**قوله: الودق : المطر :** "فَتَرَى الْوَدْقَ يَخْرُجُ مِنْ خِلَالِهِ" ودق معنی باران یعنی بیا تاسو په وریځوکښې دننه باران راوتونکې وینئ.

**قوله: قال ابن عباس :هل لکم مما ملکت أیمانکم: في الآلهة :** آیت کښې دی

"ضَرَبَ لَكُمْ مَّثَلًا مِّنْ أَنفُسِكُمْ ۖ هَل لَّكُم مِّن مَّا مَلَكَتْ أَيْمَانُكُم مِّن شُرَكَاءَ فِي مَا رَزَقْنَاكُمْ" الله تعالى ستاسو دَ پاره يو مثال بيان كړو په تاسو كښې څه ستاسو په غلامانوكښې تاسوسره شريك دى په هغه مالونوكښې كوم چه مونږ تاسو له دركړى دى". حضرت ابن عباس رضي الله عنهما فرمائى چه په دې آيت كښې الله تعالى دَ باطلو معبودانو په سلسله كښې مثال بيان كړې دې. او په دې كښې فرمائيلى دى چه كله تاسو پخپله په هغه خبره راضى نه ئى چه ستاسو غلامان ستاسو په شان په مالونوكښې شريك شى او هغه ستاسو وارثان جوړى نو بيا تاسو دا باطل معبودان چه الله تعالى پيداكړى دى الله تعالى سره ولې شريك ګنړئى او دَ الله تعالى افعالوكښې ولې وارثان اوحقدار ګرځونى. دغه شان تاسو ته دَ خپل غلامانو نه هيڅ خطره او انديښنه نه وى نو بيا څنګه دا ګنړئى چه الله تعالى ته به دَ دې باطلومعبودانو پرواه وى او دَ هغوى نه به څه ويره محسوس كړى.

**قوله:** يَصَّدَّعُونَ: يَتَفَرَّقُونَ: "يَوْمَئِذٍ يَصَّدَّعُونَ" په هغه ورځ به ټول خلق ګډوډ او خواره شى يصدعون اصل كښې يتصدعون وو دَ باب تفعل په معنى خواره واره كيدل، فقلبت تاءه صادا، وادغمت

**قوله:** وَقَالَ غَيْرُهُ: ضُعْفٌ وَضَعْفٌ لُغَتَانِ: آيت كښې دى "اللَّهُ الَّذِي خَلَقَكُم مِّن ضُعْفٍ" الله تعالى هغه ذات دې چا چه تاسو دَ كمزورئى په حالت كښې پيدا كړئى. فرمائى ضعف كښې دوه لغت دى يو ضاد فتح سره او دونم ضاد ضمه سره.

**قوله:** وَقَالَ مُجَاهِدٌ: السُّوأَى: الْإِسَاءَةُ جَزَاءُ الْمُسِيئِينَ: آيت كښې دى "ثُمَّ كَانَ عَاقِبَةَ الَّذِينَ أَسَاءُوا السُّوأَىٰ أَن كَذَّبُوا بِآيَاتِ اللَّهِ" بيا دَ خرابوخلقو انجام خراب شو چه هغوى دَ الله تعالى نښې دروغ ګنړلې وې. مجاهد رحمه الله فرمائى آيت كښې دَ السواى معنى دَخرابۍ چه كومه جزا وى دَ خرابى كونكو.

[٤٤٩٦] حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ كَثِيرٍ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ حَدَّثَنَا مَنْصُورٌ وَالْأَعْمَشُ عَنْ أَبِي الضُّحَى عَنْ مَسْرُوقٍ قَالَ بَيْنَمَا رَجُلٌ يُحَدِّثُ فِي كِنْدَةَ فَقَالَ يَجِيءُ دُخَانٌ يَوْمَ الْقِيَامَةِ فَيَأْخُذُ بِأَسْمَاعِ الْمُنَافِقِينَ وَأَبْصَارِهِمْ يَأْخُذُ الْمُؤْمِنَ كَهَيْئَةِ الزُّكَامِ فَفَزِعْنَا فَأَتَيْتُ ابْنَ مَسْعُودٍ وَكَانَ مُتَّكِئًا فَغَضِبَ فَجَلَسَ فَقَالَ مَنْ عَلِمَ فَلْيَقُلْ وَمَنْ لَمْ يَعْلَمْ فَلْيَقُلِ اللَّهُ أَعْلَمُ فَإِنَّ مِنَ الْعِلْمِ أَنْ يَقُولَ لِمَا لَا يَعْلَمُ لَا أَعْلَمُ فَإِنَّ اللَّهَ قَالَ لِنَبِيِّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قُلْ مَا أَسْأَلُكُمْ عَلَيْهِ مِنْ أَجْرٍ وَمَا أَنَا مِنَ الْمُتَكَلِّفِينَ وَإِنَّ قُرَيْشًا أَبْطَئُوا عَنِ الْإِسْلَامِ فَدَعَا عَلَيْهِمُ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ اللَّهُمَّ أَعِنِّي عَلَيْهِمْ بِسَبْعٍ كَسَبْعِ يُوسُفَ فَأَخَذَتْهُمْ سَنَةٌ حَتَّى هَلَكُوا فِيهَا وَأَكَلُوا الْمَيْتَةَ وَالْعِظَامَ وَيَرَى الرَّجُلُ مَا بَيْنَ السَّمَاءِ وَالْأَرْضِ كَهَيْئَةِ الدُّخَانِ فَجَاءَهُ أَبُو سُفْيَانَ فَقَالَ يَا مُحَمَّدُ جِئْتَ تَأْمُرُنَا بِصِلَةِ الرَّحِمِ وَإِنَّ قَوْمَكَ قَدْ هَلَكُوا فَادْعُ اللَّهَ فَقَرَأَ فَارْتَقِبْ يَوْمَ تَأْتِي السَّمَاءُ بِدُخَانٍ مُبِينٍ إِلَى قَوْلِهِ عَائِدُونَ أَفَيُكْشَفُ عَنْهُمْ عَذَابُ الْآخِرَةِ إِذَا

جَاءَ ثُمَّ عَادُوا إِلَى كُفْرِهِمْ فَذَلِكَ قَوْلُهُ تَعَالَى يَوْمَ نَبْطِشُ الْبَطْشَةَ الْكُبْرَى يَوْمَ بَدْرٍ وَلِزَامًا يَوْمَ بَدْرٍ الم غُلِبَتِ الرُّومُ إِلَى سَيَغْلِبُونَ وَالرُّومُ قَدْ مَضَى

په دې حدیث کښې حضرت عبدالله بن مسعود رضی الله عنه د خپل دې خیال اظهار اوکړو د کوم تذکره چه په ماقبل کښې تیره شوې ده چه لزام، دخان او بطشه د هغوی په نیزد واقع شویدی او د هغوی تعلق قریشو سره دې. دلته چه کوم سرې ونیلی دی چه د دخان واقع کیدل به په قیامت کښې وی هغه هم په خپل ځائ صحیح دې، حضرت عبدالله بن مسعود رضی الله عنه د خپل علم مطابق د دې انکار کړیدې ګنی جمهور علماء د دې انکار نه کوی.

## [۲۶۷] بَابُ لَا تَبْدِيلَ لِخَلْقِ اللَّهِ لِدِينِ اللَّهِ خُلُقُ الْأَوَّلِينَ دِينُ الْأَوَّلِينَ وَالْفِطْرَةُ الْإِسْلَامُ

[۴۴۹۷] حَدَّثَنَا عَبْدَانُ أَخْبَرَنَا عَبْدُ اللَّهِ أَخْبَرَنَا يُونُسُ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ أَخْبَرَنِي أَبُو سَلَمَةَ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ أَنَّ أَبَا هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا مِنْ مَوْلُودٍ إِلَّا يُولَدُ عَلَى الْفِطْرَةِ فَأَبَوَاهُ يُهَوِّدَانِهِ أَوْ يُنَصِّرَانِهِ أَوْ يُمَجِّسَانِهِ كَمَا تُنْتَجُ الْبَهِيمَةُ بَهِيمَةً جَمْعَاءَ هَلْ تُحِسُّونَ فِيهَا مِنْ جَدْعَاءَ ثُمَّ يَقُولُ فِطْرَةَ اللَّهِ الَّتِي فَطَرَ النَّاسَ عَلَيْهَا لَا تَبْدِيلَ لِخَلْقِ اللَّهِ ذَلِكَ الدِّينُ الْقَيِّمُ

آیت کښې دی "فِطْرَتَ اللهِ الَّتِيْ فَطَرَ النَّاسَ عَلَيْهَا لَا تَبْدِيْلَ لِخَلْقِ اللهِ" دې کښې "خلق الله" تشریح "دین الله" نه او فطرت تشریح اسلام سره کړیده. دغه شان په سورة الشعراء کښې دی "اِنْ هٰذَآ اِلَّا خُلُقُ الْاَوَّلِيْنَ" دې کښې خلق په معنی د دین دې. د روایت په آخره کښې **ثم يقول: فطرة الله...**دې، دې **"يقول"** ضمیر رسول الله ﷺ طرف ته نه راګرځی لکه چه د ظاهر نه معلومیږی بلکه دا د حضرت ابوهریره رضی الله عنه ارشاد دې. په کتاب الجنائز کښې د دې تصریح ده. [۱]-

**د ``فطرت الله التی فطر الناس علیها، تفسیر:** علامه شبیر احمد عثمانی رحمه الله لیکلی دی: الله تعالی د سړی کړه وړه د شروع نه داسې ایخودې دی چه هغه د حق قبلول او پوهه غواړی نو کولې شی او دفطرت د شروع نه خپل اجمالی معرفت یوپړق دهغه په زړه کښې دتخم په توګه د هدایت اچولې دې. که چرې د چاپیره احوال او ماحول خراب اثر نه متاثر نه وی او په اصل طبیعت باندې پریخودلې شی نو خامخا به حق دین اختیاروی بل طرف ته به نه متوجه کیږی. "عهد الست" په قصه کښې هم دې طرف ته اشاره ده او په احادیث صحیحه کښې تصریح ده چه هرماشوم په فطرت (اسلام)باندې پیدا کیږی روستو مور پلار هغه یهودی نصرانی او مجوسی جوړوی. په یوحدیث قدسی کښې دی چه ما خپل بنده ته "حنفاء" پیدکړو. بیا

[۱])صحیح بخاری مع عمدة القاری کتاب الجنائز باب اذا اسلم اصبی:۱۷۶/۸

شيطانانو اغواء كړو اوهغه ئې د نيغې لارې نه واړولو، بهرحال دين حق، دين حنيف او دين قيم هغه دې كه انسان د هغه په فطرت باندې محلي بالطبع پريخودې شي نود خپل طبيعت نه به د هغې طرف ته تيښ شي، د ټولو انسانانو فطرت الله تعالى داسې جوړ كړيدې په كوم كښې چه څه تفاوت او بدلون نشته. فرض كړه كه فرعون يا ابوجهل په اصلى فطرت كښې دا استعداد او صلاحيت نه وې نو هغوى د حق د قبلولو مكلف جوړول نه صحيح كيدل لكه چه خښته كانړې يا ځناور ئې د شرائع مكلف نه دى جوړ كړى، د انسانى فطرت هم د دې پوشان والى اثر دې چه د دين ډير مهمه اصول په څه ناڅه رنګ كښې تقريباً ټول انسانان تسليم كوى سره د دې كه په هغې باندې صحيح قائم نه اوسيږى.

حضرت شاه صاحب رحمه الله ليكى الله تعالى د ټولو حاكم، د ټولو نه عجيبه، څوك د هغه برابر نشته. د چا زور په هغه نشته، دا خبرې ټول پيژنى، په دې تلل پكار دى، هسې د چا خان او مال تنګول.په ناموس باندې عيب لګول هرسړې بد ګڼرى، داسې الله تعالى يادول، غريب باندې ترس خوړل، پوره حق وركول. دهوكه نه كول هر سړې ښه پيژنى، په دې لار باندې تلل هم دغه دين ربښتونې دې (دا فطرى امور دى مګر) د دې بندوبست د پيغمبرانو په ژبه الله تعالى خودلى دى.

# سورة لقمان

## [٢٦٧] بَاب لَا تُشْرِكْ بِاللَّهِ إِنَّ الشِّرْكَ لَظُلْمٌ عَظِيمٌ

[٤٤٩٨] حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ حَدَّثَنَا جَرِيرٌ عَنِ الْأَعْمَشِ عَنْ إِبْرَاهِيمَ عَنْ عَلْقَمَةَ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ لَمَّا نَزَلَتْ هَذِهِ الْآيَةُ الَّذِينَ آمَنُوا وَلَمْ يَلْبِسُوا إِيمَانَهُمْ بِظُلْمٍ شَقَّ ذَلِكَ عَلَى أَصْحَابِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَقَالُوا أَيُّنَا لَمْ يَلْبِسْ إِيمَانَهُ بِظُلْمٍ فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّهُ لَيْسَ بِذَاكَ أَلَا تَسْمَعُ إِلَى قَوْلِ لُقْمَانَ لِابْنِهِ إِنَّ الشِّرْكَ لَظُلْمٌ عَظِيمٌ

## [٢٦٩] بَاب قَوْلِهِ إِنَّ اللَّهَ عِنْدَهُ عِلْمُ السَّاعَةِ

[٤٤٩٩] حَدَّثَنِي إِسْحَاقُ عَنْ جَرِيرٍ عَنْ أَبِي حَيَّانَ عَنْ أَبِي زُرْعَةَ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَوْمًا بَارِزًا لِلنَّاسِ إِذْ أَتَاهُ رَجُلٌ يَمْشِي فَقَالَ يَا رَسُولَ اللَّهِ مَا الْإِيمَانُ قَالَ الْإِيمَانُ أَنْ تُؤْمِنَ بِاللَّهِ وَمَلَائِكَتِهِ وَكُتُبِهِ وَرُسُلِهِ وَلِقَائِهِ وَتُؤْمِنَ بِالْبَعْثِ الْآخِرِ قَالَ يَا رَسُولَ اللَّهِ مَا الْإِسْلَامُ قَالَ الْإِسْلَامُ أَنْ تَعْبُدَ اللَّهَ وَلَا تُشْرِكَ بِهِ شَيْئًا وَتُقِيمَ الصَّلَاةَ وَتُؤْتِيَ الزَّكَاةَ الْمَفْرُوضَةَ وَتَصُومَ رَمَضَانَ قَالَ يَا رَسُولَ اللَّهِ مَا الْإِحْسَانُ قَالَ الْإِحْسَانُ أَنْ تَعْبُدَ اللَّهَ كَأَنَّكَ تَرَاهُ فَإِنْ لَمْ تَكُنْ تَرَاهُ فَإِنَّهُ يَرَاكَ قَالَ يَا رَسُولَ اللَّهِ مَتَى السَّاعَةُ قَالَ مَا الْمَسْئُولُ عَنْهَا بِأَعْلَمَ مِنَ السَّائِلِ وَلَكِنْ سَأُحَدِّثُكَ عَنْ أَشْرَاطِهَا إِذَا وَلَدَتِ الْمَرْأَةُ رَبَّتَهَا فَذَاكَ مِنْ أَشْرَاطِهَا وَإِذَا كَانَ الْحُفَاةُ الْعُرَاةُ رُءُوسَ النَّاسِ

فذاك من أشراطها في خمس لا يعلمهن إلا الله إن الله عنده علم الساعة وينزل الغيث ويعلم ما في الأرحام ثم انصرف الرجل فقال ردوا علي فأخذوا ليردوا فلم يروا شيئا فقال هذا جبريل جاء ليعلم الناس دينهم

[۴۵۰۰] حدثنا يحيى بن سليمان قال حدثني ابن وهب قال حدثني عمر بن محمد بن زيد بن عبد الله بن عمر أن أباه حدثه أن عبد الله بن عمر رضي الله عنهما قال قال النبي صلى الله عليه وسلم مفاتيح الغيب خمس ثم قرأ إن الله عنده علم الساعة

## [۲۷۰] باب: تفسير سورة تنزيل (السجدة)

وقال مجاهد مهين ضعيف نطفة الرجل ضللنا هلكنا وقال ابن عباس الجرز التي لا تمطر إلا مطرا لا يغني عنها شيئا يهد يبين

## سورة تنزيل

**د كلماتو تشريح:**

**قوله:** وقال مجاهد: مهين: ضعيف: نطفة الرجل: آيت كښې دى "ثم جعل نسله من سللة من ماء مهين" بيا جوړ كړو دَ هغه نسل دَ بې قدره اوبودَ څاڅكى نه، فرمائى مهين معنى ضعيف ده او دينه مراد دَ سړى نطفه او منى ده.

**قوله:** ضللنا: هلكنا: آيت كښې دى "وقالوا ءاذا ضللنا في الأرض ءانا لفي خلق جديد" فرمائى ضللنامعنى هلكنا يعنى كافر وائى چه آيا كله مونږ په زمكه كښې ختم شو نو بيا به دَ نوى سر نه پيدا كيږو.

**قوله:** الجرز: التي لا تمطر إلا مطرا لا يغني عنها شيئا: "اولم يروا انا نسوق الماء الى الارض الجرز فنخرج به زرعا" آيا هغوى په دې خبره باندې نظر نه دې كړې چه مونږ اوچې زمكې ته اوبه رسوو بيا دَ هغې په ذريعه فصل پيداكوو. فرمائى چه جرز هغه زمكې ته وائى چرته چه ډيركم باران كيږى دَ څه نه چه هغه زمكې ته هيڅ فائده نه رسى.

**قوله:** يهد: يبين: آيت كښې دى "اولم يهد لهم كم اهلكنا من قبلهم من القرون" آيا دَ هغوى دَ پاره دا امر دَ لار خودنې موجب نه دې چه مونږ دَ دوى نه وړاندې څومره امتونه هلاك كړى دى. فرمائى "يهد" معنى يبين يعنى آيا بيان نه دې كړې.

## [۲۷۱] باب قوله فلا تعلم نفس ما أخفي لهم من قرة أعين

[۴۵۰۱] حدثنا علي بن عبد الله حدثنا سفيان عن أبي الزناد عن الأعرج عن أبي هريرة رضي الله عنه عن رسول الله صلى الله عليه وسلم قال قال الله تبارك وتعالى

أَعْدَدْتُ لِعِبَادِي الصَّالِحِينَ مَا لَا عَيْنٌ رَأَتْ وَلَا أُذُنٌ سَمِعَتْ وَلَا خَطَرَ عَلَى قَلْبِ بَشَرٍ قَالَ أَبُو هُرَيْرَةَ اقْرَءُوا إِنْ شِئْتُمْ فَلَا تَعْلَمُ نَفْسٌ مَا أُخْفِيَ لَهُمْ مِنْ قُرَّةِ أَعْيُنٍ وحَدَّثَنَا عَلِيٌّ قَالَ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ حَدَّثَنَا أَبُو الزِّنَادِ عَنْ الْأَعْرَجِ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ اللَّهُ مِثْلَهُ قِيلَ لِسُفْيَانَ رِوَايَةً قَالَ فَأَيُّ شَيْءٍ

[۴۵۰۲] حَدَّثَنِي إِسْحَاقُ بْنُ نَصْرٍ حَدَّثَنَا أَبُو أُسَامَةَ عَنْ الْأَعْمَشِ حَدَّثَنَا أَبُو صَالِحٍ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ عَنْ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ اللَّهُ تَعَالَى أَعْدَدْتُ لِعِبَادِي الصَّالِحِينَ مَا لَا عَيْنٌ رَأَتْ وَلَا أُذُنٌ سَمِعَتْ وَلَا خَطَرَ عَلَى قَلْبِ بَشَرٍ ذُخْرًا بَلْهَ مَا أُطْلِعْتُمْ عَلَيْهِ ثُمَّ قَرَأَ فَلَا تَعْلَمُ نَفْسٌ مَا أُخْفِيَ لَهُمْ مِنْ قُرَّةِ أَعْيُنٍ جَزَاءً بِمَا كَانُوا يَعْمَلُونَ قَالَ أَبُو مُعَاوِيَةَ عَنْ الْأَعْمَشِ عَنْ أَبِي صَالِحٍ قَرَأَ أَبُو هُرَيْرَةَ قُرَّاتِ أَعْيُنٍ

**قوله: ذُخْرًا بَلْهَ مَا أُطْلِعْتُمْ عَلَيْهِ:** حضرت ابوهريره رضی الله عنه نه روايت دې "عن النبي صلى الله عليه وسلم يقول الله: اعددت لعبادى الصالحين مالاعين رات ولااذن سمعت ولاخطر على قلب بشر ذخرا من بله مااطلعتم عليه ثم قراء: فلاتعلم نفس مااخفى لهم من قرة اعين جزاء بما كانويعملون" په دې روايت كښې "ذخرا" تعلق "اعددت" سره دې او "مذخورا" په معنى كښې دې. اى اعددت ذلك لهم مذخورا يعنى دَ نيكانوخلقو دَ پاره ما دا ذخيره تياره كړه.

د "ذخرا بله ما اطلعتم عليه"، معنى: او "بله مااطلعتم عليه" كښې مختلف اقوال دى يو دا دې چه "بله" اسم فعل په معنى "دع" دې، په دې صورت كښې به ترجمه وى تاسو پرېږدئى هغه نعمتونه په كومو چه تاسو خبردار شوى ئى، يعنى مونږ چه په جنت كښې كوم نعمتونه دَ نيكانوخلقو دَ پاره تياركړى دى هغه ډير اوچت دى، دې وخت كښې چه كوم نعمتونه تاسو په دنيا كښې پيژنئى هغه پرېږدئى ځكه چه هغه په جنت كښې ذخيره شوى نعمتونو په مقابله كښې ډير معمولى دى، علامه عينى رحمه الله په دې صورت كښې ترجمه ليكى: "دع مااطلعتم عليه: فانه سهل يسير فى جنب ماادخرته لهم"[1]- دونم قول دا دې چه دا لفظ "من بله" دې او په معنى كښې د "غير" دې. په دې صورت كښې به ترجمه وى، دَ نيكانودَ پاره چه دَ نعمتونو كومه ذخيره مونږ تياره كړيده هغه دَ دې نعمتونونه علاوه دى دَ كومو نه چه تاسوخبرشوې ئى، دې صورت كښې "بله" دَ مابعد طرف ته مضاف دې. [2]- دريم قول دا دې "من بله" په معنى كيف "بله" مبنى په فتح كيف په معنى كښې دې. اوكيف دَ استفهام استبعاد دَ پاره دې او معنى ده "من اين اطلاعكم على هذا القدر الذى تقصر عقول البشر عن الاحاطة به" يعنى تاسو په

[1] (عمدة القارى: ۱۹/۱۱۴)

[2] (فتح البارى: ۸/۵۱۶)

دي نعمتونوباندې څنګه اطلاع حاصلولې شي د کوم د احاطې نه انساني عقلونه قاصر دي. (١)- والله اعلم

## [۲۷۲] باب: تفسير سورة الأحزاب

وَقَالَ مُجَاهِدٌ صَيَاصِيهِمْ قُصُورِهِمْ

الْأَحْزَابِ

**د کلماتو تشريح:**

**قوله:** وَقَالَ مُجَاهِدٌ صَيَاصِيهِمْ قُصُورِهِمْ: "وَأَنْزَلَ الَّذِينَ ظَاهَرُوهُمْ مِنْ أَهْلِ الْكِتَابِ مِنْ صَيَاصِيهِمْ" اود اهل کتاب نه چه کومو خلقو د دې مشرکانو امداد کړې وو الله تعالى هغوى د هغوى د قلعه ګانونه لاندې راکوز کړل. فرمائى صياصيهم معنى قلعه ګانې. محل.

## [۲۷۳] باب النَّبِيُّ أَوْلَى بِالْمُؤْمِنِينَ مِنْ أَنْفُسِهِمْ

[۴۵۰۳] حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ الْمُنْذِرِ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ فُلَيْحٍ حَدَّثَنَا أَبِي عَنْ هِلَالِ بْنِ عَلِيٍّ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ أَبِي عَمْرَةَ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَا مِنْ مُؤْمِنٍ إِلَّا وَأَنَا أَوْلَى النَّاسِ بِهِ فِي الدُّنْيَا وَالْآخِرَةِ اقْرَءُوا إِنْ شِئْتُمْ النَّبِيُّ أَوْلَى بِالْمُؤْمِنِينَ مِنْ أَنْفُسِهِمْ فَأَيُّمَا مُؤْمِنٍ تَرَكَ مَالًا فَلْيَرِثْهُ عَصَبَتُهُ مَنْ كَانُوا فَإِنْ تَرَكَ دَيْنًا أَوْ ضَيَاعًا فَلْيَأْتِنِي فَأَنَا مَوْلَاهُ

## [۲۷۴] باب ادْعُوهُمْ لِآبَائِهِمْ هُوَ أَقْسَطُ عِنْدَ اللَّهِ

[۴۵۰۴] (٢) حَدَّثَنَا مُعَلَّى بْنُ أَسَدٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيزِ بْنُ الْمُخْتَارِ حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ عُقْبَةَ قَالَ حَدَّثَنِي سَالِمٌ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا أَنَّ زَيْدَ بْنَ حَارِثَةَ مَوْلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا كُنَّا نَدْعُوهُ إِلَّا زَيْدَ بْنَ مُحَمَّدٍ حَتَّى نَزَلَ الْقُرْآنُ ادْعُوهُمْ لِآبَائِهِمْ هُوَ أَقْسَطُ عِنْدَ اللَّهِ

## [۲۷۵] باب فَمِنْهُمْ مَنْ قَضَى نَحْبَهُ وَمِنْهُمْ مَنْ يَنْتَظِرُ وَمَا بَدَّلُوا تَبْدِيلًا

نَحْبَهُ عَهْدَهُ أَقْطَارِهَا جَوَانِبُهَا الْفِتْنَةَ لَآتَوْهَا لَأَعْطَوْهَا

---

(١)(فتح البارى:٨/٥١۶

(٢)(واخرجه مسلم فى فضائل الصحابة. باب فضائل زيدبن حارثة. رقم الحديث:٢٤٢٥ واخرجه الترمذى فى المناقب، باب مناقب زيدبن حارثة، رقم الحديث:٣٨١٤ واجرجه النسائى فى السنن الكبرى فى التفسير باب سورة الاحزاب رقم الحديث:١١٣٩٧-

[۴۵۰۵] حَدَّثَنِي مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ الْأَنْصَارِيُّ قَالَ حَدَّثَنِي أَبِي عَنْ ثُمَامَةَ عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ نُرَى هَذِهِ الْآيَةَ نَزَلَتْ فِي أَنَسِ بْنِ النَّضْرِ مِنَ الْمُؤْمِنِينَ رِجَالٌ صَدَقُوا مَا عَاهَدُوا اللَّهَ عَلَيْهِ

[۴۵۰۶] حَدَّثَنَا أَبُو الْيَمَانِ أَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ أَخْبَرَنِي خَارِجَةُ بْنُ زَيْدِ بْنِ ثَابِتٍ أَنَّ زَيْدَ بْنَ ثَابِتٍ قَالَ لَمَّا نَسَخْنَا الصُّحُفَ فِي الْمَصَاحِفِ فَقَدْتُ آيَةً مِنْ سُورَةِ الْأَحْزَابِ كُنْتُ كَثِيرًا أَسْمَعُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقْرَؤُهَا لَمْ أَجِدْهَا مَعَ أَحَدٍ إِلَّا مَعَ خُزَيْمَةَ الْأَنْصَارِيِّ الَّذِي جَعَلَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ شَهَادَتَهُ شَهَادَةَ رَجُلَيْنِ مِنَ الْمُؤْمِنِينَ رِجَالٌ صَدَقُوا مَا عَاهَدُوا اللَّهَ عَلَيْهِ

**قوله: شَهَادَتَهُ شَهَادَةَ رَجُلَيْنِ:**

**د حضرت خزیمه رضی الله عنه ګواهي د دوه سړو د ګواهئ قائم مقام وو:** دَ ابوداؤد، نسائي او عبدالرزاق په روایت کښې دی چه یو ځل رسول الله صلی الله علیه وسلم دَ یو بانډچي نه اس واخستو اودَ قیمت ادا کولودَپاره ئې بانډچي ته ځان سره دَ تلو دَ پاره اوفرمائیل،هغه وخت څه نورو خلقو دَ دې بانډچي نه هغه اس په زیات قیمت دَ اخستلو دَ پاره اووئیل، کله چه هغوی صلی الله علیه وسلم دَ اس قیمت ادا کړو نو دَ اس په دې سودا باندې ګواه اوغوښتلو، حضرت خزیمه رضی الله عنه هلته موجود وو هغه ګواهي ورکړه چه رسول الله صلی الله علیه وسلم دا اس اخستې دې. حضور صلی الله علیه وسلم حضرت خزیمه رضی الله عنه ته اوفرمائیل چه ته خودَ بیع په وخت کښې هلته موجودنه وې، تاڅنګه ګواهي ورکړه؟ هغه اووئیل چه دَ آسمان خبرې تاسوله راخي په هغې کښې مونږ ستاسو تصدیق کوو دا خو دَ زمکې واقعه ده په دې کښې به مونږ ستاسو تصدیق څنګه نه کوو. هغه وخت حضور صلی الله علیه وسلم دَ حضرت خزیمه رضی الله عنه ګواهي دَ دوو سړو دَ ګواهئ قائم مقام اوګرځوله. ([1])- په طبراني کښې دَ دې بانډچي نوم سوادبن حارث بیان کړیشوې دې. ([2])- دَ حضرت خزیمه رضی الله عنه دَ واقعې نه بعضې حضراتو دا استدلال کړیدې چه چرته یو سړې ډیر زیات معتبر او ثقه وې نودَ هغه ګواهي دَ دوو سړو دَ ګواهئ قائم مقام کیدیشي. لیکن علامه خطابي رحمه الله په دې باندې اشکال کړیدې چه دَ دې واقعې نه دا مذکوره استدلال صحیح نه دې ځکه چه حضور صلی الله علیه وسلم دَ اس دَ اخستلوکومه فیصله اوفرمائیله هغه ئې دَ خپل علم په بنیاد باندې فرمائیلې وه، دَ حضرت خزیمه رضی الله عنه دَ ګواهئ په بنیاد باندې نه وه فرمائیلې او دَ ګواهئ حیثیت صرف دَ تاکیددَپاره وو، په دې وجه دې واقعې نه مذکوره استدلال صحیح نه دې.([3]) -

---

[1])(فتح الباری:۵۱۸/۸

[2])(فتح الباری:۵۱۹/۸

[3])(فتح الباری:۵۱۹/۸ ومعالم السنن

# [٢٧٦] باب قوله يا أيها النبي قل لأزواجك إن كنتن تردن الحياة الدنيا وزينتها فتعالين

أمتعكن وأسرحكن سراحا جميلا وقال معمر التبرج أن تخرج محاسنها سنة الله استنها جعلها

آيت كښې دى "وَقَرْنَ فِي بُيُوتِكُنَّ وَلَا تَبَرَّجْنَ تَبَرُّجَ الْجَاهِلِيَّةِ الْأُولَىٰ" اوتاسو په خپلو كورونو كښې ناستې اوسئ اوډ پخوانې زمانې ذ جاهليت په شان مه ګرځئ. معمر بن مثنى يعنى ابوعبيده فرمائى چه تبرج دا دې چه ښځه خپل حسن ښكاره كړى.

**قوله: سُنَّةَ اللَّهِ اسْتَنَّهَا جَعَلَهَا:** آيت كښې دى "سُنَّةَ اللَّهِ فِي الَّذِينَ خَلَوْا مِنْ قَبْلُ" ذ الله تعالى همدغه معمول ذ هغه خلقو په حق كښې هم وو كوم چه وړاندې تيرشوى دى. فرمائى سنة الله نه هغه معمول او طريقه مراد ده كومه چه الله تعالى مقرر كړيده.

[٤٥٠٧] حدثنا أبو اليمان أخبرنا شعيب عن الزهري قال أخبرني أبو سلمة بن عبد الرحمن أن عائشة رضي الله عنها زوج النبي صلى الله عليه وسلم أخبرته أن رسول الله صلى الله عليه وسلم جاءها حين أمره الله أن يخير أزواجه فبدأ بي رسول الله صلى الله عليه وسلم فقال إني ذاكر لك أمرا فلا عليك أن لا تستعجلي حتى تستأمري أبويك وقد علم أن أبوي لم يكونا يأمراني بفراقه قالت ثم قال إن الله قال يا أيها النبي قل لأزواجك إلى تمام الآيتين فقلت له ففي أي هذا أستأمر أبوي فإني أريد الله ورسوله والدار الآخرة

**د حديث باب تشريح:** حضوراكرم ﷺ ذ آيت تخيير نازليدونه پس حضرت عائشه رضی الله عنها خواله راغلو او هغې ته ئې اوفرمائيل چه زه به تاته يوه خبره كوم ته ذ هغې جواب په تندئى سره مه راكوه ذ خپل موربلار سره ذ مشورې نه پس ئې راكړه. دا تحفظ او احتياط حضور اكرم ﷺ ځكه اوفرمائيلو چه حضرت عائشه رضی الله عنها كم عمر وه چه چرته هغه غلطه فيصله اونه كړى نو نكه هغوى ﷺ هم دا نه غوښتل چه حضرت عائشه رضی الله عنها دې جدا شى. نبى كريم ﷺ هغې ته آيت تخيير واوزرولو، حضرت عائشه رضی الله عنها صحيح فيصله اوكړه او وئې فرمائيل چه زه الله تعالى او ذ هغه رسول اختياروم او په دې باندې ذ حيرانتيا اظهاراوكړو چه په دې كښې ذ مور پلار سره ذ مشورې څه خبره وه، ظاهره ده چه زه تاسو څنګه پريخودې شم. حضرت عائشه رضی الله عنها حضور ﷺ ته دا هم اوفرمائيل چه زما دا جواب نورو بيبيانوته مه ښائې، كيديشى چه ذ حضرت عائشه رضی الله عنها دا خواهش وو چه په هغې كښې څه داسې وى چه دنيا اختيار كړى او ذ نبى كريم ﷺ ذ زوجيت نه فارغې شى نو بيا به شمير كم شى. حضور اكرم ﷺ اوفرمائيل چه چاپوس اونه كړو نوزه به ئې پخپله نه ښائم ليكن كه تپوس ئې اوكړو نو بيا به ئې پتوم نه. حضور اكرم ﷺ ذ نورو بيبيانو په وړاندې آيت تخيير بيان كړو نو هرې يوې الله تعالى او ذ هغه رسول ﷺ اختيارولو فيصله اوكړه، ځكه چه ذ حضور اكرم ﷺ ذ صحبت او معيت نه ذ هرې يوې زړه ذ ايمان په رڼا منور وو. هغوى دنيا ته ذ الله

تعالى او د هغه د رسول ﷺ په مقابله كښې څنګه ترجيح وركولې شوه. يوې هم دنياته ترجيح ورنه كړه اود نبى كريم ﷺ سره ئې د اوسيدو فيصله اوكړه.

## [٢٧٧] بَاب قَوْلِهِ وَإِنْ كُنْتُنَّ تُرِدْنَ اللَّهَ وَرَسُولَهُ وَالدَّارَ الْآخِرَةَ فَإِنَّ اللَّهَ أَعَدَّ لِلْمُحْسِنَاتِ مِنْكُنَّ أَجْرًا عَظِيمًا

وَقَالَ قَتَادَةُ وَاذْكُرْنَ مَا يُتْلَى فِي بُيُوتِكُنَّ مِنْ آيَاتِ اللَّهِ وَالْحِكْمَةِ الْقُرْآنِ وَالْحِكْمَةُ السُّنَّةُ وَقَالَ اللَّيْثُ (١)حَدَّثَنِي يُونُسُ عَنْ ابْنِ شِهَابٍ قَالَ أَخْبَرَنِي أَبُو سَلَمَةَ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ أَنَّ عَائِشَةَ زَوْجَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَتْ لَمَّا أُمِرَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِتَخْيِيرِ أَزْوَاجِهِ بَدَأَ بِي فَقَالَ إِنِّي ذَاكِرٌ لَكِ أَمْرًا فَلَا عَلَيْكِ أَنْ لَا تَعْجَلِي حَتَّى تَسْتَأْمِرِي أَبَوَيْكِ قَالَتْ وَقَدْ عَلِمَ أَنَّ أَبَوَيَّ لَمْ يَكُونَا يَأْمُرَانِي بِفِرَاقِهِ قَالَتْ ثُمَّ قَالَ إِنَّ اللَّهَ جَلَّ ثَنَاؤُهُ قَالَ يَا أَيُّهَا النَّبِيُّ قُلْ لِأَزْوَاجِكَ إِنْ كُنْتُنَّ تُرِدْنَ الْحَيَاةَ الدُّنْيَا وَزِينَتَهَا إِلَى أَجْرًا عَظِيمًا قَالَتْ فَقُلْتُ فَفِي أَيِّ هَذَا أَسْتَأْمِرُ أَبَوَيَّ فَإِنِّي أُرِيدُ اللَّهَ وَرَسُولَهُ وَالدَّارَ الْآخِرَةَ قَالَتْ ثُمَّ فَعَلَ أَزْوَاجُ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِثْلَ مَا فَعَلْتُ تَابَعَهُ مُوسَى بْنُ أَعْيَنَ عَنْ مَعْمَرٍ عَنْ الزُّهْرِيِّ قَالَ أَخْبَرَنِي أَبُو سَلَمَةَ وَقَالَ عَبْدُ الرَّزَّاقِ وَأَبُو سُفْيَانَ الْمَعْمَرِيُّ عَنْ مَعْمَرٍ عَنْ الزُّهْرِيِّ عَنْ عُرْوَةَ عَنْ عَائِشَةَ

## [٢٧٨] بَاب وَتُخْفِي فِي نَفْسِكَ مَا اللَّهُ مُبْدِيهِ وَتَخْشَى النَّاسَ وَاللَّهُ أَحَقُّ أَنْ تَخْشَاهُ

[٤٥٠٩] (٢)حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ الرَّحِيمِ حَدَّثَنَا مُعَلَّى بْنُ مَنْصُورٍ عَنْ حَمَّادِ بْنِ زَيْدٍ حَدَّثَنَا ثَابِتٌ عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ أَنَّ هَذِهِ الْآيَةَ وَتُخْفِي فِي نَفْسِكَ مَا اللَّهُ مُبْدِيهِ نَزَلَتْ فِي شَأْنِ زَيْنَبَ بِنْتِ جَحْشٍ وَزَيْدِ بْنِ حَارِثَةَ

**د ايت كريمه دوه تفسيرونه:** د دې ايت دوه تفسيرونه شوى دى يوتفسير امام ابى حاتم او على بن الحسين زيدالعابدين نه منقول دې چه الله تعالى حضور اكرم ﷺ ته خودلى وو چه

---

(١)(واخرجه مسلم فى الطلاق باب ان تخير امراته لايكون طلاقا الابالنية رقم الحديث:١٤٧٥ واخرجه الترمذى فى التفسير باب سورة الاحزاب رقم الحديث:٣٢٠٤ واخرجه النسائى الكبرى فى كتاب النكاح باب ما افترض الله على رسوله وخفضه على خلقه ليزيده به ان شاء الله قربة اليه رقم الحديث:٥٣٠٩-

(٢)(واخرجه ايضاً فى التوحيد باب قوله تعالى وكان عرشه على الماء رقم الحديث:٧٤٢٠(مع الفتح) واخرجه الترمذى فى التفسير باب سورة الاحزاب رقم الحديث:٣٢١٢ واخرجه النسائى فى السنن فى التفسير باب وتخفى فى نفسک ما الله مبديه رقم الحديث:١١٤٠٧-

زینب بنت جحش دَ هغوی په نکاح کښې راتلونکې ده لیکن دَ هغې نکاح دَ حضرت زیدبن حارثه سره شوې وه اوهغه دَ نبی کریم ﷺ متبنٰی وو په دې وجه دَ خلقو دَ خبرو دَ ویرې هغوی ﷺ دا خبره نه ظاهروله چه زینب بنت جحش زما په نکاح کښې راتلونکې ده. په زړه کښې همدغه ووچه زیدبن حارثه رضی الله عنه طلاق ورکړې نو زه به ورسره نکاح کوم، په دې دوران کښې حضرت زید راغلواود حضرت زینب رضی الله عنها شکایت ئې هم اوکړو لیکن هغوی اوفرمائیل "امسك علیك زوجك واتق الله" اوالله تعالی چه څه خودلې ووچه دا ستا په نکاح کښې راتلونکې ده هغه ئې پټ کړل، هم دَ دې متعلق ئې اوفرمائیل "وتخفی فی نفسك ما الله مبدیه" دې نه پس حضرت زید طلاق ورکړو او الله تعالی دَ اوو آسمانونودَ پاسه دَ حضرت زینب نکاح حضور اکرم ﷺ سره اوکړه. په کتاب التوحید کښې دا روایت موجود دې. (۱)- دَ آیت هم دا تفسیر جمهور علماؤ اختیارکړیدې. (۲)- مولانا شبیراحمد عثمانی رحمه الله هم دا اختیارکړیدې هغوی لیکی: "حضرت زینب رضی الله عنها دَ رسول الله ﷺ دَ ترور لور او دَ قریشودَ اوچت خاندان نه وه، نبی کریم ﷺ غوښتل چه دَ هغې نکاح زیدبن حارثه رضی الله عنه سره اوکړې، دا زیدهم په اصل کښې شریف عرب وو لیکن په وړوکوالی کښې دې چا ظالم راوستلو او غلام ئې جوړکړو او دَ مکې بازارکښې خرڅ کړو.حضرت خدیجه رضی الله عنها واخستلو او خوورخې پس ئې نبی کریم ﷺ ته هبیه کړو، حضور ﷺ هغه آزاد کړو او متبنٰی ئې جوړکړو. دَ حضرت زینب رضی الله عنها خاندانی حیثیت ډیر اوچت وو او زیدبن حارثه رضی الله عنه په ظاهره دَ غلامئ داغ اوچت کړې آزاد شوې وو. په دې وجه دَ هغې او دَ هغې دَ رور زید سره دَ نکاح کولو مرضی نه وه. لیکن الله او دَ هغه رسول ﷺ ته منظور وه چه دا قسمه موهوم تفریقات او امتیازات په نکاح کښې رکاوټ جوړنه شی. دَ دې پاره نبی کریم ﷺ زینب او دَ هغې په ورو باندې زور اوکړو چه هغوی دې دانکاح قبوله کړی، هم په هغه وخت آیت نازل شو "وَمَا كَانَ لِمُؤْمِنٍ وَّلَا مُؤْمِنَةٍ إِذَا قَضَى اللّٰهُ وَرَسُولُهٗٓ أَمْرًا أَنْ يَّكُوْنَ لَهُمُ الْخِيَرَةُ مِنْ أَمْرِهِمْ ۗ وَمَنْ يَّعْصِ اللّٰهَ وَرَسُولَهٗ فَقَدْ ضَلَّ ضَلٰلًا مُّبِيْنًا" اودې خلقو خپله مرضی الله تعالی او دَ هغه دَ رسول ﷺ په مرضئ قربان کړله او دَ زیدبن حارثه رضی الله عنه نکاح حضرت زینب رضی الله عنها سره اوشوه. حضرت زینب رضی الله عنها چه دَ زید رضی الله عنه په نکاح کښې راغله نودَ مزاج برابر والی نه وو نو خپل مینځ کښې به چه کله جګړه اوشوه نو زید رضی الله عنه به حضور اکرم ﷺ ته شکایت کولو اوونیل به ئې چه زه هغه پریږدم، حضرت به منع کولو چه زما په خاطر او دَ الله او دَ هغه دَ رسول په حکم سره هغې ته دَ خپلې رضا خلاف ته قبول کړې اوس پریخودل به هغه اودَ هغې رشته داران بله بې عزتی اوګڼړې نو دَ الله نه اوویریږه او په وړو وړو خبرو باندې ورانې مه راوله او ترکومې چه کیدیشی نو دَ کور جوړولو کوشش کوه. کله چه معامله په یو شان هم برابره نشوه او هر وخت جنګ جګړې

---

(۱)(صحیح البخاری:کتاب التوحید باب بلاترجمة:۲/۱۱۰۳-۱۱۰۴)

(۲)(قال القرطبی: قال علماؤنا:قول علی بن الحسین احسن ماقیل فی الایة وهوالذی علیه اهل التحقیق من المفسرین والعلماء الراسخین (البدری الساری:۴/۲۲۰)

کیدې نو ممکن ده چه دَ نبی کریم ﷺ په زړه کښې دا راغلې وی که زید غریبه هغه پریږدی نو دَ زینب دَ زړه ساتنه بغیر دې نه ممکن نه ده چه زه پخپله هغې سره نکاح اوکړم. لیکن دَ جاهلانو او منافقانو دَ بدو خبرو اندیښنه وه چه دَ خپل خوی ښځه ئې کور کښې ساتلې ده. الله تعالی نبی کریم ﷺ خبرکړو چه دَ زینب نکاح تاسو سره کونکې یم، ولې نکاح کښې ورکونکې یم؟ دا پخپله دَ قرآن په الفاظو کښې "لِكَيْلَا يَكُونَ عَلَى الْمُؤْمِنِينَ حَرَجٌ فِي أَزْوَاجِ أَدْعِيَائِهِمْ" صفاصفا ظاهریږی. او کیدیشی چه هم دا حکمت وی چه اول دَ زینب نکاح په زور اچولو سره زید سره اوکړې شوه ځکه چه الله تعالی ته معلومه وه چه دا نکاح به ډیر وخت پورې باقی نه وی، یوڅومصالح مهمه وو چه دَ هغې حاصلولو په دې نکاح پورې زوړند وو. لهٰذا دا چه نبی کریم ﷺ دَ خپل ذاتی خیال، آسمانی پیشن ګوئې اودَ عوامو دَ پیغورونو خیال ساتلو سره شرمیدلو او زید ﷺ ته دَ طلاق مشورې ورکولوسره هم حیاء کوله لیکن دَ الله تعالی خبره خوبه ریښتیا کیدله او دَ هغه حکم تکوینی او تشریعی ضرور وو چه پوره کیدلو به. آخر حضرت زید ﷺ طلاق ورکړو او عدت تیریدلو سره الله تعالی دَ حضور ﷺ نکاح حضرت زینب ﷺ سره اوتړله. دَ دې تقریرنه معلومه شوه چه دَ هغوی په زړه کښې کوم ځیز پټ وو هغه هم دا دَ نکاح پیشن ګوئی او دا خیال وو. (١)-

بعض مفسرینو روایات نقل کړی دی چه دَ نبی کریم ﷺ په زړه کښې کوم ځیز پټ وو هغه دَ زینب ﷺ سره محبت وو او دَ هغې سره محبت شوې وو لیکن دا قسم ټول روایات صحیح نه دی. حافظ ابن حجر ﷺ پورته ذکر شوی تفسیر روایت نقل کولونه پس لیکی: " ووردت آثار اخری، اخرجها ابن ابی حاتم والطبری، ونقلها کثیر من المفسرین لاینبغی التشاغل بها، والذی اوردته منها هو المعتمد، والحاصل ان الذی کان یخفیه النبی صلی الله علیه وسلم هو اخبار الله ایاه انها ستصیر زوجته، والذی کان یحمله علی اخفاء ذلك خشیة قول الناس: تزوج امراة ابنه" (٢)-

## [٢٧٩] بَاب قَوْلِهِ تُرْجِئُ مَنْ تَشَاءُ مِنْهُنَّ وَتُؤْوِي إِلَيْكَ مَنْ تَشَاءُ وَمَنِ ابْتَغَيْتَ مِمَّنْ عَزَلْتَ فَلَا جُنَاحَ عَلَيْكَ

"یعنی روستو ئې کړئې تاسو چه څوك غواړئې هغوی نه خپل ځان سره ځایٔ ورکړئې چاله چه غواړئې او کومې چه دَ خپل ځان نه جدا کړې وې یعنی روستوکړې وې او په هغوی کښې چه څوك غواړې خپل ځان سره اوساته، په تاباندې دې کښې هیڅ ګناه نشته" مقصد دا دې چه قسم بین الازواج تاسو باندې واجب نه دې. لیکن هغوی همیشه انصاف کړې دې او دا دَ هغوی ﷺ دَ طرف نه تبرع وه، صرف دَ حضرت سوده ﷺ دَ عمر دَ زیاتوالی په وجه په آخره کښې خپل نمبر حضرت عائشه ﷺ ته ورکړې وو. دَ دې آیت درې تفسیرونه شوی دی.

(١)(تفسیر عثمانی:۵۶-۵۶۳ فائده نمبر ۵.۳
(٢)(فتح الباری:٨/ ٥٢٤

① تطلق من تشاء وتمسك من تشاء (١)- ② تعتزل من تشاء وتقیم من تشاء (٢)-
③ تقبل من تشاء من الواهبات وتردد من تشاء (٣)- مونږ په ترجمه کښې دوئمه توجیه اختیار کړې ده.

قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ تُرْجِئُ تُؤَخِّرُ أَرْجِئْهُ أَخِّرْهُ

[۴۵۱۰] حَدَّثَنَا زَكَرِيَّاءُ بْنُ يَحْيَى حَدَّثَنَا أَبُو أُسَامَةَ قَالَ هِشَامٌ حَدَّثَنَا عَنْ أَبِيهِ عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا قَالَتْ كُنْتُ أَغَارُ عَلَى اللَّاتِي وَهَبْنَ أَنْفُسَهُنَّ لِرَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَأَقُولُ أَتَهَبُ الْمَرْأَةُ نَفْسَهَا فَلَمَّا أَنْزَلَ اللَّهُ تَعَالَى تُرْجِئُ مَنْ تَشَاءُ مِنْهُنَّ وَتُؤْوِي إِلَيْكَ مَنْ تَشَاءُ وَمَنْ ابْتَغَيْتَ مِمَّنْ عَزَلْتَ فَلَا جُنَاحَ عَلَيْكَ قُلْتُ مَا أُرَى رَبَّكَ إِلَّا يُسَارِعُ فِي هَوَاكَ

[۴۵۱۱] (٤) حَدَّثَنَا حِبَّانُ بْنُ مُوسَى أَخْبَرَنَا عَبْدُ اللَّهِ أَخْبَرَنَا عَاصِمٌ الْأَحْوَلُ عَنْ مُعَاذَةَ عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَسْتَأْذِنُ فِي يَوْمِ الْمَرْأَةِ مِنَّا بَعْدَ أَنْ أُنْزِلَتْ هَذِهِ الْآيَةُ تُرْجِئُ مَنْ تَشَاءُ مِنْهُنَّ وَتُؤْوِي إِلَيْكَ مَنْ تَشَاءُ وَمَنْ ابْتَغَيْتَ مِمَّنْ عَزَلْتَ فَلَا جُنَاحَ عَلَيْكَ فَقُلْتُ لَهَا مَا كُنْتِ تَقُولِينَ قَالَتْ كُنْتُ أَقُولُ لَهُ إِنْ كَانَ ذَاكَ إِلَيَّ فَإِنِّي لَا أُرِيدُ يَا رَسُولَ اللَّهِ أَنْ أُوثِرَ عَلَيْكَ أَحَدًا تَابَعَهُ عَبَّادُ بْنُ عَبَّادٍ سَمِعَ عَاصِمًا

## [۲۸۰] بَاب قَوْلِهِ لَا تَدْخُلُوا بُيُوتَ النَّبِيِّ إِلَّا أَنْ يُؤْذَنَ لَكُمْ

إِلَى طَعَامٍ غَيْرَ نَاظِرِينَ إِنَاهُ وَلَكِنْ إِذَا دُعِيتُمْ فَادْخُلُوا فَإِذَا طَعِمْتُمْ فَانْتَشِرُوا وَلَا مُسْتَأْنِسِينَ لِحَدِيثٍ إِنَّ ذَلِكُمْ كَانَ يُؤْذِي النَّبِيَّ فَيَسْتَحْيِي مِنْكُمْ وَاللَّهُ لَا يَسْتَحْيِي مِنَ الْحَقِّ وَإِذَا سَأَلْتُمُوهُنَّ مَتَاعًا فَاسْأَلُوهُنَّ مِنْ وَرَاءِ حِجَابٍ ذَلِكُمْ أَطْهَرُ لِقُلُوبِكُمْ وَقُلُوبِهِنَّ وَمَا كَانَ لَكُمْ أَنْ تُؤْذُوا رَسُولَ اللَّهِ وَلَا أَنْ تَنْكِحُوا أَزْوَاجَهُ مِنْ بَعْدِهِ أَبَدًا إِنَّ ذَلِكُمْ كَانَ عِنْدَ اللَّهِ عَظِيمًا يُقَالُ إِنَاهُ إِدْرَاكُهُ أَنَى يَأْنِي أَنَاةً فَهُوَ آنٍ

**قوله: يُقَالُ إِنَاهُ إِدْرَاكُهُ أَنَى يَأْنِي أَنَاةً:** آیت کښې دی "يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَا تَدْخُلُوا بُيُوتَ النَّبِيِّ إِلَّا أَنْ يُؤْذَنَ لَكُمْ إِلَى طَعَامٍ غَيْرَ نَاظِرِينَ إِنَاهُ" تاسو د نبی په کور کښې (بغیر بلنې) مه داخلیږئ مګرچه کوم وخت تاسو د خوراك د پاره (د راتلو) اجازت درکړیشی په داسې توګه چه د دې خوراك د تیارې پورې انتظار مه کوئ (یعنی بغیرد بللوخو هډوځئ مه اوکه دعوت وی نو بیا هم

(١) (تفسیر کشاف: ٥٥١/٣
(٢) (تفسیر کشاف: ٥٥١/٣
(٣) (تفسیر کشاف: ٥٥٢/٣
(٤) (واخرجه مسلم فی الطلاق باب بیان ان تخیر المراة لایکون طلاقا الابالنیة رقم الحدیث ١٤٧٦ واخرجه النسائی فی السنن الکبری فی عشرة النساء باب تاویل قول الله تعالی ترجی نمن تشاء منهن رقم الحدیث: ٩٨٢٧ واحرجه ابوداؤد فی کتاب النکاح باب تقسیم بین النساء ٢١٣٦-

ډیر دَ وړاندې نه مه ځنې او کینئی). فرمائی اناه معنی ادرکه یعنی دَ هغې پخیدل، تیاریدل.

انی یانی (ض) انی (کرمی یرمی) دَ وخت راتلل، پخیدل.

د "لعل الساعة تکون قریباً، متعلق یو اشکال او دهغې جواب: دلته په ظاهره یو اشکال کیدیشی چه "الساعة" مونث دې په دې مناسبت سره وړاندې "قریبة" کیدل پکار دی، امام بخاری رحمه الله دَ دې جواب ورکوی چه دا لفظ هغه وخت کښې مونث استعمالیږی چه دا کله دَ مونث صفت وی لیکن که دا صفت نه وی بلکه ضرف او بدل واقع کیږی، نوهغه وخت "قریب" استعالوی او په دې کښې واحد او تثنیه جمع مذکر او مونث ټول برابریږی. مولانا انورشاه کشمیری رحمه الله فرمائی: "الفعیل ان کان نعتاً ففیه فرق بین المؤنث والمذکر، وان کان ظرفاً اوبدلاً، فلافرق بینهما اما اذاکان ظرفاً فظاهر، فان التذکیر والتانیث فی الظرف سواء، واما قوله: او بدلا، فهو ایضاً بمعنی الظرف، والا فهومصدر" (١)- بعض حضراتو وئیلی دی چه مذکوره آیت کښې مضاف محذوف دې اواصل عبارت دې "لعل قیام الساعة تکون قریبا" دَ مضاف رعایت کولوسره "قریبا" مذکر استعمال کړې دې او مضاف الیه رعایت نه "تکون" مونث راوړلې دې. (٢)- والله اعلم

[٤٥١٢] حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا يَحْيَى عَنْ حُمَيْدٍ عَنْ أَنَسٍ قَالَ قَالَ عُمَرُ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قُلْتُ يَا رَسُولَ اللَّهِ يَدْخُلُ عَلَيْكَ الْبَرُّ وَالْفَاجِرُ فَلَوْ أَمَرْتَ أُمَّهَاتِ الْمُؤْمِنِينَ بِالْحِجَابِ فَأَنْزَلَ اللَّهُ آيَةَ الْحِجَابِ

[٤٥١٣، ٤٥١٦] (٣) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ الرَّقَاشِيُّ حَدَّثَنَا مُعْتَمِرُ بْنُ سُلَيْمَانَ قَالَ سَمِعْتُ أَبِي يَقُولُ حَدَّثَنَا أَبُو مِجْلَزٍ عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ لَمَّا تَزَوَّجَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ زَيْنَبَ بِنْتَ جَحْشٍ دَعَا الْقَوْمَ فَطَعِمُوا ثُمَّ جَلَسُوا يَتَحَدَّثُونَ وَإِذَا هُوَ كَأَنَّهُ يَتَهَيَّأُ لِلْقِيَامِ فَلَمْ يَقُومُوا فَلَمَّا رَأَى ذَلِكَ قَامَ فَلَمَّا قَامَ قَامَ مَنْ قَامَ وَقَعَدَ ثَلَاثَةُ نَفَرٍ فَجَاءَ النَّبِيُّ

---

(١)(فیض الباری: ٤/٢٢١

(٢)(فتح الباری: ٨/٥٢٩

(٣)(واخرجه ایضاً فی النکاح باب الصفرة للمتزوج رقم الحدیث (مع الفتح) وفی النکاح باب الهدیة للعروس رقم الحدیث ٥١٦٣: (مع الفتح) وفی النکاح باب الولیمة رقم الحدث ٥١٦٦: (مع الفتح) وایضاً فی النکاح باب ولیمة رقم ٥١٦٨ (مع الفتح) وایضاً فی النکاح ٥١٧٠ (مع الفتح) وایضا فی النکاح باب من اولم علی بعض سنائه اواکثرمن بعض رقم الحدیث ٥١٧١: (مع الفتح) وفی کتاب الاطعمة باب قوله تعالی فاذاطعمتم فانتشروا رقم الحدیث ٥٣٦٦ وفی کتاب الاستیئذان باب اية الحجاب رقم الحدیث ٦٢٣٨: واخرجه مسلم فی النکاح باب زواج زینب بنت جحش ونزول الحجاب رقم الحدیث ١٤٢٨ واخرجه النسائی فی السنن الکبری فی التفسیرباب لاتدخلوابیوت النبی (رقم الحدیث

صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِيَدْخُلَ فَإِذَا الْقَوْمُ جُلُوسٌ ثُمَّ إِنَّهُمْ قَامُوا فَانْطَلَقْتُ فَجِئْتُ فَأَخْبَرْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَّهُمْ قَدِ انْطَلَقُوا فَجَاءَ حَتَّى دَخَلَ فَذَهَبْتُ أَدْخُلُ فَأَلْقَى الْحِجَابَ بَيْنِي وَبَيْنَهُ فَأَنْزَلَ اللَّهُ يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَا تَدْخُلُوا بُيُوتَ النَّبِيِّ الْآيَةَ

[٤٥١٤] حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ حَرْبٍ حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ عَنْ أَيُّوبَ عَنْ أَبِي قِلَابَةَ قَالَ أَنَسُ بْنُ مَالِكٍ أَنَا أَعْلَمُ النَّاسِ بِهَذِهِ الْآيَةِ آيَةِ الْحِجَابِ لَمَّا أُهْدِيَتْ زَيْنَبُ بِنْتُ جَحْشٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا إِلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَتْ مَعَهُ فِي الْبَيْتِ صَنَعَ طَعَامًا وَدَعَا الْقَوْمَ فَقَعَدُوا يَتَحَدَّثُونَ فَجَعَلَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَخْرُجُ ثُمَّ يَرْجِعُ وَهُمْ قُعُودٌ يَتَحَدَّثُونَ فَأَنْزَلَ اللَّهُ تَعَالَى يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَا تَدْخُلُوا بُيُوتَ النَّبِيِّ إِلَّا أَنْ يُؤْذَنَ لَكُمْ إِلَى طَعَامٍ غَيْرَ نَاظِرِينَ إِنَاهُ إِلَى قَوْلِهِ مِنْ وَرَاءِ حِجَابٍ فَضُرِبَ الْحِجَابُ وَقَامَ الْقَوْمُ

[٤٥١٥] حَدَّثَنَا أَبُو مَعْمَرٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَارِثِ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيزِ بْنُ صُهَيْبٍ عَنْ أَنَسٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ بُنِيَ عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِزَيْنَبَ بِنْتِ جَحْشٍ بِخُبْزٍ وَلَحْمٍ فَأُرْسِلْتُ عَلَى الطَّعَامِ دَاعِيًا فَيَجِيءُ قَوْمٌ فَيَأْكُلُونَ وَيَخْرُجُونَ ثُمَّ يَجِيءُ قَوْمٌ فَيَأْكُلُونَ وَيَخْرُجُونَ فَدَعَوْتُ حَتَّى مَا أَجِدُ أَحَدًا أَدْعُو فَقُلْتُ يَا نَبِيَّ اللَّهِ مَا أَجِدُ أَحَدًا أَدْعُوهُ قَالَ ارْفَعُوا طَعَامَكُمْ وَبَقِيَ ثَلَاثَةُ رَهْطٍ يَتَحَدَّثُونَ فِي الْبَيْتِ فَخَرَجَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَانْطَلَقَ إِلَى حُجْرَةِ عَائِشَةَ فَقَالَ السَّلَامُ عَلَيْكُمْ أَهْلَ الْبَيْتِ وَرَحْمَةُ اللَّهِ فَقَالَتْ وَعَلَيْكَ السَّلَامُ وَرَحْمَةُ اللَّهِ كَيْفَ وَجَدْتَ أَهْلَكَ بَارَكَ اللَّهُ لَكَ فَتَقَرَّى حُجَرَ نِسَائِهِ كُلِّهِنَّ يَقُولُ لَهُنَّ كَمَا يَقُولُ لِعَائِشَةَ وَيَقُلْنَ لَهُ كَمَا قَالَتْ عَائِشَةُ ثُمَّ رَجَعَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَإِذَا ثَلَاثَةٌ مِنْ رَهْطٍ فِي الْبَيْتِ يَتَحَدَّثُونَ وَكَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ شَدِيدَ الْحَيَاءِ فَخَرَجَ مُنْطَلِقًا نَحْوَ حُجْرَةِ عَائِشَةَ فَمَا أَدْرِي آخْبَرْتُهُ أَوْ أُخْبِرَ أَنَّ الْقَوْمَ خَرَجُوا فَرَجَعَ حَتَّى إِذَا وَضَعَ رِجْلَهُ فِي أُسْكُفَّةِ الْبَابِ دَاخِلَةً وَأُخْرَى خَارِجَةً أَرْخَى السِّتْرَ بَيْنِي وَبَيْنَهُ وَأُنْزِلَتْ آيَةُ الْحِجَابِ

[٤٥١٦] حَدَّثَنَا إِسْحَاقُ بْنُ مَنْصُورٍ أَخْبَرَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ بَكْرٍ السَّهْمِيُّ حَدَّثَنَا حُمَيْدٌ عَنْ أَنَسٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ أَوْلَمَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حِينَ بَنَى بِزَيْنَبَ بِنْتِ جَحْشٍ فَأَشْبَعَ النَّاسَ خُبْزًا وَلَحْمًا ثُمَّ خَرَجَ إِلَى حُجَرِ أُمَّهَاتِ الْمُؤْمِنِينَ كَمَا كَانَ يَصْنَعُ صَبِيحَةَ بِنَائِهِ فَيُسَلِّمُ عَلَيْهِنَّ وَيُسَلِّمْنَ عَلَيْهِ وَيَدْعُو لَهُنَّ وَيَدْعُونَ لَهُ فَلَمَّا رَجَعَ إِلَى بَيْتِهِ رَأَى رَجُلَيْنِ جَرَى بِهِمَا الْحَدِيثُ فَلَمَّا رَآهُمَا رَجَعَ عَنْ بَيْتِهِ فَلَمَّا رَأَى الرَّجُلَانِ نَبِيَّ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَجَعَ عَنْ بَيْتِهِ وَثَبَا مُسْرِعَيْنِ فَمَا أَدْرِي أَنَا أَخْبَرْتُهُ بِخُرُوجِهِمَا أَمْ أُخْبِرَ فَرَجَعَ حَتَّى دَخَلَ الْبَيْتَ وَأَرْخَى السِّتْرَ بَيْنِي وَبَيْنَهُ وَأُنْزِلَتْ آيَةُ الْحِجَابِ وَقَالَ ابْنُ أَبِي مَرْيَمَ أَخْبَرَنَا يَحْيَى حَدَّثَنِي حُمَيْدٌ سَمِعَ أَنَسًا عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ [٤٨٥٩، ٤٨٦٨، ٤٨٧١، ٤٨٧٣، ٤٨٧٥، ٤٨٧٦، ٥١٤٩، ٥٨٨٤، ٥٨٨٥، ٥٩١٦، وانظر ٤٥٠٩]

**قوله:** وَقَالَ ابْنُ أَبِي مَرْيَمَ أَخْبَرَنَا يَحْيَى حَدَّثَنِي حُمَيْدٌ سَمِعَ أَنَسًا عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ابن ابی مریم نوم سعید بن محمد دے، پورتنی روایت کښې "حمید، عن انس" روایت عنعنه سره دے".... حمید، سمع انسا...." دے تعلیق نقل کولو سره امام خودل غواړی چه "حمید" د سماع تصریح هم منقول ده.

[۴۵۱۷]حَدَّثَنِي زَكَرِيَّاءُ بْنُ يَحْيَى حَدَّثَنَا أَبُو أُسَامَةَ عَنْ هِشَامٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا قَالَتْ خَرَجَتْ سَوْدَةُ بَعْدَمَا ضُرِبَ الْحِجَابُ لِحَاجَتِهَا وَكَانَتِ امْرَأَةً جَسِيمَةً لَا تَخْفَى عَلَى مَنْ يَعْرِفُهَا فَرَآهَا عُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِ فَقَالَ يَا سَوْدَةُ أَمَا وَاللَّهِ مَا تَخْفَيْنَ عَلَيْنَا فَانْظُرِي كَيْفَ تَخْرُجِينَ قَالَتْ فَانْكَفَأَتْ رَاجِعَةً وَرَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي بَيْتِي وَإِنَّهُ لَيَتَعَشَّى وَفِي يَدِهِ عَرْقٌ فَدَخَلَتْ فَقَالَتْ يَا رَسُولَ اللَّهِ إِنِّي خَرَجْتُ لِبَعْضِ حَاجَتِي فَقَالَ لِي عُمَرُ كَذَا وَكَذَا قَالَتْ فَأَوْحَى اللَّهُ إِلَيْهِ ثُمَّ رُفِعَ عَنْهُ وَإِنَّ الْعَرْقَ فِي يَدِهِ مَا وَضَعَهُ فَقَالَ إِنَّهُ قَدْ أُذِنَ لَكُنَّ أَنْ تَخْرُجْنَ لِحَاجَتِكُنَّ

## [۲۸۱]بَاب قَوْلُهُ إِنْ تُبْدُوا شَيْئًا أَوْ تُخْفُوهُ فَإِنَّ اللَّهَ كَانَ بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيمًا

لَا جُنَاحَ عَلَيْهِنَّ فِي آبَائِهِنَّ وَلَا أَبْنَائِهِنَّ وَلَا إِخْوَانِهِنَّ وَلَا أَبْنَاءِ إِخْوَانِهِنَّ وَلَا أَبْنَاءِ أَخَوَاتِهِنَّ وَلَا نِسَائِهِنَّ وَلَا مَا مَلَكَتْ أَيْمَانُهُنَّ وَاتَّقِينَ اللَّهَ إِنَّ اللَّهَ كَانَ عَلَى كُلِّ شَيْءٍ شَهِيدًا

[۴۵۱۸]حَدَّثَنَا أَبُو الْيَمَانِ أَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ حَدَّثَنِي عُرْوَةُ بْنُ الزُّبَيْرِ أَنَّ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا قَالَتِ اسْتَأْذَنَ عَلَيَّ أَفْلَحُ أَخُو أَبِي الْقُعَيْسِ بَعْدَمَا أُنْزِلَ الْحِجَابُ فَقُلْتُ لَا آذَنُ لَهُ حَتَّى أَسْتَأْذِنَ فِيهِ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَإِنَّ أَخَاهُ أَبَا الْقُعَيْسِ لَيْسَ هُوَ أَرْضَعَنِي وَلَكِنْ أَرْضَعَتْنِي امْرَأَةُ أَبِي الْقُعَيْسِ فَدَخَلَ عَلَيَّ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقُلْتُ لَهُ يَا رَسُولَ اللَّهِ إِنَّ أَفْلَحَ أَخَا أَبِي الْقُعَيْسِ اسْتَأْذَنَ فَأَبَيْتُ أَنْ آذَنَ لَهُ حَتَّى أَسْتَأْذِنَكَ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَمَا مَنَعَكِ أَنْ تَأْذَنِي عَمُّكِ قُلْتُ يَا رَسُولَ اللَّهِ إِنَّ الرَّجُلَ لَيْسَ هُوَ أَرْضَعَنِي وَلَكِنْ أَرْضَعَتْنِي امْرَأَةُ أَبِي الْقُعَيْسِ فَقَالَ ائْذَنِي لَهُ فَإِنَّهُ عَمُّكِ تَرِبَتْ يَمِينُكِ قَالَ عُرْوَةُ فَلِذَلِكَ كَانَتْ عَائِشَةُ تَقُولُ حَرِّمُوا مِنَ الرَّضَاعَةِ مَا تُحَرِّمُونَ مِنَ النَّسَبِ[ر: ۱۴۶]

## [۲۸۲]بَاب قَوْلِهِ إِنَّ اللَّهَ وَمَلَائِكَتَهُ يُصَلُّونَ عَلَى النَّبِيِّ يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا صَلُّوا عَلَيْهِ وَسَلِّمُوا تَسْلِيمًا

قَالَ أَبُو الْعَالِيَةِ صَلَاةُ اللَّهِ ثَنَاؤُهُ عَلَيْهِ عِنْدَ الْمَلَائِكَةِ وَصَلَاةُ الْمَلَائِكَةِ الدُّعَاءُ قَالَ ابْنُ

عَبَّاسٍ يُصَلُّونَ يُبَرِّكُونَ لَنُغْرِيَنَّكَ لَنُسَلِّطَنَّكَ

[٤٥١٩] حَدَّثَنِي سَعِيدُ بْنُ يَحْيَى بْنِ سَعِيدٍ حَدَّثَنَا أَبِي حَدَّثَنَا مِسْعَرٌ عَنِ الْحَكَمِ عَنِ ابْنِ أَبِي لَيْلَى عَنْ كَعْبِ بْنِ عُجْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قِيلَ يَا رَسُولَ اللَّهِ أَمَّا السَّلَامُ عَلَيْكَ فَقَدْ عَرَفْنَاهُ فَكَيْفَ الصَّلَاةُ عَلَيْكَ قَالَ قُولُوا اللَّهُمَّ صَلِّ عَلَى مُحَمَّدٍ وَعَلَى آلِ مُحَمَّدٍ كَمَا صَلَّيْتَ عَلَى آلِ إِبْرَاهِيمَ إِنَّكَ حَمِيدٌ مَجِيدٌ اللَّهُمَّ بَارِكْ عَلَى مُحَمَّدٍ وَعَلَى آلِ مُحَمَّدٍ كَمَا بَارَكْتَ عَلَى آلِ إِبْرَاهِيمَ إِنَّكَ حَمِيدٌ مَجِيدٌ

[٤٥٢٠] (١) حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ يُوسُفَ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ قَالَ حَدَّثَنِي ابْنُ الْهَادِ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ خَبَّابٍ عَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ قَالَ قُلْنَا يَا رَسُولَ اللَّهِ هَذَا التَّسْلِيمُ فَكَيْفَ نُصَلِّي عَلَيْكَ قَالَ قُولُوا اللَّهُمَّ صَلِّ عَلَى مُحَمَّدٍ عَبْدِكَ وَرَسُولِكَ كَمَا صَلَّيْتَ عَلَى آلِ إِبْرَاهِيمَ وَبَارِكْ عَلَى مُحَمَّدٍ وَعَلَى آلِ مُحَمَّدٍ كَمَا بَارَكْتَ عَلَى إِبْرَاهِيمَ قَالَ أَبُو صَالِحٍ عَنِ اللَّيْثِ عَلَى مُحَمَّدٍ وَعَلَى آلِ مُحَمَّدٍ كَمَا بَارَكْتَ عَلَى آلِ إِبْرَاهِيمَ حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ حَمْزَةَ حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي حَازِمٍ وَالدَّرَاوَرْدِيُّ عَنْ يَزِيدَ وَقَالَ كَمَا صَلَّيْتَ عَلَى إِبْرَاهِيمَ وَبَارِكْ عَلَى مُحَمَّدٍ وَآلِ مُحَمَّدٍ كَمَا بَارَكْتَ عَلَى إِبْرَاهِيمَ وَآلِ إِبْرَاهِيمَ [٥٩٩٧]

**قوله: لنغرينك: لنسلطنك:** آيت كښې دى ﴿وَالْمُرْجِفُونَ فِي الْمَدِينَةِ لَنُغْرِيَنَّكَ بِهِمْ﴾ فرمائى په دې كښې لنغرينك معنى لنسلطنك يعنى هغه خلق په مدينه كښې افواګانې خوروى (كه هغوى د خپلو حركتونونه منع نه شو) نو مونږ به خامخا تا په هغوى باندې مسلط كړو. په آيت كښې "صلوا" سره د تاكيد د پاره "تسليما" مصدر بيان كړيشوې دې ليكن "صلوا" سره مصدر د تاكيدپه غرض سرد نه دې ذكر شوې.

د دې جواب دا دې چه د آيت په شروع كښې ﴿إِنَّ اللَّهَ وَمَلَٰئِكَتَهُۥ يُصَلُّونَ عَلَى النَّبِيِّ﴾ كښې صلاة ذكرشوې دې اود دې نه اول "ان" راوړلې شوې دې اود الله تعالى او ملائكو په حضور ﷺ باندې درود ليګلو ذكر شويدې، د كوم نه چه د صلاة د عظمت پخپله پته لګى، د دې د پاره "صلوا" نه پس تاكيد د پاره مصدر نه دې راوړلې شوې، په خلاف د سلام چه هلته مصدر د تاكيد د پاره بيان كړيشوې دې.

(١) وايضاً اخرجه فى كتاب الدعوات باب الصلاة على النبى ﷺ رقم ٦٣٥٨ (مع الفتح) وايضاً فى كتاب الانبياء ١/٤٧٧: واخرجه مسلم، باب الصلاة على النبى ﷺ بعد التشهد، رقم الحديث ٦٥: ٦٦و ٦٩ واخرجه ابوداؤد كتاب الصلاة رقم الحديث ٩٧٦: واخرجه النسائى باب كيف الصلوة على النبى ٢/١٩٠: (واخرجه ابن ماجه باب الصلاة على النبى) رقم الحديث ٩٠٥: واخرجه موطا امام مالک باب ماجاء فى الصلوة على النبى) رقم الحديث: ٦٦٦٦-

**دَ درود شریف حکم:** دونم بحث په رسول الله ﷺ باندې دَ درودلیکلو متعلق دې چه دَ دې شرعی څه حکم دې؟

په دې باندې خو ټولو علماؤ اجماع نقل کړیده چه په ټول عمر کښې یو ځل په حضور ﷺ باندې درود لیکلوحکم خو واجب دې او عندذکر النبی صلی الله علیه وسلم مستحب دې، زمونږ دَ فقهاؤ هم دغه مسلك دې، ابوبکر جصاص رحمه الله همدغه رائې ده [۱] او ملاعلی قاری رحمه الله هم دامختارګرځولې دې [۲]

امام طحاوی رحمه الله فرمائی چه حضور ﷺ نوم مبارك کله هم راشی نو درود وئیل واجب دی سره دَ دینه که دَ هغوی ﷺ نوم بار بار ولې نشی اخستلې، علامه زمحشری رحمه الله دا مختارګرځولې دې. [۳] شوافع حضرات نه هم بعض حضرات دَ دې قائل دی، ابوعبدالله چلپی او بعض مالکیه هم دا اختیار کړیده، ابن عربی رحمه الله فرمائیلی دی چه احوط هم دغه دې چه کله دَ هغوی ﷺ نوم مبارك واخستې شی نو ضرور به درود لوستلې شی، علامه قرطبی رحمه الله هم دا دَ احتیاط تقاضا ګرځولې ده. [۴]

**تشهد نه پس د دردشریف حکم:** دونمه مسئله مانځه کښې تشهدنه پس د درود حکم دې، په دې کښې هم اختلاف دې حضرات حنفیه مالکیه او عام علماء رائې دا ده چه تشهد نه پس درودشریف لوستل سنت مؤکده دی. [۵] تشهدنه پس درود لوستلوته فرض وائی، امام احمد رحمه الله هم مشهور روایت همدغه دې، ابوذرعه دمشقی هم دا دَ امام احمد آخری روایت ګرځولې دې، مالکیه کښې ابوبکر بن ابراهیم هم دا اختیار کړې دې. [۶] دینه معلومه شوه چه تشهدنه پس درود لوستلوته صرف امام شافعی رحمه الله فرض نه وائی بلکه هغې سره په دې قول کښې نور علماء هم شریك دی، بعض علماء امام شافعی رحمه الله په دې مسئله کښې منفرد ګرځولې دې. علامه طحاوی، ابن جریر طبری، ابوبکر بن منده، ابوبکر جصاص، قاضی عیاض او علامه خطابی وغیره امام شافعی رحمه الله ته منفرد وئیلې دې. [۷]

---

[۱]) احکام بالقران للجصاص-۳/۳۷۱:

[۲]) المرقاة لملاعلی قاری ۲/۳۳۷: واحکام القران للمفتی محمدشفیع-۳/٤۸۹:

[۳]) قال الزمحشری فی الکشاف ۳/۵۵۸: والذی یقتضیه الاحتیاط الصلوة علیه عندکل ذکر

[۴]) تفصیل دَ پاره اوګورئ الجامع لاحکام القران للقرطبی ۲۳۷-۱٤/۲۳۲: قال ابن القیم فی جلاء الافهام فی الصلاة والسلام علی خیر الانا ۲۱٤ :فقال ابوجعفر الطحاوی وابوعبدالله الحلیمی :نجب الصلاة علیه) کلما ذکراسمه وقال غیر هما :ذلک مستحب ....ثم اختلفوا فقالت فرقة تجب الصلاة علیه فی العمر مرةواحدة وهذامحی عن ابی حنیفة ومالک وقال ابن عبدالبر :وهو قول جمهورا الامة

[۵]) الجماع لاحکام القران -۱٤/۵٤۱:امام شافعی رحمه الله

[۶]) مذاهب دَ پاره اوګورئ المغنی لابن قدامة-۱/۵٤۱:

[۷]) الجامع لاحکام القران ۱٤/۲۳۶:واحکام القران للجصاص-۳/۲۷۱:

**یو اشکال او دَ هغې جوابونه:** دلته یو اشکال کیږی چه "اللهم صل علی محمد..." کښې صلاة علی النبی ته مشبه او صلاة علی ابراهیم لره مشبه به جوړ کړیشوې دې او مشبه به، دَ مشبه نه اقوی او افضل وی، دَ دې قاعدې په رو سره صلاة علی النبی، صلاة علی ابراهیم نه کمه درجه شو، په دې کښې دَ حضرت ابراهیم علیه السلام په نبی کریم ﷺ باندې فضیلت معلومیږی حالانکه حضور اکرم ﷺ افضل الخلائق دې، هغوی ﷺ فرمائیلی دی "اناسید ولد ادم یوم القیامة ولافخر"[1]۔ دَ دې اشکال مختلف جوابونه دی:

① یو جواب دا دې چه دا قاعده چه مشبه، مشبه به نه کم تر او مشبه به اقوی وی، اکثریه ده کلیه نه ده، دلته په نفس صلاة کښې تشبیه مقصود ده، قدرومنزلت کښې نه.[2]

② دوئم جواب دا ورکړیشوې دې چه دا هغوی ﷺ هغه وخت ارشاد فرمائیلې وو کوم وخت چه هغوی ته دَ خپل فضیلت هم علم نه ووشوې.[3]

③ دریم جواب دا ورکړې شو چه "کماصلیت..." کښې کاف تشبیه دَ پاره نه دې بلکه تعلیل دَ پاره دې او مطلب دا دې چه اې الله ! تا په حضرت ابراهیم علیه السلام باندې درود نازل کړیدې نو په رسول الله ﷺ باندې هم درود نازل اوفرمایه.[4]

④ بعض حضراتو وئیلی دی چه دا خبره دَ تحضیض دَ قبیل نه ده او مطلب دا دې چه حضرت محمد ﷺ دَ حضرت ابراهیم علیه السلام نه افضل دې او په ابراهیم علیه السلام باندې درود نازل شوې دې نو حضور ﷺ چه افضل دې په طریقه اولی سره درود نازلیدل پکار دی.[5]

⑤ بعضو وئیلی دی په اصل کښې دا تشبیه المجموع بالمجموع ده، په ځان له توګه حضرت نبی اکرم ﷺ دَ حضرت ابراهیم علیه السلام نه بهتر او افضل دې خو په مجموعی اعتبار سره آل ابراهیم، دَ آل محمد ﷺ نه بهتر او افضل دې.ځکه چه په آل ابراهیم کښې دَ انبیاء کرامو یوه لویه ډله راغلې ده چه دَ هغوی ﷺ په آل کښې نشته. او په آل ابراهیم کښې حضور ﷺ پخپله هم شامل دې.[6]

⑥ بعض علماء وائی چه دا تشبیه "مالایعرف بما یعرف" دَ قبیل نه ده، حضرت ابراهیم علیه السلام

---

[1] )جامع الاصول ۸/۵۲۶:الباب الثالث فی فضائل لنبی صلی الله علیه وسلم

[2] )قال الحافظ فی الفتح، کتاب الدعوات باب صلاة علی لنبی ۱۱/۱۶۱:ان التشبیه انما هو لاصل الصلاة باصل الصلاة لاللقدر بالقدر فهو کقوله :انا او حینا الیک کما اوحینا الی نوح ...ورجح هذاالجواب القرطبی فی المفهم-

[3] )فتح الباری-۸/۵۳۳ :

[4] )فتح الباری کتاب الدعوات باب الصلاة علی النبی صلی الله علیه وسلم-۱۱/۱۶۱:

[5] )فتح الباری-۸/۵۳۳:

[6] )فتح الباری-۸/۵۳۳:

په يهوديانو او نصارى كښې هم معروف وو او په قريشو هم[1] هغه پيژندلو او دَ حضور ﷺ هغه وخت كښې دومره مشهورتيا نه وه شوې، خو بيا هم حضور اكرم ﷺ دَ شهرت په اعتبار سره دَ هغوى نه زيات شو، دَ هغه وخت په اعتبار سره دا تشبيه "مالايعرف بمايعرف" كښې داخليدلې شي.

⑥ اوومه توجيه بعض حضراتو دا كړيده چه "اللهم صلى على محمد..." باندې كلام ختم شو، وړاندې كلام شروع كيږى "وعلى ال محمد كما صليت على ابراهيم وعلى ال ابراهيم" مشبه به ابراهيم او آل ابراهيم دى او مشبه صرف آل محمد ﷺ دې او ښكاره خبره ده چه حضرت ابراهيم او آل ابراهيم دَ آل محمد نه بهتر او افضل دې.[2]

شيخ الاسلام علامه ابن تيميه او ابن القيم رحمهما الله دا جواب ضعيف ګرځولې دې دَ دې دَ پاره چه آل محمد معطوف او محمد معطوف عليه دې، معطوف، معطوف عليه حكم يو وى، يو دَ بل نه په حكم كښې جدا كولې نشى. حافظ ابن حجر رحمه الله توجيهه كولو كوشش سره فرمائى چه دراصل دلته دَ آل محمد نه اول "صل" محذوف دې، تعقدير عبارت دې. "اللهم صل على محمد واصل على ال محمد كما صليت على ابراهيم..." [3] ليكن دا توجيه دَ تكلف نه خالى نه ده ځكه چه دا په دې باندې موقوف دى چه "صل" ضرورت وى نو هغوى ﷺ به صراحتاً ذكر فرمائيلو

**د علامه ابن تيميه په تسامح باندې يوه تنبيه:** علامه ابن تيميه دَ هغوى په اتباع كښې حافظ ابن قيم رحمه الله دعوى كړيده چه په يوه صيغه دَ درود كښې ابراهيم عليه السلام او آل ابراهيم يو ځائې ذكر نه دى راغلى ليكن دا صحيح نه ده ځكه چه دلته په روايت باب كښې دَ دواړو ذكر موجود دې.[4]

**د درود حكم كله نازل شو؟:** حضور اكرم ﷺ باندې درود ليګلو حكم په سنه ۲هجرى كښې راغلې دې، بعضو حضراتو سنه ۶هجرى كښې او حضرت كشميرى رحمه الله سنه ۵هجرى كښې دَ دې دَ نازليدلو قول نقل كړيدې.[5]

---

[1] فتح البارى-۸/۵۳۳:

[2] فتح البارى ۸/۵۳۳: وكتاب الدعوات باب الصلاة على النبى)-۱۱/۱۶۱:

[3] فتح البارى-۸/۵۳۳:

[4] فتح البارى كتاب الدعوات باب الصلاة على النبى ۱۱/۱۵۸: البته هلته صرف دَ ابن القيم رحمه الله دَ طرف نه دا قول منسوب دې او علامه ابن تيميه رحمه الله ليكى..." :فهذه الاحاديث التى فى الصحاح لم اجد فيها ولافى مانقل لفظ "ابراهيم وال ابراهيم ("وانظر فتاوى ابن تيميه ۲۲/٤٥۶:الفقه الصلاة-

[5] قال الحافظ ابوذرالهروى:ان الامربالصلاة والتسليم عليه صلى الله عليه وسلم[بقيه حاشيه په راروانه صفحه

## [۲۸۳] بَاب قَوْلُهُ لَا تَكُونُوا كَالَّذِينَ آذَوْا مُوسَى

[۴۵۲۱] حَدَّثَنَا إِسْحَاقُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ أَخْبَرَنَا رَوْحُ بْنُ عُبَادَةَ حَدَّثَنَا عَوْفٌ عَنِ الْحَسَنِ وَمُحَمَّدٍ وَخِلَاسٍ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ مُوسَى كَانَ رَجُلًا حَيِيًّا وَذَلِكَ قَوْلُهُ تَعَالَى يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَا تَكُونُوا كَالَّذِينَ آذَوْا مُوسَى فَبَرَّأَهُ اللَّهُ مِمَّا قَالُوا وَكَانَ عِنْدَ اللَّهِ وَجِيهًا

## [۲۸۴] بَاب: تفسير سُورَةُ سَبَإٍ

يُقَالُ مُعَاجِزِينَ مُسَابِقِينَ بِمُعْجِزِينَ بِفَائِتِينَ مُعَاجِزِيَّ مُسَابِقِيَّ سَبَقُوا فَاتُوا لَا يُعْجِزُونَ لَا يَفُوتُونَ يَسْبِقُونَا يُعْجِزُونَا وَقَوْلُهُ بِمُعْجِزِينَ بِفَائِتِينَ وَمَعْنَى مُعَاجِزِينَ مُغَالِبِينَ يُرِيدُ كُلُّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا أَنْ يُظْهِرَ عَجْزَ صَاحِبِهِ مِعْشَارٌ عُشْرٌ يُقَالُ الْأُكُلُ الثَّمَرُ بَاعِدْ وَبَعِّدْ وَاحِدٌ وَقَالَ مُجَاهِدٌ لَا يَعْزُبُ لَا يَغِيبُ سَيْلَ الْعَرِمِ السُّدُّ مَاءٌ أَحْمَرُ أَرْسَلَهُ اللَّهُ فِي السُّدِّ فَشَقَّهُ وَهَدَمَهُ وَحَفَرَ الْوَادِيَ فَارْتَفَعَتَا عَنِ الْجَنْبَيْنِ وَغَابَ عَنْهُمَا الْمَاءُ فَيَبِسَتَا وَلَمْ يَكُنِ الْمَاءُ الْأَحْمَرُ مِنَ السُّدِّ وَلَكِنْ كَانَ عَذَابًا أَرْسَلَهُ اللَّهُ عَلَيْهِمْ مِنْ حَيْثُ شَاءَ وَقَالَ عَمْرُو بْنُ شُرَحْبِيلَ الْعَرِمُ الْمُسَنَّاةُ بِلَحْنِ أَهْلِ الْيَمَنِ وَقَالَ غَيْرُهُ الْعَرِمُ الْوَادِي السَّابِغَاتُ الدُّرُوعُ وَقَالَ مُجَاهِدٌ يُجَازَى يُعَاقَبُ أَعِظُكُمْ بِوَاحِدَةٍ بِطَاعَةِ اللَّهِ مَثْنَى وَفُرَادَى وَاحِدٌ وَاثْنَيْنِ التَّنَاوُشُ الرَّدُّ مِنَ الْآخِرَةِ إِلَى الدُّنْيَا وَبَيْنَ مَا يَشْتَهُونَ مِنْ مَالٍ أَوْ وَلَدٍ أَوْ زَهْرَةٍ بِأَشْيَاعِهِمْ بِأَمْثَالِهِمْ وَقَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ كَالْجَوَابِ كَالْجَوْبَةِ مِنَ الْأَرْضِ الْخَمْطُ الْأَرَاكُ وَالْأَثَلُ الطَّرْفَاءُ الْعَرِمُ الشَّدِيدُ

## سورۃ سبا

**د کلماتو تشریح:**

**قوله: يُقَالُ: مُعَاجِزِينَ: مُسَابِقِينَ:** آیت کښې دی ﴿وَالَّذِيْنَ يَسْعَوْنَ فِيْٓ اٰيٰتِنَا مُعٰجِزِيْنَ اُولٰٓئِكَ فِي الْعَذَابِ مُحْضَرُوْنَ﴾ په دې کښې د معاجزین معنی وړاندې کیدونکی، مقابل عاجزه کونکی. د آیت مفهوم دې چه کوم خلق زمونږ آیاتونوته ماتې ورکولو(عاجز کولو) دپاره کوشش کوی داسې خلق به عذاب کښې حاضرکړیشی یعنې د هغوی دا کوشش لکه چه د دې د پاره دې چه هغوی په مونږ په نیولوسره عاجز کړی او د قیامت د حاضرئی او عذاب نه

---

....بقیه ازحاشیه گذشته] وقع فی النسة الثانیة من الهجرة قیل :فی لیلة الاسراء. وانظرالفتوحات الربانیة علی الاذکار النواویة ۳/۲۹۹:کتاب الصلوة علی النبی صلی الله علیه وسلم قال السخاوی فی "القول البدیع فی الصلاة علی الحبیب الشفیع ۴۳ :الباب الاول فی الامر بالصلاة علی رسول الله :ذکرابوذر فیما نسبه شیخناالیه من غیر عزوان الامر بالصلاة علی النبی صلی الله علیه وسلم کان فی السنة الثانیة من الهجرة وقیل فی لیلة الاسراء

به خلاص شي.

**قوله: بِمُعْجِزِينَ: بِفَائِتِينَ:** په سورة عنکبوت کښې دا لفظ راغلې دې ﴿وَمَآ اَنْتُمْ بِمُعْجِزِيْنَ فِي الْاَرْضِ وَلَا فِي السَّمَآءِ﴾ تاسو نه په زمکه کښې عاجز او فوت کونکې ئې او نه په آسمان کښې، د عجزد مادې په مناسبت سره امام بخاری رحمه الله د سورة عنکبوت دا لفظ دلته راوړلې دې.

**قوله: سَبَقُوا: فَاتُوا، لَا يُعْجِزُونَ: لَا يَفُوتُونَ:** دَ سورة انفال دې آيت طرف ته اشاره ده ﴿وَلَا يَحْسَبَنَّ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا سَبَقُوْا ؕ اِنَّهُمْ لَا يُعْجِزُوْنَ﴾ اوکافران خلق دې دانه ګنړی چه هغوی مره شو(نودَ لاس نه اووتل) هغوی به مره کيږی نه (يعنی هغوی مونږ عاجزکولوسره دَ لاس نه نشی وتلې)

**قوله: يَسْبِقُونَا: يُعْجِزُونَا:** په سورة عنکبوت کښې دی ﴿اَمْ حَسِبَ الَّذِيْنَ يَعْمَلُوْنَ السَّيِّاٰتِ اَنْ يَّسْبِقُوْنَا ؕ﴾ دې کښې "يسبقونا" معنی بيان کړه هغوی به مونږ عاجز کړی.

**قوله: مِعْشَارٌ: عُشْرٌ:** آيت مبارك کښې دی ﴿وَمَا بَلَغُوْا مِعْشَارَ مَآ اٰتَيْنٰهُمْ﴾ او دا (مشرکين عرب) هغه سامان کوم چه مونږ دوی ته ورکړې وو لسمې حصې ته هم نشی رسيدلې. فرمائی چه معشار معنی لسمه حصه.

**قوله: بَاعِدْ: وَبَعِّدْ وَاحِدٌ:** آيت کښې دی ﴿بٰعِدْ بَيْنَ اَسْفَارِنَا﴾ وائی اې زمونږ پروردګاره! زمونږ سفرونه اوږده کړه. په دې کښې مشهور قراءت "باعد" دې او ابن کثير قراءت "بعد" دې. فرمائی باعد او بعددواړو يوه معنی ده.

**قوله: لَا يَعْزُبُ: لَا يَغِيبُ:** آيت کښې دی ﴿لَا يَعْزُبُ عَنْهُ مِثْقَالُ ذَرَّةٍ فِي السَّمٰوٰتِ وَلَا فِي الْاَرْضِ﴾ دينه څه دَ ذرې برابر هم غائب نه دی نه په آسمانونوکښې اونه په زمکوکښې. فرمائی لايعزب معنی لايغيب: غائبيدې نشی.

**قوله: الْعَرِمُ: السُّدُّ مَاءٌ أَحْمَرُ:** آيت کښې دی ﴿فَاَعْرَضُوْا فَاَرْسَلْنَا عَلَيْهِمْ سَيْلَ الْعَرِمِ﴾ دې کښې "عرم" ترجمه "سد" سره کړيده. لکه ديوال او بند وائی، اودَ عرم معنی دَ اهل يمن په ژبه کښې "سناة" هم راځی، دَ سناة معنی هم بنداو شپول ده، اودَعرم معنی وادی هم راځی. دلته دَ "السد" وړاندې چه "ماء احمر" بيان کړيشوې دې دا دَ عرم تفسير نه دې بلکه دَ آيت لفظ "سيل العرم" کښې دَ "سيل" تفسير دې. الله تعالی دَ سرو اوبو دَ بند دَ دننه نه اوليګلو، هغه بند اوشلولو او وئی غورزولو او وادی اوکنستله، دَ دې نتيجه دا راؤوتله چه دَ دواړو طرفونو نه هغه باغ خو اوچت شو او دَ اوبو مخ ښکته شوه، اوبه غيبې شوې نو باغ اوچ شو او دا سرې اوبه دَ بنداوبه نه وې بلکه دا دَ الله تعالی عذاب وو چرته چه هغه غوښتل هغه ئې اوليګلو.

**قوله: يُجَازِي: يُعَاقَبُ:** آيت کښې دی ﴿وَهَلْ نُجٰزِيْٓ اِلَّا الْكَفُوْرَ﴾ په دې کښې دَ "نجازی" معنی ده مونږ سزا ورکوو.

قوله: بِوَاحِدَةٍ: بِطَاعَةِ اللّٰهِ: آيت كښې دى (قُلْ إِنَّمَا أَعِظُكُمْ بِوَاحِدَةٍ) فرمائى بواحدة نه دَ الله تعالى اطاعت مراد دې يعنى زه تاسوته دَ الله تعالى دَ اطاعت نصيحت كوم.

قوله: التَّنَاوُشُ: الرَّدُّ مِنَ الْآخِرَةِ إِلَى الدُّنْيَا: آيت كښې دى (وَقَالُوا آمَنَّا بِهِ وَأَنَّى لَهُمُ التَّنَاوُشُ مِنْ مَكَانٍ بَعِيدٍ) فرمائى په دې كښې دَ تناوش معنى ده دَ آخرت نه واپس دنياته راتلل، دَ دې أصل معنى لاس اوچتول او څه څيز اوچتول. (١)- او دا هغه وخت ممكن كيديشى كله چه هغه څيز نزدې وى، مطلب دا دې چه كافر دَ قيامت په ورځ دنيا ته واپس راتلو او دَ ايمان راوړلو خواهش كوى ليكن دَ هغوى دا خواهش به نشى پوره كولې.

قوله: وَبَيْنَ مَا يَشْتَهُونَ: مِنْ مَالٍ أَوْ وَلَدٍ أَوْ زَهْرَةٍ: (وَحِيلَ بَيْنَهُمْ وَبَيْنَ مَا يَشْتَهُونَ كَمَا فُعِلَ بِأَشْيَاعِهِمْ) يعنى په دوى كښې اودَ دوى(ايمان قبلولو) خواهش كښې به يو پرده اوكړې شى لكه څنګه چه دَ دوى سره دَ دوى دَ څكونكو سره به هم دغه سلوك كولې شى. دَ اشياع نه امثال يعنى يوخاىٔ څكونكى خلق مراد دى. مولانا محمدشفيع صاحب رحمه الله ليكى: يعنى هغه خلقو ته چه كوم څيز محبوب او مقصود وو په هغوى اودَ هغه څيز په مينځ كښې پرده راوستلو سره هغوى محروم كړيشو. دا مضمون دَ قيامت په حال باندې هم صادق دې چه په قيامت كښې به داخلق دَ خلاصى او جنت غوښتونكى وى، هلته به نشى رسيدلې.او په دنياكښې دَ مرګ په وخت هم صادق دې چه په دنياكښې دلته دولت او سامان مقصود وو،مرګ دَ دوى دَ دې مطلوب په مينځ كښې پرده كولوسره دَ هغې نه جدا كړل.

(كَمَا فُعِلَ بِأَشْيَاعِهِمْ) اشياع- شيعة جمع ده، دَ يوسړې تابع او هم خيال ته دَ هغه شيعه وائى، مطلب دا چه كوم عذاب هغوى ته وركړيشو چه دَ خپل مطلوب او محبوب نه محروم كړيشو همدغه عذاب به دَ دې وړاندې هم دَ دوى په شان كفريه اعمال كونكو ته وركړې شوې دې. څكه چه دا ټول خلق په شك كښې پريوتلى وو. يعنى دَ رسول الله ﷺ دَ نبوت اوقرآن دَ الله تعالى كتاب كيدلوباندې دَ هغوى يقين او ايمان نه وو. والله سبحانه وتعالى اعلم (٢)

قوله: وَقَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ: كَالْجَوَابِ كَالْجَوْبَةِ مِنَ الْأَرْضِ: آيت كښې دى (يَعْمَلُونَ لَهُ مَا يَشَاءُ مِنْ مَحَارِيبَ وَتَمَاثِيلَ وَجِفَانٍ كَالْجَوَابِ) يعنى هغه پيريانو به دَ حضرت سليمان عليه السلام دَ پاره قلعه ګانې جوړولې، تصويرونو او دَ تالاب او لګن په شان. حضرت ابن عباس رضي الله عنهما فرمائى چه دَ جواب معنى دَ زمكې كنده يعنى حوض، دَ دې مفرد جابية دې، دَ څه معنى چه لوىٔ حوض دې.

(١)قال الراغب فى المفردات ٥٠٩: وتناوش القوم كذا :تناولوه. قال :وانى لهم التناوش اى كيف يتناولون الايمان من مكان بعيد، ولم يكونوا يتناولونه عن قريب فى حين الاختيار والاوالانتفاع بالايمان. اشارة الى قوله :يوم لاينفع نفسا ايمانها

(٢) معارف القران-٧/٣١٤:

**قوله: الْخَمْطُ: الْأَرَاكُ وَالْأَثْلُ الطَّرْفَاءُ:** آیت کښې دی ﴿ذَوَاتَيْ أُكُلٍ خَمْطٍ وَأَثْلٍ وَشَيْءٍ مِّن سِدْرٍ قَلِيلٍ﴾ دوه باغونه دَ ترخومیوو ،جهاؤ،یوقسم ونه ده چه دَ دریاب په غاړه راټوکیږی او پچنی وغیره ترینه جوړیږی) او څه بیرو والا ، فرمائی خمط اراك یعنی دَ مسواك ونه اولاث جهاؤ ونې ته وائی.

## [۲۸۵] بَاب حَتَّى إِذَا فُزِّعَ عَنْ قُلُوبِهِمْ قَالُوا مَاذَا قَالَ رَبُّكُمْ قَالُوا الْحَقَّ وَهُوَ الْعَلِيُّ الْكَبِيرُ

[۴۵۲۲] حَدَّثَنَا الْحُمَيْدِيُّ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ حَدَّثَنَا عَمْرٌو قَالَ سَمِعْتُ عِكْرِمَةَ يَقُولُ سَمِعْتُ أَبَا هُرَيْرَةَ يَقُولُ إِنَّ نَبِيَّ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ إِذَا قَضَى اللَّهُ الْأَمْرَ فِي السَّمَاءِ ضَرَبَتْ الْمَلَائِكَةُ بِأَجْنِحَتِهَا خُضْعَانًا لِقَوْلِهِ كَأَنَّهُ سِلْسِلَةٌ عَلَى صَفْوَانٍ فَإِذَا فُزِّعَ عَنْ قُلُوبِهِمْ قَالُوا مَاذَا قَالَ رَبُّكُمْ قَالُوا لِلَّذِي قَالَ الْحَقَّ وَهُوَ الْعَلِيُّ الْكَبِيرُ فَيَسْمَعُهَا مُسْتَرِقُ السَّمْعِ وَمُسْتَرِقُ السَّمْعِ هَكَذَا بَعْضُهُ فَوْقَ بَعْضٍ وَوَصَفَ سُفْيَانُ بِكَفِّهِ فَحَرَفَهَا وَبَدَّدَ بَيْنَ أَصَابِعِهِ فَيَسْمَعُ الْكَلِمَةَ فَيُلْقِيهَا إِلَى مَنْ تَحْتَهُ ثُمَّ يُلْقِيهَا الْآخَرُ إِلَى مَنْ تَحْتَهُ حَتَّى يُلْقِيَهَا عَلَى لِسَانِ السَّاحِرِ أَوْ الْكَاهِنِ فَرُبَّمَا أَدْرَكَ الشِّهَابُ قَبْلَ أَنْ يُلْقِيَهَا وَرُبَّمَا أَلْقَاهَا قَبْلَ أَنْ يُدْرِكَهُ فَيَكْذِبُ مَعَهَا مِائَةَ كَذْبَةٍ فَيُقَالُ أَلَيْسَ قَدْ قَالَ لَنَا يَوْمَ كَذَا وَكَذَا كَذَا وَكَذَا فَيُصَدَّقُ بِتِلْكَ الْكَلِمَةِ الَّتِي سَمِعَ مِنْ السَّمَاءِ

## [۲۸۶] بَاب قَوْلِهِ إِنْ هُوَ إِلَّا نَذِيرٌ لَكُمْ بَيْنَ يَدَيْ عَذَابٍ شَدِيدٍ

[۴۵۲۳] حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ خَازِمٍ حَدَّثَنَا الْأَعْمَشُ عَنْ عَمْرِو بْنِ مُرَّةَ عَنْ سَعِيدِ بْنِ جُبَيْرٍ عَنْ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا قَالَ صَعِدَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الصَّفَا ذَاتَ يَوْمٍ فَقَالَ يَا صَبَاحَاهْ فَاجْتَمَعَتْ إِلَيْهِ قُرَيْشٌ قَالُوا مَا لَكَ قَالَ أَرَأَيْتُمْ لَوْ أَخْبَرْتُكُمْ أَنَّ الْعَدُوَّ يُصَبِّحُكُمْ أَوْ يُمَسِّيكُمْ أَمَا كُنْتُمْ تُصَدِّقُونِي قَالُوا بَلَى قَالَ فَإِنِّي نَذِيرٌ لَكُمْ بَيْنَ يَدَيْ عَذَابٍ شَدِيدٍ فَقَالَ أَبُو لَهَبٍ تَبًّا لَكَ أَلِهَذَا جَمَعْتَنَا فَأَنْزَلَ اللَّهُ تَبَّتْ يَدَا أَبِي لَهَبٍ

## [۲۸۷] بَاب: تفسير سُورَةُ الْمَلَائِكَةِ (فاطر)

قَالَ مُجَاهِدٌ الْقِطْمِيرُ لِفَافَةُ النَّوَاةِ مُثْقَلَةٌ مُثْقَلَةٌ وَقَالَ غَيْرُهُ الْحَرُورُ بِالنَّهَارِ مَعَ الشَّمْسِ وَقَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ الْحَرُورُ بِاللَّيْلِ وَالسَّمُومُ بِالنَّهَارِ وَغَرَابِيبُ أَشَدُّ سَوَادِ الْغِرْبِيبُ الشَّدِيدُ السَّوَادِ

## الْمَلَائِكَةِ (فاطر)

**قوله: قَالَ مُجَاهِدٌ: الْقِطْمِيرُ لِفَافَةُ النَّوَاةِ:** آیت کښې دی ﴿وَالَّذِينَ تَدْعُونَ مِن دُونِهِ مَا يَمْلِكُونَ

مِنْ قِطْمِيْرٍ﴾ فرمائي چه قطمير دَ هډوکي دپاسه نرئ جلئ ته وائي.

**قوله:** وَقَالَ غَيْرُهُ: الْحَرُوْرُ بِالنَّهَارِ مَعَ الشَّمْسِ وَقَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ: الْحَرُوْرُ بِاللَّيْلِ وَالسَّمُوْمُ بِالنَّهَارِ: آيت مبارك کښې دی ﴿وَمَا يَسْتَوِي الْأَعْمٰى وَالْبَصِيْرُ ۝ وَلَا الظُّلُمٰتُ وَلَا النُّوْرُ ۝ وَلَا الظِّلُّ وَلَا الْحَرُوْرُ ۝﴾ دَمجاهدنه غيرونيلي دی چه حرورهغه ګرمئ ته وائي چه کله دَ ورځې نمر راوتلې وي او حضرت ابن عباس رضي الله عنه فرمائي چه حرورد شپې ګرمئ ته وائي او دَ ورځې ګرمئ ته سموم وائي.

**قوله:** وَغَرَابِيْبُ: أَشَدُّ سَوَادِ الْغِرْبِيْبُ: الشَّدِيْدُ السَّوَادِ: آيت مبارك کښې دی ﴿وَمِنَ الْجِبَالِ جُدَدٌ بِيْضٌ وَّحُمْرٌ مُّخْتَلِفٌ اَلْوَانُهَا وَغَرَابِيْبُ سُوْدٌ ۝﴾ يعنی دَ غرونوپه مينځ کښې لارې دی، سپينې او سرې دَ کومورنګونه چه قسم قسم دی) څه ډيرې سپينې، څه کمې او سرې هم څه زياتې او څه کمې) او سختې تورې. دې کښې الغرابيب جمع ده اودَ دې مفرد الغربيب ده،دَ کوم معنی چه دَ هغه تور شي ده کوم کښې چه دننه شدت موندلې شی. جدد لارو او کرخوته وائي دا دَ جدې جمع ده لکه مدې جمع مدد ده.

## [۲۸۸] باب: تفسير سُوْرَةُ يٰس

وَقَالَ مُجَاهِدٌ فَعَزَّزْنَا شَدَّدْنَا يَا حَسْرَةً عَلَى الْعِبَادِ كَانَ حَسْرَةً عَلَيْهِمْ اسْتِهْزَاؤُهُمْ بِالرُّسُلِ أَنْ تُدْرِكَ الْقَمَرَ لَا يَسْتُرُ ضَوْءُ أَحَدِهِمَا ضَوْءَ الْآخَرِ وَلَا يَنْبَغِي لَهُمَا ذٰلِكَ سَابِقُ النَّهَارِ يَتَطَالَبَانِ حَثِيْثَيْنِ نَسْلَخُ نُخْرِجُ أَحَدَهُمَا مِنَ الْآخَرِ وَيَجْرِي كُلُّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا مِنْ مِثْلِهِ مِنَ الْأَنْعَامِ فَكِهُوْنَ مُعْجَبُوْنَ جُنْدٌ مُحْضَرُوْنَ عِنْدَ الْحِسَابِ وَيُذْكَرُ عَنْ عِكْرِمَةَ الْمَشْحُوْنِ الْمُوْقَرُ وَقَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ طَائِرُكُمْ مَصَائِبُكُمْ يَنْسِلُوْنَ يَخْرُجُوْنَ مَرْقَدِنَا مَخْرَجِنَا أَحْصَيْنَاهُ حَفِظْنَاهُ مَكَانَتِهِمْ وَمَكَانُهُمْ وَاحِدٌ

## سُوْرَةُ يٰس

**د کلماتو تشريح:**

**قوله:** فَعَزَّزْنَا: شَدَّدْنَا: [فَعَزَّزْنَا بِثَالِثٍ] دې کښې عززنا معنی ده مونږ طاقت ورکړو، تائيدمو اوکړو.

**قوله:** يَا حَسْرَةً عَلَى الْعِبَادِ: كَانَ حَسْرَةً عَلَيْهِمْ اسْتِهْزَاؤُهُمْ بِالرُّسُلِ: آيت کښې دی ﴿يٰحَسْرَةً عَلَى الْعِبَادِ مَا يَأْتِيْهِمْ مِّنْ رَّسُوْلٍ اِلَّا كَانُوْا بِهٖ يَسْتَهْزِءُوْنَ ۝﴾ په دې کښې چاته وهم کيديشی چه الله تعالی حسرت راوګوښتلو دَ څه چه په ظاهره هيڅ معنی په پوهه کښې نه راځی. امام بخاری رحمه الله دا وهم لرې کولوسره فرمائي چه دا حسرت به پخپله کافرانوته وی چه هغوی په دنياکښې دَ انبياء کرامو او رسولانو پورې ټوقې مسخرې کولې.

"يا حسرةً على العباد،، د چا مقوله ده؟: ضحاك رحمه الله فرمائي چه دا دَ فرښتو قول دې کله چه

هغوی اوکتل چه کافرانو دَ انبياء کرامو تکذيب اوکړو نو هغوی په دوی باندې افسوس اوکړو. بعضو وئيل چه دا دَ هغه مردمؤمن قول دې دَ چانوم چه حبيب وو او دَ مرسلينويه تائيد او حمايت کښې به دَ مکذبينوڈ پوهه کولو دَ پاره دَ اقصى مدينې نه په منډه راغلې وو، کله چه قوم هغه قتل کول غوښتل نو هغه وخت هغه دا جمله وئيلې وه) اقصى مدينه کښې دَ مدينې نه مراد اکثرو حضراتو انطاکيه اخستې ده) بعض وائي چه دَ هغه دريو رسولانوقول دې چه هغه قوم ته ليګلي شوی وو، کله چه هغوی قوم ته اوکتل چه هغوی دا مردمؤمن قتل کړو اودَ هغې په بدله کښې په قوم باندې عذاب راغلو نو هغه وخت هغوی (يَحَسْرَةً عَلَى الْعِبَادِ) اووئيل. او بعضو وئيلی دی چه دَ قيامت په ورځ کله کافران دَ عذاب نبني اووينی نو هغه وخت دَ ډيرې ملامتيا او بې بسئی په حالت کښې دا مذکوره جمله به وائی، يا هغوی په عذاب کښې راګيرليدلو سره مؤمنان او فرښتې به دا الفاظ وائی ([1]) په دې ټولو اقوالوکښې هيڅ تعارض نشته او دا ټول جمع کيدې شی.

**قوله:** أَنْ تُدْرِكَ الْقَمَرَ: لَا يَسْتُرُ ضَوْءُ أَحَدِهِمَا ضَوْءَ الْآخَرِ وَلَا يَنْبَغِي لَهُمَا ذَلِكَ: (لَا الشَّمْسُ يَنْبَغِي لَهَا أَنْ تُدْرِكَ الْقَمَرَ وَلَا الَّيْلُ سَابِقُ النَّهَارِ) دې کښې (أَنْ تُدْرِكَ الْقَمَرَ) مطلب دا دې چه په نمر او سپوږمئی کښې يو دَ بل رڼا نشی پټولې او په دې کښې دَ هر يو دَ پاره يو حدمقرر دې دَ دې دَ پاره دَ يو رڼا دَ بل په رڼا کښې حائل کيدل دَ هغوی دَ مقرر شوی نظام دشان سره مناسب نه دی، دغه شان شپه دَ ورځ نه وړاندې نشی راتلې.

**قوله:** نَسْلَخُ: نُخْرِجُ أَحَدَهُمَا مِنَ الْآخَرِ وَيَجْرِي كُلُّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا: آيت کښې دی (وَآيَةٌ لَهُمُ الَّيْلُ نَسْلَخُ مِنْهُ النَّهَارَ فَإِذَا هُمْ مُظْلِمُونَ) اويوه نښه دَ هغه خلقو دَ پاره شپه ده، مونږ په دې باندې ورځ راکاږو او ناڅاپه هغه خلق په تياروکښې پاتې شی. دَ شپې نه ورځ راويستل، دا کلام په تشبيه باندې بنا دې، مشبه "کشف الضوء من الليل" دې او مشبه به "کشف الجلد عن الشاة" دَ بکرئی نه څرمن ويستل) اووجه دَ تشبيه دَ يو په بل باندې توارد دې، څنګه چه په شاة باندې جلد واردکيږی ټيک دغه شان نهار دَ ليل دَ پاسه واردکيږی. مشبه او مشبه به دواړه حسی دی او جامع يعنی وجه تشبيه عقلی ده او مطلب دا دې چه دَ شپې دَ پاسه مونږ غلاف ضوء خورکړې ساتلې دې کله چه هغه دَ ورځ غلاف مونږ راکاږو نو هغه ناڅاپه تياروته اورسی.([2])بعض حضراتووئيلی چه مشبه "اخراج ضوء سالنهار من الليل" دې اومشبه به "اخراج الشاة من الجلد" دې. او مطلب دا دې چه تياره او شپه اصل دې الله تعالى دَ دې تيارې نه دَ ورځې رڼا راوباسی څنګه چه دَ څرمن نه بکرئی راويستلې شی دَ شپې دَ تيارې نه دَ ورځې

[1] دَ مذکوره څلورو اقوالو دَپاره اوګورئ: الجامع لاحکام القران-١٥/٣٣:

[2] قال الزمخشری فی الکشاف ٤/١٦: سلخ جلد الشاة: اذاکشطه عنها وازاله ...فاشتعير لازالة الضوء وکشفه عن مکان الليل وملی ظله. وانظر روح المعانی-١٠/٢٣:

رنړا راویستل بیشکه د الله تعالی د قدرت کامله یوه کرشمه ده.

**قوله: مِنْ مِثْلِهِ: مِنَ الْأَنْعَامِ:** (وَخَلَقْنَا لَهُمْ مِنْ مِثْلِهِ مَا يَرْكَبُونَ) فرمائی من مثله نه خاروی او څناور مراد دی یعنی مونږ د هغوی د پاره د کشتئی په شان څیزونه پیدا کړل په کوموچه خلق سوریږی (لکه اوښ، اس وغیره)

**قوله: فَكِهُونَ: مُعْجَبُونَ:** آیت مبارك کښې دی (اِنَّ اَصْحٰبَ الْجَنَّةِ الْيَوْمَ فِيْ شُغُلٍ فٰكِهُوْنَ) جنتیان به بیشکه په هغه ورځ به خپلو شغلونوکښې خوشحاله وی. فرمائی **فکهون** معنی خوشحاله به وی.

**قوله: جُنْدٌ مُحْضَرُونَ: عِنْدَ الْحِسَابِ:** آیت کښې دی (لَا يَسْتَطِيْعُوْنَ نَصْرَهُمْ وَهُمْ لَهُمْ جُنْدٌ مُحْضَرُوْنَ) هغه د دوی هیڅ امداد نشی کولې او هغه(معبودان) به د دوی په حق کښې یو مخالف ډله شی چه حاضرولې به شی. فرمائی دا اصنام یعنی بتان به د حساب په وخت کښې حاضرولې شی.

**قوله: وَيُذْكَرُ عَنْ عِكْرِمَةَ: الْمَشْحُونِ الْمُوقَرُ:** (وَاٰيَةٌ لَّهُمْ اَنَّا حَمَلْنَا ذُرِّيَّتَهُمْ فِي الْفُلْكِ الْمَشْحُوْنِ) د حضرت عکرمه نه نقل دی چه مشحون معنی بارکړې شوې ، ډك شوې.

**قوله: طَائِرُكُمْ: مَصَائِبُكُمْ:** آیت کښې دی (قَالُوْا طَآئِرُكُمْ مَّعَكُمْ) هغوی وائی چه ستاسو سپیره والې به هم تاسو سره وی. فرمائی چه د طائرکم نه مصائب مراد دی یعنی ستاسو مصیبتونه به هم تاسو سره وی.

**قوله: يَنْسِلُونَ: يَخْرُجُونَ:** (وَنُفِخَ فِي الصُّوْرِ فَاِذَا هُمْ مِّنَ الْاَجْدَاثِ اِلٰى رَبِّهِمْ يَنْسِلُوْنَ) او دوباره به شپیلئی پوکوهلې شی نو ټول به د خپل رب طرف ته د قبرونونه راوځی. دې کښې ینسلون معنی ده هغوی به راوځی.

**قوله: مَرْقَدِنَا: مَخْرَجِنَا:** آیت کښې دی (قَالُوْا يٰوَيْلَنَا مَنْ بَعَثَنَا مِنْ مَّرْقَدِنَا) وائی به چه افسوس زمونږه بربادی مونږ د خپل مرقد نه چا راپاڅولو د مرقد نه مراد مخرج یعنی قبر. دلته اشکال کیږی چه کافرانو خو به په قبر کښې هم په عذاب کښې اخته وی نوبیا د هغوی د دوباره ژوندی کیدو په وخت کښې افسوس کول څه معنی لری؟ دینه خو به ظاهره دامعلومیږی چه هغوی د بعث نه اول په عذاب کښې گرفتار نه وو. حضرت کشمیری رحمه الله فرمائی چه د ړومبئی شپیلئی په وخت کښې به په ټولو ارواحانود خوب حالت شروع کړیشی او دا وخت به د خلوینښتوکالوموده وی. دینه پس به د ژوندی کیدو شپیلئی وی کوم سره چه به ټول روحونه ژوندی کړیشی نو هغه وخت به کافران وائی (يٰوَيْلَنَا مَنْ بَعَثَنَا مِنْ مَّرْقَدِنَا) د مرقد نه د دوو نفخو په مینځ کښې دغه زمانه مراد ده، حضرت لیکی: "قیل: وان الکفار فی العذاب، فاین المرقد؟ والجواب ان الارواح یصعقن بعد النفخ اربعین سنة، ثم یفقن بعد نفخة الاحیاء، فذلك قولهم: "من بعثنا من مرقدنا" وهکذا عند البخاری عن ابی هریرة: ص۷۱۱، ج۲، طبع الهند. فی

**باب قوله: ونفخ في الصور** (۱) دوئم جواب دا ورکړیدې چه کافران خو به په قبرکښې په عذاب کښې اخته وی لیکن چه د قیامت هیبتناك منظر اوګوری نو قبر به اهون اوګنړی او خوب سره به تشبیه ورکړی. (۲)

**قوله: أَحْصَيْنَاهُ: حَفِظْنَاهُ:** ﴿وَكُلَّ شَيْءٍ أَحْصَيْنَاهُ فِي إِمَامٍ مُبِينٍ﴾ احصینا معنی مونږ محفوظ کړل یعنی هرڅیز په یوواضح کتاب (لوح محفوظ) کښې مونږ محفوظ کړی دی.

**قوله: مَكَانَتِهِمْ وَمَكَانُهُمْ وَاحِدٌ:** ﴿وَلَوْ نَشَاءُ لَمَسَخْنَاهُمْ عَلَى مَكَانَتِهِمْ﴾ فرمائی چه مکانة او مکان دواړو یوه معنی ده.

## [۲۸۹] بَاب وَالشَّمْسُ تَجْرِي لِمُسْتَقَرٍّ لَهَا ذَلِكَ تَقْدِيرُ الْعَزِيزِ الْعَلِيمِ

[۴۵۲۴| ۴۵۲۵] حَدَّثَنَا أَبُو نُعَيْمٍ حَدَّثَنَا الْأَعْمَشُ عَنْ إِبْرَاهِيمَ التَّيْمِيِّ عَنْ أَبِيهِ عَنْ أَبِي ذَرٍّ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ كُنْتُ مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي الْمَسْجِدِ عِنْدَ غُرُوبِ الشَّمْسِ فَقَالَ يَا أَبَا ذَرٍّ أَتَدْرِي أَيْنَ تَغْرُبُ الشَّمْسُ قُلْتُ اللَّهُ وَرَسُولُهُ أَعْلَمُ قَالَ فَإِنَّهَا تَذْهَبُ حَتَّى تَسْجُدَ تَحْتَ الْعَرْشِ فَذَلِكَ قَوْلُهُ تَعَالَى وَالشَّمْسُ تَجْرِي لِمُسْتَقَرٍّ لَهَا ذَلِكَ تَقْدِيرُ الْعَزِيزِ الْعَلِيمِ

[۴۵۲۵] حَدَّثَنَا الْحُمَيْدِيُّ حَدَّثَنَا وَكِيعٌ حَدَّثَنَا الْأَعْمَشُ عَنْ إِبْرَاهِيمَ التَّيْمِيِّ عَنْ أَبِيهِ عَنْ أَبِي ذَرٍّ قَالَ سَأَلْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ قَوْلِهِ تَعَالَى وَالشَّمْسُ تَجْرِي لِمُسْتَقَرٍّ لَهَا قَالَ مُسْتَقَرُّهَا تَحْتَ الْعَرْشِ [ر: ۳۰۲۷]

اونمر د خپل مستقر طرف ته روان دې. مستقر نه هغه ځائ هم مراد اخستې شی چرته چه په تلوياندې آخرنمر اودريږی او هغه وخت هم کيدېشی کله چه نمر خپل حرکت پوره کړی اودريږی هغه وخت د قيامت ورځ ده.په دې صورت کښې به د آيت مطلب دا وی چه نمر په خپل مدارکښې په يومحکم نظام باندې د زرګونوکالونو راسې حرکت کوی ليکن د ده دا حرکت مستقل او دائمی نه دې د ده د پاره يو خاص مستقر او د قرار وخت دې. کله چه هغه وخت راورسی نو د ده حرکت به ختم شی او هغه به د قيامت ورځ وی. د دې تائيدد سورة زمر د دې آيت نه هم کيږی ﴿وَالْقَمَرَ كُلٌّ يَجْرِي لِأَجَلٍ مُسَمًّى﴾ دې کښې اجل مسمی نه قيامت مراد ليکن دلته امام بخاری کوم رويت ذکرکړې دهغې نه معلوميږی (۳) چه دلته په باب کښې کوم روايت ذکر کړيدې هغې نه معلوميږی چه په آيت باب کښې "مستقر" نه مستقر زمانی نه چه مستقرمکانی مراد دې. نبی کريم ﷺ حضرت ابوذرغفاری) ته خطاب کولوسره اوفرمائيل چه نمر روان وی تردې چه هغه تحت عرش ته اورسی نو سجده کوی بيائې

---

(۱) فيض الباری -۲۲۳/٤:

(۲)) تفسيرعثمانی ۵۹۱:فائده نمبر-۷

((۳ تفسير ابن کثير ۳/۵۷:)

اوفرمائيل چه په دې آيت کښې د مستقر نه همدغه مراد دې ﴿وَالشَّمْسُ تَجْرِيْ لِمُسْتَقَرٍّ لَّهَا﴾
عبدالرزاق آيت باب متعلق د حضرت ابن عمرو ﷺ نه هم يو روايت نقل کړيدې د هغې الفاظ دا دی: "ان الشمس تطلع فترده ذنوب بنى آدم، حتى اذا غربت، سلمت، وسجدت، واستاذنت، فيؤذن لها، حتى اذا كان يوم غربت، فسلمت، وسجدت، واستاذنت فلا يؤذن لها، فتقول: ان المسير بعيد، وانى ان لايؤذن لى لا ابلغ، فتحبس ماشاء الله ان تحبس، ثم يقال لها: اطلعى من حيث غربت، قال: فمن يومئذ الى يوم القيامة، ﴿لَا يَنفَعُ نَفْسًا إِيمَانُهَا لَمْ تَكُنْ آمَنَتْ مِن قَبْلُ أَوْ كَسَبَتْ فِي إِيمَانِهَا خَيْرًا﴾،[1]

**دسجود شمس تحقيق او روايت باندې وارد کيدو نکی اشکالات او د هغې جوابونه:** په دې حديث کښې "سجود شمس" تذکره شويده. د جديد فلکياتو تحقيقات او مشاهدات په رو سره په دې باندې يو څو اشکالات کيږي.

① ړومبې اشکال دا کيږی چه نمر په يوځائ ډوبيږی نو هم هغه وخت په بل ځائ کښې راخيژی. د نمر ډوبيدل او راختل هروخت روان وی، خو د حديث نه دا مفهوم په پوهه کښې راځی چه په پوره دنيا کښې نمر په يووخت ډوبيږی او د اجازت ملاويدونه پس بياځپل سفر شروع کوی او راخيژی حالانکه دا د مشاهدې نه خلاف ده.
د دې اشکال جواب دا ورکړيشو چه دلته د نمر د ډوبيدونه د ټولې دنيا ډوبيدل مراد نه دی بلکه د دنيا د لوئ حصې ډوبيدل مراد دی. يعنی هغه مقام چرته چه په ډوبيدو باندې د دنيا په اکثر آبادئی کښې ډوبيږی يا د دې نه د خط استواء ډوبيدل مراد دی او يا د افق مدينې ډوبيدل مراد دی او مطلب دا دې چه نمردا سجده اود ډوبيدو اجازت معظم معموره. ياد خط استواء ډوبيدل او يا د افق مدينه د ډوبيدلووخت طلب کوی. ([2])

② دونم اشکال دا کيږی چه د عرش رحمن کوم تفصيل د قرآن او حديث نه معلوميږی د هغې په رو سره عرش ټول آسمانونه او کائنات سماويه باندې محيط دې په دې لحاظ نمرخو هميشه په هر حال او هروخت کښې د عرش لاندې دې او د حديث نه معلوميږی چه صرف د ډوبيدو په وخت کښې د عرش لاندې ځی.
د دې جواب دا دې چه د ډوبيدو په وخت کښې د عرش لاندې راتلل ده له مستلزم نه دی چه باقی وخت کښې هغه د عرش د لاندې نه وی، دا قيد احترازی نه دې قيد واقعی دې.
نو حضرت حکيم الامت تهانوی رحمه الله ليکی: "د دې جواب دا دې چه ممکنه ده چه دا قيد واقعی وی او اصلی مقصود اخبار عن السجده وی اود دې تعبيرنه دا فائده وی چه د دې نه تحت الامرالالهی کيدلو تصريح اوشوه ځکه چه د استواء علی العرش کنايه کيدل د نفاذ احکام او تصرفات نه په آيات عديده کښې ذکر دی" ([3])

[1]) تفسيرابن کثير-۳/۵۷۱:
[2])بيان القران-۹/۱۱۱:
[3])بيان القران-۹/۱۱۱:

④ دريم اشكال دا دې چه دَ دې حديث دَ ظاهر نه معلوميږي چه نمر خپل مستقر باندې رسيدلو سره سجده کوي، بيا اجازت غواړي، دغه شان هغه وقفه کوي حالانکه دَ نمر وقفه علم فلکيات اودَ مشاهدې په رو سره صحيح نه ده، دَ ده حرکت دائمي او مسلسل دې.
دَ دې جواب دا دې چه دَ هرڅيز سجده دَ هغه دَ حال مناسب وي لکه چه قرآن پخپله تصريح فرمائيلې ده "كُلٌّ قَدْ عَلِمَ صَلَاتَهُ وَتَسْبِيحَهُ" دَ دې دَ پاره دَ نمر دَ سجدې دا معنی گڼړل چه هغه دَ انسان په شان سجده کوي صحيح نه ده. حضرت تهانوي رحمه الله ليکي: " سجده بالمعنی مذکوره دَ پاره اول خو انقطاع حرکت ضروري نه دې، بل ممکن دی چه دا سکون آني وي او حرکت زماني وي، دَ دې د پاره حساب رصدی مختل کيږي نه، او نه هغه منضبط او مدرك کيږي".(۱)
علامه شبيراحمد عثماني رحمه الله په دې باره کښې يوه مستقل مقاله ليکلې ده او مولانامفتي محمد شفيع صاحب رحمه الله "معارف القرآن" کښې دَ دې خلاصه نقل کړېده. هغوی په يو بل انداز سره د حديث مفهوم بيان کړيدې دَ کوم حاصل چه دا دې.
په حديث کښې چه دا خودلې شوی دی چه نمر دَ ډوبيدونه پس دَ عرش لاندې الله تعالی ته سجده کوي او بيا دَ بل دور شروع کولو اجازت غواړي او دَ اجازت ملاويدو نه پس وړاندې تګ کوي او سحر دَ مشرق طرف نه راخيژي، دَ دې مقصد دَ دې نه زيات نه دې چه نمر دَ راختو او ډوبيدو په وخت کښې دَ دنيا په عالم کښې يو نوي انقلاب راځي دَ کوم مدار چه په نمر باندې دې. رسول الله ﷺ دا انقلابي وخت دَ انسان دَ خبرداری دَ پاره موزون ګڼړلو سره دا تلقين اوفرمائيلو چه دا نمر په خپله مرضئی سره په خپل قدرت سره ګرځيدونکې مه ګڼړئی دا صرف دَ الله تعالی په رضا او اجازت سره روان دې، دَ ده هر ځل راختل او ډوبيدل دَ الله تعالی په اجازت سره کيږي. دا دَ هغه دَ اجازت تابع دې، دَ ده حکم منونکې حرکت کول هم دَ ده سجده ګرځولې شويده. خلاصه دا چه دَ نمرد ډوبيدو تخصيص او دې نه پس دَ عرش لاندې تلل اوهلته سجده کول او دَ وړاندې تلو اجازت غوښتلو کوم واقعات په دې روايت کښې خودلې شوی دی هغه دَ پيغمبرانه موثر تعليم مناسب بالکل دَ عام خلقو دَ نظر په اعتبار سره يو تمثيل دې. نه دينه دا لازميږي چه هغه دَ انسان په شان په زمکه سجده کوي، اونه دَ سجدې کولو په وخت کښې دَ نمر په حرکت کښې څه وقفه کيدل لازم راځي. او نه دا مراد دی چه هغه په شپه ورځ کښې يوه سجده په يوخاص ځائ کښې کوي، اونه دا چه صرف دَ ډوبيدو په وخت کښې د عرش دَ لاندې ځي، مګر په دې انقلابي وخت کښې کله چه ټول خلق داويني چه نمر زمونږ نه غائب شو هغه وخت دَ تمثيل په توګه هغوی په دې حقيقت باندې خبر کړيشو چه دا څه کيږي په حقيقت کښې نمر دَ عرش لاندې دَ فرمان تابع تلوراتلوسره کيږي، نمر پخپله څه قدرت او طاقت نه لري، نو څنګه چه دې وخت کښې د مدينې خلق په خپل ځائ کښې دا محسوس کوي چه اوس به نمر سجده کوي او دَ بلې

(۱) بيان القران-۱۱۱/۹:

دوزي د پاره به اجازت غواړي، نو دغه شان چرته چه دې دوبیږي د تولود پاره د سبق حاصلولو تلقین اوشو اود معاملې حقیقت دا راؤتلو چه نمر په خپل مدار کښې د حرکت په مینځ کښې په هره لمحه الله تعالی ته سجده هم کوي او د وړاندې تلو اجازت هم غواړي اود دې سجدې کولو او اجازت غوښتلو د پاره هغه ته د سکون او وقفې ضرورت هم نه وي.(۱)
په دې تقریر سره په ذکر شوي حدیث کښې نه د مشاهداتو په رو سره څه شبه کیږي او نه قواعد هئیت او ریاضی په اعتبار سره څه شبه او اشکال باقي پاتې کیږي.

## [۲۹۰] باب: تفسیر سورة الصافات

وَقَالَ مُجَاهِدٌ (وَيَقْذِفُونَ بِالْغَيْبِ مِنْ مَكَانٍ بَعِيدٍ) مِنْ كُلِّ مَكَانٍ (وَيُقْذَفُونَ مِنْ كُلِّ جَانِبٍ) يُرْمَوْنَ (وَاصِبٌ) دَائِمٌ، لَازِبٌ لَازِمٌ (تَأْتُونَنَا عَنِ الْيَمِينِ) يَعْنِي الْحَقَّ الْكُفَّارُ تَقُولُهُ لِلشَّيْطَانِ (غَوْلٌ) وَجَعُ بَطْنٍ (يُنْزَفُونَ) لَا تَذْهَبُ عُقُولُهُمْ (قَرِينٌ) شَيْطَانٌ (يُهْرَعُونَ) كَهَيْئَةِ الْهَرْوَلَةِ (يَزِفُّونَ) النَّسَلَانُ فِي الْمَشْيِ (وَبَيْنَ الْجِنَّةِ نَسَبًا) قَالَ كُفَّارُ قُرَيْشٍ الْمَلَائِكَةُ بَنَاتُ اللَّهِ وَأُمَّهَاتُهُمْ بَنَاتُ سَرَوَاتِ الْجِنِّ، وَقَالَ اللَّهُ تَعَالَى (وَلَقَدْ عَلِمَتِ الْجِنَّةُ إِنَّهُمْ لَمُحْضَرُونَ) سَتُحْضَرُ لِلْحِسَابِ. وَقَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ (لَنَحْنُ الصَّافُّونَ) الْمَلَائِكَةُ (صِرَاطِ الْجَحِيمِ) سَوَاءِ الْجَحِيمِ وَوَسَطِ الْجَحِيمِ (لَشَوْبًا) يُخْلَطُ طَعَامُهُمْ وَيُسَاطُ بِالْحَمِيمِ (مَدْحُورًا) مَطْرُودًا (بَيْضٌ مَكْنُونٌ) اللُّؤْلُؤُ الْمَكْنُونُ (وَتَرَكْنَا عَلَيْهِ فِي الْآخِرِينَ) يُذْكَرُ بِخَيْرٍ (يَسْتَسْخِرُونَ) يَسْخَرُونَ (بَعْلًا) رَبًّا

## سورة الصافات

**قوله: وقال مجاهد: وَيَقْذِفُونَ بِالْغَيْبِ مِنْ مَكَانٍ بَعِيدٍ من كل مكان:**

د سورة الصافات آیت ﴿وَيُقْذَفُونَ مِنْ كُلِّ جَانِبٍ﴾ مات شوي ستوري راغورزولې شي په دوی باندې د هرطرف نه، په مناسبت سره امام بخاري رحمه الله د سورة سبا آیت ذکر کړو او دا د امام طریقه ده چه هغه په معمولی مناسبت سره د مختلفو سورتونو الفاظ یوځای ذکر کوي، البته دلته اشکال کیږي چه امام د سورة سبا په آیت کښې "من مكان بعيد" مطلب د مجاهد رحمه الله په حواله سره "من كل مكان" بیان کړیدې چه په عموم باندې دلالت کوي حالانکه د سورة سبا په مذکوره آیت کښې په عموم باندې دلالت کونکې یو لفظ هم نشته.البته سورة الصافات مذکوره آیت "وَيُقْذَفُونَ مِنْ كُلِّ جَانِبٍ" کښې "من كل جانب" تفسیر د مجاهد رحمه الله نه "من كل مكان" نقل دې. دغه شان علامه سیوطي رحمه الله په درمنثور کښې عبد بن حمید، طبري، او ابن المنذر په حواله سره د حضرت مجاهد رحمه الله دا تفسیر د سورة الصافات د دې آیت په

(۱) رساله سجود شمس، ومعارف الران-۷/۳۹۲:

ضمن کښې نقل کړیدي. (١)دینه په ظاهره دا معلومیږی چه امام بخاری رحمه الله "من کل مکان" ته سورة الصافات آیت تشریح کښې ذکر کول غوښتل لیکن غلطئی سره سورة سبا آیت تفسیر کښې دا ذکر کړلو.

**د کلماتو تشریح:**

**قوله: واصب: دائم:** ﴿وَلَهُمْ عَذَابٌ وَّاصِبٌ﴾واصب معنی همیشه.

**قوله: لازب: لازم:** ﴿إِنَّا خَلَقْنٰهُمْ مِّنْ طِيْنٍ لَّازِبٍ﴾ مونږ هغه دَ اینختونکې خاورې نه پیدا کړو، فرمائی چه لازب معنی لازم یعنی ایختونکې

**قوله: تأتوننا عن الیمین: یعنی الحق الکفار تقوله للشیطان:** آیت کښې دی ﴿قَالُوْٓا إِنَّكُمْ كُنْتُمْ تَأْتُوْنَنَا عَنِ الْيَمِيْنِ﴾ فرمائی چه په دې کښې یمین په معنی دَ حق دې او مطلب دا دې چه میدان حشر کښې کفار به شیطانانوته وائی چه ته به مونږ ته دَ حق خبرې دَ طرف نه راتلې، یعنی خپله باطله خبره به دې دَ حق په شکل کښې ظاهروله.

**قوله: غول: وجع بطن، ینزفون: لاتذهب عقولهم:** آیت کښې دی ﴿لَا فِيْهَا غَوْلٌ وَّلَا هُمْ عَنْهَا يُنْزَفُوْنَ﴾ فرمائی "غول" نه دَ خېټې درد مراد دې او﴿وَّلَا هُمْ عَنْهَا يُنْزَفُوْنَ﴾ معنی دَ هغوی علقونه به لارنشی مطلب دا چه دَ جنت شراب څکلو سره به نه په خیټه کښې درد وی او نه دَ انسانی عقل غائب کیدلو به وجه بې هوشی.

**قوله: قرین: شیطان:** ﴿قَالَ قَآئِلٌ مِّنْهُمْ إِنِّيْ كَانَ لِيْ قَرِيْنٌ﴾ په دوی کښې به یووایونکې وائی)په دنیا کښې) زما یو ملګرې وو، فرمائی دینه شیطان مراد دې.

**قوله: یهرعون: کهیئة الهرولة:** ﴿فَهُمْ عَلٰٓى اٰثٰرِهِمْ يُهْرَعُوْنَ﴾ دې کښې "یهرعون"معنی ده تیز تلل، دَ منډې په شکل او صورت کښې، هرولة منډه، باب بعثر نه مصدر دې.

**قوله: یزفون: النسلان فی المشی:** آیت کښې دی ﴿فَأَقْبَلُوْٓا إِلَيْهِ يَزِفُّوْنَ﴾ دې کښې "یزفون" معنی ده په تلوکښې تیزی کول. النسلان: الاسراع فی المشی مع تقارب الخطی یعنی نزدې نزدې قدم کیخودلو سره تیز تلل.

**قوله: وبین الجنة نسبا: قال کفار قریش: الملائکة بنات الله، وامهاتهم بنات سروات الجن:** ﴿وَجَعَلُوْا بَيْنَهٗ وَبَيْنَ الْجِنَّةِ نَسَبًا﴾ اودې خلقو په الله او جناتو کښې نسب جوړ کړو،

---

(١)قال السیوطی فی الدرالمنثور" ٥/٢٧١:اخرج عبدبن حمید وابن جریر وابن المنذر وابن ابی حاتم عن مجاهد فی قوله":ویقذفون من کل جانب "قال یرمنون من کل مکان "تفصیل دَ پاره اوګورئی تعلیقات لامع الدراری-١٥٢-٩/١٥١:

قریشوکفارو به وئیل چه فرښتې د الله تعالی لونړه دی اود دې فرښتومنیندې د سردارانو پیریانو لونړه دی.

**قوله**: لنحن الصافون: الملائكة: آیت کښې دی (وَاِنَّا لَنَحْنُ الصَّآفُّوْنَ) او مونږ صف تړې اودریږو، فرمائی دینه فرښتې مراد دی.

**قوله**: صراط الجحيم: سواء الجحيم ووسط الجحيم: آیت کښې دی (فَاهْدُوْهُمْ اِلٰى صِرَاطِ الْجَحِيْمِ) فرمائی صراط الجحیم، سواء الجحیم او وسط الجحیم د دریوارو یوه معنی ده.

**قوله**: لشوبا: يخلط طعامهم ويساط بالحميم: آیت کښې دی (ثُمَّ اِنَّ لَهُمْ عَلَيْهَا لَشَوْبًا مِّنْ حَمِيْمٍ) دې کښې د (شَوْبًا مِّنْ حَمِيْمٍ) معنی د دوی د زقوم د ونې خوړل خوټکیدلو اوبوسره ګډوډ او یوځائ کیدل به وی، ساط، یسوط او خلط، یخلط په یو معنی کښې دی.

**قوله**: مدحورا: مطرودا: سورة اعراف کښې دی (قَالَ اخْرُجْ مِنْهَا مَذْءُوْمًا مَّدْحُوْرًا) دې کښې "مدحورا" معنی لرې کړیشوې، رټلې شوې، دا لفظ د سورة الصافات نه دې، سورة الصافات کښې (دُحُوْرًا وَّلَهُمْ عَذَابٌ وَّاصِبٌ) دې "دحورا" په مناسبت سره دا لفظ راوړلې شو.

**قوله**: بيض مكنون: اللؤلؤ المكنون: آیت کښې دی (كَاَنَّهُنَّ بَيْضٌ مَّكْنُوْنٌ) بيض مكنون نه پټې مرغلرې مراد دی. هغه حورې به د پټو مرغلرو په شان ښائسته وی.

**قوله**: وتركنا عليه في الآخرين: يذكر بخير: او مونږ په هغې پسې شاته راتلونکو خلقو کښې دا خبره پاتې کړه چه په هغه باندې سلام وی. فرمائی چه دینه مراد چه د هغه د خیر ذکر به کیږی.

**قوله**: يستسخرون: يسخرون: (وَاِذَا رَاَوْا اٰيَةً يَّسْتَسْخِرُوْنَ) کله چه یوه معجزه ګوری نو هغې پسې ټوقې کوی، یستسخرون معنی هغوی ټوقې مسخرې کوی.

**قوله**: بعلا: ربا: آیت کښې دی (اَتَدْعُوْنَ بَعْلًا وَّتَذَرُوْنَ اَحْسَنَ الْخَالِقِيْنَ) آیا تاسو بعل (د بت نوم دې) رابلئ او ښه جوړونکې پریږدئې، فرمائی چه په دې کښې د بعل معنی رب دې. بعضو وئیلی دی چه بعل د یوبت نوم وو، د بنی اسرائیلو یوې ډلې د دې عبادت کولو یا د حضرت الیاس عليه السلام قوم د دې عبادت کولو (۱) بعض وائی چه دا په یمنی ژبه کښې د رب په معنی کښې استعمالیږی.

## [۲۹۱] بَاب وَإِنَّ يُونُسَ لَمِنَ الْمُرْسَلِينَ

[۴۵۲۶] حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ حَدَّثَنَا جَرِيرٌ عَنْ الْأَعْمَشِ عَنْ أَبِي وَائِلٍ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ

(۱) عمدة القاری ۱۹/۱۳۶؛ وروح المعانی-۲۳/۱۳۹:

رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا يَنْبَغِي لِأَحَدٍ أَنْ يَكُونَ خَيْرًا مِنْ يُونُسَ بْنِ مَتَّى

[۴۵۲۷] حَدَّثَنِي إِبْرَاهِيمُ بْنُ الْمُنْذِرِ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ فُلَيْحٍ قَالَ حَدَّثَنِي أَبِي عَنْ هِلَالِ بْنِ عَلِيٍّ مِنْ بَنِي عَامِرِ بْنِ لُؤَيٍّ عَنْ عَطَاءِ بْنِ يَسَارٍ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَنْ قَالَ أَنَا خَيْرٌ مِنْ يُونُسَ بْنِ مَتَّى فَقَدْ كَذَبَ

## [۲۹۲] باب: تفسير سُورَةُ ص

[۴۵۲۸| ۴۵۲۹] حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ حَدَّثَنَا غُنْدَرٌ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنِ الْعَوَّامِ قَالَ سَأَلْتُ مُجَاهِدًا عَنِ السَّجْدَةِ فِي ص قَالَ سُئِلَ ابْنُ عَبَّاسٍ فَقَالَ أُولَئِكَ الَّذِينَ هَدَى اللَّهُ فَبِهُدَاهُمُ اقْتَدِهْ وَكَانَ ابْنُ عَبَّاسٍ يَسْجُدُ فِيهَا

[۴۵۲۹] حَدَّثَنِي مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عُبَيْدٍ الطَّنَافِسِيُّ عَنِ الْعَوَّامِ قَالَ سَأَلْتُ مُجَاهِدًا عَنْ سَجْدَةٍ فِي ص فَقَالَ سَأَلْتُ ابْنَ عَبَّاسٍ مِنْ أَيْنَ سَجَدْتَ فَقَالَ أَوَمَا تَقْرَأُ وَمِنْ ذُرِّيَّتِهِ دَاوُدَ وَسُلَيْمَانَ أُولَئِكَ الَّذِينَ هَدَى اللَّهُ فَبِهُدَاهُمُ اقْتَدِهْ فَكَانَ دَاوُدُ مِمَّنْ أُمِرَ نَبِيُّكُمْ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ يَقْتَدِيَ بِهِ فَسَجَدَهَا دَاوُدُ عَلَيْهِ السَّلَامِ فَسَجَدَهَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

عُجَابٌ عَجِيبٌ الْقِطُّ الصَّحِيفَةُ هُوَ هَا هُنَا صَحِيفَةُ الْحِسَابِ

وَقَالَ مُجَاهِدٌ: فِي عِزَّةٍ: مُعَازِّينَ الْمِلَّةِ الْآخِرَةِ: مِلَّةُ قُرَيْشٍ الِاخْتِلَاقُ: الْكَذِبُ الْأَسْبَابُ: طُرُقُ السَّمَاءِ فِي أَبْوَابِهَا قَوْلُهُ جُنْدٌ مَا هُنَالِكَ مَهْزُومٌ: يَعْنِي قُرَيْشًا أُولَئِكَ الْأَحْزَابُ: الْقُرُونُ الْمَاضِيَةُ فَوَاقٍ: رُجُوعٍ قِطَّنَا: عَذَابَنَا اتَّخَذْنَاهُمْ سُخْرِيًّا: أَحَطْنَا بِهِمْ: أَتْرَابٌ: أَمْثَالٌ وَقَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ: الْأَيْدُ: الْقُوَّةُ فِي الْعِبَادَةِ الْأَبْصَارُ: الْبَصَرُ فِي أَمْرِ اللَّهِ حُبَّ الْخَيْرِ عَنْ ذِكْرِ رَبِّي: مِنْ ذِكْرٍ طَفِقَ مَسْحًا: يَمْسَحُ أَعْرَافَ الْخَيْلِ وَعَرَاقِيبَهَا الْأَصْفَادِ: الْوَثَاقِ.

## سورة ص

**د کلماتو تشريح:**

**قوله:** عُجَابٌ: عَجِيبٌ: په آيت کښې دی (إِنَّ هَٰذَا لَشَيْءٌ عُجَابٌ) په معنی دَ عجيب دې.

**قوله:** القط: الصحيفة، هو ها هنا صحيفة الحسنات: په آيت کښې دی (رَبَّنَا عَجِّل لَّنَا قِطَّنَا قَبْلَ يَوْمِ الْحِسَابِ) دَ لفظ قط دو معنی بيان کړی دی، يو په معنی د صحيفه او دلته په آيت کښې نيکواعمالو صحيفه مراد ده او دوئمه معنی دَ دې دَ عذاب بيان کړې شوې ده چه وړاندې دَ يوڅو الفاظونه پس ده.

دَ کلبی وغيره په روايت کښې دی چه کله دَ سورة حاقه دا آيت نازل شو (فَأَمَّا مَنْ أُوتِيَ كِتَابَهُ

بِيَمِينِهٖ ﴿فَسَوْفَ يُحَاسَبُ حِسَابًا يَّسِيْرًا﴾ نوکافرانودَ تبوقواو خندا په توګه نبی کریم ﷺ ته اوونیل که واقعی حساب کتاب کیږی نو تاسو مهربانی اوکړئی او زمونږ دَ نیکو اعمالو صحیفه دَ حساب کتاب دَ ورځې نه وړاندې وړاندې زر راکړه او قط په معنې دَ عذاب به وی نوته دَ حساب دَ ورځ نه مخکښې زر عذاب راکړه، قرآن په ذکر شوی آیت کښې دَ کافرانو دَ مسخرو دا قول نقل کړې دې[۱]

**قوله: وقال مجاهد: في عزة: معازين:** په آیت کښې دی ﴿فِيْ عِزَّةٍ وَّشِقَاقٍ﴾ مجاهد رحمه الله فرمائی ﴿فِيْ عِزَّةٍ﴾ معنی په عزت کښې غلبه غوښتونکې ده، **معازين: مغالبين**، دَ باب مفاعله نه صيغه د اسم فاعل ده.

**قوله: الملّة الاخرة: ملة قريش:** ﴿مَا سَمِعْنَا بِهٰذَا فِي الْمِلَّةِ الْاٰخِرَةِ ۚ اِنْ هٰذَآ اِلَّا اخْتِلَاقٌ﴾ په تیرشوی دین کښې مونږ دا خبره نه ده اوریدلې ، دا صرف دَ ځان نه خبره ده. په دې کښې دَ ملت نه ملت قریش مراد دی. ځکه چه دَ هغوی دا خیال وو چه زمونږ ملت ملت ابراهیمی دې نو په دې وجه به هم هغه برقرار وی او دَ یهودو او نصاری ملت خوختم شوې دې په دې وجه دَ هغوی څه اعتبار نشته.(۲)بعضودې نه "ملت نصاری" مراد اخستې دې[۳]

**قوله: الاختلاق: الكذب:** ﴿اِنْ هٰذَآ اِلَّا اخْتِلَاقٌ﴾ معنی دروغ ده.

**قوله: الاسباب: طرق السماء في ابوابها:** په آیت کښې دی ﴿فَلْيَرْتَقُوْا فِي الْاَسْبَابِ﴾ فرمائی په دې کښې د اسباب نه د اسمان په دروازو کښې دَ آسمان لارې مراد دی.

**قوله: جُنْدٌ مَّا هُنَالِكَ مَهْزُوْمٌ: يعني قريشا:** ﴿جُنْدٌ مَّا هُنَالِكَ مَهْزُوْمٌ مِّنَ الْاَحْزَابِ﴾ دَ ټولوډلونه یوه ډله ده چه دلته (یعنی په مکه کښې) به ورته ماتې ورکړیشی، فرمائی دَ﴿جُنْدٌ مَّهْزُوْمٌ﴾ نه قریش مکه مراد دی.

**قوله: اُولٰٓئِكَ الْاَحْزَابُ: القُرُوْنُ الْمَاضِيَةُ:** ﴿وَّاَصْحٰبُ لْـَٔيْكَةِ ۭ اُولٰٓئِكَ الْاَحْزَابُ﴾ او اصحاب ایکه تکذیب کړې وو او هغه احزاب دَ کوموچه اول په ﴿مِنَ الْاَحْزَابِ﴾ کښې ذکرراغلې دې همدغه خلق دی. فرمائی ﴿اُولٰٓئِكَ الْاَحْزَابُ﴾ نه تیرشوی امتونه مراد دی.

**قوله: فواق: رجوع:** ﴿مَّا لَهَا مِنْ فَوَاقٍ﴾ فرمائی دَ فواق معنی ده رجوع یعنی دوئمه شپیلئی نه پس دنیا ته واپس کیدل نشته.

**قوله: قطنا: عذابنا:** په آیت کښې دی ﴿رَبَّنَا عَجِّلْ لَّنَا قِطَّنَا قَبْلَ يَوْمِ الْحِسَابِ﴾ په دې کښې دَ قط نه عذاب مراد دې، یعنی اې زمونږه ربه! دَ حساب دَ ورځ نه وړاندې مونږ له زمونږ عذاب زر

---

[۱] عمدة القاری: ۳۸/۹-

[۲] لامع الدارمی-۹/۱۵۴:

[۳] عمدة القاری-۱۹/۱۳۹:

راکړه، مطلب دا چه کله به هغوی د قیامت د وعدې اوریده نو په مسخرو سره به نې دا وئیل چه مونږ له خود هغه وخت حصه هم اوس راکړه، هم اوس چه مونږ خپله عملنامه اووینو او لاس په لاس د سزې جزا نه اوزګار شو. فرمائی دې کښې د قطنه عذاب مراد دې.

**قوله: اَتَّخَذْنٰهُمْ سِخْرِيًّا : تحطنابهم:** (اَتَّخَذْنٰهُمْ سِخْرِيًّا اَمْ زَاغَتْ عَنْهُمُ الْاَبْصَارُ) دې نه اول آیت کښې دی (وَقَالُوْا مَا لَنَا لَا نَرٰى رِجَالًا كُنَّا نَعُدُّهُمْ مِّنَ الْاَشْرَارِ) یعنی دوزخیان به په خپل مینځ کښې وائی چه څه خبره ده چه مونږ هغه خلق په دوزخ کښې نه وینو کوم چه به مونږ په دنیاکښې د خرابوخلقو نه شمیرل، آیا مونږ په(غلطئی) سره هغه خلقو سره ټوقې کړې وې زمونږ د سترګونه هغوی بې درکه شوی دی)اوهغوی زمونږ په کتوکښې نه راځی). امام بخاري رحمه الله د(اَتَّخَذْنٰهُمْ سِخْرِيًّا) ترجمه "احطنابهم" سره کړې ده "چه آیامونږ په ټوقومسخروکښې هغوی راګیرکړې وو" او داسې کیږی چه په عام توګه چه د مزاق کولې شی نو هغه خلق راګیروی. حضرت ګنګوهی رحمه الله فرمائیلی دی چه دا تفسیر باللازم دې او صحیح دې، هغوی فرمائی "فسر السخرية بالاحاطة، لان الاحاطة لازمة لها عادة، فانهم اذا ارادوا الاستهزاء باحد جعلوه وسطهم، ليتمكن كل منهم على الاستهزاء كل التمكن: "[1]

**قوله: اتراب: امثال :** (وَعِنْدَهُمْ قٰصِرٰتُ الطَّرْفِ اَتْرَابٌ)اوهغوی سره به د ښکته نظرونووالا هم عمرښځې وی (مراد ترینه حورې دی) فرمائی اتراب په معنی د امثام دی یعنی هم عمراو یوشان.

**قوله: اَلْاَيْدِ: القوّة في العبادة، الابصار: البصر في امر الله:** (وَاذْكُرْ عِبٰدَنَآ اِبْرٰهِيْمَ وَاِسْحٰقَ وَيَعْقُوْبَ اُولِى الْاَيْدِىْ وَالْاَبْصَارِ) فرمائی د اید معنی ده په عبادت کښې قوت اود ابصارمعنی ده د الله تعالی په کار کښې غور او فکر کول یعنی ابراهیم، اسحاق او یعقوب علیهم السلام په عبادت کښې قوی او د الله تعالی په کار کښې غوراوفکر کونکی وو.

**قوله: حُبَّ الْخَيْرِ عَنْ ذِكْرِ رَبِّيْ: من ذكرربي:** په آیت شریف کښې دی (فَقَالَ اِنِّیْٓ اَحْبَبْتُ حُبَّ الْخَيْرِ عَنْ ذِكْرِ رَبِّيْ حَتّٰى تَوَارَتْ بِالْحِجَابِ) په دې کښې عن په معنی د من دې (ترجمه تیره شوه)

**فَطَفِقَ مَسْحًا : يمسح اعراف الخيل وعراقيبها:** په آیت مبارك کښې دی (رُدُّوْهَا عَلَيَّ فَطَفِقَ مَسْحًا بِالسُّوْقِ وَالْاَعْنَاقِ) حضرت سلیمان علیه السلام اوفرمائیل هغه اسونه بیازمامخې ته راولئی) نوهغه راوستې شو) نو هغوی د دې اسونو په پنډو او ستونوباندې خپل لاس پاکول یعنی قتلول شروع کړل.

**د ایت کریمه ``ردوها علی فطفق مسحا بالسوق والاعناق،، دوه تفسیرونه:** د دې آیت دوه تفسیرونه شوی دی، ① د دې مشهور تفسیر دا شویدې چه حضرت سلیمان علیه السلام د اسونو په کتلوکښې داسې مشغول شوچه د هغه وخت مونځ یا وظیفه ترینه پاتې شوه او روستو

---

[1] لامع الدارمی ۹/۱۵۵ :

ستومانه شو او هغوى دغه اسونه بيا دَ راوستلوحكم اوكړو او توره ئې راواخسته او دَ هغوى ستونه او پنډئې پريكول ئې شروع كړل چه هم دَ دې په وجه دَ الله تعالى په ياد او ذكر كښې خلل واقع شوې وو نو دَدې خلل او غفلت هغوى داسې كفاره ادا كړه[1]

② دوئم تفسير دا كړيشويدې چه دا اسونه دَ جهاد دَ پاره وو دَ هغې په معائنه كښې چه كله وخت اولګيدو نو دَ مازيګر مونځ ترينه قضاشو په دې باندې اوفرمائيل چه په دې كښې هيڅ حرج نشته كه يو طرف ته په ظاهره دَ الله تعالى دَ ياد نه جدا شونوبل طرف ته دَ جهاد دَ اسونو سره مينه او دَ هغې پالنه هم دَ هغه ياد سره تړلې ده. هم دَ دې جهاد دَ جذبې دَ جوش نه ئې حكم وركړو چه دا اسونه بيا واپس راولئى، نو واپس راوستې شو او حضرت سليمان عليه السلام دَ ډيرې مينې او اكرام دَ وجه دَ هغوى ستونه او پنډئې اوچولې او پاكولې، دَ دې تفسير مطابق دَ "مسح" نه مراد پريكول نه بلكه دَ محبت او مينې نه لاس رانښكل دى. دَ آيت دا دوئم تفسير مفسرينو حضراتو اختيار كړې دې[2] خومشهور تفسير ړومبنې دې[3]

امام بخارى رحمه الله فرمائى "يمسح اعراف الخيل وعراقيبها" دَ "اعراف"، "عرف" جمع ده، دَ اس دَ سټ ويښتوته وائى اوعراقيب دَ عرقوب جمع ده، دَ ګيټو شاته يوې پټې ته وائى دلته دَ دې نه پنډئى مراد دى.

البته په ړومبنى تفسير باندې دا اشكال كيږى چه اسونه دَ الله تعالى يو نعمت وو خپل مال او دَ الله تعالى نعمت داسې ضائع كول دَ يو نبى شان سره نه ښائى. نودَ دې جواب دا وركړې شويدې چه دا اسونه دَ حضرت سليمان عليه السلام ذاتى ملكيت وو اودَ هغوى په شريعت كښې دَ اس قربانى جائز وه، په دې وجه هغوى اسونه ضائع نه كړل بلكه هغه ئې دَ الله تعالى په نوم قربان كړل.[4]

**قوله: الاصفاد: الوثاق**: په آيت شريف كښې دى ﴿وَاٰخَرِيْنَ مُقَرَّنِيْنَ فِي الْاَصْفَادِ﴾ مونږ دَ سليمان عليه السلام تابع كړل او ډير هغه پيريان چه په زنځيرونو كښې تړلې شوى دى "اصفاد" دَ "صفدٌ" جمع ده، زنځير او بيړو ته وائى.

---

[1]) الجامع الاحكام القران-١٥/١٩٥:

[2]) الجامع الاحكام القران١٥/١٩٥ :، روح المعانى-٢٣/١٩٥:

[3]))روح المعانى-٢٣/١٩٥:

[4]))قال الالوسى رحمه الله فى تفسير روح المعانى :٢٣/١٩٣ :وقد جعلها عليه السلام بذلک قربان الله تعالى وكان تقريب الخيل مشروعافى دينه-

## [٢٩٣] بَاب: قَوْلِهِ هَبْ لِي مُلْكًا لَا يَنْبَغِي لِأَحَدٍ مِنْ بَعْدِي إِنَّكَ أَنْتَ الْوَهَّابُ

[٤٥٣٠] حَدَّثَنَا إِسْحَاقُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ حَدَّثَنَا رَوْحٌ وَمُحَمَّدُ بْنُ جَعْفَرٍ عَنْ شُعْبَةَ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ زِيَادٍ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ إِنَّ عِفْرِيتًا مِنَ الْجِنِّ تَفَلَّتَ عَلَيَّ الْبَارِحَةَ أَوْ كَلِمَةً نَحْوَهَا لِيَقْطَعَ عَلَيَّ الصَّلَاةَ فَأَمْكَنَنِي اللَّهُ مِنْهُ وَأَرَدْتُ أَنْ أَرْبِطَهُ إِلَى سَارِيَةٍ مِنْ سَوَارِي الْمَسْجِدِ حَتَّى تُصْبِحُوا وَتَنْظُرُوا إِلَيْهِ كُلُّكُمْ فَذَكَرْتُ قَوْلَ أَخِي سُلَيْمَانَ رَبِّ هَبْ لِي مُلْكًا لَا يَنْبَغِي لِأَحَدٍ مِنْ بَعْدِي قَالَ رَوْحٌ فَرَدَّهُ خَاسِئًا

## [٢٩٤] بَاب: قَوْلُهُ وَمَا أَنَا مِنَ الْمُتَكَلِّفِينَ

[٤٥٣١] حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ حَدَّثَنَا جَرِيرٌ عَنِ الْأَعْمَشِ عَنْ أَبِي الضُّحَى عَنْ مَسْرُوقٍ قَالَ دَخَلْنَا عَلَى عَبْدِ اللَّهِ بْنِ مَسْعُودٍ قَالَ يَا أَيُّهَا النَّاسُ مَنْ عَلِمَ شَيْئًا فَلْيَقُلْ بِهِ وَمَنْ لَمْ يَعْلَمْ فَلْيَقُلِ اللَّهُ أَعْلَمُ فَإِنَّ مِنَ الْعِلْمِ أَنْ يَقُولَ لِمَا لَا يَعْلَمُ اللَّهُ أَعْلَمُ قَالَ اللَّهُ عَزَّ وَجَلَّ لِنَبِيِّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قُلْ مَا أَسْأَلُكُمْ عَلَيْهِ مِنْ أَجْرٍ وَمَا أَنَا مِنَ الْمُتَكَلِّفِينَ وَسَأُحَدِّثُكُمْ عَنِ الدُّخَانِ إِنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دَعَا قُرَيْشًا إِلَى الْإِسْلَامِ فَأَبْطَئُوا عَلَيْهِ فَقَالَ اللَّهُمَّ أَعِنِّي عَلَيْهِمْ بِسَبْعٍ كَسَبْعِ يُوسُفَ فَأَخَذَتْهُمْ سَنَةٌ فَحَصَّتْ كُلَّ شَيْءٍ حَتَّى أَكَلُوا الْمَيْتَةَ وَالْجُلُودَ حَتَّى جَعَلَ الرَّجُلُ يَرَى بَيْنَهُ وَبَيْنَ السَّمَاءِ دُخَانًا مِنَ الْجُوعِ قَالَ اللَّهُ عَزَّ وَجَلَّ فَارْتَقِبْ يَوْمَ تَأْتِي السَّمَاءُ بِدُخَانٍ مُبِينٍ يَغْشَى النَّاسَ هَذَا عَذَابٌ أَلِيمٌ قَالَ فَدَعَوْا رَبَّنَا اكْشِفْ عَنَّا الْعَذَابَ إِنَّا مُؤْمِنُونَ أَنَّى لَهُمُ الذِّكْرَى وَقَدْ جَاءَهُمْ رَسُولٌ مُبِينٌ ثُمَّ تَوَلَّوْا عَنْهُ وَقَالُوا مُعَلَّمٌ مَجْنُونٌ إِنَّا كَاشِفُو الْعَذَابِ قَلِيلًا إِنَّكُمْ عَائِدُونَ أَفَيُكْشَفُ الْعَذَابُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ قَالَ فَكُشِفَ ثُمَّ عَادُوا فِي كُفْرِهِمْ فَأَخَذَهُمُ اللَّهُ يَوْمَ بَدْرٍ قَالَ اللَّهُ تَعَالَى يَوْمَ نَبْطِشُ الْبَطْشَةَ الْكُبْرَى إِنَّا مُنْتَقِمُونَ

## [٢٩٥] باب: تفسير سورة الزمر

سُورَةُ الزُّمَرِ وَقَالَ مُجَاهِدٌ أَفَمَنْ يَتَّقِي بِوَجْهِهِ يُجَرُّ عَلَى وَجْهِهِ فِي النَّارِ وَهُوَ قَوْلُهُ تَعَالَى أَفَمَنْ يُلْقَى فِي النَّارِ خَيْرٌ أَمْ مَنْ يَأْتِي آمِنًا يَوْمَ الْقِيَامَةِ غَيْرَ ذِي عِوَجٍ لَبْسٍ وَرَجُلًا سَلَمًا لِرَجُلٍ مَثَلٌ لِآلِهَتِهِمُ الْبَاطِلِ وَالْإِلَهِ الْحَقِّ وَيُخَوِّفُونَكَ بِالَّذِينَ مِنْ دُونِهِ بِالْأَوْثَانِ خَوَّلْنَا أَعْطَيْنَا وَالَّذِي جَاءَ بِالصِّدْقِ الْقُرْآنُ وَصَدَّقَ بِهِ الْمُؤْمِنُ يَجِيءُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ يَقُولُ هَذَا الَّذِي أَعْطَيْتَنِي عَمِلْتُ بِمَا فِيهِ وَقَالَ غَيْرُهُ مُتَشَاكِسُونَ الرَّجُلُ الشَّكِسُ الْعَسِرُ لَا يَرْضَى بِالْإِنْصَافِ وَرَجُلًا سِلْمًا وَيُقَالُ سَالِمًا صَالِحًا اشْمَأَزَّتْ نَفَرَتْ بِمَفَازَتِهِمْ مِنَ الْفَوْزِ حَافِّينَ أَطَافُوا بِهِ مُطِيفِينَ بِحِفَافَيْهِ بِجَوَانِبِهِ

مُتَشَابِهًا لَيْسَ مِنَ الْاِشْتِبَاهِ وَلَكِنْ يُشْبِهُ بَعْضُهُ بَعْضًا فِي التَّصْدِيقِ

## سورة الزمر

**د كلماتو تشريح:**

**قوله: وقال مجاهد: افمن يتقي بوجهه: يجر علي وجهه في النار:** ﴿اَفَمَنْ يَّتَّقِيْ بِوَجْهِهٖ سُوْٓءَ الْعَذَابِ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ﴾ يعني آيا هغه سړي چه د قيامت په ورځ عذاب په خپل مخ باندې رابندوی د مؤمن په شان کيدې شي؟ چاته به چه په آخرت کښې د هيڅ قسم انديښنه نه وي. په سړي چه کله مخامخ حمله کيږي نو په لاسونو باندې منع کوي، ليکن په محشر کښې به د ظالمانو لاسونه تړلي وي په دې وجه به د عذاب سپيړې په مخ پريوځي. دې نه مراد دوزخيان دی چه خپل مخونه به بچ کوی او د تلوکوشش به کوی.امام د دې مطلب بيان کړو چه هغوی به پړمخې په دوزخ کښې رابنکلې شی نود مخونو د بچ کولو کوشش به کوی.

**قوله: ذي عوج: لبس:** په آيت کښې دی ﴿قُرْاٰنًا عَرَبِيًّا غَيْرَ ذِيْ عِوَجٍ لَّعَلَّهُمْ يَتَّقُوْنَ﴾ يعنی "مونږ د دې خلقو د پاره قران پيش کړو کوم کښې چه کګليچ نشته دې د پاره چه هغوی بچ اوځی" فرمائی چه عوج په معنی د لبس او اشتباه ده، ذی عوج: شکی او ګړبړ.

**قوله: وَرَجُلًا سَلَمًا لِّرَجُلٍ: مثل لالهتهم الباطل والاله الحق:** په آيت کښې د باطلو او حق معبود د مثال بيان کړيشويدې ﴿ضَرَبَ اللّٰهُ مَثَلًا رَّجُلًا فِيْهِ شُرَكَآءُ مُتَشٰكِسُوْنَ وَرَجُلًا سَلَمًا لِّرَجُلٍ هَلْ يَسْتَوِيٰنِ مَثَلًا﴾ چه يو غلام دې په هغه کښې ډير خلق شريك دی او يو بل غلام دې چه يواځې د يو سړي دې، نو آيا دا دواړه يو شان کيديشی، ښکاره خبره ده چه دا دواړه غلامان هيڅ کله هم نشی يو شان کيدې. ړومبې غلام به د خپلو مشرانود ظلمونو او جګړو په وجه به هميشه په تذبذب او تکليف ښکاروی چه د کوم کوم حکم اومنی او کوم يو راضی کړی. ولې دونم سړې به د تکليف او تذبذب ښکار نه وي ځکه چه د هغه معامله هم يو سړی سره تړلې ده، نو ټيك همدغه مثال دې د هغه سړی چه د ډيرو معبودانو عبادت کوی نو هغه به د تذبذب او بې آرامئ ښکار وی خو هغه سړې چه صرف د يو الله ﷻ عبادت کوی هغه به په آرام او تسلئ سره وی. ړومبې او دونم سړې هيڅ کله نشی برابريدلې.

په آيت کښې د﴿مُتَشٰكِسُوْنَ﴾ لفظ راغلې دې د دې لفظ امام تشريح کولوسره فرمائی "الرجل الشكس: العسر لايرضى بالانصاف" يعنی متشاکسين هغه سړی ته وائی چه زړه تنګې او جګړ مار وی او په انصاف باندې نه راضی کيږی.

**قوله: وَيُخَوِّفُوْنَكَ بِالَّذِيْنَ مِنْ دُوْنِهٖ: بالاوثان:** اودا خلق تا د دې بتانود ويروی چه د الله تعالی نه سوا دی، فرمائی ﴿بِالَّذِيْنَ مِنْ دُوْنِهٖ﴾ نه اصنام او بتان مراد دی.

**قوله: خولنا: اعطينا:** آيت کښې دی ﴿ثُمَّ اِذَا خَوَّلْنٰهُ نِعْمَةً مِّنَّا﴾ بياچه مونږ هغوی ته د خپل طرف نه څه نعمت ورکړو، فرمائی د خولنا معنی ده مونږ ورعطا کړو، ورکړو.

**قوله**: وَالَّذِیْ جَآءَ بِالصِّدْقِ : القرآن، وَصَدَّقَ بِهٖ : المومن: په آیت کښې دی (وَالَّذِیْ جَآءَ بِالصِّدْقِ وَصَدَّقَ بِهٖۤ اُولٰٓئِكَ هُمُ الْمُتَّقُوْنَ۝) په دې کښې (اَلَّذِیْ جَآءَ بِالصِّدْقِ) " نه قرآن او (صَدَّقَ بِهٖ) نه مومن مراد دې چه دَ قیامت په ورځ به راشي او وائی به چه دا قرآن ماته راکړې شوې وو او ما دَ دې په احکاماتو عمل کړې وو. د(اَلَّذِیْ جَآءَ بِالصِّدْقِ) نه نبی کریم ﷺ او(صَدَّقَ بِهٖ) نه حضرت ابوبکر رضی الله عنه هم مراد کیدیشی، لانه اول من صدق به

**قوله**: اشمأزت: نفرت: (وَاِذَا ذُكِرَ اللّٰهُ وَحْدَهُ اشْمَاَزَّتْ قُلُوْبُ الَّذِیْنَ لَا یُؤْمِنُوْنَ بِالْاٰخِرَةِ) او چه کله صرف دَ الله تعالی ذکر کیږی نود هغه خلقو زړونه منقبض کیږی څوك چه دَ آخرت یقین نه لری فرمائی دَ(اشْمَاَزَّتْ) معنی: هغه نفرت اوکړو، ناخوښه نی کړو.

**قوله**: بمفازتهم: من الفوز: آیت مبارك کښې دی (وَیُنَجِّی اللّٰهُ الَّذِیْنَ اتَّقَوْا بِمَفَازَتِهِمْ) اوچه کوم خلق دَ) کفراوشرك نه) بچ کیدل، الله تعالی به هغه خلق په کامیابئی سره)دوزخ) نه خلاصې ورکړی. فرمائی آیت کښې "مفازة"، "فوز" نه مشتق دې دَ کوم معنی چه کامیابی ده.

**قوله**: حافین: اطافوا به، مطیفین بحفافیه: بجوانبه: په آیت مبارك کښې دی (وَتَرَی الْمَلٰٓئِكَةَ حَآفِّیْنَ مِنْ حَوْلِ الْعَرْشِ) په دې کښې دَ حافین تشریح کولوسره فرمائی اطافوا به: یعنی هغه فرښتو به عرش راګیرکړې وی دَ عرش اطراف راګیرونکې او طواف کونکې به وی.

**قوله**: متشابها: لیس من الاشتباه، ولکن یشبه بعضه بعضا فی التصدیق: (اَللّٰهُ نَزَّلَ اَحْسَنَ الْحَدِیْثِ کِتٰبًا مُّتَشَابِهًا) په دې کښې (مُّتَشَابِهًا) دَ اشتباه نه ماخوذ نه دې دَ کوم معنی چه التباس ده بلکه دلته دَ دې معنی داده چه دا قرآن په تصدیق کښې دَ بعض مشابهه دې. یعنی دَ قرآن کریم بعض آیاتونه دَ بعض آیاتونو تصدیق کوی. دَ دې مضمونونه یو شان وی او دَ دې په خپل مینځ کښې څه تعارض او تناقص نه وی.

## [۲۹۶] باب: قَوْلُهُ یٰعِبَادِیَ الَّذِیْنَ اَسْرَفُوْا عَلٰٓی اَنْفُسِهِمْ لَا تَقْنَطُوْا مِنْ رَّحْمَةِ اللّٰهِ اِنَّ اللّٰهَ یَغْفِرُ الذُّنُوْبَ جَمِیْعًا اِنَّهٗ هُوَ الْغَفُوْرُ الرَّحِیْمُ

[۴۵۳۲] حَدَّثَنِي إِبْرَاهِيمُ بْنُ مُوسَى أَخْبَرَنَا هِشَامُ بْنُ يُوسُفَ أَنَّ ابْنَ جُرَيْجٍ أَخْبَرَهُمْ قَالَ يَعْلَى إِنَّ سَعِيدَ بْنَ جُبَيْرٍ أَخْبَرَهُ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا أَنَّ نَاسًا مِنْ أَهْلِ الشِّرْكِ كَانُوا قَدْ قَتَلُوا وَأَكْثَرُوا وَزَنَوْا وَأَكْثَرُوا فَأَتَوْا مُحَمَّدًا صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالُوا إِنَّ الَّذِي تَقُولُ وَتَدْعُو إِلَيْهِ لَحَسَنٌ لَوْ تُخْبِرُنَا أَنَّ لِمَا عَمِلْنَا كَفَّارَةً فَنَزَلَ وَالَّذِينَ لَا يَدْعُونَ مَعَ اللَّهِ إِلَهًا آخَرَ وَلَا يَقْتُلُونَ النَّفْسَ الَّتِي حَرَّمَ اللَّهُ إِلَّا بِالْحَقِّ وَلَا يَزْنُونَ وَنَزَلَتْ قُلْ يَا عِبَادِيَ الَّذِينَ أَسْرَفُوا عَلَى أَنْفُسِهِمْ لَا تَقْنَطُوا مِنْ رَحْمَةِ اللَّهِ[1]

---

[1] واخرجه مسلم فی الایمان، باب کون الاسلام یهدم ماقبله، ...[بقیه حاشیه په راروانه صفحه.

**د ایت کریمه شان نزول:** په روایت د باب کښې حضرت ابن عباس رضی الله عنه د ذکرشوی آیت شان نزول بیان فرمائیلې دې چه مشرکانو د څه خلقو سره د ډیر قتل او زنا ارتکاب کړې وو. بیا هغوی د نبی کریم ﷺ په خدمت کښې حاضر شو او وئیل چه تاسو د کوم څیز طرف ته دعوت ورکوئی هغه یقیناً بهتر دې په دې شرط چه مونږ ته معلومه شی کوم څه چه مونږ کړې دی د هغې کفاره به وی یعنی زمونږ تیره شوې ګناه به معاف کولې شی نو مونږ اسلام قبلوو. په دې باندې د سورة فرقان دا آیت ﴿وَالَّذِيْنَ لَا يَدْعُوْنَ مَعَ اللّٰهِ....﴾ او د سورة زمر د باب آیت نازل شو. د دې آیت په تفسیر کښې مولانا شبیراحمد عثمانی لیکی:

داآیت د ارحم الرحمین د ډیرزیات رحمت او عفوا او درګزر د لوئې شان اعلان کوی اود سختوسختو اود علاج نه د مایوسه شوو مریضانو په حق کښې د اکسیرشفا حکم لری. مشرك،ملحد، زندیق، مرتد، یهودی،نصرانی، مجوسی، بدعتی،بدمعاش،فاسق او فاجر کوم یو چه وی د دې آیت د اوریدونه پس د مایوسه کیدو او امید ماتولو سره کیناستو هیڅ وجه نشته، ځکه چه الله تعالی د چا د پاره هم اوغواړی نو ټول ګناهونه ورته معاف کولې شی، څوك د هغه لاس نشی نیولې، نو بیا بنده ناامیده کیږی ولې، او دا خبره ضرور ده چه د هغه په نورو اعلانونوکښې تصریح کړیشویده چه د کفر او شرك جرم به بغیر د توبې نه نشی معاف کولې. نو﴿اِنَّ اللّٰهَ يَغْفِرُ الذُّنُوْبَ جَمِيْعًا﴾ د﴿لِمَنْ يَّشَآءُ﴾ سره مقید ګڼل ضروریکار دی کما قال الله تعالی ﴿اِنَّ اللّٰهَ لَا يَغْفِرُ اَنْ يُّشْرَكَ بِهٖ وَيَغْفِرُ مَا دُوْنَ ذٰلِكَ لِمَنْ يَّشَآءُ﴾ په دې قید باندې دا نه لازمیږی چه بغیر د توبه نه به الله تعالی وړوکې یا لوئی قصور نشی معاف کولې او نه دا مطلب شو چه د یو جرم د پاره هډو د توبې ضرورت نشته، بغیر د توبې نه به ټول ګناهونه معاف کوی. قید صرف د الله د رضا او منشاء دې اود مشیت او رضاد پاره په بل آیت کښې خودلې شوی دی چه هغه به د کفر او شرك نه بغیر د توبې سره متعلق نه وی (۱)

## [۲۹۷] بَابُ قَوْلِهٖ وَمَا قَدَرُوا اللّٰهَ حَقَّ قَدْرِهٖ

[۴۵۳۳] حَدَّثَنَا آدَمُ حَدَّثَنَا شَيْبَانُ عَنْ مَنْصُورٍ عَنْ إِبْرَاهِيمَ عَنْ عَبِيدَةَ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ جَاءَ حَبْرٌ مِنَ الْأَحْبَارِ إِلَى رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ يَا مُحَمَّدُ إِنَّا نَجِدُ أَنَّ اللّٰهَ يَجْعَلُ السَّمٰوَاتِ عَلَى إِصْبَعٍ وَالْأَرَضِينَ عَلَى إِصْبَعٍ وَالشَّجَرَ عَلَى إِصْبَعٍ وَالْمَاءَ وَالثَّرَى عَلَى إِصْبَعٍ وَسَائِرَ الْخَلَائِقِ عَلَى إِصْبَعٍ فَيَقُولُ أَنَا الْمَلِكُ فَضَحِكَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَتَّى بَدَتْ نَوَاجِذُهُ تَصْدِيقًا لِقَوْلِ الْحَبْرِ ثُمَّ قَرَأَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَمَا قَدَرُوا اللّٰهَ

---

...بقیه ازحاشیه گذشته]رقم الحدیث ۱۲۲؛واخرجه النسائی فی السنن الکبری، باب قوله تعالی :یاعبادی الذین اسرفوا علی انفسهم، رقم الحدیث۱۱۴۴۹/۱ :، واخرجه ابوداوٗد فی الفتن، باب فی تعظیم قتل المؤمن، رقم الحدیث ۴۲۷۴ :واخرجه النسائی، کتاب المحاربة رقم الحدیث-۲/۱۶۳ :

(۱) تفسیر عثمانی ۶۱۸:فائده نمبر-۲

حَقَّ قَدْرِهِ وَالْأَرْضُ جَمِيعًا قَبْضَتُهُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ وَالسَّمٰوَاتُ مَطْوِيَّاتٌ بِيَمِينِهِ سُبْحَانَهُ وَتَعَالَى عَمَّا يُشْرِكُونَ

**قوله: فضحك النبي صلى الله عليه وسلم تصديقا لقول الحبر:**

د "**فضحک النبی ﷺ تصدیقا لقول الحبر**"، **معنی**: علامه خطابی، قاضي عياض او قرطبي ﷫ رائي ده چه دَ نبی کریم ﷺ داخندا دَ یهودیانوپه دروغوباندې وه د هغوی د تصدیق دَ پاره نه وه، يهوديانو به دَ الله تعالى دَ پاره بدن او اندامونه ثابتول او دلته هم هغوی د الله تعالى دَ پاره "اصبع" ثابت کړه، حالانکه الله تعالى دَ جسم او بدن نه منزه دې.(١)

خودَ دې حضراتودا رائي صحيح نه ده، په صحيح مسلم کښې يو روايت راځي "ان قلوب بني ادم كلها بين اصبعين من اصابع الرحمن كقلب واحد يصرفه كيف شاء" (٢) په دې کښې هم دَ اصابع اثبات دَ الله ﷻ دَ پاره کړې دې نودا وئيل چه دې يهودی دَ الله تعالى دَ پاره دَ اصابع اثبات کړې وو نودَ هغې په ترديدباندې هغوی ﷺ دَ حيرانتيا اظهار کړې وو، دَ تصديق دَ پاره ئې نه ووفرمائيلی، ټيک نه ده، ابن خزيمه او علامه نووی ﷫ دَ دې حضراتو ترديد کړې دې.(٣) نووئيلې کېږی به چه دَ هغوی ﷺ ضحك دَ تصديق دَ پاره وو، دا حديث په احاديث صفات کښې داخل دې، متاخرين تاويل کوی چه "اصبع" نه دلته قدرت مراد دې.

## [۲۹۸] بَاب: قَوْلِهِ وَالْأَرْضُ جَمِيعًا قَبْضَتُهُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ وَالسَّمٰوَاتُ مَطْوِيَّاتٌ بِيَمِينِهِ

[۴۵۳۴] (٤) حَدَّثَنَا سَعِيدُ بْنُ عُفَيْرٍ قَالَ حَدَّثَنِي اللَّيْثُ قَالَ حَدَّثَنِي عَبْدُ الرَّحْمٰنِ بْنُ خَالِدِ بْنِ مُسَافِرٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ أَبِي سَلَمَةَ أَنَّ أَبَا هُرَيْرَةَ قَالَ سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ يَقْبِضُ اللَّهُ الْأَرْضَ وَيَطْوِي السَّمٰوَاتِ بِيَمِينِهِ ثُمَّ يَقُولُ أَنَا الْمَلِكُ أَيْنَ مُلُوكُ الْأَرْضِ

---

(١) فتح الباری-٨/٥٥١:

(٢) صحيح مسلم ٢/٣٣٥: كتاب القدر، باب تصريف الله تعالى القلوب كيف شاء

(٣) فتح الباری-٨/٥٥١:

(٤) واخرجه ايضاً في الرقاق، باب يقبض الله الارض يوم القيامة، رقم الحديث٦٥١٩: مع الفتح (وفي التوحيد باب قول الله تعالى: ملك الناس، رقم الحديث٧٣٨٢: مع الفتح( وباب لماخلقت بيدى، رقم الحديث٧٤١٣-٧٤١٢:، واخرجه مسلم في صفات المنافقين واحكامهم، كتاب صفة القيامة والجنة والنار، رقم الحديث-٢٧٨٧:

[۲۹۹] باب: قَوْلُهُ وَنُفِخَ فِي الصُّورِ فَصَعِقَ مَنْ فِي السَّمٰوَاتِ وَمَنْ فِي الْأَرْضِ إِلَّا مَنْ شَاءَ اللّٰهُ ثُمَّ نُفِخَ فِيهِ أُخْرَى فَإِذَا هُمْ قِيَامٌ يَنْظُرُونَ

[۴۵۳۵] ( )[1] حَدَّثَنِي الْحَسَنُ حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ بْنُ خَلِيلٍ أَخْبَرَنَا عَبْدُ الرَّحِيمِ عَنْ زَكَرِيَّاءَ بْنِ أَبِي زَائِدَةَ عَنْ عَامِرٍ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ إِنِّي أَوَّلُ مَنْ يَرْفَعُ رَأْسَهُ بَعْدَ النَّفْخَةِ الْآخِرَةِ فَإِذَا أَنَا بِمُوسَى مُتَعَلِّقٌ بِالْعَرْشِ فَلَا أَدْرِي أَكَذٰلِكَ كَانَ أَمْ بَعْدَ النَّفْخَةِ

[۴۵۳۶] حَدَّثَنَا عُمَرُ بْنُ حَفْصٍ حَدَّثَنَا أَبِي قَالَ حَدَّثَنَا الْأَعْمَشُ قَالَ سَمِعْتُ أَبَا صَالِحٍ قَالَ سَمِعْتُ أَبَا هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ بَيْنَ النَّفْخَتَيْنِ أَرْبَعُونَ قَالُوا يَا أَبَا هُرَيْرَةَ أَرْبَعُونَ يَوْمًا قَالَ أَبَيْتُ قَالَ أَرْبَعُونَ سَنَةً قَالَ أَبَيْتُ قَالَ أَرْبَعُونَ شَهْرًا قَالَ أَبَيْتُ وَيَبْلَى كُلُّ شَيْءٍ مِنَ الْإِنْسَانِ إِلَّا عَجْبَ ذَنَبِهِ فِيهِ يُرَكَّبُ الْخَلْقُ

دَ نفخ صور يعنى دَ شپيلئى دَ پوكوهلو متعلق كلام وړاندې تيرشويدې. دَ باب دوئم روايت دَ حضرت ابوهريره رضي الله عنه نه دې چه رسول الله ﷺ فرمائيلى دى چه دَ دوه خل شپيلئى پوكوهلوبه مينځ كښې به فاصله څلويښت وى، دَابوهريره رضي الله عنه شاګردانو تپوس اوكړو څلويښت ورځې. وئى فرمائيل ماته نه دى معلوم، تپوس ئى اوكړو څلويښت كاله وئى فرمائيل نه دى معلوم، تپوس اوشو څلويښت مياشتې وئى فرمائيل نه دى معلوم.

**قوله: ويبلى كل شيئ من الانسان الا عجب ( )[2] ذنبه فيه يركب الخلق:**

دَ "ويبلى كل شئ من الانسان الا عجب ذنبه»، معنى: دَ انسان هرڅه سخا كيږى سوا دَ ملادَ هډوكى نه چه اورى دَ دانې برابر باقى پاتې كيږى، دې نه به ټول دوباره جوړيږى. ابن عقيل حنبلى رحمه الله فرمائى دَ ملادَ هډوكى باقى پاتې كيدل سر من اسرار الله دى كنى نو چه كوم ذات دَ عدم نه يو څيز له وجود وركړو هغه ذات دَ دې هيڅ كله محتاج نه دې چه دَ دوباره پيدائش دَ پاره دَ اولنى تخليق يوجزباقى پاتې كړى او دا هم ممكن ده چه دَ فرشتو دَ پيژندګلودَ پاره دا باقى ساتلې وى چه هغوى دَ علامت په توګه انسان دَ هغه جوهر نه معلوم كړى او روح په كښې بيا واپس كړې شى ( )[3] علامه مزنى وئيلى دى چه دَ دې حديث مطلب دا

[1] ))وايضاً باب يوم ينفخ فى الصور، فتاتون افواجا، رقم الحديث ۴۶۵۱، واخرجه مسلم فى الفتن واشراط الساعة، باب مابين النفختين، رقم الحديث ۲۹۵۵:، واخرجه النسائى فى السنن الكبرى فى التفسير، باب قوله تعالى: ثم نفخ فيه اخرى، رقم الحديث-۱۱۴۵۹/۲:

[2] ))والعجب) بفتح العين وسكون الجيم (هوعظم لطيف فى اصل الصلب، وهوراس العصص، وهومكان راس الذنب من ذوات الاربع) فتح البارى (۸/۵۵۲:

[3] ))فتح البارى-۵۵۳-۸/۵۵۲:

دي چه دَ انسان ټول اندامونه خو به خاوري اوخوري دَ څه په وجه چه به هغه ټول ختم شي ولې دَ ملاهډوکي به خاوره نه خوري بلکه دا به پخپله سخاشي او ختم به شي (۱) دَ دي مثال داسي اوګنړئي لکه څنګه چه الله تعالى دَ ټول مخلوق دَ مرګ دَ پاره دَ مرګ فرښته مقرر کړي ده خودملك الموت مرګ به پخپله راځي دهغه دپاره به دَ بل ملك الموت ضرورت نه وي. دَ دي نه انبياء کرام ﷺ مستثنى دى دَ هغوى بدنونه زمكه نه خوري. علامه ابن عبدالبر شهداء او علامه قرطبى دَ ثواب په نيت سره اذان وركونكي موذن هم دي نه مستثنى ګرځولي چه دَ هغوى بدنونه به هم محفوظ وي(۲) والله اعلم

## [۳۰۰] باب: تفسير سُورَةُ الْمُؤْمِنِ (غافر)

قَالَ مُجَاهِدٌ: حم مَجَازُهَا مَجَازُ أَوَائِلِ السُّوَرِ وَيُقَالُ بَلْ هُوَ اسْمٌ لِقَوْلِ شُرَيْحِ بْنِ أَبِي أَوْفَى الْعَبْسِيِّ يُذَكِّرُنِي حَامِيمَ وَالرُّمْحُ شَاجِرٌ فَهَلَّا تَلَا حَامِيمَ قَبْلَ التَّقَدُّمِ الطَّوْلِ التَّفَضُّلُ دَاخِرِينَ خَاضِعِينَ وَقَالَ مُجَاهِدٌ إِلَى النَّجَاةِ الْإِيمَانُ لَيْسَ لَهُ دَعْوَةٌ يَعْنِي الْوَثَنَ يُسْجَرُونَ تُوقَدُ بِهِمُ النَّارُ تَمْرَحُونَ تَبْطَرُونَ

## سورة المؤمن

**د كلماتو تشريح:**

**قوله: قَالَ مُجَاهِدٌ: حم مَجَازُهَا مَجَازُ أَوَائِلِ السُّوَرِ:** حضرت مجاهد رحمه الله فرمائى چه دَ"حم" هم هغه حكم دي چه دَ سورتونو په شروع كښي دَ حروف مقطعات كوم حكم دي يعنى دا هم دَ نورو حروف مقطعات په شان دي. ليكن دوئم قول دا دي چه دا اسم دي دَ نورو مقطعاتو په شان نه دي. وړاندي دَ شُرَيح دَ يو شعر نه دَ"حم" نه دَ اسم استدلال كړي دي.

يذكرني حاميم والرمح شاجر فهلا تلا حاميم قبل التقدم

په شعركښي حاميم مفعول به كيدو په وجه منصوب لوستلي شويدي، دَ اعراب راتللو دَ دي خبري دليل دي چه دا اسم دي ځكه چه په حروف باندي اعراب نه راځي. دا شعر شُرَيح دَ جمل په هغه وخت كښي لوستلي وو كله چه دَ هغه مقابله دَ حضرت طلحه) ځوئى محمد بن طلحه) سره اوشوه، شُرَيح چه كله نيزه وړاندي كړه نو هغه "حم عسق" يا دَ دي سورة آيت (قُل لَّآ أَسْئَلُكُمْ عَلَيْهِ أَجْرًا إِلَّا الْمَوَدَّةَ فِي الْقُرْبَىٰ) اولوستلو، خو شُرَيح هغه اووژلو اودَ شعر ئى اووئيل چه دَ هغي ترجمه ده، هغه ماته حم رايادوى خو نيزه راوانه شويده، دَ جنګ نه دَ راتلونه وړاندي هغه ولي حم نه لوستلو. بعضوئيلى دى دا شعر دَ اشترنخعى دي او محمدبن طلحه) هغه

(۱) فتح البارى-۸/۵۵۳:
(۲) فتح البارى-۸/۵۵۳:

قتل کړې وو او بعضو دا عصام بن مقشعر طرف ته منسوب کړيدې. دَ هغې اشعار دی:

و اشعث قوام بايات ربه قليل الاذى فيما ترى العين مسلم

هتكت له بالرمح جيب قميصه فخر صريعا لليدين و للفم

على غير شئ، غير ان ليس تابعا عليا ومن لايتبع الحق يندم (١)

**قوله: الطول: التفضل:** په آيت کښې دی (شَدِيْدِ الْعِقَابِ ذِي الطَّوْلِ) په دې کښې دَ طول معنى ده احسان کول، انعام ورکول.

**قوله: داخرين: خاضعين:** په آيت مبارك کښې دی (سَيَدْخُلُوْنَ جَهَنَّمَ دٰخِرِيْنَ) هغه خلق به ډيرزر ذليل شی او دوزخ ته به داخل کړې شی. دَ داخرين معنى ده خاضعين يعنى خوار او ذليل به شی.

**قوله: الى النجاة الايمان:** په آيت کښې دی (وَيٰقَوْمِ مَا لِيْٓ اَدْعُوْكُمْ اِلَى النَّجٰوةِ) په دې کښې دَ نجات نه مراد ايمان دې.

**قوله: ليس له دعوة: يعنى للوثن:** په آيت کښې دی (لَا جَرَمَ اَنَّمَا تَدْعُوْنَنِيْٓ اِلَيْهِ لَيْسَ لَهٗ دَعْوَةٌ فِي الدُّنْيَا وَلَا فِي الْاٰخِرَةِ) يعنى ظاهره ده چه دَ کوم څيز طرف ته تاسو ما رابلئ هغه نه په دنيا کښې دَ چا دعا قبلولې شی نه په آخرت کښې. فرمائى "ليس له دعوة" کښې "له" دَ ضمير مرجع "وثن" يعنى بت دې، اوبت په دنيا او آخرت کښې دَ چا دعا نشى قبلولې.

**قوله: يسجرون: توقد بهم النار:** په آيت مبارك کښې دی (ثُمَّ فِي النَّارِ يُسْجَرُوْنَ) بيا به هغه خلق په اور کښې وراوتوبنلې شی. فرمائى دَ "يسجرون" معنى ده په هغوى به اُور بل کړې شی يعنى هغوى دَ دوزخ خشاك جوړ کړې شی.

**قوله: تمرحون: تبطرون:** (ذٰلِكُمْ بِمَا كُنْتُمْ تَفْرَحُوْنَ فِي الْاَرْضِ بِغَيْرِ الْحَقِّ وَبِمَا كُنْتُمْ تَمْرَحُوْنَ) دا (سزا) دَ هغې په بدله کښې ده چه تاسو په دنيا کښې برناحقه خوشحالئ کولې اود هغې په بدله کښې ده چه تاسو به بدمعاشى کوله. فرمائى دَ "تمرحون" معنى ده "تبطرون" يعنى بدمعاشى مو کوله.

وَكَانَ الْعَلَاءُ بْنُ زِيَادٍ يُذَكِّرُ النَّارَ فَقَالَ رَجُلٌ لِمَ تُقَنِّطُ النَّاسَ قَالَ وَأَنَا أَقْدِرُ أَنْ أُقَنِّطَ النَّاسَ وَاللّٰهُ عَزَّ وَجَلَّ يَقُولُ يَا عِبَادِيَ الَّذِينَ أَسْرَفُوا عَلٰى أَنْفُسِهِمْ لَا تَقْنَطُوا مِنْ رَحْمَةِ اللّٰهِ وَيَقُولُ وَأَنَّ الْمُسْرِفِينَ هُمْ أَصْحَابُ النَّارِ وَلٰكِنَّكُمْ تُحِبُّونَ أَنْ تُبَشَّرُوا بِالْجَنَّةِ عَلٰى مَسَاوِئِ أَعْمَالِكُمْ وَإِنَّمَا بَعَثَ اللّٰهُ مُحَمَّدًا صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مُبَشِّرًا بِالْجَنَّةِ لِمَنْ أَطَاعَهُ وَمُنْذِرًا بِالنَّارِ مَنْ عَصَاهُ

(١) دَ ذکرشوى تفصيل دَ پاره فتح البارى ٨/٥٥٤ : اوګورئ-

حضرت علاء بن زیاد مشهور پرهیزګاره تابعی دي(۱) هغوی به خلقو ته اُور یادولو او په خپل بیان کښې به ئې دَ ترهیب په توګه دَ جهنم ذکر کولو نو یو سړی هغوی ته اوو‌ئیل چه ته خلق ولې نااميده او مایوسه کوې؟ هغوی وئیل چه زه په دې قادریم چه خلق مایوسه کړم او دَ الله تعالی ارشاد مبارک دې ﴿يٰعِبَادِيَ الَّذِيْنَ اَسْرَفُوْا عَلٰٓى اَنْفُسِهِمْ لَا تَقْنَطُوْا مِنْ رَّحْمَةِ اللّٰهِ﴾ او وئی فرمائیل "وان المسرفین هم اصحاب النار" دَ اول آیت مفهوم دې په خپلو ځانونوباندې ظلم کونکی او اسراف کونکی دې دَ الله تعالی دَ رحمت نه مایوسه کیږی نه دَ توبې او الله تعالی طرف ته دَ رجوع کولو دروازه دَ هغوی دَ پاره کولاؤ ده. دَ دوئم آیت مطلب دې که څوك توبه نه کوی او هم په اسراف کښې اخته وی نو دوزخ هم دَ داسې خلقو دَ پاره دې. نودَ داسې امید ورکولو نه دَ ډك آیت په موجودګئی کښې زماځه قدرت دې چه زه خلق دَ الله تعالی دَ رحمت نه مایوسه کړم خو ولې ته دا غواړې چه په بدواعمالوهم تاته دَ جنت زیرې درکړیشی. حالانکه محمد ﷺ دَ هغه خلقو دَ جنت دَ زیری ورکولو دَ پاره رالیږلې شوې وو څوك چه دَ هغوی ﷺ تابعداری کوی دَ الله تعالی نه ګناه کونکودَ پاره هغوی ﷺ دَ اُور نه ویرونکې رالیږلې وو.

[۴۵۳۷] حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا الْوَلِيْدُ بْنُ مُسْلِمٍ حَدَّثَنَا الْأَوْزَاعِيُّ قَالَ حَدَّثَنِي يَحْيَى بْنُ أَبِي كَثِيْرٍ قَالَ حَدَّثَنِي مُحَمَّدُ بْنُ إِبْرَاهِيْمَ التَّيْمِيُّ قَالَ حَدَّثَنِي عُرْوَةُ بْنُ الزُّبَيْرِ قَالَ قُلْتُ لِعَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عَمْرِو بْنِ الْعَاصِ أَخْبِرْنِي بِأَشَدِّ مَا صَنَعَ الْمُشْرِكُوْنَ بِرَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ بَيْنَا رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُصَلِّي بِفِنَاءِ الْكَعْبَةِ إِذْ أَقْبَلَ عُقْبَةُ بْنُ أَبِي مُعَيْطٍ فَأَخَذَ بِمَنْكِبِ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَلَوَى ثَوْبَهُ فِي عُنُقِهِ فَخَنَقَهُ بِهِ خَنْقًا شَدِيْدًا فَأَقْبَلَ أَبُوْ بَكْرٍ فَأَخَذَ بِمَنْكِبِهِ وَدَفَعَ عَنْ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَقَالَ أَتَقْتُلُوْنَ رَجُلًا أَنْ يَقُوْلَ رَبِّيَ اللّٰهُ وَقَدْ جَاءَكُمْ بِالْبَيِّنَاتِ مِنْ رَبِّكُمْ

عقبه بن ابی معیط دَ رسول الله ﷺ په سټ مبارك کښې کپړا واچوله اودَ هغوی ﷺ مرئی په زور سره خفه کړه نو حضرت صدیق اکبر رضی الله عنه راغلو اودَ عقبه نه ئې هغوی ﷺ جدا کړل او

---

(۱) علاء بن زیاد مشهور زاهد تابعی دي، ابونعیم اصفهانی رحمه الله "حلیة الاولیاء(۲/۲۴۲" کې دَ دوئی تذکره په دې الفاظوسره شروع کړې ده :المبشر المحزون، المستر المخزون، تجرد من التلاد، وتشمر للمهاد، وقدم العتاد للمعاد. واعتزل عن العباد :العلاء بن زیاد - په عبادت کښې به دومره مستغرق وو چه دَ خپل صحت خیال به ئی هم نه ساتلو، کله چه صحت ډیرخراب شواو خلقوته پته اولګیده نو حضرت انس رضی الله عنه او حضرت حسن بصری رحمه الله هغوی له راغله او وئی فرمائیل چه تا خو خپل صحت تباه کړو، الله تعالی خوداسې کولو حکم نه دې ورکړې .وئی فرمائیل زه دا عاجزی او هرڅه دَ دې دَ پاره کوم چه الله تعالی په ما رحم اوکړی، فرمائیل به ئی چه ما په خوب کښې یوه بدرنګه سپیره ښځه اولیده چه دَ هرقسم سنګار ئی کړې وو، ما هغې ته اوو‌ئیل دَ الله تعالی پناه دا ته څوك ئی وئیل زه دنیا یم، که ته زمانه پناه غواړې نودَ دراهمونه نفرت اختیار کړه .دَ هغوی دَ تفصیلی حالات دَ پاره اوګورئ حلیة الاولیاء(۲۴۹-۲/۲۴۲:

هغه خبره ئی اوکړه چه هغه مؤمن سړی د فرعون په وړاندې کړې وه کله چه هغه د حضرت موسیٰ علیه السلام د قتل کولواراده کړې وه یعنی (اَتَقْتُلُوْنَ رَجُلًا اَنْ یَّقُوْلَ رَبِّیَ اللّٰهُ وَقَدْ جَآءَكُمْ بِالْبَیِّنٰتِ مِنْ رَّبِّكُمْ ط)

## [۳۰۱] باب: تفسیر سورة حٰم السّجدة (فُصّلت)

وقال طاوس، عن ابن عباس: وائتیا طوعا: اعطیا. قالتا اتینا طائعین: اعطینا.

## سورة حٰم السّجدة

دلته کښې اشکال دې چه ائتیا معنی د راتلوده، د اعطاء معنی ئی نه ده، نو بیا ابن عباس رضی الله عنهما ولې په اعطیا او اعطینا سره تفسیر کړې دې.

د دې جواب دا دې چه د ابن عباس رضی الله عنهما په قراءت کښې اٰتِیَا او اٰتَیْنَا د مدسره دې. اٰتِیَا او اٰتَیْنَا دا صیغې مواتاة د باب مفاعله نه دی. اتیان د باب ضرب صیغې نه دی او مواتاة معنی برابروالې دې. نو مطلب دا شوچه زمکې او آسمان ته حکم ورکولې شی چه تاسو دواړونه کوم مقصدونه مطلوب دی د هغوی په ادا کولوکښې یوبل سره برابروالې کوئی، د آسمان نه به د نمر او سپوږمئی رڼرا راځی، باران به وریږی، زمکه به غله راټوکوی، لباسونه او دوایانې به ورکوی، دا نظام به د دواړو په اتفاق سره چلیږی.

[۴۵۳۷ م] وَقَالَ الْمِنْهَالُ عَنْ سَعِيدٍ قَالَ قَالَ رَجُلٌ لِابْنِ عَبَّاسٍ إِنِّي أَجِدُ فِي الْقُرْآنِ أَشْيَاءَ تَخْتَلِفُ عَلَى قَالَ (فَلَا أَنْسَابَ بَيْنَهُمْ يَوْمَئِذٍ وَلَا يَتَسَاءَلُونَ). (وَأَقْبَلَ بَعْضُهُمْ عَلَى بَعْضٍ يَتَسَاءَلُونَ). (وَلَا يَكْتُمُونَ اللَّهَ حَدِيثًا). (رَبِّنَا مَا كُنَّا مُشْرِكِينَ) فَقَدْ كَتَمُوا فِي هَذِهِ الْآيَةِ، وَقَالَ (أَمِ السَّمَاءُ بَنَاهَا) إِلَى قَوْلِهِ (دَحَاهَا) فَذَكَرَ خَلْقَ السَّمَاءِ قَبْلَ خَلْقِ الْأَرْضِ، ثُمَّ قَالَ (أَئِنَّكُمْ لَتَكْفُرُونَ بِالَّذِي خَلَقَ الْأَرْضَ فِي يَوْمَيْنِ) إِلَى (طَائِعِينَ) فَذَكَرَ فِي هَذِهِ خَلْقَ الْأَرْضِ قَبْلَ السَّمَاءِ، وَقَالَ (وَكَانَ اللَّهُ غَفُورًا رَحِيمًا) عَزِيزًا حَكِيمًا سَمِيعًا بَصِيرًا، فَكَأَنَّهُ كَانَ ثُمَّ مَضَى. فَقَالَ (فَلَا أَنْسَابَ بَيْنَهُمْ) فِي النَّفْخَةِ الْأُولَى ثُمَّ يُنْفَخُ فِي الصُّورِ، فَصَعِقَ مَنْ فِي السَّمَاوَاتِ وَمَنْ فِي الْأَرْضِ إِلَّا مَنْ شَاءَ، فَلَا أَنْسَابَ بَيْنَهُمْ عِنْدَ ذَلِكَ وَلَا يَتَسَاءَلُونَ، ثُمَّ فِي النَّفْخَةِ الْآخِرَةِ أَقْبَلَ بَعْضُهُمْ عَلَى بَعْضٍ يَتَسَاءَلُونَ، وَأَمَّا قَوْلُهُ (مَا كُنَّا مُشْرِكِينَ). (وَلَا يَكْتُمُونَ اللَّهَ) فَإِنَّ اللَّهَ يَغْفِرُ لِأَهْلِ الْإِخْلَاصِ ذُنُوبَهُمْ وَقَالَ الْمُشْرِكُونَ تَعَالَوْا نَقُولُ لَمْ نَكُنْ مُشْرِكِينَ. فَخَتَمَ عَلَى أَفْوَاهِهِمْ فَتَنْطِقُ أَيْدِيهِمْ، فَعِنْدَ ذَلِكَ عُرِفَ أَنَّ اللَّهَ لَا يُكْتَمُ حَدِيثًا وَعِنْدَهُ (يَوَدُّ الَّذِينَ كَفَرُوا) الْآيَةَ، وَخَلَقَ الْأَرْضَ فِي يَوْمَيْنِ، ثُمَّ خَلَقَ السَّمَاءَ، ثُمَّ اسْتَوَى إِلَى السَّمَاءِ، فَسَوَّاهُنَّ فِي يَوْمَيْنِ آخَرَيْنِ ثُمَّ دَحَا الْأَرْضَ، وَدَحْوُهَا أَنْ أَخْرَجَ مِنْهَا الْمَاءَ وَالْمَرْعَى، وَخَلَقَ الْجِبَالَ وَالْجِمَالَ وَالْآكَامَ وَمَا بَيْنَهُمَا فِي يَوْمَيْنِ آخَرَيْنِ، فَذَلِكَ قَوْلُهُ (دَحَاهَا)، وَقَوْلُهُ (خَلَقَ الْأَرْضَ فِي يَوْمَيْنِ) فَجُعِلَتِ الْأَرْضُ وَمَا

فِيهَا مِنْ شَيْءٍ فِي أَرْبَعَةِ أَيَّامٍ وَخُلِقَتِ السَّمَوَاتُ فِي يَوْمَيْنِ. (وَكَانَ اللَّهُ غَفُورًا) سَمَّى نَفْسَهُ ذَلِكَ وَذَلِكَ قَوْلُهُ، أَيْ لَمْ يَزَلْ كَذَلِكَ، فَإِنَّ اللَّهَ لَمْ يُرِدْ شَيْئًا إِلَّا أَصَابَ بِهِ الَّذِي أَرَادَ، فَلَا يَخْتَلِفْ عَلَيْكَ الْقُرْآنُ، فَإِنَّ كُلًّا مِنْ عِنْدِ اللَّهِ. قَالَ أَبُو عَبْدِ اللَّهِ حَدَّثَنِي يُوسُفُ بْنُ عَدِيٍّ حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللَّهِ بْنُ عَمْرٍو عَنْ زَيْدِ بْنِ أَبِي أُنَيْسَةَ عَنِ الْمِنْهَالِ بِهَذَا.

**د قرانى ايتونو متعلق د حضرت ابن عباس رضى الله عنهما نه څلور سوالات:** يو سړى د حضرت ابن عباس رضی الله عنهما په خدمت کښې حاضر شو، دا سړې څوك وو؟حافظ ابن حجر رحمه الله اوفرمائيل چه غالبا دا نافع بن ازرق وو چه روستو د ازارقه فرقې مشر جوړشو(۱)- هغه د حضرت ابن عباس رضی الله عنهما نه د قرآن د آياتونو باره کښې څلور سوالونه اوکړل. ړومبنى درې سوالونه د هغه آياتونو متعلق دى کوموکښې چه په ظاهره تعارض ښکارى.

① اولنې سوال هغه دا اوکړو د قرآن کريم په سورة مؤمنون کښې دى ﴿فَلَا أَنْسَابَ بَيْنَهُمْ يَوْمَئِذٍ وَلَا يَتَسَاءَلُونَ﴾ او د سورة صافات آيت دې ﴿وَأَقْبَلَ بَعْضُهُمْ عَلَى بَعْضٍ يَتَسَاءَلُونَ﴾ په ړومبى آيت کښې د دوئم دسوال نفى او په دوئم آيت کښې دده اثبات دې،په ظاهره په دواړوکښې تعارض دې.

حضرت ابن عباس رضی الله عنهما د دې سوال په جواب کښې اوفرمائيل چه د ړومبى آيت تعلق نفخه اولى يعنى اولې شپيلئى سره دې چه کله اوله شپيلئى پوکوهلې شى هغه وخت به ټول بې

---

۱) فتح البارى ۸/۵۵۷. **فرقه ازارقه :** د ازارقه فرقې تعلق د خوارجو متشدد ډلې سره دې د کوم بنياد چه نافع بن الازرق کيخودې دې .کوم ته چه فرقه ازارقه" امير المؤمنين "په لقب سره يادولو، د خوارجو په فرقه کښې د دوئ نه زيات متشدد او د شمير او شان او شوکت په اعتبار سره يوه ډله د دوئ برابر نه وه .د ۶۰ هجرى نه پس دوئ راپيداشوې وو، د عمان او يمامه خوارج سره ملاؤ شونو د دوئ شمير شل زره ته رسيدلې وو .او د" اهواز "اود دې خاوشا د فارس په زمکو او کرمان باندې د دوئ قبضه وه .د مسلمانانو دوئ سره څلور جنګونه شوى، کوموکښې چه په دريوکښې مسلمانانوماتې خوړلې او په څلورم جنګ کښې ازارقه ته ذبردسته ماتې شوې وه .د حضرت مهلب بن ابى صفره په مشرئى کښې يو جرار لښکر په دولاب کښې د هغوى مقابله اوکړه کوم کښې چه د هغوى امير المؤمنين نافع بن ازرق هلاك شو، دې نه پس دې خلقو "ايدج "کښې قطرى بن الفجاء په لاس باندې بيعت اوکړو او هغه ئې هم د امير المؤمنين په لقب سره ياد کړو .حضرت مهلب بن ابى صفرد د نورلسو) (۱۹ کالوپورې هغوى سره جنګ کولو، څه موده د حضرت عبدالله بن زبير) په زمانه کښې او څه د عبد الملك بن مروان په زمانه کښې .دا جنګ د مهلب بن ابى صفره او د ازارقه په مينځ کښې يو شان ګرم شروع وو، تردې چه ازارقه په دوو ډلوکښې تقسيم شو .يوه ډله" عبدربه الکبير قطرى "سره يوځائ شوه او دوئمه ډله" عبدربه الصغير "سره يوځائ شو .آخر سفيان بن الابرد په قلعه قوس کښې محاصره کولوسره د هغوى خاتمه اوکړه. د ازارقه ډلې څه عقيدې دا وې. ① خپلو مخالفينوته به ئې مشرکان وئيل ②چه چابه د هغوى موافق کيدو نه باوجودهجرت نه کولو هغه هم د هغوى په نيز کافر او مشرك وو③کوسړې به چه د هغوى په لښکر کښې داخليدل غوښتل د خپلو مخالف خلقو يو سړې به ئې قيدى کولو د هغوى په وړاندې قتل کول په هغه باندې لازم وو کنې په فوځ کښې به نشو شاملولې بلکه هغه به ئې قتل کولو④د خپلو مخالفينو ښځې او بچى قتلول به ئې مباح ګڼړل اود هغه ماشومانو متعلق به ئې مخلد فى النار کيدو عقيده لرله ⑤. درجم منکروو .د دې فرقې د تفصيلى حالاتود کتلود پاره اوګورئى)الفرق بن الفرق

هوښه شي او دَ يو بل سره به څه تعلق پاتې نشي او نه به دَ يو بل نه سوال کولې شي. دَ دوئم آيت تعلق دوئمې شپيلئ سره دې. په دوئم ځل دَ شپيلئ پوکوهلو نه پس به خلق دَ يو بل نه سوال کوی نو په دې دواړو آياتونوکښې هيڅ تعارض نشته ځکه چه عدم تساؤل دَ دوئم ځل شپيلئ پوکوهلو نه پس او تساؤل دَ دوئم ځل نه پس دې.

② دوئم سوال دا ووچه په سورة نساء کښې دی ﴿وَلَا يَكْتُمُونَ اللّٰهَ حَدِيثًا﴾ دَ کوم نه چه معلوميږی چه دَ قيامت په ورځ به کافر او مشرك يوه خبره هم نشی پټولې او په سورة انعام کښې دی ﴿وَاللّٰهِ رَبِّنَا مَا كُنَّا مُشْرِكِينَ﴾ دې نه معلوميږی چه هغوی به خپل شرك پټوی په ظاهره په دواړو آياتونو کښې تعارض دې.

حضرت ابن عباس رضی الله عنهما اوفرمائيل چه کله الله تعالى دَ اخلاص خاوندان معاف کړی اودَ هغوی ښننه اوکړې نو مشرکان به وائی چه راځئ مونږ هم وايوچه مونږ مشرکان نه وو نو بيا به الله تعالى دَ هغوی په ژبوباندې مهر اولګوی اودَ هغوی ښپې لاسونه به خبرې کوی. په دغه وخت کښې به معلومه شی چه دَ الله تعالى نه يوه خبره هم نشی پټولې، کتمان دَ شهادت جوارح نه اول دې او عدم کتمان دَ جوارح دَ شهادت نه پس دې نو هيڅ تعارض نشته.

③ دريم سوال هغه دا اوکړو چه په سورة نازعات کښې دی ﴿ءَأَنْتُمْ أَشَدُّ خَلْقًا أَمِ السَّمَاءُ بَنَاهَا﴾.... الى قوله... ﴿وَالْأَرْضَ بَعْدَ ذَٰلِكَ دَحَاهَا﴾ نه معلوميږی چه آسمان دَ زمکې نه اول پيدا شويدې خودَ سورة حم سجده ايت ﴿أَئِنَّكُمْ لَتَكْفُرُونَ بِالَّذِي خَلَقَ الْأَرْضَ...الى قوله: طَائِعِينَ﴾ نه دَ دې په خلاف دا معلوميږی چه زمکه دَ آسمان نه اول پيدا شويده. په ظاهره په دواړو خبروکښې اختلاف او تعارض دې.

دَ دې جواب دا دې چه دَ دې په پيداکيدوکښې شپږ ورځې لګيدلی دی او ترتيب دا دې دَ ټولونه اول زمکه پيدا شوه، دې نه پس آسمان پيدا کړو، دې نه پس "دحوارض" هوا يعنی په دې کښې ونې، غرونه غونډئی او دَ زمکې نورمخلوقات پيدا کړو او دا ئی په دې کښې خواره کړل. نودَ نفس زمکې پيدائش دَ آسمانونودَ پيداکولونه مخکښې دې دَ کوم چه په سورة حم سجده کښې ذکر دې او "دحوارض" پيدائش دَ آسمان نه پس واقع شوی دی دَ څه چه په سورة نازعات کښې تذکره ده نو هيڅ تعارض نشته. دَ زمکې او آسمان په پيداکولوکښې شپږ ورځې دَ عالم اسباب په وجه اولګولې شوې ګنی نو الله تعالى صرف دَ يو "کن" په اشاره سره ټول څيزونه دَ عدم نه وجود ته راوستلې شو خو په عالم اسباب کښې تدريجی عمل کيږی په دې وجه الله تعالى هم تدريجی طريقې ته ترجيح ورکړه.

④ څلورم سوال هغه دا اوکړو چه په قرآن کريم کښې ځائ په ځائ ﴿وَكَانَ اللّٰهُ غَفُورًا رَّحِيمًا﴾ ، ﴿وَكَانَ اللّٰهُ عَزِيزًا حَكِيمًا﴾ راغلی دی په دې کښې "کان" دَ تيرې شوې زمانې دَ پاره راځی کوم نه چه معلوميږی چه الله تعالى دې صفاتوسره صرف دَ ماضی يعنی تيره شوې زمانه کښې موصوف وو اوس نه دې؟

ددې دا جواب ورکړو چه الله تعالى دَ خپل ذات تسميه "غفور، رحيم" وغيره سره اوفرمائيله نو دا نوم کيخودل خو ښکاره خبره ده چه تيرشوی خو دا صفات او دې سره دَ ذات باری

تعالى اتصاف باقى دې. دَ كوم صفت چه چا سره تعلق وى دَ هغه دَ پاسه دَ هغې اثر مرتب وى، دَ الله تعالى صفت رحمت چه چاسره متعلق وى نو په هغه باندې به دَ رحمت اثر مرتب وى، چه دَ مغفرت صفت متعلق وى نودَ دې اثر به مرتب وى. محقق دوانى ليكلى دى چه ادوات رابطه مجرد دَ ثبوت دَ پاره راځى په دې كښې دَ زمانې اعتبار او لحاظ نشى كولې.

(١)كه دَ هغوى دا خبره اومنلې شى نو بيابه دَ سره اشكال نه وى. والله اعلم.

وَقَالَ مُجَاهِدٌ (مَمْنُونٍ) مَحْسُوبٍ. (أَقْوَاتَهَا) أَرْزَاقَهَا. (فِي كُلِّ سَمَاءٍ أَمْرَهَا) مِمَّا أَمَرَ بِهِ. (نَحِسَاتٍ) مَشَائِيمَ (وَقَيَّضْنَا لَهُمْ قُرَنَاءَ) قَرَنَّاهُمْ بِهِمْ. (تَتَنَزَّلُ عَلَيْهِمُ الْمَلَائِكَةُ) عِنْدَ الْمَوْتِ. (اهْتَزَّتْ) بِالنَّبَاتِ. (وَرَبَتْ) ارْتَفَعَتْ. وَقَالَ غَيْرُهُ (مِنْ أَكْمَامِهَا) حِينَ تَطْلُعُ. (لَيَقُولَنَّ هَذَا لِي) أَيْ بِعَمَلِي أَنَا مَحْقُوقٌ بِهَذَا. (سَوَاءً لِلسَّائِلِينَ) قَدَّرَهَا سَوَاءً. (فَهَدَيْنَاهُمْ) دَلَلْنَاهُمْ عَلَى الْخَيْرِ وَالشَّرِّ كَقَوْلِهِ (وَهَدَيْنَاهُ النَّجْدَيْنِ) وَكَقَوْلِهِ (هَدَيْنَاهُ السَّبِيلَ) وَالْهُدَى الَّذِي هُوَ الْإِرْشَادُ بِمَنْزِلَةِ أَصْعَدْنَاهُ مِنْ ذَلِكَ قَوْلُهُ (أُولَئِكَ الَّذِينَ هَدَى اللَّهُ فَبِهُدَاهُمُ اقْتَدِهْ). (يُوزَعُونَ) يُكَفُّونَ. (مِنْ أَكْمَامِهَا) قِشْرُ الْكُفُرَّى هِيَ الْكُمُّ. (وَلِيٌّ حَمِيمٌ) الْقَرِيبُ. (مِنْ مَحِيصٍ) حَاصَ حَادَ. (مِرْيَةٍ) وَمُرْيَةٍ وَاحِدٌ أَيِ امْتِرَاءٌ، وَقَالَ مُجَاهِدٌ (اعْمَلُوا مَا شِئْتُمْ) الْوَعِيدُ. وَقَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ (الَّتِي هِيَ أَحْسَنُ) الصَّبْرُ عِنْدَ الْغَضَبِ وَالْعَفْوُ عِنْدَ الْإِسَاءَةِ فَإِذَا فَعَلُوهُ عَصَمَهُمُ اللَّهُ، وَخَضَعَ لَهُمْ عَدُوُّهُمْ كَأَنَّهُ وَلِيٌّ حَمِيمٌ.

**د كلماتو تشريح:**

**قوله: اقواتها: ارزقها:** په آيت مبارك كښې دى ﴿وَبٰرَكَ فِيهَا وَقَدَّرَ فِيهَآ أَقْوَاتَهَا﴾ اوالله تعالى په زمكه كښې بركتونه كيخودل او په دې كښې(په دې دَ اوسيدونكو دَ پاره) خوراكونه تجويز كړل. فرمائى چه اقوات معنى ده خوراكونه، ارزاق دَ رزق جمع ده او اقوات دَ قوت جمع ده.

**قوله: فى كل سماء امرها:** په آيت مبارك كښې دى ﴿وَأَوْحَىٰ فِي كُلِّ سَمَآءٍ أَمْرَهَا﴾ په دې كښې ﴿أَمْرَهَا﴾ تفسير "مما امربه" نه دې يعنى چه دَ كوم څيز الله تعالى فرښتوته حكم وركړو نو الله تعالى په هر آسمان باندې دَ دې څيز وحى راوليږله دَ كوم چه فرښتوته حكم وركړيشو.

**قوله: نحسات: مشائيم:** په آيت مبارك كښې دى ﴿فَأَرْسَلْنَا عَلَيْهِمْ رِيحًا صَرْصَرًا فِىٓ أَيَّامٍ نَّحِسَاتٍ﴾ موږه هغوى باندې په سپيره ورځوكښې سختې هواګانې راوليږلې ﴿نَّحِسَاتٍ﴾ معنى ده سپيره او بدې... **مشائيم:** مشومة جمع ده په معنى سپيره.

**قوله: تتنزل عليهم الملائكة: عند الموت:** په آيت مبارك كښې دى ﴿إِنَّ الَّذِينَ قَالُوا رَبُّنَا اللَّهُ ثُمَّ

---

(١) حمدالله شرح مسلم العلوم٢٩ :وشرح تهذيب ٨٠ :وحاشية حمدالله للشيخ عبدالله ټونكى٢٥: حاشية-٥:

اسْتَقَامُوا تَتَنَزَّلُ عَلَيْهِمُ الْمَلٰٓئِكَةُ) کوموخلقو چه اقرار اوکړو چه زمونږ رب الله دې (یعنی شرك نې پرېخودو او توحیدئی اختیار کړو) بیا په دې باندې کلك پاتې شو نو په هغوی باندې (دَ الله دَ طرف نه دَ رحمت) فرښتې نازلیږی، امام بخاری رحمه الله فرمائی دَ فرښتو نازلیدل دَ مرګ په وخت کښې کیږی.

**قوله: وقيضنا لهم قرناء: قرناهم بهم:** په آیت کښې "قرناء" نه شیطانان مراد دی یعنی مونږ دې کافرانو سره هغه شیطانان یوځائ اوتړل.

**قوله: اهتزت: بالنبات، وربت: ارتفعت:** په آیت مبارك کښې دی (فَإِذَآ أَنزَلْنَا عَلَيْهَا الْمَآءَ اهْتَزَّتْ وَرَبَتْ) دَ (اهْتَزَّتْ) دوه تفسیرونه شوی دی، اول تفسیر دا دې چه زمکه خوریږی نو دَ بوټو ښاخونه دَ زمکې نه راوځی او په دویم تفسیرکښې دَ تیغ نه دَ میوې راوتل مراد دی او "ربت" معنی ده زمکه پاسیږی، اوچتیږی.

**قوله: فهديناهم، وهديناه النجدين، هديناه السبيل:** په دې دریواړو آیتونوکښې دَ هدایت نه اراءة الطريق مراد دې او هغه هدایت چه ایصال الی المطلوب په معنی کښې وی هغه دَ "اصعاد" په مفهوم کښې وی. امام بخاری رحمه الله فرمائی "فهديناهم دللناهم على الخير والشر كقوله: وهديناه النجدين وكقوله: وهديناه السبيل، والهدى الذى هو الارشاد بمنزلة اصعدناه، من ذلك قوله: اولئك الذين هداهم الله، فبهداهم اقتده" اصعاد(صاد سره) او اسعاد(سین سره)دواړو سره صحیح دې. په اول صورت کښې به معنی وی مونږ هغه اوچت کړل، اورسول او دَ اسعدنا معنی به وی مونږ هغه نیك بخت جوړکړل او ایصال الی المطلوب په صورت کښې هم انسان پوره نیك بخت او سعادت مند کیدې شی. دا معنی دَ څلورم آیت " اولئك الذين هداهم الله، فبهداهم اقتده" کښې مراد ده.

**قوله: وقال غيره: من اكمامها: حين تطلع:** په آیت کښې دی (وَمَا تَخْرُجُ مِن ثَمَرَٰتٍ مِّنْ أَكْمَامِهَا) اکمام "کم" جمع ده دَ تیغ جلئی او دَ غونچې پوستکی ته وائی، دَ دې مفرد کم دَ کاف زیر او پیش دواړوسره مستعمل دې، چه دَ کاف دَ زیر سره وی نو صرف پوستکی او پردې په معنی کښې وی او دَ کاف په پیش سره چه وی نو دَ دې معنی غلاف هم راځی او لستونړی ته هم وائی[1] وراندې امام دَ دې په تشریح کښې قشر الكفرى، "كفرى" او کم یوه معنی ده.

**قوله: ليقولن هذا لي: اي بعملي انا محقوق بهذا:** په آیت مبارك کښې دی (وَلَئِنْ أَذَقْنَٰهُ رَحْمَةً مِّنَّا مِنۢ بَعْدِ ضَرَّآءَ مَسَّتْهُ لَيَقُولَنَّ هَٰذَا لِى) که چرې مونږ دوی ته دَ څه تکلیف نه پس چه هغوی ته

---

[1] عمدة القاري-١٩/١٥٣:

واقع شوى وى دَ خپلې مهربانئى مزه وركړونووائى چه داخوهم زمونږ دَ پاره پكار وه. فرمائى هذالى معنى ده بعملى يعنى دا زما دَ عمل دَ وجه دى زه دَ دې حقدار يم.

**قوله: سواء للسائلين: قدرها سواء:** په آيت مبارك كښې دى ﴿وَقَدَّرَ فِيهَآ أَقْوَاتَهَا فِىٓ أَرْبَعَةِ أَيَّامٍ سَوَآءً لِّلسَّآئِلِينَ﴾ او الله په دې زمكه كښې(دَ دې دَ اوسيدونكودَ پاره) خوراكونه تجويزكړل په څلورو ورځوكښې(اوهغه زمكه) برابره ده دَ سوال كونكودَ پاره. فرمائى سواء للسائلين معنى ده دا زمكه برابره او يو شان كولوسره تجويز كړه يعنى ټول دينه فائده اوچتولې شى او ټول دينه عبرت حاصلولې شى.

**قوله: من محيص: حاص، حاد:** په آيت مبارك كښې دى ﴿وَظَنُّوا مَا لَهُم مِّن مَّحِيصٍ﴾ په دې كښې محيص "حاص" نه ماخوذ دې حاص عنه په معنى حادعنه: اخواكيدل، ډډه كول، جدا كيدل، محيص: بچاؤ خلاصې.

**قوله: ولى حميم: القريب:** ﴿كَأَنَّهُ وَلِىٌّ حَمِيمٌ﴾ دَحميم معنى ده نزدې، نزدې دوست.

**قوله: وقال مجاهد: اعملوا ما شئتم: الوعيد:** آيت مبارك كښې دى ﴿اعْمَلُوا مَا شِئْتُمْ ۖ إِنَّهُ بِمَا تَعْمَلُونَ بَصِيرٌ﴾ څه چه مو زړه غواړى كوئى، هغه ستاسو هرڅه كونكى وينى. فرمائى ﴿اعْمَلُوا مَا شِئْتُمْ﴾ په خپله حقيقى معنى كښې نه دې بلكه دا وعيد دې او دَ توبيخ او تهديد په توګه ويلې شويدې.

**قوله: وقال ابن عباس: ادفع بالتى هى احسن: الصبرعندالغضب والعفو عندالاساءة، فاذافعلوه عصمهم الله، وخضع لهم عدوهم:** په آيت مبارك كښې دى ﴿وَلَا تَسْتَوِى الْحَسَنَةُ وَلَا السَّيِّئَةُ ۚ ادْفَعْ بِالَّتِى هِىَ أَحْسَنُ فَإِذَا الَّذِى بَيْنَكَ وَبَيْنَهُ عَدَاوَةٌ كَأَنَّهُ وَلِىٌّ حَمِيمٌ﴾ حضرت ابن عباس رضي الله عنه فرمائى چه "التى هى احسن" مطلب دا دې چه دَ غصې په وخت كښې صبر كول او دَ نه برداشت او بدئى په وخت كښې معافى اختياروئى. كله چه خلق دَ صبر او معافئى نه كار اخلى نوالله تعالى دَ هغوى حفاظت كوى اودَ هغوى دښمنان هم دَ هغوى مخې ته په عاجزئى او تواضع سره مخامخ كيږى. شيخ الاسلام مولاناشبير احمدعثمانى صاحب رحمه الله دَ دې آيت په ذيل كښې ليكى: "په دې آيت كښې چه يو رښتونى داعى الى الله ته دَ كومو خو اخلاقو ضرورت دې، دَ هغې تعليم وركوى، يعنى ښه پوهه شئى، نيكى دَ بدئى او بدى دَ نيكئې برابركيدې نشى. دَ دواړو اثر بيل اوجدا دې، بلكه يوه نيكى دَ بلې نيكئى نه او يوه بدى دَ بلې بدئى نه په اثر كښې زياته وى. نو دَ يو قانت مؤمن او خاصكر دَ يو داعى الى الله دا مسلك كيدل پكار دى چه دَ بدئى جواب په بدئى سره نه روكوى بلكه چه تركومې پورې ګنجائش وى دَ بدئى په مقابله كښې په نيكئى سره پيش كيږئى. كه څوك ده ته سخته خبره اوكړى يا دَ بدئى معامله اوكړى نودَ هغې په مقابله كښې هغه طرز اختيارول پكار دى چه دَ ذې نه ښه وى، مثلاً دَ غصې په جواب كښې برداشت، دَ كنځلوپه جواب كښې تهذيب او ښه

خبره اود سختني په جواب كښې نرمي او مهرباني سره پيش كيدل. د داسې كار په نتيجه كښې به تاسو او كورئي چه د سخت نه سخت دښمن به هم سست شي او كه د زړه دوست جوړ هم نشي خو يووخت به راشي چه هغه به په ظاهره بانديې د يوخوږ او ګرمجوش دوست په شان تاسره سلوك كوي. ممكنه ده چه يوخو ورخې پس د ښمنتوني زړه نه دوست جوړ شي او د دښمنني او عداوت خيالات ئې بالكل د زړه نه اوځي. او كه د يو سړي طور طريقه د مار لړم په شان وي چه هيڅ نرم خوئي او اخلاق په هغه اثر نه كوي نو هغه بله خبره ده خوداسې كسان ډير كم وي.[1]

## [٣٠٢]بَاب: قَوْلُهُ: وَمَا كُنْتُمْ تَسْتَتِرُونَ أَنْ يَشْهَدَ عَلَيْكُمْ سَمْعُكُمْ وَلَا أَبْصَارُكُمْ

وَلَا جُلُودُكُمْ وَلَكِنْ ظَنَنْتُمْ أَنَّ اللَّهَ لَا يَعْلَمُ كَثِيرًا مِمَّا تَعْمَلُونَ

[٤٥٣٨] [2] حَدَّثَنَا الصَّلْتُ بْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ زُرَيْعٍ عَنْ رَوْحِ بْنِ الْقَاسِمِ عَنْ مَنْصُورٍ عَنْ مُجَاهِدٍ عَنْ أَبِي مَعْمَرٍ عَنْ ابْنِ مَسْعُودٍ وَمَا كُنْتُمْ تَسْتَتِرُونَ أَنْ يَشْهَدَ عَلَيْكُمْ سَمْعُكُمْ وَلَا أَبْصَارُكُمْ الْآيَةَ قَالَ كَانَ رَجُلَانِ مِنْ قُرَيْشٍ وَخَتَنٌ لَهُمَا مِنْ ثَقِيفَ أَوْ رَجُلَانِ مِنْ ثَقِيفَ وَخَتَنٌ لَهُمَا مِنْ قُرَيْشٍ فِي بَيْتٍ فَقَالَ بَعْضُهُمْ لِبَعْضٍ أَتُرَوْنَ أَنَّ اللَّهَ يَسْمَعُ حَدِيثَنَا قَالَ بَعْضُهُمْ يَسْمَعُ بَعْضَهُ وَقَالَ بَعْضُهُمْ لَئِنْ كَانَ يَسْمَعُ بَعْضَهُ لَقَدْ يَسْمَعُ كُلَّهُ فَأُنْزِلَتْ وَمَا كُنْتُمْ تَسْتَتِرُونَ أَنْ يَشْهَدَ عَلَيْكُمْ سَمْعُكُمْ وَلَا أَبْصَارُكُمْ الْآيَةَ

## [٣٠٣]بَاب: قوله: وَذَلِكُمْ ظَنُّكُمُ الَّذِي ظَنَنْتُمْ بِرَبِّكُمْ أَرْدَاكُمْ فَأَصْبَحْتُمْ مِنَ الْخَاسِرِينَ

[٤٥٣٩| ٤٥٤٠] حَدَّثَنَا الْحُمَيْدِيُّ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ حَدَّثَنَا مَنْصُورٌ عَنْ مُجَاهِدٍ عَنْ أَبِي مَعْمَرٍ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ اجْتَمَعَ عِنْدَ الْبَيْتِ قُرَشِيَّانِ وَثَقَفِيٌّ أَوْ ثَقَفِيَّانِ وَقُرَشِيٌّ كَثِيرَةٌ شَحْمُ بُطُونِهِمْ قَلِيلَةٌ فِقْهُ قُلُوبِهِمْ فَقَالَ أَحَدُهُمْ أَتُرَوْنَ أَنَّ اللَّهَ يَسْمَعُ مَا نَقُولُ قَالَ الْآخَرُ يَسْمَعُ إِنْ جَهَرْنَا وَلَا يَسْمَعُ إِنْ أَخْفَيْنَا وَقَالَ الْآخَرُ إِنْ كَانَ يَسْمَعُ إِذَا جَهَرْنَا فَإِنَّهُ يَسْمَعُ إِذَا أَخْفَيْنَا

---

[1]) تفسير عثماني ٦٣٩ :فائده نمبر-١

[2]) وايضا اخرجنه فى كتاب التوحيد، باب قول الله تعالى، وماكنتم تستترون ان يشهدعليكم سمعكم والابصاركم ولاجلودكم، رقم الحديث ٧٥٢١:واخرجه مسلم فى اوايل صفات المنافقين واحكامهم، رقم الحديث٢٧٧٥:. واخرجه الترمذى فى التفسير، باب سورة السجدة، رقم الحديث٣٢٤٨:. واخرجه النسائى فى التفسير، باب قول الله عزوجل :وماكنتم تستترون ان يشهدعليكم سمعكم، رقم الحديث-(١١٤٦٨/١

فَأَنْزَلَ اللّٰهُ عَزَّ وَجَلَّ وَمَا كُنْتُمْ تَسْتَتِرُونَ أَنْ يَشْهَدَ عَلَيْكُمْ سَمْعُكُمْ وَلَا أَبْصَارُكُمْ وَلَا جُلُودُكُمْ الْآيَةَ

**د سند توضیح:** دلته دَ بخاری شیخ عبدالله بن زبیری حمیدی دي، هغوی روایت کوی دَ سفیان بن عینیه نه، سفیان، منصور بن المعتمر نه روایت کوی، منصور دَ مجاهدنه، مجاهددَ ابومعمر عبدالله بن سخبره رحمه الله نه او هغه دَ عبدالله بن مسعود رضی الله عنه نه نقل کوی.

وَكَانَ سُفْيَانُ يُحَدِّثُنَا بِهٰذَا فَيَقُولُ حَدَّثَنَا مَنْصُورٌ أَوِ ابْنُ أَبِي نَجِيحٍ أَوْ حُمَيْدٌ أَحَدُهُمْ أَوِ اثْنَانِ مِنْهُمْ ثُمَّ ثَبَتَ عَلَى مَنْصُورٍ وَتَرَكَ ذٰلِكَ مِرَارًا غَيْرَ مَرَّةٍ وَاحِدَةٍ

دا دَ بخاری شیخ حمیدی رحمه الله قول دي هغوی فرمائی چه سفیان ته دَ شروع نه دَ خپل شیخ متعلق تردد وو او هغه به دَ دریو شیخانونومونه اخستل او وئیل به ئی "حدثنا منصور، او ابن ابی نجیح، اوحمید، احدهم او اثنان منهم: یعنی دا حدیث مونږ دَ منصور نه بیان کړې یا دَ عبدالله ابن ابی نجیح نه یا د حمیدی نه، په دې دریواړو کښې دَ یو نه مونږ دا حدیث اوریدلې یعنی سفیان ته خو دومره خبره یقینی یاده وه چه په دې دریواړو کښې یو یا دوو دا حدیث بیان کړې دې.لیکن په کلکه ئی په یو کس یقین نه ووخو روستو بیا دَ هغه تردد لرې شو اوهم دَ منصور نوم ئی واخستلو[1]

**قوله:** فَإِنْ يَصْبِرُوا فَالنَّارُ مَثْوًى لَهُمْ...الاية.

[۴۵۴۰]حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ عَلِيٍّ حَدَّثَنَا يَحْيَى حَدَّثَنَا سُفْيَانُ الثَّوْرِيُّ قَالَ حَدَّثَنِي مَنْصُورٌ عَنْ مُجَاهِدٍ عَنْ أَبِي مَعْمَرٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بِنَحْوِهِ

## [۳۰۴]باب تفسیرسُورَةُ حٰمٓ عٓسٓقٓ (الشورٰی)

وَيُذْكَرُ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ عَقِيمًا الَّتِي لَا تَلِدُ رُوحًا مِنْ أَمْرِنَا الْقُرْآنُ وَقَالَ مُجَاهِدٌ يَذْرَؤُكُمْ فِيهِ نَسْلٌ بَعْدَ نَسْلٍ لَا حُجَّةَ بَيْنَنَا وَبَيْنَكُمْ لَا خُصُومَةَ بَيْنَنَا وَبَيْنَكُمْ مِنْ طَرْفٍ خَفِيٍّ ذَلِيلٍ وَقَالَ غَيْرُهُ فَيَظْلَلْنَ رَوَاكِدَ عَلَى ظَهْرِهِ يَتَحَرَّكْنَ وَلَا يَجْرِينَ فِي الْبَحْرِ شَرَعُوا ابْتَدَعُوا

## سورة حٰمٓ عٓسٓقٓ

**د کلماتو تشریح:**

**قوله:** عقيما: لاتلد: آیت مبارك کښې دی (وَيَجْعَلُ مَنْ يَشَاءُ عَقِيمًا) نه مراد هغه ښځه ده چه بچې نه راوړی یعنی شنډه دَ چا چه اولاد نه وی.

**قوله:** روحا من امرنا: القران: آیت مبارك کښې دی (وَكَذٰلِكَ أَوْحَيْنَا إِلَيْكَ رُوحًا مِنْ أَمْرِنَا)

---

[1])عمدة القاری-۱۹/۱۵۵:

فرمائی په دې کښې (رُوۡحًا مِّنۡ اَمۡرِنَا) نه قرآن کريم مراد دې.

**قوله: وقال مجاهد: يذرؤكم فيه: نسل بعد نسل:** (جَعَلَ لَكُمۡ مِّنۡ اَنۡفُسِكُمۡ اَزۡوَاجًا وَّمِنَ الۡاَنۡعَامِ اَزۡوَاجًا ۚ يَذۡرَؤُكُمۡ فِيۡهِ) يعنى الله تعالى په انسانانواو څناورو دواړو کښې جوړې پيدا کړې دى دغه شان هغه په دې دواړوکښې د يو نسل نه پس بل نسل زياتوى او خوروى.

يذرؤكم: اى يخلقكم ويكثركم

**قوله: لاحجة بيننا: لاخصومة:** آيت مبارك کښې دى (لَنَاۤ اَعۡمَالُنَا وَلَكُمۡ اَعۡمَالُكُمۡ ؕ لَا حُجَّةَ بَيۡنَنَا وَبَيۡنَكُمۡ) په دې کښې (حُجَّةَ) نه ناراضګى او جګړه مراد ده يعنى زمونږ او ستاسو مينځ کښې هيڅ جګړه نشته.

**قوله: طرف خفي: ذليل:** آيت مبارك کښې دى (خٰشِعِيۡنَ مِنَ الذُّلِّ يَنۡظُرُوۡنَ مِنۡ طَرۡفٍ خَفِيٍّ) د ذلت په وجه به ټيټ شوې وى او په مړ نظر سره به ګورى. فرمائى د (طَرۡفٍ خَفِيٍّ) معنى ده ذليل نظر، کمزورې نظر.

**قوله: وقال غيره: فيظلمن رواكد على ظهره: يتحركن ولايجرين في البحر:** آيت مبارك کښې دى (وَمِنۡ اٰيٰتِهِ الۡجَوَارِ فِى الۡبَحۡرِ كَالۡاَعۡلَامِ ؕ اِنۡ يَّشَاۡ يُسۡكِنِ الرِّيۡحَ فَيَظۡلَلۡنَ رَوَاكِدَ عَلٰى ظَهۡرِهٖ) او تولوکښې د هغه (د قدرت) د نښو جهازونه دى په سمندر کښې (داسې اوچت) لکه غرونه، که هغه اوغواړى نو هوا به اودروى نو هغه جهازونه به د سمندر د سرد پاسه اودريږى. د مجاهدنه غير وئيلى دى چه په آيت کښې (فَيَظۡلَلۡنَ رَوَاكِدَ عَلٰى ظَهۡرِهٖ) مطلب دا دې چه په خپل مقام باندې خو(د چپو په سپيرو) خوزيږى ولې په سمندرکښې به روان نشى.

**قوله: شرعوا: ابتدعوا:** آيت مبارك کښې دى (اَمۡ لَهُمۡ شُرَكٰٓؤُا شَرَعُوۡا لَهُمۡ مِّنَ الدِّيۡنِ مَا لَمۡ يَاۡذَنۡۢ بِهِ اللّٰهُ) آيا د هغوى (تجويز شوى) څه شريك شته چا چه د هغوى د پاره داسې دين مقرر کړې دې د کوم چه الله تعالى اجازت نه دې ورکړې. د شرعوا معنى ده ابتدعوا: نوې دين راويستل.

## [٣٠٥] بَاب: قَوۡلِهِ: اِلَّا الۡمَوَدَّةَ فِى الۡقُرۡبٰى

[٤٥٤١] حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بۡنُ بَشَّارٍ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بۡنُ جَعۡفَرٍ حَدَّثَنَا شُعۡبَةُ عَنۡ عَبۡدِ الۡمَلِكِ بۡنِ مَيۡسَرَةَ قَالَ سَمِعۡتُ طَاوُسًا عَنِ ابۡنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنۡهُمَا اَنَّهُ سُئِلَ عَنۡ قَوۡلِهِ اِلَّا الۡمَوَدَّةَ فِى الۡقُرۡبٰى فَقَالَ سَعِيۡدُ بۡنُ جُبَيۡرٍ قُرۡبٰى آلِ مُحَمَّدٍ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيۡهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ ابۡنُ عَبَّاسٍ عَجِلۡتَ اِنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيۡهِ وَسَلَّمَ لَمۡ يَكُنۡ بَطۡنٌ مِنۡ قُرَيۡشٍ اِلَّا كَانَ لَهُ فِيۡهِمۡ قَرَابَةٌ فَقَالَ اِلَّا اَنۡ تَصِلُوۡا مَا بَيۡنِى وَبَيۡنَكُمۡ مِنَ الۡقَرَابَةِ

**د ايت کريمه تفسير:** آيت مبارك کښې ارشاد دې (قُلۡ لَّاۤ اَسۡـَٔلُكُمۡ عَلَيۡهِ اَجۡرًا اِلَّا الۡمَوَدَّةَ فِى الۡقُرۡبٰى) د نبى کريم ﷺ خبره به قريشو په ښه توګه نه اوريدله، په دې وجه الله تعالى هغوى ﷺ ته اوفرمائيل چه دې خلقو ته اووايه چه زه خو تاسو نه څه د بدلې مطالبه نه کوم، کم نه کم د

رشته دارئى او خپلولئى خيال اوساتئى او تاسو زما خبره په توجو سره اورئى او دَ ظلم او تكليف رسولو نه منع شئى.

دَ حضرت ابن عباس رضي الله عنه نه دَ دې آيت متعلق تپوس اوشو نو سعيد بن جبير) اوفرمائيل چه دَ آل محمد ﷺ خپلوان ترې مراد دى، حضرت ابن عباس رضي الله عنه اوفرمائيل تا تندى اوكړه دَ قريشو يو څانګه هم داسې نه ده كوموكښې چه دَ رسول الله ﷺ رشته دارى نه وى.

دَ سعيد بن جبير رحمه الله دَ كلام نه معلوميدله چه (الْمَوَدَّةَ فِي الْقُرْبَىٰ) كښې دَ قربت نه دَ نبى كريم ﷺ نزدې رشته دار بنوهاشم مراد دى، حضرت ابن عباس اوفرمائيل چه دې نه ټول قريش مراد دى صرف بنو هاشم مراد نه دى.

دَ حضرت سعيد رحمه الله اوحضرت ابن عباس رضي الله عنه په جوابونوكښې فرق دا دې چه دَ سعيدبن جبير) په نيزبه دَ آيت معنى دا وى چه زه تاسو نه په تبليغ باندې څه اجرت نه غواړم بس دومره غواړم چه زما اقارب (بنوالمطلب) سره مينه كوئى، حضرت ابن عباس رضي الله عنه دا معنى اونه منله چه دَ اقارب سره دَ مينې طلب كول هم اجرت دې. بلكه بنوهاشم او بنوالمطلب نه ټول قريش دَ هغوى ﷺ اقارب دى. په دې وجه دَ دې معنى دَ هغوى په نيز دا ده چه زه تاسو نه بدله نه غواړم ليكن كم نه كم ظلم او زياتى نه منع شئى څكه چه دَ خپلولئى خو بهرحال دا تقاضاده . دَ لامع الدرارى په حاشيه كښې دى: "وحاصل كلام سعيد: ما اطلب منكم ايها الناس، الا ان تودوا القربائى، فقال ابن عباس: غلطت، لانه ايضا اجرة، واما توجيه ابن عباس، حاصله: ما اطلب اجرا منكم ايها العرب، لكن اطلب منكم ان تصلوا القرابة، كما هودابكم، ولا تضروني"[1]

هم دا خبره حضرت مولانا انورشاه كشميرى رحمه الله داسې فرمائيلې: "حاصل تفسير سعيدبن جبير ان النبى صلى الله عليه وسلم سالهم عن مراعاة اهل قرابته، وحاصل تفسيرابن عباس، سالهم عن مراعاة نفسه، لاجل قرابته فى جميع البطون"[2]

## [۳۰۶] باب تفسير سورة حم الزخرف

وَقَالَ مُجَاهِدٌ عَلَى أُمَّةٍ عَلَى إِمَامٍ وَقِيلَهُ يَارَبِّ تَفْسِيرُهُ أَيَحْسِبُونَ أَنَّا لَا نَسْمَعُ سِرَّهُمْ وَنَجْوَاهُمْ وَلَا نَسْمَعُ قِيلَهُمْ

## سُورَةُ حم الزُّخْرُفِ

**د كلماتو تشريح:**

**قوله: على امة: على امام:** (بَلْ قَالُوْا إِنَّا وَجَدْنَا آبَاءَنَا عَلَى أُمَّةٍ وَإِنَّا عَلَى آثَارِهِمْ مُهْتَدُونَ) بلكه اووئيلې هغوى چه اوموندل مونږ پلاران خپل په يوه طريقه، او مونږ هم دَ هغوى په قدمونو لار بياموندو، دَ لفظ "امت" تفسير دين، ملت او امام سره كړې دې، امام بخارى رحمه الله دَ

[1] تعليقات الدرارى-۹/۱۶۱ :

[2] فيض البارى-۴/۲۳۰ :

امام" تفسير نقل كړيدي.

**قوله: وقيله يارب، تفسيره ايحسبون انالانسمع سرهم ونجواهم، ولانسمع قيلهم:**

د "**وقيله يا رب ان هؤلاء قوم لايؤمنون**"، **تفسير**: په آيت مبارك كښې دى(وَقِيلِهِ يَٰرَبِّ إِنَّ هَٰٓؤُلَآءِ قَوۡمٞ لَّا يُؤۡمِنُونَ) دَدې آيت تعلق امام بخارى رحمه الله دَ دينه اووه آياته وړاندې آيت سره تړلې دې.

هغه دادې (أَمۡ يَحۡسَبُونَ أَنَّا لَا نَسۡمَعُ سِرَّهُمۡ وَنَجۡوَىٰهُمۚ) امام دَ قيله يارب تعلق هم دې سره ګرځولې. په دې صورت كښې "قيله انالانسمع" دَ پاره به مفعول وى او ترجمه به وى"آياهغه كفار دا ګمان كوى چه مونږ دَ هغوى رازونه او دَ غوږخبرې نه اورو او مونږ دَ هغوى خبرې اترې نه اورو" خو دَ دې تفسير بعضې حضراتو انكار كړيدې خكه چه دا تفسير هغه وخت صحيح كيديشى كله چه دَ "قيله" ضمير دَ مشركانوطرف ته راجع وى او هغه جمع دى خو په دې كښې ضمير مفرد دې، نو علامه عينى رحمه الله ليكى: "**وبعضهم انكر هذاالتفسير فقال: انما يصح لوكانت التلاوة وقيلهم**" (١)اكثر حضراتو دا ضمير رسول الله صلى الله عليه وسلم طرف ته راګرځولې دې، بيا دَ دې مختلف تفسيرونه كړيدى.

① "وقيله" كښې واؤ قسميه دې "يارب" دَ قيل مقول دې. او(إِنَّ هَٰٓؤُلَآءِ) جواب قسم دې. په دې صورت كښې به ترجمه وى "قسم دې دَ رسول صلى عليه وسلم دَ هغه ويناچه اې ربه! داخلق يقين نه راوړى" يعنى دَ نبى) وينا كول هم الله تعالى ته معلوم دى او دَ هغوى صلى الله عليه وسلم دَ خلوص نه ډك سوال او دَ دَ درد نه ډك آواز الله صلى الله عليه وسلم قسم خورى چه هغه به دَ هغوى) خامخا امداد كوى او په خپل رحمت سره به هغه غالب او كاميابوى.(٢)

② يو تفسير دا شوې دې چه "وقيله" كښې واؤ عاطفه دې او دَ دې عطف دَ دې آيت نه دوه آياته وړاندې (وَعِندَهُۥ عِلۡمُ ٱلسَّاعَةِ) باندې كيږى. په دې صورت كښې به مطلب دا وى چه الله صلى الله عليه وسلم ته دَ قيامت هم علم دې اودَ رسول صلى عليه وسلم دَ هغه وينا هم علم دې.(٣)

دَ دې دواړو تفسيرونو په صورت كښې "وقيله" مجرور دې، په اول تفسير كښې دَ واؤ قسميه په وجه او په دونم تفسير كښې دَ "الساعة" مضاف اليه باندې دَ عطف په وجه، نودَ عاصم او حمزه په قراءت كښې دا مجرور دې او باقى قاريان دا منصوب لولى.(٤)

**وَقَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ وَلَوْلَا أَنْ يَكُونَ النَّاسُ أُمَّةً وَاحِدَةً لَوْلَا أَنْ جَعَلَ النَّاسَ كُلَّهُمْ**

---

(١) عمدة القارى ١٩/١٥٧:
(٢) تفسير عثمانى ٦٥٨ :فائده نمبر-١١
(٣) بيان القرآن ٢/٩٧ :ج-١٠
(٤) عمدة القارى-١٥٨-١٩/١٥٧:

كُفَّارًا لَجَعَلْتُ لِبُيُوتِ الْكُفَّارِ سَقْفًا مِنْ فِضَّةٍ وَمَعَارِجَ مِنْ فِضَّةٍ وَهِيَ دَرَجٌ وَسُرُرُ فِضَّةٍ مُقْرِنِينَ مُطِيقِينَ آسَفُونَا أَسْخَطُونَا يَعْشُ يَعْمَى وَقَالَ مُجَاهِدٌ أَفَنَضْرِبُ عَنْكُمُ الذِّكْرَ أَيْ تُكَذِّبُونَ بِالْقُرْآنِ ثُمَّ لَا تُعَاقَبُونَ عَلَيْهِ وَمَضَى مَثَلُ الْأَوَّلِينَ سُنَّةُ الْأَوَّلِينَ وَمَا كُنَّا لَهُ مُقْرِنِينَ يَعْنِي الْإِبِلَ وَالْخَيْلَ وَالْبِغَالَ وَالْحَمِيرَ يَنْشَأُ فِي الْحِلْيَةِ الْجَوَارِي جَعَلْتُمُوهُنَّ لِلرَّحْمَنِ وَلَدًا فَكَيْفَ تَحْكُمُونَ لَوْ شَاءَ الرَّحْمَنُ مَا عَبَدْنَاهُمْ يَعْنُونَ الْأَوْثَانَ يَقُولُ اللَّهُ تَعَالَى مَا لَهُمْ بِذَلِكَ مِنْ عِلْمٍ أَيِ الْأَوْثَانُ إِنَّهُمْ لَا يَعْلَمُونَ فِي عَقِبِهِ وَلَدِهِ مُقْتَرِنِينَ يَمْشُونَ مَعًا سَلَفًا قَوْمُ فِرْعَوْنَ سَلَفًا لِكُفَّارِ أُمَّةِ مُحَمَّدٍ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَمَثَلًا عِبْرَةً يَصِدُّونَ يَضِجُّونَ مُبْرِمُونَ مُجْمِعُونَ أَوَّلُ الْعَابِدِينَ أَوَّلُ الْمُؤْمِنِينَ.

وَقَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ وَلَوْلَا أَنْ يَكُونَ النَّاسُ أُمَّةً وَاحِدَةً لَوْلَا أَنْ جَعَلَ النَّاسَ كُلَّهُمْ كُفَّارًا لَجَعَلْتُ لِبُيُوتِ الْكُفَّارِ سَقْفًا مِنْ فِضَّةٍ وَمَعَارِجَ مِنْ فِضَّةٍ وَهِيَ دَرَجٌ وَسُرُرُ فِضَّةٍ

آيت مبارك کښې دی ﴿وَلَوْلَا أَنْ يَكُونَ النَّاسُ أُمَّةً وَاحِدَةً لَجَعَلْنَا لِمَنْ يَكْفُرُ بِالرَّحْمَٰنِ لِبُيُوتِهِمْ سُقُفًا مِنْ فِضَّةٍ وَمَعَارِجَ عَلَيْهَا يَظْهَرُونَ﴾ دَ دې آيت په تفسيرکښې حضرت ابن عباس رضي الله عنهما فرمائی که چرې داخبره نه وه چه زه به ټول خلقو لره کافر جوړکړم نومابه دَ کافرانودَ کورونوچتونه دَ سپينو زرو کړی وواو پاوړنی هم دَ سپينو زرو. معارج معنی سپين زرو پاوړنی او دَ سپينوزرو تخت دې. علامه شبيراحمد عثمانی صاحب رحمه الله فرمائی : دَ الله تعالی سره دَ دې دنياوی مال او دولت هيڅ قدر او قيمت نشته، اونه دَ دې ورکړه څه دَ الله تعالی دَ نزديکت څه دليل دې.داخوداسې بې قدره او سپک څيز دې که چرې يوخاص مصلحت منع کونکې نه وو نوالله تعالیٰ به دَ کافرانودَ کورونوچتونه، پاوړنی، دروازې، چوکاټونه،تالې تختونه او چوکئ ټول دَ سپينوزرو او سرو زرو جوړکړی وو خو په دې صورت کښې چه دا خلق ګوری چه کافرانو ته داسې سامان ملاويږينو عموماً به ئی دَ کفرلار اختيارولې(الاماشاء الله) او دا څيزونه به دَ الله تعالی دَ مصلحت نه خلاف وو، په دې وجه ئې داسې اونه کړل.

په حديث شريف کښې دی که دَ الله تعالی په نيز دَ دنياقدر دَ مچ دَ وزر برابر وې نو کافرته به يو ګوټ اوبه هم نه ملاويدې. نو چه يوڅيز دَ الله تعالی په نيز دومره سپک وی نو هغه دَالله تعالی په نيز سيادت او وجاهت اودَ نبوت او رسالت معيارګرځول به ترکومې پورې صحيح وی.

**د کلماتو تشريح:**

**قوله: مقرنين : مطيقين :** آيت مبارك کښې دی ﴿سُبْحَانَ الَّذِي سَخَّرَ لَنَا هَٰذَا وَمَا كُنَّا لَهُ مُقْرِنِينَ﴾ پاك دې هغه ذات چا چه زمونږ دَ پاره داڅيزونه مسخر کړل او مونږ خو داسې (طاقتور او هنرمند) نه ووچه دامو قابوکړې وې. فرمائی په دې کښې "مقرنين" معنی ده "مطيقين" يعنی طاقتور او په قابوکښې راوستلووالا.

**قوله: اسفونا: اسخطونا:** آيت مبارك کښې دی ﴿فَلَمَّا آسَفُونَا انْتَقَمْنَا مِنْهُمْ فَأَغْرَقْنَاهُمْ أَجْمَعِينَ﴾ په دې

کښې " اسفونا" معنی " اسخطونا" ده، یعنی چه کله خلقو مونږ ته غصه راوستله نومونږ دَ هغوی نه بدله واخستله او هغه ټول موغرق کړل.

**قوله: یعش: یعمی:** آیت مبارك کښې دی (وَمَنْ يَعْشُ عَنْ ذِكْرِ الرَّحْمٰنِ نُقَيِّضْ لَهُ شَيْطٰنًا فَهُوَ لَهُ قَرِيْنٌ) او کوم سړې چه دَ الله تعالی دَ نصیحت نه ځان ړوندکړی مونږ په ده باندې یوشیطان مسلط کوو بیا هغه هروخت ده سره اوسیږی. دې کښې " یعش" معنی ده ړوندجوړیدل.

**قوله: افنضرب عنکم الذکر: ای تکذبون بالقران: ثم لاتعاقبون علیه:** آیت کښې دی (أَفَنَضْرِبُ عَنْكُمُ الذِّكْرَ صَفْحًا أَنْ كُنْتُمْ قَوْمًا مُسْرِفِيْنَ) آیا مونږ به دا نصیحت صرف په دې وجه تاسو نه اخوا کړوچه تاسو دَ حدنه زیاتې کونکې قوم ئې. مجاهد رحمه الله فرمائی" افنضرب عنکم الذکر" معنی داده چه آیاتاسوبه قرآن دروغ گڼړئی اوبیا به هم تاسوله سزانشی درکولې.

**قوله: ومضی مثل الاولین: سنة الاولین:** آیت کریمه کښې دی (فَأَهْلَكْنَا أَشَدَّ مِنْهُمْ بَطْشًا وَمَضٰى مَثَلُ الْأَوَّلِيْنَ) بیا مونږ هغه خلق چه دَ دوی (اهل مکه) نه زیات زورآور وو، دَ تکذیب او ټوقو مسخرو په سزا کښې) تباه کړل او دَ ړومبو خلقو دا حالت شوې دې. فرمائی چه آیت کښې مثل الاولین نه سنة الاولین مراد دې یعنی دَ وړاندینوخلقو طریقه.

**قوله: وماکناله مقرنین: یعنی الابل والخیل والبغال والحمیر:** مونږ دا په قابوکښې راوستونکې نه وو، دینه مراد اوښ اس قچر او خر دې. دینه علاوه نورې سورلئی هم مراد کیدیشی، موټر لارئی اوجهاز وغیره هم دې کښې داخل دی.

**قوله: لوشاء الرحمن ما عبدناهم: یعنون الاوثان، یقول الله تعالی: ماهم بذلك من علم:** آیت مبارك کښې دی (وَقَالُوْا لَوْ شَآءَ الرَّحْمٰنُ مَا عَبَدْنٰهُمْ ۗ مَا لَهُمْ بِذٰلِكَ مِنْ عِلْمٍ ۚ إِنْ هُمْ إِلَّا يَخْرُصُوْنَ) امام بخاری رحمه الله فرمائی "ماعبدناهم" کښې "هم" ضمیر بتانوطرف ته راجع دې ځکه چه وړاندې الله تعالی " مالهم بذلك من علم" اوفرمائیل یعنی مشرکان وائی که الله تعالی غوښتلې نو مونږ به دَ دې بتانوعبادت نه کولو او دَ دې بتانو هغه ته هیڅ علم نشته دا صرف دَ اټکل نه کار اخلی. بعضوونیلی دی" ماعبدناهم" کښې ضمیرملائکه طرف ته راگرځی او مطلب دا دې که الله تعالی غوښتل نومونږ به د دې ملائکه عبادت نه کولو، وړاندې الله تعالی دَ هغوی تردید اوکړو" مالهم بذلك من علم" یعنی دوی ته دَ دې خبرې هیڅ علم نشته، بې تحقیقه خبره کوی.

**قوله: فی عقبه: ولده:** آیت مبارك کښې ارشاد دې (وَجَعَلَهَا كَلِمَةً بَاقِيَةً فِيْ عَقِبِهٖ لَعَلَّهُمْ يَرْجِعُوْنَ) او هغه یعنی (ابراهیم علیه السلام) هغوی ته یو باقی پاتې کیدونکې کلمه په خپل اولاد کښې هم جوړه کړه (یعنی حضرت ابراهیم علیه السلام دَ توحید عقیده دَ خپل ذات پورې محدودنه کړه بلکه خپل اولاد ته ئې هم په دې دَ قائم پاتې کیدو وصیت اوکړو. فرمائی دَ عقبه نه ولد مراد دې.

**قوله: مقرنین: یمشون معاً:** آیت کښې دی (اَوْجَآءَمَعَهُ الْمَلٰٓئِكَةُ مُقْتَرِنِيْنَ۝) فرمائی مقرنین معنی ده سره سره تلونکې یعنی یابه هغه سره فرښتې یوځائ تلې)لکه چه امیرانو او رئیسانو سره چه اردلیان او خادمان روان وی)

**قوله: سلفاً: قوم فرعون سلفاً لکفار امة محمد صلی الله علیه وسلم، مثلاً: عبرةً:** آیت شریف کښې دی (فَجَعَلْنٰهُمْ سَلَفًا وَّمَثَلًا لِّلْاٰخِرِيْنَ۝) بیا مونږ هغوی لره دَ راتلونکو دَ پاره پیش رو او نمونه، عبرت جوړ کړل،په آیت کښې دَ سلفاً نه دَ فرعون قوم مراد دې چه دَ محمد ﷺ دَ امت دَ کافرانو دَ پاره پیش رو، نمونه او عبرت دې مثلاً معنی ده، عبرت

**قوله: یصدون: یضجون:** آیت کښې دی (اِذَا قَوْمُكَ مِنْهُ يَصِدُّوْنَ۝) معنی ده چغې،شور او غوغا کوی یعنی ناخاپی ستا قوم)دَ اعتراض په اوریدو) نه)دَ خوشحالئی نه) چغې وهی.

**قوله: مبرمون: مجمعون:** آیت کښې دی (اَمْ اَبْرَمُوْٓا اَمْرًا فَاِنَّا مُبْرِمُوْنَ۝) آیاهغوی (رسول صلی علیه وسلم ته د نقصان رسولودپاره) اودرولې شوی دی، یوخبره خوبه مونږ هم اودروو. فرمائی مبرمون نه معنی ده مجمعون په یوځائ فیصله کونکی.

**وَقَالَ غَيْرُهُ إِنَّنِي بَرَاءٌ مِمَّا تَعْبُدُونَ الْعَرَبُ تَقُولُ نَحْنُ مِنْكَ الْبَرَاءُ وَالْخَلَاءُ وَالْوَاحِدُ وَالِاثْنَانِ وَالْجَمِيعُ مِنَ الْمُذَكَّرِ وَالْمُؤَنَّثِ يُقَالُ فِيهِ بَرَاءٌ لِأَنَّهُ مَصْدَرٌ وَلَوْ قَالَ بَرِيءٌ لَقِيلَ فِي الِاثْنَيْنِ بَرِيئَانِ وَفِي الْجَمِيعِ بَرِيئُونَ وَقَرَأَ عَبْدُ اللَّهِ إِنَّنِي بَرِيءٌ بِالْيَاءِ وَالزُّخْرُفُ الذَّهَبُ مَلَائِكَةً يَخْلُفُونَ يَخْلُفُ بَعْضُهُمْ بَعْضًا ابن مسعود رضی الله عنهما**

په آیت مبارك کښې دی (وَاِذْ قَالَ اِبْرٰهِيْمُ لِاَبِيْهِ وَقَوْمِهٖٓ اِنَّنِيْ بَرَآءٌ مِّمَّا تَعْبُدُوْنَ۝) هرکله چه ابراهیم عليه السلام خپل پلار او قوم ته اوفرمائیل چه زه دَ دې څیزونو)عبادت) نه بیزاره یم دَ کومو چه تاسو عبادت کونې. فرمائی چه په آیت مبارك کښې دَ براء معنی بیزار ده، عرب وائی: **نحن منك البراء والخلاء** یعنی مونږ تانه بیزاره او جدا یو. دَ مفرد، تثنیه، جمع، مذکر او مؤنث ټولودپاره دا استعمالیږی ځکه چه دا مصدر دې)او مصدرکښې دا ټول برابردی) او که چرې بریٔ اووئیلې شی نو هغه وخت به دَ تثنیه دَ پاره بریئان او دَ جمع دَ پاره **بریئون** استعمالیږی. حضرت عبدالله بن مسعود رضی الله عنه قراءت "بریٔ" دې.

**قوله: الزخرف: الذهب:** آیت مبارك کښې دی (وَلِبُيُوْتِهِمْ اَبْوَابًا وَّسُرُرًا عَلَيْهَا يَتَّكِئُوْنَ۝ وَزُخْرُفًا) اودَ هغوی دَ کورونو دروازې او تخت هم (دَ سپینوزرو کولې) چه په کومو تکیه لګوی کینی او(هم دا څیزونه) به دَ سروزرو هم کول.

**قوله: ملائکة یخلفون: یخلف بعضهم بعضاً:** په آیت مبارك کښې دی (وَلَوْ نَشَآءُ لَجَعَلْنَا مِنْكُمْ مَّلٰٓئِكَةً فِي الْاَرْضِ يَخْلُفُوْنَ۝) اوکه مونږ غوښتې نو مونږ به تانه فرښتې پیدا کړې وې)څنګه چه ناسونه ستاسو بچی پیداکیږی) چه هغوی په زمکه باندې (دَ انسان په شان) یوبل پسې

اوسيدلي. فرمائي چه په آيت کښې ملائکة يخلفون معنى ده په دوی کښې به بعضې دَ بعضو دَ پاره خليفه وی.

[۳۰۷] بَاب: قَوْلُهُ وَنَادَوْا يَا مَالِكُ لِيَقْضِ عَلَيْنَا رَبُّكَ قَالَ إِنَّكُمْ مَاكِثُونَ

(()) حَدَّثَنَا حَجَّاجُ بْنُ مِنْهَالٍ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ بْنُ عُيَيْنَةَ عَنْ عَمْرٍو عَنْ عَطَاءٍ عَنْ صَفْوَانَ بْنِ يَعْلَى عَنْ أَبِيهِ قَالَ سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقْرَأُ عَلَى الْمِنْبَرِ وَنَادَوْا يَا مَالِكُ لِيَقْضِ عَلَيْنَا رَبُّكَ وَقَالَ قَتَادَةُ مَثَلًا لِلْآخِرِينَ عِظَةً لِمَنْ بَعْدَهُمْ وَقَالَ غَيْرُهُ مُقْرِنِينَ ضَابِطِينَ يُقَالُ فُلَانٌ مُقْرِنٌ لِفُلَانٍ ضَابِطٌ لَهُ وَالْأَكْوَابُ الْأَبَارِيقُ الَّتِي لَا خَرَاطِيمَ لَهَا

**قوله: وَقَالَ غَيْرُهُ مُقْرِنِينَ ضَابِطِينَ يُقَالُ فُلَانٌ مُقْرِنٌ لِفُلَانٍ ضَابِطٌ لَهُ:** په آيت کښې دی (وَمَا كُنَّا لَهُ مُقْرِنِينَ) په دې کښې د (مُقْرِنِينَ) معنى ظابطين يعنى په قابو کښې راوستونکی، عرب وائی فلان مقرن لفلان يعنى فلانکی فلانکې په قابو کښې راوستونکې دې.

**قوله: والاکواب: الاباريق التي لاخراطيم لها:** آيت کښې دی (يُطَافُ عَلَيْهِمْ بِصِحَافٍ مِّنْ ذَهَبٍ وَّأَكْوَابٍ) يعنى غلمان به هغوی سره دَ سروزرو پليټونه اودَ اوبولوښی گرځوی "اکواب" نه هغه لوټې مراد دی چه دَ کومې ټوټئ نه وی، خراطيم دَ خرطوم جمع ده. والخرطوم هو مخرج للشراب يشبه الانف يعنى ټوټئ.

أَوَّلُ الْعَابِدِينَ أَيْ مَا كَانَ فَأَنَا أَوَّلُ الْآنِفِينَ وَهُمَا لُغَتَانِ رَجُلٌ عَابِدٌ وَعَبِدٌ وَقَرَأَ عَبْدُ اللَّهِ وَقَالَ الرَّسُولُ يَا رَبِّ وَيُقَالُ أَوَّلُ الْعَابِدِينَ الْجَاحِدِينَ مِنْ عَبِدَ يَعْبَدُ

د "فانا اول العابدين" مختلف تفسيرونه: په آيت کښې دی (قُلْ إِنْ كَانَ لِلرَّحْمَٰنِ وَلَدٌ فَأَنَا أَوَّلُ الْعَابِدِينَ) دَ دې آيت مختلف تفسيرونه بيان کړې شوی دی.

① دَ دې يوعام تفسير چه امام بخاری رحمه الله کړيدې چه دَ اول العابدين معنى اول المؤمنين ده، نو ترجمه به وی "که دَ الله تعالى اولاد وی نو دَ ټولونه وړاندې به دَ هغوی عبادت کونکې زه ووم" مطلب دا که چرې ستاسو دا خبره حق وی او تاسونی ثابته کړئی نو دَ ټولو نه وړاندې دَ دې منونکې زه يم. په دې صورت کښې "ان" په معنى دَ "لو" دې او شرطيه دې.

② دونم تفسير دا دې چه "ان" نافيه دې او (فَأَنَا أَوَّلُ الْعَابِدِينَ) کښې فاء عاطفه ده او معنى ده (مَا كَانَ لِلرَّحْمَٰنِ وَلَدٌ وَأَنَا أَوَّلُ الْعَابِدِينَ) دَ الله تعالى هيڅ اولاد نشته او زه دَ ټولونه اول دَ الله تعالى عبادت کونکې يم.[1]

③ دريم تفسير دا دې چه "ان" نافيه دې او "عابدين" "انفين" او جاحدين په معنى کښې دې

[1] عمدة القاري-۱۹/۱۶۱:

او مطلب دا دې چه دَ الله تعالى هيڅ اولاد نشته، دَ الله تعالى دَ پاره دَ اولاد دَ ثبوت دَ ټولونه اول زه انكاركونكې يم. امام بخارى رحمه الله داتفسير دلته بيان كړې دې عَبِدَ معنى عبادت كولو هم راځى او دَ انكار كولوهم راځى. عابد: عبادت كونكې، مؤمن، عَبِدَ انكاركونكې.

وَقَالَ قَتَادَةُ فِي أُمِّ الْكِتَابِ جُمْلَةِ الْكِتَابِ أَصْلِ الْكِتَابِ ـ أَفَنَضْرِبُ عَنْكُمُ الذِّكْرَ صَفْحًا أَنْ كُنْتُمْ قَوْمًا مُسْرِفِينَ مُشْرِكِينَ وَاللَّهِ لَوْ أَنَّ هَذَا الْقُرْآنَ رُفِعَ حَيْثُ رَدَّهُ أَوَائِلُ هَذِهِ الْأُمَّةِ لَهَلَكُوا فَأَهْلَكْنَا أَشَدَّ مِنْهُمْ بَطْشًا وَمَضَى مَثَلُ الْأَوَّلِينَ عُقُوبَةُ الْأَوَّلِينَ جُزْءًا عِدْلًا

**قوله: وقرأ عبدالله: وقال الرسول يارب:** (وَقِيلِهِ يَرَبِّ إِنَّ هَؤُلَاءِ......) دَ جمهورو قراءت دې، دَ حضرت عبدالله بن مسعود رضى الله عنه قراءت "وقال الرسول يارب" دې دينه اول راتلل پكار وو چرته چه امام دَ مذكوره آيت تفسيركړې. اصل محل دَ دې هلته وو. دا جمله په هندوستانى نسخوكښې ده (زمونږ دَ متن په نسخه كښې نشته)

**قوله: أَفَنَضْرِبُ عَنْكُمُ الذِّكْرَ صَفْحًا أَنْ كُنْتُمْ قَوْمًا مُسْرِفِينَ:** دَ دې آيت لاندې امام بخارى رحمه الله دَ قتاده قول نقل كړيدې "وَاللَّهِ لَوْ أَنَّ هَذَا الْقُرْآنَ رُفِعَ حَيْثُ رَدَّهُ أَوَائِلُ هَذِهِ الْأُمَّةِ لَهَلَكُوا" په خدائى كه داقرآن هغه وخت اوچت شوې وې كله چه دَ امت ړومبنوخلقو دا رد كړې وو نو ټول به هلاك شوې وې. مطلب دا دې چه دَ اسلام په شروع كښې خلقودَ قرآن كريم انكار كولو اودَ دې تعليمات ئې ردكول، كه دَ هغوى دَ رد كولوپه وجه دا اوچت كړېشوې وې نو لويه تباهى او بربادى به وه. په ذكرشوى آيت كښې همدغه خبره بيان كړېشوې ده چه قرآن به په دې وجه نه ختموو چه تاسو دَ حدنه زياتې كونكې ئى.

**قوله: جزءا: عدلا:** آيت كښې دى (وَجَعَلُوا لَهُ مِنْ عِبَادِهِ جُزْءًا) په دې كښې دَ جزء معنى دَ عدل ده، او په معنى د مثال او نظير.

## [٣٠٨] باب: تفسير سورة حم (الدخان)

وَقَالَ مُجَاهِدٌ رَهْوًا طَرِيقًا يَابِسًا وَيُقَالُ رَهْوًا سَاكِنًا عَلَى عِلْمٍ عَلَى الْعَالَمِينَ عَلَى مَنْ بَيْنَ ظَهْرَيْهِ وَزَوَّجْنَاهُمْ بِحُورٍ عِينٍ أَنْكَحْنَاهُمْ حُورًا عِينًا يَحَارُ فِيهَا الطَّرْفُ فَاعْتِلُوهُ ادْفَعُوهُ وَيُقَالُ أَنْ تَرْجُمُونِ الْقَتْلُ وَقَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ كَالْمُهْلِ أَسْوَدُ كَمُهْلِ الزَّيْتِ وَقَالَ غَيْرُهُ تُبَّعٍ مُلُوكُ الْيَمَنِ كُلُّ وَاحِدٍ مِنْهُمْ يُسَمَّى تُبَّعًا لِأَنَّهُ يَتْبَعُ صَاحِبَهُ وَالظِّلُّ يُسَمَّى تُبَّعًا لِأَنَّهُ يَتْبَعُ الشَّمْسَ

## سُورَةُ الدُّخَانِ

**د كلماتو تشريح:**

**قوله: رَهْوًا: طَرِيقًا يَابِسًا:** په آيت مبارك كښې دى (وَاتْرُكِ الْبَحْرَ رَهْوًا إِنَّهُمْ جُنْدٌ مُغْرَقُونَ)

اوتاسودا دریاب دَ سکون په حالت کښې پریږدئی، دَ دې(فرعونیانو) ټول لښکر په دې دریاب کښې) به ډوب کړیشي. مجاهد رحمه الله فرمائي په آیت کښې دَ رهواً معنی ده اوچه لاره.

**قوله: عَلَى الْعَالَمِينَ عَلَى مَنْ بَيْنَ ظَهْرَيْهِ:** آیت مبارك کښې ارشاد دي (وَلَقَدِ اخْتَرْنٰهُمْ عَلٰی عِلْمٍ عَلَی الْعٰلَمِیْنَ) او مونږ بني اسرائیلو ته دَ خپل علم دَ خاطره (بعضې کارونو کښې ټول) جهان خلقو باندې فوقیت ورکړو. فرمائي چه په آیت کښې عَلَى الْعَالَمِينَ معنی ده عَلٰی مَنْ بَیْنَ ظَهْرَیْهِ یعنی په هغه خلقو چه دَ هغوی په مینځ کښې دی او چه دَ هغوی په زمانه کښې دی په هغوی باندې فوقیت ورکړیدې.

**قوله: فَاعْتُلُوهُ: ادْفَعُوهُ:** (خُذُوْهُ فَاعْتِلُوْهُ اِلٰی سَوَآءِ الْجَحِیْمِ) فرشتوته به حکم وی) دوی اونیسئی او په راښکلو راښکلو دَ دوزخ مینځ ته بوځئی. فرمائي فَاعْتُلُوهُ معنی دوی دیکه کړئی.

**قوله: وَزَوَّجْنَاهُمْ بِحُورٍ عِينٍ أَنْكَحْنَاهُمْ حُورًا عِينًا يَحَارُ فِيهَا الطَّرْفُ:** آیت کښې دی (وَزَوَّجْنٰهُمْ بِحُوْرٍ عِیْنٍ) فرمائي ددې معنی ده مونږ به دَ دوی نکاح دَ غټې سترګو حورو سره کوو کوموته په کتوچه سترګې حیران پاتې شی، عین: غټې سترګې.

**قوله: وَقَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ كَالْمُهْلِ أَسْوَدُ كَمُهْلِ الزَّيْتِ:** آیت کښې دی (طَعَامُ الْاَثِیْمِ کَالْمُهْلِ یَغْلِیْ فِی الْبُطُوْنِ) حضرت ابن عباس رضی الله عنه فرمائیل دَ مجرم خوراك به دَ زیتونو دَ خیری په شان تور وی.

**قوله: وَقَالَ غَيْرُهُ تُبَّعٍ مُلُوكُ الْيَمَنِ كُلُّ وَاحِدٍ مِنْهُمْ يُسَمَّى تُبَّعًا لِأَنَّهُ يَتْبَعُ صَاحِبَهُ وَالظِّلُّ يُسَمَّى تُبَّعًا لِأَنَّهُ يَتْبَعُ الشَّمْسَ:** آیت کښې دي (اَهُمْ خَیْرٌ اَمْ قَوْمُ تُبَّعٍ) فرمائي چه دحضرت عبدالله بن عباس رضی الله عنهما غیر وئیلی دی چه تبع دَ یمن بادشاهانوته وائي. په دوی کښې به هریوته تبع وئیلې کیدو، ځکه چه هغه په دَ خپل(تلونکی) نه پس راتلو یعنی چه یو به ختم شونود هغه نه پس به بل راتلو، سورې ته هم تبع وائي ځکه چه هغه دَ سوری تابع وی.

## [۳۰۹] بَاب: فَارْتَقِبْ يَوْمَ تَأْتِي السَّمَاءُ بِدُخَانٍ مُبِينٍ

قَالَ قَتَادَةُ فَارْتَقِبْ فَانْتَظِرْ

[۴۵۴۳] حَدَّثَنَا عَبْدَانُ عَنْ أَبِي حَمْزَةَ عَنِ الْأَعْمَشِ عَنْ مُسْلِمٍ عَنْ مَسْرُوقٍ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ قَالَ مَضَى خَمْسٌ الدُّخَانُ وَالرُّومُ وَالْقَمَرُ وَالْبَطْشَةُ وَاللِّزَامُ

## [۳۱۰] بَاب: يَغْشَى النَّاسَ هَذَا عَذَابٌ أَلِيمٌ

[۴۵۴۴] حَدَّثَنَا يَحْيَى حَدَّثَنَا أَبُو مُعَاوِيَةَ عَنِ الْأَعْمَشِ عَنْ مُسْلِمٍ عَنْ مَسْرُوقٍ قَالَ قَالَ عَبْدُ اللَّهِ إِنَّمَا كَانَ هَذَا لِأَنَّ قُرَيْشًا لَمَّا اسْتَعْصَوْا عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دَعَا عَلَيْهِمْ بِسِنِينَ كَسِنِي يُوسُفَ فَأَصَابَهُمْ قَحْطٌ وَجَهْدٌ حَتَّى أَكَلُوا الْعِظَامَ فَجَعَلَ الرَّجُلُ يَنْظُرُ إِلَى

السَّمَاءِ فَيَرَى مَا بَيْنَهُ وَبَيْنَهَا كَهَيْئَةِ الدُّخَانِ مِنَ الْجَهْدِ فَأَنْزَلَ اللَّهُ تَعَالَى فَارْتَقِبْ يَوْمَ تَأْتِي السَّمَاءُ بِدُخَانٍ مُبِينٍ يَغْشَى النَّاسَ هَذَا عَذَابٌ أَلِيمٌ قَالَ فَأُتِيَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقِيلَ لَهُ يَا رَسُولَ اللَّهِ اسْتَسْقِ اللَّهَ لِمُضَرَ فَإِنَّهَا قَدْ هَلَكَتْ قَالَ لِمُضَرَ إِنَّكَ لَجَرِيءٌ فَاسْتَسْقَى لَهُمْ فَسُقُوا فَنَزَلَتْ إِنَّكُمْ عَائِدُونَ فَلَمَّا أَصَابَتْهُمُ الرَّفَاهِيَةُ عَادُوا إِلَى حَالِهِمْ حِينَ أَصَابَتْهُمُ الرَّفَاهِيَةُ فَأَنْزَلَ اللَّهُ عَزَّ وَجَلَّ يَوْمَ نَبْطِشُ الْبَطْشَةَ الْكُبْرَى إِنَّا مُنْتَقِمُونَ قَالَ يَعْنِي يَوْمَ بَدْرٍ

## [٣١١] بَاب: قَوْلِهِ رَبَّنَا اكْشِفْ عَنَّا الْعَذَابَ إِنَّا مُؤْمِنُونَ

[٤٥٤٥] حَدَّثَنَا يَحْيَى حَدَّثَنَا وَكِيعٌ عَنِ الْأَعْمَشِ عَنْ أَبِي الضُّحَى عَنْ مَسْرُوقٍ قَالَ دَخَلْتُ عَلَى عَبْدِ اللَّهِ فَقَالَ إِنَّ مِنَ الْعِلْمِ أَنْ تَقُولَ لِمَا لَا تَعْلَمُ اللَّهُ أَعْلَمُ إِنَّ اللَّهَ قَالَ لِنَبِيِّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قُلْ مَا أَسْأَلُكُمْ عَلَيْهِ مِنْ أَجْرٍ وَمَا أَنَا مِنَ الْمُتَكَلِّفِينَ إِنَّ قُرَيْشًا لَمَّا غَلَبُوا النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَاسْتَعْصَوْا عَلَيْهِ قَالَ اللَّهُمَّ أَعِنِّي عَلَيْهِمْ بِسَبْعٍ كَسَبْعِ يُوسُفَ فَأَخَذَتْهُمْ سَنَةٌ أَكَلُوا فِيهَا الْعِظَامَ وَالْمَيْتَةَ مِنَ الْجَهْدِ حَتَّى جَعَلَ أَحَدُهُمْ يَرَى مَا بَيْنَهُ وَبَيْنَ السَّمَاءِ كَهَيْئَةِ الدُّخَانِ مِنَ الْجُوعِ قَالُوا رَبَّنَا اكْشِفْ عَنَّا الْعَذَابَ إِنَّا مُؤْمِنُونَ فَقِيلَ لَهُ إِنْ كَشَفْنَا عَنْهُمْ عَادُوا فَدَعَا رَبَّهُ فَكَشَفَ عَنْهُمْ فَعَادُوا فَانْتَقَمَ اللَّهُ مِنْهُمْ يَوْمَ بَدْرٍ فَذَلِكَ قَوْلُهُ تَعَالَى فَارْتَقِبْ يَوْمَ تَأْتِي السَّمَاءُ بِدُخَانٍ مُبِينٍ إِلَى قَوْلِهِ جَلَّ ذِكْرُهُ إِنَّا مُنْتَقِمُونَ

## [٣١٢] بَاب: أَنَّى لَهُمُ الذِّكْرَى وَقَدْ جَاءَهُمْ رَسُولٌ مُبِينٌ الذِّكْرُ وَالذِّكْرَى وَاحِدٌ

[٤٥٤٦] حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ حَرْبٍ حَدَّثَنَا جَرِيرُ بْنُ حَازِمٍ عَنِ الْأَعْمَشِ عَنْ أَبِي الضُّحَى عَنْ مَسْرُوقٍ قَالَ دَخَلْتُ عَلَى عَبْدِ اللَّهِ ثُمَّ قَالَ إِنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَمَّا دَعَا قُرَيْشًا كَذَّبُوهُ وَاسْتَعْصَوْا عَلَيْهِ فَقَالَ اللَّهُمَّ أَعِنِّي عَلَيْهِمْ بِسَبْعٍ كَسَبْعِ يُوسُفَ فَأَصَابَتْهُمْ سَنَةٌ حَصَّتْ يَعْنِي كُلَّ شَيْءٍ حَتَّى كَانُوا يَأْكُلُونَ الْمَيْتَةَ فَكَانَ يَقُومُ أَحَدُهُمْ فَكَانَ يَرَى بَيْنَهُ وَبَيْنَ السَّمَاءِ مِثْلَ الدُّخَانِ مِنَ الْجَهْدِ وَالْجُوعِ ثُمَّ قَرَأَ فَارْتَقِبْ يَوْمَ تَأْتِي السَّمَاءُ بِدُخَانٍ مُبِينٍ يَغْشَى النَّاسَ هَذَا عَذَابٌ أَلِيمٌ حَتَّى بَلَغَ إِنَّا كَاشِفُو الْعَذَابِ قَلِيلًا إِنَّكُمْ عَائِدُونَ قَالَ عَبْدُ اللَّهِ بن مسعود رضي الله عنه أَفَيُكْشَفُ عَنْهُمُ الْعَذَابُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ قَالَ وَالْبَطْشَةُ الْكُبْرَى يَوْمَ بَدْرٍ

## [٣١٣] بَاب: ثُمَّ تَوَلَّوْا عَنْهُ وَقَالُوا مُعَلَّمٌ مَجْنُونٌ

[٤٥٤٧] حَدَّثَنَا بِشْرُ بْنُ خَالِدٍ أَخْبَرَنَا مُحَمَّدٌ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ سُلَيْمَانَ وَمَنْصُورٍ عَنْ أَبِي الضُّحَى عَنْ مَسْرُوقٍ قَالَ قَالَ عَبْدُ اللَّهِ إِنَّ اللَّهَ بَعَثَ مُحَمَّدًا صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَقَالَ

قُلْ مَا أَسْأَلُكُمْ عَلَيْهِ مِنْ أَجْرٍ وَمَا أَنَا مِنَ الْمُتَكَلِّفِينَ فَإِنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَمَّا رَأَى قُرَيْشًا اسْتَعْصَوْا عَلَيْهِ فَقَالَ اللَّهُمَّ أَعِنِّي عَلَيْهِمْ بِسَبْعٍ كَسَبْعِ يُوسُفَ فَأَخَذَتْهُمُ السَّنَةُ حَتَّى حَصَّتْ كُلَّ شَيْءٍ حَتَّى أَكَلُوا الْعِظَامَ وَالْجُلُودَ فَقَالَ أَحَدُهُمْ حَتَّى أَكَلُوا الْجُلُودَ وَالْمَيْتَةَ وَجَعَلَ يَخْرُجُ مِنَ الْأَرْضِ كَهَيْئَةِ الدُّخَانِ فَأَتَاهُ أَبُو سُفْيَانَ فَقَالَ أَيْ مُحَمَّدُ إِنَّ قَوْمَكَ قَدْ هَلَكُوا فَادْعُ اللَّهَ أَنْ يَكْشِفَ عَنْهُمْ فَدَعَا ثُمَّ قَالَ تَعُودُونَ بَعْدَ هَذَا فِي حَدِيثِ مَنْصُورٍ ثُمَّ قَرَأَ فَارْتَقِبْ يَوْمَ تَأْتِي السَّمَاءُ بِدُخَانٍ مُبِينٍ إِلَى عَائِدُونَ أَنُكْشِفُ عَنْهُمْ عَذَابَ الْآخِرَةِ فَقَدْ مَضَى الدُّخَانُ وَالْبَطْشَةُ وَاللِّزَامُ وَقَالَ أَحَدُهُمُ الْقَمَرُ وَقَالَ الْآخَرُ وَالرُّومُ

## [۳۱۴] بَاب: يَوْمَ نَبْطِشُ الْبَطْشَةَ الْكُبْرَى إِنَّا مُنْتَقِمُونَ

[۴۵۴۸] حَدَّثَنَا يَحْيَى حَدَّثَنَا وَكِيعٌ عَنِ الْأَعْمَشِ عَنْ مُسْلِمٍ عَنْ مَسْرُوقٍ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ قَالَ خَمْسٌ قَدْ مَضَيْنَ اللِّزَامُ وَالرُّومُ وَالْبَطْشَةُ وَالْقَمَرُ وَالدُّخَانُ

په دې ابوابو کښې چه کوم روايات بيان کړيشوی دی په هغې باندې وړاندې کلام شويدې.

## [۳۱۵] باب: تفسير سُورَةُ حم الْجَاثِيَةَ

الْجَاثِيَةِ مُسْتَوْفِزِينَ عَلَى الرُّكَبِ وَقَالَ مُجَاهِدٌ نَسْتَنْسِخُ نَكْتُبُ نَنْسَاكُمْ نَتْرُكُكُمُ الْجَاثِيَةَ :مُسْتَوْفِزِينَ عَلَى الرُّكَبِ

### د کلماتو تشريح:

**قوله:** جَاثِيَةً :مُسْتَوْفِزِينَ عَلَى الرُّكَبِ: په آيت کښې دی (وَتَرَى كُلَّ أُمَّةٍ جَاثِيَةً) اوګورئی به تاسو هرې ډلې ته (د ويرې او د هيبت په وجه) چه په زنګونوبه ناست وی. فرمائی جاثيه معنی په زنګونوناسته، استيفاز وائی داسې ناستې ته چه معلوميږی دَ پاسيدودَ پاره ئی ډيره تندی او بې قراری ده.

**قوله:** وَقَالَ مُجَاهِدٌ: نَسْتَنْسِخُ نَكْتُبُ: آيت کښې دی (إِنَّا كُنَّا نَسْتَنْسِخُ مَا كُنْتُمْ تَعْمَلُونَ) مونږ (دنيا کښې) ستاسو عملونه (په فرښتو) ليکل. مجاهد رحمه الله فرمائی (نَسْتَنْسِخُ) معنی ده نَكْتُبُ مونږ ليکو.

**قوله:** نَنْسَاكُمْ : نَتْرُكُكُمْ: آيت کښې دی (وَقِيلَ الْيَوْمَ نَنْسَاكُمْ كَمَا نَسِيتُمْ لِقَاءَ يَوْمِكُمْ هَذَا) او (دې منکرانو ته) به اووئيلی شی چه نن به مونږ تاسو هيرکړو لکه څنګه چه تاسودَ هغه ورځې ملاقات هيرکړې وو. فرمائی چه "ننساکم" معنی ده مونږ به تاسو په(عذاب کښې) پريږدو لکه څنګه چه تاسو دَ هغه ورځې ملاقات او ايمان او عمل پريخې وو.

## [۳۱۶] باب: وَمَا يُهْلِكُنَا إِلَّا الدَّهْرُ الآيَةَ

[۴۵۴۹] (۱) حَدَّثَنَا الْحُمَيْدِيُّ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ حَدَّثَنَا الزُّهْرِيُّ عَنْ سَعِيدِ بْنِ الْمُسَيَّبِ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اللَّهُ عَزَّ وَجَلَّ يُؤْذِينِي ابْنُ آدَمَ يَسُبُّ الدَّهْرَ وَأَنَا الدَّهْرُ بِيَدِي الْأَمْرُ أُقَلِّبُ اللَّيْلَ وَالنَّهَارَ

الله تعالى فرمائي چه انسان ماته تكليف راكوي، مطلب دا چه هغه داسې معامله كوي كه هغه معامله يو انسان سره اوكړيشي نو هغه ته به تكليف درد وي. نو علامه قرطبي رحمه الله فرمائى "معناه، يخاطبنى من القول بما يتاذى به من يجوز فى حقه التاذى، والله منزه عن ان يصل اليه الاذى، وانما هذا من التوسع فى الكلام، والمراد ان من وقع ذلك منه تعرض لسخط الله" (۲) هغه زمانې ته كنځلې كوى حالانكه زمانه هم زه يم. يعنى هم زه دَ زمانې خالق اوپه دې كښې كيدونكو واقعاتو مدبر او مصرف يم ځكه چه په زمانه كښې خونه حس ته شته نه شعور او نه اراده.

د "يؤذينى ابن ادم، يسب الدهر و انا الدهر"، معنى: "انا الدهر" كښې "الدهر" دَ مشهور روايت مطابق مرفوع دې او مضاف محذوف دې يعنى "انا خالق الدهر، ومصرف الدهر، ومالك الدهر" نو علامه خطابى رحمه الله فرمائى "معنا، انا صاحب الدهر، ومدبر الامور التى ينسبونها الى الدهر، فمن سب الدهر من اجل انه فاعل هذه الامور، عاد سبه الى ربه الذى هو فاعلها" (۳)

## [۳۱۷] باب: سُورَةُ حم الْأَحْقَافِ

وَقَالَ مُجَاهِدٌ تُفِيضُونَ تَقُولُونَ وَقَالَ بَعْضُهُمْ أَثَرَةٍ وَأُثْرَةٍ وَأَثَارَةٍ بَقِيَّةٌ مِنْ عِلْمٍ وَقَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ بِدْعًا مِنَ الرُّسُلِ لَسْتُ بِأَوَّلِ الرُّسُلِ وَقَالَ غَيْرُهُ أَرَأَيْتُمْ هَذِهِ الْأَلِفُ إِنَّمَا هِيَ تَوَعُّدٌ إِنْ صَحَّ مَا تَدَّعُونَ لَا يَسْتَحِقُّ أَنْ يُعْبَدَ وَلَيْسَ قَوْلُهُ أَرَأَيْتُمْ بِرُؤْيَةِ الْعَيْنِ إِنَّمَا هُوَ أَتَعْلَمُونَ أَبَلَغَكُمْ أَنَّ مَا تَدْعُونَ مِنْ دُونِ اللَّهِ خَلَقُوا شَيْئًا؟

**قوله: تُفِيضُونَ تَقُولُونَ:** آيت مبارك كښې دى (هُوَ أَعْلَمُ بِمَا تُفِيضُونَ فِيهِ) تاسو چه دَ قرآن باره كښې څه هم وائې الله تعالى په هغې ښه پوهيږى، مجاهد رحمه الله فرمائى تُفِيضُونَ معنى ده تاسو وائې.

(۱) وايضاً اخرجه فى الادب، باب لاتسبواالدهر، رقم الحديث ۶۱۸۱؛ وفى التوحيد، باب قول الله تعالى: يريدون ان يبدلوا كلام الله، رقم الحديث ۷۴۹۱؛ واخرجه مسلم فى الالفاظ من الادب وغيرها، باب النهى عن سب الدهر، رقم الحديث ۲۲۴۶؛ واخرجه النسائى فى السنن الكبرى فى التفسير، باب سورة الجاثية، رقم الحديث ۱۱۴۸۶/۱؛ واخرجه ابوداوٗد فى الادب، باب فى الرجل يسب الدهر، رقم الحديث-۵۲۷۴؛

(۲) تكملة فتح الملهم ۴/۴۱۱؛ وعمدة القارى-۱۹/۱۶۷؛

(۳) معالم السنن ۸/۱۱۸؛ بتغير الالفاظ، عمدة القارى-۱۹/۱۶۷؛

**قوله:** وَقَالَ بَعْضُهُمْ أَثَرَةٍ وَأُثْرَةٍ وَأَثَارَةٍ بَقِيَّةٌ: آيت مبارك كښې ذى ﴿اِيْتُوْنِيْ بِكِتٰبٍ مِّنْ قَبْلِ هٰذَآ اَوْ اَثٰرَةٍ مِّنْ عِلْمٍ اِنْ كُنْتُمْ صٰدِقِيْنَ﴾ (اې نبى ته دوى ته اووايه) ماله څه (صحيح) كتاب راوړئ چه دَ دې (قرآن) نه اول وى (كوم كښې چه دَ شرك حكم وى) يا (كه هغه كتاب نه وى نو) څه بل (معتبر) مضمون راوړئ كه تاسو رښتونى يئ. فرمائى أَثَرَةٍ وَأُثْرَةٍ وَأَثَارَةٍ معنى ده بَقِيَّةٌ دَ هر څيز باقى پاتې حصه.

**قوله:** بِدْعًا مِنَ الرُّسُلِ: لَسْتُ بِأَوَّلِ الرُّسُلِ: په آيت مبارك كښې دى ﴿قُلْ مَا كُنْتُ بِدْعًا مِّنَ الرُّسُلِ وَمَآ اَدْرِيْ مَا يُفْعَلُ بِيْ وَلَا بِكُمْ﴾ ته اووايه چه زه څه عجيبه رسول نه يم او زه نه پوهيږم چه ما سره به څه څه كولې شى اونه(دا معلوم چه) تاسو سره)څه څه كولې شى ﴿بِدْعًا مِّنَ الرُّسُلِ﴾ معنى اولنې رسول ﴿مَا كُنْتُ بِدْعًا مِّنَ الرُّسُلِ﴾ كښې اولنې رسول نه يم.

**قوله:** وَقَالَ غَيْرُهُ: أَرَأَيْتُمْ، هٰذِهِ الأَلِفُ إِنَّمَا هِيَ تَوَعُّدٌ: آيت كښې دى ﴿قُلْ اَرَءَيْتُمْ مَّا تَدْعُوْنَ مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ.....﴾ اووايه ښه ده اوښايئې څوك چه تاسو رابلئ دَ الله نه سوا، ماته اوښايئې هغوى په زمكه كښې څه جوړ كړى دى ياد هغوى شراكت شته په آسمانونوكښې.

فرمائى چه "ارايتم"كښې الف تنبيه اووعيدد پاره راوړلې شويدې اومطلب دا دې كه چرې ستاسو دَ شرك دعوى صحيح وى بيا هم هغه دَ دې خبرې حقدار نه دې چه دَ هغه عبادت اوكړيشى څكه چه دَ كوم څيز دَ پاره نه نقلى دليل وى اونه عقلى نو هغه څنګه اومنلې شى، نقلى دليل دَ يوآسمانى كتاب سندپيش كړئ، څه علمى اصول پيش كړئ چه عقلى دليل جوړشى نو ستاسو خبره به اومنو او "ارايتم" كښې دَ سترګوليدل مراد نه دى بلكه دا دَ روئت علم په معنى كښې دى، دَ دې مفهوم دې چه آيا تاسو سره علم شته . آياتاسوته خبر دې.

بعضو دَ دې ترجمه "اخبرونى" سره هم كړيده.

## [۳۱۸] بَاب: وَالَّذِيْ قَالَ لِوَالِدَيْهِ أُفٍّ لَّكُمَا أَتَعِدَانِنِيْ أَنْ أُخْرَجَ وَقَدْ خَلَتِ الْقُرُوْنُ مِنْ قَبْلِيْ وَهُمَا يَسْتَغِيْثَانِ اللّٰهَ وَيْلَكَ آمِنْ إِنَّ وَعْدَ اللّٰهِ حَقٌّ فَيَقُوْلُ مَا هٰذَا إِلَّا أَسَاطِيْرُ الْأَوَّلِيْنَ

[۴۵۵۰] (۱)۔ حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ حَدَّثَنَا أَبُو عَوَانَةَ عَنْ أَبِي بِشْرٍ عَنْ يُوسُفَ بْنِ مَاهَكَ قَالَ كَانَ مَرْوَانُ عَلَى الْحِجَازِ اسْتَعْمَلَهُ مُعَاوِيَةُ فَخَطَبَ فَجَعَلَ يَذْكُرُ يَزِيدَ بْنَ مُعَاوِيَةَ لِكَيْ يُبَايَعَ لَهُ بَعْدَ أَبِيهِ فَقَالَ لَهُ عَبْدُ الرَّحْمٰنِ بْنُ أَبِي بَكْرٍ شَيْئًا فَقَالَ خُذُوهُ فَدَخَلَ بَيْتَ عَائِشَةَ فَلَمْ يَقْدِرُوا فَقَالَ مَرْوَانُ إِنَّ هٰذَا الَّذِي أَنْزَلَ اللّٰهُ فِيهِ وَالَّذِي قَالَ

(۱) وهذا الحديث لم يخرجه احد من اصحاب الستة سوى البخارى

لِوَالِدَيْهِ أُفٍّ لَكُمَا أَتَعِدَانِنِي فَقَالَتْ عَائِشَةُ مِنْ وَرَاءِ الْحِجَابِ مَا أَنْزَلَ اللَّهُ فِينَا شَيْئًا مِنَ الْقُرْآنِ إِلَّا أَنَّ اللَّهَ أَنْزَلَ عُذْرِي

حضرت معاويه رضی الله عنه مروان بن الحکم دَ حجاز امیر مقرر کړې وو. هغه یو ځل خطبه ورکړه او په هغې کښې خلقو نه دَ حضرت معاويه رضی الله عنه نه پس دَ هغوی دَ خوئ یزید په لاس دَ بیعت دَ پاره اووئیل، په دې حضرت عبدالرحمن بن ابی بکر رضی الله عنه څه اووئیل، بعض روایاتوکښې دی چه هغوی دې طریقې ته دَ قیصر اوکسری طریقه اووئیله او اعتراض ئې اوکړوچه دَ قیصر او کسری په وخت کښې به دَ پلار نه پس دَ خوئ بادشاهی قائمیدله.(۱) مروان دَ هغه په اعتراض باندې خفه شو او وئې وئیل دې اونیسئ، حضرت عبدالرحمن دَ حضرت عائشه رضی الله عنها کور ته لاړو، ظاهره خبره ده چه دَ هغې کور ته دَ چا دَ تلو جراءت نه شوکیدې. هغوی هغه خو راګیرنه کړو خو دائې اووئیل دا هغه سړې دې دَ چا باره کښې چه دَ قرآن دا آیت نازل شویدې ﴿وَالَّذِي قَالَ لِوَالِدَيْهِ أُفٍّ لَكُمَا﴾ حضرت عائشه رضی الله عنها دَ پردې نه اخوا دَ مروان تردید کولو سره اوفرمائیل قرآن کښې زمونږ متعلق صرف زما براءت نازل شویدې، داسې قسم څه آیت زمونږ متعلق نه دې نازل شوې.

## [۳۱۹] بَاب: قَوْلِهِ فَلَمَّا رَأَوْهُ عَارِضًا مُسْتَقْبِلَ أَوْدِيَتِهِمْ

قَالُوا هَذَا عَارِضٌ مُمْطِرُنَا بَلْ هُوَ مَا اسْتَعْجَلْتُمْ بِهِ رِيحٌ فِيهَا عَذَابٌ أَلِيمٌ قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ عَارِضٌ السَّحَابُ

[۴۵۵۱] حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ عِيسَى حَدَّثَنَا ابْنُ وَهْبٍ أَخْبَرَنَا عَمْرٌو أَنَّ أَبَا النَّضْرِ حَدَّثَهُ عَنْ سُلَيْمَانَ بْنِ يَسَارٍ عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا زَوْجِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَتْ مَا رَأَيْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ضَاحِكًا حَتَّى أَرَى مِنْهُ لَهَوَاتِهِ إِنَّمَا كَانَ يَتَبَسَّمُ قَالَتْ وَكَانَ إِذَا رَأَى غَيْمًا أَوْ رِيحًا عُرِفَ فِي وَجْهِهِ قَالَتْ يَا رَسُولَ اللَّهِ إِنَّ النَّاسَ إِذَا رَأَوْا الْغَيْمَ فَرِحُوا رَجَاءَ أَنْ يَكُونَ فِيهِ الْمَطَرُ وَأَرَاكَ إِذَا رَأَيْتَهُ عُرِفَ فِي وَجْهِكَ الْكَرَاهِيَةُ فَقَالَ يَا عَائِشَةُ مَا يُؤْمِنِّي أَنْ يَكُونَ فِيهِ عَذَابٌ عُذِّبَ قَوْمٌ بِالرِّيحِ وَقَدْ رَأَى قَوْمٌ الْعَذَابَ فَقَالُوا هَذَا عَارِضٌ مُمْطِرُنَا

## [۳۲۰] بَاب: تفسير سُورَةُ مُحَمَّدٍ صلی الله علیه وسلم

أَوْزَارَهَا آثَامَهَا حَتَّى لَا يَبْقَى إِلَّا مُسْلِمٌ عَرَّفَهَا بَيَّنَهَا وَقَالَ مُجَاهِدٌ مَوْلَى الَّذِينَ آمَنُوا وَلِيُّهُمْ فَإِذَا عَزَمَ الْأَمْرُ أَيْ جَدَّ الْأَمْرُ فَلَا تَهِنُوا لَا تَضْعُفُوا وَقَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ أَضْغَانَهُمْ حَسَدَهُمْ آسِنٍ مُتَغَيِّرٍ

**قوله:** أَوْزَارَهَا آثَامَهَا حَتَّى لَا يَبْقَى إِلَّا مُسْلِمٌ:

د ''**حتى تضع الحرب اوزارها**،، **معنی:** په آیت مبارك كښې دی ﴿حَتَّى تَضَعَ الْحَرْبُ أَوْزَارَهَا﴾ دا یا

(۱) عمدة القاری ۱۹/۱۶۹: وفتح الباری-۸/۵۷۷:

خو "ضرب الرقاب" غايت دې يا "شدالوثاق" او يا "فاما مناً بعد واما فداءً" غايت دې، مطلب دا چه دا احكام به هغه وخت باقى پاتې كيږى تركومې چه ټول په ټول ختم نشى او صرف مسلمانان باقى پاتې شى. په آيت كښې "اوزار" "وزر" جمع ده دَ كوم معنى چه دَ بوج راځى. امام بخارى رحمه الله "اوزار" تفسير آثام يعنى ګناهونو سره كړيدې. په دې صورت كښې به ترجمه وى "تردې چه جنګ خپل ګناهونه كيږدى" يعنى چه جنګ ختم شى او تركومې چه جنګ كيږى نو عام توګه باندې به طرفينوكښې ضرور دَ يو طرف نه دَ ګناه ارتكاب كوى چه په ناحقه او باطل باندې جنګيږى. او دا مطلب هم كيديشى چه جنګ كونكى قوم دَ جنګ ګناه ختمه كړى په دې طريقه دَ كفر او شرك نه توبه اوباسى، نوعلامه عينى رحمه الله دا دواړه معنې بيانولو سره فرمائى: "تضع الحرب اوزارها: اى اثامها واجرامها، فيرتفع، وينقطع الحرب، لان الحرب لايخلومن الاثم فى احدالجانبين، وقيل: معناه: حتى يضع القوم المحاربون اوزارها اثامها، بان يتوبوامن كفرهم، ويؤمنوا بالله ورسوله[1] ليكن جمهورمفسرين "اوزارها" تفسير په وسله سره كوى اودَ آيت مفهوم داسې بيانوى چه قتل او قتال او دَ قيداوبندسلسله به هغه وخت پورې دې جارى وى تركومې پورې چه دښمن خپله وسله كينږدى.[2]

**دَ كلماتو تشريح:**

**قوله: عَرَّفَهَا بَيَّنَهَا:** په آيت مبارك كښې دى ﴿وَيُدۡخِلُهُمُ ٱلۡجَنَّةَ عَرَّفَهَا لَهُمۡ﴾ په دې كښې عرفها معنى ده بينها يعنى دوى به جنت ته داخل كړى دَ كوم چه به دوى ته پيژندګلو اوكړى، هرجنتى به خپل مقام او كور اوپيژنى)

**قوله: مَوۡلَى ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ وَلِيُّهُمۡ:** دا ﴿ذَٰلِكَ بِأَنَّ ٱللَّهَ مَوۡلَى ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ وَأَنَّ ٱلۡكَٰفِرِينَ لَا مَوۡلَىٰ لَهُمۡ﴾ دَ مسلمانانو كامبيابى او كافرانو تباهى) دَ دې وجه نه ده چه الله تعالى دَ مسلمانانو كارساز دې او دَ كافرانو څوك كارساز نشته، فرمائى په آيت كښې مولى په معنى دَ ولى دې.

**قوله: عَزَمَ ٱلۡأَمۡرُ أَيۡ جَدَّ ٱلۡأَمۡرُ:** آيت كښې دى ﴿فَإِذَا عَزَمَ ٱلۡأَمۡرُ فَلَوۡ صَدَقُواْ ٱللَّهَ لَكَانَ خَيۡرٗا لَّهُمۡ﴾ نو بيا چه كله دَ كار تاكيد وى نو كه الله تعالى سره رښتونى وى نو دَ هغوى خيګړه ده. فرمائى عزم الامر معنى ده جدالامر يعنى معامله پخه شوه. علامه شبيراحمد عثمانى رحمه الله ليكى: "يعنى په ظاهره داخلق حكم منونكى او په ژبه دَ اسلام احكام او دَ اسلام اقرار كوى خود كارخبره دا ده چه عملاً دَ الله او رسول خبره اومنى او خبره ښه او معقول اوكړى. بيا چه كله په جهاد وغيره كښې دَ كار تاكيد او زور راشى هغه وخت دَ الله تعالى په وړاندې رښتونى ثابت شى نو دا صورت به دَ هغوى دَ بهترئى او خيګړې وى. حضرت شاه صاحب ليكى: دَ

---

[1] عمدة القارى-١٩/١٧١:

[2] فتح البارى-٨/٥٧٩:

شریعت حکم نه منلوسره کافر کیږی، دَ الله تعالی حکم په هر شان منل پکار دی. نوبیا خو رسول صلی علیه وسلم هم پوهیږی چه ویریدونکی ولې جنګوی خو چه کله ډیر تاکید راشی نو هغه وخت به جنګیدل ضروری وی او که نه وی نو جنګ کونکی خو ډیر دی.

**قوله:** فَلَا تَهِنُوا لَا تَضْعُفُوا: په آیت مبارک کښې دی (وَلَا تَهِنُوا وَلَا تَحْزَنُوا وَاَنْتُمُ الْاَعْلَوْنَ اِنْ كُنْتُمْ مُّؤْمِنِيْنَ) نو(ای مسلمانانو) تاسو)دکافرانوپه مقابله کښې) همت مه بانیلئی او)همت بائیللو سره) دَ صلح طرف ته مه راغواړئی او هم تاسو به غالب ئی که چرې تاسو)حقیقتاً) مؤمن ئی، فرمائی آیت کښې لاتهنوا معنی ده تاسو ضعیف اوکمزوری مه جوړیږئی.

**قوله:** اَضْغَانَهُمْ حَسَدَهُمْ: آیت کښې دی (اَمْ حَسِبَ الَّذِيْنَ فِيْ قُلُوْبِهِمْ مَّرَضٌ اَنْ لَّنْ يُّخْرِجَ اللّٰهُ اَضْغَانَهُمْ) دَ کوموخلق په زړونوکښې چه مرض)نفاق) دې)اودَ دې دَ پټولوکوشش کوی) نو آیا داخلق خیال کوی چه الله تعالی به چرې دَ دوی دَ زړه عداوت نه ښکاره کوی. فرمائی په آیت کښې دَ (لَاتَهِنُوْا) معنی ده دَ هغوی حسد او بغض.

**قوله:** آسِنٍ مُتَغَيِّرٍ: په آیت مبارک کښې دی (فِيْهَآ اَنْهٰرٌ مِّنْ مَّآءٍ غَيْرِ اٰسِنٍ) په دې کښې ډیر نهرونه خودَ داسې اوبو دی کوم چه کښې به چه لږ تغیر نه وی. فرمائی په آیت کښې اسن په معنی دَ متغیر دې یعنی دَ دې اوبو په رنګ کښې، بوئی او خوند کښې به هیڅ قسم تغیر نه وی.

## [۳۲۱] بَاب وَتُقَطِّعُوا اَرْحَامَكُمْ

[۴۵۵۲] (۱)، واخرجه مسلم فی الادب، باب الصلة وتحریم طیعتها رقم الحدیث: ۲۵۵۴- حَدَّثَنَا خَالِدُ بْنُ مَخْلَدٍ حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ قَالَ حَدَّثَنِي مُعَاوِيَةُ بْنُ أَبِي مُزَرِّدٍ عَنْ سَعِيدِ بْنِ يَسَارٍ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ خَلَقَ اللَّهُ الْخَلْقَ فَلَمَّا فَرَغَ مِنْهُ قَامَتِ الرَّحِمُ فَأَخَذَتْ بِحَقْوِ الرَّحْمَنِ فَقَالَ لَهُ مَهْ قَالَتْ هَذَا مَقَامُ الْعَائِذِ بِكَ مِنَ الْقَطِيعَةِ قَالَ أَلَا تَرْضَيْنَ أَنْ أَصِلَ مَنْ وَصَلَكِ وَأَقْطَعَ مَنْ قَطَعَكِ قَالَتْ بَلَى يَا رَبِّ قَالَ فَذَاكِ قَالَ أَبُو هُرَيْرَةَ اقْرَءُوا إِنْ شِئْتُمْ فَهَلْ عَسَيْتُمْ إِنْ تَوَلَّيْتُمْ أَنْ تُفْسِدُوا فِي الْأَرْضِ وَتُقَطِّعُوا أَرْحَامَكُمْ حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ حَمْزَةَ حَدَّثَنَا حَاتِمٌ عَنْ مُعَاوِيَةَ قَالَ حَدَّثَنِي عَمِّي أَبُو الْحُبَابِ سَعِيدُ بْنُ يَسَارٍ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ بِهَذَا ثُمَّ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اقْرَءُوا إِنْ شِئْتُمْ فَهَلْ عَسَيْتُمْ حَدَّثَنَا بِشْرُ بْنُ مُحَمَّدٍ أَخْبَرَنَا عَبْدُ اللَّهِ أَخْبَرَنَا مُعَاوِيَةُ بْنُ أَبِي الْمُزَرِّدِ بِهَذَا قَالَ رَسُولُ اللَّهِ

---

[1] )وایضا فی التفسیر باب وربک فکبر، رقم الحدیث۴۶۴۲-۴۶۴۱:، وفی الادب باب من وصل وصله الله، رقم الحدیث۵۹۸۷:)مع الفتح (وفی التوحید، باب قوله تعالی یریدون ان یبدلواکلام الله، رقم الحدیث۷۵۰۲:)مع الفتح (واخرجه النسائی فی التفسیر، باب قوله تعالی :فهل عسیتم ان تولیتم ان تفسدوا فی الارض وتقطعوا ارحامکم، رقم الحدیث۱۱۴۹۷/۱:

صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَاقْرَءُوا إِنْ شِئْتُمْ فَهَلْ عَسَيْتُمْ

حضرت ابوهريره رضي الله عنه نه روايت دې چه رسول الله ﷺ فرمائيلي دی کله چه الله تعالى دَ مخلوق دَ پيدائش نه فارغ شو نو رحم يعنى رشته داری راپاسيده او دَ الله تعالى) لمن ئې اونيوله، الله تعالى دې ته اوفرمائيل چه څه دی؟ عرض ئې اوکړو چه دَ قطع رحمی نه ستا پناه غواړم. الله تعالى ارشاد اوفرمائيلو چه ته په دې راضى نه ئې چه څوک ساتى نو زه هغه اوساتم او څوک چه تاپريږدی نو زه هغه پريږدم، دې ونيل ولې نه. الله تعالى اوفرمائيل چه هم داسې به وى. حضرت ابوهريره) اوفرمائيل که ستا زړه غواړی نو دا آيت اولوله (فَهَلْ عَسَيْتُمْ إِنْ تَوَلَّيْتُمْ....)

**قوله: فلما فرغ منه، قامت الرحم:** رحم دَ رحمت نه مشتق دې.خپلولئی او رشته دارئی ته وائی قرابت عرض دې دلته دَ دې طرف ته دَ قيام نسبت شويدې.ممکن دی چه الله تعالى دې ته بدن ورکړې وی او دا هم ممکن ده چه فرښتې په اودريدو سره دَ دې ترجمانى کړې وى اودا هم ممکن دی چه دا کلام په خپله حقيقى معنى کښې نه دَ تشبيه يا تمثيل په توګه وى لکه چه وړاندې راځى.

**قوله: فاخذت بحقو الرحمن:**

د "**فاخذت بحقو الرحمن**، **معنى: حقو** (دَ حاء زبر او دَقاف غړوندى سره) معقد ازار ته وائى يعنى دَ ازار تړلو ځائ اوپه ازار باندې همَ دَ دې اطلاق کيږى. داجمله په خپله حقيقى معنى باندې محمول نه ده ځکه چه الله تعالى دَ ازار او معقد ازار وغيره څيزونونه پاك او منزه دې. بلکه دا کلام دَ عربو يو مخصوص تعبير مخې ته کيخودلو سره کړيدې. دَ عربو دا عادت وو چه کله به يو سړې دَ چا په پناه کښې راغلو اويا دَ هغه دَ امداد خواهش مند وو نودَ خپل مقصد دَ اهميت په وړاندې هغه به دَ دې دَ پاره دا طريقه اختياروله چه دَ هغه سړى په حقوازار باندې به ئې دواړه لاسونه کيخوده دَ چا به چه امداد کول وو يا هغه چه دَ ده په پناه کښې به راغلو نو دغه شان به هغه متوجه شو. دلته چه کومه خبره بيانول مقصود دى نو هغه دَ عربو دَ طرزکلام دَ مثال په شکل کښې واضحه کړيشوه. نو رشته دارى دَ خپلې پريکيدونه دَ الله تعالى پناه غوښتلو مفهوم دَ استعارې په توګه په مذکوره عبارت کښې بيان کړيشويدې. ګنى لغوى توګه باندې دا الفاظ په خپل حقيقى معنى کښې دلته صادق نه راځى. دا هم داسې ده لکه چه عربوکښې کله دَ چا باره کښې وئيلې کيږى چه "يداه مبسوطتان" نو دې نه مراد سخاوت يا فياضى ښکاره کول وى. که دَ هغه لاس هم نه وى ياداسې ذات وى دَ چا دَ پاره چه دَ لاس وجود کيدل محال وى لکه الله تعالى).

خلاصه دا شو چه دَ عربوپه کلام کښې ډير داسې الفاظ استعماليږى چه هغه په خپله حقيقى معنى کښې نه وى بلکه په دوئم مفهوم کښې وى. چونکه دَ قرآن نزول او دَ نبى کريم ﷺ دَ احاديثو صدور هم دَ عربو په طرز کلام ، هم دَ هغوى په طريقه او هم دَ هغوى دَ محاورې مطابق شويدې، په دې وجه په قرآن او حديث کښې دا قسمه الفاظ چه په کوم دَ متشابهاتواطلاق کيږى دَ هغې په تاويل او وضاحت کښې دا خبره په ذهن کښې ياد ساتل

پکار دی چه رشته داری یوه معنی ده دَ دې دَ پاره قیام کول، پناه غوښتل، یوځائ کول او پریکول دا ټول الفاظ دَ تمثیل او تشبیه دَ پاره دی. په دې سره هغه خبره واضحه کوی چه رحم لکه چه یوه هستی ده یا دَ یو داسې سړی په شان ده چه ولاړ وی او دَ الله تعالی دَ عظمت لمن اونیسی او دَ پناه غوښتونکې وی، دینه رشته دارئ او خپلولئی فضیلت ثابتول او دَ قطع رحمئی خراب والی کول مقصودی. علامه طیبی رحمه الله دَ دې حدیث په شرح کښې لیکی: وهذا القول مبنی علی الاستعارة التمثیلیة، کانه شبه حالة الرحم وما هی علیه من الافتقار الی الصلة والذب عنها بحال مستجیر یاخذ بحقو المستجار به، ثم اسند علی سبیل الاستعارة التخییلیة ما هو لازم المشبه به من القیام، فیکون قرینة مانعة من ارادة الحقیقة، ثم رشحت الاستعارة بالقول والاخذ بلفظ الحقو فهو استعارة اخری[1]

دَ روایت په آخرکښې دا آیت دې ﴿فَهَلْ عَسَيْتُمْ إِنْ تَوَلَّيْتُمْ أَنْ تُفْسِدُوا فِي الْأَرْضِ وَتُقَطِّعُوا أَرْحَامَكُمْ﴾ حضرت شیخ الهند رحمه الله ﴿تَوَلَّيْتُمْ﴾ ترجمه دَ حکومت ملاویدلوسره کړیده، دَ هغوی ترجمه دا ده. "بیا ستاسو نه دا هم توقع ده که چرې تاسو ته حکومت ملاؤ شی نو په ملك کښې به خرابی واچوئی او خپلې رشته دارئی به ختمې کړئی" مولانا شبیراحمد عثمانی رحمه الله دَ دې په تحت کښې لیکی: "یعنی دَ حکومت او اقتدار په نشه کښې خلق عموماً په اعتدال او انصاف باندې نه قائمیږی، دَ دنیا حرص نور هم زیاتیږی، بیا دَ شان اوشوکت کشمکش او غرض پرستئی کښې جګړې اودروی، دَ څه چه آخری نتیجه دا کیږی چه عام فتنه او فساد او دَ یوبل سره تعلق ختمول".

نور علماء "تولی" په معنی دَ اعراض اخستلو سره دا مطلب اخلی چه که ته دَ الله تعالی په لار کښې دَ جهاد نه ډډه کوې نو ښکاره خبره ده چه په دنیاکښې به امن او انصاف نشی قائم کیدې او چه کله امن او انصاف نشی قائمیدې نو ظاهره ده چه فساد او بدامنی او دَ حق نه پیژندلو راج به وی.

او بعضوداسې تفسیرکړیدې که چرې تاسو دَ ایمان راوړلونه اعراض او ډډه کوئی نودَ جاهلیت دَ زمانې کیفیت به په منډه راشی چه کوم خرابې او فساد په هغه وخت کښې وو او په وړه او معمولی خبره به رشتې او خپلولئی ختمیدې هم هغه ټوله نقشه به بیا قائمه شی.

او که په آیت کښې دَ خاص منافقینوته خطاب اومنلې شی نو یومطلب داهم کیدیشی که دَ جهاد نه اعراض کوئی نو تاسو نه هم دا توقع کیدیشی چه په خپلو منافقانه شیطانو سره به په ملك کښې خرابی خوره کړئی او دَ کومو مسلمانانوسره چه ستاسو خپلولئی دی دَ هغې بالکل پرواه نه کولوسره به په کولاؤ دَ کافرانو امدادیان جوړیږئی[2]

[1] اوګورئی شرح الطیبی ۹/۱۵۳ :، کتاب الادب، باب البر والصلة بتغییر الالفاظ. وعمدة القاری-۱۹/۱۷۳:
[2] تفسیر عثمانی ۶۷۶:فائده نمبر-۷

## [۳۲۲] باب: تفسیر سورة الفتح

وَقَالَ مُجَاهِدٌ بُورًا هَالِكِينَ سِيمَاهُمْ فِي وُجُوهِهِمُ السَّحْنَةُ وَقَالَ مَنْصُورٌ عَنْ مُجَاهِدٍ التَّوَاضُعُ شَطْأَهُ فِرَاخَهُ فَاسْتَغْلَظَ غَلُظَ سُوقِهِ السَّاقُ حَامِلَةُ الشَّجَرَةِ وَيُقَالُ دَائِرَةُ السَّوْءِ كَقَوْلِكَ رَجُلُ السَّوْءِ وَدَائِرَةُ السُّوءِ الْعَذَابُ تُعَزِّرُوهُ تَنْصُرُوهُ شَطْأَهُ شَطْءُ السُّنْبُلِ تُنْبِتُ الْحَبَّةُ عَشْرًا أَوْ ثَمَانِيًا وَسَبْعًا فَيَقْوَى بَعْضُهُ بِبَعْضٍ فَذَاكَ قَوْلُهُ تَعَالَى فَآزَرَهُ قَوَّاهُ وَلَوْ كَانَتْ وَاحِدَةً لَمْ تَقُمْ عَلَى سَاقٍ وَهُوَ مَثَلٌ ضَرَبَهُ اللَّهُ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذْ خَرَجَ وَحْدَهُ ثُمَّ قَوَّاهُ بِأَصْحَابِهِ كَمَا قَوَّى الْحَبَّةَ بِمَا يُنْبِتُ مِنْهَا

**د کلماتو تشریح:**

**قوله: سِيمَاهُمْ فِي وُجُوهِهِمُ السَّحْنَةُ:** آیت کښې دی (سِيمَاهُمْ فِي وُجُوهِهِمْ مِنْ أَثَرِ السُّجُودِ) دَ سجدو په اثر سره دَ هغوی په مخونوباندې نښې ښکاره دی، په دې کښې (سِيمَا) ترجمه امام السحنة سره کړیده دَ کوم معنی چه دَ څرمنې نرمې او تازګی راخی. دَ سین زبر او زیر دواړو سره لوستلې کیږی. منصور دَ مجاهد رحمه الله نه دَ دې معنی دَ تواضع نقل کړیده یعنی دَ سجدو دَ اثر په وجه دَ هغوی په مخونو باندې عاجزی انکساری او تواضع ښکاره کیږی. او دریم مطلب دا هم بیان کړیشویدې چه دَ سجدې دَ اثر په وجه دَ هغوی په مخونوکښې دَ سجدې نښې وی.

**قوله: فَاسْتَغْلَظَ: غَلُظَ:** آیت کښې دی (فَاسْتَغْلَظَ فَاسْتَوَى عَلَى سُوقِهِ) فرمائی دې کښې "استغلظ" معنی غَلُظَ یعنی پیړشوې.

**قوله: شَطْأَهُ: فراخه:** (كَزَرْعٍ أَخْرَجَ شَطْأَهُ) دَ بوټی په شروع کښې چه کومه ستن راوخی هغې ته شطا وائی.

**قوله: دَائِرَةُ السَّوْءِ كَقَوْلِكَ رَجُلُ السَّوْءِ وَدَائِرَةُ السُّوءِ الْعَذَابُ:** په آیت کښې دی (عَلَيْهِمْ دَائِرَةُ السَّوْءِ) دې کښې دَ (دَائِرَةُ السَّوْءِ) نه عذاب مراد دې. خراب ګردش، "سوء" که دَ سین زبر سره وی نو مضاف الیه واقع کیږی.

**قوله: تُعَزِّرُوهُ: تَنْصُرُوهُ:** په آیت مبارك کښې دی (لِتُؤْمِنُوا بِاللَّهِ وَرَسُولِهِ وَتُعَزِّرُوهُ) دې کښې "تعزروه" معنی ده تاسو دَ دوی مدد کوئی.

**قوله: شَطْأَهُ شَطْءُ السُّنْبُلِ تُنْبِتُ الْحَبَّةُ عَشْرًا.... فَيَقْوَى بَعْضُهُ بِبَعْضٍ:** (أَخْرَجَ شَطْأَهُ فَآزَرَهُ) فرمائی شطاه کښې ضمیر "سنبل" طرف ته راجع دې. سنبل یعنی دَ وړی ستن..... یوه دانه کله لس، کله آته او کله اووه وړی او ښاخونه راټوکوی. بیا هریو ته په بل سره مضبوطیا ملاویږی. هم دَ دې ذکر "فآزره" کښې الله تعالی کړیدې. دَ دې معنی "قواه" ده. که چرې هم یو وړې ښکاره کیدو نو هغه به په یوه تنه باندې نشو قائمیدې. دا مثال الله تعالی نبی

کریم ﷺ دَ پاره بیان کړې ووچه په شروع کښې که خو ته یواځې وتلې وې، بیا الله تعالی دَ صحابه کرامو رضي الله عنهم سره مضبوطیا او تقویت درکړو لکه چه یوې دانې ته الله تعالی هم دَ هغه ځیز نه قوت ورکړی چه کوم دَ دادنې نه راټوکیږی.

## [۳۲۳] باب: إِنَّا فَتَحْنَا لَكَ فَتْحًا مُبِينًا

[۴۵۵۳] حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مَسْلَمَةَ عَنْ مَالِكٍ عَنْ زَيْدِ بْنِ أَسْلَمَ عَنْ أَبِيهِ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَسِيرُ فِي بَعْضِ أَسْفَارِهِ وَعُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِ يَسِيرُ مَعَهُ لَيْلًا فَسَأَلَهُ عُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِ عَنْ شَيْءٍ فَلَمْ يُجِبْهُ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثُمَّ سَأَلَهُ فَلَمْ يُجِبْهُ ثُمَّ سَأَلَهُ فَلَمْ يُجِبْهُ فَقَالَ عُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِ ثَكِلَتْ أُمُّ عُمَرَ نَزَرْتَ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثَلَاثَ مَرَّاتٍ كُلَّ ذَلِكَ لَا يُجِيبُكَ قَالَ عُمَرُ فَحَرَّكْتُ بَعِيرِي ثُمَّ تَقَدَّمْتُ أَمَامَ النَّاسِ وَخَشِيتُ أَنْ يُنْزَلَ فِيَّ قُرْآنٌ فَمَا نَشِبْتُ أَنْ سَمِعْتُ صَارِخًا يَصْرُخُ بِي فَقُلْتُ لَقَدْ خَشِيتُ أَنْ يَكُونَ نَزَلَ فِيَّ قُرْآنٌ فَجِئْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَسَلَّمْتُ عَلَيْهِ فَقَالَ لَقَدْ أُنْزِلَتْ عَلَيَّ اللَّيْلَةَ سُورَةٌ لَهِيَ أَحَبُّ إِلَيَّ مِمَّا طَلَعَتْ عَلَيْهِ الشَّمْسُ ثُمَّ قَرَأَ إِنَّا فَتَحْنَا لَكَ فَتْحًا مُبِينًا

[۴۵۵۴] حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ حَدَّثَنَا غُنْدَرٌ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ سَمِعْتُ قَتَادَةَ عَنْ أَنَسٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ إِنَّا فَتَحْنَا لَكَ فَتْحًا مُبِينًا قَالَ الْحُدَيْبِيَةُ

[۴۵۵۵] حَدَّثَنَا مُسْلِمُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ حَدَّثَنَا مُعَاوِيَةُ بْنُ قُرَّةَ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ مُغَفَّلٍ قَالَ قَرَأَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمَ فَتْحِ مَكَّةَ سُورَةَ الْفَتْحِ فَرَجَّعَ فِيهَا قَالَ مُعَاوِيَةُ لَوْ شِئْتُ أَنْ أَحْكِيَ لَكُمْ قِرَاءَةَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَفَعَلْتُ

## [۳۲۴] باب: لِيَغْفِرَ لَكَ اللَّهُ مَا تَقَدَّمَ مِنْ ذَنْبِكَ وَمَا تَأَخَّرَ وَيُتِمَّ نِعْمَتَهُ عَلَيْكَ وَيَهْدِيَكَ صِرَاطًا مُسْتَقِيمًا

**د ایت کریمه متعلق یو اشکال او دهغې جوابات:** دلته کښې اشکال کیږی چه فتح دَ الله تعالی نعمت دې او په نعمت باندې شکر مرتب کیدل پکار دی دلته کښې دَ شکر په ځائ مغفرت مرتب کړېشویدې. حضرت انورشاه کشمیری رحمه الله فرمائی چه کیدیشی دَ شکر او مغفرت په مینځ کښې څه معنوی مناسبت وی.دَ دې مناسبت په وجه دَ یو بل په ځائ ایږدی. دَ مانځه نه پس دَ استغفار حکم ورکړې دې خو هغه دَ شکر موقع ده. دوئمه خبره دا ده چه دَ انبیاء کرام علیهم السلام په حق کښې دَ دنیا او آخرت نعمتونه خود آمین په شکل کښې وی. هغوی د دنیاوی نعمت سره سره دَ په اخروی نعمت هم کامیابولې شې. چونکه دَ مکې دَ فتح ذکر په آیت کښې اوشو چه یو دنیاوی نعمت دې نو دې سره سره دَ اخروی نعمت هم ذکر اوکړېشو چه مونږ ته مغفور اوګرځولې.(۱) خودلته ته دا اشکال کیږی که دَ مکې فتح دنیاوی نعمت

---

(۱) فیض الباری-۲۲۳/۴:

دي اودي سره دَ اخروی نعمت مغفرت ذکر کولې شي نو بيا دا لام دَ تعليل څه دَ پاره دي؟
امام رازی رحمه الله دَ دې جواب دا ليکي چه په اصل کښې دَ مکې فتح دَ حج سبب جوړشو. دَ مکې دَفتح نه وړاندې دَ مسلمانانو دَ پاره حج ممکن نه وو ځکه چه دَ مشرکانو هلته تسلط وو.دَ مکې دَ فتح نه دَ حج لار کولاؤ شوه اوحج دَ گناهونو دَ مغفرت سبب دې. دَ دې دَ پاره الله تعالى (إِنَّا فَتَحْنَا لَكَ....) نه پس (مَا تَقَدَّمَ مِنْ ذَنْبِكَ) ذکر اوکړلو (۱)
او حضرت تهانوی رحمه الله فرمائی دَ فتح مبین دې مغفرت دَ پاره سبب کيدلو وجه دا ده چه دې فتح مبين نه ډير خلق ډلې ډلې په اسلام کښې داخليږی اودَ اسلام دَ دعوت عام کيدل دَ هغوی ﷺ دَ ژوند مقصدعظيم او دَ هغوی ﷺ اجر او ثواب ډير زياتونکې دې او دَ اجر او ثواب زياتوالې سبب وی دَ گناهونو دَ کفارې.(۲) بعض حضراتوونيلى دى دلته په حقيقت کښې عبارت محذوف دې او هغه دې (إِنَّا فَتَحْنَا لَكَ فَتْحًا مُّبِينًا، فَاسْتَغْفِرْ لِذَنْبِكَ لِيَغْفِرَ لَكَ اللَّهُ)
حافظ جلال الدين سيوطى رحمه الله فرمائى چه دا آيت دَ دنياوی او اخروی نعمتونو دَ پاره جامع دې. دَ دنياوی نعمتونو بيا دوه قسمه دى يو هغه وی چه دَ کوم تعلق دين سره هم وی او دونم هغه چه هغه خالص دنياوی شميرلې کيږی (وَيَهْدِيَكَ صِرَاطًا مُّسْتَقِيمًا) کښې الله تعالى دَ دې دنياوی نعمت ذکرکړيدی دَ کوم چه دين سره تعلق دې. دَ صراط مستقيم هدايت يو ډير لوئ نعمت دې او دا په دنياکښې ورکړيشويدې ليکن دَ دې تعلق دين سره دې چه په دې سره دَ انسان دَ دين حفاظت کيږی (وَيَنصُرَكَ اللَّهُ نَصْرًا عَزِيزًا) کښې الله تعالى دَ دې نعمت ذکر کوی چه په ظاهره دنيا سره تعلق لرى او خالصا دنيا سره دَ دې ربط دې. دَ اخروى نعمتونو هم دوه قسمه دى يو ثبوتيه او دونم سلبيه (لِّيَغْفِرَ لَكَ اللَّهُ...) کښې دَ نعم اخرويه سلبيه ذکر دې (وَيُتِمَّ نِعْمَتَهُ عَلَيْكَ) کښې نعم اخرويه ثبوتيه ذکر دې. په دې کښې دې نعمتونو طرف ته اشاره ده دَ کوم چه په حديث کښې ذکر فرمائيلې شويدې."مالاعين رات، ولااذن سمعت، ولاخطر على قلب بشر" دې کښې دَ الله تعالى رضا هم داخله ده او دَ الله تعالى جل شانه رويت او ديدار هم په کښې شامل دې.

[۴۵۵۶] حَدَّثَنَا صَدَقَةُ بْنُ الْفَضْلِ أَخْبَرَنَا ابْنُ عُيَيْنَةَ حَدَّثَنَا زِيَادٌ هُوَ ابْنُ عِلَاقَةَ أَنَّهُ سَمِعَ الْمُغِيرَةَ يَقُولُ قَامَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَتَّى تَوَرَّمَتْ قَدَمَاهُ فَقِيلَ لَهُ غَفَرَ اللَّهُ لَكَ مَا تَقَدَّمَ مِنْ ذَنْبِكَ وَمَا تَأَخَّرَ قَالَ أَفَلَا أَكُونُ عَبْدًا شَكُورًا
حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ عَبْدِ الْعَزِيزِ حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ يَحْيَى أَخْبَرَنَا حَيْوَةُ عَنْ أَبِي الْأَسْوَدِ سَمِعَ عُرْوَةَ عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا أَنَّ نَبِيَّ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَقُومُ مِنَ اللَّيْلِ حَتَّى تَتَفَطَّرَ قَدَمَاهُ فَقَالَتْ عَائِشَةُ لِمَ تَصْنَعُ هَذَا يَا رَسُولَ اللَّهِ وَقَدْ غَفَرَ اللَّهُ لَكَ مَا تَقَدَّمَ مِنْ ذَنْبِكَ

(۱) تفسير كبير-۲۸/۷۸:
(۲) بيان القران۱۸/۲:)جلد-(۱۱

وَمَا تَأَخَّرَ قَالَ أَفَلَا أُحِبُّ أَنْ أَكُونَ عَبْدًا شَكُورًا فَلَمَّا كَثُرَ لَحْمُهُ صَلَّى جَالِسًا فَإِذَا أَرَادَ أَنْ يَرْكَعَ قَامَ فَقَرَأَ ثُمَّ رَكَعَ

**قوله: فَلَمَّا كَثُرَ لَحْمُهُ صَلَّى جَالِسًا:**

د "فلما كثر لحمه، صلى جالسا، معنى: داوُدي په دې اشكال كړيدې چه صحيح "فلمابدن" دې بدن معنى راځى اسن كله چه د هغوى) عمر زيات شو. راوى روايت بالمعنى كولوسره د خپل طرف ته بدن ترجمه "كثرلحمه" سره كړيده. ابن جوزى رحمه الله هم په دې باندې اشكال كړيدې او وئيلى دى چه "كثرلحمه" صحيح نه دې ځكه چه نبى كريم ﷺ په اوصافوكښې دا چا هم نه دى نقل كړى چه د هغوى ﷺ اندامونه چاق وو، او د هغوى) اندامونه څنګه چاقيديشو چه هغوى) خوكله په ورځ دوه ځل د اوربشو روټئى په مړه خيټه نه خوړلې. نو ظاهرى همدغه معلوميږى چه راوى د خپل طرف ته "بدن" ته "كثرلحمه" سره تعبير كړې.

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى په راوى باندې دا قسمه ګمان كول خلاف ظاهر دې. د ابن جوزى رحمه الله دا ويناچه رسول الله ﷺ په ورځ كښې دوځل په مړه خيټه خوراك نه دې خوړلې نو په دې وجه هغوى چاقيدې نشى محل نظر دې، ځكه چه دا د رسول الله ﷺ په معجزاتوكښې هم شميرلې كيديشى. د ولږې سره به هغوى ﷺ يوشپه كښې نهه ازواج مطهراتو له ورتلو. نو چه د ولږې سره دا ممكن ده نو د كم خوراك نه باوجود هم جسم اطهر كښې كثرت لحم څنګه ناممكن كيديشى. د ابن جوزى رحمه الله په قول ردكولو سره حافظ رحمه الله ليكى: "وفى استدلاله بانه لم يشبع من خبز الشعير نظر، فانه يكون من جملة المعجزات، كما فى كثرة الجماع، وطوافه فى الليلة الواحدة على تسع، واحدى عشرة مع عدم الشبع، وضيق العيش، واى فرق بين الكثير المفى مع الجوع وبين وجود كثرة اللحم فى البدن مع قلة الاكل (۱)په دې وجه روايت كښې "فلما كثرلحمه" ته غلط وئيل او راوى ته بد فهم وئيل صحيح نه دى، خو دومره خبره ده چه د هغوى) بدن مبارك كښې داسې چاقوالې نه ووكوم سره چه د هغوى په حسن او جمال كښې كمې يا خلل واقع شوې وو.

## [۳۲۵] بَاب إِنَّا أَرْسَلْنَاكَ شَاهِدًا وَمُبَشِّرًا وَنَذِيرًا

[۴۵۵۸] حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مَسْلَمَةَ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيزِ بْنُ أَبِي سَلَمَةَ عَنْ هِلَالِ بْنِ أَبِي هِلَالٍ عَنْ عَطَاءِ بْنِ يَسَارٍ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرِو بْنِ الْعَاصِ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا أَنَّ هَذِهِ الْآيَةَ الَّتِي فِي الْقُرْآنِ يَا أَيُّهَا النَّبِيُّ إِنَّا أَرْسَلْنَاكَ شَاهِدًا وَمُبَشِّرًا وَنَذِيرًا قَالَ فِي التَّوْرَاةِ يَا أَيُّهَا النَّبِيُّ إِنَّا أَرْسَلْنَاكَ شَاهِدًا وَمُبَشِّرًا وَحِرْزًا لِلْأُمِّيِّينَ أَنْتَ عَبْدِي وَرَسُولِي سَمَّيْتُكَ الْمُتَوَكِّلَ لَيْسَ

---

(۱) فتح البارى-۸/۵۸۵ :

بِفَظٍّ وَلَا غَلِيظٍ وَلَا سَخَّابٍ بِالْأَسْوَاقِ وَلَا يَدْفَعُ السَّيِّئَةَ بِالسَّيِّئَةِ وَلَكِنْ يَعْفُو وَيَصْفَحُ وَلَنْ يَقْبِضَهُ اللَّهُ حَتَّى يُقِيمَ بِهِ الْمِلَّةَ الْعَوْجَاءَ بِأَنْ يَقُولُوا لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ فَيَفْتَحَ بِهَا أَعْيُنًا عُمْيًا وَآذَانًا صُمًّا وَقُلُوبًا غُلْفًا

**د سند توضیح:** دَ ابوذر او ابوعلی بن سکن په روایت کښې عبدالله بن مسلمه دې (۱) دې نه علاوه په باقي روایاتوکښې "عبدالله" دې دَ پلار نوم نې ذکر نه دې، ابوعلي جیاني وئیلي چه دا عبدالله بن صالح دې، حافظ مزی دې ته ترجیح ورکړیده. دَ ترجیح وجه هغوی داذکر کړې چه امام بخاری رحمه الله بالکل هم دا حدیث په خپل کتاب "الادب المفرد" کښې "عبدالله بن صالح عن عبدالعزیز" په سند سره نقل کړیدې دَ کوم نه چه معلومیږی چه دلته هم دَ عبدالله نه عبدالله بن صالح مراد دې (۲) خو حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائیلي دی چه دَامام بخاری رحمه الله دا روایت دَ عبدالله بن صالح نه نقل کولوسره دا لازم نه راخی چه دلته په بخاری کښې هم دَ ده نه نقل کړیدې ځکه چه ډیرځلې هم یو روایت دَ دوو مختلف شیخانونه امام نقل کوی (۳) دا روایت په کتاب البیوع کښې تیرشویدې (۴)-

## [۳۲۶] بَاب هُوَ الَّذِي أَنْزَلَ السَّكِينَةَ فِي قُلُوبِ الْمُؤْمِنِينَ

[۴۵۵۹] حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللَّهِ بْنُ مُوسَى عَنْ إِسْرَائِيلَ عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ عَنْ الْبَرَاءِ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ بَيْنَمَا رَجُلٌ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقْرَأُ وَفَرَسٌ لَهُ مَرْبُوطٌ فِي الدَّارِ فَجَعَلَ يَنْفِرُ فَخَرَجَ الرَّجُلُ فَنَظَرَ فَلَمْ يَرَ شَيْئًا وَجَعَلَ يَنْفِرُ فَلَمَّا أَصْبَحَ ذَكَرَ ذَلِكَ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ السَّكِينَةُ تَنَزَّلَتْ بِالْقُرْآنِ

**د سکینه په تفسیر کښې مختلف اقوال:** په دې روایت کښې چه دَ کوم سړی واقعه بیان شویده هغه مشهور صحابی حضرت اسید بن حضیر) دې. دَ سکینې متعلق دَ علماؤ مختلف اقوال دی. مشهور قول دا دې چه سکینه یو معنوی څیز دې چه دَ سکون او اطمینان کیفیت سره په انسان باندې دَ الله تعالی دَ طرف نه نازلیږی (۵) بعضو وئیلی دی چه دا دَ اووه فرښتودَ یوې ډلې نوم دې.

علامه نووی رحمه الله فرمائیلی چه دا یو خاص مخلوق وی په چا کښې چه طمانیت او رحمت وی او دې سره دَ ملائکو ډله هم وی (۶)- امام راغب فرمائی چه دا فرښته وی چه دَ مؤمن زړه

(۱) فتح الباری-۸/۵۸۵ :
(۲) فتح الباری۸/۵۸۵ :و عمدة القاری-۱۹/۱۷۸
(۳) فتح الباری-۸/۵۸۵ :
(۴) صحیح بخاری، کتاب البیوع، باب کراهة السخب فی السوق
(۵) تفسیرروح المعانی-۱۲/۱۱۲ :
(۶) مجمع بحار الانوار ۳/۹٤ :وشرح مسلم للنووی ۱/۲۶۸ کتاب فضائل القران، باب نزول السکینة الراءة القران

ته سكون او اطمينان رسوى (۱) يو قول دا هم دې چه سكينه دَ زړه نه دَ رعب او ويرې ختميدلو نوم دې (۲)

## [۳۲۷] بَاب قَوْلِهِ إِذْ يُبَايِعُونَكَ تَحْتَ الشَّجَرَةِ

[۴۵۶۰] حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ عَمْرٍو عَنْ جَابِرٍ قَالَ كُنَّا يَوْمَ الْحُدَيْبِيَةِ أَلْفًا وَأَرْبَعَ مِائَةٍ

[۴۵۶۱] (۳) حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ حَدَّثَنَا شَبَابَةُ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ قَتَادَةَ قَالَ سَمِعْتُ عُقْبَةَ بْنَ صُهْبَانَ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ مُغَفَّلٍ الْمُزَنِيِّ إِنِّي مِمَّنْ شَهِدَ الشَّجَرَةَ نَهَى النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ الْخَذْفِ وَعَنْ عُقْبَةَ بْنِ صُهْبَانَ قَالَ سَمِعْتُ عَبْدَ اللَّهِ بْنَ مُغَفَّلٍ الْمُزَنِيَّ فِي الْبَوْلِ فِي الْمُغْتَسَلِ يَأْخُذُ مِنْهُ الْوَسْوَاسُ

**دَ سند توضيح:** په دې حديث كښې "انى ممن شهد الشجرة" تعلق ترجمة الباب نه دې، دې نه پس دوه حديثونه يو مرفوع او دوئم موقوف ذكر كړيدې. اودَ دواړوتعلق ترجمة الباب نه نه دې.

---

(۱) المفردات للراغب-۲۳۷:

(۲) المفردات للراغب ۲۳۷:وقال ابن الاثير فى النهاية فى غريب الحديث:۲/۳۸۶ :السكنة التى ذكرها الله فى كتابه العزيز، قيل فى تفسيرها انها حيوان له وجه كوجه الانسان مجتمع، وسائرها خلق رقيق كالريح والهواء، وقيل :هى صورة كالهرة كانت معهم فى جيوشهم، فاذاظهرت، انهزم اعداوٌ هم، وقيل :هى ماكانوا يسكنون اليه من الايات التى اعطيهاموسى عليه السلام .... وفى مجمع بحار الانوار ۳/۹۴ :المختار انهاشئ من مخلوقاته فيه طمانينة ورحمة، ومعه ملائكة، وقيل :الاظهر انها الملائكة، وقيل :هوما يحصل به السكون، وصفاء القلب،وذهاب الظلمة النفسانية، ونزول ضياء الرحمة، وحصول الذوق، وقيل، وقيل وقيل، وقال الشوكانى رحمه الله بعدسردالاقوال المختلفة" :هذه التفاسير المتناقضة وانظر الى جعلهم تارة حيوانا، وتارة جماداً، وتارة شيئاً لايعقل ......ولايصح ان يكون مثل هذه التفاسير المتناقضة مروياعن النبى) ...... اذا تقررلك هذاعرفت ان الواجب الرجوع فى مثل ذلك الى معنى السكينة لغة، وهومعروف، ولاحاجة الى ركوب هذه الامور المتعسفة المتناقضة")وانظر فتح القدير -۱/۲۲۷ :سورة البقرة-(

(۳))وايضاً فى الذبائح والصيد، باب الخذف والبندقة رقم الحديث۵۴۷۹:، وفى كتاب الادب، باب النهى عن الخذف، رقم الحديث۶۲۲۰ ، واخرجه مسلم فى الذبائح و باب اباحة الارنب، رقم الحديث۸۹۵۳:، واخرجه ابوداؤد فى الادب، باب فى الخذف رقم الحديث۵۲۷۰:، واخرجه ابن ماجه فى الصيد، باب النهى عن الخذف، رقم الحديث ۳۲۲۷-۳۲۲۶ :والرواية الثانية اخرجهاالترمذى، باب ماجاء فى كراهية البول فى المغتسل رقم الحديث۲۱:، واخرجها ابوداؤد كتاب الطهارة رقم الحديث ۲۷:واخرجها ابن ماجه، باب كراهية البول فى المغتسل رقم الحديث ۳۰۳ :واخرجها النسائى فى الطهارة، باب كراهية الموت فى المستحم- ۱/۱۵

حديث مرفوع دے "نهى النبى صلى الله عليه وسلم عن الخذف" يعنى هغوى ﷺ كانړي د ويشتلونه منع اوفرمائيل. داحديث وړاندې امام بخارى په كتاب الادب كښې تفصيلاً ذكر كړيدې.
داحديث مرفوع عقبه بن صيبان حضرت عبدالله بن مغفل) نه په طريقه د عنعنه نقل كوى.
دينه پس امام دوئم حديث موقوف ذكركړو، عقبه بن صهبان فرمائى چه ما د عبدالله بن مغفل) نه په غسل خانه كښې د ميتيازو په باره كښې واوريدل)چه دينه منع شويده) امام بخارى رحمه الله دا موقوف حديث ذكر كولو سره دا خودل غواړى چه د عقبه بن صهبان د عبدالله بن مغفل)نه دسماع تصريح نقل دى څكه چه په دې كښې "سمعت عبدالله بن مغفل" الفاظ دى.
د دې موقوف حديث باره كښې علامه عينى رحمه الله فرمائى:

وهذا أخرجه اصحاب السنن الأربعة، عن الحسن، عن عبدالله بن مغفل، ان النبى صلى الله عليه وسلم نهى ان يبول الرجل فى مستحمه، وقال: ان عامة الوسواس منه، وهذا لفظ الترمذى، أخرجه فى الطهارة عن على بن حجر، وأخرجه ابوداؤد فيه عن احمد بن حنبل ........ وأخرجه النسائى فيه عن على بن حجر، وأخرجه ابن ماجه فيه عن محمد بن يحيى.[1]

[٤٥٦٢] حَدَّثَنِي مُحَمَّدُ بْنُ الْوَلِيدِ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ جَعْفَرٍ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ خَالِدٍ عَنْ أَبِي قِلَابَةَ عَنْ ثَابِتِ بْنِ الضَّحَّاكِ-رضى الله عنه-وَكَانَ مِنْ أَصْحَابِ الشَّجَرَةِ.

[٤٥٦٣] حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ إِسْحَاقَ السُّلَمِيُّ حَدَّثَنَا يَعْلَى حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيزِ بْنُ سِيَاهٍ عَنْ حَبِيبِ بْنِ أَبِي ثَابِتٍ قَالَ أَتَيْتُ أَبَا وَائِلٍ أَسْأَلُهُ فَقَالَ كُنَّا بِصِفِّينَ فَقَالَ رَجُلٌ أَلَمْ تَرَ إِلَى الَّذِينَ يُدْعَوْنَ إِلَى كِتَابِ اللَّهِ. فَقَالَ عَلِيٌّ نَعَمْ. فَقَالَ سَهْلُ بْنُ حُنَيْفٍ اتَّهِمُوا أَنْفُسَكُمْ فَلَقَدْ رَأَيْتُنَا يَوْمَ الْحُدَيْبِيَةِ - يَعْنِي الصُّلْحَ الَّذِي كَانَ بَيْنَ النَّبِيِّ - صلى الله عليه وسلم - وَالْمُشْرِكِينَ - وَلَوْ نَرَى قِتَالاً لَقَاتَلْنَا، فَجَاءَ عُمَرُ فَقَالَ أَلَسْنَا عَلَى الْحَقِّ وَهُمْ عَلَى الْبَاطِلِ أَلَيْسَ قَتْلاَنَا فِي الْجَنَّةِ وَقَتْلاَهُمْ فِي النَّارِ قَالَ «بَلَى». قَالَ فَفِيمَ أُعْطِي الدَّنِيَّةَ فِي دِينِنَا، وَنَرْجِعُ وَلَمَّا يَحْكُمِ اللَّهُ بَيْنَنَا. فَقَالَ «يَا ابْنَ الْخَطَّابِ إِنِّي رَسُولُ اللَّهِ وَلَنْ يُضَيِّعَنِي اللَّهُ أَبَدًا». فَرَجَعَ مُتَغَيِّظًا، فَلَمْ يَصْبِرْ حَتَّى جَاءَ أَبَا بَكْرٍ فَقَالَ يَا أَبَا بَكْرٍ أَلَسْنَا عَلَى الْحَقِّ وَهُمْ عَلَى الْبَاطِلِ قَالَ يَا ابْنَ الْخَطَّابِ إِنَّهُ رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - وَلَنْ يُضَيِّعَهُ اللَّهُ أَبَدًا. فَنَزَلَتْ سُورَةُ الْفَتْحِ.

## [٣٢٨] باب تفسير سورة الْحُجُرَاتِ

وَقَالَ مُجَاهِدٌ (لاَ تُقَدِّمُوا) لاَ تَفْتَاتُوا عَلَى رَسُولِ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - حَتَّى يَقْضِيَ اللَّهُ

[1]) عمدة القارى: ١٩/ ١٧٩.

عَلٰى لِسَانِهٖ. (امْتَحَنَ) أَخْلَصَ. (تَنَابَزُوا) يُدْعٰى بِالْكُفْرِ بَعْدَ الإِسْلاَمِ. (يَلِتْكُمْ) يَنْقُصْكُمْ، أَلَتْنَا نَقَصْنَا.

**د كلماتو تشريح:**

**قوله:** (لاتُقَدِّمُوا) لاتَفْتَاتُوا عَلٰى رَسُولِ اللّٰهِ - صلى الله عليه وسلم - حَتّٰى يَقْضِيَ اللّٰهُ عَلٰى لِسَانِهٖ: په آيت كښې دى (يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لَا تُقَدِّمُوْا بَيْنَ يَدَيِ اللّٰهِ وَرَسُوْلِهٖ) اې د ايمان خاوندانو! د الله تعالى او د هغه د رسول ((اجازت نه) اول تاسو)په يوقول يا فعل كښې) وړاندې والې مه كوئى. فرمائى آيت كښې "لاتقدموا" معنى ده "لاتفتاتوا" تاسو وړاندې كيږئ مه، تفتاتوافوت نه ماخوذ دې د كوم معنى چه وړاندې كيدل اود وخت تيريدلو ده.

**قوله:** يَلِتْكُمْ يَنْقُصْكُمْ: په آيت كښې دى (وَاِنْ تُطِيْعُوا اللّٰهَ وَرَسُوْلَهٗ لَا يَلِتْكُمْ مِّنْ اَعْمَالِكُمْ شَيْئًا) اوكه تاسو د الله تعالى او د هغه د رسول صلى عليه وسلم وينا اومنئى نو الله تعالى به ستاسو د اعمالونه لږ شان هم كمې اونه كړى.

**قوله:** امْتَحَنَ أَخْلَصَ: په آيت كښې دى (اِنَّ الَّذِيْنَ يَغُضُّوْنَ اَصْوَاتَهُمْ عِنْدَ رَسُوْلِ اللّٰهِ اُولٰٓئِكَ الَّذِيْنَ امْتَحَنَ اللّٰهُ قُلُوْبَهُمْ لِلتَّقْوٰى) بې شكه كوم خلق چه خپل آوازونه د رسول الله ﷺ په وړاندې ښكته ساتى نو دا هغه خلق دى د چا زړونه چه الله تعالى د تقوى د پاره خاص كړيدى، فرمائى آيت كښې امتحن معنى ده خالص كړى خوښ كړى.

## [٣٢٩] بَاب لَا تَرْفَعُوْٓا أَصْوَاتَكُمْ فَوْقَ صَوْتِ النَّبِيِّ الْآيَةَ

تَشْعُرُونَ تَعْلَمُونَ وَمِنْهُ الشَّاعِرُ

[٤٥٦٤] حَدَّثَنَا يَسَرَةُ بْنُ صَفْوَانَ بْنِ جَمِيلٍ اللَّخْمِيُّ حَدَّثَنَا نَافِعُ بْنُ عُمَرَ عَنِ ابْنِ أَبِي مُلَيْكَةَ قَالَ كَادَ الْخَيِّرَانِ أَنْ يَهْلِكَا أَبُوبَكْرٍ وَعُمَرُ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا رَفَعَا أَصْوَاتَهُمَا عِنْدَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حِينَ قَدِمَ عَلَيْهِ رَكْبُ بَنِي تَمِيمٍ فَأَشَارَ أَحَدُهُمَا بِالْأَقْرَعِ بْنِ حَابِسٍ أَخِي بَنِي مُجَاشِعٍ وَأَشَارَ الْآخَرُ بِرَجُلٍ آخَرَ قَالَ نَافِعٌ لَا أَحْفَظُ اسْمَهُ فَقَالَ أَبُوبَكْرٍ لِعُمَرَ مَا أَرَدْتَ إِلَّا خِلَافِي قَالَ مَا أَرَدْتُ خِلَافَكَ فَارْتَفَعَتْ أَصْوَاتُهُمَا فِي ذٰلِكَ فَأَنْزَلَ اللّٰهُ يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَا تَرْفَعُوا أَصْوَاتَكُمُ الْآيَةَ قَالَ ابْنُ الزُّبَيْرِ فَمَا كَانَ عُمَرُ يُسْمِعُ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَعْدَ هٰذِهِ الْآيَةِ حَتّٰى يَسْتَفْهِمَهُ وَلَمْ يَذْكُرْ ذٰلِكَ عَنْ أَبِيهِ يَعْنِي أَبَابَكْرٍ

**قوله:** تشعرون: تعلمون: ومنه الشاعر: په آيت كښې دى (وَاَنْتُمْ لَا تَشْعُرُوْنَ) فرمائى په دې كښې (تَشْعُرُوْنَ) په معنى د تعلمون دې او هم د دينه دې شاعر يعنى پيژندونكې. دامام بخارى رحمه الله د دې روايت نه معلوميږى چه ذكر شوې آيت د شيخينوحضراتو باره كښې نازل شويدې. خولې ابن عطيه رحمه الله وائى چه مذكوره آيت د بنوتميم د اعرابو متعلق نازل شويدې كله چه هغوى راغله اود رسول الله ﷺ په وړاندې په زوره خبرې شروع كړې او د

حضرات شيخين متعلق دابن جريج دَ روايت مطابق آيت ﴿يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَا تُقَدِّمُوا بَيْنَ يَدَيِ اللَّهِ﴾ نازل شويدې.(۱) حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائي چه په دواړو روايتونوکښې هيڅ تعارض نشته، سره دَ دې چه دَ حضرت عمر رضي الله عنه او حضرت صديق اكبر رضي الله عنه باره كښې آيت ﴿يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَا تُقَدِّمُوا﴾ نازل شويدې خودې آيت سره متصل وړاندې آيت ﴿يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَا تَرْفَعُوا أَصْوَاتَكُمْ﴾ دې په دې وجه حضرت عمر رضي الله عنه هم دَ دې آيت دَ وجه نه دَ هغوی صلی الله علیه وسلم په خدمت كښې په مزه دَ خبروكولو اهتمام شروع كړو.(۲)

**د ايت كريمه شان نزول:** اودا هم ممكن دى چه ذكر شوى دواړه واقعات يو ځائ پيښ شوى وى. دَ حضرت عمر رضي الله عنه او حضرت ابوبكر رضي الله عنه په خبروكښې دَ هغوى آواز اوچت شو اودَ دواړو متعلق دا آيت نازل شو. دَ دې دَ پاره روايت باب او دَ آيت باب بهر حال يوبل سره تعلق دې او امام بخارى رحمه الله معمولى مناسبت او تعلق سره روايات ذكركوى. دَ حضرات شيخين په مينځ كښې چه كومې خبرې اترې اوشوې دَ هغې تفصيل په كتاب المغازى كښې "وفدبنى تميم" لاندې تيرشوې دې.(۳)

[۴۵۶۵] حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ حَدَّثَنَا أَزْهَرُ بْنُ سَعْدٍ أَخْبَرَنَا ابْنُ عَوْنٍ قَالَ أَنْبَأَنِي مُوسَى بْنُ أَنَسٍ عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ افْتَقَدَ ثَابِتَ بْنَ قَيْسٍ فَقَالَ رَجُلٌ يَا رَسُولَ اللَّهِ أَنَا أَعْلَمُ لَكَ عِلْمَهُ فَأَتَاهُ فَوَجَدَهُ جَالِسًا فِي بَيْتِهِ مُنَكِّسًا رَأْسَهُ فَقَالَ لَهُ مَا شَأْنُكَ فَقَالَ شَرٌّ كَانَ يَرْفَعُ صَوْتَهُ فَوْقَ صَوْتِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَدْ حَبِطَ عَمَلُهُ وَهُوَ مِنْ أَهْلِ النَّارِ فَأَتَى الرَّجُلُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَأَخْبَرَهُ أَنَّهُ قَالَ كَذَا وَكَذَا فَقَالَ مُوسَى فَرَجَعَ إِلَيْهِ الْمَرَّةَ الْآخِرَةَ بِبِشَارَةٍ عَظِيمَةٍ فَقَالَ اذْهَبْ إِلَيْهِ فَقُلْ لَهُ إِنَّكَ لَسْتَ مِنْ أَهْلِ النَّارِ وَلَكِنَّكَ مِنْ أَهْلِ الْجَنَّةِ

**قوله:** فقال رجل: يارسول الله، انا اعلم لك علمه: داسړې څوك وو حافظ بن حجر رحمه الله اوفرمائيل چه دا حضرت سعدبن معاذ) وو (۴)او په صحيح مسلم كښې هم دَ هغوى نوم دې(۵) خو حافظ ابن كثير رحمه الله په دې باندې اشكال كړيدې چه حضرت سعد بن معاذ) دَ غزوه خندق نه پس په كال ۵هجرى كښې شهيدشوې وو او دَ مذكوره آيت تعلق دَ بنى تميم وفد سره دې. كوم چه په كال ۹هجرى كښې دَ هغوى صلی الله علیه وسلم په خدمت كښې حاضرشوې وو. په

(۱) فتح البارى-۸/۵۹۱ :
(۲) فتح البارى-۸/۵۹۱ :
(۳) كشف البارى، كتاب المغازى-۵۹۰:
(۴) فتح البارى-۸/۵۹۲ :
(۵) صحيح مسلم كتاب الايمان باب مخافة المؤمن ان يحبط عمله-۱/۷۵:

دې وجه په تاریخی لحاظ سره دَ حضرت سعدبن معاذ نوم اخستل صحیح نه دی (۱) ابن منذر په خپل تفسیرکښې لیکلی دی چه دا سړې حضرت سعدبن عباده) وو (۲) او ابن جریر دَ عاصم بن عدی نوم اخستې دې (۳) اوبعضو دَحضرت ابومسعود انصاری) نوم اخستې دې (۴)

## [۳۳۰] بَاب إِنَّ الَّذِينَ يُنَادُونَكَ مِنْ وَرَاءِ الْحُجُرَاتِ أَكْثَرُهُمْ لَا يَعْقِلُونَ

[۴۵۶۴] حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا حَجَّاجٌ عَنْ ابْنِ جُرَيْجٍ قَالَ أَخْبَرَنِي ابْنُ أَبِي مُلَيْكَةَ أَنَّ عَبْدَ اللَّهِ بْنَ الزُّبَيْرِ أَخْبَرَهُمْ أَنَّهُ قَدِمَ رَكْبٌ مِنْ بَنِي تَمِيمٍ عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ أَبُو بَكْرٍ أَمِّرْ الْقَعْقَاعَ بْنَ مَعْبَدٍ وَقَالَ عُمَرُ بَلْ أَمِّرْ الْأَقْرَعَ بْنَ حَابِسٍ فَقَالَ أَبُو بَكْرٍ مَا أَرَدْتَ إِلَى أَوْ إِلَّا خِلَافِي فَقَالَ عُمَرُ مَا أَرَدْتُ خِلَافَكَ فَتَمَارَيَا حَتَّى ارْتَفَعَتْ أَصْوَاتُهُمَا فَنَزَلَ فِي ذَلِكَ يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَا تُقَدِّمُوا بَيْنَ يَدَيْ اللَّهِ وَرَسُولِهِ حَتَّى انْقَضَتْ الْآيَةُ

دلته هم امام دَ حضرات شیخین واقعه دَ دې آیت لاندې نقل کړیده، حالانکه مذکوره آیت دَ حضرات شیخین باره کښې نه دې نازل شوې بلکه دا دَ جفاة اعراب متعلق نازل شویدې.

په هغوی چا په زوره سره "یامحمد" چغه په یو کلی واله طریقه سره دَ هغوی ﷺ دَ راغوښتلو دَ پاره اولګوله نو دا آیت نازل شو (۵) خودَ دې جواب هم هغه دې چه دَ حضرات شیخینومتعلق دَ سورة ړومبنې آیت نازل شویدې خو بیادا آیت هم دې سره نزدې او دَ هغوی ﷺ سره دَ ادب سلوك کول په دې آیت کښې هم دَ ړومبنی آیت په شان خودلې شوې دې. په دې مناسبت سره دلته ذکر کړیشو. والله اعلم

## [۳۳۱] بَاب قَوْلِهِ وَلَوْ أَنَّهُمْ صَبَرُوا حَتَّى تَخْرُجَ إِلَيْهِمْ لَكَانَ خَيْرًا لَهُمْ

ددې آیت لاندې امام (بخاری رحمه الله) هیڅ یو روایت نه دې نقل کړې، علامه عینی لیکلی دی:

والظاهر انه أخلى موضع الحديث، فما لم يظفر بشيء على شرطه او ادركه الموت. (۶)

## [۳۳۲] باب: تفسير سُورَةُ ق

رَجْعٌ بَعِيدٌ رَدٌّ فُرُوجٍ فُتُوقٍ وَاحِدُهَا فَرْجٌ مِنْ حَبْلِ الْوَرِيدِ وَرِيدَاهُ فِي حَلْقِهِ وَالْحَبْلُ حَبْلُ الْعَاتِقِ

---

(۱) تفسیرابن کثیر-۴/۲۰۷:

(۲) عمدة القاری، باب علامات النبوة-۱۶/۱۴۵ :

(۳) تفسیرابن جریر و تفسیر ابن کثیر-۴/۲۰۷:

(۴) فتح الباری-۸/۵۵۲ :

(۵) تفسیر ابن کثیر ۴/۲۰۸؛ واسباب النزول سیوطی-۱۹۵-۱۹۴ :

(۶) عمدة القاری: ۱۹| ۱۸۴.

وَقَالَ مُجَاهِدٌ مَا تَنْقُصُ الْأَرْضُ مِنْ عِظَامِهِمْ تَبْصِرَةً بَصِيرَةً حَبَّ الْحَصِيدِ الْحِنْطَةُ بَاسِقَاتٍ الطِّوَالُ أَفَعَيِينَا أَفَأَعْيَا عَلَيْنَا حِينَ أَنْشَأَكُمْ وَأَنْشَأَ خَلْقَكُمْ وَقَالَ قَرِينُهُ الشَّيْطَانُ الَّذِي قُيِّضَ لَهُ فَنَقَّبُوا ضَرَبُوا أَوْ أَلْقَى السَّمْعَ لَا يُحَدِّثُ نَفْسَهُ بِغَيْرِهِ رَقِيبٌ عَتِيدٌ رَصَدٌ سَائِقٌ وَشَهِيدٌ الْمَلَكَانِ كَاتِبٌ وَشَهِيدٌ شَهِيدٌ شَاهِدٌ بِالْغَيْبِ مِنْ لُغُوبِ النَّصَبُ وَقَالَ غَيْرُهُ نَضِيدٌ الْكُفُرَّى مَا دَامَ فِي أَكْمَامِهِ وَمَعْنَاهُ مَنْضُودٌ بَعْضُهُ عَلَى بَعْضٍ فَإِذَا خَرَجَ مِنْ أَكْمَامِهِ فَلَيْسَ بِنَضِيدٍ وَإِدْبَارِ النُّجُومِ وَأَدْبَارِ السُّجُودِ كَانَ عَاصِمٌ يَفْتَحُ الَّتِي فِي ق وَيَكْسِرُ الَّتِي فِي الطُّورِ وَيُكْسَرَانِ جَمِيعًا وَيُنْصَبَانِ وَقَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ يَوْمَ الْخُرُوجِ يَوْمَ يَخْرُجُونَ إِلَى الْبَعْثِ مِنَ الْقُبُورِ

**د کلماتو تشریح:**

**قوله: رَجْعٌ بَعِيدٌ: رَدٌّ:** آیت کښې دی (ءَإِذَا مِتْنَا وَكُنَّا تُرَابًا ۚ ذَٰلِكَ رَجْعٌ بَعِيدٌ) بنه ده چه کله مونږ مړه شو او خاورې شو نو آیابیا به راژوندی کولې شو. دا بیاراژوندی کیدل ډیره لرې خبره ده. فرمائی "رَجْعٌ بَعِيدٌ" معنی ده "رَدٌّ" یعنی دنیاطرف ته بیا راګرځیدل.

**قوله: فُرُوجٍ: فُتُوقٍ: وَاحِدُهَا فَرْجٌ:** (وَزَيَّنَّاهَا وَمَا لَهَا مِنْ فُرُوجٍ) او(ستوروسره) دا بنائسته کړو او په دې کښې هیڅ چاودې نشته فرمائي فروج په معنی فتوق دې چه دَ فتق جمع ده په معنی دَ چاودی، سوری فروج جمع ده او دَ دې مفرد فرج دې.

**قوله: مِنْ حَبْلِ الْوَرِيدِ: وَرِيدَاهُ فِي حَلْقِهِ:** آیت کښې دی (وَنَحْنُ أَقْرَبُ إِلَيْهِ مِنْ حَبْلِ الْوَرِيدِ) فرمائی په آیت کښې (حَبْلِ الْوَرِيدِ) نه سټ کښې دوه رګونه مراد دی. وریدَ سټ هغه رګ ته وائی دَ کوم په کټ کیدوچه مرګ واقع کیږی. په هندوستانی نسخوکښې عبارت دې "وریدٰی حلقه: والحبل: حبل العاتق" ورید په حلق کښې وی اودَ حبل نه دَ سټ رګ مراد دې چونکه دا رګ حبل یعنی دَ رسئی سره یوشان وی په دې وجه دیته حبل الورید وائی.

**قوله: مَا تَنْقُصُ الْأَرْضُ: مِنْ عِظَامِهِمْ:** آیت مبارك کښې دی (قَدْ عَلِمْنَا مَا تَنْقُصُ الْأَرْضُ مِنْهُمْ) مونږ دا اجزا پیژنو کوم چه خاوره کموی. فرمائی دې اجزا نه دَ دوی هډوکی مراددی.

**قوله: تَبْصِرَةً: بَصِيرَةً:** آیت کښې دی (تَبْصِرَةً وَذِكْرَىٰ لِكُلِّ عَبْدٍ مُنِيبٍ) فرمائی دَ (تَبْصِرَةً) معنی ده بصیرت، هوښیارتوب او بینائی.

**قوله: حَبَّ الْحَصِيدِ: الْحِنْطَةُ:** آیت کښې دی (فَأَنْبَتْنَا بِهِ جَنَّاتٍ وَحَبَّ الْحَصِيدِ) فرمائی چه په دې کښې "حب الحصید" نه غنم او وریږې مراد دی، قتادہ رحمه الله فرمائی چه دینه غنم او اوربشې مراد دی خودا لفظ عام دې دَ زمیندارئی هره غله دَ دې په عموم کښې داخله ده.

**قوله: بَاسِقَاتٍ: الطِّوَالُ:** (وَالنَّخْلَ بَاسِقَاتٍ لَهَا طَلْعٌ نَضِيدٌ) او(راتوکوی) اوږدې اوږدې دَ کهجورې ونې دَ کومو غونچې چه ښه ګورې وی. فرمائی چه باسقات معنی اوږدې اوږدې.

**قوله:** أَفَعَيِينَا : أَفَأَعْيَا عَلَيْنَا، حِينَ أَنْشَأَكُمْ: آیت کښې دی ﴿أَفَعَيِينَا بِالْخَلْقِ الْأَوَّلِ بَلْ هُمْ فِي لَبْسٍ مِّنْ خَلْقٍ جَدِيدٍ﴾ آیا مونږ په اول پیداکولو کښې ستړې شوی یو بلکه داخلق دَ سره دَ پیداکیدو طرف نه په شك کښې پراته دی. فرمائی افعیینا معنی افاعیاعلینا، آیا په مونږ باندې بوج جوړشویدې دې مونږ ئی ستړی کړی یو کله چه تاسو الله پیدا کړئی.

**قوله:** وَقَالَ قَرِينُهُ : الشَّيْطَانُ الَّذِي قُيِّضَ لَهُ: آیت کښې دی ﴿وَقَالَ قَرِينُهُ هَٰذَا مَا لَدَيَّ عَتِيدٌ﴾ اوفرښته چه هغه سره اوسیده وائی به دا هغه (عمل نامه) ده چه ماسره تیاره ده.
فرمائی "قرین" نه هغه شیطان مراد دې چه دَ هغه سړی دَ پاره مقرر کړیشوې وو دواړه قوله دی. علامه شبیراحمدعثمانی رحمه الله لیکی: "یعنی فرښته به عمل نامه حاضره کړی او بعضو "قرین" نه مراد شیطان اخستې دې یعنی شیطان به وائی چه دا مجرم حاضر دې کوم چه ما اغواکړې وو او دوزخ له مې تیار کړې راوستې دې. مطلب دا چه اغواخو ما کړو ولې زما داسې زور اوتسلط نه وو چه په زور مې دې په شرارت کښې اچولو دې خو په خپله اراده او اختیار سره گمراه شو.

**قوله:** فَنَقَّبُوا ضَرَبُوا: آیت مبارك کښې دی ﴿فَنَقَّبُوا فِي الْبِلَادِ هَلْ مِن مَّحِيصٍ﴾ اوټول ښارونه ئی چهانړ کړی وو نو بیا څه دَ پناه ځائ بیاموندلې شو، فرمائی آیت کښې نقبوا معنی ده ضربوا: گرځیدل راځیدل.

**قوله:** حِينَ أَنْشَأَكُمْ: دا لفظ هندوستانی نسخوکښې دلته دی، دَ دې لفظ تعلق افعیینا نه دې چه اول تیرشو، دا ئی سهوکاتب سره نقل کړیدې.

**قوله:** أَوْ أَلْقَى السَّمْعَ: لَا يُحَدِّثُ نَفْسَهُ بِغَيْرِهِ: آیت کښې دی ﴿إِنَّ فِي ذَٰلِكَ لَذِكْرَىٰ لِمَن كَانَ لَهُ قَلْبٌ أَوْ أَلْقَى السَّمْعَ وَهُوَ شَهِيدٌ﴾ فرمائی ﴿أَوْ أَلْقَى السَّمْعَ﴾ مطلب دا دې چه په خپل زړه کښې دَ بل څه څیز خیال مه پیدا کوئی، غوږکیږدئی واورئی.

**قوله:** رَقِيبٌ عَتِيدٌ: رَصَدٌ: ﴿مَا يَلْفِظُ مِن قَوْلٍ إِلَّا لَدَيْهِ رَقِيبٌ عَتِيدٌ﴾ دَ رقیب معنی ساتندونکې اودَ عتید معنی حاضر او تیار او دَ رصدمعنی په شیش کښې دَ ناست راځی.

**قوله:** سَائِقٌ وَشَهِيدٌ الْمَلَكَانِ: كَاتِبٌ وَشَهِيدٌ: آیت کښې دی ﴿وَجَاءَتْ كُلُّ نَفْسٍ مَّعَهَا سَائِقٌ وَشَهِيدٌ﴾ فرمائی دا دوه فرښتې دی یوکاتب یعنی عملونه لیکونکې او دوئمه گواه. بعضو وئیلی دی چه سائق هغه فرښته ده چه سړې به خپل موقف طرف ته راکاږی او دَ شهیدنه اعمال باندې گواهی ورکونکې فرښته مراد ده.[1]

**قوله:** شَهِيدٌ: شَاهِدٌ بِالْقَلْبِ: ﴿أَوْ أَلْقَى السَّمْعَ وَهُوَ شَهِيدٌ﴾ دې کښې دَ شهید نه په زړه سره

[1] عمدة القاری-۱۸۵/۱۹:

حاضریدونکي مراد دي.

**قوله:** لُغُوبٍ: النَّصَبُ: آیت کښې دی (وَمَا مَسَّنَا مِنْ لُّغُوْبٍ) او مونږ سره ستړیوالي لږېدلې هم نه دي. فرمائي لغوب بمعنی ستړیوالي، ستړې.

**قوله:** نَضِيدٌ الْكُفُرَّى مَادَامَ فِي أَكْمَامِهِ: آیت کښې دی (وَالنَّخْلَ بٰسِقٰتٍ لَّهَا طَلْعٌ نَّضِيْدٌ) یعنی مونږ د اوبوپه ذریعه اوږدې کهجورې راو تږکولې د کومې غونچه چه تازه په تازه ده نضید هغه غونچې ته وائی چه په خپل غلاف او غونچه کښې وی دا معنی د منضود نه یعنی بعضې په بعضې باندې یود بل د پاسه وی، پته شوې وی کله چه د خلاف نه غونچه راوځی نو بیا په دې باندې د نضید اطلاق نه کیږی.

**قوله:** وَإِدْبَارِ النُّجُومِ وَأَدْبَارَ السُّجُودِ: سورة طور کښې دی (وَمِنَ الَّيْلِ فَسَبِّحْهُ وَإِدْبَارَ النُّجُوْمِ) او سورة ق کښې دی (وَمِنَ الَّيْلِ فَسَبِّحْهُ وَأَدْبَارَ السُّجُوْدِ) فرمائي چه قاری عاصم سورة ق کښې لفظ "أدبار" د همزه زبر سره لولی او سورة طور کښې "إدبار" د همزه په زیر سره لولی. بعض حضرات دواړو ځایونوکښې زبر سره او بعضو دواړه ځایونوکښې زیرسره لوستلې دي.

"إدبار" همزه زیر سره باب افعال ادبر، یدبر مصدر دې او "أدبار" د همزه د زبر سره "دبر" جمع ده. دبرشاته او روستنئی حصې ته وائی[1] دلته د دواړو په معنوکښې هیڅ تفاوت او لریوالې نشته. مقصود د ستورو د ډوبیدونه پس یعنی د سحر په وخت کښې اود مونځونونه پس د استغفار او تسبیح حکم دې.

**قوله:** وَقَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ يَوْمَ الْخُرُوجِ يَوْمَ يَخْرُجُونَ مِنَ الْقُبُورِ: آیت کښې دی (يَوْمَ يَسْمَعُوْنَ الصَّيْحَةَ بِالْحَقِّ ۭ ذٰلِكَ يَوْمُ الْخُرُوْجِ) په کومه ورځ چه دا چغه په یقین سره ټول واوری، داورځ به وی (د قبرونو نه) د وتلو. حضرت ابن عباس رضي الله عنه فرمائي چه په دې آیت کښې (يَوْمُ الْخُرُوْجِ) نه هغه ورځ مراد ده په کومه ورځ چه به خلق د قبرونونه راوځی.

## [۳۳۳] بَاب: قَوْلِهِ: وَتَقُولُ هَلْ مِنْ مَزِيدٍ

[۴۵۶۷] ([2]) حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ أَبِي الْأَسْوَدِ حَدَّثَنَا حَرَمِيُّ بْنُ عُمَارَةَ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ قَتَادَةَ عَنْ أَنَسٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ يُلْقَى فِي النَّارِ وَتَقُولُ هَلْ مِنْ مَزِيدٍ حَتَّى يَضَعَ قَدَمَهُ فَتَقُولُ قَطْ قَطْ

---

[1] عمدة القاری-۱۹/۱۸۶:

[2] وایضاً فی کتاب الایمان والنذور، باب الحلف بعزة الله وصفاته وکلماته، رقم الحدیث۶۶۶۱ :. وفی التوحید باب قول الله عزوجل :وهوالعزیزالحکیم، سبحان ربک رب العزة عمایصفون، رقم الحدیث۷۳۸۴:. واخرجه الترمذی فی التفسیر، باب" ومن سورة ق "رقم الحدیث-۳۲۷۲

[۴۵۶۸| ۴۵۶۹] (۱) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ مُوسَى الْقَطَّانُ حَدَّثَنَا أَبُو سُفْيَانَ الْحِمْيَرِيُّ سَعِيدُ بْنُ يَحْيَى بْنِ مَهْدِيٍّ حَدَّثَنَا عَوْفٌ عَنْ مُحَمَّدٍ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَفَعَهُ وَأَكْثَرُ مَا كَانَ يُوقِفُهُ أَبُو سُفْيَانَ يُقَالُ لِجَهَنَّمَ هَلِ امْتَلَأْتِ وَتَقُولُ هَلْ مِنْ مَزِيدٍ فَيَضَعُ الرَّبُّ تَبَارَكَ وَتَعَالَى قَدَمَهُ عَلَيْهَا فَتَقُولُ قَطْ قَطْ

**د سند توضیح**: په سند کښې "محمد" نه محمدبن سیرین مراد دي، هغه دَ حضرت ابوهریره نه نقل کوی "واکثر ماکان یوقفه ابوسفیان" دا دَ امام بخاری رحمه الله دَ شیخ محمدبن موسی القطان رحمه الله قول دي هغه فرمائی دا حدیث مرفوعاً هم مروی دي. لیکن زمونږ شیخ ابوسفیان رحمه الله به دا اکثر موقوفاً نقل کولو. "یوقفه" اوقف الحدیث: حدیث موقوفاً روایت کول.

[۴۵۶۹] حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ أَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ عَنْ هَمَّامٍ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تَحَاجَّتِ الْجَنَّةُ وَالنَّارُ فَقَالَتِ النَّارُ أُوثِرْتُ بِالْمُتَكَبِّرِينَ وَالْمُتَجَبِّرِينَ وَقَالَتِ الْجَنَّةُ مَا لِي لَا يَدْخُلُنِي إِلَّا ضُعَفَاءُ النَّاسِ وَسَقَطُهُمْ قَالَ اللَّهُ تَبَارَكَ وَتَعَالَى لِلْجَنَّةِ أَنْتِ رَحْمَتِي أَرْحَمُ بِكِ مَنْ أَشَاءُ مِنْ عِبَادِي وَقَالَ لِلنَّارِ إِنَّمَا أَنْتِ عَذَابِي أُعَذِّبُ بِكِ مَنْ أَشَاءُ مِنْ عِبَادِي وَلِكُلِّ وَاحِدَةٍ مِنْهُمَا مِلْؤُهَا فَأَمَّا النَّارُ فَلَا تَمْتَلِئُ حَتَّى يَضَعَ رِجْلَهُ فَتَقُولُ قَطْ قَطْ فَهُنَالِكَ تَمْتَلِئُ وَيُزْوَى بَعْضُهَا إِلَى بَعْضٍ وَلَا يَظْلِمُ اللَّهُ عَزَّ وَجَلَّ مِنْ خَلْقِهِ أَحَدًا وَأَمَّا الْجَنَّةُ فَإِنَّ اللَّهَ عَزَّ وَجَلَّ يُنْشِئُ لَهَا خَلْقًا

دلته دَ دې باب په روایت کښې دی چه دَ حساب کتاب نه پس به دوزخیان په دوزخ کښې اوغورزولې شی نو دوزخ به وائی چه څه نور څه هم شته؟ یعنی دَ نورو تقاضا به کوی نو الله تعالی به په هغه باندې خپل قدم کیږدی نوهله به دوزخ وائی بس بس.

**د جنت او جهنم مناظره**: په آخری روایت کښې دی چه جنت او دوزخ به په خپل مینځ کښې مخاصمه او مناظره کوی. دوزخ وائی "اوثرت بالمتکبرین والمتجبرین" (۲) کښې متکبره او ظالمانوَ پاره خاص کړیشوې وی. جنت وئیل چه په ماڅه شوی چه په ما کښې کمزورې او ضعیف خلق داخلیږی. نو الله تعالی جنت ته اووئیل چه ته زما رحمت ئی هم ستا په ذریعه به زه په خپلو بندیګانو کښې څوك چه غواړم رحم به پرې کوم او دوزخ ته ئی اوفرمائیل ته زما عذاب ئی ستا په ذریعه به زه خپلو بندیګانوته چاله چه غواړم عذاب به ورکوم. جنت او دوزخ دواړه به ډکول وی، دوزخ به هغه وخت پورې نه ډکیږی ترکومې چه الله تعالی په هغه

(۱) وایضاً فی التوحید باب ان رحمة الله قریب من المحسنین، رقم الحدیث ۷۴۴۹: واخرجه مسلم فی الجنة وصفة نعیمها واهلها، باب النار یدخلها الجبارون، رقم الحدیث-۲۸۴۶ :

(۲) قوله :بالمتکبرین والمتجبرین :هما سوامن حیث اللغة، فالثانی تاکیدللاول معنی، وقیل :المتکبر المتعظم بما لیس فیه، والمتجبر المنوع الذی لاینال الیه)عمدة القاری-۹/۱۸۷:

دَ پاسه خپل قدم نه وی ایخودې هغه وخت به هغه ډك شی او دَ دې حصې به راغونډې شی او دَ جنت دَ ډکولو دَ پاره به الله تعالی یو مخلوق پیدا کوی.

**قوله: فَيَضَعُ الرَّبُّ تَبَارَكَ وَتَعَالَى قَدَمَهُ عَلَيْهَا:**

دَ "فیضع الرب تبارک وتعالی قدمه علیها"، معنی: دلته په روایت کښې دَ الله تعالی دَ پاره قدم ثابت کړیشویدې، دَ قدم نه څه مراد دی. په دې سلسله کښې دَ سلفو اختلاف دې. اکثر حضرات یعنی متقدمین وائی په قرآن او حدیث کښې داشان مواقع کښې تفویض او تسلیم اولی دې، دَ امام مالک رحمه الله نه "استواء عرش" باره کښې تپوس اوشو نو هغوی اوفرمائیل "الاستواء معلوم، والکیف مجهول، والایمان به واجب، والسؤال عنه بدعة" (۱) ډیرو حضراتو یعنی متاخرینو په دې قسم مواقع کښې دَ تاویل طریقه اختیار کړې نو دلته هم دَ قدم مختلف تاویلونه کړیشوی دی.

① بعضې حضراتو وئیلی دی دراصل دا "اذلال" نه کنایه ده چه دَ دوزخ طغیان کله زیات شی نو الله تعالی به هغه ذلیل کوی، دې اذلال ته "وضع قدم" سره تعبیر کړیشوې دې. لکه چه په محاوره کښې وائی "وضعت فلانا تحت قدمی" او مطلب دا وی چه ما هغه ذلیل کړو. په دې کښې دَ قدم حقیقی معنیٰ مراد نه وی "والعرب تستعمل الفاظ الاعضاء فی ضرب الامثال، ولاترید اعیانها" (۲)

② بعضې حضراتو وئیلی دی چه قدم دَ یوخاص مخلوق نوم دې کوم چه الله تعالی دوزخ ته دَ لیګلو فیصله کړې ده. کله دوزخ دَ "هل من مزید" مطالبه کوی نو هغه وخت به هغه په دوزخ کښې داخل کړې شی نو هله به دَ دوزخ غوښتنه ختمه شی. (۳)

③ یوقول داهم دې چه دَ قدم نه مراد په دوزخ کښې دَ ټولونه آخرکښې داخلیدونکې ډله ده څکه چه قدم دَ انسانی بدن آخری اندام دې، په دې صورت کښې به معنی وی "حتی یضع الله فی النار اخراهلها" (۴)

④ داوئې وئیلی دی چه دَ قدم نه دلته قدم صدق مراد دې او هغه جناب نبی کریم ﷺ دې اودې نه دَ رسول الله شفاعت یعنی مقام محمود طرف ته اشاره ده چه دَ هغوی په سفارش به هغه ټول خلق دَ دوزخ نه راوُویستلې شی دَ چا په زړه کښې چه څه لږ ډیر ایمان وو او دې

(۱) روح المعانی ۸/۱۳۴:وشرح العقیدة الطحاویة ۲۸۱-۲۸۰:ومنهج ودراسات لایات الاسماء والصفات للشیخ محمد الامین الشنقیطی ۲۱ :ومجموع فتاوی شیخ الاسلام ابن تیمیه ۳/۵۸:کتاب مجمل اعتقاد السلف

(۲) فتح الباری-۸/۵۹۶:

(۳) فتح الباری-۸/۵۹۶:

(۴) فتح الباری-۸/۵۹۶:

سره سره به دَ دوزخ طغياني هم ختمه شي او هغه به دَ نورو غوښتني مطالبه پرېږدي.(١)
په آخري روايت كښي دَ قدم په ځاي رجل لفظ راغلي دې ابن جوزي رحمه الله وئيلي دي چه دا تحريف دې يو راوي كه دَ قدم حقيقي معني مراد اخستلو سره دا رجل سره تعبير كړي، ابن فورك دَ رجل لفظ بالكل غير ثابت كړيدې. (٢)خودَ دوي دا خبره صحيح نه ده ځكه چه بخاري او مسلم دواړو كښي دا لفظ راغلي دې(٣) نودَ دې باره كښي دا وينا كول چه ثابت نه دي غلطه خبره ده. دَ قدم په شان دَ رجل هم تاويل كړېشويدې ليكن چه څنګه اوخودلې شو چه په دې قسمه الفاظوكښي تفويض او تسليم بهتر دې، مناسب او محتاط مذهب دې.

**قوله: لَا يَدْخُلُنِي إِلَّا ضُعَفَاءُ النَّاسِ وَسَقَطُهُمْ:**

دَ "لا يدخلني الا ضعفاء الناس وسقطهم"، معني: په جنت كښي به كمزوري او هغه داخليږي چه دَ خلقو په نظركښي ساقط او غورزيدلي وي يا بيا داسې اووايه چه هغوي دَ الله تعالي دَ عظمت او جلال وړاندې كړې وي او خپل ځان حقير او كمتر شميري، دَ سقط نه ساقط او پريوتلي او حقير خلق مراد دي. خو دا دَ الله تعالي په نظركښي ساقط نه بلكه عظيم خلق به وي.دوي ته دَ عامو خلقو په نسبت ساقط وئيلي شوي دي. يا دَ هغوي دَ عاجزئي په وجه پخپله دَ هغوي په نظركښي حقيركيدل مراد دي نو حافظ ابن حجر رحمه الله ليكي: هذا بالنسبة الى ماعند الاكثر من الناس، وبالنسبة الى ماعند الله، هم عظماء، رفعاء الدرجات، لكنهم بالنسبة الى عند انفسهم لعظمة الله عندهم، وخضوعهم له في غاية التواضع لله، والذلة في عبادة، فوصفهم بالضعف والسقط.(٤)

**قوله: وَيُزْوَى بَعْضُهَا إِلَى بَعْضٍ:** دا دَ مجهول صيغه ده په معني دَ راغونډيدلو، يوځاي كيدلو "اى يضم بعضها الى بعض" دَ جنت او دوزخ دا مخاصمه ياخو دَ حال په ژبه اوشوه او يا الله ﷻ دې دواړو ته دَ خبرو طاقت وركړو او دَ هغې نه پس دا بحث اوشو(٥) دَ دې متعلق نور تفصيل وړاندې كتاب التوحيد كښي "باب قوله: ان رحمة الله قريب من المحسنين" لاندې به انشاء الله تعالي راځي.

## [۳۳۴] بَاب قَوْلِهِ وَسَبِّحْ بِحَمْدِ رَبِّكَ قَبْلَ طُلُوعِ الشَّمْسِ وَقَبْلَ الْغُرُوبِ

[۴۵۷۰] حَدَّثَنَا إِسْحَاقُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ عَنْ جَرِيرٍ عَنْ إِسْمَاعِيلَ عَنْ قَيْسِ بْنِ أَبِي حَازِمٍ

(١)فتح الباري ۸/۵۹۶:
(٢)فتح الباري-۸/۵۹۶:
(٣)فتح الباري-۸/۵۹۶:
(٤)فتح الباري-۸/۵۹۶:
(٥)عمدة القاري-۱۸/۱۸۷:

عَنْ جَرِيرِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ كُنَّا جُلُوسًا لَيْلَةً مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَنَظَرَ إِلَى الْقَمَرِ لَيْلَةَ أَرْبَعَ عَشْرَةَ فَقَالَ إِنَّكُمْ سَتَرَوْنَ رَبَّكُمْ كَمَا تَرَوْنَ هٰذَا لَا تُضَامُونَ فِي رُؤْيَتِهِ فَإِنْ اسْتَطَعْتُمْ أَنْ لَا تُغْلَبُوا عَلَى صَلَاةٍ قَبْلَ طُلُوعِ الشَّمْسِ وَقَبْلَ غُرُوبِهَا فَافْعَلُوا ثُمَّ قَرَأَ وَسَبِّحْ بِحَمْدِ رَبِّكَ قَبْلَ طُلُوعِ الشَّمْسِ وَقَبْلَ الْغُرُوبِ

[۴۵۷۱] حدثنا ادم حدثنا ورقاء، عن ابن ابي نجيح، عن مجاهد قال ابن عباس امره ان يسبح في ادبار الصلوات كلها، يعني قوله وادبار السجود.

## [۳۳۵] باب: تفسير سورة وَالذَّارِيَاتِ

قَالَ عَلِيٌّ عَلَيْهِ السَّلَامُ الذَّارِيَاتُ الرِّيَاحُ وَقَالَ غَيْرُهُ تَذْرُوهُ تُفَرِّقُهُ وَفِي أَنْفُسِكُمْ أَفَلَا تُبْصِرُونَ تَأْكُلُ وَتَشْرَبُ فِي مَدْخَلٍ وَاحِدٍ وَيَخْرُجُ مِنْ مَوْضِعَيْنِ فَرَاغَ فَرَجَعَ فَصَكَّتْ فَجَمَعَتْ أَصَابِعَهَا فَضَرَبَتْ بِهِ جَبْهَتَهَا وَالرَّمِيمُ نَبَاتُ الْأَرْضِ إِذَا يَبِسَ وَدِيسَ لَمُوسِعُونَ أَيْ لَذُو سَعَةٍ وَكَذٰلِكَ عَلَى الْمُوسِعِ قَدَرُهُ يَعْنِي الْقَوِيَّ خَلَقْنَا زَوْجَيْنِ الذَّكَرَ وَالْأُنْثَى وَاخْتِلَافُ الْأَلْوَانِ حُلْوٌ وَحَامِضٌ فَهُمَا زَوْجَانِ فَفِرُّوا إِلَى اللّٰهِ مَعْنَاهُ مِنَ اللّٰهِ إِلَيْهِ وَمَا خَلَقْتُ الْجِنَّ وَالْإِنْسَ إِلَّا لِيَعْبُدُونِ مَا خَلَقْتُ أَهْلَ السَّعَادَةِ مِنْ أَهْلِ الْفَرِيقَيْنِ إِلَّا لِيُوَحِّدُونِ وَقَالَ بَعْضُهُمْ خَلَقَهُمْ لِيَفْعَلُوا فَفَعَلَ بَعْضٌ وَتَرَكَ بَعْضٌ وَلَيْسَ فِيهِ حُجَّةٌ لِأَهْلِ الْقَدَرِ وَالذَّنُوبُ الدَّلْوُ الْعَظِيمُ وَقَالَ مُجَاهِدٌ صَرَّةٍ صَيْحَةٍ ذَنُوبًا سَبِيلًا الْعَقِيمُ الَّتِي لَا تَلِدُ وَلَا تُلْقِحُ شَيْئًا وَقَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ وَالْحُبُكُ اسْتِوَاؤُهَا وَحُسْنُهَا فِي غَمْرَةٍ فِي ضَلَالَتِهِمْ يَتَمَادَوْنَ وَقَالَ غَيْرُهُ تَوَاصَوْا تَوَاطَئُوا وَقَالَ مُسَوَّمَةً مُعَلَّمَةً مِنَ السِّيمَا قُتِلَ الْإِنْسَانُ لُعِنَ

**قوله: قَالَ عَلِيٌّ عليه السلام: الذاريات: الرياح:** ذاريات دَ ذارية جمع ده چه دَ باب نصر نه صيغه اسم فاعل ده، خوريدونکی، الوتونکی او دلته دَ الرياح صفت دې.

**ايا د حضرت علی رضی الله عنه نوم سره علیه السلام ليکل جائز دي؟:** دَ بخاری په نسخوکښې دَحضرت علی رضی الله عنه نوم سره په دې مقام "علیه السلام" ليکلې دې دَ معنی په لحاظ سره اګرکه صحيح دې ليکن دا جمله دَ صحابه کرامو دَپاره نه استعماليږی.دَ انبياء کرامو دَپاره استعماليږی، نود يوصحابی دَ نوم سره "علیه السلام" لګول اودَ باقی دَ نومونوسره) مناسب نه دی په ټولو صحابه کرامو کښې مساوات پکار دې ګنی نو حضرات شيخين او حضرت عثمان) دَ دې زيات مستحق دی. په بيروت او مصر وغيره کښې چه کوم کتابونه چهاپ دی په هغې کښې دَ حضرت علی) او حضرت فاطمه) نومونوسره ترضی په ځای "علیه السلام" ليکلې وی، معلوميږی دا چه په چهاپه خانوباندې دَ شيعه ګانو تسلط دې او هغوی دَ منصوبه بندئی لاندې دا کار کوی. ليکن په دې مقام باندې دا لفظ دَ بخاری په قديمو نسخوکښې هم دې، نو علامه قسطلانی رحمه الله دَدې رد کولو سره ليکی: "وهو وان كان معناه صحيحا، لكن ينبغي ان يساوي بين

الصحابة في ذلك، اذهو من باب التعظيم، والشيخان وعثمان اولى بذلك منه، فالاولى الترضي"(۱) لیکن علامه وحیدالزمان دَ علامه قسطلانی په دې عبارت اعتراض کولو سره لیکي: "دَ علامه قسطلانی) په دې کلام باندې دلیل څه دې؟ دا صرف یو اصطلاح ده چه پیغبرانو ته) او صحابه کرامو ته) وائی نو امام بخاری رحمه الله حضرت علی) ونیلو سره دا اصطلاح ردکړیده. اودَ علامه قسطلانی دا وینا چه شیخین او حضرت عثمان) دَ دې کلمې ډیر مستحق دی وینا کولو نه امام بخاری رحمه الله چرته منع کړیده؟ نو بیا دا اعتراض فضول دې. او چه کله په صحابه کرامو کښې مساوات لازم دې نو قسطلانی دَ تفضیل شیخین ولې قائل دې. زه دا وایم چه په حضرت علی رضی الله عنه کښې دَ نورو صحابه کرامو په نسبت یو بل خصوصیت دې هغه دا چه هغوی دَ نبی کریم صلی الله علیه وسلم دَ تره خوئ دې اودَ هغوی علیه السلام پاللې شوې او قدیم الاسلام اوخاص خوم وو. دَ هغوی شمیر په اهل بیتوکښې دې اودَ اهل بیتوډ پاره ډیرکارونه خاص کړیشوی وو. لکه چه وائی امام حسین رضی الله عنه او امام حسن رضی الله عنه او په دې کښې هیڅ شرعی قباحت نشته"(۲) لیکن دَ وحیدالزمان په علامه قسطلانی باندې مذکوره اعتراض صحیح نه دې. دَ جمهورو علماؤ دا مسلك دې چه دَ نبی نه دَ غیر دَ پاره) ونیل صحیح نه دی. حافظ ابن کثیر رحمه الله هم په دې مسئله کښې بحث کولو سره په خپل تفسیرکښې لیکي:"

قال الجمهور من العلماء لايجوز افراد غيرالانبياء بالصلاة، لان هذا قد صار شعار اللانبياء اذا ذكروا، فلايلحق بهم غيرهم، فلايقال: قال ابوبكر صلى الله عليه وسلم، اوقال على صلى الله عليه وسلم،وان كان المعنى صحيحا، كمالايقال محمدعزوجل، وان كان عزيزا، جليلا، لان هذامن شعار ذكرالله عزوجل....." ثم اختلف المانعون من ذلك، هل هو من باب التحريم اوالكراهة التنزيهية اوخلاف الاولى؟ على ثلاثة اقوال.... والصحيح الذى عليه الاكثرون انه مكروه كراهة تنزيه، لانه شعار اهل البدع، وقدنهينا عن شعارهم.... واماالسلام.... هوفى معنى الصلاة، فلا يستعمل فى الغائب، ولايفرد به غيرالانبياء،فلايقال: على عليه السلام" قلت: وقد غلب هذافى عبارة كثيرمن النساخ للكتب ان يفرد على رضى الله عنه بان يقال: على عليه السلام، من دون سائر الصحابة....، وهذا وان كان معناه صحيحا لكن ينبغى ان يسوى بين الصحابة فى ذلك، فان هذامن باب التعظيم والتكريم، فالشيخان واميرالمؤمنين اولى بذلك منه، رضى الله عنهم اجمعين"(۳)

دَ دې عبارت نه معلومه شوه چه دَ نبی نه علاوه دَ بل چاد پاره سلام ونیل دَ کراهت نه خالی نه دی. البته حضرت حوا علیها السلام او حضرت مریم علیها السلام دَ دې قاعدې نه مستثنی دی. په باقی

---

(۱) ارشاد الساري-۱۱/۸۹:

(۲) تیسرې الباري-۶:

(۳) اوګورئی تفسیر ابن کثیر ۵۱۷-۴/۵۱۶ : سورۀ الاحزاب په دې مسئله کښې دَ تفصیل دَ پاره اوګورئی" تدریب الراوی۲/۷۷: والتقریب۲/۷۷: وفتاوی عالمگیری۵/۳۱۵: فتح المغیث-۳/۷۰:

صحابه کرامو کښې دَ مساوات کولو مطلب هيڅ کله دا نه دې چه په دوی کښې دَ يو دَ تفضيل سرې قائل نه وی او ټول دې دَ يوې درجې او مرتبې اوګڼړی ځکه چه خلفاء راشدين دَ ټولو صحابه کرامو نه افضل دی او په خلفاء راشدين کښې هم حضرت ابوبکر صديق، حضرت عمرفاروق رضی الله عنه، حضرت عثمان رضی الله عنه او حضرت علی رضی الله عنه په ترتيب سره دَ يو بل نه افضل دی. په دې وجه دَ مساوات قائم ساتلو مطلب دا دې چه دَ ټولو صحابه کرامو نومونه په يو شان ادب او احترام سره واخستې شی او دَ دې ټولو دَ پاره دَ ترضی صيغه استعمال کړې شی چاسره(او چا سره) دَ دې يوشان والی منافی دی. دَ حضرت علی خصوصيات دی که چرې دا خصوصيات دَ دې دَ جواز وجه اوګرځولې شی نو حضرت صديق اکبر رضی الله عنه سره هم دا ونيل پکار دی ځکه چه دَ هغوی خصوصيات دَ حضرت علی) نه زيات دی. نودا وينا چه په دې کښې څه شرعی قباحت نشته محل نظر دې، والله اعلم.

دغه شان دَ حضرت حسن رضی الله عنه او حضرت حسين رضی الله عنه دَ پاره دَ "امام" لفظ استعمالول هم دَ امامت عقيدې ته رواج ورکولو دَ پاره ليکلې او وئيلې شی او دَ خلافت عقيده کمزورې کولودَپاره داسې کولې شی ګنی دَ دې دَ پاره بله هيڅ څه معقول وجه نشته. او دا په ائمه فقهاء يا ائمه محدثين باندې نشی قياس کولې. ولې چه هلته په فقه اوحديث کښې دَ هغوی امامت دَ مسلماتونه دې باقی پاتې شوه دَ ادب او احترام خبره نودَ دې ټول صحابه مستحق دی او دَ اهل بيتونه دَ کيدو خصوصيت دَ دې سبب ځکه نشی جوړيدې چه اول خودَ اهل بيت اصلی مصداق دَ نبی کريم صلی الله عليه وسلم ازواج مطهرات دی "کما صرح به القرآن الکريم فی اية التطهير وشهد به العرف" دوئمه خبره دا ده چه په دې اطلاق سره دَ يوې غلطې نظريه ترويج لازم کيږی او په صحيح عقيده باندې په دې ګذار پريوځی نودَ دې دَ پاره دا مناسب نه ده.

**دَ کلماتو تشريح:**

**قوله: وقال غيره: تذروه: تفرقه:** په سورة کهف کښې دی (فَاخْتَلَطَ بِهٖ نَبَاتُ الْاَرْضِ فَاَصْبَحَ هَشِيْمًا تَذْرُوْهُ الرِّيٰحُ) په دې کښې (تَذْرُوْهُ) معنی ده هواګانې دا خوروی، ګډوډ کوی، دا لفظ "ذاريات" په مناسبت سره دلته ذکرکړيدې.

**قوله: وَفِي أَنْفُسِكُمْ: تَأْكُلُ وَتَشْرَبُ فِي مَدْخَلٍ وَاحِدٍ، وَيَخْرُجُ مِنْ مَوْضِعَيْنِ:** آيت کښې دی (وَفِيْٓ اَنْفُسِكُمْ ۭ اَفَلَا تُبْصِرُوْنَ) او پخپله ستاسو په ذات کښې هم دلائل دی دَقيامت په امکان او واقع کيدوباندې) نو آياتاسوته نه ښکاری. فرمائی "وَفِيْٓ اَنْفُسِكُمْ ...." دَ انسان په ذات کښې دَ قدرت نښې دی کومو کښې چه يوه دا ده چه انسان خوراک څښاک په لار کوی. يعنی په خله او دَ ده فضله په دوو لارو يعنی وړاندې وروستو نه اوځی.

**قوله: فَرَاغَ: فَرَجَعَ:** آيت کښې دی "فَرَاغَ اِلٰٓى اَهْلِهٖ فَجَاۗءَ بِعِجْلٍ سَمِيْنٍ" بيا خپل کورطرف ته لاړلو يو چاق سخې (وريت شوې) راوړلو. فرمائی آيت کښې "فَرَاغَ" په معنی "فَرَجَعَ" يعنی واپس راتلل، راغ (ن) روغاً په پټه يو طرف ته وتل، مائل کيدل.

**قوله**: فَصَكَّتْ فَجَمَعَتْ أَصَابِعَهَا فَضَرَبَتْ بِهِ جَبْهَتَهَا: آیت کښې دی "**فاقبلت امرأته في صرة فصكت وجهها**" بیا دَ هغوی بی بی خبرې کونکې راغله او په حیرانتیاسره خپل تندې په لاس اووهلو، صرة چغې صورې، په زوره آواز.

**قوله**: وَالرَّمِيمُ :نَبَاتُ الْأَرْضِ إِذَا يَبِسَ وَدِيسَ: په آیت کښې دی "**ماتذر من شئ الا جعلته کالرمیم**" په کوم څیز چه به (هغه طوفان) تیریدونوهغه به ئې دا کړو لکه چه یوڅیز سخاشي او ذره ذره شي. فرمائي رمیم معنی ده دَ زمکې واښه چه کله اوچ شي او چقنړې کړېشي.

**قوله**: لَمُوسِعُونَ: أَيْ لَذُو سَعَةٍ، وَكَذَلِكَ عَلَى الْمُوسِعِ قَدَرُهُ يَعْنِي الْقَوِيَّ: په آیت کښې دی "**والسماء بنینها بأیدوانالموسعون**" او مونږ آسمان په خپل قدرت سره جوړکړو اوزمونږ قدرت وسیع دې. فرمائي چه په آیت مبارك کښې **لموسعون** معنی ده وسعت (قدرت) والا او همدغه شان په سورة بقره کښې (**وَمَتِّعُوهُنَّ عَلَى الْمُوسِعِ قَدَرُهُ وَعَلَى الْمُقْتِرِ قَدَرُهُ**) کښې (**الْمُوسِعِ قَدَرُهُ**) نه وسعت او قوت والا کیدل مراد دی.

**قوله**: خَلَقْنَا زَوْجَيْنِ :الذَّكَرَ وَالْأُنْثَى، وَاخْتِلَافُ الْأَلْوَانِ حُلْوٌ وَحَامِضٌ: دَ زوجین اطلاق په مذکر او مؤنث باندې هم کیږی اود الوان او انواع اختلاف لکه چه خوږ او تریو څیز باندې هم دَ دې اطلاق کیږی. په آسمان او زمکه باندې هم دَ زوجین اطلاق کیږی، رڼړا او تیاره، ایمان اوکفر ته هم داسې وئیلې شي.

**قوله**: فَفِرُّوا إِلَى اللَّهِ، مَعْنَاهُ: مِنَ اللَّهِ إِلَيْهِ: یعنې دَ الله تعالی دَ عذاب او غضب نه دَ بچ کیدلو دپاره دالله طرف ته منډه کړه اود الله تعالی دَ رحمت په لمن کښې پناه حاصله کړئ.

**قوله**: وَمَا خَلَقْتُ الْجِنَّ وَالْإِنْسَ إِلَّا لِيَعْبُدُونِ:

د ایت "**وما خلقت الجن والانس**"، **تفسیر**: امام بخاری رحمه الله دَ دې په تفسیرکښې فرمائي چه مونږ په پیریانو او انسانانوکښې نیك بخت دَ خپل توحید دپاره پیدا کړیدی، بعض وائي چه الله تعالی ټول دَ توحید دپاره پیدا کړیدی خو بعضو اومنلو او بعض اونه منلو نو په دې آیت کښې دَ معتزله او قدریه دَ پاره هیڅ دلیل نشته.

**دَایت نه دَمعتزله دَدریو مسئلو اثبات اودَهغې رد**: دې آیت نه قدریه درې مسئلې ثابتوی، یوه دا چه دې آیت نه دَ الله تعالی دَ فعل خیر سره متعلق کیدل ثابتیږی دَ شرسره دَ دې تعلق نه وې اوهمدغ دَ دوی مذهب دې (۱) لیکن دا استدلال په دې وجه ضعیف دې چه په آیت کښې دَ خیر ذکر کړیدې، دینه دَ دوئم نفی نه لازمیږی، دَ یو ذکر دَ دوئم عدم ته نه مستلزم کیږی.

۱) اوګورئ فتاوی شیخ الاسلام احمدبن تیمیة-۵۵-۸/۵۴:

دونمه مسئله هغوی دا ثابتوی چه دې آیت نه دَ الله تعالی دَ افعال معلل بالاغراض کیدل معلومیږی ځکه چه په دې کښې دَ انسان او پیری دَ تخلیق علت "إِلَّا لِيَعْبُدُونِ" یعنی عبادت بیان کړیشوې دې او دَ معتزله او قدریه همدغه مسلک دې.هغوی تعلیل بالاغراض ته واجب وائی.(۱)

حضرات اشاعره د الله جل شانه دَ افعال دَ تعلیل مطلقاً انکار کوی هغوی وائی چه یو فعل فاعل دَ څه غرض دَ پاره کوی هغه په حقیقت کښې ناقص وی. دَ دې غرض په ذریعه هغه خپل تکمیل غواړی او الله تعالی) خو دَ نقص دَ شك نه هم منزه او پاك دې په دې وجه دَ الله تعالی افعال دَ څه غرض او علت سره معلل کیږی نه، پس دَ الله تعالی جل شانه افعال ته دَ هغوی په نیزد معلل بالاغراض نشی وئیلې.(۲)

ماتریدیه، بعضې حنابله او حافظ ابن قیم رحمه الله نقطه نظر دا دې چه دَ الله تعالی په افعال کښې تعلیل بالاغراض جواز خو شته او دلته په آیت کښې ثبوت هم دَ جواز کیږی دَ وجوب ثبوت دلته نه کیږی خو معتزله دَ دې نه دَ وجوب ثبوت باندې استدلال کوی. خودَ دې نه دَ هغوی استدلال نه صحیح کیږی. دَ الله تعالی دَ یوفعل دَ پاره دَ څه غرض مخې ته ساتل دې خبرې ته مستلزم نه دې چه دَ ذات باری تعالی یو فعل به دَ څه غرض نه خالی نه وی. دلته دا خبره هم یاد ساتل پکار دې چه ماتریدیه او حنابله دَ غرض نه مراد حکمت اخلی. هغه غرض چه دَ فاعل دَ تکمیل دَ پاره کیږی هغه دَ الله تعالی سبحانه وتعالی په افعال کښې مراد نه دې اوپه دې کښې هیڅ اشکال نشته، الله تعالی حکیم دې اودَ حکیم یو فعل دَ څه حکمت نه خالی نه وی.

دریمه مسئله دې آیت نه معتزله دا ثابتوی چه په دې کښې دَافعال عباد مخلوق للعباد کیدل معلومیږی ځکه چه "لیعبدون" کښې دَ عبادت نسبت بندیګانو طرف کړیدې. دَ دې جواب دا دې چه دا نسبت علی سبیل الکسب دې علی سبیل الخلق نه دې دَ دې دَ پاره دَ افعال عباد مخلوق للعباد کیدل نه ثابتیږی.(۳) امام بخاری رحمه الله دَ دې آیت ذکر کولونه پس اوفرمائیل "ماخلقت اهل السعادة من اهل الفریقین الالیوحدون" دلته په حقیقت کښې امام بخاری رحمه الله دَ یو اشکال جواب ورکوی. اشکال دا دې چه دَ انسان او پیری دَ تخلیق غرض عبادت بیان کړیشو، انسانان او پیریان ئې په دې وجه پیدا کړل چه هغوی عبادت اوکړی لیکن خو په دوی کښې ډیر داسې دی چه هغوی عبادت نه کوی نودَ دې مطلب دا شو چه

(۱) تفسیر کبیر-۲۸/۲۳۲:
(۲) مذهب الاشاعرة القایلین بان افعاله تعالی لاتعلل بالاغراض)روح المعانی-(۲۶/۸۹:
(۳) دَ مذاهب دَ تفصیل او دلائلودَ پاره اوګورئی شرح العقیدة الطحاویة ۴۴۴-۴۳۶:وشرح ملاعلی قاری علی الفقه الاکبر ۵۱-۴۹:وروح المعانی ۳۱-۱۷/۲۸:و-۹۰-۲۵/۸۸

الله تعالى دَ كومې ارادې او مقصد دَ پاره هغوى پيدا كړل هغه پوره نه شو او دا په عقلى توګه محال دى چه دَ كوم كار دَ پاره الله تعالى څوك پيدا كړى بيا هغه دَ دغه كارنه انحراف اوكړى. امام بخارى رحمه الله دَ دې اشكال دوه جوابونه وركړى دى چه دَ امام فراء نه نقل دى. رومبې جواب دا دې چه دلته خو لفظ بې شكه عام بيان كړيشوې دې ليكن مراد ترينه دلته نيك بخت دى او هغه ښكاره خبره ده چه دَ الله تعالى په عبادت كښې مشغول دى. ابن قتيبه په "مشكل القرآن" كښې داجواب قوى ګرځولې دې.

دَ دوئم جواب حاصل دا دې چه الله تعالى كله انسانان او پيريان پيدا كړل نو په دوى كښې دَ عبادت طاقت او صلاحيت كيخودو. اوس څوك دا طاقت استعمالوى او څوك دا طاقت نه استعمالوى، چا چه استعمال كړو نو دَ الله تعالى په عبادت كښې مشغول دې. او چا چه دا طاقت او صلاحيت بې كاره او ضائع كړو هغه دَ الله تعالى دَ عبادت نه منحرف دې.

حضرت كشميرى رحمه الله يوه بله خبرة ارشاد فرمائيلې ده چه په اصل كښې يو غايت تشريعيه وى او يو غايت تكوينيه وى، په غايت تشريعيه كښې تخلف وى او په غايت تكوينيه كښې تخلف نه وى او په دې آيت كښې غايت تشريعيه بيان كړيشوې دې نو په دې وجه كه تخلف وى نو دَ اشكال قابل نه دې.[1] والله اعلم.

**د كلماتو تشريح:**

**قوله: وَالذَّنُوبُ: الدَّلْوُ الْعَظِيمُ، وَقَالَ مُجَاهِدٌ: ذَنُوبًا: سَبِيلًا:** په آيت كښې دى (فَإِنَّ لِلَّذِينَ ظَلَمُوا ذَنُوبًا مِّثْلَ ذَنُوبِ أَصْحَابِهِمْ فَلَا يَسْتَعْجِلُونِ) ذنوب په لغت كښې غټې ډولچې ته وائى مجاهد رحمه الله فرمائى چه ذنوب معنې لار ده، دَ آيت ترجمه ده " نو دَ هغه ګناهګارانو ډولچه هم ډكه شويده لكه څنګه دَ هغوى دَ ملګرو ډولچه ډكه شوه اوس مانه تندى مه كوئى" يعنى كه دا ظالمان دَ بندګئى طرف ته نه راځى نو پوهه شئى چه دَ نورو ظالمانوپه شان دَ دوى ډولچې هم ډكې شويدى. بس اوس ډوبيدل غواړى. هسې په سزا كښې تندى مه كوئى لكه څنګه چه نورو كافرانوته دَ الله تعالى دَ سزا حصه اورسيده دوى ته به هم رسى.

**قوله: الْعَقِيمُ: الَّتِي لَا تَلِدُ:** آيت كښې دى "وقالت انى عجوز عقيم" عقيم معنى ده هغه ښځه دَ چا چه بچې نه پيدا كيږى يعنى شنډه.

**قوله: وَقَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ: وَالْحُبُكُ: اسْتِوَاؤُهَا وَحُسْنُهَا:** (وَالسَّمَاءِ ذَاتِ الْحُبُكِ) حضرت ابن عباس رضى الله عنه اوفرمائيل دَ حُبُك نه دَ آسمان برابريدل اودَ هغې حسن مراد دې. دا لفظ دَ حبيكة يا حِبَاك جمع دې. په اصل كښې دا هغه لارې ته وائى چه په شګه يا په آرام اوبو كښې نرې هوا چليدو سره جوړيږى. دلته دَ ستورې لارې مراد دى.

**قوله: فِي غَمْرَةٍ: فِي ضَلَالَتِهِمْ يَتَمَادَوْنَ:** آيت كښې دى (قُتِلَ الْخَرَّاصُونَ ۝ الَّذِينَ هُمْ فِي غَمْرَةٍ

---

[1] فيض البارى-۴/۲۳۶:

سَاهُونَ﴾ تباه دې شی بې سنده خبرې کونکی چه په جهالت کښې ورك شوی دی. فرمائی (غَمْرَةٍ سَاهُونَ﴾ معنی ده په خپله گمراهئ کښې زیاتیږی.

**قوله: وَقَالَ غَيْرُهُ :تَوَاصَوْا: تَوَاطَئُوا:** آیت کښې دی (أَتَوَاصَوْا بِهِ بَلْ هُمْ قَوْمٌ طَاغُونَ﴾ دَ حضرت ابن عباس رضی الله عنهما نه علاوه بل چا فرمائیلی دی چه تواصوا معنی ده دوی هم دَ هغوی برابر اووئیل، تواطا معنی دَ موافقت راځی.

**قوله: مُسَوَّمَةً :مُعَلَّمَةً مِنَ السِّيمَاءِ:** آیت کښې دی (لِنُرْسِلَ عَلَيْهِمْ حِجَارَةً مِنْ طِينٍ﴾ مُسَوَّمَةً عِنْدَ رَبِّكَ لِلْمُسْرِفِينَ﴾ دې دَ پاره چه مونږ په دوی باندې نری کانړی راوړو په کوموچه ستا دَ رب سره(یعنی عالم غیب کښې) خاص نښه هم ده، دَ حد نه تیریدونکو دَ پاره فرمائی مسومة معنی معلمة: نښه لرېدلې، نښې والا.

## [۳۳۶] باب: تفسیر سُورَةُ وَالطُّور

وَقَالَ قَتَادَةُ مَسْطُورٍ مَكْتُوبٍ وَقَالَ مُجَاهِدٌ الطُّورُ الْجَبَلُ بِالسُّرْيَانِيَّةِ رَقٍّ مَنْشُورٍ صَحِيفَةٍ وَالسَّقْفِ الْمَرْفُوعِ سَمَاءٌ الْمَسْجُورِ الْمُوقَدِ وَقَالَ الْحَسَنُ تُسْجَرُ حَتَّى يَذْهَبَ مَاؤُهَا فَلَا يَبْقَى فِيهَا قَطْرَةٌ وَقَالَ مُجَاهِدٌ أَلَتْنَاهُمْ نَقَصْنَا وَقَالَ غَيْرُهُ تَمُورُ تَدُورُ أَحْلَامُهُمْ الْعُقُولُ وَقَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ الْبَرُّ اللَّطِيفُ كِسْفًا قِطَعًا الْمَنُونُ الْمَوْتُ وَقَالَ غَيْرُهُ يَتَنَازَعُونَ يَتَعَاطَوْنَ

**قوله: مَسْطُورٍ: مَكْتُوبٍ:** آیت مبارك کښې دی (وَالطُّورِ﴾ وَكِتَابٍ مَسْطُورٍ﴾ په دې کښې دَ مسطور معنی ده لیکلې شوې.

**قوله: الطُّورُ الْجَبَلُ بِالسُّرْيَانِيَّةِ:** فرمائی طور په سریانی ژبه کښې غرته وائی.

**قوله: رَقٍّ مَنْشُورٍ صَحِيفَةٍ:** آیت کښې دی (فِي رَقٍّ مَنْشُورٍ﴾ د(رَقٍّ مَنْشُورٍ﴾ نه صحیفه مراد ده.

**قوله: وَالسَّقْفِ الْمَرْفُوعِ سَمَاءٌ:** فرمائی آیت کښې دی (وَالْبَحْرِ الْمَسْجُورِ﴾ اوچت چت، دې نه مراد آسمان دې.

**قوله: الْمَسْجُورِ الْمُوقَدِ وَقَالَ الْحَسَنُ تُسْجَرُ حَتَّى يَذْهَبَ مَاؤُهَا فَلَا يَبْقَى فِيهَا قَطْرَةٌ**

:آیت کښې دی (وَالْبَحْرِ الْمَسْجُورِ﴾ قتاده رحمه الله فرمائی چه دَ مسجور معنی ده موقد یعنی گرم کړیشوې او حضرت حسن بصری رحمه الله فرمائی چه سمندربه دومره غصه کړې شی چه دَ دې اوبه به ټولې ختمې شی تردې چه په دې کښې به یوڅاڅکې هم باقی پاتې نشی. وقیل: المسجور: المملوء، من سجر النهر اذا ملأه، اوالموقد من سجرت التنور، اذا اوقدتها وملأتها وقوداً، وعليه تفسير الحسن البصري رحمه الله تعالى.

**قوله: أَلَتْنَاهُمْ: نَقَصْنَاهُمْ:** آیت کښې دی (وَالَّذِينَ آمَنُوا وَاتَّبَعَتْهُمْ ذُرِّيَّتُهُمْ بِإِيمَانٍ أَلْحَقْنَا بِهِمْ ذُرِّيَّتَهُمْ

وَمَآ أَلَتْنٰهُمْ مِّنْ عَمَلِهِمْ مِّنْ شَيْءٍ) اوچه کوموخلقو ایمان راوړو اود هغوی اولاد هم هغوی سره په ایمان کښې ملګرتیا اوکړه)یعنی چه هغوی هم ایمان راوړوخو په اعمالوکښې د خپلو پلارانو مرتبې ته اونه رسیدل نود هغوی پلاران خوشحالولود پاره) مونږ به د هغوی اولاد ته هم)درجوکښې) هغوی سره شامل کړو او مونږ به)د دې اهل جنت متبوعين) د عمل نه هیڅ څیز نه کموو. فرمائی آیت کښې التنا په معنی د نقصان دې.

**قوله: وَقَالَ غَيْرُهُ تَمُورُ تَدُورُ:** (يَوْمَ تَمُورُ السَّمَآءُ مَوْرًا) په کومه ورځ چه آسمان تاو راتاو شي. فرمائي تمور معنی ته تاویدل.

**قوله: أَحْلَامُهُمُ الْعُقُولُ:** آیت کښې دی (أَمْ تَأْمُرُهُمْ أَحْلَامُهُمْ بِهٰذَآ أَمْ هُمْ قَوْمٌ طَاغُونَ) آیا د دوی عقلونه دوی ته د دې خبرو حکم ورکوی یا دا چه دا شیطانان خلق دی. فرمائی احلام معنی ده عقول، احلام: د حلم جمع ده په معنی د عقل.

**قوله: وَقَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ الْبَرُّ اللَّطِيفُ:** آیت کښې دی (إِنَّهُ هُوَ الْبَرُّ الرَّحِيمُ) فرمائی چه بر معنی لطیف مهربان اود هغه محسن ده د چا احسان چه عام وی.

**قوله: كِسْفًا قِطَعًا:** په آیت کښې دی (وَإِنْ يَرَوْا كِسْفًا مِّنَ السَّمَآءِ سَاقِطًا يَقُولُوا سَحَابٌ مَّرْكُومٌ) اوکه هغه د آسمان ټکړه اووینی هم چه راپریوتونکې راروانه ده نو)هغه به هم) داسې به وائی چه دا خو یو د بل د پاسه اوریخې دی. فرمائی د کسفاً معنی ده ټکړه.

**قوله: الْمَنُونُ الْمَوْتُ:** (أَمْ يَقُولُونَ شَاعِرٌ نَّتَرَبَّصُ بِهِ رَيْبَ الْمَنُونِ) آیا دا خلق)د کاهن او مجنون کیدو نه علاوه ستا نسبت) دا)هم) وائی چه دا شاعر دې او مونږ د هغویء باره کښې د ناخاپې مرګ انتظار کوو. فرمائی آیت کښې منون معنی مرګ ده.

**قوله: وَقَالَ غَيْرُهُ يَتَنَازَعُونَ يَتَعَاطَوْنَ:** آیت کښې دی (يَتَنَازَعُونَ فِيهَا كَأْسًا لَّا لَغْوٌ فِيهَا وَلَا تَأْثِيمٌ) یعنی جنتیان به په خپل مینځ کښې)د خوش طبیعتئی په توګه) ګپ شپ هم کوی او په دې او په هغې کښې به فضول او خرابه خبره نه وی. د حضرت ابن عباس رضی الله عنهما نه علاوه وینا ده چه یتنازعون معنی ده د یو بل نه به اخلی.

[۴۵۷۲] حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ يُوسُفَ أَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ نَوْفَلٍ عَنْ عُرْوَةَ عَنْ زَيْنَبَ بِنْتِ أَبِي سَلَمَةَ عَنْ أُمِّ سَلَمَةَ قَالَتْ شَكَوْتُ إِلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنِّي أَشْتَكِي فَقَالَ طُوفِي مِنْ وَرَاءِ النَّاسِ وَأَنْتِ رَاكِبَةٌ فَطُفْتُ وَرَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُصَلِّي إِلَى جَنْبِ الْبَيْتِ يَقْرَأُ بِالطُّورِ وَكِتَابٍ مَّسْطُورٍ

[۴۵۷۳] حَدَّثَنَا الْحُمَيْدِيُّ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ قَالَ حَدَّثُونِي عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ جُبَيْرِ بْنِ مُطْعِمٍ عَنْ أَبِيهِ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقْرَأُ فِي الْمَغْرِبِ بِالطُّورِ فَلَمَّا بَلَغَ هٰذِهِ الْآيَةَ أَمْ خُلِقُوا مِنْ غَيْرِ شَيْءٍ أَمْ هُمُ الْخَالِقُونَ أَمْ خَلَقُوا السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضَ بَلْ

لَا يُوقِنُونَ أَمْ عِنْدَهُمْ خَزَائِنُ رَبِّكَ أَمْ هُمُ الْمُسَيْطِرُونَ قَالَ كَادَ قَلْبِي أَنْ يَطِيرَ قَالَ سُفْيَانُ فَأَمَّا أَنَا فَإِنَّمَا سَمِعْتُ الزُّهْرِيَّ يُحَدِّثُ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ جُبَيْرِ بْنِ مُطْعِمٍ عَنْ أَبِيهِ سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقْرَأُ فِي الْمَغْرِبِ بِالطُّورِ وَلَمْ أَسْمَعْهُ زَادَ الَّذِي قَالُوا لِي

سفيان رحمه الله فرمائي چه د امام زهري رحمه الله نه دا روايت ما واوريدو خو ما صرف دومره واوريدو "سمعت النبي صلى الله عليه وسلم يقرء في المغرب بالطور" اود دې نه پس الفاظ ما د زهري رحمه الله نه نه دي اوريدلي.

## [۳۳۷] باب: تفسير سورة والنجم

وَقَالَ مُجَاهِدٌ ذُو مِرَّةٍ ذُو قُوَّةٍ قَابَ قَوْسَيْنِ حَيْثُ الْوَتَرُ مِنَ الْقَوْسِ ضِيزَى عَوْجَاءُ وَأَكْدَى قَطَعَ عَطَاءَهُ رَبُّ الشِّعْرَى هُوَ مِرْزَمُ الْجَوْزَاءِ الَّذِي وَفَّى وَفَّى مَا فُرِضَ عَلَيْهِ أَزِفَتِ الْآزِفَةُ اقْتَرَبَتِ السَّاعَةُ سَامِدُونَ الْبَرْطَمَةُ وَقَالَ عِكْرِمَةُ يَتَغَنَّوْنَ بِالْحِمْيَرِيَّةِ وَقَالَ إِبْرَاهِيمُ أَفَتُمَارُونَهُ أَفَتُجَادِلُونَهُ وَمَنْ قَرَأَ أَفَتَمْرُونَهُ يَعْنِي أَفَتَجْحَدُونَهُ وَقَالَ مَا زَاغَ الْبَصَرُ بَصَرُ مُحَمَّدٍ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَمَا طَغَى وَمَا جَاوَزَ مَا رَأَى فَتَمَارَوْا كَذَّبُوا وَقَالَ الْحَسَنُ إِذَا هَوَى غَابَ وَقَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ أَغْنَى وَأَقْنَى أَعْطَى فَأَرْضَى

**قوله: وَقَالَ مُجَاهِدٌ ذُو مِرَّةٍ ذُو قُوَّةٍ:** آيت مبارك كښې دى (عَلَّمَهٗ شَدِيْدُ الْقُوٰىۙ ذُوْ مِرَّةٍ فَاسْتَوٰىۙ) په دې كښې ذومرة معنى ده طاقت والا، مراد ترې حضرت جبرائيل) دې.

**قوله: قَابَ قَوْسَيْنِ حَيْثُ الْوَتَرُ مِنَ الْقَوْسِ:**

د "فكان قاب قوسين" تفسير: آيت مبارك كښې دى (فَكَانَ قَابَ قَوْسَيْنِ اَوْ اَدْنٰىۚ) د دې آيت مختلف تفسيرونه بيان كړيشوى دى.

① قاب: مقدار ته وائى او قوسين د قوس تثنيه كمان ته وائى. اود آيت مطلب دا دې چه رسول الله ﷺ د الله تعالى يا د حضرت جبرائيل عليه السلام سره دومره نزدې شو چه د دوو كمانونو برابر فاصله پاتې شوه. علامه قرطبى رحمه الله فرمائى "تقديره: فكان مقدار مسافة قربه مثل قاب قوسين"[1] په عربو كښې دا طريقه وه چه كله به دو سرو په خپل مينځ كښې اتحاد او د يوځائ كيدو معاهده كول غوښتل نو دواړو به خپل كمانونه اوچتول او يو بل سره به ئى خپل كمانونه داسې يو ځائ كول چه د دواړو كمانونو لرګى خو به ئى خپل طرف ته كول او د پلې تار) چه لينده كښې استعماليږى) بل طرف ته، دغه شان به چه د دواړو ليندو تارونه يوځائ شو او يو به شو نو په هغه دواړو كښې به د قوسونو د قاب فاصله پاتې كيدله، مطلب به دا ووچه د دې كمانونو په شان نن مونږ هم يو بل سره يو ځائ شو او زمونږ دوست او دښمن به اوس

[1]) تفسير قرطبى-۱۷/۸۹:

یو وی. نو اوس دا دَ محاورې په توګه استعمالولې شی، په خیل مینځ کښې یو ځائ کیدل، او یوشان کیدل اودَ فاصلې دَ کمی تعبیر دَ "قاب قوسین" سره کوی (۱) دلته هم دا مطلب دې چه رسول الله ﷺ حضرت جبرائیل علیه السلام ته دومره نزدې راغلوچه دَ دواړو په مینځ کښې دَ دوو کمانونو برابر فاصله پاتې شوه، بلکه دینه هم کمه، اوهغوی دواړه یو بل سره په هر لحاظ سره یوشان او یو ځائ او په دواړو کښې مکمل اتصال اوشو.

② بعضې مفسرین وائی چه قاب هغه فاصله ته وائی چه دَ کمان قبضه(دَ نیولو لاسکې) اودَ کمان تار په مینځ کښې وی دَ څه اندازه چه په یو لاس کولې شی، دَ یو کمان دوه قابه وی دَ نیولو دَ لاسکی نه دَ تار طرف ته تلونکې دوو حصوکښې دَ هرې یوې حصې فاصله قاب دې. قرطبی رحمه الله فرمائی "والقاب مابین المقبض والسیة، ولکل قوس قابان" په آیت کښې لفظی قلب کړیشویدې، اصل عبارت دې "قابَیْ قوس" یعنی دَ یو قوس دوه قابه،مضاف چه تثنیه دې دَ دې عوض مضاف الیه ئې تثنیه جوړکړو (۲)دَ دوو قابونو فاصله دَ یو کمان برابره ده. دَ آیت مطلب به دا وی چه رسول الله ﷺ اودَ حضرت جبرائیل علیه السلام په مینځ کښې دَ یو کمان دَ دوو قابونو برابره فاصله وه، حاصل دا چه دَ یو کمان برابره فاصله وه یا دَ دې نه هم کمه.

③ سعیدبن جبیر رحمه الله او ابواسحاق همدانی رحمه الله وغیره فرمائی چه قاب مقدار او قوس دَ ذراع په معنی کښې دی. ذراع ته قوس ولې اوویلې شو "لانه یقاس بها کل شئ" چه دَ دې په ذریعه دَ هر څیز حساب لګولې شی، ناپ کولې شی اوس به معنی دا وی دَ نبی کریم ﷺ او حضرت جبرائیل علیه السلام په مینځ کښې فاصله دَ دوو ذراعو برابر پاتې شوې وه. حافظ ابن حجر رحمه الله دا اولی او ارجح ګرځولې(۳)اکثرو حضراتو اولنی تفسیر ته ترجیح ورکړیده.(۴)

**د کلماتو تشریح:**

**قوله: ضِيزَى: عَوْجَاءُ:** آیت مبارك کښې دی ﴿تِلْكَ إِذًا قِسْمَةٌ ضِيزَىٰ﴾ په دې حالت کښې خو ډیر کوږ تقسیم اوشو... فرمائی چه ضیزی معنی نه ده کوږ.

**قوله: وَأَكْدَى: قَطَعَ عَطَاءَهُ:** آیت کښې دی ﴿وَأَعْطَىٰ قَلِيلًا وَأَكْدَىٰ﴾ لږ شان مال ورکړو او(بیا هغه هم) بند کړو، فرمائی آیت کښې اکدی معنی ده قطع عطاءه ورکول ئې ختم کړل.

**قوله: رَبُّ الشِّعْرَى: مِرْزَمُ الْجَوْزَاءِ:** ﴿وَأَنَّهُ هُوَ رَبُّ الشِّعْرَىٰ﴾ حضرت انورشاه کشمیری رحمه الله

---

(۱) اوګورئی معالم التنزیل-۴/۲۴۶:

(۲) تفسیر قرطبی ۱۷/۹۰:وفتح الباری-۸/۶۱۰ :

(۳)فتح الباری-۸/۶۱۰ :

(۴) تفسیرقرطبی ۱۷/۸۹ :وروح المعانی ۱۵/۷۵: جزء ۲۷ وتفسیر عثمانی:ص ۶۹۸ وفیض الباری-۴/۲۳۷:

"شعرى" ترجمه "پرنى" كړې ده.(۱) امام بخارى رحمه الله فرمائى چه شعرى ته مرزم الجوزاء هم وائى، دا ستورى جوزاء نه پس دَ ګرمئى په موسم كښې راخيژى(۲) يو قول دا هم دې چه دَ نمر نه شعرى لوئ دې.

**قوله: الَّذِي وَفَّى: وَفَّى مَا فُرِضَ عَلَيْهِ:** آيت كښې دى ﴿وَإِبْرَاهِيمَ الَّذِي وَفَّىٰ﴾ فرمائى د ﴿الَّذِي وَفَّىٰ﴾ معنى ده كوم چه په هغوى فرض وو هغه ئى پوره كړل.

**قوله: أَزِفَتِ الْآزِفَةُ: اقْتَرَبَتِ السَّاعَةُ:** آيت كښې دى ﴿أَزِفَتِ الْآزِفَةُ لَيْسَ لَهَا مِن دُونِ اللَّهِ كَاشِفَةٌ﴾ هغه زر راتلونكې څيز نزدې راورسيدو.دَ الله تعالى نه علاوه بل څوك هغه اخوا كونكې نشته. فرمائى د﴿أَزِفَتِ الْآزِفَةُ﴾ معنى ده قيامت نزدې راغلو.

**قوله: سَامِدُونَ: الْبَرْطَمَةُ، وَقَالَ عِكْرِمَةُ: يَتَغَنَّوْنَ، بِالْحِمْيَرِيَّةِ:** آيت كښې دى ﴿وَتَضْحَكُونَ وَلَا تَبْكُونَ وَأَنتُمْ سَامِدُونَ﴾ فرمائى چه سامدون نه برطمة مراد دې. دَ برطمة معنى ده ډډه: كونكې(۳)او عكرمه رحمه الله وئيلى دى سامدون معنى په حميرى ژبه كښې ګانه يعنى لوبه وئيل دى.

**قوله: وَقَالَ إِبْرَاهِيمُ: أَفَتُمَارُونَهُ: أَفَتُجَادِلُونَهُ، وَمَنْ قَرَأَ: أَفَتَمْرُونَهُ يَعْنِي أَفَتَجْحَدُونَهُ:** ﴿أَفَتُمَارُونَهُ عَلَىٰ مَا يَرَىٰ﴾ آيا ته هغه رسول صلى عليه وسلم سره دَ هغه كتونكى څيز باندې نزاع كوې حمزه او كسائى "أَفَتَمْرُونَهُ" لولې دَ كوم معنى چه آيا تاسو دَ هغې انكار كوئى.

**قوله: مَا زَاغَ الْبَصَرُ: بَصَرُ مُحَمَّدٍ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَمَا طَغَى: وَلَا جَاوَزَ مَا رَأَى:** آيت كښې دى ﴿مَا زَاغَ الْبَصَرُ وَمَا طَغَىٰ﴾ نه دَ هغه نظر دهوكه شو مراد دَ حضرت محمد صلى الله عليه وسلم نظرمبارك دې او نه نظر تجاوز اوكړو دَ هغې نه چه څه ئى اوكتل، يعنى دَ هغوى) نظر مبارك دَ حد نه زيات نه شو څومره چه حكم وو هم دومره ئى اوكتل.

**قوله: فَتَمَارَوْا: كَذَّبُوا:** دا لفظ دَ سورة قمر دې، هلته په آيت كښې دى "ولقد انذرهم بطشتنا فتماروا بالنذر" او هغه ويريدلې وو زمونږ دَ نيولو نه ليكن هغوى زمونږ ويرول دروغ اوګڼړل، دلته دې لفظ ته ﴿أَفَتُمَارُونَهُ عَلَىٰ مَا يَرَىٰ﴾ په مناسبت سره راوړيدې.

**قوله: إِذَا هَوَى: غَابَ:** ﴿وَالنَّجْمِ إِذَا هَوَىٰ﴾ قسم دې دَ ستورى،كله چه هغه ډوبيږى، هوى

---

(۱)فيض البارى-۴/۲۴۷ :

(۲) دَ تفصيل دَ پاره اوګورئى فتح البارى ۸/۶۰۵:وعمدة القارى-۱۹/۱۹۶:

(۳)البرطمة، بفتح الباء، وسكون الراء وفتح الطاء، الاعراض، وقال ابن عينية :البرطمة هكذا، ووضع ذقنه فى صدره)فتح البارى (۸/۶۰۵)

معنی غیبیدل دی.

**قوله:** أَغْنَى وَأَقْنَى: أَعْطَى فَأَرْضَى: آیت کښې دی ﴿وَأَنَّهُ هُوَ أَغْنَى وَأَقْنَى﴾ یعنی هغه راکړه اوخوشحاله ئې کړو، اغنی: غنی جوړ کړل، مال اودولت ورکول، اقنی راضی کول، خوشحالول.

[۴۵۷۴] حَدَّثَنَا يَحْيَى حَدَّثَنَا وَكِيعٌ عَنْ إِسْمَاعِيلَ بْنِ أَبِي خَالِدٍ عَنْ عَامِرٍ عَنْ مَسْرُوقٍ قَالَ قُلْتُ لِعَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا يَا أُمَّتَاهُ هَلْ رَأَى مُحَمَّدٌ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَبَّهُ فَقَالَتْ لَقَدْ قَفَّ شَعَرِي مِمَّا قُلْتَ أَيْنَ أَنْتَ مِنْ ثَلَاثٍ مَنْ حَدَّثَكَهُنَّ فَقَدْ كَذَبَ مَنْ حَدَّثَكَ أَنَّ مُحَمَّدًا صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَأَى رَبَّهُ فَقَدْ كَذَبَ ثُمَّ قَرَأَتْ لَا تُدْرِكُهُ الْأَبْصَارُ وَهُوَ يُدْرِكُ الْأَبْصَارَ وَهُوَ اللَّطِيفُ الْخَبِيرُ وَمَا كَانَ لِبَشَرٍ أَنْ يُكَلِّمَهُ اللَّهُ إِلَّا وَحْيًا أَوْ مِنْ وَرَاءِ حِجَابٍ وَمَنْ حَدَّثَكَ أَنَّهُ يَعْلَمُ مَا فِي غَدٍ فَقَدْ كَذَبَ ثُمَّ قَرَأَتْ وَمَا تَدْرِي نَفْسٌ مَاذَا تَكْسِبُ غَدًا وَمَنْ حَدَّثَكَ أَنَّهُ كَتَمَ فَقَدْ كَذَبَ ثُمَّ قَرَأَتْ يَا أَيُّهَا الرَّسُولُ بَلِّغْ مَا أُنْزِلَ إِلَيْكَ مِنْ رَبِّكَ الْآيَةَ وَلَكِنَّهُ رَأَى جِبْرِيلَ عَلَيْهِ السَّلَام فِي صُورَتِهِ مَرَّتَيْنِ

## [۳۳۸] بَاب فَكَانَ قَابَ قَوْسَيْنِ أَوْ أَدْنَى

حَيْثُ الْوَتَرُ مِنْ الْقَوْسِ

[۴۵۷۵] حَدَّثَنَا أَبُو النُّعْمَانِ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَاحِدِ حَدَّثَنَا الشَّيْبَانِيُّ قَالَ سَمِعْتُ زِرًّا عَنْ عَبْدِ اللَّهِ فَكَانَ قَابَ قَوْسَيْنِ أَوْ أَدْنَى فَأَوْحَى إِلَى عَبْدِهِ مَا أَوْحَى قَالَ حَدَّثَنَا ابْنُ مَسْعُودٍ أَنَّهُ رَأَى جِبْرِيلَ لَهُ سِتُّ مِائَةِ جَنَاحٍ

## [۳۳۹] بَاب قَوْلِهِ فَأَوْحَى إِلَى عَبْدِهِ مَا أَوْحَى

[۴۵۷۶] حَدَّثَنَا طَلْقُ بْنُ غَنَّامٍ حَدَّثَنَا زَائِدَةُ عَنْ الشَّيْبَانِيِّ قَالَ سَأَلْتُ زِرًّا عَنْ قَوْلِهِ تَعَالَى فَكَانَ قَابَ قَوْسَيْنِ أَوْ أَدْنَى فَأَوْحَى إِلَى عَبْدِهِ مَا أَوْحَى قَالَ أَخْبَرَنَا عَبْدُ اللَّهِ أَنَّ مُحَمَّدًا صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَأَى جِبْرِيلَ لَهُ سِتُّ مِائَةِ جَنَاحٍ

## [۳۴۰] بَاب لَقَدْ رَأَى مِنْ آيَاتِ رَبِّهِ الْكُبْرَى

[۴۵۷۷] حَدَّثَنَا قَبِيصَةُ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ الْأَعْمَشِ عَنْ إِبْرَاهِيمَ عَنْ عَلْقَمَةَ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ لَقَدْ رَأَى مِنْ آيَاتِ رَبِّهِ الْكُبْرَى قَالَ رَأَى رَفْرَفًا أَخْضَرَ قَدْ سَدَّ الْأُفُقَ

## [۳۴۱] بَاب أَفَرَأَيْتُمْ اللَّاتَ وَالْعُزَّى

[۴۵۷۸] حَدَّثَنَا مُسْلِمُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ حَدَّثَنَا أَبُو الْأَشْهَبِ حَدَّثَنَا أَبُو الْجَوْزَاءِ عَنْ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا فِي قَوْلِهِ اللَّاتَ وَالْعُزَّى كَانَ اللَّاتُ رَجُلًا يَلُتُّ سَوِيقَ الْحَاجِّ

[۴۵۷۹] حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مُحَمَّدٍ أَخْبَرَنَا هِشَامُ بْنُ يُوسُفَ أَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ عَنْ الزُّهْرِيِّ عَنْ حُمَيْدٍ

بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ حَلَفَ فَقَالَ فِي حَلِفِهِ وَاللَّاتِ وَالْعُزَّى فَلْيَقُلْ لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ وَمَنْ قَالَ لِصَاحِبِهِ تَعَالَ أُقَامِرْكَ فَلْيَتَصَدَّقْ

حضرت ابن عباس رضي الله عنهما فرمائی چه لات دَ یو سړی نوم دې چه دَ حاجیانودَ پاره به ئی ستوان ټکول. فاکهی دَ مجاهد رحمه الله نه نقل کړی دی چه دا سړې دَ جاهلیت په زمانه کښې دَ طائف په یو غربانډې ناست وو او دَ طائف دَ کشمش او پنیر نه به ئی یوه حلوه جوړوله او په خلقو به نی خوړله، کله چه دې مړ شو نو خلقودَ ده عبادت شروع کړو (۱) دَ دې سړی باره کښې اختلاف دې، بعض وائی چه دا عامربن ظرب ووچه په خپله زمانه کښې دَ عربومشهور دانشورو، علامه سهیلی نقل کړی دی چه دا عمرو بن لحی بن قمعه وو لیکن حافظ رحمه الله دا قول رد کړیدې اودَ حضرت ابن عباس رضي الله عنهما نه ئی روایت نقل کړیدې چه لات کله مړشو نو خلقو ته عمرو بن لحی اووئیل چه دا مړ نه دې بلکه په ګټان کښې داخل شویدې دَ څه په وجه چه خلقو دَ هغه عبادت کول شروع کړه، دَ دې روایت نه معلومیږی چه لات او عمرو بن لحی دوه جداجدا سړو نامې دی. (۲)

بهرحال دا دَ یو سړی نوم دې دَ چا دَ مرګ نه پس چه خلقو دَ ده بت جوړکړو او دَ هغې عبادت کول ئی شروع کړه. دا بت حضرت مغیره بن شعبه) دَ رسول الله صلی الله علیه وسلم په حکم هغه وخت اونړولو کله چه دَ طائف قبیلې ثقیف اسلام قبول کړلو. (۳)

دوئم بت عزی وو کوم چه دَ ټولو نه اول ظالم بن سعد دَ نخله په وادئی کښې دَ عبادت دَ پاره اوټاکلو اوحضرت خالدبن ولید) دَفتح مکې په کال دَ نبی کریم صلی الله علیه وسلم په حکم سره مات کړو. (۴)

دریم بت مناة وو چه دَ لات نه هم وړاندې وو، داحضرت علی) دَ مکې دَ فتح په کال مات کړو (۵)

**قوله**: من حلف. فقال في حلفه: واللات والعزى، فليقل: لااله الا الله: که چرې هغه "واللات والعزى" تعظیماً وئیلې وی نو دَ ایمان تجدید به کوی او که تعظیماً ئی نه وی وئیلی هسې په ناپوهئی کښې دَ خلې نه وتلی وی نو بیا هم دَ بت نوم ئی اخستې دې، په زړه کښې به ئی څه نا څه ظلمت او تیاره ضرور راغی نوپه دې وجه دَ دې دَ ازاله دَ پاره بیا هم کلمه توحید وئیل پکار دی (۶)

(۱) فتح البارى-۸/۶۱۲:
(۲) فتح البارى-۸/۶۱۲:
(۳) فتح البارى-۸/۶۱۲:
(۴) فتح البارى-۸/۶۱۲:
(۵) فتح البارى-۸/۶۱۲:
(۶) فتح البارى-۸/۶۱:

**قوله**: ومن قال لصاحبه: تعالی، اقامرك، فليتصدق: كه يو سړى خپل ملګرى ته اووائى چه راځه جوارى كوو نو ده له پكار دى چه صدقه اوكړى علامه طحاوىؒ فرمائى چه هغه مال صدقه كول مراد دى كوم چه د جوارۍ د پاره راويستلې وو ځكه چه دا په جوارئى كښې د خرچ كولو نه بهتر ده چه په صدقه كښې خرچ كړې (۱) علامه خطابىؒ همدغه مراد اخستې دې. ليكن علامه نووىؒ فرمائى چه مطلقاً صدقه كول مراد دى ځكه چه جوارى حرامه ده اود يو حرام كار دعوت د ده په ژبه جارى شو نوپه دې وجه د كفارې په خاطر دې څه نا څه صدقه اوكړى، د مسلم شريف روايت هم په دې معنى دلالت كوى، په دې كښې دى "فليتصدق بشیء" (۲)

## [۳۴۲] باب ومناة الثالثة الأخرى

[۴۵۸۰] حَدَّثَنَا الْحُمَيْدِيُّ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ حَدَّثَنَا الزُّهْرِيُّ سَمِعْتُ عُرْوَةَ قُلْتُ لِعَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا فَقَالَتْ إِنَّمَا كَانَ مَنْ أَهَلَّ بِمَنَاةَ الطَّاغِيَةِ الَّتِي بِالْمُشَلَّلِ لَا يَطُوفُونَ بَيْنَ الصَّفَا وَالْمَرْوَةِ فَأَنْزَلَ اللَّهُ تَعَالَى إِنَّ الصَّفَا وَالْمَرْوَةَ مِنْ شَعَائِرِ اللَّهِ فَطَافَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَالْمُسْلِمُونَ قَالَ سُفْيَانُ مَنَاةُ بِالْمُشَلَّلِ مِنْ قُدَيْدٍ

داحديث د سورة بقره په تفسير كښې تيرشويدې. مشلل د ځائ نوم دې او قديد هم د مكې نه د مدينې طرف ته په لاركښې د يومقام نوم دې.

وَقَالَ عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ خَالِدٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ قَالَ عُرْوَةُ قَالَتْ عَائِشَةُ نَزَلَتْ فِي الْأَنْصَارِ كَانُوا هُمْ وَغَسَّانُ قَبْلَ أَنْ يُسْلِمُوا يُهِلُّونَ لِمَنَاةَ مِثْلَهُ

په دې تعليق كښې دى د اسلام نه وړاندې انصار او د قبيله غسان خلقو د مناة بت په نوم باندې احرام تړلو، د دې متعلق دا مذكوره آيت نازل شو "يهلون لمناة" اى يحرمون لمناة "مثله" يعنى د دې تعليق مفهوم هم د سفيان د حديث په شان دې. د عبدالرحمن بن خالد دا تعليق امام ذهلى په "زهريات" كښې او امام طحاوى په "مشكل الآثار" كښې موصولاً نقل كړيدې. (۳)

وَقَالَ مَعْمَرٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ عُرْوَةَ عَنْ عَائِشَةَ كَانَ رِجَالٌ مِنَ الْأَنْصَارِ مِمَّنْ كَانَ يُهِلُّ لِمَنَاةَ وَمَنَاةُ صَنَمٌ بَيْنَ مَكَّةَ وَالْمَدِينَةِ قَالُوا يَا نَبِيَّ اللَّهِ كُنَّا لَا نَطُوفُ بَيْنَ الصَّفَا وَالْمَرْوَةِ تَعْظِيمًا لِمَنَاةَ نَحْوَهُ

د معمرنه معمر بن راشد مراددې "نحو" اى نحوالحديث المذكور، دا تعليق امام احمدؒ موصولاً نقل كړيدې.

۱) فيض البارى-۴/۲۴۱:
۲) فتح البارى-۸/۶۱۲:
۳) تعليق اتعلين ۴/۳۲۵ :عمدة القارى-۱۹/۲۰۳:

## [۳۴۳] باب فاسجدوا لله واعبدوا

[۴۵۸۱] حَدَّثَنَا أَبُو مَعْمَرٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَارِثِ حَدَّثَنَا أَيُّوبُ عَنْ عِكْرِمَةَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا قَالَ سَجَدَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِالنَّجْمِ وَسَجَدَ مَعَهُ الْمُسْلِمُونَ وَالْمُشْرِكُونَ وَالْجِنُّ وَالْإِنْسُ تَابَعَهُ إِبْرَاهِيمُ بْنُ طَهْمَانَ عَنْ أَيُّوبَ وَلَمْ يَذْكُرِ ابْنُ عُلَيَّةَ ابْنَ عَبَّاسٍ

[۴۵۸۲] حَدَّثَنَا نَصْرُ بْنُ عَلِيٍّ أَخْبَرَنِي أَبُو أَحْمَدَ حَدَّثَنَا إِسْرَائِيلُ عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ عَنِ الْأَسْوَدِ بْنِ يَزِيدَ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ أَوَّلُ سُورَةٍ أُنْزِلَتْ فِيهَا سَجْدَةٌ وَالنَّجْمِ قَالَ فَسَجَدَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَسَجَدَ مَنْ خَلْفَهُ إِلَّا رَجُلًا رَأَيْتُهُ أَخَذَ كَفًّا مِنْ تُرَابٍ فَسَجَدَ عَلَيْهِ فَرَأَيْتُهُ بَعْدَ ذَلِكَ قُتِلَ كَافِرًا وَهُوَ أُمَيَّةُ بْنُ خَلَفٍ

## [۳۴۴] باب: تفسير سورة القمر (اقْتَرَبَتِ السَّاعَةُ)

قَالَ مُجَاهِدٌ مُسْتَمِرٌّ ذَاهِبٌ مُزْدَجَرٌ مُتَنَاهٍ وَازْدُجِرَ فَاسْتُطِيرَ جُنُونًا دُسُرٍ أَضْلَاعُ السَّفِينَةِ لِمَنْ كَانَ كُفِرَ يَقُولُ كُفِرَ لَهُ جَزَاءً مِنَ اللَّهِ مُحْتَضَرٌ يَحْضُرُونَ الْمَاءَ وَقَالَ ابْنُ جُبَيْرٍ مُهْطِعِينَ النَّسَلَانُ الْخَبَبُ السِّرَاعُ وَقَالَ غَيْرُهُ فَتَعَاطَى فَعَاطَهَا بِيَدِهِ فَعَقَرَهَا الْمُحْتَظِرِ كَحِظَارٍ مِنَ الشَّجَرِ مُحْتَرِقٍ ازْدُجِرَ افْتُعِلَ مِنْ زَجَرْتُ كُفِرَ فَعَلْنَا بِهِ وَبِهِمْ مَا فَعَلْنَا جَزَاءً لِمَا صُنِعَ بِنُوحٍ وَأَصْحَابِهِ مُسْتَقِرٌّ عَذَابٌ حَقٌّ يُقَالُ الْأَشَرُ الْمَرَحُ وَالتَّجَبُّرُ

**قوله: قَالَ مُجَاهِدٌ: مُسْتَمِرٌّ: ذَاهِبٌ:** ﴿وَإِنْ يَرَوْا آيَةً يُعْرِضُوا وَيَقُولُوا سِحْرٌ مُسْتَمِرٌّ﴾ اوکه هغوی چرته څه نښه وینی او ډېره کوی او وائی دا جادو دې چه د اول نه راوان دې. یعنی مدعیان نبوت اول هم داسې جادو کولو نو لکه څنګه چه د هغوی جادوپاتې نشو نو دا به هم پاتې نشی.
مستمر معنی مجاهد رحمه الله ذاهب بیان کړیده یعنی تلونکې، ختمیدونکې، بعضو وئیلی دی ذاهب په معنی د سائر ده یعنی باقی پاتې کیدونکې(۱)

**قوله: مُزْدَجَرٌ: مُتَنَاهٍ:** ﴿وَلَقَدْ جَاءَهُمْ مِنَ الْأَنْبَاءِ مَا فِيهِ مُزْدَجَرٌ﴾ فرمائی مزدجر په معنی د "متناه" ده چه د باب تفاعل نه صیغه د اسم فاعل ده. "ای غایة فی الزجر، لا مزید علیه"(۲) یعنی بې انتهاء رټنه مطلب دا دې چه دې خلقو سره دومره خبرې رسیدلې دی په کومو کښې چه په اوچته درجه رټنه او تنبیه موجود ده.

**قوله: وَازْدُجِرَ: فَاسْتُطِيرَ جُنُونًا:** ﴿وَقَالُوا مَجْنُونٌ وَازْدُجِرَ﴾ اودې خلقو د حضرت نوح علیه السلام باره کښې اووئیل چه دا مجنون دې، اود جنون د وجه نه وریدلې او نشه دې. اُستطیر صیغه

---

۱) فتح الباری-۸/۶۱۲:

۲) عمدة القاری-۱۹/۲۰۴ :

مجهول ده. اُستطیر الرجل ، ویرولې، خوف زده کړیشوې. بعضو د دې ترجمه صرعَ سره کړیده. یعنی دَ مرګی بیمارئی کښې اخته کړیشوې. بهرحال په دې صورت کښې داعطف دې مجنون باندې او دَ قوم په مقوله کښې داخل دې. بعضو دا دَ الله تعالی مقوله ګرځولې ده اودَ دې تفسیر ئې کړیدې "دهمکی ورکړیشوې"(۱)

مطلب دا دې چه دَ نوح علیه السلام قوم نوح علیه السلام ته مجنون اووئیل او هغه ته ئې دهمکی ورکړه چه دَ تبلیغ نه منع شه مونږ به تا رجم کړو.

**قوله**: دُسُرٍ: أَضْلَاعُ السَّفِينَةِ (وَحَمَلْنٰهُ عَلٰى ذَاتِ اَلْوَاحٍ وَّدُسُرٍ) فرمائی چه "دسر" دَ کشتئی اړخونه یعنی تختې میخونو او رسو وغیره ته وائی، دا دَ دسار جمع ده میخ ته وائی.

**قوله**: لِمَنْ كَانَ كُفِرَ: يَقُولُ: كُفِرَ لَهُ جَزَاءً مِنَ اللّٰهِ: (لِّمَنْ كَانَ كُفِرَ) مطلب دا دې چه دا عذاب په حقیقت کښې دَ الله تعالی دَ طرف نه بدله وه د حضرت نوح علیه السلام چه دَ هغه ناقدری او انکار ئې کړې وو.

**قوله**: مُحْتَضَرٌ: يَحْضُرُونَ الْمَاءَ: آیت کښې دی (وَنَبِّئْهُمْ اَنَّ الْمَآءَ قِسْمَةٌۢ بَيْنَهُمْ ۚ كُلُّ شِرْبٍ مُّحْتَضَرٌ) اوهغه خلقو ته دا اوښایه چه اوبه(کویان) تقسیم کړیشوی دی هر یو دې په خپل نمبر راځی. فرمائی محتضر معنی ده نمبر والا ټول دې اوبه ته حاضریږی.

**قوله**: مُهْطِعِينَ: النَّسَلَانُ: اَلْخَبَبُ السِّرَاعُ: (مُّهْطِعِيْنَ اِلَى الدَّاعِ) دا دَ اهطاع نه صیغه اسم فاعل ده. د کوم معنی چه په تیزئی سره د تللو ده. دَدې تفسیر النسلان سره کړیدې. اودَ النسلان تفسیر "اخبب السراع" سره، دَ ټولو معنی په تیزئی سره دَ تللو ده.

**قوله**: وَقَالَ غَيْرُهُ: فَتَعَاطٰى: فَعَاطَهَا بِيَدِهِ فَعَقَرَهَا: (فَنَادَوْا صَاحِبَهُمْ فَتَعَاطٰى فَعَقَرَ)

فتعاطی ترجمه عاط سره کړیده، عاط عوط نه ماخوذ دې دَ کوم چه دَ عربو په کلام کښې هیڅ معنی نه راځی. په دې وجه شراح حضراتو وئیلی دی چه په دې کښې قلب شویدې د عین کلمه دَ لام په ځائ کړشویده او دا عطو نه ماخوذ دې دَ کوم معنی چه په لاس دَ نیولو راځی او هغه دلته صحیح ده.(۲)

**قوله**: اَلْمُحْتَظِرِ: كَحِظَارٍ مِنَ الشَّجَرِ مُحْتَرِقٍ: (فَكَانُوْا كَهَشِيْمِ الْمُحْتَظِرِ) محتظر معنی ده دَ ونو(یعنی لرګو) سوزیدلې او مات شوې شپول. حظار ازضرب حظر، حظراً منع کول، حظار وحظيرة شپول هغه ځیز چه ستا او دَ نورو په مینځ کښې بندیز جوړشی. مطلب دا چه په عذاب راتلوباندې هغه دَ چقنړی شوی ازغودَ شپول په شان شو لکه څنګه چه هغه شپول ذره ذره کیږی دا هم تباه شو.

---

(۱) تفسیر کشاف-۴/۴۳۳ :

(۲) فتح الباری ۸/۶۱۶:وعمدة القاری-۱۹/۲۰۵:

**قوله:** كُفِرَ: فَعَلْنَا بِهِ وَبِهِمْ مَا فَعَلْنَا جَزَاءً لِمَا صُنِعَ بِنُوحٍ وَأَصْحَابِهِ: په آيت مبارك كښې دى "جَزَآءً لِّمَنْ كَانَ كُفِرَ" د نوح علیه السلام امداد كول او قوم غرق كول، دا بدله وه د هغه معاملې چه نوح علیه السلام او د هغه ملګرو سره اوکړېشوه.

**قوله:** مُسْتَقِرٌّ: عَذَابٌ حَقٌّ: آيت كښې دى وَلَقَدْ صَبَّحَهُمْ بُكْرَةً عَذَابٌ مُّسْتَقِرٌّ او سحر وختى په هغوى باندې د هميشه عذاب راغلو. فرمائى مستقر معنى عذاب حق.

**قوله:** يُقَالُ: الْأَشَرُ: الْمَرَحُ وَالتَّجَبُّرُ: آيت كښې د "سَيَعْلَمُونَ غَدًا مَّنِ الْكَذَّابُ الْأَشِرُ" هغوى ته ډیرزر معلوم شى چه دروغ وايونكې څوك وو. ونيلې شى چه اشر معنى ده كبر او غرور كول، اشر كبر او غروركونكې.

## [٣٤٥] بَابٌ وَانْشَقَّ الْقَمَرُ وَإِنْ يَرَوْا آيَةً يُعْرِضُوا

[٤٥٨٣] حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا يَحْيَى عَنْ شُعْبَةَ وَسُفْيَانَ عَنْ الْأَعْمَشِ عَنْ إِبْرَاهِيمَ عَنْ أَبِي مَعْمَرٍ عَنْ ابْنِ مَسْعُودٍ قَالَ انْشَقَّ الْقَمَرُ عَلَى عَهْدِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِرْقَتَيْنِ فِرْقَةً فَوْقَ الْجَبَلِ وَفِرْقَةً دُونَهُ فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اشْهَدُوا

[٤٥٨٤] حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ أَخْبَرَنَا ابْنُ أَبِي نَجِيحٍ عَنْ مُجَاهِدٍ عَنْ أَبِي مَعْمَرٍ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ قَالَ انْشَقَّ الْقَمَرُ وَنَحْنُ مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَصَارَ فِرْقَتَيْنِ فَقَالَ لَنَا اشْهَدُوا اشْهَدُوا

[٤٥٨٥] حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ بُكَيْرٍ قَالَ حَدَّثَنِي بَكْرٌ عَنْ جَعْفَرٍ عَنْ عِرَاكِ بْنِ مَالِكٍ عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُتْبَةَ بْنِ مَسْعُودٍ عَنْ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا قَالَ انْشَقَّ الْقَمَرُ فِي زَمَانِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

[٤٥٨٦] حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا يُونُسُ بْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا شَيْبَانُ عَنْ قَتَادَةَ عَنْ أَنَسٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ سَأَلَ أَهْلُ مَكَّةَ أَنْ يُرِيَهُمْ آيَةً فَأَرَاهُمْ انْشِقَاقَ الْقَمَرِ

[٤٥٨٧] حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا يَحْيَى حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ قَتَادَةَ عَنْ أَنَسٍ قَالَ انْشَقَّ الْقَمَرُ فِرْقَتَيْنِ

**د انشقاق قمر بحث:** امام بخارى رحمه الله دلته د اشقاق القمر روايتونه حضرت عبدالله بن مسعود، حضرت عبدالله بن عباس رضی الله عنهما او حضرت انس، نه نقل كړى دى. حضرت عبدالله بن مسعود رضی الله عنه خو د انشقاق قمر كتونكونه دى. حضرت ابن عباس رضی الله عنهما لا پيدا شوى هم نه وو. ځكه چه دا واقعه د هجرت نه پنځه كاله وړاندې ده، او ابن عباس رضی الله عنهما هغه وخت نه وو پيدا شوى او حضرت انس، د څلورو پنځو كالو ماشوم وو او په مدينه منوره كښې وو، په مكه مكرمه كښې موجود نه وو. غالباً هغوى د باقى صحابه كرامو نه اوريدوسره دا واقعه

بيان کړيده.(١) ابونعيم "دلائل النبوة" کښې دَ حضرت ابن عباس ﷠ روايت نقل کړيدې چه يو څو مشرکان دَ رسول الله ﷺ په خواکې راجمع شول. په هغوی کښې ابوجهل، وليد بن مغيره، عاص بن وائل او نظربن حارث شامل وو او رسول الله ﷺ ته ئې اووئيل که ته رښتونې ئې نو دا سپوږمئ دوه ټکړې کړه. نبی کريم ﷺ دعا اوکړه او سپوږمئ دوه ټکړې شوه (٢)

حافظ جلال الدين سيوطی رحمه الله فرمائيلی دی چه دَ دې ثبوت په تواتر سره دې، حافظ ابن کثير دا متفق عليه ګرځولې دې (٣) دَ حافظ ابن حجر رحمه الله استاد حافظ زين الدين عراقی رحمه الله اجماع نقل کړې. هغه په خپل منظوم سيرت کښې فرمائی:

فصار فرقتين فرقة علت وفرقة للطود منه نزلت

وذاك مرتين بالاجماع والنص والتواتر السماع (٤)

دَ بعض قديم علماؤ دا خيال دې چه دَ شق قمر معجزه نه ده واقع شوې دا به قرب قيامت کښې واقع کيږی. باقی پاتې شوه دا خبره ﴿وَانْشَقَّ الْقَمَرُ﴾ کښې دَ ماضی صيغه استعمال شويده نو هغوی وائی چه دَ مستقبل دَ پاره دَ ماضی صيغه استعمالولې شی کله چه په مستقبل کښې دَ هغه څيز په وقوع کښې تحقق کښې مبالغه مقصود وی لکه څنګه چه ﴿اِقْتَرَبَتِ السَّاعَةُ﴾ کښې استعمال کړيشويده. ليکن دَ جمهورو علماؤ مسلك دا دې چه انشقاق قمر دَ رسول الله ﷺ په زمانه کښې واقع شويده. لکه څنګه چه په رواياتوکښې دی.

حافظ رحمه الله ليکی: "والذی ذهب اليه الجمهور اصح، کما جزم به ابن مسعود وحذيفة وغيرهما" (٥) حافظ ابن حجر رحمه الله دَ انشقاق قمر متعلق بعض سوالونه او اعتراضونه او دَ هغې جوابونه نقل کړيدی (٦) دلته دَ مولاناشبيراحمد عثمانی رحمه الله تفسيری حاشيه نقل کولې شی چه په دې کښې دَهغه مختصر جوابونه راځی، هغوی ليکی: "طحاوی او ابن کثير دَ دې واقعې دَ تواتر دعوی کړيده اودَ يوعقلی دليل نه هم ترنن پورې ددې قسم واقعه محال کيدل ثابت نه کړيشو .اوصرف دَاستبعاد په بنيادباندې داسې قطعی الثبوت څيزونه رد کولې نشی، بلکه استبعاد خو دَ معجزې دَ پاره لازم دې، دَ روزمره معمولی واقعاتوته معجزه څوك وائی"

---

(١)فتح الباری، کتاب مناقب النصار، باب انشقاق القمر-٧/١٨٢:

(٢) دلائل ابی نعيم، الفصل السادس عشر، انشقاق القمر -١/٢٨٠: نور اوګورئی الخصائص الکبری، باب انشقاق القمر-١٢٦-١/١٢٥:

(٣) تفسير ابن کثير-٤/٢٦١:

(٤)فتح الباری، کتاب مناقب الانصار، باب انشقاق القمر-٧/١٨٣:

(٥)فتح الباری، کتاب مناقب الانصار، باب انشقاق القمر-٧/١٨٦:

(٦)فتح الباری، باب انشقاق القمر-١٨٦-٧/١٨٣:

باقی دا ویناچه شق قمر که واقع شوې وې نو په تاریخ کښې دَ دې وجود ولې نشته نو یادساتنې چه دا واقعه دَ شپې ده او په بعض ملکونوکښې خود مطالع دَ اختلاف دَ وجه هغه وخت ورځ وی او په بعض ځایونوکښې نیمه شپه وی او خلقو عام توګه باندې اوده وی او چرته بیداری وې او دَ کولاؤ آسمان لاندې ناست وی نو عادتاً دا ضروری نه ده چه ټول به آسمان ته ګوری، په زمکه چه کومه دَ سپوږمئې رنړا خوروی په دې شرط چه آسمان صفاوی نو په دې کښې دَ سپوږمئې دوه ټکړې کیدل څه فرق نه راولی، بیادَ لږ وخت قصه وه، مونږ وینوګورو چه بار بار سپوږمئې تندر نیسی او ډیره ټوره وی خو په لاکهونو انسانانوته پته هم نه وی او په هغه زمانه کښې دَ رصد وغیره دومره وسیع او مکمل انتظامات او تقویم(جنتریانې) اِو دومره دَ خورونو ذرائع هم نه وې. بهر حال په تاریخونوکښې دَ نه ذکرکیدو په وجه دَ دې تکذیب نشی کیدې. سره دَ دې چه "تاریخ فرشته" وغیره کښې دَ دې ذکر موجود دې، دَ هندوستان مهاراجه "مالیبار" دَ اسلام راوړلو سبب هم دا واقعه لیکی.(۱) قدیم فلاسفه چونکه دَ آسمان او سیاراتوخرق او التیام قائل نه دی په دې وجه هغوی دَ دینه انکار کوی نو حافظ ابن حجر رحمه الله لیکی: "وقد انکر جمهور الفلاسفة انشقاق القمر، متمسکین بان الایات العلویة، لایتهیأفیها الانخراق والالتیام."

حافظ ابن حجر رحمه الله دَ زجاج په حواله سره دَ دې جواب ورکړیدې چه قمر او نور اجرام سماویه دَ الله تعالی) مخلوق دې اوالله تعالی دَ هغوی دَ تخلیق په شان دَ هغوی په انشقاق او په هغې کښې انخراق او التیام باندې قادر دې. (۲) او مولانا انورشاه کشمیری رحمه الله فرمائی "وقد ثبت الیوم الخرق، والالتئام، والانشقاق، والانفطار کلها فی الاجرام السماویة" (۳)

## [۳۴۶] بَاب تَجْرِي بِأَعْيُنِنَا جَزَاءً لِمَنْ كَانَ كُفِرَ وَلَقَدْ تَرَكْنَاهَا آيَةً فَهَلْ مِنْ مُدَّكِرٍ قَالَ قَتَادَةُ أَبْقَى اللَّهُ سَفِينَةَ نُوحٍ حَتَّى أَدْرَكَهَا أَوَائِلُ هَذِهِ الْأُمَّةِ

[۴۵۸۸] حَدَّثَنَا حَفْصُ بْنُ عُمَرَ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ عَنْ الْأَسْوَدِ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ قَالَ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقْرَأُ فَهَلْ مِنْ مُدَّكِرٍ

دَ دې ترجمة الباب نه واخله باب ولقد اهلکنا اشیاعکم پورې شپږ مختلف ترجمې دی او په هره یوه کښې دَ حضرت عبدالله بن مسعود رضی الله عنه هم یو روایت نقل دې. دَ امام بخاری رحمه الله مقصد خودل دا دی چه په آیت کښې "فَهَلْ مِنْ مُدَّكِرٍ" دَ دال سره دې او په دې خبره باندې هم

---

(۱) تفسیرعثمانی ۷۰۱: فائده نمبر-۱۲

(۲) فتح الباری، کتاب مناقب الانصار، باب انشقاق القمر-۷/۱۸۵:

(۳) فیض الباری-۴/۲۴۱:

خبرداري مقصد دي چه قرآن پاك كومې قصې او واقعات بيانوي دې نه عبرت حاصلول پكار دي.

## [۳۴۷] بَاب وَلَقَدْ يَسَّرْنَا الْقُرْآنَ لِلذِّكْرِ فَهَلْ مِنْ مُدَّكِرٍ

قَالَ مُجَاهِدٌ يَسَّرْنَا هَوَّنَّا قِرَاءَتَهُ.

[۴۵۸۹] حدثنا مسدد، عن يحيى، عن شعبة، عن أبي إسحق، عن الأسود، عن عبدالله رضي الله عنه، عن النبي) أنه كان يقرأ: فهل من مدكر.

## [۳۴۸] بَاب أَعْجَازُ نَخْلٍ مُنْقَعِرٍ فَكَيْفَ كَانَ عَذَابِي وَنُذُرِ

[۴۵۹۰] حَدَّثَنَا أَبُو نُعَيْمٍ حَدَّثَنَا زُهَيْرٌ عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ أَنَّهُ سَمِعَ رَجُلًا سَأَلَ الْأَسْوَدَ فَهَلْ مِنْ مُدَّكِرٍ أَوْ مُذَّكِرٍ فَقَالَ سَمِعْتُ عَبْدَ اللَّهِ يَقْرَؤُهَا فَهَلْ مِنْ مُدَّكِرٍ قَالَ وَسَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقْرَؤُهَا فَهَلْ مِنْ مُدَّكِرٍ دَالًا

## [۳۴۹] بَاب فَكَانُوا كَهَشِيمِ الْمُحْتَظِرِ وَلَقَدْ يَسَّرْنَا الْقُرْآنَ لِلذِّكْرِ فَهَلْ مِنْ مُدَّكِرٍ

[۴۵۹۱] حَدَّثَنَا عَبْدَانُ أَخْبَرَنَا أَبِي عَنْ شُعْبَةَ عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ عَنْ الْأَسْوَدِ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ عَنْ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَرَأَ فَهَلْ مِنْ مُدَّكِرٍ الْآيَةَ

## [۳۵۰] بَاب وَلَقَدْ صَبَّحَهُمْ بُكْرَةً عَذَابٌ مُسْتَقِرٌّ فَذُوقُوا عَذَابِي وَنُذُرِ إِلَى فَهَلْ مِنْ مُدَّكِرٍ

[۴۵۹۲] حَدَّثَنَا مُحَمَّدٌ حَدَّثَنَا غُنْدَرٌ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ عَنْ الْأَسْوَدِ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ عَنْ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَّهُ قَرَأَ فَهَلْ مِنْ مُدَّكِرٍ

## [۳۵۱] بَاب وَلَقَدْ أَهْلَكْنَا أَشْيَاعَكُمْ فَهَلْ مِنْ مُدَّكِرٍ

[۴۵۹۳] حَدَّثَنَا يَحْيَى حَدَّثَنَا وَكِيعٌ عَنْ إِسْرَائِيلَ عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ عَنْ الْأَسْوَدِ بْنِ يَزِيدَ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ قَالَ قَرَأْتُ عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَهَلْ مِنْ مُذَّكِرٍ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَهَلْ مِنْ مُدَّكِرٍ

## [۳۵۲] بَاب قَوْلُهُ سَيُهْزَمُ الْجَمْعُ وَيُوَلُّونَ الدُّبُرَ

[۴۵۹۴] حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ حَوْشَبٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَهَّابِ حَدَّثَنَا خَالِدٌ عَنْ عِكْرِمَةَ عَنْ ابْنِ عَبَّاسٍ ح وَحَدَّثَنِي مُحَمَّدٌ حَدَّثَنَا عَفَّانُ بْنُ مُسْلِمٍ عَنْ وُهَيْبٍ حَدَّثَنَا خَالِدٌ عَنْ

عِكْرِمَةَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ وَهُوَ فِي قُبَّةٍ يَوْمَ بَدْرٍ اللّٰهُمَّ إِنِّي أَنْشُدُكَ عَهْدَكَ وَوَعْدَكَ اللّٰهُمَّ إِنْ تَشَأْ لَا تُعْبَدْ بَعْدَ الْيَوْمِ فَأَخَذَ أَبُو بَكْرٍ بِيَدِهِ فَقَالَ حَسْبُكَ يَا رَسُولَ اللّٰهِ أَلْحَحْتَ عَلَى رَبِّكَ وَهُوَ يَثِبُ فِي الدِّرْعِ فَخَرَجَ وَهُوَ يَقُولُ سَيُهْزَمُ الْجَمْعُ وَيُوَلُّونَ الدُّبُرَ

## [۳۵۳] بَاب قَوْلِهِ بَلِ السَّاعَةُ مَوْعِدُهُمْ وَالسَّاعَةُ أَدْهَى وَأَمَرُّ يَعْنِي مِنَ الْمَرَارَةِ

[۴۵۹۵] حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ مُوسَى حَدَّثَنَا هِشَامُ بْنُ يُوسُفَ أَنَّ ابْنَ جُرَيْجٍ أَخْبَرَهُمْ قَالَ أَخْبَرَنِي يُوسُفُ بْنُ مَاهَكٍ قَالَ إِنِّي عِنْدَ عَائِشَةَ أُمِّ الْمُؤْمِنِينَ قَالَتْ لَقَدْ أُنْزِلَ عَلَى مُحَمَّدٍ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِمَكَّةَ وَإِنِّي لَجَارِيَةٌ أَلْعَبُ بَلِ السَّاعَةُ مَوْعِدُهُمْ وَالسَّاعَةُ أَدْهَى وَأَمَرُّ

[۴۵۹۶] حَدَّثَنِي إِسْحَاقُ حَدَّثَنَا خَالِدٌ عَنْ خَالِدٍ عَنْ عِكْرِمَةَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ وَهُوَ فِي قُبَّةٍ لَهُ يَوْمَ بَدْرٍ أَنْشُدُكَ عَهْدَكَ وَوَعْدَكَ اللّٰهُمَّ إِنْ شِئْتَ لَمْ تُعْبَدْ بَعْدَ الْيَوْمِ أَبَدًا فَأَخَذَ أَبُو بَكْرٍ بِيَدِهِ وَقَالَ حَسْبُكَ يَا رَسُولَ اللّٰهِ فَقَدْ أَلْحَحْتَ عَلَى رَبِّكَ وَهُوَ فِي الدِّرْعِ فَخَرَجَ وَهُوَ يَقُولُ سَيُهْزَمُ الْجَمْعُ وَيُوَلُّونَ الدُّبُرَ بَلِ السَّاعَةُ مَوْعِدُهُمْ وَالسَّاعَةُ أَدْهَى وَأَمَرُّ

## [۳۵۴] باب: تفسير سُورَةُ الرَّحْمٰنِ

وَقَالَ مُجَاهِدٌ بِحُسْبَانٍ كَحُسْبَانِ الرَّحَى وَقَالَ غَيْرُهُ وَأَقِيمُوا الْوَزْنَ يُرِيدُ لِسَانَ الْمِيزَانِ وَالْعَصْفُ بَقْلُ الزَّرْعِ إِذَا قُطِعَ مِنْهُ شَيْءٌ قَبْلَ أَنْ يُدْرِكَ فَذَلِكَ الْعَصْفُ وَالرَّيْحَانُ رِزْقُهُ وَالْحَبُّ الَّذِي يُؤْكَلُ مِنْهُ وَالرَّيْحَانُ فِي كَلَامِ الْعَرَبِ الرِّزْقُ وَقَالَ بَعْضُهُمْ وَالْعَصْفُ يُرِيدُ الْمَأْكُولَ مِنَ الْحَبِّ وَالرَّيْحَانُ النَّضِيجُ الَّذِي لَمْ يُؤْكَلْ وَقَالَ غَيْرُهُ الْعَصْفُ وَرَقُ الْحِنْطَةِ وَقَالَ الضَّحَّاكُ الْعَصْفُ التِّبْنُ وَقَالَ أَبُو مَالِكٍ الْعَصْفُ أَوَّلُ مَا يَنْبُتُ تُسَمِّيهِ النَّبَطُ هَبُورًا وَقَالَ مُجَاهِدٌ الْعَصْفُ وَرَقُ الْحِنْطَةِ وَالرَّيْحَانُ الرِّزْقُ وَالْمَارِجُ اللَّهَبُ الْأَصْفَرُ وَالْأَخْضَرُ الَّذِي يَعْلُو النَّارَ إِذَا أُوقِدَتْ وَقَالَ بَعْضُهُمْ عَنْ مُجَاهِدٍ رَبُّ الْمَشْرِقَيْنِ لِلشَّمْسِ فِي الشِّتَاءِ مَشْرِقٌ وَمَشْرِقٌ فِي الصَّيْفِ وَرَبُّ الْمَغْرِبَيْنِ مَغْرِبُهَا فِي الشِّتَاءِ وَالصَّيْفِ لَا يَبْغِيَانِ لَا يَخْتَلِطَانِ الْمُنْشَآتُ مَا رُفِعَ قِلْعُهُ مِنَ السُّفُنِ فَأَمَّا مَا لَمْ يُرْفَعْ قِلْعُهُ فَلَيْسَ بِمُنْشَأَةٍ وَقَالَ مُجَاهِدٌ كَالْفَخَّارِ كَمَا يُصْنَعُ الْفَخَّارُ الشُّوَاظُ لَهَبٌ مِنْ نَارٍ وَنُحَاسٌ النُّحَاسُ الصُّفْرُ يُصَبُّ عَلَى رُءُوسِهِمْ فَيُعَذَّبُونَ بِهِ خَافَ مَقَامَ رَبِّهِ يَهُمُّ بِالْمَعْصِيَةِ فَيَذْكُرُ اللّٰهَ عَزَّ وَجَلَّ فَيَتْرُكُهَا مُدْهَامَّتَانِ سَوْدَاوَانِ مِنَ الرِّيِّ صَلْصَالٍ طِينٌ خُلِطَ بِرَمْلٍ فَصَلْصَلَ كَمَا يُصَلْصِلُ الْفَخَّارُ وَيُقَالُ مُنْتِنٌ يُرِيدُونَ بِهِ صَلَّ يُقَالُ صَلْصَالٌ كَمَا يُقَالُ صَرَّ الْبَابُ عِنْدَ الْإِغْلَاقِ وَصَرْصَرَ مِثْلُ كَبْكَبْتُهُ يَعْنِي كَبَبْتُهُ فَاكِهَةٌ

وَنَخْلٌ وَرُمَّانٌ وَقَالَ بَعْضُهُمْ لَيْسَ الرُّمَّانُ وَالنَّخْلُ بِالْفَاكِهَةِ وَأَمَّا الْعَرَبُ فَإِنَّهَا تَعُدُّهَا فَاكِهَةً كَقَوْلِهِ عَزَّ وَجَلَّ حَافِظُوا عَلَى الصَّلَوَاتِ وَالصَّلَاةِ الْوُسْطَى فَأَمَرَهُمْ بِالْمُحَافَظَةِ عَلَى كُلِّ الصَّلَوَاتِ ثُمَّ أَعَادَ الْعَصْرَ تَشْدِيدًا لَهَا كَمَا أُعِيدَ النَّخْلُ وَالرُّمَّانُ وَمِثْلُهَا أَلَمْ تَرَ أَنَّ اللَّهَ يَسْجُدُ لَهُ مَنْ فِي السَّمَاوَاتِ وَمَنْ فِي الْأَرْضِ ثُمَّ قَالَ وَكَثِيرٌ مِنَ النَّاسِ وَكَثِيرٌ حَقَّ عَلَيْهِ الْعَذَابُ وَقَدْ ذَكَرَهُمُ اللَّهُ عَزَّ وَجَلَّ فِي أَوَّلِ قَوْلِهِ مَنْ فِي السَّمَاوَاتِ وَمَنْ فِي الْأَرْضِ وَقَالَ غَيْرُهُ أَفْنَانٍ أَغْصَانٍ وَجَنَى الْجَنَّتَيْنِ دَانٍ مَا يُجْتَنَى قَرِيبٌ وَقَالَ الْحَسَنُ فَبِأَيِّ آلَاءِ نِعَمِهِ وَقَالَ قَتَادَةُ رَبِّكُمَا تُكَذِّبَانِ يَعْنِي الْجِنَّ وَالْإِنْسَ وَقَالَ أَبُو الدَّرْدَاءِ كُلَّ يَوْمٍ هُوَ فِي شَأْنٍ يَغْفِرُ ذَنْبًا وَيَكْشِفُ كَرْبًا وَيَرْفَعُ قَوْمًا وَيَضَعُ آخَرِينَ وَقَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ بَرْزَخٌ حَاجِزٌ الْأَنَامُ الْخَلْقُ نَضَّاخَتَانِ فَيَّاضَتَانِ ذُو الْجَلَالِ ذُو الْعَظَمَةِ وَقَالَ غَيْرُهُ مَارِجٌ خَالِصٌ مِنَ النَّارِ يُقَالُ مَرَجَ الْأَمِيرُ رَعِيَّتَهُ إِذَا خَلَّاهُمْ يَعْدُو بَعْضُهُمْ عَلَى بَعْضٍ وَيُقَالُ مَرَجَ أَمْرُ النَّاسِ مَرِيجٍ مُلْتَبِسٌ مَرَجَ الْبَحْرَيْنِ اخْتَلَطَ الْبَحْرَانِ مِنْ مَرَجْتَ دَابَّتَكَ تَرَكْتَهَا سَنَفْرُغُ لَكُمْ سَنُحَاسِبُكُمْ لَا يَشْغَلُهُ شَيْءٌ عَنْ شَيْءٍ وَهُوَ مَعْرُوفٌ فِي كَلَامِ الْعَرَبِ يُقَالُ لَأَتَفَرَّغَنَّ لَكَ وَمَا بِهِ شُغْلٌ يَقُولُ لَآخُذَنَّكَ عَلَى غِرَّتِكَ

### د كلماتو تشريح:

**قوله: وَأَقِيمُوا الْوَزْنَ: يُرِيدُ لِسَانَ الْمِيزَانِ:** دَ تلې دَ دواړو چابړو په مينځ كښې دَ لرګي په مينځ كښې يوه وړه شان ستن وي په څه سره چه دواړه چابړې برابرولې شي كه هغه يو طرف ته تيټ شي نو دَ هغه طرف چابړې ښكته شي. چه هغه بالكل نيغ وي‌نو بيا دواړه چابړې برابر وي هم ديته لسان الميزان وائي او په آيت كښې همدغه مراد دې.

**قوله: والحب ذوالعصف والريحان:**

**د "والحب ذوالعصف والريحان،، تفسير:** امام بخاري رحمه الله دَ العصف پنځه معنې بيان كړيدي.

① يوه داچه دَ پتې هغه سبزې كومه چه دَ پخيدونه وړاندې پركړې شي هغې ته عصف وائي.
② دوئم دا چه عصف نه مراد هغه دانې وي كوم چه خوړلې شي.
③ دريم دا چه عصف دَ غنمو پاڼو ته وائي.
④ څلورم دَ ضحاك رحمه الله قول دې چه عصف اوچووښو او بهوسوته وائي.
⑤ پنځم دَ ابومالك رحمه الله قول دې چه عصف هغه سبزئي ته وائي چه اول ميوه كوي او نبطي كښې عصف په خائ هغې ته هبور وائي. او دَ "الريحان" دوه معنې بيان كړيدي. يو دا چه ريحان دَ عربو په كلام كښې رزق او روزئي ته وائي او دوئم دا چه دَ دې اطلاق په هغه پخه غله باندې كيږي چه كچه نشي خوړلې، نو فرمائي "والريحان: النضيج الذى لم يؤكل" دَ عصف په شرح كښې يو لفظ "تبن" تيرشو دَ دې معنى ده بهوس، او اوچ واښه.

قوله: وَالْمَارِجُ اللَّهَبُ الْأَصْفَرُ وَالْأَخْضَرُ الَّذِي يَعْلُو النَّارَ إِذَا أُوقِدَتْ: ﴿وَخَلَقَ الْجَانَّ مِن مَّارِجٍ مِّن نَّارٍ﴾ كله چه أور بل كړې شي نوو شين او زيړ رنګ شغله پورته طرف ته اوچتيږي، هغې ته مارج وائي.

قوله: رَبُّ الْمَشْرِقَيْنِ لِلشَّمْسِ فِي الشِّتَاءِ مَشْرِقٌ وَمَشْرِقٌ فِي الصَّيْفِ وَرَبُّ الْمَغْرِبَيْنِ مَغْرِبُهَا فِي الشِّتَاءِ وَالصَّيْفِ: آيت كښې دى ﴿رَبُّ الْمَشْرِقَيْنِ وَرَبُّ الْمَغْرِبَيْنِ﴾ هغه د دواړو مشرقونواو دواړو مغربونومالك دې. فرمائي "مشرقين" نه مراد دا دې چه د نمر دپاره يو مشرق د ژمي په موسم كښې وى او يومشرق د ګرمئ په موسم كښې وى. دغه شان د نمر دوه مشرقونه شو او "مغربين" نه هم د ژمي مغرب او ګرمئ مغرب مراد دې.
علامه شبيراحمد عثمانى رحمه الله فرمائي: " په ژمي او اوړي كښې د كومې كومې نقطې نه نمر راخيژي هم د دغه مشرقينواومغربينو په په تغير او تبدل سره موسم او فصلونه بدليږي او مختلف انقلابات كيږي. د زمكې د خلقو په زرګونو فوائد او مصالح دې بدلون سره تړلى دى نود دې اول بدليدل هم د الله تعالى يو لوئ نعمت او دهغه د قدرت يو عظيم نښه ده."

قوله: لَا يَبْغِيَانِ: لَا يَخْتَلِطَانِ :آيت كښې دى ﴿مَرَجَ الْبَحْرَيْنِ يَلْتَقِيَانِ ۝ بَيْنَهُمَا بَرْزَخٌ لَّا يَبْغِيَانِ﴾ هم هغه دودريابونه(صورتا) يوځائ كړل(په ظاهركښې) يوبل سره ملاوشوى دى او حقيقة د دې دواړو په مينځ كښې يو پرده(قدرتي) ده. چه(د دې په وجه) دواړه)د خپلې خپلې موقع نه) نشي وړاندې كيدې. فرمائي لايبغيان معنى ده لايختلطان يعنى هغه دواړه يو بل سره ملاويږي نه، مطلب دا چه خوږ درياب او مالړين درياب كوم ځائ كښې چه يوبل سره يوځائ كيږي هلته يو بل سره ګډوډ كيږي نه علامه شبيراحمدعثمانى رحمه الله فرمائي: "بيان القرآن كښې د دوو معتبرو بنګالى علماؤ شهادت نقل كړيدې. "اركان" نه "چاټګام" پورې درياب داسې دې چه د هغې دوه بالكل جدا جدا مختلف دريابونه ښكاري، د يواوبه سپينې دى او د يو تورې، په تورو كښې د سمندر غوندې تلاطم او تموج يعنى اوچتيدل او راخلاصيدل كيږي او سپينې اوبه بالك خاموش دى. كشتئى په سپينواوبوكښې راوانه وى او د دواړو په مينځ كښې يوه كرخه شان برابره روانه وى چه د دواړو ملتقى ده، خلق وائي سپينې اوبه خوږې دى او تورې تروې.

اوماته د "بارليسال" يو ښو طالبانو بيان اوكړوچه په ضلع "بارليسال" كښې دوه ولې دى چه هم د يو درياب نه وتلى دى د يوې اوبه ترخې دى او د يوې ډيرې خوږې او مزيدارې دى.دلته په ګجرات راقم الحروف چه كوم ځائ مقيم دې سمندر تقريبا د لس دولسو ميلوپه فاصله باندې دې. د هغه ځائ په ولوكښې ښكته والې پورته والې كيږي، ډيرو ثقاتو بيان كړيدې د مدپه وخت كښې چه كله د سمندر اوبه ولې ته راځى نود خوږو اوبوپه مخ ترخې اوبه ډير زور سره راخيژى خو هغه وخت هم دواړه اوبه ګډې وډې كيږي نه، بره ترخې وى او لاندې خوږې، د جزر په وخت كښې د پاسه نه ترخې اوبه كوزې شى او خوږې چه څنګه وى نو هغه شان باقى پاتې شى. دا شواهد كتلوسره د آيت مطلب بالكل واضح كيږي."

**قوله: وَالْمُنْشَآتُ: مَا رُفِعَ قِلْعُهُ مِنَ السُّفُنِ، فَأَمَّا مَا لَمْ يُرْفَعْ قِلْعُهُ، فَلَيْسَ بِمُنْشَأَةٍ:**
(وَلَهُ الْجَوَارِ الْمُنْشَئَتُ فِي الْبَحْرِ كَالْأَعْلَامِ) منشئات هغه كشتوته وائى دَ كومو بادبانونه چه پورته اوچت كړيشوى وى(خكه چه دَ لرينه داسې كشتئى لكه دَ غرونو په شان ښكارى) دَ كومو بادبان چه نه وى اوچت شوى په هغې باندې دَ دې اطلاق نه كيږى.

**قوله: وَقَالَ مُجَاهِدٌ: كَالْفَخَّارِ: كَمَا يُصْنَعُ الْفَخَّارُ:** (خَلَقَ الْإِنْسَانَ مِنْ صَلْصَالٍ كَالْفَخَّارِ) الله تعالى انسان يعنى حضرت آدم) دَ يومعمولى غونډ آوازكونكې خاورې نه پيدا كړو. مجاهد رحمه الله فرمائى الله تعالى دَ آواز كونكې خاورينه داسې پيدا كړولكه څنګه چه دَ دې نه خاورين لوښى جوړيږى. وړاندې دَ صلصال تشريح امام كړيده "طين خلط برمل، فصلصل، كما يصلصل الفخار" يعنى هغه خټه كومې سره چه شګه يوځائ كړيشى نو هغه دَ خاورين لوښى غوندې آواز كوى. دوئم قول دا دې چه صلصال بدبويه خټې ته وائى. دا صل نه ماخوذدې وائى چه صل اللحم، غوښه سخاشوه، بدبويه شوه، صل او صلصال يوه معنى ده، لكه صرّ او صرصر چه يوه معنى ده. صرالباب: دروازې دَ بنديدلووخت كښې آواز اوكړى او لكه چه كبّ او كبكب يوه معنى ده، اولټه كول.

**قوله: وَنُحَاسٌ: النُّحَاسُ الصُّفْرُ، يُصَبُّ عَلَى رُءُوسِهِمْ، فَيُعَذَّبُونَ بِهِ:** آيت كښې دى (يُرْسَلُ عَلَيْكُمَا شُوَاظٌ مِنْ نَارٍ وَنُحَاسٌ فَلَا تَنْتَصِرَانِ) اې پيريانواو انسانانو مجرمانو! تاسو دواړو باندې) دَ قيامت په ورځ) دَ أور شغله او ويلى شوى پيتل اچولې شى، بيا به تاسو) دا) اخوانه كړې شئ. فرمائى آيت مبارك كښې نحاس نه پيتل مراد دې چه ويلې كولې به شى او دَ دوزخيانو په سرونوبه اچولې شى اود دې په ذريعه به هغوى له عذاب وركولې شى.

**قوله: خَافَ مَقَامَ رَبِّهِ: يَهُمُّ بِالْمَعْصِيَةِ فَيَذْكُرُ اللَّهَ فَيَتْرُكُهَا:** آيت كښې دى (وَلِمَنْ خَافَ مَقَامَ رَبِّهِ جَنَّتَانِ) اوكوم سړې چه دَ خپل رب په مخكښې دَ اودريدونه ويريږى دَ هغه دَ پاره به په جنت كښې دوه باغونه وى. فرمائى (خَافَ مَقَامَ رَبِّهِ) مطلب دا دې چه يو سړې دَ ګناه كولو اراده اوكړى بيا الله تعالى يادكړى اوهغه ګناه پريږدى.

**قوله: الشُّوَاظُ: لَهَبٌ مِنْ نَارٍ:** آيت كښې دى (يُرْسَلُ عَلَيْكُمَا شُوَاظٌ مِنْ نَارٍ) (اې پيريانو اوانسانانومجرمانو!) په تاسو دواړوباندې به) دَ قيامت په ورځ) دَ أورشغله دربريخودې شى. فرمائى شواظ معنى دَ أور شغله.

**قوله: مُدْهَامَّتَانِ سَوْدَاوَانِ مِنَ الرِّيِّ:** هغه دواړه باغونه به دَ خړوبوالى دَ وجې تور ښكارى، شينكې او آبادى چه څومره ژوريږى نو هغه دَ توروالى طرف ته مائله وى.

**قوله: وَقَالَ بَعْضُهُمْ لَيْسَ الرُّمَّانُ وَالنَّخْلُ بِالْفَاكِهَةِ وَأَمَّا الْعَرَبُ فَإِنَّهَا تَعُدُّهَا فَاكِهَةً:**

**نخل او رمان په فواكه كښې داخل دى يا نه؟** ﴿فِيهِمَا فَاكِهَةٌ وَنَخْلٌ وَرُمَّانٌ﴾ امام بخارى رحمه الله د دې آيت نه د امام اعظم ابوحنيفه رحمه الله استدلال ردكول غواړى(۱)- د امام ابوحنيفه رحمه الله رائې ده چه نخل او رمان فواكه كښې داخل نه دى بلكه د دې حيثيت د مستقل غذا يعنى خوراك دې.
د ائمه ثلاثه، صاحبينو او جمهور علماؤ رائې دا ده چه نخل او رمان فواكه كښې داخل دى.
(۲)امام اعظم رحمه الله د مذكوره آيت نه استدلال كوى چه دې كښې "فاكهة" او "نخل ورمان" په مينځ كښې واو عاطفه راوړلې شويدې او عطف په مغايرت باندې دلالت كوى په دې وجه دا "فاكهة" كښې داخل نه دى. امام بخارى رحمه الله فرمائى چه داعطف په مغايرت د دلالت د پاره نه دې بلكه دا "تخصيص بعد التعميم" د قبيل نه دې لكه چه په نورو ډيرو آياتونوكښې د كوم ذكر چه هغوى دلته اوكړو د دې مثال موجود دې نو د دې تقاضادا ده چه نخل ورمان فاكهة كښې داخليدل پكار دى. امام ابوحنيفه رحمه الله فرمائى چه "نخل ورمان" كښې د تفكه شان موجود خودې ليكن دا د غذا او دا دوائ دواړو په توګه هم استعماليږى په دې بنا دا فواكه كښې به نشى شاملولې.(۳) جمهور فرمائى چه هم د دې دپاره خود دې تخصيص شويدې چه په دې كښې د تفكه د شان سره سره شان تغذى او تداوى هم موجود دى.ثمره اختلاف به هغه وخت ښكاره كيږى چه څوك قسم اوخورى چه هغه به فاكهة نه خورى، بيا هغه په نخل ورمان كښې يو څيز اوخوړلو نود جمهورو په نيزد به هغه حانث شى او د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيزد به حانث نه وى. بعضوئيلى دى چه دا ختلاف د حجت او دليل اختلاف نه دې بلكه د عصر زمان او عرف اختلاف دې، يعنى د امام اعظم رحمه الله په زمانه او علاقه كښې عرف همدغه وو چه دا به په فواكه كښې نشو شميرلې او د نورو فقهاؤ په نيزد عرف د دې نه مختلف وو دابه ئى په فواكه كښې شميرل او په يمين كښې د عرف اعتبار وى نو د دې د پاره به اعتبار عرف له وى (۴)

**قوله: أَفْنَانٍ: أَغْصَانٍ:** آيت كښې ﴿ذَوَاتَا أَفْنَانٍ﴾ دواړه باغونه به د ښاخووالا وى. فرمائى افنان نه ښاخونه مراد دى.

**قوله: وَجَنَى الْجَنَّتَيْنِ دَانٍ: مَا يُجْتَنَى قَرِيبٌ:** دآيت ترجمه ده "اودې دواړو باغونو ميوې به ډيرې نزدې وى" مطلب دا چه دې نه كومې ميوې راشوكولې شى هغه به ډيرې نزدې وى.

---

(۱)وفى الفتح :۸/۲۲۳:العض المذكور هوابوحنيفة. وفى عمدة القارى ۱۹/۲۱۴:لايلزم تخصيص هذا القول بابى حنيفة وحده، فان جماعة المفسرين ذهبواالى هذاالقول

(۲) الهدايه، كتاب الايمان، باب اليمين فى الاكل والشرب ۲/۴۹۱:وفيض البارى-۴/۲۴۳

(۳)تعليقات لامع الدرارى-۹/۱۷۳:

(۴) د تفصيل د پاره تعليقات لامع الدرارى ۱۷۴-۹/۱۷۲:وفتح القدير-۴/۴۰۵:

**قوله:** فَبِأَيِّ آلَاءِ: نِعَمِهِ، رَبِّكُمَا تُكَذِّبَانِ: يَعْنِي الْجِنَّ وَالْإِنْسَ :آيت كښې دی (فَبِأَيِّ آلَاءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبٰنِ) تاسو به د خپل رب كوم كوم نعمتونه دروغ گڼرئ. فرمائی الاء نه مراد نعمتونه دی او ربكما كښې پيرى او انسان ته خطاب دې.

**قوله:** وَقَالَ أَبُو الدَّرْدَاءِ: كُلَّ يَوْمٍ هُوَ فِي شَأْنٍ: يَغْفِرُ ذَنْبًا :ابن حبان او ابن ماجه دا روايت مرفوعاً نقل كړيدې امام په خپل تاريخ كښې دا موصولاً نقل كړيدې، امام بيهقى هم دا موصولاً نقل كړيدې(۱) كل يوم معنى "كل وقت" ده.

**قوله:** بَرْزَخٌ: حَاجِزٌ :آيت كښې دی (بَيْنَهُمَا بَرْزَخٌ لَا يَبْغِيٰنِ) په دواړوكښې يوه پرده ده(دينه وړاندې والې نشي كولې په دې كښې د برزخ معنى ده حاجز، بنديز.

**قوله:** الْأَنَامُ: الْخَلْقُ :آيت كښې دی (وَالْأَرْضَ وَضَعَهَا لِلْأَنَامِ) او هم هغه زمكه د مخلوق د پاره)د هغې په ځائ) كيخوده. فرمائى انام معنى مخلوق ده.

**قوله:** نَضَّاخَتَانِ: فَيَّاضَتَانِ :آيت كښې دی (فِيهِمَا عَيْنٰنِ نَضَّاخَتٰنِ) په دې دواړو باغونو كښې به ده چينې جوش وهونكې وی. فرمائى نضاختان معنى ده فياضتان يعنى په جنتيانوباندې خير او بركت وروونكې.

**قوله:** ذُو الْجَلَالِ: ذُو الْعَظَمَةِ :آيت كښې دی (تَبٰرَكَ اسْمُ رَبِّكَ ذِي الْجَلٰلِ وَالْإِكْرَامِ) ډير د بركت نوم دې ستا د رب چه د عظمت والا دې او د احسان والا دې. فرمائى ذوالجلال معنى عظمت او بزرگئى والا.

**قوله:** مَارِجٌ: خَالِصٌ مِنَ النَّارِ، يُقَالُ: مَرَجَ الْأَمِيرُ رَعِيَّتَهُ، إِذَا خَلَّاهُمْ، يَعْدُو بَعْضُهُمْ عَلَى بَعْضٍ، مَرَجَ أَمْرُ النَّاسِ، مَرِيجٌ: مُلْتَبِسٌ :آيت كښې دی (وَخَلَقَ الْجَانَّ مِنْ مَّارِجٍ مِّنْ نَّارٍ) او پيريان د اُور د شغلې نه پيدا كړل، د مارج معنى ده خالص اُور، عرب وائى مرج الامير رعيته حاكم خپل رعيت آزاد پريخودو، بعض په بعضوباندې ظلم كوی، مرج امرالناس د خلقو معامله خرابه شوه، مريج معنى مختلط مرج البحران دواړه دزيابونه يوځائ شو. دا مرجت دابتك نه ماخوذ دې يعنى تا خپل څاروی پريخودل چه هغه د څرن په ځائ كښې اوڅرى، مقصد دا چه مرج مختلف معنې راځى، آزادپريخودل، او گډوډ كيدل.

**قوله:** سَنَفْرُغُ لَكُمْ: سَنُحَاسِبُكُمْ، لَا يَشْغَلُهُ شَيْءٌ عَنْ شَيْءٍ وَهُوَ مَعْرُوفٌ فِي كَلَامِ الْعَرَبِ: آيت كښې دی (سَنَفْرُغُ لَكُمْ أَيُّهَ الثَّقَلٰنِ) دلته اشكال كيږى چه الله تعالى اول په څه

---

(۱) قال الحافظ: وصله المصنف فى التاريخ، وابن حبان فى الصحيح وابن ماجه ...عن ابى الدرداء مرفوعاً واخرجه البيهقى فى الشعب عن ابى الدرداء مرفوعاً)فتح البارى " ۸/۶۲۳ :

کارکښې مشغول وو او اوس هغه د ثقلين د پاره اوزګاريږي، د دې اشکال جواب امام ورکړيدې د محاورې په توګه استعماليږي او د عربويه کلام کښې دا معروف دى وائى لاتفرغنلك اوس زه ستادپاره اوزګاريږم حالانکه د اول د هغه څه مشغولتيانه وى، د دې مطلب دا وى چه اوس به هغه تانسى او مزه ورکونکې او سزا ورکونکې دې.

## [۳۵۵] بَابٌ قَوْلِهِ وَمِنْ دُونِهِمَا جَنَّتَانِ

[۴۵۹۷] حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ أَبِي الْأَسْوَدِ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيزِ بْنُ عَبْدِ الصَّمَدِ الْعَمِّيُّ حَدَّثَنَا أَبُو عِمْرَانَ الْجَوْنِيُّ عَنْ أَبِي بَكْرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ قَيْسٍ عَنْ أَبِيهِ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ جَنَّتَانِ مِنْ فِضَّةٍ آنِيَتُهُمَا وَمَا فِيهِمَا وَجَنَّتَانِ مِنْ ذَهَبٍ آنِيَتُهُمَا وَمَا فِيهِمَا وَمَا بَيْنَ الْقَوْمِ وَبَيْنَ أَنْ يَنْظُرُوا إِلَى رَبِّهِمْ إِلَّا رِدَاءُ الْكِبْرِ عَلَى وَجْهِهِ فِي جَنَّةِ عَدْنٍ

## [۳۵۶] بَابٌ حُورٌ مَقْصُورَاتٌ فِي الْخِيَامِ

وَقَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ الْحُورُ السُّودُ الْحَدَقِ وَقَالَ مُجَاهِدٌ مَقْصُورَاتٌ مَحْبُوسَاتٌ قُصِرَ طَرْفُهُنَّ وَأَنْفُسُهُنَّ عَلَى أَزْوَاجِهِنَّ قَاصِرَاتٌ لَا يَبْغِينَ غَيْرَ أَزْوَاجِهِنَّ

[۴۵۹۸] حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنَّى قَالَ حَدَّثَنِي عَبْدُ الْعَزِيزِ بْنُ عَبْدِ الصَّمَدِ حَدَّثَنَا أَبُو عِمْرَانَ الْجَوْنِيُّ عَنْ أَبِي بَكْرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ قَيْسٍ عَنْ أَبِيهِ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ إِنَّ فِي الْجَنَّةِ خَيْمَةً مِنْ لُؤْلُؤَةٍ مُجَوَّفَةٍ عَرْضُهَا سِتُّونَ مِيلًا فِي كُلِّ زَاوِيَةٍ مِنْهَا أَهْلٌ مَا يَرَوْنَ الْآخَرِينَ يَطُوفُ عَلَيْهِمُ الْمُؤْمِنُونَ وَجَنَّتَانِ مِنْ فِضَّةٍ آنِيَتُهُمَا وَمَا فِيهِمَا وَجَنَّتَانِ مِنْ كَذَا آنِيَتُهُمَا وَمَا فِيهِمَا وَمَا بَيْنَ الْقَوْمِ وَبَيْنَ أَنْ يَنْظُرُوا إِلَى رَبِّهِمْ إِلَّا رِدَاءُ الْكِبْرِ عَلَى وَجْهِهِ فِي جَنَّةِ عَدْنٍ

حضرت ابن عباس رضی الله عنهما د حور تشريح سودالحدق د تورو سترګووالا، الحدق حدقة جمع ده، د سترګو تورواليې ته وائي، حور، د حوراء جمع ده اود مقصورات تفسيرئې بيان کړو چه د هغوى نظر اود هغوى ذات به د هغوى د خاوندانودپاره محفوظ وى اود بل چا په تصرت کښې راتلووالا به نه وى او د بل چاطرف ته به سترګو اوچتولووالا هم نه وى.

## [۳۵۷] باب: تفسير سورة الواقعه

وَقَالَ مُجَاهِدٌ (رُجَّتْ) زُلْزِلَتْ (بُسَّتْ) فُتَّتْ لُتَّتْ كَمَا يُلَتُّ السَّوِيقُ، الْمَخْضُودُ الْمُوقَرُ حَمْلًا، وَيُقَالُ أَيْضًا لَا شَوْكَ لَهُ (مَنْضُودٍ) الْمَوْزُ، وَالْعُرُبُ الْمُحَبَّبَاتُ إِلَى أَزْوَاجِهِنَّ (ثُلَّةٌ) أُمَّةٌ (يَحْمُومٍ) دُخَانٌ أَسْوَدُ (يُصِرُّونَ) يُدِيمُونَ. الْهِيمُ الْإِبِلُ الظِّمَاءُ (لَمُغْرَمُونَ) لَمُلْزَمُونَ (رَوْحٌ) جَنَّةٌ وَرَخَاءٌ (وَرَيْحَانٌ) الرِّزْقُ (وَنُنْشِئَكُمْ) فِي أَيِّ خَلْقٍ نَشَاءُ. وَقَالَ غَيْرُهُ (تَفَكَّهُونَ) تَعْجَبُونَ (عُرُبًا) مُثَقَّلَةً وَاحِدُهَا عَرُوبٌ مِثْلُ صَبُورٍ وَصُبُرٍ، يُسَمِّيهَا أَهْلُ مَكَّةَ الْعَرِبَةَ، وَأَهْلُ الْمَدِينَةِ الْغَنِجَةَ، وَأَهْلُ

الْعِرَاقِ الشَّكِلَةَ. وَقَالَ فِي (خَافِضَةٌ) لِقَوْمٍ إِلَى النَّارِ، وَ(رَافِعَةٌ) إِلَى الْجَنَّةِ (مَوْضُونَةٍ) مَنْسُوجَةٍ، وَمِنْهُ وَضِينُ النَّاقَةِ، وَالْكُوبُ لَا آذَانَ لَهُ وَلَا عُرْوَةَ، وَالْأَبَارِيقُ ذَوَاتُ الْآذَانِ وَالْعُرَى. (مَسْكُوبٍ) جَارٍ (وَفُرُشٍ مَرْفُوعَةٍ) بَعْضُهَا فَوْقَ بَعْضٍ (مُتْرَفِينَ) مُتَمَتِّعِينَ (مَا تُمْنُونَ) هِيَ النُّطْفَةُ فِي أَرْحَامِ النِّسَاءِ. (لِلْمُقْوِينَ) لِلْمُسَافِرِينَ، وَالْقِيُّ الْقَفْرُ. (بِمَوَاقِعِ النُّجُومِ) بِمُحْكَمِ الْقُرْآنِ، وَيُقَالُ بِمَسْقِطِ النُّجُومِ إِذَا سَقَطْنَ، وَمَوَاقِعُ وَمَوْقِعٌ وَاحِدٌ. (مُدْهِنُونَ) مُكَذِّبُونَ مِثْلُ (لَوْ تُدْهِنُ فَيُدْهِنُونَ). (فَسَلَامٌ لَكَ) أَيْ مُسَلَّمٌ لَكَ إِنَّكَ مِنْ أَصْحَابِ الْيَمِينِ، وَأُلْغِيَتْ إِنَّ وَهُوَ مَعْنَاهَا كَمَا تَقُولُ أَنْتَ مُصَدَّقٌ مُسَافِرٌ عَنْ قَلِيلٍ، إِذَا كَانَ قَدْ قَالَ إِنِّي مُسَافِرٌ عَنْ قَلِيلٍ. وَقَدْ يَكُونُ كَالدُّعَاءِ لَهُ كَقَوْلِكَ فَسَقْيًا مِنَ الرِّجَالِ. إِنْ رَفَعْتَ السَّلَامَ فَهُوَ مِنَ الدُّعَاءِ (تُورُونَ) تَسْتَخْرِجُونَ. أَوْرَيْتُ أَوْقَدْتُ. (لَغْوًا) بَاطِلًا. (تَأْثِيمًا) كَذِبًا.

**د کلماتو تشریح:**

**قوله: رجت: زلزلت:** آیت کښې دی ﴿إِذَا رُجَّتِ الْأَرْضُ رَجًّا﴾ په زمکه کښې به سخته زلزله راشی په دې کښې د رجت معنی ده چه کله هغه اوخوزلې شی، هغه اورقولې.

**قوله: بست: فتت والتت کما یلت السویق:** ﴿وَبُسَّتِ الْجِبَالُ بَسًّا﴾ فرمائی چه بست معنی ده فتت غرونه به ذره ذره کړیشی، لتت: ګډوډ به کړیشی، لکه څنګه چه ستوان ګډوډ کولې شی.

**قوله: المخضود: الموقر حملا، ویقال ایضاً: لاشوك له:** ﴿فِي سِدْرٍ مَّخْضُودٍ﴾ معنی ده د هغه بیرې ونه چه د میوې د بوج نه بارکړیشوې وی او دا هم وئیلی شی چه مخضود هغې ته وئیلی شی په کومه کښې چه ازغی نه وی.

**قوله: منضود: الموز:** ﴿وَطَلْحٍ مَّنضُودٍ﴾ طلح تفسیر دې الموز یعنی کیلا او منضود معنی ده په یوبل باندې کیخودې شوې.

**قوله: والعرب: المحببات الی ازواجهن:** ﴿فَجَعَلْنَاهُنَّ أَبْكَارًا عُرُبًا أَتْرَابًا﴾ مونږ دې حورو لره ښځې، د خاوندانو د پاره محبوب اود هغوی هم عمر جوړکړې. هغه ښځې چه د خپلو خاوندانو محبوبې وی "عرب" وائی، عروب: عروب وعروبة جمع ده، د اتو نهولفظونو تشریح نه پس امام دوباره د دې لفظ تشریح کړیده، نواوفرمائیلې شو عربها: مثقلة یعنی عرب مثقله دې، مثقله معنی ده د دې په را باندې پیش دې. محبوبې بی بی ته اهل مکه عَرِبَة وائی، اهل مدینه دیته غَنِجَة وائی اهل عراق دې ته شَكِلَة وائی

**قوله: ثلة: امة:** آیت کښې ﴿ثُلَّةٌ مِّنَ الْأَوَّلِينَ﴾ په دې کښې ثلة معنی ډله، اوګروه.

**قوله: یحموم: دخان اسود:** آیت کښې دی ﴿وَظِلٍّ مِّن يَحْمُومٍ﴾ او (اصحاب شمال) د تور لوګی په سوری کښې به وی یحموم تور لوګی ته وائی.

**قوله: يصرون: يديمون:** آيت كښې دى (وَكَانُوا يُصِرُّونَ عَلَى الْحِنْثِ الْعَظِيمِ) اودې خلقو به په ډيره درنه ګناه باندې اصرار کولو (يعنى ايمان به ئې نه راوړلو) يصرون معنى يديمون هميشه والې اختيار کړې وو.

**قوله: الهيم: الابل الظماء:** آيت کښې دى (فَشٰرِبُونَ عَلَيْهِ مِنَ الْحَمِيمِ) هغوى به دَ تږى اوښانو په شان څکونکى وى، الهيم تږى اوښانوته وائى.

**قوله: لمغرمون: لملزمون:** آيت کښې دى (إِنَّا لَمُغْرَمُونَ ۙ بَلْ نَحْنُ مَحْرُومُونَ) په مونږ باندې تاوان راپريوتلو بلکه بالکل محرومه پاتې شو. لمعزمون معنى ده الزام ورکړيشو، په مونږ باندې لازم کړيشو، قرضدارې شو.

**قوله: فروح: جنة ورخاء، وريحان: الرزق:** آيت کښې دى (فَأَمَّا إِنْ كَانَ مِنَ الْمُقَرَّبِينَ ۙ فَرَوْحٌ وَرَيْحَانٌ ۙ وَجَنَّتُ نَعِيمٍ) بيا چه کوم خلق دَ مقربينونه وى دَ هغوى دَ پاره خو راحت دې او خوراکونه دى او دَ آرام جنت دې. روح معنى جنت او فراخى ده او ريحان معنى رزق ده.

**قوله: وننشئكم: في اىّ خلق نشاء:** آيت کښې دى (وَنُنْشِئَكُمْ فِي مَا لَا تَعْلَمُونَ) او ستاسو به داسې صورت جوړکړيشى کوم چه تاسو پيژنې هم نه، فرمائى مطلب دا دې چه مونږ په کوم صورت کښې غواړو تاسو به پيدا کوو.

**قوله: تفكهون: تعجبون:** آيت کښې دى (لَوْ نَشَاءُ لَجَعَلْنٰهُ حُطٰمًا فَظَلْتُمْ تَفَكَّهُونَ) يعنى که مونږ اوغواړو نو دا به ذره ذره کړو بيا به تاسو حيران شئ.

**قوله: خافضة: لقوم الى النار، رافعة: الى الجنة:** آيت کښې دى (لَيْسَ لِوَقْعَتِهَا كَاذِبَةٌ ۘ خَافِضَةٌ رَّافِعَةٌ ۙ) دَ قيامت په واقع کيدوکښې هيڅ اختلاف نشته هغه به بعضې ښکته کړى او بعضې به اوچت کړى، امام فرمائى خافضة معنى ده هغه قيامت به يو قوم جهنم طرف ته يوسى او رافعة معنى يو قوم به دَ جنت طرف تهَ اوچتونکې دې.

**قوله: موضونة: منسوجة، ومنه: وضين الناقة:** (عَلَى سُرُرٍ مَّوْضُونَةٍ) معنى ده جوړشوى، هم دينه وضين الناقة دې هغه رسئى ته وائى په کومه چه په اوښ باندې کجاوه او بار تړلې شى.

**قوله: باكواب واباريق:** کوب هغه لوښى ته وائى کوم کښې چه نه ټوټئى او او لاسکې لکه ګلاس، پياله. ابريق هغه لوښى ته وائى په کوم کښې چه دا دواړه وى لکه لوټه، بعضو لوټوکښې دَ ټوټئى سره لاسکې هم وى لکه چه په عربوکښې رواج دې.

**قوله: مسكوب: جار:** آيت کښې دى (وَّمَاءٍ مَّسْكُوبٍ ۙ) او روانې اوبه وى... مسكوب معنى روانې.

**قوله: وفرش موفوعة: بعضها فوق بعض:** فرمائى آيت کښې دى (وَّفُرُشٍ مَّرْفُوعَةٍ) قط په قط فرش مراد دې.

**قوله: مترفين: متمتعين:** آيت كښې دى ﴿إِنَّهُمْ كَانُوا قَبْلَ ذَٰلِكَ مُتْرَفِينَ﴾ هغه خلق به دې نه وړاندې(يعنى دنيا كښې) په ډيره خوشحالئى كښې اوسيدل،فرمائى مترفين معنى متمتعين، په آرام سره ژوندتيرونكى، خوشحاله.

**قوله: ماتمنون: هى النطفة فى ارحام النساء:** آيت كښې دى ﴿أَفَرَأَيْتُم مَّا تُمْنُونَ ۝ أَأَنتُمْ تَخْلُقُونَهُ أَمْ نَحْنُ الْخَالِقُونَ﴾ ښه بيا دا اوښائې تاسو كومه(دَ ښځو په رحم كښې) منى رسوئى هغې نه تاسو انسان جوړوئى كه مونږ جوړونكې يو.فرمائى ماتمنون معنى ده هغه نطفه چه دَ ښځې په رحم كښې اچوئى.

**قوله: للمقوين: للمسافرين، والقى: القفر:** ﴿نَحْنُ جَعَلْنَاهَا تَذْكِرَةً وَمَتَاعًا لِّلْمُقْوِينَ﴾ هم مونږ ونې پيدا كړى(كوم نه چه اُورراوځى (ستاسو دَ ياداشت دَ پاره) چه كوم الله دَ شنې ونې نه اُور راويستلو باندې قادر دې هغه مړى ژوندى كولوباندې هم قادردې) اوپه ځنګل كښې سفر كونكو دَ نفع اوچتلو دَ پاره مقوين معنى مسافرين ده قِى (بكسرالقاف) نه ماخوذ دې صحرا او بيابان ته وائى.

**قوله: بمواقع النجوم: بمحكم القران، ويقال: بمسقط النجوم اذا سقطن:** ﴿فَلَا أُقْسِمُ بِمَوَاقِعِ النُّجُومِ﴾ فرمائې چه مواقع النجوم نه دَ قرآن كريم محكم آياتونه مراد دي. دَ موقع تفسير محكم سره اودَ نجوم تفسير قرآن سره كړيدې. ځكه چه قرآن نجماً نجماً نازل شويدې او مواقع النجوم دوئم تفسير دَ ستور پريوتل يعنى ډوبيدلو منازل.

**قوله: مدهنون: مكذبون، مثل: لوتدهن فيدهنون:** آيت كښې دى ﴿أَفَبِهَٰذَا الْحَدِيثِ أَنتُم مُّدْهِنُونَ﴾ آيا تاسو دا كلام دروغ ګرځونكى ئې، دَ سورة قلم په آيت كښې هم داشان دى ﴿وَدُّوا لَوْ تُدْهِنُ فَيُدْهِنُونَ﴾ دا خلق غواړى چه تاسو(دَ تبليغ په كار كښې) سست شئى نو دوى به هم سست شى.

**قوله: فسلام لك: اى مسلم لك، انك من اصحاب اليمين:** سلام په معنى دَ مسلم ده، اودَ دې معنى ده مسلم لك انك من اصحاب اليمين يعنى دا ستاسو دَ پاره منلې شوى ده چه تاسو دَ اصحاب اليمين نه ئې "ان" اګرچه په لفظونوكښې غورزولې شويدې ليكن په معنى كښې دَ دې اعتبار شته، لكه چه يو سړې اووائى زردې چه سفركونكې يم نو دَ دې په جواب كښې به تاسو وائى انت مصدق، مسافر عن قليل دلته هم "ان" محذوف دې او اصل عبارت دې "انت مصدق انك مسافر عن قليل" دَ سلام لفظ دَ دعا په توګه هم استعماليږى لكه "سقيامن الرجال" لفظ چه دَ دعا په توګه استعماليږى، "يعنى سقاك الله سقيا من الرجال"په خلق كښې دې الله تعالى هم تا خړوب كړى، البته "سقيا" دَ دعادَ پاره منسوب استعماليږى او سلام مرفوع استعماليږى.

**قوله**: تورون: تستخرجون: آيت كښې دى ﴿أَفَرَءَيْتُمُ النَّارَ الَّتِي تُورُونَ﴾ ښه ده بيا دا اوښايئې كوم أور چه تاسو بلوئې. فرمائي تورون معنى كوم أور چه تاسو راؤباسئى.

**قوله**: لغوا: باطلا: تاثيما: كذبا: آيت كښې دى ﴿لَا يَسْمَعُونَ فِيهَا لَغْوًا وَلَا تَأْثِيمًا﴾ دې كښې لغو معنى باطل او تاثيما معنى د دروغوده.

## [۳۵۸] بَاب قَوْلُهُ وَظِلٍّ مَمْدُودٍ

[۴۵۹۹] حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ أَبِي الزِّنَادِ عَنْ الْأَعْرَجِ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ يَبْلُغُ بِهِ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ إِنَّ فِي الْجَنَّةِ شَجَرَةً يَسِيرُ الرَّاكِبُ فِي ظِلِّهَا مِائَةَ عَامٍ لَا يَقْطَعُهَا وَاقْرَءُوا إِنْ شِئْتُمْ وَظِلٍّ مَمْدُودٍ

## [۳۵۹] باب: تفسير سُورَةُ الْحَدِيدِ

وَقَالَ مُجَاهِدٌ جَعَلَكُمْ مُسْتَخْلَفِينَ مُعَمَّرِينَ فِيهِ مِنْ الظُّلُمَاتِ إِلَى النُّورِ مِنْ الضَّلَالَةِ إِلَى الْهُدَى فِيهِ بَأْسٌ شَدِيدٌ وَمَنَافِعُ لِلنَّاسِ جُنَّةٌ وَسِلَاحٌ مَوْلَاكُمْ أَوْلَى بِكُمْ لِئَلَّا يَعْلَمَ أَهْلُ الْكِتَابِ لِيَعْلَمَ أَهْلُ الْكِتَابِ يُقَالُ الظَّاهِرُ عَلَى كُلِّ شَيْءٍ عِلْمًا وَالْبَاطِنُ عَلَى كُلِّ شَيْءٍ عِلْمًا أَنْظِرُونَا انْتَظِرُونَا

**د كلماتو تشريح:**

**قوله**: قَالَ مُجَاهِدٌ: جَعَلَكُمْ مُسْتَخْلَفِينَ: مُعَمَّرِينَ فِيهِ: ﴿وَأَنْفِقُوا مِمَّا جَعَلَكُمْ مُسْتَخْلَفِينَ فِيهِ﴾ اويه كوم مال كښې چه هغه تاسو د نور قائم مقام جوړكړې ئى دينه خرچ كوئى، مجاهد رحمه الله د دې ترجمه كړيده "تاسوئى آبادكړى ئى په دې كښې د نورو خلقو د تللونه پس"

**قوله**: مِنَ الظُّلُمَاتِ إِلَى النُّورِ: مِنَ الضَّلَالَةِ إِلَى الْهُدَى: آيت كښې دى ﴿هُوَ الَّذِي يُنَزِّلُ عَلَى عَبْدِهِ آيَاتٍ بَيِّنَاتٍ لِيُخْرِجَكُمْ مِنَ الظُّلُمَاتِ إِلَى النُّورِ﴾ هغه داسې (رحيم) دې چه خپل بنده (محمد) باندې صفاصفا آياتونه راليګى دې د پاره چه هغه تاسو (د كفر او جهل) تيارونه (د ايمان او حقيقى علم) رانړا طرف ته راولى. فرمائى الظلمت نه ګمراهى او النور نه هدايت مراد دې.

**قوله**: فِيهِ بَأْسٌ شَدِيدٌ وَمَنَافِعُ لِلنَّاسِ: جُنَّةٌ وَسِلَاحٌ: آيت مبارك كښې دى ﴿وَأَنْزَلْنَا الْحَدِيدَ فِيهِ بَأْسٌ شَدِيدٌ وَمَنَافِعُ لِلنَّاسِ﴾ اومونږ اوسپنه پيدا كړيده په كومه كښې چه سختوالې دې اود خلقو دپاره نورې هم قسماقسم فائدې دى. فرمائى منافع لناس نه ډهال او وسله مراد ده.

**قوله**: مَوْلَاكُمْ: أَوْلَى بِكُمْ: آيت كښې دى ﴿مَأْوَاكُمُ النَّارُ هِيَ مَوْلَاكُمْ﴾ ستاسو د ټولو ځائ دوزخ دې هم هغه ستاسو (د هميشه د پاره) ملګرې دې. فرمائى مولاكم معنى اولى بكم يعنى د دوزخ أور ستاسو د پاره لائق دې.

**قوله**: لِئَلَّا يَعْلَمَ أَهْلُ الْكِتَابِ: لِيَعْلَمَ أَهْلُ الْكِتَابِ: آيت مبارك كښې دى ﴿لِئَلَّا يَعْلَمَ أَهْلُ

أَسْتَطِيعُ هَيْبَةً لَكَ قَالَ فَلَا تَفْعَلْ مَا ظَنَنْتَ أَنَّ عِنْدِي مِنْ عِلْمٍ فَاسْأَلْنِي فَإِنْ كَانَ لِي عِلْمٌ خَبَّرْتُكَ بِهِ قَالَ ثُمَّ قَالَ عُمَرُ وَاللَّهِ إِنْ كُنَّا فِي الْجَاهِلِيَّةِ مَا نَعُدُّ لِلنِّسَاءِ أَمْرًا حَتَّى أَنْزَلَ اللَّهُ فِيهِنَّ مَا أَنْزَلَ وَقَسَمَ لَهُنَّ مَا قَسَمَ قَالَ فَبَيْنَا أَنَا فِي أَمْرٍ أَتَأَمَّرُهُ إِذْ قَالَتِ امْرَأَتِي لَوْ صَنَعْتَ كَذَا وَكَذَا قَالَ فَقُلْتُ لَهَا مَا لَكِ وَلِمَا هَا هُنَا وَفِيمَ تَكَلُّفُكِ فِي أَمْرٍ أُرِيدُهُ فَقَالَتْ لِي عَجَبًا لَكَ يَا ابْنَ الْخَطَّابِ مَا تُرِيدُ أَنْ تُرَاجَعَ أَنْتَ وَإِنَّ ابْنَتَكَ لَتُرَاجِعُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَتَّى يَظَلَّ يَوْمَهُ غَضْبَانَ فَقَامَ عُمَرُ فَأَخَذَ رِدَاءَهُ مَكَانَهُ حَتَّى دَخَلَ عَلَى حَفْصَةَ فَقَالَ لَهَا يَا بُنَيَّةُ إِنَّكِ لَتُرَاجِعِينَ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَتَّى يَظَلَّ يَوْمَهُ غَضْبَانَ فَقَالَتْ حَفْصَةُ وَاللَّهِ إِنَّا لَنُرَاجِعُهُ فَقُلْتُ تَعْلَمِينَ أَنِّي أُحَذِّرُكِ عُقُوبَةَ اللَّهِ وَغَضَبَ رَسُولِهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَا بُنَيَّةُ لَا يَغُرَّنَّكِ هَذِهِ الَّتِي أَعْجَبَهَا حُسْنُهَا حُبُّ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِيَّاهَا يُرِيدُ عَائِشَةَ قَالَ ثُمَّ خَرَجْتُ حَتَّى دَخَلْتُ عَلَى أُمِّ سَلَمَةَ لِقَرَابَتِي مِنْهَا فَكَلَّمْتُهَا فَقَالَتْ أُمُّ سَلَمَةَ عَجَبًا لَكَ يَا ابْنَ الْخَطَّابِ دَخَلْتَ فِي كُلِّ شَيْءٍ حَتَّى تَبْتَغِيَ أَنْ تَدْخُلَ بَيْنَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَأَزْوَاجِهِ فَأَخَذَتْنِي وَاللَّهِ أَخْذًا كَسَرَتْنِي عَنْ بَعْضِ مَا كُنْتُ أَجِدُ فَخَرَجْتُ مِنْ عِنْدِهَا وَكَانَ لِي صَاحِبٌ مِنَ الْأَنْصَارِ إِذَا غِبْتُ أَتَانِي بِالْخَبَرِ وَإِذَا غَابَ كُنْتُ أَنَا آتِيهِ بِالْخَبَرِ وَنَحْنُ نَتَخَوَّفُ مَلِكًا مِنْ مُلُوكِ غَسَّانَ ذُكِرَ لَنَا أَنَّهُ يُرِيدُ أَنْ يَسِيرَ إِلَيْنَا فَقَدِ امْتَلَأَتْ صُدُورُنَا مِنْهُ فَإِذَا صَاحِبِي الْأَنْصَارِيُّ يَدُقُّ الْبَابَ فَقَالَ افْتَحِ افْتَحْ فَقُلْتُ جَاءَ الْغَسَّانِيُّ فَقَالَ بَلْ أَشَدُّ مِنْ ذَلِكَ اعْتَزَلَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَزْوَاجَهُ فَقُلْتُ رَغِمَ أَنْفُ حَفْصَةَ وَعَائِشَةَ فَأَخَذْتُ ثَوْبِي فَأَخْرُجُ حَتَّى جِئْتُ فَإِذَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي مَشْرُبَةٍ لَهُ يَرْقَى عَلَيْهَا بِعَجَلَةٍ وَغُلَامٌ لِرَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَسْوَدُ عَلَى رَأْسِ الدَّرَجَةِ فَقُلْتُ لَهُ قُلْ هَذَا عُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِ فَأَذِنَ لِي قَالَ عُمَرُ فَقَصَصْتُ عَلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هَذَا الْحَدِيثَ فَلَمَّا بَلَغْتُ حَدِيثَ أُمِّ سَلَمَةَ تَبَسَّمَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَإِنَّهُ لَعَلَى حَصِيرٍ مَا بَيْنَهُ وَبَيْنَهُ شَيْءٌ وَتَحْتَ رَأْسِهِ وِسَادَةٌ مِنْ أَدَمٍ حَشْوُهَا لِيفٌ وَإِنَّ عِنْدَ رِجْلَيْهِ قَرَظًا مَصْبُوبًا وَعِنْدَ رَأْسِهِ أَهَبٌ مُعَلَّقَةٌ فَرَأَيْتُ أَثَرَ الْحَصِيرِ فِي جَنْبِهِ فَبَكَيْتُ فَقَالَ مَا يُبْكِيكَ فَقُلْتُ يَا رَسُولَ اللَّهِ إِنَّ كِسْرَى وَقَيْصَرَ فِيمَا هُمَا فِيهِ وَأَنْتَ رَسُولُ اللَّهِ فَقَالَ أَمَا تَرْضَى أَنْ تَكُونَ لَهُمُ الدُّنْيَا وَلَنَا الْآخِرَةُ

**د روايت باب تشريح:** دا روايت كتاب العلم كښې مختصراً تيرشوې دې [۱] اوورانديې به په كتاب النكاح كښې په تفصيل سره راځي هم هلته به ان شاء الله بحث وى دلته صرف يو څو الفاظ اوګورئ.

**قوله:** مَا تُرِيدُ أَنْ تُرَاجَعَ أَنْتَ وَإِنَّ ابْنَتَكَ لَتُرَاجِعُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ:

---

[۱] صحيح البخارى مع الفتح، كتاب العلم باب التناوب فى العلم ۱/۱۸۵: رقم الحديث-۸۹:

یعنې تاسونه غوارئ چه تاسوسره مراجعت اوکړیشي او ستاسوته دَ خبرو ستاسو جواب درکړیشي، ستاسو لور رسول الله ﷺته خبرې واپس کرځوی او دَ هغوی ﷺ دَ خبرو جواب ورکوی.

**قوله:** يَا بُنَيَّةُ لَا يَغُرَّنَّكِ هَذِهِ الَّتِي أَعْجَبَهَا حُسْنُهَا حُبُّ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِيَّاهَا: دې کښې "حسنها" دَ "اعجبها" فاعل دې او "حب رسول الله" دَ "حسنها" ته بدل اشتمال دې، د دې حسن دَ رسول الله ﷺدې سره مینه دا په ځان خوښئی کښې اخته کړه، مطلب دا چه نبی کریم ﷺ هغې سره ډیره مینه کوی نودَ حضور ﷺ دَ دې محبت نه زما مراددې. دَ حسن نه دوئم صورت دا کیدیشی چه دلته "واوعاطفه" محذوف اوګنړلې شی "اعجبها حسنها وحب رسول الله" دَ مسلم وغیره په روایت کښې دلته "واوعاطفه" موجود دې. نو په دې صورت کښې به ترجمه وی "دَ هغې حسن او دَ هغې سره دَ رسول الله ﷺمحبت هغه په ځان خوښئی کښې اخته کړه" په دې دواړو صورتونوکښې به "حب رسول...." مرفوع وی. دریم صورت دا دې چه "حب...." دَ مفعول له په بناء باندې منصوب اولولې "ای اعجبها من اجل حبه لها" دَ رسول الله ﷺدَ محبت دَ وجه هغه دَ هغې حسن په ځان خوښئی کښې اخته کړه "(۱)

**قوله:** وَتَحْتَ رَأْسِهِ وِسَادَةٌ مِنْ أَدَمٍ حَشْوُهَا لِيفٌ: دَ هغوی ﷺ دَ سر لاندې دَ څرمنې یوه تکیه وه، په هغې کښې دَ کجهورې پاڼې ډکې شوې وې، "لیف" دَ کجهورو پاڼو ته وائی.

**قوله:** يَرْقَى عَلَيْهَا بِعَجَلَةٍ: عجلة پاؤړئی ته وائی په هغې به دَ پاؤړئی په ذریعه ختله.

**قوله:** وَإِنَّ عِنْدَ رِجْلَيْهِ قَرَظًا مَصْبُوبًا: اودَ هغوی ﷺ پښې سره دَ ونې پاڼې اچولې شوې وې، قرظ دَ قاف او را دَ زبر سره) دَ یوې خاص ونې پاڼوته وائی دَ څه په ذریعه چه څرمنې جوړیږی، "مصبوبا" معنی "مسکوبا" ده، بهیولې شوی وو، اچولې شوی وو، بعض روایاتو کښې"مصبورا" دې ای مجموعا(۲) ترجمه به وی "دَ هغې دَ پښوسره دَ ونودَ پاڼو یو ډهیرې وو".

**قوله:** وَعِنْدَ رَأْسِهِ أَهَبٌ مُعَلَّقَةٌ: اودَ هغوی دَ سر سره څه څرمنې زوړندوې. اهب: اهاب جمع ده هغې څرمن ته وائی چه کومه جوړه شوی نه وی یعنی کچه څرمن.

## [۳۸۸] بَاب وَإِذْ أَسَرَّ النَّبِيُّ إِلَى بَعْضِ أَزْوَاجِهِ حَدِيثًا

فَلَمَّا نَبَّأَتْ بِهِ وَأَظْهَرَهُ اللَّهُ عَلَيْهِ عَرَّفَ بَعْضَهُ وَأَعْرَضَ عَنْ بَعْضٍ فَلَمَّا نَبَّأَهَا بِهِ قَالَتْ مَنْ أَنْبَأَكَ هَذَا قَالَ نَبَّأَنِيَ الْعَلِيمُ الْخَبِيرُ فِيهِ عَائِشَةُ عَنْ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

---

(۱) دَ مذکوره درې واړو صورتونو دپاره اوګورئی عمدة القاری-۱۹/۲۵۱:
(۲) عمدة القاری-۱۹/۲۵۱:

[۴۶۳۰] حَدَّثَنَا عَلِيٌّ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ سَعِيدٍ قَالَ سَمِعْتُ عُبَيْدَ بْنَ حُنَيْنٍ قَالَ سَمِعْتُ ابْنَ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا يَقُولُ أَرَدْتُ أَنْ أَسْأَلَ عُمَرَ بْنَ الْخَطَّابِ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فَقُلْتُ يَا أَمِيرَ الْمُؤْمِنِينَ مَنِ الْمَرْأَتَانِ اللَّتَانِ تَظَاهَرَتَا عَلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَمَا أَتْمَمْتُ كَلَامِي حَتَّى قَالَ عَائِشَةُ وَحَفْصَةُ

## [۳۸۹] بَاب إِنْ تَتُوبَا إِلَى اللَّهِ فَقَدْ صَغَتْ قُلُوبُكُمَا

صَغَوْتُ وَأَصْغَيْتُ مِلْتُ لِتَصْغَى لِتَمِيلَ وَإِنْ تَظَاهَرَا عَلَيْهِ فَإِنَّ اللَّهَ هُوَ مَوْلَاهُ وَجِبْرِيلُ وَصَالِحُ الْمُؤْمِنِينَ وَالْمَلَائِكَةُ بَعْدَ ذَلِكَ ظَهِيرٌ عَوْنٌ تَظَاهَرُونَ تَعَاوَنُونَ وَقَالَ مُجَاهِدٌ قُوا أَنْفُسَكُمْ وَأَهْلِيكُمْ أَوْصُوا أَنْفُسَكُمْ وَأَهْلِيكُمْ بِتَقْوَى اللَّهِ وَأَدِّبُوهُمْ

[۴۶۳۱] حَدَّثَنَا الْحُمَيْدِيُّ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ سَعِيدٍ قَالَ سَمِعْتُ عُبَيْدَ بْنَ حُنَيْنٍ يَقُولُ سَمِعْتُ ابْنَ عَبَّاسٍ يَقُولُ أَرَدْتُ أَنْ أَسْأَلَ عُمَرَ عَنِ الْمَرْأَتَيْنِ اللَّتَيْنِ تَظَاهَرَتَا عَلَى رَسُولِ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - فَمَكَثْتُ سَنَةً فَلَمْ أَجِدْ لَهُ مَوْضِعًا، حَتَّى خَرَجْتُ مَعَهُ حَاجًّا، فَلَمَّا كُنَّا بِظَهْرَانَ ذَهَبَ عُمَرُ لِحَاجَتِهِ فَقَالَ أَدْرِكْنِي بِالْوَضُوءِ فَأَدْرَكْتُهُ بِالإِدَاوَةِ، فَجَعَلْتُ أَسْكُبُ عَلَيْهِ وَرَأَيْتُ مَوْضِعًا فَقُلْتُ يَا أَمِيرَ الْمُؤْمِنِينَ مَنِ الْمَرْأَتَانِ اللَّتَانِ تَظَاهَرَتَا قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ فَمَا أَتْمَمْتُ كَلَامِي حَتَّى قَالَ عَائِشَةُ وَحَفْصَةُ.

## [۳۹۰] بَاب قَوْلُهُ عَسَى رَبُّهُ إِنْ طَلَّقَكُنَّ أَنْ يُبْدِلَهُ أَزْوَاجًا خَيْرًا مِنْكُنَّ

مُسْلِمَاتٍ مُؤْمِنَاتٍ قَانِتَاتٍ تَائِبَاتٍ عَابِدَاتٍ سَائِحَاتٍ ثَيِّبَاتٍ وَأَبْكَارًا

[۴۶۳۲] حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ عَوْنٍ حَدَّثَنَا هُشَيْمٌ عَنْ حُمَيْدٍ عَنْ أَنَسٍ قَالَ قَالَ عُمَرُ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ اجْتَمَعَ نِسَاءُ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي الْغَيْرَةِ عَلَيْهِ فَقُلْتُ لَهُنَّ عَسَى رَبُّهُ إِنْ طَلَّقَكُنَّ أَنْ يُبْدِلَهُ أَزْوَاجًا خَيْرًا مِنْكُنَّ فَنَزَلَتْ هَذِهِ الْآيَةُ

## [۳۹۱] بَاب: تفسیر سُورَةُ الْمُلْكِ

تَبَارَكَ الَّذِي بِيَدِهِ الْمُلْكُ التَّفَاوُتُ الِاخْتِلَافُ وَالتَّفَاوُتُ وَالتَّفَوُّتُ وَاحِدٌ تَمَيَّزُ تَقَطَّعُ مَنَاكِبِهَا جَوَانِبِهَا تَدَّعُونَ وَتَدْعُونَ وَاحِدٌ مِثْلُ تَذَّكَّرُونَ وَتَذْكُرُونَ وَيَقْبِضْنَ يَضْرِبْنَ بِأَجْنِحَتِهِنَّ وَقَالَ مُجَاهِدٌ صَافَّاتٍ بَسْطُ أَجْنِحَتِهِنَّ وَنُفُورٌ الْكُفُورُ

**د کلماتو تشریح:**

**قوله: التَّفَاوُتُ: الِاخْتِلَافُ، وَالتَّفَاوُتُ وَالتَّفَوُّتُ وَاحِدٌ:** آیت مبارک کښې دی ﴿مَا تَرَىٰ فِي خَلْقِ الرَّحْمَٰنِ مِن تَفَاوُتٍ﴾[۱] ته به د الله تعالی په تخلیق کښې هیڅ تفاوت اونه وینې.... فرمائی تفاوت معنی اختلاف، تفاوت او تفوت دواړه په یوه معنی کښې دی.

قوله: تَمَيَّزُ: تَقَطَّعُ: آيت مبارك كښې دى ﴿تَكَادُ تَمَيَّزُ مِنَ الْغَيْظِ﴾ دې كښې دَ تميز معنى ده تقطع يعنى داسې ښكارى چه دَ غصې نه به هغه اوشليږى.

قوله: مَنَاكِبِهَا: جَوَانِبِهَا: آيت مبارك كښې دى ﴿هُوَ الَّذِي جَعَلَ لَكُمُ الْأَرْضَ ذَلُولًا فَامْشُوا فِي مَنَاكِبِهَا وَكُلُوا مِن رِّزْقِهِ وَإِلَيْهِ النُّشُورُ﴾ هغه الله تعالى داسې دې چا چه ستاسو دَ پاره زمكه مسخر كړه) چه تاسو په دې كښې هرقسم تصرفات كولې شئى) نو تاسو دَ هغه په لارو باندې ګرځئى ګرځئى)اودَ الله تعالى دَ رزق نه خورئى او هم هغه له به بيا ژوندى ورځئى. فرمائى آيت كښې "مناكب" معنى دَ اطراف، اړخونه،

قوله: تَدَّعُونَ وَتَدْعُونَ، مِثْلُ تَذَّكَّرُونَ وَتَذْكُرُونَ: آيت مبارك كښې دى ﴿وَقِيلَ هَذَا الَّذِي كُنتُم بِهِ تَدَّعُونَ﴾ اووئيلې به شى چه هغه همدغه دې چانه به چه تاسو غوښتنه كوله.... فرمائى تَدَّعُونَ او وتَدْعُونَ يوه معنى ده لكه تَذَّكَّرُونَ اوتَذْكُرُونَ

قوله: وَيَقْبِضْنَ: يَضْرِبْنَ بِأَجْنِحَتِهِنَّ، وَقَالَ مُجَاهِدٌ: صَافَّاتٍ: بَسْطُ أَجْنِحَتِهِنَّ: آيت مبارك كښې دى ﴿أَوَلَمْ يَرَوْا إِلَى الطَّيْرِ فَوْقَهُمْ صَافَّاتٍ وَيَقْبِضْنَ﴾ آيا دې خلقو په خپل ځان باندې مرغوته نظر نه دې كړې چه وزرې خورې كړى(الوزى) او)كله په دې حالت باندې) راغونډوى. فرمائى ويقبضن معنى خپلې وزرې وهى راغونډوى او مجاهد رحمه الله فرمائى آيت كښې صافات معنى دَ هغوى خپل متې خورول.

قوله: وَنُفُورٍ الْكُفُورُ: آيت مبارك كښې دى ﴿بَل لَّجُّوا فِي عُتُوٍّ وَنُفُورٍ﴾ بلكه داخلق سركشى او نفرت) عن الحق)باندې كلك دى. نفور معنى كفور ده يعنى دَ حق نه تښتيدل.

## [۳۹۲] باب: تفسير سورة ن والقلم

وَقَالَ قَتَادَةُ حَرْدٍ جِدٍّ فِي أَنْفُسِهِمْ وَقَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ يَتَخَافَتُونَ يَنْتَجُونَ السِّرَارَ وَالْكَلَامَ الْخَفِيَّ وَقَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ لَضَالُّونَ أَضْلَلْنَا مَكَانَ جَنَّتِنَا وَقَالَ غَيْرُهُ كَالصَّرِيمِ كَالصُّبْحِ انْصَرَمَ مِنَ اللَّيْلِ وَاللَّيْلِ انْصَرَمَ مِنَ النَّهَارِ وَهُوَ أَيْضًا كُلُّ رَمْلَةٍ انْصَرَمَتْ مِنْ مُعْظَمِ الرَّمْلِ وَالصَّرِيمُ أَيْضًا الْمَصْرُومُ مِثْلُ قَتِيلٍ وَمَقْتُولٍ

### د كلماتو تشريح:

قوله: وَقَالَ قَتَادَةُ: حَرْدٍ: جِدٍّ فِي أَنْفُسِهِمْ: ﴿وَغَدَوْا عَلَى حَرْدٍ قَادِرِينَ﴾ دَ حرد معنى دَ په ځان او زړه سره دَ كوشش كولو هم راځى لكه چه دلته قتاده رحمه الله فرمائيلى دى دَ ارادې او مقرر شوې فيصلې دَ پاره هم استعماليږى اودَ منع كولو او نه وركولودَ پاره هم وئيلې كيږى، دَ آيت مفهوم دې "هغه دَ څه نه وركولو فيصله كولوپه وخت كښې سحر وختى داسې هلته لاړل لكه چه)هغوى دَ ميوو په شوكولو)قادر دى.

قوله: يَتَخَافَتُونَ: يَنْتَجُونَ السِّرَارَ وَالْكَلَامَ الْخَفِيَّ: ﴿فَانطَلَقُوا وَهُمْ يَتَخَافَتُونَ﴾ هغوى لاړل

په داسې حال کښې چه يو بل سره ئې پټې پټې خبرکولو سره، يتنجون: يكلم بعضهم بعضا

**قوله:** لَضَآلُّونَ: أَضْلَلْنَا مَكَانَ جَنَّتِنَا: ﴿فَلَمَّا رَاَوْهَا قَالُوْۤا اِنَّا لَضَآلُّوْنَ﴾ بيا چه كله هغوى هغه باغ اوليدو نو وئې وئيل بې شكه مونږ ته دَ خپل باغ خائ نه معلوميږى او مونږ نه هغه اورك شو. بدرالدين زركشى رحمه الله فرمائى چه "اضللنا" په "ضللنا" بغير دَ همزه نه كيدل پكار دى اودَ دې وجه دا ده چه "ضللت الشئ" هغه وخت وئيلې شى كله چه ته يو څيز په يوخاص خائ كښې كيږدې اودينه پس تاته ياد نه وى چه هغه كوم خائ دې او "اضللت الشئ" هغه وخت وئيلى شى كله چه يو سړې خپل څه څيز ضائع او برباد كړى او دلته خو اولنې صورت دې هغوى ته دَ خپل باغ دَ خائ پته نه لګيدله په دې وجه "ضللنا" كيدل پكار دى(١)خو حافظ ابن حجر رحمه الله "اضللنا" ته هم صحيح وائى هغه فرمائى چه دَ دې معنى ده "عملنا عمل من ضيع" مونږ دَ هغه سړى په شان عمل اوكړوچه خپل څيز ضائع كوى (٢)

**قوله:** وَقَالَ غَيْرُهُ: كَالصَّرِيمِ: كَالصُّبْحِ انْصَرَمَ مِنَ اللَّيْلِ، وَاللَّيْلِ انْصَرَمَ مِنَ النَّهَارِ: ﴿فَاَصْبَحَتْ كَالصَّرِيْمِ﴾ بيا سحرهغه باغ دَ پريكړيشوى پټى غوندې شو. سحرته هم "صريم" وائى، ځكه چه سحر دَ شپې نه جداكيږى پريكړې كيږى چه شپه ختميږى، نو سحر راځى او شپه دَ ورځې نه منقطع كيږى چه ورځ ځى، نوشپه راځى. او صريم دَ شګې هغه حصې ته هم وائى چه دَ شګې د يو لوئ غوندې نه جدا كيږى او صريم په معنى مصروم هم دې لكه چه قتيل په معنى مقتول دې. امام بخارى رحمه الله خودل دا غواړى چه دَ صريم مختلف معنې راځى خوپه هره معنى كښې پريكيدلو او جدا كيدلومفهوم داخل دې. "والصريم ايضا المصروم" نه داخودل مقصددې چه دا لفظ څنګه لازم استعماليږى متعدى هم استعماليږى.

## [٣٩٣] بَاب عُتُلٍّ بَعْدَ ذَلِكَ زَنِيمٍ

[۴۶۲۳] حَدَّثَنَا مَحْمُودٌ حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللَّهِ بْنُ مُوسَى عَنْ إِسْرَائِيلَ عَنْ أَبِي حَصِينٍ عَنْ مُجَاهِدٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا عُتُلٍّ بَعْدَ ذَلِكَ زَنِيمٍ قَالَ رَجُلٌ مِنْ قُرَيْشٍ لَهُ زَنَمَةٌ مِثْلُ زَنَمَةِ الشَّاةِ

[۴۶۲۴] (٣)حَدَّثَنَا أَبُو نُعَيْمٍ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ مَعْبَدِ بْنِ خَالِدٍ قَالَ سَمِعْتُ حَارِثَةَ بْنَ

---

(١) فتح البارى-٨/٦٦٢:

(٢) فتح البارى-٨/٦٦٢:

(٣) واخرجه ايضاً فى كتاب الأدب باب الكبر ٦٠٧١:وفى كتاب الايمان والنذور باب قول الله تعالى : واقسموا بالله جهدايمانهم رقم الحديث ٦٦٥٧ :واخرجه مسلم فى الجنة...[بقيه حاشيه په راروانه صفحه.

وَهْبٍ الْخُزَاعِيِّ قَالَ سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ أَلَا أُخْبِرُكُمْ بِأَهْلِ الْجَنَّةِ كُلُّ ضَعِيفٍ مُتَضَعِّفٍ لَوْ أَقْسَمَ عَلَى اللّٰهِ لَأَبَرَّهُ أَلَا أُخْبِرُكُمْ بِأَهْلِ النَّارِ كُلُّ عُتُلٍّ جَوَّاظٍ مُسْتَكْبِرٍ

**قوله:** قَالَ رَجُلٌ مِنْ قُرَيْشٍ لَهُ زَنَمَةٌ مِثْلُ زَنَمَةِ الشَّاةِ: دَ چيلئى غوږ سره دَ غوږنې يوه زياتى ټكړه زوړنده وى، داشان د بعضو سړو د غوږونوسره هم يوه ټكړه زوړندوى هغې ته زنمه وائى. بعضى حضراتو "له زنمة" نه مراداخستې دې چه دَ هغه دَ لاسونوگوتې شپږ دى. بعض خلقو وئيلى دى چه زنيم هغه سړى ته وائى چه يو قوم سره يوځائ شوې وى او د هغې قوم فرد نه وى لكه په مرې يا غوږ كښې زياتى ټكړه بې مقصده وى دغه شان هغه سړې هم په دې قوم كښې دَ اهميت مالك نه وى(۱)دلته دَ زنيم نه څوك مراد دې يحيى بن سلام په خپل تفسيركښې وئيلى دى چه دينه وليدبن مغيره مراد دې، بعض اسودبن عبد يغوث او بعض اخنس بن شريق نوم هم ذكر كړيدې(۲) اولنې قول مشهور دې. دَ زنيم معنى دَ بعض سلف په نيزد ولدالزنااو حرام زاده دې (۳)دَ كوم يوكافر متعلق چه دا آيت نازل شوې وو هغه هم داسې وو.

عُتُلٍّ: سخت مزاج، هغه سړې چه وعظ او تذكير باندې نه پوهيږى (۴)

## [۳۹۴] بَاب يَوْمَ يُكْشَفُ عَنْ سَاقٍ

[۴۶۳۵] حَدَّثَنَا آدَمُ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ خَالِدِ بْنِ يَزِيدَ عَنْ سَعِيدِ بْنِ أَبِي هِلَالٍ عَنْ زَيْدِ بْنِ أَسْلَمَ عَنْ عَطَاءِ بْنِ يَسَارٍ عَنْ أَبِي سَعِيدٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ يَكْشِفُ رَبُّنَا عَنْ سَاقِهِ فَيَسْجُدُ لَهُ كُلُّ مُؤْمِنٍ وَمُؤْمِنَةٍ فَيَبْقَى كُلُّ مَنْ كَانَ يَسْجُدُ فِي الدُّنْيَا رِيَاءً وَسُمْعَةً فَيَذْهَبُ لِيَسْجُدَ فَيَعُودُ ظَهْرُهُ طَبَقًا وَاحِدًا

"په كومه ورځ چه الله تعالى دَ خپل ساق(پنډئ) تجلى ښكاره اوفرمائى" بعضو حضراتو

...بقيه ازحاشيه گذشته] وصفة نعيمها واهلها باب النار يدخلها لجبارون رقم الحديث ۲۸۵۳:واخرجه النسائى فى السنن الكبرى فى التفسير باب قوله تعالى :عتل بعدذلک زنيم رقم الحديث ۱۱۶۱۵ :۱/۱۱۶۱۵ واخرجه الترمذى فى صفة النار باب ۱۳رقم الحديث ۲۶۰۵ واخرجه ابن ماجة فى الزهد باب من لايؤبه له :رقم الحديث-۴۱۱۶ :

(۱) المفردات للراغب۲۱۵:ومشاهدالانصاف على شواهد الكشاف-۴/۵۸۷:

(۲)فتح البارى-۸/۶۶۲:

(۳)تفسير عثمانى ۷۴۹:فائده نمبر-۱۱

(۴) العتل :الفاتک الشديد المنافق عن عبيد بن عمير :العتل :الاكول الشروب القوى الشديد)عمدة القارى (۱۹/۲۵۶:وفى المفردات للراغب۳۲۱:. العتل :الا خذبمجامع الشئ وجره بقهر والعتل :الاكول المنوع الذى يعتل الشئ عتلاً-

وئيلى دى چه دا شدت او سختئى نه كنايه ده او مطلب دا دې چه هغه وخت به ډير سخت تكليف ده او ګران وى (١) علامه ابوبكر فرمائى دې نه هغه فوائد او الطاف مرا دى چه دَ الله تعالى دَ طرف نه به بنديګانوته باربار حاصليږى. ليكن څنګه چه اول اووئيلې شو چه روايت دَ متشابهاتونه دې او په دې سلسله كښې تسليم او تفويض احوط او احسن دې ، علامه شبير احمد عثمانى رحمه الله ليكى: " دَ دې قصه په حديث شيخين كښې داسې راغلې ده چه الله تعالى به دَ قيامت په ميدان كښې خپله پنډئى ښكاره كړى، ساق پنډئې ته وائى او دا يو خاص صفت او حقيقت دې، صفات او حقائق الهيه نه دې كوم ته چه دَ يوخاص مناسبت سره ساق فرمائيلې شوې دې لكه چه په قرآن پاك كښې دَ يد او وجه لفظ راغلې دې، دا دَ مفهوماتو او متشابهاتونه بللې شى په دې باندې هم په دې شان سره بلاكيف ايمان ساتل پكار دى لكه چه دَ الله تعالى په ذات، وجود، حيات او سمع او بصر وغيره باندې ايمان ساتلې شى.

هم په دې حديث كښې دى چه دا تجلى ليدلوسره به ټول مؤمنان سرى او ښځې په سجده پريوزى مګر كوم سړى چه به په رياسره سجده كوله دَ هغه ملا به نه ګكيږى دَ تختې په شان به شى، اوچه كله دَ ريا او نفاق خاوندان په سجده باندې قادر نشى نو دَ كفارو په دې باندې نه قادركيدل په طريقه اولى معلوم شو. دا هر څه به په محشر په دې وجه كولې شى چه مؤمن او كافر، مخلص او منافق په صفا توګه معلوم شى اودَ هر يو دننه حالت څنګه چه وو ښكاره نه شى. (٢)

## [٣٩٥] باب: تفسير سُورَةُ الْحَاقَّةِ

قَالَ ابْنُ جُبَيْرٍ عِيشَةٍ رَاضِيَةٍ يُرِيدُ فِيهَا الرِّضَا الْقَاضِيَةَ الْمَوْتَةَ الْأُولَى الَّتِي مُتُّهَا لَمْ أُحْيَ بَعْدَهَا مِنْ أَحَدٍ عَنْهُ حَاجِزِينَ أَحَدٌ يَكُونُ لِلْجَمْعِ وَلِلْوَاحِدِ وَقَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ الْوَتِينَ نِيَاطُ الْقَلْبِ قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ طَغَى كَثُرَ وَيُقَالُ بِالطَّاغِيَةِ بِطُغْيَانِهِمْ وَيُقَالُ طَغَتْ عَلَى الْخُزَّانِ كَمَا طَغَى الْمَاءُ عَلَى قَوْمِ نُوحٍ

(غِسْلِينَ) كُلُّ شَيْءٍ غَسَلْتَهُ فَخَرَجَ مِنْهُ شَيْءٌ فَهُوَ غِسْلِينَ، فِعْلِينَ مِنَ الْغَسْلِ مِنَ الْجُرْحِ وَالدَّبَرِ. أَعْجَازُ نَخْلٍ) أُصُولُهَا) بَقِيَّةٍ.

**دَ كلماتو تشريح:**

**قوله:** عِيشَةٍ رَاضِيَةٍ: يُرِيدُ فِيهَا الرِّضَا : آيت مبارك كښې دى (فَهُوَ فِي عِيشَةٍ رَّاضِيَةٍ) غرض هغوى به په خوښ كړيشوى عيش كښې وى، فرمائى چه په دې آيت كښې (عِيشَةٍ رَّاضِيَةٍ) نه مراد داسې ژوندې كوم كښې چه رضا وى چونكه (رَّاضِيَةٍ) دَ عيش صفت نشى جوړيدې

(١) فتح البارى ٨/٦٦٤:وعمدة القارى-١٩/٢٥٧:

(٢) تفسيرعثمانى ٧٥٠:فائده نمبر-٤

بلکه دا دَ عیش دَ خاوند صفت دې دَ دې وجې (عِيشَةٍ رَّاضِيَةٍ) نه مراد دا دې چه هغه به په دې ژوند کښې راضی وی.

**قوله: الْقَاضِيَةَ: الْمَوْتَةَ الْأُولَى الَّتِي مُتُّهَا: لَمْ أُحْيَ بَعْدَهَا:** (يٰلَيْتَهَا كَانَتِ الْقَاضِيَةَ) الموتة الاولى التی متها" دا د (يٰلَيْتَهَا) دَ ضمیر تفسیر دې او "لم احی بعدها" "القاضية" تفسیر دې. یعنی هغه مرګ چه اول راغلې وو افسوس چه هم په هغې سره فیصله شوې وه دینه پس ئی چه زه وې ژوندې کړې.

**قوله: فَمَا مِنكُم مِّنْ أَحَدٍ عَنْهُ حَاجِزِينَ:** احد: دَ واحد او جمع دواړو دَ پاره استعمالیږی، مطلب دا دې که په محمد ﷺ باندې دَ الله تعالی دَ طرف نه څه عتاب راغلو نوتاسو ټول په هغه منع کولې نشئی.

**تنبيه:** غلام احمد قادیانی دَ دینه استدلال کوی که چرې زه هم (وَلَوْ تَقَوَّلَ عَلَيْنَا بَعْضَ الْأَقَاوِيلِ) مطابق په الله تعالی باندې الزام او بهتان لګونکې یم نو ماته سزا ملاویدل پکار وو حالانکه ماته سزا ملاؤ نشوه. دَ دې جواب دا دې چه دَ الله تعالی مذکوره ارشاد دَ انبیاء او صادقین باره کښې دې دَ کذابین متعلق نه دې، دروغژن او مفتری ته خو وخت ورکولې شی په دې وجه دَ دې استدلال دینه صحیح نه دې.

**قوله: وَقَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ: الْوَتِينَ نِيَاطُ الْقَلْبِ:** (ثُمَّ لَقَطَعْنَا مِنْهُ الْوَتِينَ) وتین دَ زړه رګ ته وائی د کوم په پریکیدوسره چه مرګ واقع کیږی.

**قوله: قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ: طَغَى: كَثُرَ، وَيُقَالُ: بِالطَّاغِيَةِ: بِطُغْيَانِهِمْ:** (إِنَّا لَمَّا طَغَا الْمَاءُ حَمَلْنَاكُمْ فِي الْجَارِيَةِ) معنی ده چه کله اوبه ډیرې زیاتې شی، دوئم آیت کښې (فَأَمَّا ثَمُودُ فَأُهْلِكُوا بِالطَّاغِيَةِ) معنی طغیان او سرکشی ده، وائی چه "طغت على الخزان كما طغى الماء على قوم نوح" هغه هوا په فرښتوباندې زیاته شوه لکه چه په قوم نوح باندې اوبه زیاتې شوې وې. الخزان: هغه فرښتوته وائی چه دَ هوا چلولو باندې ماموره دی. خاء په پیش سره جمع او زبرسره مفرد دې. دلته دواړه مرادکیدیشی. علامه عینی رحمه الله فرمائی دا دَ خازن جمع ده.[1]

## [۳۹۶] باب: تفسیر سورة المعارج "سال سائل"

الْفَصِيلَةُ أَصْغَرُ آبَائِهِ، الْقُرْبَى إِلَيْهِ يَنْتَمِي مَنِ انْتَمَى. (لِلشَّوَى) الْيَدَانِ وَالرِّجْلَانِ وَالْأَطْرَافُ وَجِلْدَةُ الرَّأْسِ يُقَالُ لَهَا شَوَاةٌ، وَمَا كَانَ غَيْرَ مَقْتَلٍ فَهُوَ شَوًى، وَالْعِزُونَ الْجَمَاعَاتُ، وَوَاحِدُهَا عِزَةٌ. يُوفِضُونَ الايفاض الاسراع

[1] قال العینی فی العمدة ۱۹/۲۵۹: وهوجمع خازن، وللریح خزان الاترسلهاالابمقدار-

**قوله: الفصیلة: اصغر آبائه القربی، الیه ینتمي من انتمی:** ﴿وَفَصِيلَتِهِ الَّتِي تُؤْوِيهِ﴾ مجرم به خواهش کوی چه د قیامت د ورځې د عذاب په عوض خپل خاندان په کوم کښې چه هغه اوسیدلو په فدیه کښې ورکړي او ځان خلاص کړي د نیکه نه چه کوم اولاد شروع کیږي هغې ته فصیله وائی اود نیکه نه بره چه د خاندان کومه سلسله وی هغې ته شعب وائی نو دلته هم دغه اوفرمائیلې شوچه فصیله قریبی نیکونوکښې د ټولونه نزدې ته وائی د کوم طرف ته چه د سړی نسبت کیږي.

**قوله: کلا انها لظی نزاعة للشوی:** "هیڅ کله هم نه بیشکه هغه سورکړیشوې اُوردې د اړخونواو د سرځرمن رابنکونکې" حضرت شیخ الهند رحمه الله ترجمه کړینده "اُور دې اِینه رابنکونکې" فرمائی چه دواړه لاسونه، دواړه پښې، د بدن اړخونه او د سرځرمن ته شواة وائی اود بدن هره هغه حصه په کوم چه ګذار واقع کیږي یاد کوم په پریکیدو چه مرګ نه واقع کیږي هغې ته شوی وائی.

**قوله: والعزون: الحلق، والجماعات. وواحدها: عزة:** ﴿عَنِ الْيَمِينِ وَعَنِ الشِّمَالِ عِزِينَ﴾ عزة جمع ده ډلو او حلقوته وائی یعنی دا کافرانو ستا ښی او ګس طرف ته ډلې ډلې راځی.

## [۳۹۷] باب: تفسیر سورة نوح "انا ارسلنا"

طَوْرًا كَذَا وَطَوْرًا كَذَا، يُقَالُ عَدَا طَوْرَهُ . أَي قَدْرَهُ، وَالْكُبَّارُ أَشَدُّ مِنَ الْكُبَارِ، وَكَذَلِكَ جُمَّالٌ وَجَمِيلٌ، لأَنَّهَا أَشَدُّ مُبَالَغَةً، وَكُبَّارٌ الْكَبِيرُ، وَكُبَارًا أَيْضًا بِالتَّخْفِيفِ، وَالْعَرَبُ تَقُولُ رَجُلٌ حُسَّانٌ وَجُمَّالٌ وَحُسَانٌ مُخَفَّفٌ وَجُمَالٌ مُخَفَّفٌ. (دَيَّارًا) مِنْ دَوْرٍ وَلَكِنَّهُ فَيْعَالٌ مِنَ الدَّوَرَانِ كَمَا قَرَأَ عُمَرُ الْحَيُّ الْقَيَّامُ. وَهِيَ مِنْ قُمْتُ. وَقَالَ غَيْرُهُ دَيَّارًا أَحَدًا. (تَبَارًا) هَلاَكًا. وَقَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ رضي الله عنهما مِدْرَارًا (يَتْبَعُ بَعْضُهَا بَعْضًا). (وَقَارًا) عَظَمَةً.

**قوله: اطوارا: طورا کذا، وطورا کذا:** ﴿وَقَدْ خَلَقَكُمْ أَطْوَارًا﴾ یعنی یو وخت هغه ووچه انسان د ناپاکه قطرې په شکل کښې ووبیا هغه وینه جوړه شوه، بیا چك شوه، بیا یوه ټکړه شوه او دغه شان تغیرات راتلل تردې چه انسان جوړشو، عرب وائی عداطوره: د خپلې مرتبې نه وړاندې شو.

**قوله: والکبار اشد من الکبار:** ﴿وَمَكَرُوا مَكْرًا كُبَّارًا﴾ کبار د تشدیداو تخفیف دواړو په شان استعمالیږي. د تشدید په صورت کښې مبالغه ډیره وی او همدغه حال د جمال او حسان هم دې دا دواړه الفاظ هم د تشدید او تخفیف د پاره مستعمل دی.

**قوله: دیارا: من دور، ولکنه فیعال من الدوران، کما قرا عمر: الحي القیام:** ﴿وَقَالَ نُوحٌ رَبِّ لَا تَذَرْ عَلَى الْأَرْضِ مِنَ الْكَافِرِينَ دَيَّارًا﴾ امام بخاری رحمه الله فرمائی چه دیار د دور نه مشتق دې لیکن داد "فَيْعَال" په وزن دې "فعّال" په وزن نه دې ګنی نو "دوّار" به وو. په اصل کښې "دَیْوار" وو، واؤ په یاء سره بدل کړېشو نو ادغام اوشو دا بالکل هم داسې ده لکه حضرت عمر رضي الله عنه

دَ الحي القيوم په ځای الحي القيام ونيلي دي هغه هم دَ قمت نه ماخوذ دي ليکن هغه هم دَ فعّال په وزن نه دي بلکه دَ فيعال په وزن دي چه په اصل کښې قيوام وودَ هغې نه قيّام جوړ کړلو.

## [۳۹۸] بَاب وَلَا تَذَرُنَّ وَدًّا وَلَا سُوَاعًا وَلَا يَغُوثَ وَيَعُوقَ

[۴۶۳۶] (۱) حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ مُوسَى أَخْبَرَنَا هِشَامٌ عَنْ ابْنِ جُرَيْجٍ وَقَالَ عَطَاءٌ عَنْ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا صَارَتْ الْأَوْثَانُ الَّتِي كَانَتْ فِي قَوْمِ نُوحٍ فِي الْعَرَبِ بَعْدُ أَمَّا وَدٌّ كَانَتْ لِكَلْبٍ بِدَوْمَةِ الْجَنْدَلِ وَأَمَّا سُوَاعٌ كَانَتْ لِهُذَيْلٍ وَأَمَّا يَغُوثُ فَكَانَتْ لِمُرَادٍ ثُمَّ لِبَنِي غُطَيْفٍ بِالْجُوفِ عِنْدَ سَبَإٍ وَأَمَّا يَعُوقُ فَكَانَتْ لِهَمْدَانَ وَأَمَّا نَسْرٌ فَكَانَتْ لِحِمْيَرَ لِآلِ ذِي الْكَلَاعِ أَسْمَاءُ رِجَالٍ صَالِحِينَ مِنْ قَوْمِ نُوحٍ فَلَمَّا هَلَكُوا أَوْحَى الشَّيْطَانُ إِلَى قَوْمِهِمْ أَنْ انْصِبُوا إِلَى مَجَالِسِهِمْ الَّتِي كَانُوا يَجْلِسُونَ أَنْصَابًا وَسَمُّوهَا بِأَسْمَائِهِمْ فَفَعَلُوا فَلَمْ تُعْبَدْ حَتَّى إِذَا هَلَكَ أُولَئِكَ وَتَنَسَّخَ الْعِلْمُ عُبِدَتْ

حضرت ابن عباس رضي الله عنهما نه روايت دي چه دَ نوح عليه السلام په قوم کښې دَ کوموبتانوعبادت کيدلو روستو بيا هغه په عربوکښې راغله. "ودّ" دَ قبيله کلب بت وو او دومة الجندل کښې وو، دَ دې متعلق داعقيده وه که دَ دوو زړونوپه مينځ کښې دښمني پيداشوی وی اواوس په دې کښې محبت پيداکول وی نو چه ده ته درخواست اوکړې شي نو مات شوی زړونه يوځای شي. "سُوَاع" دَ قبيله هذيل بت وو دَ هرمقصددَ حاصلولودَپاره دَ ده طرف ته رجوع کولې شوه. "يغوث" دَ بنومراد بت وو دې نه پس دا بيا دَ بني غُطيف بت جوړشو او بني غُطيف په مقام جوف کښې اوسيدل چه سبا سره نزدې واقع دې. "يعوق" دَ بني همدان بت وواوده ته به په دښمن باندې دَ رعب اچولودَپاره درخواست کيدلو. "نَسْر" ګدهـ (دَ ټپوس په شان يومرداره خوړونکې مرغئي) په شکل جوړشوې بت وو آلِ ذِي الْكَلَاعِ يعني قبيله حِمير به دَ دې عبادت کولو. دا ټول دَ حضرت نوح عليه السلام دَ قوم دَ نيکانوخلقو نومونه وو بيا چه کله دا حضرات وفات شو نو شيطان دَ دې خلقو په زړونوکښې دا خبره واچوله چه په کوموځايونوکښې به هغه بزرګانو ناسته پاسته کوله هلته دَ دوی په شان بتان جوړ کړئی اودَ دې بتانونومونه هم دَ دوی په نومونوکيږدئی، چه دوی ته ګورئی نو دَ دوی کارنامې به درياديږی اوبيا به تاسو دَ دوی تابعداری کولې شئی که تاسو دَ دوی بتان جوړنه کړل او اومونه ساتل نو دوی به هير کړئی او په نيغه لار دَ تللو دَ پاره به تاسو سره هيڅ څيز پاتې نشي. خلقو هم داسې اوکړل، کومو خلقو چه بتان سازکړی وودَ هغوی عقيدې صحيح وې کله چه دَ هغوی وفات اوشو او دَ هغوی په اولاد کښې علم باقی پاتې نشو نودَ دې بتانو عبادت کول شروع شو.

(۱) وهذاالحديث لم يخرجه احد من اصحاب السنة سوى البخاري، انظرجامع الاصول-۲/۴۱۳:

**د روايت باب په سند باندې اعتراض:** روايت باب سند د امام بخاري رحمه الله په هغه سندونو كښې دې كوم باندې چه اعتراضونه شوى دي، اعتراض دا دې چه په سند كښې ابن جريج عطاء رحمه الله نه روايت كوى عطاء دوه دى، يو عطاء خراسانى او بل عطاء بن ابى رباح، عطاء بن ابى رباح د امام بخارى رحمه الله په رجال كښې دې ليكن عطاء خراسانى د هغوى په رجال كښې نه دې چه هغه د دوى په شرائطو پوره نه دې. دلته امام بخارى رحمه الله نه مغالطه شويده اوهغوى په سند كښې عطاء لره عطاء بن ابى رباح گڼړلې او د هغه نه ئې روايت اخستې دې حالانكه دا عطاء خراسانى دې، عطاء بن ابى رباح نه دې. دوئمه دا چه ابن جريج دا روايت د عطاء خراسانى نه نيغ په نيغه نه دې كړې بلكه جريج د هغه كتاب نه روايت اخستې دې چه د عطاء خراسانى وو او دهغه د خوى عثمان سره وو(۱) د عطاء خراسانى روايت د بخارى په شرط نه پوره كيږى په دې وجه امام بخارى له دلته ذكر نه وو كول پكار، ليكن امام ته د دې خبرې هډو احساس نه دې شوې. حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى چه زما نيزد قوى خبره دا ده مذكوره روايت عطاء خراسانى او عطاء بن ابى رباح دواړو روايت كړيدې او دلته د بخارى په روايت كښې عطاء بن ابى رباح مراد دې(۲) ليكن حافظ ابن حجر رحمه الله "مقدمه فتح البارى" كښې پخپله دا اقرار كړيدې چه دا وينا چه مذكوره روايت د عطاء خراسانى او عطاء بن ابى رباح د دواړو په روايت سره ابن جريج سره وو او عطاء ابن ابى رباح د روايت قصد كړيدې يو اقناعى جواب دې او تسلى بخش خبره نه ده، هلته كښې هغوى فرمائى "وهذا عندى من المواضع العقيمة عن الجواب السديد، ولابد للجواد من كبوة" (۳) - يعنى دا اعتراض په بخارى باندې داسې دې چه د دې صحيح جواب ممكن نه دې او بنه اس هم ټوكرخورى.

باقى پاتې شوه دا خبره چه په دې باندې څه دليل ذى چه مذكوره روايت كښې د عطاء نه عطاء خراسانى مراد دې نود دې دليل دا دې چه مذكوره حديث عبدالرزاق خپل تفسير كښې د ابن جريج نه نقل كړيدې او په دې كښې تصريح ده، "اخبرنى عطاء الخراسانى عن ابن عباس" (۴) دغه شان ابوالسعود فرمائى "ثبت هذا الحديث فى تفسير ابن جريج عن عطاء الخراسانى" (۵) على بن مدينى د دې نور وضاحت كولو سره فرمائى چه ابن جريج به كله تفسيرى روايات نقل كول نو ونيل به ئى "عن عطاء الخراسانى، عن ابن عباس" وړاق هرځائې "عطاء" سره "خراسانى" ليكلو نه سترې شو نو صرف "عطاء" ئې ليكلو د څه په وجه چه بعضې خلقوته روستو دا شك

---

(۱) فتح البارى ۸/۶۶۷ والهدى السارى-۳۷۵:

(۲) فتح البارى-۸/۶۶۷:

(۳) الهداى للسارى ۳۷۶:الفصل الثامن فى سياق الاحاديث التى انتقدها عليه ابوالحسن الدارقطنى وغيره من النقاد

(۴) فتح البارى-۸/۶۶۷:

(۵) فتح البارى-۸/۶۶۷:

شو چه دَ عطاء نه عطاء بن ابی رباح مراد دي، محمد بن ثور ته هم دا مغالطه لګیدلې ده او هغه عطاء بن ابی رباح مراداخستې دي اوداعطاء خراساني دي(۱) بهرحال محدثينو حضراتو په نيزد دومره خبره متعين ده چه په مذكوره روايت كښې عطاء نه عطاء خراساني مراد دي، دَ هغوی روايت ذكركولوسره په ظاهره امام بخاری رحمه الله ته هم غلط فهمي شويده، والله اعلم.

## [۳۹۹] باب: تفسير سورة الجن "قُلْ أُوحِيَ إِلَيَّ"

قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ لِبَدًا أَعْوَانًا

[۴۶۳۷] حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ حَدَّثَنَا أَبُو عَوَانَةَ عَنْ أَبِي بِشْرٍ عَنْ سَعِيدِ بْنِ جُبَيْرٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ انْطَلَقَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي طَائِفَةٍ مِنْ أَصْحَابِهِ عَامِدِينَ إِلَى سُوقِ عُكَاظٍ وَقَدْ حِيلَ بَيْنَ الشَّيَاطِينِ وَبَيْنَ خَبَرِ السَّمَاءِ وَأُرْسِلَتْ عَلَيْهِمُ الشُّهُبُ فَرَجَعَتِ الشَّيَاطِينُ فَقَالُوا مَا لَكُمْ فَقَالُوا حِيلَ بَيْنَنَا وَبَيْنَ خَبَرِ السَّمَاءِ وَأُرْسِلَتْ عَلَيْنَا الشُّهُبُ قَالَ مَا حَالَ بَيْنَكُمْ وَبَيْنَ خَبَرِ السَّمَاءِ إِلَّا مَا حَدَثَ فَاضْرِبُوا مَشَارِقَ الْأَرْضِ وَمَغَارِبَهَا فَانْظُرُوا مَا هَذَا الْأَمْرُ الَّذِي حَدَثَ فَانْطَلَقُوا فَضَرَبُوا مَشَارِقَ الْأَرْضِ وَمَغَارِبَهَا يَنْظُرُونَ مَا هَذَا الْأَمْرُ الَّذِي حَالَ بَيْنَهُمْ وَبَيْنَ خَبَرِ السَّمَاءِ قَالَ فَانْطَلَقَ الَّذِينَ تَوَجَّهُوا نَحْوَ تِهَامَةَ إِلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِنَخْلَةَ وَهُوَ عَامِدٌ إِلَى سُوقِ عُكَاظٍ وَهُوَ يُصَلِّي بِأَصْحَابِهِ صَلَاةَ الْفَجْرِ فَلَمَّا سَمِعُوا الْقُرْآنَ تَسَمَّعُوا لَهُ فَقَالُوا هَذَا الَّذِي حَالَ بَيْنَكُمْ وَبَيْنَ خَبَرِ السَّمَاءِ فَهُنَالِكَ رَجَعُوا إِلَى قَوْمِهِمْ فَقَالُوا يَا قَوْمَنَا إِنَّا سَمِعْنَا قُرْآنًا عَجَبًا يَهْدِي إِلَى الرُّشْدِ فَآمَنَّا بِهِ وَلَنْ نُشْرِكَ بِرَبِّنَا أَحَدًا وَأَنْزَلَ اللَّهُ عَزَّ وَجَلَّ عَلَى نَبِيِّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قُلْ أُوحِيَ إِلَيَّ أَنَّهُ اسْتَمَعَ نَفَرٌ مِنَ الْجِنِّ وَإِنَّمَا أُوحِيَ إِلَيْهِ قَوْلُ الْجِنِّ

### دَ كلماتو تشريح:

**قوله:** وقال الحسن: جد ربنا: غنا ربنا، وقال عكرمة، جلال ربنا، وقال ابراهيم، امر ربنا: آيت مبارك كښې دی ﴿وَأَنَّهُ تَعَالَى جَدُّ رَبِّنَا مَا اتَّخَذَ صَاحِبَةً وَلَا وَلَدًا﴾ اوزمونږ دَ پروردګار ډيرلوئ شان دي هغه نه خوك خپله بی بی جوړه كړې او نه اولاد، حضرت حسن بصری رحمه الله فرمائی چه دَ جدربنا نه دَ الله جل شانه غنا او مالداری مراد ده، او حضرت عكرمه رحمه الله فرمائی دي نه دَ الله تعالی جلال مراد دي او حضرت ابراهيم رحمه الله فرمائی چه جد ربنا نه دَ رب حكم مراد دي. دَ دې لفظ دا تشريح صرف هندوستاني نسخو كښې ده.

**قوله:** قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ لِبَدًا أَعْوَانًا: آيت مبارك كښې دی ﴿وَأَنَّهُ لَمَّا قَامَ عَبْدُ اللَّهِ يَدْعُوهُ كَادُوا يَكُونُونَ عَلَيْهِ لِبَدًا﴾ اوچه كله دَ الله تعالی خاص بنده (رسول الله ﷺ) دَ الله تعالی عبادت ته

---

(۱) فتح الباری-۸/۶۶۷:

اودریږی نو دا (کافر) خلق په دې بنده باندې ګنړه لګوی(یعنی د تعجب او دښمنئ د وجه هر سړې داسې ګوری لکه چه اوس حمله کونکي دی) علامه شبیر احمد عثمانی رحمه الله فرمائی: "یعنی چه کله هغوی ﷺ اودریږی او قرآن لولی نو خلق ډلې ډلې په هغه باندې راپریوزی، مؤمنان خود شوق او رغبت نه د قرآن اوریدو په خاطر او کافران د عداوت او دښمنئ په وجه په هغوی ﷺ باندې ګنړه کولو د پاره" امام بخاری رحمه الله فرمائی چه په آیت مبارک کښې د لبدا نه اعوان وانصار مراد دی یعنی امداد او تعاون کونکی.

**قوله: انْطَلَقَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي طَائِفَةٍ مِنْ أَصْحَابِهِ:** ابن اسحاق او ابن سعد په نیزد دا واقعه په لسم کال د نبوت د ذی قعده په میاشت کښې پیښه شوې وه کله چه حضور ﷺ د طائف طرف ته وتلې وو او بیا د هغه ځائ نه د هغوی ﷺ واپسی اوشوه.(۱)

**تعارض روایات او د هغې حل:** لیکن په دې باندې اشکال دا کیږی چه دلته په روایت کښې دی چه هغوی ﷺ سره د صحابه کرامو ډله وه، او د ابن اسحاق په روایت کښې دی چه کله هغوی ﷺ طائف ته وتلې وی نو د حضرت زیدبن حارثه رضی الله عنه نه علاوه هغوی ﷺ سره بل هیڅ څوك نه وو (۲) حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی چه دواړه روایتونه داسې جمع کولې شی چه په تلو کښې ورسره د زیدبن حارثه رضی الله عنه نه علاوه څوك نه وو خو په واپس راتلو کښې صحابه کرام هغوی ﷺ سره ملاؤ شوې وو دلته هم د دې ذکر دې(۳) او په نورو واقعاتو هم دا محمول کولې شی.

**د باب په روایت اشکال او د هغې جواب:** دلته په روایت کښې دی چه شیطانان به اول آسمانونوته تلل، لیکن د رسول الله ﷺ د بعثت نه پس د هغوی آسمانونوته تللوباندې پابندی اولګیده چه که هغوی هلته د تلو کوشش کوی نو شهاب ثاقب په ذریعه ویشتلې شی. په دې باندې دا اشکال کیږی چه د شهاب ثاقب تذکره خو د جاهلیت په اشعاروکښې هم راځی د څه نه چه معلومیږی چه د ستورو داسې ماتیدل او پریوتل د جاهلیت په زمانه کښې هم وو، نو دغه شان دا عهدنبوی سره خاص کول څه معنی ده؟ د امام مسلم رحمه الله د روایت نه هم دغه معلومیږی چه د هغوی ﷺ د بعثت نه وړاندې هم ارسال شهب شوی وو.(۴)

① د دې جواب امام زهری رحمه الله ورکړیدې، چه د بعثت نبوی نه اول هم دا سلسله وه لیکن په دې کښې سختی او شدت نه وو د بعثت نه پس په دې کښې بیا شدت راغلو(۵)

---

(۱) فتح الباری-۸/۶۷۰:

(۲) فتح الباری-۸/۶۷۰:

(۳) فتح الباری-۸/۶۷۰:

(۴) فتح الباری ۸/۶۷۲:والروض الانف ۱/۱۳۵:فصل فی الکهانة-

(۵) فتح الباری ۸/۶۷۲:والروض الانف ۱/۱۳۵:فصل فی الکهانة-

⑦ علامه قرطبی رحمه الله فرمائیلی دی چه د بعثت نه وړاندې ارسال شهاب سلسله مستقل نه وه کله به کیدله او کله نه، د بعثت نه روستو دا مستقل شوه[1]

⑧ وهب بن منبه نه یو روایت نقل کړیدې کوم سره چه په ټولو اخبارو کښې تطبیق کیږی او هغه دا چه د حضرت آدم علیه السلام د زمانې نه واخله تر حضرت عیسی علیه السلام زمانې پورې په شیطانانو هیڅ پابندی نه وه ، آسمانونوته د دوی ته په ټلو کښې مطلقاً آزادی وه، د حضرت عیسی علیه السلام آسمان ته پورته کیدو نه پس د هغوی پورته خلورو آسمانونو ته رسیدل موقوف شو او د لاندې دریو آسمانونوپورې د هغوی د تګ سلسله باقی وه، کله چه د نبی کریم ﷺ بعثت اوشو نوپه لاندینو دریو آسمانونو باندې تلل هم موقوف کړیشو.[2]

**قوله: فَانْطَلَقَ الَّذِينَ تَوَجَّهُوا نَحْوَ تِهَامَةَ:** سعیدبن جبیر د حضرت ابن عباس رضی الله عنهما نه روایت نقل کړیدې چه د پیریانودا وفد په نهه کسانو باندې مشتمل وو، د عکرمه په روایت کښې اووه وو او د "نصیبین" وو، او په بعضې روایاتوکښې دی چه خلور نصیبین وو او درې حران وو د هغوی نومونه دا وو. "حسا،نسا،شاصر،ماضر،الادرس،وردان، احقب" ابن درید پنځه نومونه ذکر کړی دی شاصر، ماضر، منشی، یاشی او احقب په بعض روایاتوکښې دی چه دا د موصل وو اود هغوی شمیر دولس زره وو[3] تعداد او واقعات تسلیم کولو سره جمع بین الروایات کیږی.

**قوله: وَإِنَّمَا أُوحِيَ إِلَيْهِ قَوْلُ الْجِنِّ:** دا د حضرت عبدالله بن عباس رضی الله عنهما قول دې دینه دا معلومیږی چه جنات سره د نبی کریم ﷺ ملاقات نه دې شوې بلکه د وحې په ذریعه د هغوی قول نبی کریم ﷺ ته خودلې شویدې، خوظاهره ده چه په دې موقع د جنات سره د هغوی ﷺ ملاقات نه وی شوې نو په دې سره دا نه لازمیږی چه په بله موقع باندې به هم ملاقات نه وی شوې، خکه چه د لیلة الجن واقعه یو ځل نه بلکه څو ځل پیښه شویده، دې وخت کښې هغوی د حال د تحقیق د پاره راغلی وو او سبب معلومولو سره لاړل او ملاقات اونه شو. دینه پس په حضور ﷺ باندې ایمان راوړو او د اسلامی تعلیماتو د زده کړې د پاره د هغوی ﷺ په خدمت کښې حاضر شو او ملاقات اوشو.[4]

## [۴۰۰] باب: تفسیر سُورَةُ الْمُزَّمِّلِ

وَقَالَ مُجَاهِدٌ وَتَبَتَّلْ أَخْلِصْ وَقَالَ الْحَسَنُ أَنْكَالًا قُيُودًا مُنْفَطِرٌ بِهِ مُثْقَلَةٌ بِهِ وَقَالَ ابْنُ

---

[1] فتح الباری ۸/۶۷۲:وتفسیر قرطبی ۱۹/۱۳:سورة الجن-

[2] فتح الباری ۸/۶۷۲:والروض الانف ۱/۱۳۵:فصل فی الکهانة-

[3] فتح الباری-۸/۶۷۴:

[4] د تفصیل د پاره الجامع الاحکام القران-۵-۱۹/۱:

عَبَّاسٍ كَثِيبًا مَهِيلًا الرَّمْلُ السَّائِلُ وَبِيلًا شَدِيدًا

**قوله:** وَقَالَ مُجَاهِدٌ: وَتَبَتَّلْ: أَخْلِصْ :آيت كښې دى ﴿وَاذْكُرِ اسْمَ رَبِّكَ وَتَبَتَّلْ إِلَيْهِ تَبْتِيلًا﴾ اود خپل رب نوم يادوه اود ټولونه تعلق ختم كړه او د هغه طرف ته متوجه اوسيږه، حضرت مجاهد رحمه الله فرمائى د تبتل معنى ده اخلص يعنى خالص هم د هغه شه.

**قوله:** وَقَالَ الْحَسَنُ: أَنكَالًا: قُيُودًا :آيت كښې دى ﴿إِنَّ لَدَيْنَا أَنكَالًا وَجَحِيمًا﴾ مونږ سره بيړنى او دوزخ دي.حضرت حسن بصرى رحمه الله فرمائى انكال نه بيړنى مراددى.

**قوله:** مُنفَطِرٌ بِهِ مُثْقَلَةٌ بِهِ: ﴿يَوْمًا يَجْعَلُ الْوِلْدَانَ شِيبًا السَّمَاءُ مُنفَطِرٌ بِهِ﴾ فرمائى چه "منفطربه" معنى ده "اسمان به د هغې د ويرې دروند او ثقيل شي"

**قوله:** وَقَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ: كَثِيبًا مَهِيلًا: الرَّمْلُ السَّائِلُ :آيت كښې دى ﴿وَكَانَتِ الْجِبَالُ كَثِيبًا مَهِيلًا﴾ او غرونه(به ذره ذره شي) اود الوتونكى ګردپه شان به شي. حضرت ابن عباس رضي الله عنهما فرمائى چه د ﴿كَثِيبًا مَهِيلًا﴾ معنى ده،ريګ روان، بهيدونكې شګه.

**قوله:** وَبِيلًا شَدِيدًا: آيت كښې دى ﴿فَأَخَذْنَاهُ أَخْذًا وَبِيلًا﴾ نومونږ هغوى په سختو نيولو سره اونيول، فرمائى چه وبيلاً معنى ده شديداً يعنى سخت.

## [۴۰۱] باب: تفسير سُورَةُ الْمُدَّثِّرِ

قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ عَسِيرٌ شَدِيدٌ قَسْوَرَةٌ رِكْزُ النَّاسِ وَأَصْوَاتُهُمْ وَكُلُّ شَدِيدٍ قَسْوَرَةٌ وَقَالَ أَبُو هُرَيْرَةَ الْقَسْوَرَةُ قَسْوَرٌ الْأَسَدُ الرِّكْزُ الصَّوْتُ مُسْتَنْفِرَةٌ نَافِرَةٌ مَذْعُورَةٌ

**قوله:** قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ: عَسِيرٌ: شَدِيدٌ :آيت كښې دى ﴿فَذَلِكَ يَوْمَئِذٍ يَوْمٌ عَسِيرٌ﴾ پس هغه ورځ (كافرانوباندې)سخته وى.حضرت ابن عباس رضي الله عنهما فرمائى چه عسيرمعنى ده شديد ،سخت.

**قوله:** فرت من قَسْوَرَةٍ:د قسورة درې معنى بيان كړيشوى دى يود خلقو آوازونه او د هغوى كشار. دونمه معنى زمرې او دريمه معنى هريو سخت څيز.

**قوله:** كَأَنَّهُمْ حُمُرٌ مُسْتَنْفِرَةٌ: مُسْتَنفِرَة معنى ده تختيدونكى ويريدلى.

[۴۶۳۸] حَدَّثَنَا يَحْيَى حَدَّثَنَا وَكِيعٌ عَنْ عَلِيِّ بْنِ الْمُبَارَكِ عَنْ يَحْيَى بْنِ أَبِي كَثِيرٍ سَأَلْتُ أَبَا سَلَمَةَ بْنَ عَبْدِ الرَّحْمَنِ عَنْ أَوَّلِ مَا نَزَلَ مِنَ الْقُرْآنِ قَالَ يَا أَيُّهَا الْمُدَّثِّرُ قُلْتُ يَقُولُونَ اقْرَأْ بِاسْمِ رَبِّكَ الَّذِي خَلَقَ فَقَالَ أَبُو سَلَمَةَ سَأَلْتُ جَابِرَ بْنَ عَبْدِ اللَّهِ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا عَنْ ذَلِكَ وَقُلْتُ لَهُ مِثْلَ الَّذِي قُلْتَ فَقَالَ جَابِرٌ لَا أُحَدِّثُكَ إِلَّا مَا حَدَّثَنَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ جَاوَرْتُ بِحِرَاءٍ فَلَمَّا قَضَيْتُ جِوَارِي هَبَطْتُ فَنُودِيتُ فَنَظَرْتُ عَنْ يَمِينِي فَلَمْ أَرَ شَيْئًا وَنَظَرْتُ عَنْ شِمَالِي فَلَمْ أَرَ شَيْئًا وَنَظَرْتُ أَمَامِي فَلَمْ أَرَ شَيْئًا وَنَظَرْتُ خَلْفِي فَلَمْ أَرَ شَيْئًا فَرَفَعْتُ رَأْسِي فَرَأَيْتُ شَيْئًا فَأَتَيْتُ خَدِيجَةَ فَقُلْتُ دَثِّرُونِي وَصُبُّوا عَلَيَّ مَاءً بَارِدًا قَالَ فَدَثَّرُونِي وَصَبُّوا

عَلَيَّ مَاءً بَارِدًا قَالَ فَنَزَلَتْ يَا أَيُّهَا الْمُدَّثِّرُ قُمْ فَأَنْذِرْ وَرَبَّكَ فَكَبِّرْ

## [۴۰۲] بَاب قُمْ فَأَنْذِرْ

[۴۶۳۹] حَدَّثَنِي مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ مَهْدِيٍّ وَغَيْرُهُ قَالَا حَدَّثَنَا حَرْبُ بْنُ شَدَّادٍ عَنْ يَحْيَى بْنِ أَبِي كَثِيرٍ عَنْ أَبِي سَلَمَةَ عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ جَاوَرْتُ بِحِرَاءٍ مِثْلَ حَدِيثِ عُثْمَانَ بْنِ عُمَرَ عَنْ عَلِيِّ بْنِ الْمُبَارَكِ

## [۴۰۳] بَاب قَوْلِهِ وَرَبَّكَ فَكَبِّرْ

[۴۶۴۰] حَدَّثَنَا إِسْحَاقُ بْنُ مَنْصُورٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ الصَّمَدِ حَدَّثَنَا حَرْبٌ حَدَّثَنَا يَحْيَى قَالَ سَأَلْتُ أَبَا سَلَمَةَ أَيُّ الْقُرْآنِ أُنْزِلَ أَوَّلُ فَقَالَ يَا أَيُّهَا الْمُدَّثِّرُ فَقُلْتُ أُنْبِئْتُ أَنَّهُ اقْرَأْ بِاسْمِ رَبِّكَ الَّذِي خَلَقَ فَقَالَ أَبُو سَلَمَةَ سَأَلْتُ جَابِرَ بْنَ عَبْدِ اللَّهِ أَيُّ الْقُرْآنِ أُنْزِلَ أَوَّلُ فَقَالَ يَا أَيُّهَا الْمُدَّثِّرُ فَقُلْتُ أُنْبِئْتُ أَنَّهُ اقْرَأْ بِاسْمِ رَبِّكَ الَّذِي خَلَقَ فَقَالَ لَا أُخْبِرُكَ إِلَّا بِمَا قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ جَاوَرْتُ فِي حِرَاءٍ فَلَمَّا قَضَيْتُ جِوَارِي هَبَطْتُ فَاسْتَبْطَنْتُ الْوَادِيَ فَنُودِيتُ فَنَظَرْتُ أَمَامِي وَخَلْفِي وَعَنْ يَمِينِي وَعَنْ شِمَالِي فَإِذَا هُوَ جَالِسٌ عَلَى كُرْسِيٍّ بَيْنَ السَّمَاءِ وَالْأَرْضِ فَأَتَيْتُ خَدِيجَةَ فَقُلْتُ دَثِّرُونِي وَصُبُّوا عَلَيَّ مَاءً بَارِدًا وَأُنْزِلَ عَلَيَّ يَا أَيُّهَا الْمُدَّثِّرُ قُمْ فَأَنْذِرْ وَرَبَّكَ فَكَبِّرْ

**دَ ټولونه اول نازل شوی ایاتونه:** دَ قرآن شریف دَ ټولونه اول کوم آیاتونه نازل شوی په دې باره کښې اختلاف دې او خلوره قوله مشهور دی:

① دَ جمهورعلماؤ قول دا دې چه سورة علق رومبنی پنځه آیاتونه دَ ټولونه اول نازل شوی دی لکه چه دَ "بدء الوحی" په روایت کښې دی امام نووی رحمه الله فرمائی "وهذا هوالصواب الذی علیه الجماهیرمن السلف والخلف" (۱)

② دونم قول په حدیث باب کښې حضرت جابر رضی الله عنه اختیار کړیدې چه دَ ټولونه اول سورة مدثر نازل شویدې. دَ حضرت جابر رضی الله عنه شاګرد حضرت ابوسلمه بن عبدالرحمن همدغه رائې ده (۲)

③ دریم قول دا دې چه "بسم الله الرحمن الرحیم" دَ ټولونه اول نازل شوې (۳)- لیکن دا قول درست نه دې ځکه چه حضرت ابن عباس رضی الله عنه نه روایت دې "کان النبی صلی الله علیه وسلم

---

(۱) شرح مسلم للنووی ۱/۸۹: کتاب الایمان باب بدء الوحی الی رسول الله صلی الله علیه وسلم
(۲) لکه چه په روایت باب کښې دی-
(۳) الانقال ۱/۳۳: النوع السابع، معرفة اول ما نزل

لایعرف فصل السورة، حتی تنزل علیه، بسم الله الرحمن الرحیم" (۱) دینه معلومه شوه چه "بسم الله" روستونازل شویده.

③ خلورم قول دا دې چه سورة فاتحه دَ ټولونه اول نازل شوې، علامه زمخشری نقل کړی دی چه دادَ اکثرومفسرینوقول دې (۲) تفسیرسورة العلق- خودَ علامه زمخشری دا خبره صحیح نه ده، بلکه اکثر خو څه چه کثیر هم دَ دې قائل نه دی،دَ دې صرف ابومیسره عمروبن شرجیل قائل دې، دَ هغوی مرسل روایت علامه بیهقی "دلائل النبوة" کښې ذکر دې، په دې کښې دی "فلماخلا، ناداه یامحمد، قل: بسم الله الرحمن الرحیم، الحمدلله رب العالمین، حتی بلغ: ولاالضالین" لیکن امام بیهقی رحمه الله دَ دې روایت متعلق فرمائی"فهذامنقطع" (۳)- مشهور قول اولنی دوه دی او په دې کښې اول قول دَ جمهورو دې چه دَ دونم قول نه راجح دې. یو خودَ دې دَ پاره چه سورة علق په رومبنوپنځو آیاتونوکښې وارد دی چه فرښتې اووئیل "اقراء" هغوی ﷺ اوفرمائیل "ماانابقاری" که دَ سورة مدثردَ آیات نزول شوې وې نو نبی کریم ﷺ به ولې "ماانابقاری" فرمائیل بلکه هغوی ﷺ به زر آیت لوستلې وو(۴)- بل دا چه په سورة اقراء کښې دَ قراءت امردې او په سورة مدثر کښې دَ انداز، اودَ انداز درجه دَ قراءت نه پس ده. اول به قراءت حاصلیږی بیا به دَ هغې مطابق انداز وی(۵)- دریم په دې وجه چه وړاندې باب، وثیابك فطهر کښې حضرت جابر رضی الله عنه په روایت کښې دی "فرفعت راسی، فاذاالملك الذی جاءنی بحراء جالس علی کرسی بین السماء والارض" دینه معلومیږی چه دَ مدثردَ نازلیدلونه اول نبی کریم ﷺ دَ فرښتې سره ملاقات شوې وو (۶) بعض حضراتودا دواړه اقواله راجمع کړی او مختلف توجیهات نې کړی دی:

① اول مانزل علی الاطلاق خودَ سورة علق آیاتونه دی او مدثرته اول مانزل کاملاًخصوصیت حاصل دې.(۷) ② دونمه توجیهه دا شویده چه دَفترت نه پس کله بیا دَ وحی نزول شروع شو نوسورة مدثر نازل شو په دې اعتبارديته اولیت حاصل دې.(۸)

(۱)سنن ابی دواؤدكتاب الصلاة باب من جهربها)ای بالبسملة (رقم-۷۸۸:
(۲)تفسیر کشاف۷۷۵/ ٤:
(۳) دلائل النبوة للبیهقی۱۵۸/۲: باب اول سورة نزلت من القران
(۴)زادالمعاد ۱/۸۵:فصل فی مبعثه واول مانزل علیه
(۵)زادالمعاد ۱/۸۵:فصل فی مبعثه واول مانزل علیه
(۶)زادالمعاد-۱/۸۵:
(۷) الاتقان فی علوم القران، النوع السابع معرفة اول مانزل-۱/۳۲:
(۸)فتح الباری-۸/۶۷۸:

④ دريمه توجيهه دا ده چه اندازسره مقيدشونو دَ تولونه اول سورة مدثر نازل شو.(١)

⑤ څلورمه توجيهه دا شويده چه دَسورة علق دَ آياتونودَ نزول دَ پاره څه سبب پيښ شوي نه دي اودَ سبب دَ پيښيدلونه پس دَ ټولونه اول سورة مدثر نازل شو په دې اعتبارسره ديته اول مانزل اووئيلې شو(٢)

## [٤٠٤] بَاب وَثِيَابَكَ فَطَهِّرْ

[٤٦٤١] حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ بُكَيْرٍ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ عُقَيْلٍ عَنْ ابْنِ شِهَابٍ ح وحَدَّثَنِي عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ أَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ قَالَ الزُّهْرِيُّ فَأَخْبَرَنِي أَبُو سَلَمَةَ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا قَالَ سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ يُحَدِّثُ عَنْ فَتْرَةِ الْوَحْيِ فَقَالَ فِي حَدِيثِهِ فَبَيْنَا أَنَا أَمْشِي إِذْ سَمِعْتُ صَوْتًا مِنْ السَّمَاءِ فَرَفَعْتُ رَأْسِي فَإِذَا الْمَلَكُ الَّذِي جَاءَنِي بِحِرَاءٍ جَالِسٌ عَلَى كُرْسِيٍّ بَيْنَ السَّمَاءِ وَالْأَرْضِ فَجُئِثْتُ مِنْهُ رُعْبًا فَرَجَعْتُ فَقُلْتُ زَمِّلُونِي زَمِّلُونِي فَدَثَّرُونِي فَأَنْزَلَ اللَّهُ تَعَالَى يَا أَيُّهَا الْمُدَّثِّرُ إِلَى وَالرِّجْزَ فَاهْجُرْ قَبْلَ أَنْ تُفْرَضَ الصَّلَاةُ وَهِيَ الْأَوْثَانُ

## [٤٠٥] بَاب قَوْلُهُ وَالرُّجْزَ فَاهْجُرْ يُقَالُ الرِّجْزُ وَالرِّجْسُ الْعَذَابُ

[٤٦٤٢] حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ يُوسُفَ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ عُقَيْلٍ قَالَ ابْنُ شِهَابٍ سَمِعْتُ أَبَا سَلَمَةَ قَالَ أَخْبَرَنِي جَابِرُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ أَنَّهُ سَمِعَ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُحَدِّثُ عَنْ فَتْرَةِ الْوَحْيِ فَبَيْنَا أَنَا أَمْشِي سَمِعْتُ صَوْتًا مِنْ السَّمَاءِ فَرَفَعْتُ بَصَرِي قِبَلَ السَّمَاءِ فَإِذَا الْمَلَكُ الَّذِي جَاءَنِي بِحِرَاءٍ قَاعِدٌ عَلَى كُرْسِيٍّ بَيْنَ السَّمَاءِ وَالْأَرْضِ فَجُئِثْتُ مِنْهُ حَتَّى هَوَيْتُ إِلَى الْأَرْضِ فَجِئْتُ أَهْلِي فَقُلْتُ زَمِّلُونِي زَمِّلُونِي فَزَمَّلُونِي فَأَنْزَلَ اللَّهُ تَعَالَى يَا أَيُّهَا الْمُدَّثِّرُ قُمْ فَأَنْذِرْ إِلَى قَوْلِهِ فَاهْجُرْ قَالَ أَبُو سَلَمَةَ وَالرِّجْزَ الْأَوْثَانَ ثُمَّ حَمِيَ الْوَحْيُ وَتَتَابَعَ

## [٤٠٦] بَاب: تفسير سُورَةُ الْقِيَامَةِ

وَقَوْلُهُ لَا تُحَرِّكْ بِهِ لِسَانَكَ لِتَعْجَلَ بِهِ وَقَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ لِيَفْجُرَ أَمَامَهُ سَوْفَ أَتُوبُ سَوْفَ أَعْمَلُ لَا وَزَرَ لَا حِصْنَ سُدًى هَمَلًا

[٤٦٤٣] حَدَّثَنَا الْحُمَيْدِيُّ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ أَبِي عَائِشَةَ وَكَانَ ثِقَةً عَنْ سَعِيدِ بْنِ جُبَيْرٍ عَنْ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا قَالَ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ

---

(١) فتح الباري-٨/٦٧٨:

(٢) فتح الباري-٨/٦٧٨:

وَسَلَّمَ إِذَا أُنْزِلَ عَلَيْهِ الْوَحْيُ حَرَّكَ بِهِ لِسَانَهُ وَوَصَفَ سُفْيَانُ يُرِيدُ أَنْ يَحْفَظَهُ فَأَنْزَلَ اللّٰهُ لَا تُحَرِّكْ بِهِ لِسَانَكَ لِتَعْجَلَ بِهِ

## [۴۰۷] بَاب إِنَّ عَلَيْنَا جَمْعَهُ وَقُرْآنَهُ

[۴۶۴۴] حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللّٰهِ بْنُ مُوسَى عَنْ إِسْرَائِيلَ عَنْ مُوسَى بْنِ أَبِي عَائِشَةَ أَنَّهُ سَأَلَ سَعِيدَ بْنَ جُبَيْرٍ عَنْ قَوْلِهِ تَعَالَى لَا تُحَرِّكْ بِهِ لِسَانَكَ قَالَ وَقَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ كَانَ يُحَرِّكُ شَفَتَيْهِ إِذَا أُنْزِلَ عَلَيْهِ فَقِيلَ لَهُ لَا تُحَرِّكْ بِهِ لِسَانَكَ يَخْشَى أَنْ يَنْفَلِتَ مِنْهُ إِنَّ عَلَيْنَا جَمْعَهُ وَقُرْآنَهُ أَنْ نَجْمَعَهُ فِي صَدْرِكَ وَقُرْآنَهُ أَنْ تَقْرَأَهُ فَإِذَا قَرَأْنَاهُ يَقُولُ أُنْزِلَ عَلَيْهِ فَاتَّبِعْ قُرْآنَهُ ثُمَّ إِنَّ عَلَيْنَا بَيَانَهُ أَنْ نُبَيِّنَهُ عَلَى لِسَانِكَ

## [۴۰۸] بَاب قَوْلُهُ فَإِذَا قَرَأْنَاهُ فَاتَّبِعْ قُرْآنَهُ قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ قَرَأْنَاهُ بَيَّنَّاهُ فَاتَّبِعْ اعْمَلْ بِهِ

[۴۶۴۵] حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ حَدَّثَنَا جَرِيرٌ عَنْ مُوسَى بْنِ أَبِي عَائِشَةَ عَنْ سَعِيدِ بْنِ جُبَيْرٍ عَنْ ابْنِ عَبَّاسٍ فِي قَوْلِهِ لَا تُحَرِّكْ بِهِ لِسَانَكَ لِتَعْجَلَ بِهِ قَالَ كَانَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا نَزَلَ جِبْرِيلُ بِالْوَحْيِ وَكَانَ مِمَّا يُحَرِّكُ بِهِ لِسَانَهُ وَشَفَتَيْهِ فَيَشْتَدُّ عَلَيْهِ وَكَانَ يُعْرَفُ مِنْهُ فَأَنْزَلَ اللّٰهُ الْآيَةَ الَّتِي فِي لَا أُقْسِمُ بِيَوْمِ الْقِيَامَةِ لَا تُحَرِّكْ بِهِ لِسَانَكَ لِتَعْجَلَ بِهِ إِنَّ عَلَيْنَا جَمْعَهُ وَقُرْآنَهُ قَالَ عَلَيْنَا أَنْ نَجْمَعَهُ فِي صَدْرِكَ وَقُرْآنَهُ فَإِذَا قَرَأْنَاهُ فَاتَّبِعْ قُرْآنَهُ فَإِذَا أَنْزَلْنَاهُ فَاسْتَمِعْ ثُمَّ إِنَّ عَلَيْنَا بَيَانَهُ عَلَيْنَا أَنْ نُبَيِّنَهُ بِلِسَانِكَ قَالَ فَكَانَ إِذَا أَتَاهُ جِبْرِيلُ أَطْرَقَ فَإِذَا ذَهَبَ قَرَأَهُ كَمَا وَعَدَهُ اللّٰهُ عَزَّ وَجَلَّ أَوْلَى لَكَ فَأَوْلَى تَوَعُّدٌ

**قوله**: وقال ابن عباس: سدى: هملا: آیت کښې دی ﴿أَيَحْسَبُ الْإِنْسَانُ أَنْ يُتْرَكَ سُدًى﴾ آیا انسان دا خیال کوی چه داسې به مهمل پریخودې شی. او حضرت ابن عباس رضی الله عنهما فرمائی چه سدی په معنی هملا دې: مهمل او آزاد

**قوله**: لَا وَزَرَ: لَا حِصْنَ: آیت کښې دی ﴿كَلَّا لَا وَزَرَ إِلَى رَبِّكَ يَوْمَئِذٍ الْمُسْتَقَرُّ﴾ هیڅ کله نه (تیخته ممکن) نه ده (څکه) چرته د پناه ځائ نشته، په هغه ورځ صرف ستا رب سره ځائ دې. حضرت ابن عباس رضی الله عنهما فرمائی چه په آیت مبارك کښې وزر معنی حصن یعنی پناه ګاه لاوزر: هیڅ پناه ګاه نشته.

**قوله**: لِيَفْجُرَ أَمَامَهُ: سَوْفَ أَتُوبُ، سَوْفَ أَعْمَلُ: ﴿بَلْ يُرِيدُ الْإِنْسَانُ لِيَفْجُرَ أَمَامَهُ﴾ یعنی وړاندې په ژوند کښې برابره ګناه کوی، نه توبه کوی اونه نیك عمل، بلکه دې سوچ سره د دروغو تسلی ورکوی چه راتلونکی وخت کښې به توبه اوکړم او نیك عمل به اوکړم، شیخ الهند رحمه الله ترجمه کړیده "بلکه غواړی انسان چه د هغه په وړاندې بهادری اوکړی" یعنی د قیامت د

راتلونه وړاندې راتلونکی عمر کښې چه کوم عمر باقی دې بالکل آزاد پاتې شی او دَ ګناه نه ډك ژوندتیرکړی په دې وجه دَ قیامت نه انکار کوی ګنی که قیامت نی اومنلو اودَ حساب کتاب قائل شو نو بیا به دَ آخرت دَ ویرینه آزاد پاتې نشی.

**د ایاتونو ربط:** دلته علماؤ دا بحث کړیدې چه دَ آیات باب ماقبل او مابعدسره څه ربط دې خکه چه په ماقبل کښې دَ قیامت تذکره ده او مابعدکښې هم دَ قیامت ذکر دې او په مینځ کښې دا آیت دې کوم کښې چه حضور ﷺ دَ تحریك لسان نه منع اوفرمائیلو، دَ دې مختلف توجیهات کړیشوی دی:

① مناسبت او ربط دَ انسانانوپه کلام کښې لټولې شی خکه چه دَ هغوی دَ عقل او نقل دائره محدود ده اودَ هغوی مقاصدهم محدود وی. نو په دې حدودوکښې دننه اوسیدلوسره هغوی څه کولې شی، څه لیکلې شی او څه وئیلې شی اودَ حق تعالی شانه علم په ټولو موجوداتو او معدوماتو باندې محیط دې. هلته دَ دې مناسبت دَ لټون څه ضرورت نشته بلکه هلته خو به دا کتلې شی چه دې حکیم مطلق په خپل حکمت سره کوم چه دَ موقع مناسب وو هغه بیان اوفرمائیلو.

② امام رازی رحمه الله فرمائی دا دَ معترضه جملې په شان دې اودَ مدرس دَ تنبیه دَ قبیل نه دې. لکه مدرس دَ درس په دوران کښې دَ طالب علم غفلت وینی نو هغه له خبردارې ورکول غواړی او هغه خبردار کوی، په ماقبل کښې هم سبق وی او په مابعد کښې هم او په مینځ کښې دَ تنبیه جمله راځی، اوس که څوك درس ضبط کړی او دا دَ مینځ والاجمله هم اولیکی نو چاته چه سبب معلوم دې هغه خو به دا غیرمربوط نه ګنړی خو چه چاته دَ سبب علم نشته هغه به ئی غیرمربوط ګنړی. دلته همدغه صورت پیښ شو چه کله دَ قرآن کریم ړومبنی آیاتونه نازل شو نو حضور ﷺ دَ یادولو په نیت سره لوستل، هم هغه وخت په دې آیاتونوکښې تنبیه اوشوله چه ته دَ یادولو په نیت سره قرآن مجید زر زر مه یادوه، یادول زمونږ ذمه داری ده. ([1])

③ علامه زمحشری رحمه الله فرمائی په ماقبل کښې دَ قیامت تذکره وه، دَ دې دَ فکر او اهتمام ترغیب وو، لکه چه ضمناً دَ عاجله مذمت وو او مابعدکښې دَ عاجله صراحةً مذمت راځی (کَلَّا بَلْ تُحِبُّونَ الْعَاجِلَةَ) او نبی کریم ﷺ هم په لوستلوکښې تندی کوله دَ دې دَ پاره "لاتحرك به لسانك" وینا سره هغوی ﷺ دَ تندئی نه منع کړې شو نوداسې دَماقبل او مابعد ربط کیږی. ([2])

④ علامه قفال رحمه الله فرمائی چه (لَا تُحَرِّكْ بِهِ لِسَانَكَ لِتَعْجَلَ بِهِ) سره خطاب حضور ﷺ ته نه دې بلکه (يُنَبَّأُ الْإِنْسَانُ يَوْمَئِذٍ بِمَا قَدَّمَ وَأَخَّرَ) کښې چه "الانسان" دې هغه ته خطاب دې، یعنی دَ هغه مخکښې روستو اعمالو باندې به هغه خبرولې شی، دَ دې صورت به دا وی چه اعمال نامه

---

[1]) تفسیر کبیر-۲۲۳-۲۲۲/۳۰:

[2])تفسیر کشاف-۶۶۲/٤:

به هغه ته ورکولې شي او ده ته به وئيلې شي ﴿اقْرَأْ كِتَابَكَ كَفَىٰ بِنَفْسِكَ الْيَوْمَ عَلَيْكَ حَسِيبًا﴾ کله چه هغه خپله اعمال نامه لوستل شروع کړی نو د هغه ژبه به د ډيرې ويرې اونخلې او زر زر به لوستل کوی نو هغه وخت به الله تعالی اوفرمائی ﴿لَا تُحَرِّكْ بِهِ لِسَانَكَ لِتَعْجَلَ بِهِ﴾ خپلې ژبې ته زر زر حرکت ورکولوسره اعمال نامه مه ختمه وه ﴿إِنَّ عَلَيْنَا جَمْعَهُ وَقُرْآنَهُ﴾ مونږ ستا اعمال راجمع کړی او په دې اعمال نامه کښې مو ليکلې دی اوس دا زمونږ ذمه داری ده چه دا اولولو يعنی هر څيز به ستا په وړاندې پيش کولې شی ﴿فَإِذَا قَرَأْنَاهُ فَاتَّبِعْ قُرْآنَهُ﴾ کله چه مونږ دا اعمال نامه په تفصيل سره اولولو نو د هرې خبرې څه چه تاکړی اقرار اومنل اوکړه ﴿ثُمَّ إِنَّ عَلَيْنَا بَيَانَهُ﴾ بيا زمونږ په ذمه دی چه مونږ د دې عقوبت او سزا بيان کړو. امام قفال رحمه الله چه کوم مناسبت بيان کړيدې په دې صورت کښې دا آيت د ماقبل او مابعد والا آيت بالکل مربوط کيږی ليکن د ابن عباس رضی الله عنهما نه د دې آياتونو د شان نزول سره د دې هيڅ مناسبت نشته (١)

⑤ د قرآن کريم عادت دې چه چرته هغه د اعمال نامې يا کتاب اعمال ذکر کوی هلته د نامه احکام يا کتاب احکام هم ذکر کوی. دغه شان دلته هم ﴿يُنَبَّأُ الْإِنسَانُ يَوْمَئِذٍ بِمَا قَدَّمَ وَأَخَّرَ﴾ کتاب اعمال ذکر دې، دې نه پس ﴿لَا تُحَرِّكْ بِهِ لِسَانَكَ لِتَعْجَلَ بِهِ﴾ کښې قرآن کريم يعنی کتاب احکام ذکر دې (٢)

⑥ حضرت کشميری رحمه الله فرمائی چه بعض وخت د قرآن کريم دوه مرادونه وی يو مراد نظم قرآن او د سياق قرآن نه مفهوم وی دا مراد اولی دې او يومراد خارج نه يعنی شان نزول نه په پوهه کښې راځی هغه مراد ثانی دې. په مذکوره آياتونو کښې هم يو مراد اولی دې او يو مراد ثانی، مراد اولی دا دې چه کله الله تعالی د قيامت او د دې د احوالو ذکر اوکړونو مشرکانو د دې متعلق تعنتاً تپوس اوکړو، کله به ئې وئيل "ايان يوم الدين" او کله به ئې تپوس کولو "ايان مرسها" الله تعالی په دې باره کښې اول امر نه حضور ﷺ ته فرمائی ﴿لَا تُحَرِّكْ بِهِ لِسَانَكَ لِتَعْجَلَ بِهِ﴾ د قيامت د ورځ د تعيين په سلسله کښې ته بالکل ژبه مه خوزوه ﴿إِنَّ عَلَيْنَا جَمْعَهُ وَقُرْآنَهُ﴾ د وعدې مطابق مونږ به د محشر په ورځ د دې عالم خواره شوی اجزاء راجمع کړو اود قرآن په ذريعه مونږ پخپله د محشر احوال بيانونکی يو ﴿فَإِذَا قَرَأْنَاهُ فَاتَّبِعْ قُرْآنَهُ﴾ کله چه مونږ د قرآن د قيامت متعلق آيت اولولو نود دې په تقاضا باندې عمل کوه اونوروته هم د دې د تياری تاکيد کوه ﴿ثُمَّ إِنَّ عَلَيْنَا بَيَانَهُ﴾ بيا د وعدې مطابق زمونږ ذمه داری ده د شپيلئی د پوکوهلو په ذريعه د دې اظهار! نو دا مراد اولی دې چه په سياق او سباق سره متعين کيږی اود مدلول اولی په اعتبارسره د دې آياتونود ماقبل سره ربط دې او مدلول ثانوی اګرچه په نورو اعتبارو سره ملحوظ دې خود آياتونوپه مينځ کښې د ربط د پاره د دې

---

(١) تفسير کبير-٢٢٤-٣/٢٢٣:

(٢) فتح الباری-٦٨٠/٨:

لحاظ ضروري نه دي.(١)

⑦ حضرت مولانا عبدالرحمن امروهوي صاحب فرمائي چه په اصل كښې په ماقبل كښې وو ﴿يُنَبَّؤُا الْإِنسَانُ يَوْمَئِذٍ بِمَا قَدَّمَ وَأَخَّرَ﴾ په قيامت كښې به دا تپوس وى چه كوم څيز د روستوكولو وو هغه تاولې وړاندې كړو او وړاندينې دې ولې روستوكړو؟ دلته هم دغه تقديم او تاخير يعنى وړانديوالې روستوالې موندلې كيږى چه په حضور ﷺ باندې وحى نازليدله، دلته د وړاندې كيدلو څيز وو چه اوره او چپ اوسيږه اود دې لوستل، ژبه خوزول او شوندې روستونې څيز وو هغوى مقدم موخر او موخر مقدم كړلو په دې وجه اوفرمائيلې شو ﴿لَا تُحَرِّكْ بِهِ لِسَانَكَ لِتَعْجَلَ بِهِ﴾ يعنى دا ستا لوستل د مقدم كولوڅيز نه دې د موخر كولوڅيز دې. كله چه مونږ لولو نو ته په خاموشئى سره اوره، دا شان د دې آياتونوربط﴿يُنَبَّؤُا الْإِنسَانُ يَوْمَئِذٍ بِمَا قَدَّمَ وَأَخَّرَ﴾ نه بالكل ظاهريږى.(٢)

⑧ يو ربط علامه شبيراحمدعثمانى رحمه الله بيان كړيدې ليكي: "په شروع كښې چه كوم وخت حضرت جبرائيل عليه السلام د الله تعالى د طرف نه قرآن راوړلو نود هغې د لوستلو سره به حضرت هم په زړه كښې لوستلو دې د پاره چه زر ئى ياد كړى او زده ئى كړى. مګر په دې صورت كښې به هغوى ﷺ ته سخت تكليف وو، تركومې چه به نى اولنې لفظ وئيلو راتلونكې به په اوريدوكښې نه راتلو اوظاهره خبره ده چه په پوهه كښې به هم تكليف وو. په دې باندې الله تعالى اوفرمائيل چه دې وخت كښې لوستلو او ژبه خوزولو ضرورت نشته صرف غوږكيږده اوريدل پكار دى دا فكر مه كوه چه يادبه نشى. دا ستا په سينه كښې ټكي په ټكي جمع كول او ستا د ژبې نه لوستل زمونږ ذمه وارى ده. حضرت جبرائيل عليه السلام چه كوم وخت كښې زمونږ د طرف نه لوستل كوى نو ته په خاموشئى سره اوره، دينه پس حضور ﷺ د جبرائيل عليه السلام سره لوستل پريخودل، داهم يوه معجزه شوه چه ټوله وحى اوريده، هغه وخت په ژبه سره يو لفظ نه ادا كولو، ليكن د فرښتې د تلونه پس به ټوله وحى لفظ په لفظ پوره ترتيب سره بغيرد يو زبر زير د بدلون نه هوار اورولو. دا په دې دنياكښې يوه وړه غوندې نمونه شوه ﴿يُنَبَّؤُا الْإِنسَانُ يَوْمَئِذٍ بِمَا قَدَّمَ وَأَخَّرَ﴾ يعنى څنګه چه الله تعالى په دې قادر دې چه خپله وحى د فرښتې د تلونه پس پوره ترتيب سره ټكي په ټكي بغير د څه معمولى هيرينه د خپل پيغمبر په سينه كښې راجمع كړى، آيا په دې باندې قادر نه دې چه د بنديګانو مخكينى او روستونى اعمال كوم كښې چه بعض كونكې پخپله هم هيركړې وى ټول راجمع كړى او په يووخت كښې رامخامخ كړى او هغه ته ئى ښه رایاد كړى او دغه شان د هډوكو خوارې شوې ذرې ټولې يو ځاى كښې راجمع كړى او بالكل په اولنى صحيح ترتيب باندې ترې انسان ته بيا وجود وركړى. بيشكه هغه په دې باندې بلكه د دې نه په زياتو باندې

(١) فيض البارى-١/٣٥:
(٢) ايضاح البخارى-١/٩٨:

قادردي.⁽¹⁾

⑨ بعض علماؤ يو مناسبت دا بيان كړيدې چه الله تعالى اول دَ نفس انسان ذكر اوكړلو او وئې فرمائيل ﴿وَلَآ أُقۡسِمُ بِٱلنَّفۡسِ ٱللَّوَّامَةِ﴾ كله چه دَ دې متعلق بيان اوشو نو بيا دَ اشرف النفوس اواكمل النفوس نفس رسول الله ﷺ تذكره اوفرمائيله اودا ارشاد اوشو چه ستاسو نفس دَ ټولونه اشرف او اكمل دې نو تاله دَ ټولونه اشرف او اكمل صورت اختيارول پكار دى. دَ جبرائيل عليه السلام دَ لوستلو په وخت كښې غوږ كيخودل پكار دى ځكه چه هغه زمونږ كلام لولى نو دَ زړه په حضور سره پوره شان سره اوريدلو كښې مشغول شه او چه كله هغه فارغ شى نو بيا زمونږ په ذمه دى چه مونږ دا بيا په تا باندې اولولو⁽²⁾

⑩ يومناسبت حضرت حكيم الامت، مجدد المله مولانااشرف على تهانوى رحمه الله بيان كړيدې، دَ هغې حاصل دا دې چه الله تعالىٰ دَ دې نه وړاندې ﴿يُنَبَّؤُا ٱلۡإِنسَٰنُ يَوۡمَئِذِۢ بِمَا قَدَّمَ وَأَخَّرَ﴾ فرمائيلى دى دَ كومې نه چه دوه خبرې معلومې شوې يوه دا چه دَ الله تعالى علم ټول څيزونه په خپله احاطه كښې اخستې دى. هيڅ يو لوئ يا وړوكې څيز دَ الله تعالى دَ دائره علم نه بهر نه دې، كه هغه سرى وى، بدنونه وى يا اعراض وى، الله تعالى ته دَ ټولو علم محيط حاصل دې، دوئم څيز دا معلوم شو چه الله تعالى كله غواړى ډير غائب علوم او امور دَ انسان په ذهن كښې حاضروى. ګورئى دا انسان په ټول ژوند كښې نه ده معلومه چه څومره كاركوى، صبا به دَ قيامت په ورځ دَ ده ټول كار دَ ده مخې ته كړيشى.
اوس الله تعالى خپل رسول ته خطاب فرمائى چه كله تاته معلومه شوه چه زمونږ علم محيط دې او مونږ چه كله غائب علوم غواړو حاضرولې شونو هځې ته ولې خپل ځان په مشقت كښې اچوې چه جبرائيل عليه السلام سره لوستلو كښې ځان مصروف كوې، ډيخوا دَ اوريدو طرف ته خيال كوې او اخوا دَ يادولو طرف ته خيال كوې، بل خوا مضامينو طرف ته متوجه كيږى، بلكه ته صرف يو كار كوه چه كله جبرائيل عليه السلام لولى نو ته اوره او وړاندې دَ دې يادول، لوستل او بيانول زمونږ ذمه وارى ده.⁽³⁾

## [۴۰۹] باب: تفسير سُورَةُ هَلۡ أَتَىٰ عَلَى ٱلۡإِنسَٰنِ

يُقَالُ مَعۡنَاهُ أَتَى عَلَى الۡإِنۡسَانِ وَهَلۡ تَكُونُ جَحۡدًا وَتَكُونُ خَبَرًا وَهَذَا مِنَ الۡخَبَرِ يَقُولُ كَانَ شَيۡئًا فَلَمۡ يَكُنۡ مَذۡكُورًا وَذَلِكَ مِنۡ حِينِ خَلَقَهُ مِنۡ طِينٍ إِلَى أَنۡ يُنۡفَخَ فِيهِ الرُّوحُ أَمۡشَاجٍ الۡأَخۡلَاطُ مَاءُ الۡمَرۡأَةِ وَمَاءُ الرَّجُلِ الدَّمُ وَالۡعَلَقَةُ وَيُقَالُ إِذَا خُلِطَ مَشِيجٌ كَقَوۡلِكَ خَلِيطٌ وَمَمۡشُوجٌ مِثۡلُ مَخۡلُوطٍ وَيُقَالُ سَلَاسِلًا وَأَغۡلَالًا وَلَمۡ يُجۡزِ بَعۡضُهُمۡ مُسۡتَطِيرًا مُمۡتَدًّا الۡبَلَاءُ وَالۡقَمۡطَرِيرُ الشَّدِيدُ

---

⁽¹⁾ تفسير عثمانى ۷۶۷: فائده نمبر-۱
⁽²⁾ فتح البارى-۸/۶۸۱:
⁽³⁾ بيان القران-۱۲/۶۱:.

يُقَالُ يَوْمٌ قَمْطَرِيرٌ وَيَوْمٌ قُمَاطِرٌ وَالعَبُوسُ وَالقَمْطَرِيرُ وَالقُمَاطِرُ وَالعَصِيبُ أَشَدُّ مَا يَكُونُ مِنَ الْأَيَّامِ فِي الْبَلَاءِ وَقَالَ الحَسَنُ النَّضْرَةُ فِي الوَجْهِ وَالسُّرُورُ فِي القَلْبِ وَقَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ الْأَرَائِكِ السُّرُرُ وَقَالَ الْبَرَاءُ وَذُلِّلَتْ قُطُوفُهَا يَقْطِفُونَ كَيْفَ شَاءُوا وَقَالَ مَعْمَرٌ أَسْرَهُمْ شِدَّةُ الخَلْقِ وَكُلُّ شَيْءٍ شَدَدْتَهُ مِنْ قَتَبٍ وَغَبِيطٍ فَهُوَ مَأْسُورٌ

**قوله:** هَلْ أَتَى عَلَى الْإِنْسَانِ يُقَالُ مَعْنَاهُ: مطلب دا دې چه آیت کښې "هل" استفهام تقریری دې استفهام انکاری نه دې. امام رازی رحمه الله په تفسیرکبیرکښې په دې باندې اتفاق نقل کړیدې چه "هل" دلته په معنی کښې د "قد" راغلې دې دغه شان "هل اتاك حديث الغاشية "[1]کښې "هل" هم د "قد" په معنی کښې دې.

الله تعالی فرمائی چه انسان کله یو څیز وو لیکن قابل ذکر نه وو. د امام بخاری رحمه الله په دې تفسیرکښې اشاره ده دې خبرې ته چه "لم یکن" کښې چه کومه نفي داخله ده دا د قیدنفی ده، د مقیدنفی نه ده. یعنی آیت کښې چه "مذکوراً" کوم قیددې د دې نفی ده. انسان څه خو وو، نطفه وه، دې نه پس وینه جوړه شوه دې نه پس غوښه، بیاپه دې کښې هډوکی پیدا کړیشونو په دې وجه څه خو وو لیکن قابل ذکر نه ووبلکه د نطفې نه اول خاوره وو. بیا په دې کښې بوټي پیدا شو، په هغې کښې غله راغله، هغه غلې نه بیا خوراك حاصل کړیشو، دې غذا نه د بدن اجزاء تیار شو، دې اجزاء سره په بدن کښې د پیدائش ماده پیدا شوه او د نطفې په شکل کښې د مور رحم ته منتقل شوه او بیا د مورپه رحم کښې د مختلفو طریقونه تیره شوه نوهغه وخت هغه وو لیکن قابل ذکر نه وو.قابل ذکرکله جوړشو، چه کله پیدا شو.

**معدوم وصف عدم سره موجود فی الخارج وی یا نه؟:** د معتزله مسلك دا دې چه معدوم وصف عدم سره موصوف کیدلوپه صورت کښې **موجودفی الخارج** وی او د اهل سنت والجماعت مذهب دا دې چه کله هغه معدوم وی نوهغه وخت هغه موجود فی الخارج او **متحقق فی نفس الامر** نه وی، په وجودکښې د راتلونه پس هغې ته نفس الامر او خارج کښې تحقق حاصلیږی.[2] د دې آیت نه به د معتزله د پاره په دې خبره استدلال اخستل جائزنه وی چه دلته د معدوم د پاره وجود ثابتوی څکه چه هغه معدوم نه وو، د خاورې په شکل کښې وویا د بوټو او غذاپه شکل کښې وو او یا د نطفې په صورت کښې وو.

**قوله:** أَمْشَاجٍ: الْأَخْلَاطُ، مَاءُ الْمَرْأَةِ وَمَاءُ الرَّجُلِ، الدَّمُ وَالْعَلَقَةُ، وَيُقَالُ: إِذَا خُلِطَ: مَشِيجٌ كَقَوْلِكَ خَلِيطٌ، وَمَمْشُوجٌ مِثْلُ: مَخْلُوطٍ: آیت کښې دی (إِنَّا خَلَقْنَا الْإِنْسَانَ مِنْ نُطْفَةٍ أَمْشَاجٍ) مونږ انسان د مخلوط نطفې نه پیدا کړو(یعنی د ښځې او سړی دواړو د نطفې نه)

---

[1] تفسیر کبیر-۳۰/۲۳۵:

[2] النبراس شرح العقائد ۴۰-۳۹:وحاشیه برخوردار-۴۰:

فرمائی امشاج په معنی دَ اخلاط دې یعنی سړی او ښځې دَ اوبو دَ اختلاط نه. الله تعالی انسان پیدا کړو داسې چه دَ خاورې نه وینه، او بیا دَ وینې نه علقه جوړیږی، **ویقال اذا خلط: مشیج:** کله چه یو څیز بل څیز سره ملاوکړیشی نو دې ته مشیج وائی لکه چه هغوی ته خلیط هم وائی او ممشوج په معنی دَ مخلوط دې.

**قوله: وَيُقرأ: سَلَاسِلًا وَأَغْلَالًا وَلَمْ يُجْرِ بَعْضُهُمْ:** دا هشام،نافع، ابوبکر او کسائی رحمهم الله قراءت دې، دا حضرات دا په تنوین سره لولی حالانکه سلاسل غیرمنصرف دې لیکن اغلالاً په قرب کښې دَ واقع کیدو په وجه سره تنوین ورکړیشوې دې او بعض حضرات سلاسل باندې تنوین لوستلوته جائزنه وائی.

**قوله: مُسْتَطِيرًا: مُمْتَدًّا الْبَلَاءُ:** آیت کښې دی ﴿وَيَخَافُونَ يَوْمًا كَانَ شَرُّهُ مُسْتَطِيرًا﴾ اوهغوی دَ داسې ورځ نه ویریږی دَ کومې سختی چه عام وی، مستطیرا معنی ده ممتداً یعنی دَ هغه ورځ امتحان اوسختی به خوریږی.

**قوله: يُقَالُ: يَوْمٌ قَمْطَرِيرٌ، قُمَاطِرٌ عَبُوسٌ عَصِيبٌ قَمْطَرِيرٌ:** دا ټول الفاظ دَ هغه ورځ دَ پاره استعمالیږی په کومه کښې چه به ډیره سختی وی او تکلیف زیات وی.

**قوله: وَقَالَ مَعْمَرٌ: أَسْرَهُمْ: شِدَّةُ الْخَلْقِ :** ﴿وَشَدَدْنَآ أَسْرَهُمْ﴾ معنی ده، دَ هغوی جوړونه مونږ سخت کړل اودهغوی د اندامونو بندش مو مضبوط جوړکړو،هرداسې څیز کوم سره چه کته وغیره تړلې شی هغې ته ماسور وائی په دې وجه چه په مضبوطیاسره په هغې تړلې کیږی.

## [۴۱۰] باب: تفسير سورة وَالْمُرْسَلَاتِ

وَقَالَ مُجَاهِدٌ جِمَالَاتٌ حِبَالٌ ارْكَعُوا صَلُّوا لَا يَرْكَعُونَ لَا يُصَلُّونَ وَسُئِلَ ابْنُ عَبَّاسٍ لَا يَنْطِقُونَ وَاللَّهِ رَبِّنَا مَا كُنَّا مُشْرِكِينَ الْيَوْمَ نَخْتِمُ عَلَى أَفْوَاهِهِمْ فَقَالَ إِنَّهُ ذُو أَلْوَانٍ مَرَّةً يَنْطِقُونَ وَمَرَّةً يُخْتَمُ عَلَيْهِمْ

**قوله: جِمَالَات: حِبَالٌ:** آیت کښې دی ﴿كَأَنَّهُ جِمَالَتٌ صُفْرٌ﴾ بضم الجيم هم لوستلې شويدې. او بالکسر هم، بالضم په صورت کښې دَ دې معنی به دَ رسو وی اودَ بالکسر په صورت کښې به دَ دې معنی دَ اوښانووی چه دَ جمالة جمع ده او جمالة دَ جمل جمع ده.[۱]

[۴۶۴۶] حَدَّثَنِي مَحْمُودٌ حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللَّهِ عَنْ إِسْرَائِيلَ عَنْ مَنْصُورٍ عَنْ إِبْرَاهِيمَ عَنْ عَلْقَمَةَ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ كُنَّا مَعَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَأُنْزِلَتْ عَلَيْهِ وَالْمُرْسَلَاتِ وَإِنَّا لَنَتَلَقَّاهَا مِنْ فِيهِ فَخَرَجَتْ حَيَّةٌ فَابْتَدَرْنَاهَا فَسَبَقَتْنَا فَدَخَلَتْ جُحْرَهَا فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وُقِيَتْ شَرَّكُمْ كَمَا وُقِيتُمْ شَرَّهَا حَدَّثَنَا عَبْدَةُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ أَخْبَرَنَا يَحْيَى

[۱] عمدة القاری-۱۹/۲۷۲:

بْنُ آدَمَ عَنْ إِسْرَائِيلَ عَنْ مَنْصُورٍ بِهَذَا وَعَنْ إِسْرَائِيلَ عَنِ الْأَعْمَشِ عَنْ إِبْرَاهِيمَ عَنْ عَلْقَمَةَ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ مِثْلَهُ وَتَابَعَهُ أَسْوَدُ بْنُ عَامِرٍ عَنْ إِسْرَائِيلَ وَقَالَ حَفْصٌ وَأَبُو مُعَاوِيَةَ وَسُلَيْمَانُ بْنُ قَرْمٍ عَنِ الْأَعْمَشِ عَنْ إِبْرَاهِيمَ عَنِ الْأَسْوَدِ قَالَ يَحْيَى بْنُ حَمَّادٍ أَخْبَرَنَا أَبُو عَوَانَةَ عَنْ مُغِيرَةَ عَنْ إِبْرَاهِيمَ عَنْ عَلْقَمَةَ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ وَقَالَ ابْنُ إِسْحَاقَ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ الْأَسْوَدِ عَنْ أَبِيهِ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ

[۴۶۴۷] حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ حَدَّثَنَا جَرِيرٌ عَنِ الْأَعْمَشِ عَنْ إِبْرَاهِيمَ عَنِ الْأَسْوَدِ قَالَ قَالَ عَبْدُ اللَّهِ بَيْنَا نَحْنُ مَعَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي غَارٍ إِذْ نَزَلَتْ عَلَيْهِ وَالْمُرْسَلَاتِ فَتَلَقَّيْنَاهَا مِنْ فِيهِ وَإِنَّ فَاهُ لَرَطْبٌ بِهَا إِذْ خَرَجَتْ حَيَّةٌ فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَيْكُمْ اقْتُلُوهَا قَالَ فَابْتَدَرْنَاهَا فَسَبَقَتْنَا قَالَ فَقَالَ وُقِيَتْ شَرَّكُمْ كَمَا وُقِيتُمْ شَرَّهَا

## [۴۱۱] بَاب قَوْلُهُ إِنَّهَا تَرْمِي بِشَرَرٍ كَالْقَصْرِ

[۴۶۴۸] حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ كَثِيرٍ أَخْبَرَنَا سُفْيَانُ حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ عَابِسٍ قَالَ سَمِعْتُ ابْنَ عَبَّاسٍ إِنَّهَا تَرْمِي بِشَرَرٍ كَالْقَصْرِ قَالَ كُنَّا نَرْفَعُ الْخَشَبَ بِقَصَرٍ ثَلَاثَةَ أَذْرُعٍ أَوْ أَقَلَّ فَنَرْفَعُهُ لِلشِّتَاءِ فَنُسَمِّيهِ الْقَصَرَ

**قوله: انها ترمي بشرر كالقصر:** په دې کښې دوه قراءتونه دی یو القصر په سکون دَ صاد او دوئم قراءت القصر په فتح دَ صاد. په رومبی صورت کښې به معنی دَ محلْ وی او مطلب به دا وی چه دوزخ به دومره لویْ لویْ بخری غورزوی لکه چه لویْ لویْ محلونه وی او په دوئم صورت کښې به معنی وی دوزخ به په اندازه دَ دربولاسونو بخری غورزوی لکه چه دلته په روایت کښې دی.

**قوله: كنا نرفع الخشب، بقصر ثلاثة اذرع او اقل:** دلته دوه صورتونه کیدیشی یو صورت دا دې چه بقصر کسره او تنوین سره اولوستلې شی او "ثلاثة اذرع" منصوب اووئیلې شی مطلب به دا وی چه مونږ به دَ یخنئی دَ پاره درې درې لاسه لرګی برابر اوچتول کیخودل او هغه به دَ اوبنانودَ ستونوبرابروو دَ هغې نوم به مونږ قصر کیخودلو قصر اعناق الابل ته هم وئیلی شی، اصول الشجر ته هم وائی او دَ کهجورې تنې ته هم وئیلی شی.(۱) اودوئم صورت دا دې چه "بقصر ثلاثة اذرع" دَ مضاف په بنا اولوستلې شی یعنی دَ دریودریو ذراع په اندازه، حافظ عینی او علامه کرمانی رحمه الله هم دا اختیار کړیده.(۲)

---

(۱) فتح الباری-۸/۶۸۸:
(۲) عمدة القاری ۱۹/۲۷۴: وشرح الکرمانی-۱۸/۱۷۷:

## [۴۱۲] باب قوله كأنه جمالات صفر

[۴۶۴۹] حدثنا عمرو بن علي حدثنا يحيى أخبرنا سفيان حدثني عبد الرحمن بن عابس سمعت ابن عباس رضي الله عنهما ترمي بشرر كالقصر قال كنا نعمد إلى الخشبة ثلاثة أذرع أو فوق ذلك فنرفعه للشتاء فنسميه القصر كأنه جمالات صفر حبال السفن تجمع حتى تكون كأوساط الرجال

## [۴۱۳] باب قوله هذا يوم لا ينطقون

[۴۶۵۰] حدثنا عمر بن حفص بن غياث حدثنا أبي حدثنا الأعمش حدثني إبراهيم عن الأسود عن عبد الله قال بينما نحن مع النبي صلى الله عليه وسلم في غار إذ نزلت عليه والمرسلات فإنه ليتلوها وإني لأتلقاها من فيه وإن فاه لرطب بها إذ وثبت علينا حية فقال النبي صلى الله عليه وسلم اقتلوها فابتدرناها فذهبت فقال النبي صلى الله عليه وسلم وقيت شركم كما وقيتم شرها قال عمر حفظته من أبي في غار بمنى

## [۴۱۴] باب: تفسير سورة النبأ (عم يتساءلون)

قال مجاهد لا يرجون حسابا لا يخافونه لا يملكون منه خطابا لا يكلمونه إلا أن يأذن لهم صوابا حقا في الدنيا وعمل به وقال ابن عباس وهاجا مضيئا وقال غيره غساقا غسقت عينه ويغسق الجرح يسيل كأن الغساق والغسيق واحد عطاء حسابا جزاء كافيا أعطاني ما أحسبني أي كفاني

## [۴۱۵] باب يوم ينفخ في الصور فتأتون أفواجا زمرا

[۴۶۵۱] حدثني محمد أخبرنا أبو معاوية عن الأعمش عن أبي صالح عن أبي هريرة رضي الله عنه قال قال رسول الله صلى الله عليه وسلم ما بين النفختين أربعون قال أربعون يوما قال أبيت قال أربعون شهرا قال أبيت قال أربعون سنة قال أبيت قال ثم ينزل الله من السماء ماء فينبتون كما ينبت البقل ليس من الإنسان شيء إلا يبلى إلا عظما واحدا وهو عجب الذنب ومنه يركب الخلق يوم القيامة

**قوله: قال مجاهد: لا يرجون حسابا: لا يخافونه:** آيت كښې دى ﴿إنهم كانوا لا يرجون حسابا﴾ هغه خلق دَ حساب انديښنه نه لرله، مجاهد رحمه الله فرمائى آيت كښې لايرجون معنى لايخافون، هغه خلق دَ حساب ويره نه لرى.

**قوله: لا يملكون منه خطابا: لا يكلمونه إلا أن يأذن لهم:** آيت كښې دي ﴿رب السموت

وَالْأَرْضِ وَمَا بَيْنَهُمَا الرَّحْمٰنِ لَا يَمْلِكُوْنَ مِنْهُ خِطَابًا﴾ څوك چه مالك دې د آسمانونواو زمكې اود هغه څيزونوچه د دې په مينځ كښې دى(اوچه) رحمن دې (او) چاته به د هغه طرف نه (مستقل) اختيار نه وى چه د هغه په وړاندې عرض معروض او كړيشى. فرمائى ﴿لَا يَمْلِكُوْنَ مِنْهُ خِطَابًا﴾ معنى ده الله تعالى سره به خلق خبرې نشى كولې بغير د هغې نه چاله چه اجازت وركړيشى.

**قوله**: وَقَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ: وَهَّاجًا: مُضِيئًا :آيت كښې دى ﴿وَجَعَلْنَا سِرَاجًا وَهَّاجًا﴾ اومونږ (اسمان كښې) يو روښانه چراغ جوړكړو. حضرت ابن عباس رضي الله عنهما فرمائى وهاج معنى روښانه

**قوله**: عَطَاءً حِسَابًا: جَزَاءً كَافِيًا، أَعْطَانِي مَا أَحْسَبَنِي، أَيْ كَفَانِي :آيت كښې دى ﴿جَزَاءً مِّنْ رَّبِّكَ عَطَاءً حِسَابًا﴾ دا بدله به ملاويږى ستاد رب د طرف نه چه كافى انعام به وى. فرمائى عطاءً حساباً معنى ده جزاءً كافيًا يعنى پوره بدله، اعطانى ما احسبنى يعنى ماله ئى دومره راكړه چه كافى شو.

**قوله**: أَفْوَاجًا: زُمَرًا :آيت كښې دى ﴿يَوْمَ يُنْفَخُ فِي الصُّوْرِ فَتَأْتُوْنَ أَفْوَاجًا﴾ په كومه ورځ چه شپيلئى پوكوهلې شي تاسو خلق به ډلې ډلې راځئى. فرمائى افواجاً معنى ده زمراً، دا د زمرة جمع ده په معنى د ټولى او ډلې.

## [۴۱۶] باب: تفسير سورة والنازعات

وَقَالَ مُجَاهِدٌ الْآيَةَ الْكُبْرَى عَصَاهُ وَيَدُهُ يُقَالُ النَّاخِرَةُ وَالنَّخِرَةُ سَوَاءٌ مِثْلُ الطَّامِعِ وَالطَّمِعِ وَالْبَاخِلِ وَالْبَخِيلِ وَقَالَ بَعْضُهُمُ النَّخِرَةُ الْبَالِيَةُ وَالنَّاخِرَةُ الْعَظْمُ الْمُجَوَّفُ الَّذِي تَمُرُّ فِيهِ الرِّيحُ فَيَنْخَرُ وَقَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ الْحَافِرَةِ الَّتِي أَمْرُنَا الْأَوَّلُ إِلَى الْحَيَاةِ وَقَالَ غَيْرُهُ أَيَّانَ مُرْسَاهَا مَتَى مُنْتَهَاهَا وَمُرْسَى السَّفِينَةِ حَيْثُ تَنْتَهِي الطَّامَّةُ تَطِمُّ عَلَى كُلِّ شَيْءٍ

**قوله**: وَقَالَ مُجَاهِدٌ: الْآيَةَ الْكُبْرَى: عَصَاهُ وَيَدُهُ :آيت كښې دى ﴿فَأَرٰهُ الْآيَةَ الْكُبْرٰى﴾ بيا موسى عليه السلام هغه ته (يعنى فرعون ته) لويه نښه (دنبوت) اوخودله. حضرت مجاهد رحمه الله فرمائى الْآيَةَ الْكُبْرٰى نه مراد د حضرت موسى عليه السلام همسا او يدبيضا مراد دى.

**قوله**: النَّاخِرَةُ وَالنَّخِرَةُ سَوَاءٌ: ﴿ءَاِذَا كُنَّا عِظَامًا نَّخِرَةً﴾ وئيلې شى چه ناخره او نخره دواړو يوه معنى ده لكه طامع او طمع او باخل او بخل او بعض خلقو وئيلى دى چه نخره هغه هډوكى ته وائى چه سخا او خراب شوې وى او ناخره هغه هډوكى ته وائى چه ډډ وى، كوم كښې چه هوا تيريږى نو آواز كوى.

**قوله**: وَقَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ: الْحَافِرَةِ: الَّتِي أَمْرُنَا الْأَوَّلُ إِلَى الْحَيَاةِ: ﴿ءَاِنَّا لَمَرْدُوْدُوْنَ فِي الْحَافِرَةِ﴾ يعنى اول ژوندچه مونږ ته په دنياكښې راكړې شوې وو آيا مونږ به د هغې طرف ته واپس گرځولې شو.

**قوله: وَقَالَ غَيْرُهُ: أَيَّانَ مُرْسَاهَا: مَتَى مُنْتَهَاهَا: وَمُرْسَى السَّفِينَةِ حَيْثُ تَنْتَهِي:**
آیت کښې دی ﴿يَسْئَلُونَكَ عَنِ السَّاعَةِ أَيَّانَ مُرْسٰهَا﴾ دا خلق تانه دَ قیامت باره کښې تپوس کوی چه دا به کله واقع کیږی. حضرت ابن عباس رضی الله عنه نه غیر وئیلی دی چه ایان مرساها معنی ده دَهغې انتها کوم ځائ ده.دا ماخوذدې مرسی السفینة نه چرته چه کشتئی په آخره کښې اودریږی.

[۴۶۵۲] حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ الْمِقْدَامِ حَدَّثَنَا الْفُضَيْلُ بْنُ سُلَيْمَانَ حَدَّثَنَا أَبُو حَازِمٍ حَدَّثَنَا سَهْلُ بْنُ سَعْدٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ رَأَيْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ بِإِصْبَعَيْهِ هَكَذَا بِالْوُسْطَى وَالَّتِي تَلِي الْإِبْهَامَ بُعِثْتُ وَالسَّاعَةُ كَهَاتَيْنِ[1]

**قوله: بُعِثْتُ وَالسَّاعَةُ كَهَاتَيْنِ:** حضرت سهل بن سعد رضی الله عنه فرمائی چه ما رسول الله صلی الله علیه وسلم اولیدو چه هغوی خپله مینځمنئ او دَ شهادت په ګوته اشاره اوفرمائیله چه زه په داسې وخت کښې رالیګلې شوې یم چه زه او قیامت داواړه داسې یو یعنی زه لږ شان وړاندې یم او قیامت دینه لږ شان روستو، لکه څنګه چه مینځمنئ ګوته لږه شان وړاندې وتلې وی او سبابه یعنی مسواکه ګوته دینه لږه شان روستو. دوئم مطلب دا هم کیدیشی چه څنګه دا دواړه ګوتې ملاؤ شوی دی دغه شان زه او قیامت ملاؤشوی یو، زما او دَ قیامت په مینځ کښې به الله تعالی څوك نبی یا رسول نه رالیګی، څه اوګورو- په ړومبی صورت کښې سوال وی چه دَ قیامت نه په څومره فاصله باندې هغوی صلی الله علیه وسلم تشریف راوړیدې؟ ښکاره خبره ده چه په دې سلسله کښې څه خبره نشی خودلې چه دَ هغوی صلی الله علیه وسلم او قیامت په مینځ کښې څومره فاصله ده.

**دَامت محمدیه ټول عمر:** ابن جریر طبری رحمه الله په خپله زمانه کښې یوه خبره کړې وه چه دَ دې امت ټول عمرپنځه سوه کاله دې،او هغه دَ ابوثعلبه خشنی رضی الله عنه دَ روایت نه استدلال کړیدې، کوم چه امام ابوداؤد په خپل سنن کښې نقل کړیدې. "**لن يعجزالله هذه الامة من نصف يوم**"[2] یعنی الله تعالی به ستا امت ته دَ نیمې ورځې ژوند ورکولو ئه عاجز نه فرمائی، طبری رحمه الله دَ نصف یوم نه نصف یوم آخرت اوګنړلو اودَ یوم آخرت مقدار زر کاله دې نو نصف به پنځه سوا کاله وی. لیکن دَ هغوی دا قول او استدلال غلط ثابت شو، څوارلس سوه کاله دې امت تیرکړی دی. حافظ جلال الدین سیوطی رحمه الله یوه رساله لیکلې ده "**الكشف عن مجاوزة هذه الامة الالف**" او په دې کښې هغه دَ ډیرو آثارونه دا ثابته کړیده چه دَ دې امت عمر به دَ زرو کالونه

[1] )وايضاً اخرجه فى الطلاق باب اللعان رقم الحديث ۵۳۱۰:وفى الرقاق باب قول لنبى صلى الله عليه وسلم :بعثت انا والساعة كهاتين. رقم الحديث ۶۵۰۳:وقال العينى فى عمدة" ۲/۲۷۸ :والحديث من افراده من هذه الوجه "واخرجه مسلم فى الفتن واشراط الساعة بوجه اخر رقم الحديث-۲۹۵۰:
[2] )سنن ابى داوٗد كتاب الملاحم باب قيام الساعة-۲/۲۴۲:

زيات وي (١) نود هغه خبره صحيح راؤوتله.
حضرت مولانا كشميري رحمه الله فرمائيل چه په سلف كښې مشهوره وه چه د دنيا مجموعى عمر پنځوس زره كاله دې.د قرآن كريم په دې آيت كښې هم دې طرف ته اشاره ملاويږى (فِي يَوْمٍ كَانَ مِقْدَارُهُ خَمْسِينَ أَلْفَ سَنَةٍ) حضرت كشميري رحمه الله فرمائي چه په ميدان محشر كښې زما په نيزد د دنيا پوره عمر به دوباره واپس كولې شي او قرآن د يوم حشر مقدار پنځوس زره كاله خودلې كوم نه چه معلوميږى چه د دنيا مجموعى عمر پنځوس زره كاله دې (٢) والله اعلم.
د حضرت ابن عباس رضي الله عنه نه يو روايت نقل دې چه د دنيا عمر اووه زره كاله دې او په دې كښې شپږ. د حضرت آدم عليه السلام نه واخله تر نبى كريم ﷺ پورې تيرشوى دى اود هغوى نه پس هم زر كاله تير شو نود دې تقاضا خو دا ده چه د دنيا عمر خو پورا شو او قيامت قائم كيدل پكار دى. (٣) ليكن دا روايت موقوف دې (٤) او دا ټولې اندازې او تخميني دى د قيامت د واقع كيدو صحيح علم الله تعالى نه سوا بل هيڅ چا سره نشته (إِنَّ اللَّهَ عِنْدَهُ عِلْمُ السَّاعَةِ)

**قوله: الطَّامَّةُ تَطِمُّ عَلَى كُلِّ شَيْءٍ:** آيت كښې دى (فَإِذَا جَاءَتِ الطَّامَّةُ الْكُبْرَىٰ) نو چه كله لويه هنګامه راشى فرمائى چه طامة معنى چه په هرڅيز باندې راخور شى، غالب شى.

## [٤١٧] باب: تفسير سورة عَبَسَ

عَبَسَ وَتَوَلَّى كَلَحَ وَأَعْرَضَ وَقَالَ غَيْرُهُ مُطَهَّرَةٍ لَا يَمَسُّهَا إِلَّا الْمُطَهَّرُونَ وَهُمُ الْمَلَائِكَةُ وَهَذَا مِثْلُ قَوْلِهِ فَالْمُدَبِّرَاتِ أَمْرًا جَعَلَ الْمَلَائِكَةَ وَالصُّحُفَ مُطَهَّرَةً لِأَنَّ الصُّحُفَ يَقَعُ عَلَيْهَا التَّطْهِيرُ فَجُعِلَ التَّطْهِيرُ لِمَنْ حَمَلَهَا أَيْضًا سَفَرَةٍ الْمَلَائِكَةُ وَاحِدُهُمْ سَافِرٌ سَفَرْتُ أَصْلَحْتُ بَيْنَهُمْ وَجُعِلَتِ الْمَلَائِكَةُ إِذَا نَزَلَتْ بِوَحْيِ اللَّهِ وَتَأْدِيَتِهِ كَالسَّفِيرِ الَّذِي يُصْلِحُ بَيْنَ الْقَوْمِ وَقَالَ غَيْرُهُ تَصَدَّى تَغَافَلَ عَنْهُ وَقَالَ مُجَاهِدٌ لَمَّا يَقْضِ لَا يَقْضِي أَحَدٌ مَا أُمِرَ بِهِ وَقَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ تَرْهَقُهَا تَغْشَاهَا شِدَّةٌ مُسْفِرَةٌ مُشْرِقَةٌ بِأَيْدِي سَفَرَةٍ وَقَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ كَتَبَةٍ أَسْفَارًا كُتُبًا تَلَهَّى تَشَاغَلَ يُقَالُ وَاحِدُ الْأَسْفَارِ سِفْرٌ

[٤٦٥٣] (٥) حَدَّثَنَا آدَمُ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ حَدَّثَنَا قَتَادَةُ قَالَ سَمِعْتُ زُرَارَةَ بْنَ أَوْفَى يُحَدِّثُ عَنْ سَعْدِ

---

(١) مذكوره رساله اووړئى الحاوى للفتاوى للسيوطى-٩٠-٢/٨٦:
(٢) فيض البارى-٤/٢٥٤:
(٣) فيض البارى-٤/٢٥٤:
(٤) فيض البارى-٤/٢٥٤:
(٥) واخرجه مسلم فى صلاة المسافرين وقصرها باب فضل الماهر بالقران والذى يتتعتع به رقم الحديث ٧٩٨ واخرجه الترمذى رحمه الله فى كتاب فضائل القران باب ماجاء فى فضل قارى القران رقم الحديث ٢٩٠٤: واخرجه ابوداود فى كتاب الصلاة باب فى ثواب قراءة القران ...[بقيه حاشيه په راروانه صفحه.

بْنِ هِشَامٍ عَنْ عَائِشَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَثَلُ الَّذِي يَقْرَأُ الْقُرْآنَ وَهُوَ حَافِظٌ لَهُ مَعَ السَّفَرَةِ الْكِرَامِ الْبَرَرَةِ وَمَثَلُ الَّذِي يَقْرَأُ وَهُوَ يَتَعَاهَدُهُ وَهُوَ عَلَيْهِ شَدِيدٌ فَلَهُ أَجْرَانِ

**قوله: عَبَسَ: كَلَحَ وَأَعْرَضَ:** (عَبَسَ وَتَوَلَّىٰ ۝ أَن جَاءَهُ الْأَعْمَىٰ ۝) هغوی غصه شو او متوجه نه شو په دې خبره چه هغوی له یو ړوند راغلو. فرمائی عبس معنی کلح، یعنی تریوتندې شو اود تولی معنی ده اعراض یعنی ډډه ئې اوکړه او متوجه نه شو.

**قوله: وَقَالَ غَيْرُهُ: مُطَهَّرَةٍ: لَا يَمَسُّهَا إِلَّا الْمُطَهَّرُونَ وَهُمُ الْمَلَائِكَةُ:** دوه آیاتونه دی (صُحُفًا مُّطَهَّرَةً ۝) او (لَّا يَمَسُّهُ إِلَّا الْمُطَهَّرُونَ ۝) دینه معلومیږی چه امام بخاری رحمه الله "مس" نه حقیقی مس مراد اخلی او دا خودل غواړی چه قرآن مجید ته بغیرد پاکوالی نه لاس اوړل جائزنه دی، دې له لاس اوړلو دپاره طهارت شرط دې، د جمهورو اوائمه اربعه همدغه مسلك دې.([1])

**مس مصحف او طهارت:** داؤد ظاهری ابن حزم، ابن منذر او ابن جریر په نیزد حائضه جنبی او محدث بالحدث الاصغر د پاره مس مصحف جائز دی- امام بخاری رحمه الله (صُحُفًا مُّطَهَّرَةً ۝) نه پس (لَّا يَمَسُّهُ إِلَّا الْمُطَهَّرُونَ ۝) ذکر کولوسره دې خبرې طرف ته اشاره کړیده چه د مس حقیقی معنی مراد ده. لهذا حائضه، جنبی او محدث بالحدث الاصغر د پاره مصحف مس کول جائزنه دی. بعض خلق د دې قائل دی چه دلته د مس مجازی معنی مراد ده او هغه مس مصحف ته په حالت د حدث او جنابت کښې جائزوائی. مجازی معنی دا ده چه د قرآن مجید تلاوت اود دې په معنی کښې غور کولوسره خوندهغه خلق حاصلولې شی د چا زړه چه د ایمان د نور نه منور وی او خوك چه د کفر او شرك د نجاست نه پاك وی.([2])-

ابن العربی رحمه الله د امام بخاری رحمه الله د طرف نه د مجازی معنی نسبت کړیدې او وئیلی دی چه د امام بخاری په نیزد (لَّا يَمَسُّهُ إِلَّا الْمُطَهَّرُونَ ۝) کښې مجازی معنی مراد ده، او بیائی وئیلی چه همدغه معنی صحیح هم ده. هغوی وائی چه حدیث "ذاق طعم الایمان، من رضی بالله ربا، وبالاسلام دینا، وبمحمد صلى الله عليه وسلم نبیاورسولا" نه د دې تائیدهم کیږی، خو بیاهم په دې کښې په ظاهره عدول دې.([3]) لیکن د ابن العربی د امام بخاری رحمه الله طرف ته دا نسبت کول

---

...بقیه ازحاشیه گذشته]رقم الحدیث ١٤٥٤ :واخرجه ابن ماجاه فی کتاب الادب باب ثواب القران رقم الحدیث ٣٧٧٩:واخرجه النسائی فی السنن الکبری کتاب التفسیر باب سورة عبس رقم الحدیث : ١١٦٤٦ واخرجه فی فضائل القران رقم الحدیث-٨٠٤٦ :

[1]) الجامع لاحکام القران للقرطبی ١٧/٢٢٦:واحکام القران للشیخ محمدادریس الکاندهلوی سورة الواقعة-٥/١٠٠:

[2]) الجامع لاحکام القران ١٧/٢٢٦ :سورة واقعه

[3]) الجامع لاحکام القران ١٧/٢٢٦ :سورة واقعة واحکام القران لابن العربی-٤/١٧٣٨:

صحیح نه دی خکه چه دَ امام بخاری رحمه الله په نیزد حقیقی معنی مراد ده. امام مالک رحمه الله دَ عمروبن حزم دَ کتاب نه روایت نقل کړیدې "لایمس القرآن الاطاهر"[1]- نودَ دې په وړاندې (لَّا يَمَسُّهُۥٓ إِلَّا ٱلْمُطَهَّرُونَ) هم دغه مطلب کیدو چه قرآن له لاس اوړلودَ پاره طهارت شرط دې او امام بخاری هم دَ دې طرف ته اشاره کوی، ابن العربی چه کومه خبره کړیده هغه دَ امام بخاری نه چرته نقل نه ده.

**قوله:** لِأَنَّ الصُّحُفَ: [2] يَقَعُ عَلَيْهَا التَّطْهِيرُ فَجُعِلَ التَّطْهِيرُ لِمَنْ حَمَلَهَا أَيْضًا: دَامام بخاری رحمه الله مقصد دا دې چه (صُحُفًا مُّطَهَّرَةً) کښې صحف ته "مطهرة" ونیلې شویدې او (لَّا يَمَسُّهُۥٓ إِلَّا ٱلْمُطَهَّرُونَ) کښې حاملین صحف ملائکه ته مطهر ونیلې شویدې. اصلاً دا "تطهیر" دَ صحف صفت دې لیکن ملائکه دَ دې صحف حامل دی نودَ دوی صفت هم تطهیر اوګرځیدلو او دوی ته هم مطهر اوونیلې شو دا بالکل داسې ده لکه (فَٱلْمُدَبِّرَٰتِ أَمْرًا) کښې تدبیر اصل صفت نو راکبین خیل یعنی دَ فرښتودې لیکن هغه خیل (اسونه) دَ دې راکبین(فرښتو) حامل دی په دې وجه خیل ته هم مدبرات اوونیلې شو او تدبیردَ هغوی صفت جوړ کړلو.

**قوله:** سَفَرَةٍ الْمَلَائِكَةُ وَاحِدُهُمْ سَافِرٌ سَفَرْتُ أَصْلَحْتُ بَيْنَهُمْ وَجُعِلَتِ الْمَلَائِكَةُ إِذَا نَزَلَتْ بِوَحْيِ اللَّهِ وَتَأْدِيَتِهِ كَالسَّفِيرِ الَّذِي يُصْلِحُ بَيْنَ الْقَوْمِ: آیت کښې دی (بِأَيْدِى سَفَرَةٍ) فرمائی سفرة نه فرښتې مراددی. دا دَ سافر جمع ده سافر لیکلونکې ته وائی، سفرت بین القوم ما په قوم کښې صلح اوکړه، دَ الله تعالی وحی راوړل او غه انبیاء کرام ته رسولوکښې فرښتو لره په شان دَ سفیر اوګرځولې شوې چه په خلقو کښې صلح کوی.

**قوله:** وَقَالَ غَيْرُهُ تَصَدَّى تَغَافَلَ عَنْهُ: (فَأَنتَ لَهُۥ تَصَدَّىٰ) کښې تصدی ترجمه تغافل سره کړیده. لیکن دا صحیح نه ده بلکه دَ دې معنی توجه کول او وریسې لګیدلو راځی.[3] دا تفسیردَ تلهی دې تصدی تفسیرغالبًا حذف شویدې او دَ کاتب دَ سهو نه تلهی تفسیردلته اولیکلې شو.

**قوله:** وَقَالَ مُجَاهِدٌ لَمَّا يَقْضِ لَا يَقْضِي أَحَدٌ مَا أُمِرَ بِهِ: آیت کښې دی (كَلَّا لَمَّا يَقْضِ مَآ أَمَرَهُۥ) هیڅ کله (شک نه (اداکوی) هغوی ته چه کوم حکم ورکړیشوې وو هغه ئې په ځای راوړلو. مجاهد رحمه الله فرمائی لمايقض معنی ده دَ کومې خبرې حکم چه ورکړیشوې وو هغه چا

---

[1] الجامع لاحکام القران للقرطبی ۱۷/۲۲۶ :سورة واقعة

[2] وفی بعض النسخ" لایقع "بزیادةلا......وجهه ان الصحف لایطلق علیها التطهیر الذی هوخلاف التنجیس حقیقة، وانما المراد انها مطهرة عن ان بنا لها ایدی الکفار)عمدة القاری_(۱۹/۲۷۸:

[3] عمدة القاری-۱۹/۲۷۸:

پوره نه کړه.

**قوله: وَقَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ تَرْهَقُهَا تَغْشَاهَا شِدَّةٌ:** آیت کښې دی (تَرْهَقُهَا قَتَرَةٌ) په هغوی باندې رد غم، خفګان به خورشوی وی. حضرت ابن عباس رضی الله عنهما فرمائی چه ترهقها معنی ده په هغوی به شدت او سختی خوره وی.

**قوله: مُسْفِرَةٌ مُشْرِقَةٌ:** آیت کښې دی (وُجُوهٌ يَوْمَئِذٍ مُسْفِرَةٌ) ډیر مخونه به په هغه ورځ روښانه وی. فرمائی مسفرة معنی روښانه پرقیه ونکی.

**قوله: تَلَهَّى تَشَاغَلَ:** آیت کښې دی (فَأَنْتَ عَنْهُ تَلَهَّى) ته د دوی نه بې رخی کوې. تلهی معنی بې رخی کول، ډډه کول.

## [۴۱۸] باب: تفسير سورة إِذَا الشَّمْسُ كُوِّرَتْ

انْكَدَرَتْ انْتَثَرَتْ وَقَالَ الْحَسَنُ سُجِّرَتْ ذَهَبَ مَاؤُهَا فَلَا يَبْقَى قَطْرَةٌ وَقَالَ مُجَاهِدٌ الْمَسْجُورُ الْمَمْلُوءُ وَقَالَ غَيْرُهُ سُجِرَتْ أَفْضَى بَعْضُهَا إِلَى بَعْضٍ فَصَارَتْ بَحْرًا وَاحِدًا وَالْخُنَّسُ تَخْنِسُ فِي مُجْرَاهَا تَرْجِعُ وَتَكْنِسُ تَسْتَتِرُ كَمَا تَكْنِسُ الظِّبَاءُ تَنَفَّسَ ارْتَفَعَ النَّهَارُ وَالظَّنِينُ الْمُتَّهَمُ وَالضَّنِينُ يَضَنُّ بِهِ وَقَالَ عُمَرُ النُّفُوسُ زُوِّجَتْ يُزَوَّجُ نَظِيرَهُ مِنْ أَهْلِ الْجَنَّةِ وَالنَّارِ ثُمَّ قَرَأَ احْشُرُوا الَّذِينَ ظَلَمُوا وَأَزْوَاجَهُمْ عَسْعَسَ أَدْبَرَ

**قوله: انْكَدَرَتْ انْتَثَرَتْ:** آیت کښې دی (وَإِذَا النُّجُومُ انْكَدَرَتْ) اوچه کله ستوری ماتیږی او راپریوزی. فرمائی انکدرت معنی انتشرت ده یعنی خواره واره پریوزی.

**قوله: وَالْخُنَّسُ تَخْنِسُ فِي مُجْرَاهَا تَرْجِعُ وَتَكْنِسُ تَسْتَتِرُ كَمَا تَكْنِسُ الظِّبَاءُ:** (فَلَا أُقْسِمُ بِالْخُنَّسِ ۞ الْجَوَارِ الْكُنَّسِ) فرمائی خنس معنی ده هغه ستورې چه واپس راګرځی په خپله لار او خپل ځای ته واپس کیږی او د جوار نه نیغ تلونکی ستوری مراد دی او د کنس نه هغه ستوری مراد دی چه د هوسئی په شان پټیږی. د ستورو درې صفتونه ذکر دی دا د کرمانی رحمه الله په قول اووه سیارات دی او د قسطلانی رحمه الله په قول زحل، مشتری، مریخ، زهره او عطارد مراد دی چه کله د مغرب نه مشرق طرف ته نیغ ځی اوکله بیا په دغه لار واپس راګرځی او کله نمر سره خواکې راشی او غائب شی لکه څنګه چه هوسئی د ښاخونونه جوړشوی کورکښې پټیږی.[۱]

**قوله: تَنَفَّسَ ارْتَفَعَ النَّهَارُ:** آیت کښې دی (وَالصُّبْحِ إِذَا تَنَفَّسَ) اوقسم دې د سحر کله چه هغه راشی، تنفس معنی ورځ راختل.

**قوله: وَالظَّنِينُ الْمُتَّهَمُ وَالضَّنِينُ يَضَنُّ بِهِ:** (وَمَا هُوَ عَلَى الْغَيْبِ بِضَنِينٍ) په دې کښې دوه

[۱] ماخوذ ازحاشیه کتاب ۷۳۵ و تفسیرعثمانی-۷۸۰

قراءتونه دى يوقراءت دَ ابن كثير او كسائى دې "ظنين" په معنى متبهم په چا چه تهمت لګولې شوى وى او دوئم قراءت دَ حمزه او عاصم دې "بضنين" په معنى دَ بخيل.

**قوله:** وَقَالَ عُمَرُ النُّفُوسُ زُوِّجَتْ يُزَوَّجُ نَظِيرَهُ مِنْ أَهْلِ الْجَنَّةِ وَالنَّارِ ثُمَّ قَرَأَ احْشُرُوا الَّذِينَ ظَلَمُوا وَأَزْوَاجَهُمْ: آيت كښې دى ﴿وَإِذَا النُّفُوسُ زُوِّجَتْ﴾ حضرت عمر رضي الله عنه دَ دې په تفسير كښې فرمائى چه اهل جنت او اهل دوزخ نه به هر سړې دَ ده په شان سره اوتړلې شى بيا هغوى دَ سورة صافات دا آيت تلاوت كړو ﴿احْشُرُوا الَّذِينَ ظَلَمُوا وَأَزْوَاجَهُمْ﴾ (ملائكه ته په حكم وى) جمع كړئى ظالمانولره اودَ هغوى سره څكونكولره.

**قوله:** عَسْعَسَ أَدْبَرَ: آيت كښې دى ﴿وَالَّيْلِ إِذَا عَسْعَسَ﴾ اوقسم دې دَ شپې كله چه هغه ځى. عسعس په معنى د ادبر ده، واپس تلل، شاكول واپس كيدل.

## [٤١٩] باب: تفسير سُورَةُ إِذَا السَّمَاءُ انْفَطَرَتْ

وَقَالَ الرَّبِيعُ بْنُ خُثَيْمٍ فُجِّرَتْ فَاضَتْ وَقَرَأَ الْأَعْمَشُ وَعَاصِمٌ فَعَدَلَكَ بِالتَّخْفِيفِ وَقَرَأَهُ أَهْلُ الْحِجَازِ بِالتَّشْدِيدِ وَأَرَادَ مُعْتَدِلَ الْخَلْقِ وَمَنْ خَفَّفَ يَعْنِي فِي أَيِّ صُورَةٍ شَاءَ إِمَّا حَسَنٌ وَإِمَّا قَبِيحٌ أَوْ طَوِيلٌ أَوْ قَصِيرٌ

**قوله:** فُجِّرَتْ فَاضَتْ: آيت كښې دى ﴿وَإِذَا الْبِحَارُ فُجِّرَتْ﴾ اوچه كله ټول په درياب لاهوشى. فجرت معنى فاضت يعنى لاهوكيدل.

**قوله:** الذي خلقك فسواك فعدلك في اي صورة ما شاء ركبك: اعمش او عاصم "فعدلك" تخفيف سره لوستلې دې او اهل حجاز دا "فعدّلك" تشديد سره لولى، هغوى دينه په خلقت كښې دَ اعتدال مراد اخلى چه الله تعالى دَ انسان اندامونه برابر برابر جوړكړى دى، داسې نه ده چه يو لاس اوږد او بل لنډ، او كوموخلقو چه دَ دال په تخفيف سره لوستلې دې هغوى مراد اخلى چه الله تعالى په كوم صورت كښې غوښتل ته ئې جوړكړې. ښائسته يا بدرنګه، اوږد يا وړوكې. ليكن "ومن خفف" عطف كه دَ "اراد" په فاعل باندې اوكړېشى نو په دواړو صورتونوكښې معتدل الخلق به مراد وى يعنى چا چه په تشديدسره لوستلې هغوى هم، او چا چه تخفيف سره هغوى هم معتدالخلق معنى مراد اخلى. اودَ دې ګنجائش په دې وجه دې چه عدل او عدل بالتشديدوالتخفيف دواړه په يوه معنى هم راځى. يعنى ﴿فِي أَيِّ صُورَةٍ مَا شَاءَ رَكَّبَكَ﴾ نه مقصود دا دې چه دَ ټولوپه صورتونو كښې لږ ډير فرق كيخودو، څوك ښائسته دې څوك بدرنګه، څوك اوږدې څوك لنډ خو په حيثيت مجموعى سره دَ انسان صورت دَ ټولوځناورو دَ صورت نه بهتر جوړكړې.

## [۴۲۰] باب: تفسیر سُورَةُ وَیْلٌ لِلْمُطَفِّفِینَ

وَقَالَ مُجَاهِدٌ بَلْ رَانَ ثَبْتُ الْخَطَایَا ثُوِّبَ جُوزِیَ وَقَالَ غَیْرُهُ الْمُطَفِّفُ لَا یُوَفِّی غَیْرَهُ وَقَالَ غَیْرُهُ الْمُطَفِّفُ لَا یُوَفِّی غَیْرَهُ. الرَّحِیقِ: الخمر، خِتَامُهُ مِسْكٌ: طینته، اَلتَّسْنِیمِ: یعلو شراب أهل الجنة. یَوْمَ یَقُومُ النَّاسُ لِرَبِّ الْعَالَمِینَ.

[۴۶۵۴] (۱) حَدَّثَنَا إِبْرَاهِیمُ بْنُ الْمُنْذِرِ حَدَّثَنَا مَعْنٌ قَالَ حَدَّثَنِی مَالِكٌ عَنْ نَافِعٍ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُمَرَ رَضِیَ اللَّهُ عَنْهُمَا أَنَّ النَّبِیَّ صَلَّی اللَّهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ قَالَ یَوْمَ یَقُومُ النَّاسُ لِرَبِّ الْعَالَمِینَ حَتَّی یَغِیبَ أَحَدُهُمْ فِی رَشْحِهِ إِلَی أَنْصَافِ أُذُنَیْهِ

**قوله:** رَانَ ثَبْتُ الْخَطَایَا: آیت کښې دی (کَلَّا بَلْ رَانَ عَلَی قُلُوبِهِمْ مَا کَانُوا یَکْسِبُونَ) هیڅ کله نه، (یعنی د قیامت منکرانو سره هیڅ دلیل نشته) بلکه (د تکذیب اصل وجه دا ده چه) د هغوی په زړونو باندې د هغوی د بدو اعمالو زنګ ناست دې. فرمائی ران معنی د ګناهونو کلکیدل.

**قوله:** ثُوِّبَ جُوزِیَ: آیت کښې دی (هَلْ ثُوِّبَ الْکُفَّارُ مَا کَانُوا یَفْعَلُونَ) واقعی کافرانو ته د هغوی د کړیشوی عمل ښه بدله ملاوشوه. فرمائی ثوب معنی جوزی هغوی ته بدله ورکړیشوه.

**قوله:** وَقَالَ غَیْرُهُ الْمُطَفِّفُ لَا یُوَفِّی غَیْرَهُ: (وَیْلٌ لِلْمُطَفِّفِینَ) لویه خرابی ده په ناپ تول کښې کمې کونکو دپاره. مجاهد نه غیر فرمائی مطفف معنی چه بل ته پوره تول نه ورکوی.

## [۴۲۱] باب: تفسیر سُورَةُ إِذَا السَّمَاءُ انْشَقَّتْ

قَالَ مُجَاهِدٌ کِتَابَهُ بِشِمَالِهِ یَأْخُذُ کِتَابَهُ مِنْ وَرَاءِ ظَهْرِهِ وَسَقَ جَمَعَ مِنْ دَابَّةٍ ظَنَّ أَنْ لَنْ یَحُورَ لَا یَرْجِعَ إِلَیْنَا وَقَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ یُوعُونَ یُسِرُّونَ

**قوله:** وَسَقَ: جَمَعَ مِنْ دَابَّةٍ: آیت کښې دی (وَاللَّیْلِ وَمَا وَسَقَ) او قسم دې د شپې او د هغه څیزونو کوم چه شپه راغونډه وی یا پټوی. فرمائی وسق معنی شپه څناور وغیره راجمع کوی، او د شپې تول په خپل خپل ځائ کښې راجمع کیږی.

**قوله:** ظَنَّ أَنْ لَنْ یَحُورَ: لَا یَرْجِعَ إِلَیْنَا: آیت کښې دی (إِنَّهُ ظَنَّ أَنْ لَنْ یَحُورَ) هغه دا خیال کړې وو چه هغه ته (د الله د طرف ته) واپس کیدل نه دی. فرمائی لن یحور معنی هغه به هیڅ کله هم زمونږ طرف ته نه واپس کیږی.

**قوله:** قَالَ مُجَاهِدٌ: کِتَابَهُ بِشِمَالِهِ: یَأْخُذُ کِتَابَهُ مِنْ وَرَاءِ ظَهْرِهِ: دوه آیاتونه دی، په یو آیت کښې دی (وَأَمَّا مَنْ أُوتِیَ کِتَابَهُ بِشِمَالِهِ) بِشِمَالِهِ. او په دوئم آیت کښې دی (وَأَمَّا مَنْ أُوتِیَ کِتَابَهُ

(۱) واخرجه ایضاً فی کتاب الرقاق قوله تعالی الایظن اولئک انهم مبعوثون لیوم عظیم، رقم الحدیث ۶۵۳۱: واخرجه مسلم فی الجنة وصفة نعیمها واهلها رقم الحدیث-۲۸۶۲:

وَرَآءَ ظَهْرِهٖ) حضرت مجاهد رحمه الله دواړه دلته جمع کړل یعنی هغه به خپله اعمال نامه په ګس لاس کښې واخلي او د شا د طرف نه به ئی اخلی (ځکه چه د کافرلاس به د شا د طرف نه راویستلې شوې وی)

## [۴۲۲] بَاب فَسَوْفَ يُحَاسَبُ حِسَابًا يَسِيرًا

[۴۶۵۵] حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ عَلِيٍّ حَدَّثَنَا يَحْيَى عَنْ عُثْمَانَ بْنِ الْأَسْوَدِ قَالَ سَمِعْتُ ابْنَ أَبِي مُلَيْكَةَ سَمِعْتُ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا قَالَتْ سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ح وحَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ حَرْبٍ حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ عَنْ أَيُّوبَ عَنْ ابْنِ أَبِي مُلَيْكَةَ عَنْ عَائِشَةَ عَنْ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ح وحَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ عَنْ يَحْيَى عَنْ أَبِي يُونُسَ حَاتِمِ بْنِ أَبِي صَغِيرَةَ عَنْ ابْنِ أَبِي مُلَيْكَةَ عَنْ الْقَاسِمِ عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا قَالَتْ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَيْسَ أَحَدٌ يُحَاسَبُ إِلَّا هَلَكَ قَالَتْ قُلْتُ يَا رَسُولَ اللَّهِ جَعَلَنِي اللَّهُ فِدَاءَكَ أَلَيْسَ يَقُولُ اللَّهُ عَزَّ وَجَلَّ فَأَمَّا مَنْ أُوتِيَ كِتَابَهُ بِيَمِينِهِ فَسَوْفَ يُحَاسَبُ حِسَابًا يَسِيرًا قَالَ ذَاكَ الْعَرْضُ يُعْرَضُونَ وَمَنْ نُوقِشَ الْحِسَابَ هَلَكَ

## [۴۲۳] بَاب لَتَرْكَبُنَّ طَبَقًا عَنْ طَبَقٍ

[۴۶۵۶] حَدَّثَنِي سَعِيدُ بْنُ النَّضْرِ أَخْبَرَنَا هُشَيْمٌ أَخْبَرَنَا أَبُو بِشْرٍ جَعْفَرُ بْنُ إِيَاسٍ عَنْ مُجَاهِدٍ قَالَ قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ لَتَرْكَبُنَّ طَبَقًا عَنْ طَبَقٍ حَالًا بَعْدَ حَالٍ قَالَ هَذَا نَبِيُّكُمْ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

## [۴۲۴] باب: تفسير سُورَةُ الْبُرُوجِ

وَقَالَ مُجَاهِدٌ الْأُخْدُودِ شَقٌّ فِي الْأَرْضِ فَتَنُوا عَذَّبُوا وقال ابن عباس في قوله تعالى الودود الحبيب المجيد الكريم

**قوله:** وَقَالَ مُجَاهِدٌ الْأُخْدُودِ شَقٌّ فِي الْأَرْضِ: آیت کښې دی (قُتِلَ أَصْحٰبُ الْأُخْدُودِ) خندق والا مړه کړېشو، مجاهد رحمه الله فرمائی چه اخدود په زمکه کښې کندې اوخندق ته وائی.

**قوله:** فَتَنُوا عَذَّبُوا: آیت کښې دی (إِنَّ الَّذِينَ فَتَنُوا الْمُؤْمِنِينَ وَالْمُؤْمِنٰتِ ثُمَّ لَمْ يَتُوبُوا فَلَهُمْ عَذَابُ جَهَنَّمَ) بیشکه کومو خلقو چه ایماندارو سړو او ایماندارو ښځوته عذاب ورکړو بیا هغوی توبه اونه کړه نود هغوی د پاره د دوزخ عذاب دې. فرمائی فتنوا معنی هغوی عذاب ورکړو، تکلیف ئی اورسولو.

## [۴۲۵] باب: تفسير سُورَةُ الطَّارِقِ

هو النجم، وما اتاك ليلاً فهو طارق، النجم الثاقب: المضيئ وقال مجاهد: الثاقب: الذي يتوهج.
وَقَالَ مُجَاهِدٌ ذَاتِ الرَّجْعِ سَحَابٌ يَرْجِعُ بِالْمَطَرِ ذَاتِ الصَّدْعِ تَتَصَدَّعُ بِالنَّبَاتِ

وقال ابن عباس: لقول فصل: لحق، لما عليها حافظ: الاعليها حافظ

**قوله:** وَقَالَ مُجَاهِدٌ ذَاتِ الرَّجْعِ سَحَابٌ يَرْجِعُ بِالْمَطَرِ ذَاتِ الصَّدْعِ تَتَصَدَّعُ بِالنَّبَاتِ:

آيت مبارك كښې دى ﴿وَالسَّمَاءِ ذَاتِ الرَّجْعِ ۝ وَالْأَرْضِ ذَاتِ الصَّدْعِ ۝﴾ قسم دې دَ باران ورونكى آسمان باندې، اوقسم دې دَ زمكې چه (تخم راوتلووخت كښې) شليږى. مجاهد رحمه الله فرمائى الرجع نه اوريځې مراد دى چه باران راګرځوى او ذات الصدع نه مراد زمكه ده كوم چه تخم راټوكوى او شليږى.

## [۴۲۶] باب: تفسير سُورَةُ سَبِّحِ اسْمَ رَبِّكَ الْأَعْلَى

وقال مجاهد قدر فهدى قدر للانسان الشقاء والسعادة وهدى الانعام لمراتعها وقال ابن عباس غثاء احوى هشيما متغيرا.

[۴۶۵۷] حَدَّثَنَا عَبْدَانُ قَالَ أَخْبَرَنِي أَبِي عَنْ شُعْبَةَ عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ عَنِ الْبَرَاءِ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ أَوَّلُ مَنْ قَدِمَ عَلَيْنَا مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مُصْعَبُ بْنُ عُمَيْرٍ وَابْنُ أُمِّ مَكْتُومٍ فَجَعَلَا يُقْرِئَانِنَا الْقُرْآنَ ثُمَّ جَاءَ عَمَّارٌ وَبِلَالٌ وَسَعْدٌ ثُمَّ جَاءَ عُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِ فِي عِشْرِينَ ثُمَّ جَاءَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَمَا رَأَيْتُ أَهْلَ الْمَدِينَةِ فَرِحُوا بِشَيْءٍ فَرَحَهُمْ بِهِ حَتَّى رَأَيْتُ الْوَلَائِدَ وَالصِّبْيَانَ يَقُولُونَ هَذَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَدْ جَاءَ فَمَا جَاءَ حَتَّى قَرَأْتُ سَبِّحِ اسْمَ رَبِّكَ الْأَعْلَى فِي سُوَرٍ مِثْلِهَا

## [۴۲۷] باب: تفسير سُورَةُ هَلْ أَتَاكَ حَدِيثُ الْغَاشِيَةِ

وَقَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ عَامِلَةٌ نَاصِبَةٌ النَّصَارَى وَقَالَ مُجَاهِدٌ عَيْنٍ آنِيَةٍ بَلَغَ إِنَاهَا وَحَانَ شُرْبُهَا حَمِيمٍ آنٍ بَلَغَ إِنَاهُ لَا تَسْمَعُ فِيهَا لَاغِيَةً شَتْمًا وَيُقَالُ الضَّرِيعُ نَبْتٌ يُقَالُ لَهُ الشِّبْرِقُ يُسَمِّيهِ أَهْلُ الْحِجَازِ الضَّرِيعَ إِذَا يَبِسَ وَهُوَ سُمٌّ بِمُسَيْطِرٍ بِمُسَلَّطٍ وَيُقْرَأُ بِالصَّادِ وَالسِّينِ وَقَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ إِيَابَهُمْ مَرْجِعَهُمْ

**قوله:** وَقَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ: عَامِلَةٌ نَاصِبَةٌ: النَّصَارَى: آيت كښې دى ﴿وُجُوهٌ يَوْمَئِذٍ خَاشِعَةٌ ۝ عَامِلَةٌ نَاصِبَةٌ ۝﴾ ډير مخونه به په هغه ورځ ذليل او محنت كونكې ستړى وى، حضرت ابن عباس رضي الله عنه فرمائى عاملة ناصبة نه مراد انصار دى. علامه شبيراحمد عثمانى رحمه الله دَ دې آيت لاندې ليكى: "يعنى په آخرت كښې تكليفونه برداشت كونكى او دَ مصيبت برداشت كولو نه خراب حال او بعضو وئيلى دى "عاملة ناصبة" نه دَ دنيا حال مراد دې يعنى ځومره خلق دى چه په دنيا كښې خوارئ كولو كولو سره ستړې كيږى مګر دَ هغوى ټول محنتونه اوخوارئ دَ حق په لار دَ نه كيدو په وجه ټول بيكاره دى، دلته هم تكليفونه اوچت كړل او هلته هم په مصيبت كښې.

قوله: وَقَالَ مُجَاهِدٌ: عَيْنٍ آنِيَةٍ: بَلَغَ إِنَاهَا، وَحَانَ شُرْبُهَا، حَمِيمٍ آنٍ: بَلَغَ إِنَاهُ: آيت كښې دى (تُسْقٰى مِنْ عَيْنٍ اٰنِيَةٍ) اود خوټکيدلې چينې نه به پرې اوبه څکولې شى. مجاهد رحمه الله فرمائى عين انية معنى بلغ اناها يعنى دهغې ګرمى آخرى حدته اورسيدله. اود هغې د څکلو وخت راغلو. دسورة رحمن آيت "حميم ان" همدغه معنى ده، چه دهغې ګرمى حدته اورسيدله.

قوله: لَا تَسْمَعُ فِيهَا لَاغِيَةً: شَتْمًا: په هغه جنت کښې هيڅ فضول خبره نه اورې. فرمائى لاغية نه کنځل وغيره مراد دى.

قوله: الضَّرِيعُ نَبْتٌ يُقَالُ لَهُ الشِّبْرِقُ يُسَمِّيهِ أَهْلُ الْحِجَازِ الضَّرِيعَ إِذَا يَبِسَ وَهُوَ سُمٌّ: آيت کښې دى (لَيْسَ لَهُمْ طَعَامٌ اِلَّا مِنْ ضَرِيْعٍ) اوهغوى له به بغير د ازغنې جاړې بل هيڅ خوراك نه نصيب کيږى. فرمائى ضريع يو وابنه دى کوم ته چه شبرق وائى، دا وابنه چه کله اوچ شى نو اهل حجاز دې ته ضريع وائى او دا زهر دى.

قوله: بِمُسَيْطِرٍ: بِمُسَلَّطٍ، وَيُقْرَأُ بِالصَّادِ وَالسِّينِ: آيت کښې دى (لَسْتَ عَلَيْهِمْ بِمُصَيْطِرٍ) ته په دوى باندې مسلط نه ئې. فرمائى مصيطر معنى مسلط اودا صاد اوسين دواړو سره لوستلې شى.

قوله: وَقَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ: إِيَابَهُمْ: مَرْجِعَهُمْ: آيت کښې دى (اِنَّ اِلَيْنَآ اِيَابَهُمْ) هم مونږ ته به واپس کيږى. حضرت ابن عباس رضي الله عنه فرمائى ايابهم په معنى مرجعهم ده يعنى د هغوى واپس کيدل.

## [٤٢٨] باب: تفسير سُورَةُ وَالْفَجْرِ

وَقَالَ مُجَاهِدٌ الْوَتْرُ اللَّهُ إِرَمَ ذَاتِ الْعِمَادِ يَعْنِي الْقَدِيمَةَ وَالْعِمَادُ أَهْلُ عَمُودٍ لَا يُقِيمُونَ سَوْطَ عَذَابٍ الَّذِي عُذِّبُوا بِهِ أَكْلًا لَمًّا السَّفُّ وَجَمًّا الْكَثِيرُ وَقَالَ مُجَاهِدٌ كُلُّ شَيْءٍ خَلَقَهُ فَهُوَ شَفْعٌ السَّمَاءُ شَفْعٌ وَالْوَتْرُ اللَّهُ تَبَارَكَ وَتَعَالَى وَقَالَ غَيْرُهُ سَوْطَ عَذَابٍ كَلِمَةٌ تَقُولُهَا الْعَرَبُ لِكُلِّ نَوْعٍ مِنَ الْعَذَابِ يَدْخُلُ فِيهِ السَّوْطُ لَبِالْمِرْصَادِ إِلَيْهِ الْمَصِيرُ تَحَاضُّونَ تُحَافِظُونَ وَتَحُضُّونَ تَأْمُرُونَ بِإِطْعَامِهِ الْمُطْمَئِنَّةُ الْمُصَدِّقَةُ بِالثَّوَابِ وَقَالَ الْحَسَنُ يَا أَيَّتُهَا النَّفْسُ الْمُطْمَئِنَّةُ إِذَا أَرَادَ اللَّهُ عَزَّ وَجَلَّ قَبْضَهَا اطْمَأَنَّتْ إِلَى اللَّهِ وَاطْمَأَنَّ اللَّهُ إِلَيْهَا وَرَضِيَتْ عَنِ اللَّهِ وَرَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا فَأَمَرَ بِقَبْضِ رُوحِهَا وَأَدْخَلَهَا اللَّهُ الْجَنَّةَ وَجَعَلَهُ مِنْ عِبَادِهِ الصَّالِحِينَ وَقَالَ غَيْرُهُ جَابُوا نَقَبُوا مِنْ جِيبِ الْقَمِيصِ قُطِعَ لَهُ جَيْبٌ يَجُوبُ الْفَلَاةَ يَقْطَعُهَا لَمًّا لَمَمْتُهُ أَجْمَعَ أَتَيْتُ عَلَى آخِرِهِ

قوله: وَقَالَ مُجَاهِدٌ: الْوَتْرُ اللَّهُ: (وَّالشَّفْعِ وَالْوَتْرِ) الوتر هو فى اللغة الفرد ومن العدد ما ليس بشفع اى زوج ومنه صلاة الوتر وهو من اسماء الله تعالى وهو الفذ الفرد جل جلاله ويطلق على يوم عرفة وقرا حمزة وعلى بكسر الواو وقرا غيرهما بفتحها

**قوله:** إِرَمَ ذَاتِ الْعِمَادِ: يَعْنِي الْقَدِيمَةَ وَالْعِمَادُ أَهْلُ عَمُودٍ لَا يُقِيمُونَ: (أَلَمْ تَرَ كَيْفَ فَعَلَ رَبُّكَ بِعَادٍ ۝ إِرَمَ ذَاتِ الْعِمَادِ) دَقوم عاد دوه قسمونه دي يوعاد اولی او دونم عادآخره. دلته په آيت کښې "ارم" چه دَ عاد دَ پاره عطف بيان په توګه ذکر شويدې دا دَ دې خبرې دَ خودلودپاره دې چه دلته دَ عادنه عاداولی او عاد قديمه مراد دی. وړاندې فرمائي چه عماد دَ عمود والا ته وائي اوعمود ستن ته وائي دلته دَ دينه خيمې مراد دی چه هغوی دَ خيموالا وو، په خيموکښې به اوسيدل په کوموکښې چه دَ ستنواستعمال کيدلو.

**قوله:** سَوْطَ عَذَابٍ: الَّذِي عُذِّبُوا بِهِ: آيت کښې دی (فَصَبَّ عَلَيْهِمْ رَبُّكَ سَوْطَ عَذَابٍ ۝) نوستا رب په هغوی باندې دَ غذاب کوړا راوَروله. فرمائي سوط عذاب نه هغه څيز مراد دې کوم سره چه هغوی له عذاب ورکړيشو.

**قوله:** أَكْلًا لَمًّا: السَّفُّ: (وَتَأْكُلُونَ التُّرَاثَ أَكْلًا لَمًّا ۝) فرمائي اکلالما معنی ده تيرول، راغونډولو خوړلو ته وائي "لممته اجمع: اتيت على اخره" کښې دَ دې آخره پورې اورسيدل، راغلل.

**قوله:** لَبِالْمِرْصَادِ: إِلَيْهِ الْمَصِيرُ: آيت کښې دی (إِنَّ رَبَّكَ لَبِالْمِرْصَادِ ۝) بيشکه ستا رب (دَ نافرمانو) په شيش کښې دې. فرمائي لبالمرصاد معنی ده الله تعالی طرف ته به ټول واپس ځي.

**قوله:** تَحَاضُّونَ: تُحَافِظُونَ وَتَحُضُّونَ: تَأْمُرُونَ بِإِطْعَامِهِ: آيت کښې دی (وَلَا تَحَاضُّونَ عَلَى طَعَامِ الْمِسْكِينِ ۝) او تاسو نوروته هم دَ مسکينانودَ خوراك ورکولو ترغيب نه ورکوئی. فرمائي تحاضون په معنی دَ تحافظون دې يعنی مسکين ته دَ خوراك ورکولو حفاظت نه کوئی. او بل قراءت تحضون دې يعنی تاسو دَ خوړلو حکم نه ورکوئی.

**قوله:** الْمُطْمَئِنَّةُ: الْمُصَدِّقَةُ بِالثَّوَابِ: آيت کښې دی (يَا أَيَّتُهَا النَّفْسُ الْمُطْمَئِنَّةُ ۝ ارْجِعِي إِلَى رَبِّكِ رَاضِيَةً مَرْضِيَّةً ۝) اې دَ اطمينان والا روحه! ته دَ خپل پروردګار (جواررحمت) طرف ته ځه او داسې چه ته دَ هغه نه خوشحاله او هغه ستانه خوشحاله. فرمائي المطمئنة معنی دَ الله تعالی په ثواب باندې يقين لرونکې اوحضرت حسن بصري رحمه الله فرمائي نفس مطمئنه هغه دې چه کله الله تعالی هغه راغوښتل غواړی نو چه هغه دَ الله تعالی طرف ته مطمئن وی او الله تعالی ته دَ هغه دَ طرف نه اطمينان وی.هغه دَ الله نه راضی او خوشحاله او الله تعالی دَ هغه نه راضی اوخوشحال وی. الله تعالی دَ خپل نفس دَ روح قبض کولو حکم ورکوی او هغه جنت ته داخله وی او هغه دَ خپلو نيکانو بنديګانونه جوړوی.

**قوله:** وَقَالَ غَيْرُهُ: جَابُوا: نَقَبُوا مِنْ جِيبِ الْقَمِيصِ قُطِعَ لَهُ جَيْبٌ يَجُوبُ الْفَلَاةَ: يَقْطَعُهَا: آيت کښې دی (وَثَمُودَ الَّذِينَ جَابُوا الصَّخْرَ بِالْوَادِ ۝) اودَ قوم ثمود سره (څه معامله اوشوه) چه په وادی قری کښې (دَغر)کاڼړی تراشل. فرمائي آيت کښې جابوا په معنی دَ نقبوا دې يعنی سوړې به ئی کولې.څيرل به ئی کول. جابوا ... جيب القميص نه ماخوذ دې کله چه پريکړې

شي او په قميص كښې جيب لګولې شي هغې ته وائي. يجوب الفلاة: هغه ځنګل قطع كوى.

## [۴۲۹] باب: تفسير سورة لا أقسم

وَقَالَ مُجَاهِدٌ وَأَنْتَ حِلٌّ بِهٰذَا الْبَلَدِ بِمَكَّةَ لَيْسَ عَلَيْكَ مَا عَلَى النَّاسِ فِيهِ مِنَ الْإِثْمِ وَوَالِدٍ آدَمَ وَمَا وَلَدَ لُبَدًا كَثِيرًا وَالنَّجْدَيْنِ الْخَيْرُ وَالشَّرُّ مَسْغَبَةٍ مَجَاعَةٍ مَتْرَبَةٍ السَّاقِطُ فِي التُّرَابِ يُقَالُ فَلَا اقْتَحَمَ الْعَقَبَةَ فَلَمْ يَقْتَحِمِ الْعَقَبَةَ فِي الدُّنْيَا ثُمَّ فَسَّرَ الْعَقَبَةَ فَقَالَ وَمَا أَدْرَاكَ مَا الْعَقَبَةُ فَكُّ رَقَبَةٍ أَوْ إِطْعَامٌ فِي يَوْمٍ ذِي مَسْغَبَةٍ

**قوله: وَقَالَ مُجَاهِدٌ: بِهٰذَا الْبَلَدِ: بِمَكَّةَ لَيْسَ عَلَيْكَ مَا عَلَى النَّاسِ فِيهِ مِنَ الْإِثْمِ:** آيت كښې دى (لَا أُقْسِمُ بِهٰذَا الْبَلَدِ ۝ وَأَنْتَ حِلٌّ بِهٰذَا الْبَلَدِ ۝) زه قسم خورم دَ دې ښار (مكې) او ستا دَ پاره په دې ښاركښې جنګ كول حلال كيدونكې دې، مجاهد رحمه الله فرمائى چه بهذاالبلد نه مراد مكه ده يعنى په تاباندې (قتال حلال كولوكښې) ګناه نشته كومه چه په نورو خلقو كښې په دې باندې ګناه ده. علامه شبيراحمد عثمانى رحمه الله دَ دې آيت لاندې ليكى: "په مكه كښې په هر سړى باندې دَ جنګ ممانعت دې مګر دَ حضور ﷺ دَ پاره دَ مكې دَ فتح په ورځ دا ممانعت نه وو پاتې، څوك چه هغوى ﷺ سره اوجنګيدل هغه ئې اووهلو او بعضې سنګين مجرمان ئې خاص دَ كعبې ديوال سره قتل كړل.بيا دَ هغه ورځ نه پس دا ممانعت ترقيامته پورې قائم شو. په دې آيت كښې دَ مكې قسم خوړلو سره دَ هغه مشكلاتو او سختو طرف ته اشارفرمائيلې ده، په كوم كښې چه انسان تيريږى او هغه وخت كښې دَ دنيا دَ ټولو نه بزرګ انسان هم په دې ښار كښې دَ دښمنانو دَ طرف نه ډيرې زياتې سختئى تيرولې دَ دې دَ پاره په منيځ كښې جمله معترضه (وَأَنْتَ حِلٌّ بِهٰذَا الْبَلَدِ ۝) فرمائيلوسره تسلى وركړه چه ستا احترام دَ دې ښار په جاهلانوكښې نشته خويووخت داسې راتلل غواړى چه ستا به هم په دې ښاركښې فاتحانه داخله وى او دَ دې مقدس مقام دَ هميشه پاكوالى او تقديس دَ پاره مجرمانوته سزا وركولو هم تا ته اجازت دې.

**تنبيه:** بعضو (وَأَنْتَ حِلٌّ بِهٰذَا الْبَلَدِ ۝) معنى وانت نازل دَ پاره دې يعنى زه دَ دې ښارقسم خورم چه ته په دې ښاركښې پيداكړيشوې او پاتې شوې.

**قوله: وَوَالِدٍ: آدَمَ وَمَا وَلَدَ:** آيت كښې دى (وَوَالِدٍ وَّمَا وَلَدَ ۝) قسم دې دَ پلار او اولاد. فرمائى والد نه حضرت آدم عليه السلام او ماولد نه دَ هغه اولاد مراد دې.

**قوله: لُبَدًا: كَثِيرًا:** آيت مبارك كښې دى (يَقُولُ أَهْلَكْتُ مَالًا لُّبَدًا ۝) وائى ما ډيرمال خرچ كړو. لبدا په معنى دَ كثيرا دې يعنى ډير مال.

**قوله: النَّجْدَيْنِ: الْخَيْرُ وَالشَّرُّ:** آيت كښې دى (وَهَدَيْنٰهُ النَّجْدَيْنِ ۝) اوهغه ته دواړه لارې دَ خير او شر اوخودلې نجدين معنى خيراوشر.

**قوله: مَسْغَبَةٍ: مَجَاعَةٍ:** آيت مبارك كښې دى (أَوْ إِطْعٰمٌ فِي يَوْمٍ ذِي مَسْغَبَةٍ ۝) يا خوراك وركول دَ

نهرې په ورځ. فرمائي مسغبة په معنى دَ مجاعة ده يعنى ولږه، نهره.

**قوله: مَتْرَبَةٍ: السَّاقِطُ فِي التُّرَابِ:** آيت مبارك كښې دى (اَوْ مِسْكِيْنًا ذَا مَتْرَبَةٍ) يا يو فقير محتاج ته خوراك ورکول. فرمائي متربة معنى داسې محتاج په په خاورو کښې ککړوى.

**قوله: يُقَالُ: فَلَا اقْتَحَمَ الْعَقَبَةَ: فَلَمْ يَقْتَحِمِ الْعَقَبَةَ فِي الدُّنْيَا:** په آيت کښې دى "فَلَا اقْتَحَمَ الْعَقَبَةَ" مګر هغه سړې دَ دين دَ کنډې نه دې وتلې(دَدين کارونو يعنى طاعات او عبادات ته په دې وجه کنډه اووئيلې شوه چه په نفس باندې ګران دى) فرمائي "فَلَا اقْتَحَمَ الْعَقَبَةَ" معنى هغه په دنيا کښې کنډه باندې نه دې تيرشوې.

## [۴۳۰] باب: تفسير سُورَةُ وَالشَّمْسِ وَضُحَاهَا

وَقَالَ مُجَاهِدٌ بِطَغْوَاهَا بِمَعَاصِيهَا وَلَا يَخَافُ عُقْبَاهَا عُقْبَى أَحَدٍ

[۴۶۵۸] حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ حَدَّثَنَا وُهَيْبٌ حَدَّثَنَا هِشَامٌ عَنْ أَبِيهِ أَنَّهُ أَخْبَرَهُ عَبْدُ اللَّهِ بْنُ زَمْعَةَ أَنَّهُ سَمِعَ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَخْطُبُ وَذَكَرَ النَّاقَةَ وَالَّذِي عَقَرَ فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذِ انْبَعَثَ أَشْقَاهَا انْبَعَثَ لَهَا رَجُلٌ عَزِيزٌ عَارِمٌ مَنِيعٌ فِي رَهْطِهِ مِثْلُ أَبِي زَمْعَةَ وَذَكَرَ النِّسَاءَ فَقَالَ يَعْمِدُ أَحَدُكُمْ فَيَجْلِدُ امْرَأَتَهُ جَلْدَ الْعَبْدِ فَلَعَلَّهُ يُضَاجِعُهَا مِنْ آخِرِ يَوْمِهِ ثُمَّ وَعَظَهُمْ فِي ضَحِكِهِمْ مِنَ الضَّرْطَةِ وَقَالَ لِمَ يَضْحَكُ أَحَدُكُمْ مِمَّا يَفْعَلُ وَقَالَ أَبُو مُعَاوِيَةَ حَدَّثَنَا هِشَامٌ عَنْ أَبِيهِ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ زَمْعَةَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِثْلُ أَبِي زَمْعَةَ عَمِّ الزُّبَيْرِ بْنِ الْعَوَّامِ

**قوله: وَقَالَ مُجَاهِدٌ: بِطَغْوَاهَا: بِمَعَاصِيهَا:** آيت کښې دى (كَذَّبَتْ ثَمُوْدُ بِطَغْوٰىهَآ) قوم ثمود دَ خپل شرارت په وجه (دَصالح عليه السلام) تکذيب اوکړو. مجاهد رحمه الله فرمائي چه طغواها نه ګناه مراد ده.

**قوله: وَلَا يَخَافُ عُقْبَاهَا: عُقْبَى أَحَدٍ:** اوالله تعالى ته دَ دې هلاکت په انجام کښې دَ څه خرابئ (دَ چانه) انديښنه اونه شوه. عقباها تفسير کښې فرمائي عقبى احد يعنى الله تعالى ته دَ هيڅ چا دَ انجام انديښنه نشته چه څوك به دَ هغه نه بدله واخلي.

## [۴۳۱] باب: تفسير سُورَةُ وَاللَّيْلِ إِذَا يَغْشَى

**قوله: وَقَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ وَكَذَّبَ بِالْحُسْنَى بِالْخَلَفِ:** آيت کښې دى (وَكَذَّبَ بِالْحُسْنٰى) اوښه خبره (يعنى ملت اسلام) ئې دروغ اوګڼړو، حضرت ابن عباس رضي الله عنهما فرمائي چه حسنى نه انجام اودَ اعمالوثواب او بدله مراد دى.

**قوله: وَقَالَ مُجَاهِدٌ تَرَدَّى مَاتَ وَتَلَظَّى تَوَهَّجُ وَقَرَأَ عُبَيْدُ بْنُ عُمَيْرٍ تَتَلَظَّى:** آيت

مبارك كښې دى ﴿وَمَا يُغْنِيْ عَنْهُ مَالُهٗٓ اِذَا تَرَدّٰى﴾ دَ هغه مال به دَ هغه هيڅ پکار رانشى كله چه هغه هلاك كيږى.. تردى په معنى هلاك شوې مړشوې.

**قوله:** تَلَظّٰى : تَوَهَّجُ: آيت مبارك كښې دى ﴿فَاَنْذَرْتُكُمْ نَارًا تَلَظّٰى﴾ ما تاسو دَ يو سور كړېشوى اَور نه ويرولې ئى. تلظى په معنى توهج يعنى شغلى.

## [۴۳۲] بَاب وَالنَّهَارِ إِذَا تَجَلَّى

[۴۶۵۹] (۱) حَدَّثَنَا قَبِيصَةُ بْنُ عُقْبَةَ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ الْأَعْمَشِ عَنْ إِبْرَاهِيمَ عَنْ عَلْقَمَةَ قَالَ دَخَلْتُ فِي نَفَرٍ مِنْ أَصْحَابِ عَبْدِ اللَّهِ الشَّأْمَ فَسَمِعَ بِنَا أَبُو الدَّرْدَاءِ فَأَتَانَا فَقَالَ أَفِيكُمْ مَنْ يَقْرَأُ فَقُلْنَا نَعَمْ قَالَ فَأَيُّكُمْ أَقْرَأُ فَأَشَارُوا إِلَيَّ فَقَالَ اقْرَأْ فَقَرَأْتُ وَاللَّيْلِ إِذَا يَغْشَى وَالنَّهَارِ إِذَا تَجَلَّى وَالذَّكَرِ وَالْأُنْثَى قَالَ أَنْتَ سَمِعْتَهَا مِنْ فِي صَاحِبِكَ قُلْتُ نَعَمْ قَالَ وَأَنَا سَمِعْتُهَا مِنْ فِي النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهَؤُلَاءِ يَأْبَوْنَ عَلَيْنَا

## [۴۳۳] بَاب وَمَا خَلَقَ الذَّكَرَ وَالْأُنْثَى

[۴۶۶۰] حَدَّثَنَا عُمَرُ بْنُ حَفْصٍ حَدَّثَنَا أَبِي حَدَّثَنَا الْأَعْمَشُ عَنْ إِبْرَاهِيمَ قَالَ قَدِمَ أَصْحَابُ عَبْدِ اللَّهِ عَلَى أَبِي الدَّرْدَاءِ فَطَلَبَهُمْ فَوَجَدَهُمْ فَقَالَ أَيُّكُمْ يَقْرَأُ عَلَى قِرَاءَةِ عَبْدِ اللَّهِ قَالَ كُلُّنَا قَالَ فَأَيُّكُمْ أَحْفَظُ فَأَشَارُوا إِلَى عَلْقَمَةَ قَالَ كَيْفَ سَمِعْتَهُ يَقْرَأُ وَاللَّيْلِ إِذَا يَغْشَى قَالَ عَلْقَمَةُ وَالذَّكَرِ وَالْأُنْثَى قَالَ أَشْهَدُ أَنِّي سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقْرَأُ هَكَذَا وَهَؤُلَاءِ يُرِيدُونِي عَلَى أَنْ أَقْرَأَ وَمَا خَلَقَ الذَّكَرَ وَالْأُنْثَى وَاللَّهِ لَا أُتَابِعُهُمْ

"والذكر والانثى" دا قراءت منسوخ دې حضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه او حضرت ابوالدرداء رضي الله عنه دواړو ته دَ نسخ علم نه وو شوې په دې وجه به دواړو "والذكر والانثى" لوستلو (۲)

## [۴۳۴] بَاب قَوْلِهِ فَأَمَّا مَنْ أَعْطَى وَاتَّقَى

[۴۶۶۱] حَدَّثَنَا أَبُو نُعَيْمٍ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ الْأَعْمَشِ عَنْ سَعْدِ بْنِ عُبَيْدَةَ عَنْ أَبِي عَبْدِ الرَّحْمَنِ السُّلَمِيِّ عَنْ عَلِيٍّ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ كُنَّا مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي بَقِيعِ الْغَرْقَدِ فِي جَنَازَةٍ فَقَالَ مَا مِنْكُمْ مِنْ أَحَدٍ إِلَّا وَقَدْ كُتِبَ مَقْعَدُهُ مِنْ الْجَنَّةِ وَمَقْعَدُهُ مِنْ النَّارِ فَقَالُوا يَا رَسُولَ اللَّهِ أَفَلَا نَتَّكِلُ فَقَالَ اعْمَلُوا فَكُلٌّ مُيَسَّرٌ ثُمَّ قَرَأَ فَأَمَّا مَنْ أَعْطَى وَاتَّقَى

---

(۱) وايضاً باب وما خلق الذكروالانثى رقم الحديث ۴۶۶۰:واخرجه مسلم فى الصلوة باب مايتعلق بالقرات رقم الحديث ۸۲٤:واخرجه الترمذى فى القراءة باب من سورة الليل رقم الحديث ۲۹۳۹:واخرجه النسائى فى السنن الكبرى فى التفسيرباب سورة الليل رقم الحديث-۱۱۶۷۶/۱:

(۲) فتح البارى-۶۰۷/۸:

وَصَدَّقَ بِالْحُسْنَى إِلَى قَوْلِهِ لِلْعُسْرَى حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَاحِدِ حَدَّثَنَا الْأَعْمَشُ عَنْ سَعْدِ بْنِ عُبَيْدَةَ عَنْ أَبِي عَبْدِ الرَّحْمَنِ عَنْ عَلِيٍّ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ كُنَّا قُعُودًا عِنْدَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَذَكَرَ الْحَدِيثَ نَحْوَهُ

## [٤٣٦] بَاب فَسَنُيَسِّرُهُ لِلْيُسْرَى

[٤٦٦٣] حَدَّثَنَا بِشْرُ بْنُ خَالِدٍ أَخْبَرَنَا مُحَمَّدُ بْنُ جَعْفَرٍ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ سُلَيْمَانَ عَنْ سَعْدِ بْنِ عُبَيْدَةَ عَنْ أَبِي عَبْدِ الرَّحْمَنِ السُّلَمِيِّ عَنْ عَلِيٍّ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَّهُ كَانَ فِي جَنَازَةٍ فَأَخَذَ عُودًا يَنْكُتُ فِي الْأَرْضِ فَقَالَ مَا مِنْكُمْ مِنْ أَحَدٍ إِلَّا وَقَدْ كُتِبَ مَقْعَدُهُ مِنَ النَّارِ أَوْ مِنَ الْجَنَّةِ قَالُوا يَا رَسُولَ اللَّهِ أَفَلَا نَتَّكِلُ قَالَ اعْمَلُوا فَكُلٌّ مُيَسَّرٌ فَأَمَّا مَنْ أَعْطَى وَاتَّقَى وَصَدَّقَ بِالْحُسْنَى الْآيَةَ قَالَ شُعْبَةُ وَحَدَّثَنِي بِهِ مَنْصُورٌ فَلَمْ أُنْكِرْهُ مِنْ حَدِيثِ سُلَيْمَانَ

## [٤٣٧] بَاب قَوْلِهِ وَأَمَّا مَنْ بَخِلَ وَاسْتَغْنَى

[٤٦٦٤] حَدَّثَنَا يَحْيَى حَدَّثَنَا وَكِيعٌ عَنِ الْأَعْمَشِ عَنْ سَعْدِ بْنِ عُبَيْدَةَ عَنْ أَبِي عَبْدِ الرَّحْمَنِ عَنْ عَلِيٍّ عَلَيْهِ السَّلَام قَالَ كُنَّا جُلُوسًا عِنْدَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ مَا مِنْكُمْ مِنْ أَحَدٍ إِلَّا وَقَدْ كُتِبَ مَقْعَدُهُ مِنَ الْجَنَّةِ وَمَقْعَدُهُ مِنَ النَّارِ فَقُلْنَا يَا رَسُولَ اللَّهِ أَفَلَا نَتَّكِلُ قَالَ لَا اعْمَلُوا فَكُلٌّ مُيَسَّرٌ ثُمَّ قَرَأَ فَأَمَّا مَنْ أَعْطَى وَاتَّقَى وَصَدَّقَ بِالْحُسْنَى فَسَنُيَسِّرُهُ لِلْيُسْرَى إِلَى قَوْلِهِ فَسَنُيَسِّرُهُ لِلْعُسْرَى

## [٤٣٨] بَاب قَوْلُهُ وَكَذَّبَ بِالْحُسْنَى

[٤٦٦٥] حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ حَدَّثَنَا جَرِيرٌ عَنْ مَنْصُورٍ عَنْ سَعْدِ بْنِ عُبَيْدَةَ عَنْ أَبِي عَبْدِ الرَّحْمَنِ السُّلَمِيِّ عَنْ عَلِيٍّ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ كُنَّا فِي جَنَازَةٍ فِي بَقِيعِ الْغَرْقَدِ فَأَتَانَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَعَدَ وَقَعَدْنَا حَوْلَهُ وَمَعَهُ مِخْصَرَةٌ فَنَكَّسَ فَجَعَلَ يَنْكُتُ بِمِخْصَرَتِهِ ثُمَّ قَالَ مَا مِنْكُمْ مِنْ أَحَدٍ وَمَا مِنْ نَفْسٍ مَنْفُوسَةٍ إِلَّا كُتِبَ مَكَانُهَا مِنَ الْجَنَّةِ وَالنَّارِ وَإِلَّا قَدْ كُتِبَتْ شَقِيَّةً أَوْ سَعِيدَةً قَالَ رَجُلٌ يَا رَسُولَ اللَّهِ أَفَلَا نَتَّكِلُ عَلَى كِتَابِنَا وَنَدَعُ الْعَمَلَ فَمَنْ كَانَ مِنَّا مِنْ أَهْلِ السَّعَادَةِ فَسَيَصِيرُ إِلَى عَمَلِ أَهْلِ السَّعَادَةِ وَمَنْ كَانَ مِنَّا مِنْ أَهْلِ الشَّقَاءِ فَسَيَصِيرُ إِلَى عَمَلِ أَهْلِ الشَّقَاوَةِ قَالَ أَمَّا أَهْلُ السَّعَادَةِ فَيُيَسَّرُونَ لِعَمَلِ أَهْلِ السَّعَادَةِ وَأَمَّا أَهْلُ الشَّقَاوَةِ فَيُيَسَّرُونَ لِعَمَلِ أَهْلِ الشَّقَاءِ ثُمَّ قَرَأَ فَأَمَّا مَنْ أَعْطَى وَاتَّقَى وَصَدَّقَ بِالْحُسْنَى الْآيَةَ

## [۴۳۹] بَاب فَسَنُيَسِّرُهُ لِلْعُسْرَى

[۴۶۶۶] حَدَّثَنَا آدَمُ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنِ الْأَعْمَشِ قَالَ سَمِعْتُ سَعْدَ بْنَ عُبَيْدَةَ يُحَدِّثُ عَنْ أَبِي عَبْدِ الرَّحْمَنِ السُّلَمِيِّ عَنْ عَلِيٍّ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي جَنَازَةٍ فَأَخَذَ شَيْئًا فَجَعَلَ يَنْكُتُ بِهِ الْأَرْضَ فَقَالَ مَا مِنْكُمْ مِنْ أَحَدٍ إِلَّا وَقَدْ كُتِبَ مَقْعَدُهُ مِنَ النَّارِ وَمَقْعَدُهُ مِنَ الْجَنَّةِ قَالُوا يَا رَسُولَ اللَّهِ أَفَلَا نَتَّكِلُ عَلَى كِتَابِنَا وَنَدَعُ الْعَمَلَ قَالَ اعْمَلُوا فَكُلٌّ مُيَسَّرٌ لِمَا خُلِقَ لَهُ أَمَّا مَنْ كَانَ مِنْ أَهْلِ السَّعَادَةِ فَيُيَسَّرُ لِعَمَلِ أَهْلِ السَّعَادَةِ وَأَمَّا مَنْ كَانَ مِنْ أَهْلِ الشَّقَاءِ فَيُيَسَّرُ لِعَمَلِ أَهْلِ الشَّقَاوَةِ ثُمَّ قَرَأَ فَأَمَّا مَنْ أَعْطَى وَاتَّقَى وَصَدَّقَ بِالْحُسْنَى الْآيَةَ

**قوله: إِلَّا وَقَدْ كُتِبَ مَقْعَدُهُ مِنَ النَّارِ وَمَقْعَدُهُ مِنَ الْجَنَّةِ:** بعض حضراتو "ومقعده من الجنة" واؤ دَ "او" په معنی کښې اخستې دې او په بعض رواياتوکښې "او" موجود هم دې، مطلب دا دې چه يا جنت کښې دَ هغه ځائ ليکلې شوې دې يا دوزخ کښې. داسې نه ده چه دواړو ځايونوکښې دې. خو دا خبره صحيح نه ده ځکه چه په بعضو رواياتوکښې صفاصفا دَ دې صراحت موجود دې چه دَ هر سړی ځائ په جنت او دوزخ دواړوکښې وی(۱)اوس دا يوه بله خبره ده چه که ده ته جنت ملاؤ شی نودَ دوزخ ځائ به دَ ده دَ پاره نه وی او چه دوزخ ملاؤ شی نو دَجنت ځائ به دَ ده دَ پاره نه وی (۲)

## [۴۴۰] باب: تفسير سُورَةُ وَالضُّحَى

وَقَالَ مُجَاهِدٌ إِذَا سَجَى اسْتَوَى وَقَالَ غَيْرُهُ سَجَى أَظْلَمَ وَسَكَنَ عَائِلًا ذُو عِيَالٍ

آيت مبارك کښې سجی معنی استوی يعنی چه کله شپه دَ ورځې برابره شی او دَ مجاهد نه غير وائی چه سجی معنی اظلم وسکن يعنی چه کله شپه تياره او خاموشه شی.

**قوله: عَائِلًا: فَأَغْنَى ذُو عِيَالٍ:** آيت کښې دی ﴿وَوَجَدَكَ عَائِلًا فَأَغْنَى﴾ او الله تعالى ته ناچاره اوليدلې نو مالداره ئی جوړکړې. فرمائی عائلا معنی عيال دار، بال بچه دار، دا دَ ابوعبيده تفسير دې، جمهور مفسرين عائلا معنی نادار او فقير اخلی.

[۴۶۶۷] حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ يُونُسَ حَدَّثَنَا زُهَيْرٌ حَدَّثَنَا الْأَسْوَدُ بْنُ قَيْسٍ قَالَ سَمِعْتُ جُنْدَبَ بْنَ سُفْيَانَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ اشْتَكَى رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَلَمْ يَقُمْ لَيْلَتَيْنِ أَوْ ثَلَاثًا فَجَاءَتِ امْرَأَةٌ فَقَالَتْ يَا مُحَمَّدُ إِنِّي لَأَرْجُو أَنْ يَكُونَ شَيْطَانُكَ قَدْ تَرَكَكَ لَمْ أَرَهُ قَرِبَكَ مُنْذُ

---

(۱) فيض البارى-۴/۲۵۶:

(۲) په دې حديث باندې تفصيلی بحث به وړاندې په کتاب القدر کښې ان شاء الله راځی-

لَيلَتَينِ أَوْثَلَاثَةٍ فَأَنزَلَ اللّٰهُ عَزَّوَجَلَّ وَالضُّحَى وَاللَّيْلِ إِذَا سَجَى مَا وَدَّعَكَ رَبُّكَ وَمَا قَلَى قَوْلُهُ مَا وَدَّعَكَ رَبُّكَ وَمَا قَلَى تُقْرَأُ بِالتَّشْدِيدِ وَالتَّخْفِيفِ بِمَعْنًى وَاحِدٍ مَا تَرَكَكَ رَبُّكَ وَقَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ مَا تَرَكَكَ وَمَا أَبْغَضَكَ

## [۴۴۱] بَاب مَا وَدَّعَكَ رَبُّكَ وَمَا قَلَى

[۴۶۶۸] حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ جَعْفَرٍ غُنْدَرٌ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنِ الْأَسْوَدِ بْنِ قَيْسٍ قَالَ سَمِعْتُ جُنْدُبًا الْبَجَلِيَّ قَالَتِ امْرَأَةٌ يَا رَسُولَ اللّٰهِ مَا أَرَى صَاحِبَكَ إِلَّا أَبْطَأَكَ فَنَزَلَتْ مَا وَدَّعَكَ رَبُّكَ وَمَا قَلَى

دلته دَ اسودبن قيس ړومبنې او دونئم روايت کښې عنوان بدل دې، په اول روايت کښې سوال کونکې ښځې دَ "يامحمد" نو واخستو او سوال ئې اوکړو او په دونئم روايت کښې "يارسول الله" دې دغه شان په اولنى روايت کښې "ان يكون شيطانك..." راغلې دې او په دونئم کښې "ان يكون صاحبك....." راغلې دې. حافظ ابن حجر رحمه الله او کشميرى رحمه الله رائې دا ده چه په اولنى روايت کښې سوال کونکې ښځه کافره ، ابولهب ښځه ام جميل ده او په دونئم روايت کښې سوال کونکې ښځه ام المؤمنين حضرت خديجه رضي الله عنها ده.(۱)
او دا هم کيدېشى چه دَ اسود بن قيس نه روايت کونکې شعبه دې. ممکنه ده چه هغه روايت بالمعنى کړې وى ګنى اصل خبره هم هغه ده چه دَ ابولهب ښځې دا سوال کړې وو لکه چه په ړومبى روايت کښې دى(۲)

## [۴۴۲] بَاب: تفسير سُورَةُ أَلَمْ نَشْرَحْ لَكَ

وَقَالَ مُجَاهِدٌ وِزْرَكَ فِي الْجَاهِلِيَّةِ أَنْقَضَ أَثْقَلَ مَعَ الْعُسْرِ يُسْرًا قَالَ ابْنُ عُيَيْنَةَ أَيْ مَعَ ذَلِكَ الْعُسْرِ يُسْرًا آخَرَ كَقَوْلِهِ هَلْ تَرَبَّصُونَ بِنَا إِلَّا إِحْدَى الْحُسْنَيَيْنِ وَلَنْ يَغْلِبَ عُسْرٌ يُسْرَيْنِ وَقَالَ مُجَاهِدٌ فَانْصَبْ فِي حَاجَتِكَ إِلَى رَبِّكَ وَيُذْكَرُ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ أَلَمْ نَشْرَحْ لَكَ صَدْرَكَ شَرَحَ اللّٰهُ صَدْرَهُ لِلْإِسْلَامِ

**قوله: وَقَالَ مُجَاهِدٌ: وِزْرَكَ: فِي الْجَاهِلِيَّةِ:** ﴿وَوَضَعْنَا عَنكَ وِزْرَكَ﴾ مجاهد رحمه الله فرمائى چه د ﴿وِزْرَكَ﴾ نه مراد هغه غيرافضل کار دې چه دَ حضور اکرم ﷺ نه دَ نبوت نه وړاندې صادر شوې وو هغه دلته په وزر سره تعبير کړې شو.

**قوله: أَنْقَضَ: أَثْقَلَ:** آيت کښې دى ﴿الَّذِي أَنقَضَ ظَهْرَكَ﴾ کوم چه دَ هغه ملاماته کړې وه.

---

(۱) فتح البارى ۸/۷۱۱؛ وفيض البارى-۲۵۲/٤:
(۲) شرح الکرمانى-۱۹۷/۱۸:

فرمائی انقض په معنی دَ اثقل دي يعني وزندار کړو.

**قوله:** مَعَ الْعُسْرِ يُسْرًا: ابن عينيه فرمائی چه دَ دې مطلب دا دې چه ګران سره يوه آسانی ده. دَ معانی او بلاغت قاعده ده چه کله کلمه معرف باللام مکرر راشی نودَ دواړو مصداق يو وی ليکن که نکره مکرر وی نو په هغه صورت کښې به دَ دواړو مصداق جدا جدا وی. دلته العسر مکرر راغلې دې او معرف باللام دې په دې وجه په دواړوځايونوکښې يو مراد دې. او يسرا مکرر راغلې دې او نکره دې په دې وجه دَ دواړو مصداق جدا جدا دې کوم نه چه نتيجه دا راوتله چه هم په يو عسر سره دَ دوو آسانو وعده ده.(۱) هم دې قاعدې ته اشاره کولوسره ابن عينيه رحمه الله فرمائی "ای مع ذلك العسر يسرا آخر" دې يوې تنګئی سره يوه آسانی به بله وی. كقوله: (هَلْ تَرَبَّصُوْنَ بِنَآ اِلَّآ اِحْدَى الْحُسْنَيَيْنِ) يعنی څنګه چه دَ مؤمن دَ پاره په دې آيت کښې دَ تعدد حسنيين زيرې دې، دغه شان په دې سورة کښې هم دَ تعدد يسر خبر ورکړيشوې دې.

**قوله:** فَانْصَبْ فِي حَاجَتِكَ إِلَى رَبِّكَ: آيت کښې دی (فَإِذَا فَرَغْتَ فَانْصَبْ) نو چه کله تاسو د (تبليغی احکامونه) فارغ شئی نو (په نورو عباداتو متعلقه بذات خاص کښې) محنت کوئی. مجاهد رحمه الله فرمائی فانصب معنی ده دَ خپل رب نه په خپل حاجت کښې خواری کوه.

## [۴۴۳] باب: تفسير سُورَةُ وَالتِّين

وَقَالَ مُجَاهِدٌ هُوَ التِّينُ وَالزَّيْتُونُ الَّذِي يَأْكُلُ النَّاسُ يُقَالُ فَمَا يُكَذِّبُكَ فَمَا الَّذِي يُكَذِّبُكَ بِأَنَّ النَّاسَ يُدَانُونَ بِأَعْمَالِهِمْ كَأَنَّهُ قَالَ وَمَنْ يَقْدِرُ عَلَى تَكْذِيبِكَ بِالثَّوَابِ وَالْعِقَابِ

**قوله:** وَالتِّينِ وَالزَّيْتُونِ: مجاهد رحمه الله فرمائی چه دَ تين او زيتون نه هم هغه مشهورې ميوې مراد دی کومې چه خلق خوری. په آيت مبارك کښې دی (فَمَا يُكَذِّبُكَ بَعْدُ بِالدِّيْنِ) بياهغه څه څيز دې چه ستا په تکذيب باندې اماده کوی. په دې باره کښې چه خلق به دَ خپلو اعمالويده بيامومی، نولکه چه داسې اووئيل څوك قدرت لری دَ ثواب او عقاب متعلق ستا په تکذيب باندې.

[۴۶۶۹] حَدَّثَنَا حَجَّاجُ بْنُ مِنْهَالٍ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ قَالَ أَخْبَرَنِي عَدِيٌّ قَالَ سَمِعْتُ الْبَرَاءَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ فِي سَفَرٍ فَقَرَأَ فِي الْعِشَاءِ فِي إِحْدَى الرَّكْعَتَيْنِ بِالتِّينِ وَالزَّيْتُونِ تَقْوِيمِ الْخَلْقِ

---

(۱) الكشاف عن حقائق غوامض التنزيل ۴/۷۷۱؛ وفتح البارى-۸/۷۱۲؛

## [۴۴۴] باب: تفسیر سورة اقْرَأْ بِاسْمِ رَبِّكَ الَّذِى خَلَقَ

حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ حَدَّثَنَا حَمَّادٌ عَنْ يَحْيَى بْنِ عَتِيقٍ عَنِ الْحَسَنِ قَالَ اكْتُبْ فِي الْمُصْحَفِ فِي أَوَّلِ الْإِمَامِ بِسْمِ اللَّهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيمِ وَاجْعَلْ بَيْنَ السُّورَتَيْنِ خَطًّا وَقَالَ مُجَاهِدٌ نَادِيَهُ عَشِيرَتَهُ الزَّبَانِيَةَ الْمَلَائِكَةَ وَقَالَ مَعْمَرٌ الرُّجْعَى الْمَرْجِعُ لَنَسْفَعَنْ قَالَ لَنَأْخُذَنْ وَلَنَسْفَعَنْ بِالنُّونِ وَهِيَ الْخَفِيفَةُ سَفَعْتُ بِيَدِهِ أَخَذْتُ

حضرت حسن بصرى رحمه الله فرمائى چه دَ سورة فاتحه په شروع كښې بسم الله ليكه، وړاندې دَ نورو سورتونو په شروع كښې يوخط دَ علامت فاصلې په توګه ليكه. علامه سهيلى دَ حضرت حسن بصرى رحمه الله قول ردكړيدې اوفرمائيلى دى "فيه شذوذ" ولې چه ټولوصحابه كرامو به دَ سورة په شروع كښې بسم الله ليكله.(۱)

**قوله: نَادِيَهُ: عَشِيرَتَهُ:** آيت كښې دى ﴿فَلْيَدْعُ نَادِيَهُ﴾ نودوى دې خپل مجلس والا راوغواړى. فرمائى ناديه معنى خپله قبيله.

**قوله: الزَّبَانِيَةَ: الْمَلَائِكَةَ:** آيت كښې دى ﴿سَنَدْعُ الزَّبَانِيَةَ﴾ زبانية نه فرښتې مراد دى.

**قوله: الرُّجْعَى: الْمَرْجِعُ:** آيت كښې دى ﴿إِنَّ إِلَى رَبِّكَ الرُّجْعَى﴾ هم ستا رب طرف ته به ټول واپس كيږى. رجعى په معنى دَ مرجع دې يعنى واپس كيدل دامصدردې.

**قوله: لَنَسْفَعًا: لَنَأْخُذَنْ وَلَنَسْفَعَنْ بِالنُّونِ وَهِيَ الْخَفِيفَةُ سَفَعْتُ بِيَدِهِ: أَخَذْتُ:** آيت كښې دى ﴿كَلَّا لَئِنْ لَمْ يَنْتَهِ لَنَسْفَعًا بِالنَّاصِيَةِ﴾ هيڅ كله (داسې) نه (دى كول پكار) كه داسړې منع نه شو نو مونږ به ئى دَ سر نه اونيسو رابه ئى كاږو. فرمائى لنسفعن معنى مونږ به ئى ضرور اونيسو. په دې كښې نون خفيفه دې وائى سفعت بيده يعنى ما هغه دَ لاس نه اونيولو.

[۴۶۷۰] حَدَّثَنَا يَحْيَى حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ عُقَيْلٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ حَدَّثَنِي سَعِيدُ بْنُ مَرْوَانَ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ الْعَزِيزِ بْنِ أَبِي رِزْمَةَ أَخْبَرَنَا أَبُو صَالِحٍ سَلْمُوَيْهِ قَالَ حَدَّثَنِي عَبْدُ اللَّهِ عَنْ يُونُسَ بْنِ يَزِيدَ قَالَ أَخْبَرَنِي ابْنُ شِهَابٍ أَنَّ عُرْوَةَ بْنَ الزُّبَيْرِ أَخْبَرَهُ أَنَّ عَائِشَةَ زَوْجَ النَّبِيِّ - صلى الله عليه وسلم - قَالَتْ كَانَ أَوَّلَ مَا بُدِئَ بِهِ رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - الرُّؤْيَا الصَّادِقَةُ فِي النَّوْمِ، فَكَانَ لَا يَرَى رُؤْيَا إِلَّا جَاءَتْ مِثْلَ فَلَقِ الصُّبْحِ، ثُمَّ حُبِّبَ إِلَيْهِ الْخَلَاءُ فَكَانَ يَلْحَقُ بِغَارِ حِرَاءٍ فَيَتَحَنَّثُ فِيهِ - قَالَ وَالتَّحَنُّثُ التَّعَبُّدُ - اللَّيَالِيَ ذَوَاتِ الْعَدَدِ قَبْلَ أَنْ يَرْجِعَ إِلَى أَهْلِهِ، وَيَتَزَوَّدُ لِذَلِكَ، ثُمَّ يَرْجِعُ إِلَى خَدِيجَةَ فَيَتَزَوَّدُ بِمِثْلِهَا، حَتَّى فَجِئَهُ الْحَقُّ وَهُوَ فِي غَارِ

(۱) عمدة القارى-۳۰۳/۱۹:

جِرَاءٍ فَجَاءَهُ الْمَلَكُ فَقَالَ اقْرَأْ. فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - «مَا أَنَا بِقَارِءٍ». قَالَ «فَأَخَذَنِي فَغَطَّنِي حَتَّى بَلَغَ مِنِّي الْجَهْدُ ثُمَّ أَرْسَلَنِي. فَقَالَ اقْرَأْ. قُلْتُ مَا أَنَا بِقَارِءٍ. فَأَخَذَنِي فَغَطَّنِي الثَّانِيَةَ حَتَّى بَلَغَ مِنِّي الْجَهْدُ، ثُمَّ أَرْسَلَنِي. فَقَالَ اقْرَأْ. قُلْتُ مَا أَنَا بِقَارِءٍ. فَأَخَذَنِي فَغَطَّنِي الثَّالِثَةَ حَتَّى بَلَغَ مِنِّي الْجَهْدُ ثُمَّ أَرْسَلَنِي. فَقَالَ (اقْرَأْ بِاسْمِ رَبِّكَ الَّذِي خَلَقَ * خَلَقَ الإِنْسَانَ مِنْ عَلَقٍ * اقْرَأْ وَرَبُّكَ الأَكْرَمُ * الَّذِي عَلَّمَ بِالْقَلَمِ) » . الآيَاتِ إِلَى قَوْلِهِ (عَلَّمَ الإِنْسَانَ مَا لَمْ يَعْلَمْ) فَرَجَعَ بِهَا رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - تَرْجُفُ بَوَادِرُهُ حَتَّى دَخَلَ عَلَى خَدِيجَةَ فَقَالَ » زَمِّلُونِي زَمِّلُونِي » . فَزَمَّلُوهُ حَتَّى ذَهَبَ عَنْهُ الرَّوْعُ قَالَ لِخَدِيجَةَ « أَيْ خَدِيجَةُ مَا لِي ، لَقَدْ خَشِيتُ عَلَى نَفْسِي » . فَأَخْبَرَهَا الْخَبَرَ. قَالَتْ خَدِيجَةُ كَلاَّ أَبْشِرْ، فَوَاللَّهِ لاَ يُخْزِيكَ اللَّهُ أَبَدًا ، فَوَاللَّهِ إِنَّكَ لَتَصِلُ الرَّحِمَ ، وَتَصْدُقُ الْحَدِيثَ ، وَتَحْمِلُ الْكَلَّ ، وَتَكْسِبُ الْمَعْدُومَ ، وَتَقْرِي الضَّيْفَ ، وَتُعِينُ عَلَى نَوَائِبِ الْحَقِّ. فَانْطَلَقَتْ بِهِ خَدِيجَةُ حَتَّى أَتَتْ بِهِ وَرَقَةَ بْنَ نَوْفَلٍ وَهْوَ ابْنُ عَمِّ خَدِيجَةَ أَخِي أَبِيهَا ، وَكَانَ امْرَأً تَنَصَّرَ فِي الْجَاهِلِيَّةِ ، وَكَانَ يَكْتُبُ الْكِتَابَ الْعَرَبِيَّ وَيَكْتُبُ مِنَ الإِنْجِيلِ بِالْعَرَبِيَّةِ مَا شَاءَ اللَّهُ أَنْ يَكْتُبَ ، وَكَانَ شَيْخًا كَبِيرًا قَدْ عَمِيَ فَقَالَتْ خَدِيجَةُ يَا ابْنَ عَمِّ اسْمَعْ مِنِ ابْنِ أَخِيكَ. قَالَ وَرَقَةُ يَا ابْنَ أَخِي مَاذَا تَرَى فَأَخْبَرَهُ النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - خَبَرَ مَا رَأَى. فَقَالَ وَرَقَةُ هَذَا النَّامُوسُ الَّذِي أُنْزِلَ عَلَى مُوسَى ، لَيْتَنِي فِيهَا جَذَعًا ، لَيْتَنِي أَكُونُ حَيًّا . ذَكَرَ حَرْفًا . قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - « أَوَمُخْرِجِيَّ هُمْ » . قَالَ وَرَقَةُ نَعَمْ لَمْ يَأْتِ رَجُلٌ بِمَا جِئْتَ بِهِ إِلاَّ أُوذِيَ ، وَإِنْ يُدْرِكْنِي يَوْمُكَ حَيًّا أَنْصُرْكَ نَصْرًا مُؤَزَّرًا . ثُمَّ لَمْ يَنْشَبْ وَرَقَةُ أَنْ تُوُفِّيَ ، وَفَتَرَ الْوَحْيُ ، فَتْرَةً حَتَّى حَزِنَ رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم -

**د سند توضيح:** دلته په سند كښې تحويل دې. او دوه سندونه دى. دَ اول سند الفاظ امام بخارى رحمه الله "بدء الوحى" كښې ذكر كړى دى اودَ تحويل نه پس چه كوم سند ثانى دې هغه دَ سعيدبن مروان بغدادى نه شروع كيږى دَ هغې الفاظ دلته بيان شوى دى.

په رومبى سندكښې امام بخارى او ابن شهاب زهرى په مينځ كښې درې واسطې دى ① يحيى بن بكير ② ليث بن سعد ③ عقيل.

دغه شان په دوئم سند كښې دَ امام بخارى او ابن شهاب زهرى په مينځ كښې پنځه واسطې دى ① سعيدبن مروان ② محمدبن عبدالعزيز ③ ابوصالح سلمويه ④ عبدالله بن مبارك ⑤ يونس بن يزيد ، دې نه پس بيا زهرى دَ حضرت عروه او حضرت عائشه رضي الله عنها نه روايت كوى. دغه شان دَ امام بخارى نه دَ نبى كريم ﷺ پورې اته واسطې دى په دې وجه دې روايت ته ثمانى الاسناد وائى. دَ رومبى سند دَ رجال تعارف "بدء الوحى" كښې شوې دې، په دوئم سندكښې دَ امام بخارى شيخ سعيدبن مروان دې.

**سعيد بن مروان:** دَ هغوى كنيت ابوعثمان دې او دَ بغدادى په نسبت دَ هغه ذكر كولې شى،

دي دَ امام بخاري دَ طبقې دي او دَ هغه په بخاري شريف كښې همدغه يوروايت دې.[1] دا سعيدبن سليمان واسطي، سليمان بن حرب، سويدبن سعيد، محمدبن عبدالعزيز بن ابى رزمه نه روايت كوى اوده نه ابراهيم بن اسحاق، احمدبن سلمه، محمدبن اسحاق بن خزيمه او امام بخاري روايت نقل كړيدي.[2] دَ هغوى وفات دَ امام بخاري نه څلور كاله پس شويدې.[3] حاكم ابوعبدالله نيشاپوري فرمائى چه دَهغوى وفات دَ پيرېه ورځ ۱۵ شعبان كال ۲۵۲ هجرى نيشاپوركښې اوشو او محمدبن يحيى ذهلى دَ هغوى جنازه اوكړه.[4] سعيد بن ابوعثمان يو بل هم دې، هغه "ازدى رهاوى" په نسبت سره ياديږى. بعض حضراتو وئيلى چه دواړه يو دى ليكن صحيح خبره داده چه دواړه جداجدا دى.[5]

**محمدبن عبدالعزيز بن ابى رزمه:** دوى دَ "مروزي" په نسبت سره يادولې شى، په محدثينو كښې دَ امام احمدبن حنبل رحمه الله دَ طبقې دې. دَ بخاري دَ شيوخو دَوسطى طبقې سره تعلق لرى. دَ هغوى په بخاري شريف كښې صرف دغه يو روايت دې.[6] ابوحاتم دَ هغوى باره كښې فرمائى :صدوق[7] امام نسائى رحمه الله اودارقطني فرمائى: ثقة[8] ابن حبان كتاب الثقات كښې دَ هغوى ذكر كړيدې.[9] دَ هغوى وفات ۲۴۱ه كښې شوې.[10]

**قوله: اخبرنا ابوصالح سلموية:**

**ابوصالح سلمويه:** دَ هغوى نوم سليمان بن صالح دې، سليمان سلمويه جوړشو، دَنحويانو دَ قاعدې مطابق هغه سلمويه لوستلې شى او محدثين هغه ته سلمويه وائى. دې دَ بخاري استاذ الاستاذ محمدبن عبدالعزيز دَ طبقې دې اودَ عبدالله بن مبارك دَ مخصوص استاذانو نه دې اودَ هغوى نه په كثرت سره روايات مشهور دى. امام بخاري دَ عمر په لحاظ سره دَ هغوى دَ پانې نه شميرلې كيږى ليكن دَ امام ملاقات هغوى سره نه دې شوې.دَ هغوى وفات

---

[1]) عمدة القارى ۱۹/۳۰۳:وفتح البارى-۸/۷۱۶:
[2]) تهذيب الكمال-۵۷-۱۱/۵۶:
[3]) عمدة القارى-۱۹/۳۰۳:
[4]) تهذيب الكمال ۵۷-۱۱/۵۶: دَ هغوى دَ حالاتودپاره اوګورئى تاريخ بغدادى ۹/۹۱ :والجمع لابن القيسر انى ۱/۱۷٤:والكاشف/۱: الترجمه ۱۹۷۵وخلاصة الخزرجى/۱:الترجمة-۲۵۳۶
[5]) تعليقات تهذيب الكمال-۱۱/۵۶:
[6]) عمدة القارى ۱۹/۳۰۳:وفتح البارى-۸/۷۱۶:
[7]) الجرح والتعديل/۸:الترجمة-۳۰
[8]) تهذيب الكمال-۱/۲۶:
[9]) ثقات ابن حبان-۹/۹۵:
[10]) تهذيب الكمال۱۰/۲۶: دَ هغوى دَ حالاتودپاره اوګورئى تاريخ الكبير/۱:الترجمة ۴۹۸:و الجرح والتعديل/۸:الترجمة ۳۰ وتهذيب التهذيب ۹/۳۱۲وخلاصة الخزرجى/۲:الترجمة-۶۴۵۳

په ۲۱۰ ھ کښې شوې.(۱) حافظ ابن حجر او علامه عینی مطابق ابوصالح سلمویه په صحیح بخاری کښې همدغه یو روایت دې.(۲) لیکن هغوی ته سهو شوې ده ځکه چه د ابوصالح سلمویه یو روایت کتاب الکفاله کښې هم راغلې دې.(۳) هلته کښې حافظ پخپله د دې تصریح هم کړیده چه د حدیث راوی ابوصالح سلمویه دې.(۴)- دا روایت په بدء الوحی کښې تیرشوې دې او هلته په دې تفصیلی بحث شویدې.

[۴۶۷۱] قَالَ مُحَمَّدُ بْنُ شِهَابٍ فَأَخْبَرَنِي أَبُو سَلَمَةَ أَنَّ جَابِرَ بْنَ عَبْدِ اللَّهِ الأَنْصَارِيَّ -رضي الله عنهما- قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- وَهُوَ يُحَدِّثُ عَنْ فَتْرَةِ الْوَحْيِ قَالَ فِي حَدِيثِهِ «بَيْنَا أَنَا أَمْشِي سَمِعْتُ صَوْتًا مِنَ السَّمَاءِ، فَرَفَعْتُ بَصَرِي، فَإِذَا الْمَلَكُ الَّذِي جَاءَنِي بِحِرَاءٍ جَالِسٌ عَلَى كُرْسِيٍّ بَيْنَ السَّمَاءِ وَالأَرْضِ فَفَرِقْتُ مِنْهُ فَرَجَعْتُ فَقُلْتُ زَمِّلُونِي زَمِّلُونِي». فَدَثَّرُوهُ فَأَنْزَلَ اللَّهُ تَعَالَى (يَا أَيُّهَا الْمُدَّثِّرُ * قُمْ فَأَنْذِرْ * وَرَبَّكَ فَكَبِّرْ * وَثِيَابَكَ فَطَهِّرْ * وَالرِّجْزَ فَاهْجُرْ). قَالَ أَبُو سَلَمَةَ وَهْيَ الأَوْثَانُ الَّتِي كَانَ أَهْلُ الْجَاهِلِيَّةِ يَعْبُدُونَ. قَالَ ثُمَّ تَتَابَعَ الْوَحْيُ

دا تعلیق نه دې بلکه ماقبل دوسندونوسره موصول دې. نوعلامه عینی لیکی هذا موصول بالاسنادین المذکورین فی اول الباب.(۵)

## [۴۴۵] بَاب قَوْلُهُ خَلَقَ الْإِنْسَانَ مِنْ عَلَقٍ

[۴۶۷۲] حَدَّثَنَا ابْنُ بُكَيْرٍ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ عُقَيْلٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ عُرْوَةَ أَنَّ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا قَالَتْ أَوَّلُ مَا بُدِئَ بِهِ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الرُّؤْيَا الصَّالِحَةُ فَجَاءَهُ الْمَلَكُ فَقَالَ اقْرَأْ بِاسْمِ رَبِّكَ الَّذِي خَلَقَ خَلَقَ الإِنْسَانَ مِنْ عَلَقٍ اقْرَأْ وَرَبُّكَ الأَكْرَمُ

## [۴۴۶] بَاب قَوْلُهُ اقْرَأْ وَرَبُّكَ الْأَكْرَمُ

[۴۶۷۳] حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ أَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ ح وَقَالَ اللَّيْثُ حَدَّثَنِي عُقَيْلٌ قَالَ مُحَمَّدٌ أَخْبَرَنِي عُرْوَةُ عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا أَوَّلُ مَا بُدِئَ بِهِ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الرُّؤْيَا الصَّادِقَةُ جَاءَهُ الْمَلَكُ فَقَالَ اقْرَأْ بِاسْمِ رَبِّكَ الَّذِي خَلَقَ خَلَقَ الإِنْسَانَ مِنْ عَلَقٍ اقْرَأْ وَرَبُّكَ الأَكْرَمُ الَّذِي عَلَّمَ بِالْقَلَمِ

---

(۱) عمدة القاری ۱۹/۳۰۳: وفتح الباری -۸/۷۱۶:
(۲) عمدة القاری ۱۹/۳۰۳: وفتح الباری-۸/۷۱۶:
(۳) صحیح بخاری مع فتح الباری کتاب الکفاله باب جوارابی بکر فی عهد النبی) وعقده رقم الحدیث-۲۲۹۷
(۴) فتح الباری ۴۷۷-۴/۴۷۶: کتاب الکفاله
(۵) عمدة القاری-۱۹/۳۰۷:

## [۴۴۷] باب الَّذِی عَلَّمَ بِالْقَلَمِ

[۴۶۷۴] حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ یُوسُفَ حَدَّثَنَا اللَّیْثُ عَنْ عُقَیْلٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ قَالَ سَمِعْتُ عُرْوَةَ قَالَتْ عَائِشَةُ رَضِیَ اللّٰهُ عَنْهَا فَرَجَعَ النَّبِیُّ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ إِلَی خَدِیجَةَ فَقَالَ زَمِّلُونِی زَمِّلُونِی فَذَکَرَ الْحَدِیثَ

## [۴۴۸] بَاب کَلَّا لَئِنْ لَمْ یَنْتَهِ لَنَسْفَعًا بِالنَّاصِیَةِ نَاصِیَةٍ کَاذِبَةٍ خَاطِئَةٍ

[۴۶۷۵] حَدَّثَنَا یَحْیَی حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ عَنْ مَعْمَرٍ عَنْ عَبْدِ الْکَرِیمِ الْجَزَرِیِّ عَنْ عِکْرِمَةَ قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ قَالَ أَبُو جَهْلٍ لَئِنْ رَأَیْتُ مُحَمَّدًا یُصَلِّی عِنْدَ الْکَعْبَةِ لَأَطَأَنَّ عَلَی عُنُقِهِ فَبَلَغَ النَّبِیَّ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ لَوْ فَعَلَهُ لَأَخَذَتْهُ الْمَلَائِکَةُ تَابَعَهُ عَمْرُو بْنُ خَالِدٍ عَنْ عُبَیْدِ اللّٰهِ عَنْ عَبْدِ الْکَرِیمِ

## [۴۴۹] باب: تفسیر سورة إِنَّا أَنْزَلْنَاهُ (القدر)

یُقَالُ الْمَطْلَعُ هُوَ الطُّلُوعُ وَالْمَطْلِعُ الْمَوْضِعُ الَّذِی یُطْلَعُ مِنْهُ أَنْزَلْنَاهُ الْهَاءُ کِنَایَةٌ عَنِ الْقُرْآنِ إِنَّا أَنْزَلْنَاهُ خَرَجَ مَخْرَجَ الْجَمِیعِ وَالْمُنْزِلُ هُوَ اللّٰهُ وَالْعَرَبُ تُوَکِّدُ فِعْلَ الْوَاحِدِ فَتَجْعَلُهُ بِلَفْظِ الْجَمِیعِ لِیَکُونَ أَثْبَتَ وَأَوْکَدَ

آیت کښې دی ﴿إِنَّا أَنْزَلْنَاهُ فِي لَيْلَةِ الْقَدْرِ﴾ فرمائی انزلناه کښې هاضمیر دَ قرآن کریم طرف ته راجع دې سره دَ دې نه چه دَ قرآن لفظ اول نه دې ذکر مکرحکماً مذکور دې او سیاق په دې باندې دلالت کوی. امام بخاری دلته دَ ابوعبیده "مجاز القرآن" عبارت نقل کړیدې چه په دې سورة کښې انا انزلنا دَ جمع صیغه استعمال شویده حالانکه قرآن نازل کونکې خو صرف یو الله دې، نودا دَ جمع صیغه دَ دې دَ پاره استعمال شویده چه اهل عرب دَ واحد دَ فعل دَ تاکید په غرض دَ جمع صیغه تعبیر کوی. دا خبره هغوی کړې ده چه کله په اهل عرب کښې مشهوره ده چه دَ تعظیم په غرض واحد فعل دَ جمع سره تعبیر کوی، امام بخاری دغه شان دَ ابوعبیده خبرې بغیردَ تحقیق نه نقل کوی. دَ دې نتیجه دا ده چه کتاب التفسیر کښې ډیر اقوال مرجوح دی.

**قوله:** یُقَالُ الْمَطْلَعُ هُوَ الطُّلُوعُ وَالْمَطْلِعُ الْمَوْضِعُ الَّذِی یُطْلَعُ مِنْهُ: آیت کښې دی ﴿سَلٰمٌ هِيَ حَتّٰى مَطْلَعِ الْفَجْرِ﴾ (اوهغه شپه) ټوله سلام دې (او) هغه شپه دَ قدردَ سحردَ راختوپورې وی. فرمائی مطلع (په فتح دَ لام مصدر میمی) په معنی دَ طلوع دې، اوهمدغه دَ جمهورو قراءت دې او مطلع (په کسر دَ لام) ظرف مکان دې یعنی هغه ځائ کوم ځائ نه چه نمر راخیژی.

## [۴۵۰] باب: تفسیر سورة لَمْ یَکُنْ

مُنْفَکِّینَ زَائِلِینَ قَیِّمَةٌ الْقَائِمَةُ دِینُ الْقَیِّمَةِ أَضَافَ الدِّینَ إِلَی الْمُؤَنَّثِ

**قوله: مُنفَكِّينَ: زَائِلِينَ:** آیت کښې دی ﴿لَمْ يَكُنِ الَّذِينَ كَفَرُوا مِنْ أَهْلِ الْكِتَابِ وَالْمُشْرِكِينَ مُنفَكِّينَ حَتَّىٰ تَأْتِيَهُمُ الْبَيِّنَةُ﴾ کوم خلق چه دَ اهل کتاب او مشرکینونه (قبل بعثت نبویه) کافرو هغوی (دَخپل کفر نه هیڅ کله) نه منع کیدونکی وو ترکومې چه هغوی له واضح دلیل نه راتلو.

**قوله: قَيِّمَةٌ: الْقَائِمَةُ:** ﴿وَذَٰلِكَ دِينُ الْقَيِّمَةِ﴾ دین مذکردې او القیمة مؤنث دې. دَ دې جواب دا دې چه دین مضاف دې او ملة طرف ته کوم چه محذوف دې. او ملة مؤنث دې نو اوس به په دواړوکښې مطابقت اوشی.(۱)

[۴۶۷۶] حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ حَدَّثَنَا غُنْدَرٌ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ سَمِعْتُ قَتَادَةَ عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِأُبَيٍّ إِنَّ اللَّهَ أَمَرَنِي أَنْ أَقْرَأَ عَلَيْكَ لَمْ يَكُنِ الَّذِينَ كَفَرُوا قَالَ وَسَمَّانِي قَالَ نَعَمْ فَبَكَى

دا روایت هم په دې سند ابواب المناقب کښې تیرشویدې.(۲)

حَدَّثَنَا حَسَّانُ بْنُ حَسَّانَ حَدَّثَنَا هَمَّامٌ عَنْ قَتَادَةَ عَنْ أَنَسٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِأُبَيٍّ إِنَّ اللَّهَ أَمَرَنِي أَنْ أَقْرَأَ عَلَيْكَ الْقُرْآنَ قَالَ أُبَيٌّ آللَّهُ سَمَّانِي لَكَ قَالَ اللَّهُ سَمَّاكَ لِي فَجَعَلَ أُبَيٌّ يَبْكِي قَالَ قَتَادَةُ فَأُنْبِئْتُ أَنَّهُ قَرَأَ عَلَيْهِ لَمْ يَكُنِ الَّذِينَ كَفَرُوا مِنْ أَهْلِ الْكِتَابِ

[۴۶۷۷] حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ أَبِي دَاوُدَ أَبُو جَعْفَرٍ الْمُنَادِي حَدَّثَنَا رَوْحٌ حَدَّثَنَا سَعِيدُ بْنُ أَبِي عَرُوبَةَ عَنْ قَتَادَةَ عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ أَنَّ نَبِيَّ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لِأُبَيِّ بْنِ كَعْبٍ إِنَّ اللَّهَ أَمَرَنِي أَنْ أُقْرِئَكَ الْقُرْآنَ قَالَ آللَّهُ سَمَّانِي لَكَ قَالَ نَعَمْ قَالَ وَقَدْ ذُكِرْتُ عِنْدَ رَبِّ الْعَالَمِينَ قَالَ نَعَمْ فَذَرَفَتْ عَيْنَاهُ

**قوله: حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ أَبِي دَاوُدَ أَبُو جَعْفَرٍ الْمُنَادِي:**

**احمد بن ابی داؤد جعفر المناوی:** د فربری په نسخه کښې دغه شان واقع شوی دی.علامه ابوالقاسم هبة الله ابن حسین لالکائی نه خطیب بغدادی نقل کړیدی چه دلته دَ امام نه اشتباه شویده او هغه "احمد بن ابی داود" نقل کړیدې حالانکه دَ ابوجعفر منادی نوم احمد نه بلکه محمد دې.(۳) بعض خلقو وئیلی دی چه دَ محمد یو رورو احمد. وو امام دا روایت دَ

---

(۱) قال العینی :ای دین الملة القائمة المستقیمة فالذین مضاف الی مؤنث وهی الملة والقیمةصفة فحذف الموصوف)عمدة القاری-۱۹/۳۰۹:

(۲) صحیح البخاری مع فتح الباری کتاب المناقب باب مناقب ابی بن کعب رقم الحدیث-۳۸۰۸

(۳) فتح الباری-۸/۷۲۶:

هغوی نه نقل کړیدي لیکن لالکائی دا رد کړیدي او وئیلی دی چه دا صحیح نه ده.(۱)
او غالب ګمان دغه دې چه امام بخاری ته دلته اشتباه شویده او یا پیادا وئیلی شی چه د امام بخاری په رائې کښې احمد او محمد یو دي، نو خطیب بغدادی د ابوبکر اسماعیلی نه نقل کړیدی چه عبدالله بن نادیه به کله د حدیث املاء کوله نووئیل به ئې "حدثنا احمد بن ابی داؤد" نو هغه ته اووئیلې شو چه د ابن ابی داؤد نوم احمد نه دې محمد دې نو هغه اووئیل چه احمد او محمد یو دی.
حافظ ابن حجر رحمه الله وائی د فربری د نسخې نه علاوه صرف "حدثنا ابوجعفر المنادی" واقع شویدې د "احمد بن ابی داؤد" هلته نشته. دې نه معلومه شوه چه دا شروع د فربری د طرف نه شویده او هغه په غلطئی سره "احمد بن ابی داود" اووئیل، په دې وجه امام بخاری طرف ته د وهم نسبت کول یا دا وینا کول چه امام بخاری احمد او محمد یو ګڼړل نو دا صحیح نه ده. (۲)
لیکن بیا حافظ اوفرمائیل چه د محدثینویوه دا متفقه فیصله او حتمی اصول دی چه شاګرد کله د استاذ کلام نقل کوی نو د خپل طرف نه په کښې څه زیاتې نه کوی که زیاتې کول وی نو د هغې طریقه دا وی چه شاګرد د یولفظ نه د هغې زیاتی طرف ته اشاره کوی چه دا د شاګرد اضافه ده او دلته داسې یو لفظ نشته په څکه به لامحاله دا منلې شی "احمد بن ابی داود ابوجعفر المنادی" د فربری په نسخه کښې هم د بخاری ارشاد دې. (۳)
د ابوجعفر بن ابی داؤد بخاری کښې صرف همدغه یوروایت دې دا د بخاری استاذ دې او د بخاری نه پس شپاړس کاله ژوندې وو، د هغه عمر د سلوکالونه څه زیات وو، د هغه نه هغه خلقو هم روایت نقل کړیدې چه امام بخاری ئې نه وولیدلې. ولې چه د امام بخاری وفات د ابوعمرو سماك نه اته اتیا (۸۸) کاله وړاندې شوې وو.دا د سابق او لاحق عجیبه مثال دې امام بخاری سابق شاګرد دې او ابوعمرو بن سماك لاحق شاګرد دې اود دواړو په مینځ کښې اته اتیا کالو فاصله ده.(۴)

## [۴۵۱] باب تفسیر سورة: إِذَا زُلْزِلَتِ الْأَرْضُ زِلْزَالَهَا

**قوله: فَمَنْ يَعْمَلْ مِثْقَالَ ذَرَّةٍ خَيْرًا يَرَهُ يُقَالُ أَوْحَى لَهَا أَوْحَى إِلَيْهَا وَوَحَى لَهَا وَوَحَى إِلَيْهَا وَاحِدٌ:** آیت کښې دی (يَوْمَئِذٍ تُحَدِّثُ أَخْبَارَهَا) په هغه ورځ به زمکه خپل ټول (بنه اوبد) خبرونه بیان کړی په دې سبب چه ستا د رب به دې ته دا حکم وی. وئیلی شی اوحی لها، اوحی الیها، وحی لها، وحی الیها د دې ټولو هم یوه معنی ده یعنی اشاره کول او وحی لیګل.

(۱) فتح الباری-۸/۷۲۶:
(۲) فتح الباری-۸/۷۲۶:
(۳) فتح الباری-۸/۷۲۶:
(۴) فتح الباری-۸/۷۲۶:

[۴۶۷۸] حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ بْنُ عَبْدِ اللهِ حَدَّثَنَا مَالِكٌ عَنْ زَيْدِ بْنِ أَسْلَمَ عَنْ أَبِي صَالِحٍ السَّمَّانِ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ الْخَيْلُ لِثَلَاثَةٍ لِرَجُلٍ أَجْرٌ وَلِرَجُلٍ سِتْرٌ وَعَلَى رَجُلٍ وِزْرٌ فَأَمَّا الَّذِي لَهُ أَجْرٌ فَرَجُلٌ رَبَطَهَا فِي سَبِيلِ اللهِ فَأَطَالَ لَهَا فِي مَرْجٍ أَوْ رَوْضَةٍ فَمَا أَصَابَتْ فِي طِيَلِهَا ذَلِكَ فِي الْمَرْجِ وَالرَّوْضَةِ كَانَ لَهُ حَسَنَاتٍ وَلَوْ أَنَّهَا قَطَعَتْ طِيَلَهَا فَاسْتَنَّتْ شَرَفًا أَوْ شَرَفَيْنِ كَانَتْ آثَارُهَا وَأَرْوَاثُهَا حَسَنَاتٍ لَهُ وَلَوْ أَنَّهَا مَرَّتْ بِنَهَرٍ فَشَرِبَتْ مِنْهُ وَلَمْ يُرِدْ أَنْ يَسْقِيَ بِهِ كَانَ ذَلِكَ حَسَنَاتٍ لَهُ فَهِيَ لِذَلِكَ الرَّجُلِ أَجْرٌ وَرَجُلٌ رَبَطَهَا تَغَنِّيًا وَتَعَفُّفًا وَلَمْ يَنْسَ حَقَّ اللهِ فِي رِقَابِهَا وَلَا ظُهُورِهَا فَهِيَ لَهُ سِتْرٌ وَرَجُلٌ رَبَطَهَا فَخْرًا وَرِئَاءً وَنِوَاءً فَهِيَ عَلَى ذَلِكَ وِزْرٌ فَسُئِلَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنِ الْحُمُرِ قَالَ مَا أَنْزَلَ اللهُ عَلَيَّ فِيهَا إِلَّا هَذِهِ الْآيَةَ الْفَاذَّةَ الْجَامِعَةَ فَمَنْ يَعْمَلْ مِثْقَالَ ذَرَّةٍ خَيْرًا يَرَهُ وَمَنْ يَعْمَلْ مِثْقَالَ ذَرَّةٍ شَرًّا يَرَهُ

په کتاب الاعتصام کښې دا روایت په دې سندسره به راځی او په کتاب الجهاد کښې هم دا روایت تیرشوې دې.(۱)

## [۴۵۲] بَاب وَمَنْ يَعْمَلْ مِثْقَالَ ذَرَّةٍ شَرًّا يَرَهُ

[۴۶۷۹] حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ سُلَيْمَانَ قَالَ حَدَّثَنِي ابْنُ وَهْبٍ قَالَ أَخْبَرَنِي مَالِكٌ عَنْ زَيْدِ بْنِ أَسْلَمَ عَنْ أَبِي صَالِحٍ السَّمَّانِ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ سُئِلَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنِ الْحُمُرِ فَقَالَ لَمْ يُنْزَلْ عَلَيَّ فِيهَا شَيْءٌ إِلَّا هَذِهِ الْآيَةُ الْجَامِعَةُ الْفَاذَّةُ فَمَنْ يَعْمَلْ مِثْقَالَ ذَرَّةٍ خَيْرًا يَرَهُ وَمَنْ يَعْمَلْ مِثْقَالَ ذَرَّةٍ شَرًّا يَرَهُ

## [۴۵۳] بَاب: تفسیر سورة وَالْعَادِيَاتِ

وَقَالَ مُجَاهِدٌ الْكَنُودُ الْكَفُورُ يُقَالُ فَأَثَرْنَ بِهِ نَقْعًا رَفَعْنَا بِهِ غُبَارًا لِحُبِّ الْخَيْرِ مِنْ أَجْلِ حُبِّ الْخَيْرِ لَشَدِيدٌ لَبَخِيلٌ وَيُقَالُ لِلْبَخِيلِ شَدِيدٌ حُصِّلَ مُيِّزَ

**قوله:** وَقَالَ مُجَاهِدٌ: الْكَنُودُ الْكَفُورُ: آیت کښې دی (إِنَّ الْإِنسَانَ لِرَبِّهِ لَكَنُودٌ) په دې کښې کنود معنی ناشکرا یعنی انسان دَ خپل رب ډیرناشکرا دې.

**قوله:** يُقَالُ: فَأَثَرْنَ بِهِ نَقْعًا: رَفَعْنَا بِهِ غُبَارًا: یعني هغه اسونه گرد اوچتوی، الوزوی.

**قوله:** لِحُبِّ الْخَيْرِ: مِنْ أَجْلِ حُبِّ الْخَيْرِ لَشَدِيدٌ: لَبَخِيلٌ وَيُقَالُ لِلْبَخِيلِ: شَدِيدٌ: آیت کښې دی (وَإِنَّهُ لِحُبِّ الْخَيْرِ لَشَدِيدٌ) او هغه دَ مال په مینه کښې ډیر سخت بخیل دې فرمائی لِحُبِّ الْخَيْرِ کښې لام دَ تعلیل دَ پاره دې یعنی دَ مال دَ محبت دَ وجه نه او شدید په معنی بخیل، بخیل ته شدید وائی.

**قوله:** حُصِّلَ: مُيِّزَ: آیت کښې دی (وَحُصِّلَ مَا فِي الصُّدُورِ) او ښکاره به شی کوم څه چه په

---

(۱) صحیح البخاری کتاب الجهاد باب الخیل لثلاثة ۱/۴۰۰: باب الاحکام التی تعرف بالدلائل-۲/۱۰۹۳:

زړونو کښې دی. فرمائی حصل په معنی ميز دې، يعني جدا به شی او ځان او ممتازبه شی.

## [۴۵۴] باب: تفسير سورة القارعة

كَالْفَرَاشِ الْمَبْثُوثِ كَغَوْغَاءِ الْجَرَادِ يَرْكَبُ بَعْضُهُ بَعْضًا كَذٰلِكَ النَّاسُ يَجُولُ بَعْضُهُمْ فِي بَعْضٍ كَالْعِهْنِ كَأَلْوَانِ الْعِهْنِ وَقَرَأَ عَبْدُ اللّٰهِ كَالصُّوفِ

آيت کښې دی (يَوْمَ يَكُونُ النَّاسُ كَالْفَرَاشِ الْمَبْثُوثِ) په کومه ورځ چه انسانان دَ پريشانه پتنګانوپه شان"كَالْفَرَاشِ الْمَبْثُوثِ" دَ پريشانه ملخانو په شان په يوبل ورخيژی، دغه شان به دَ قيامت په ورځ دَ پريشانئی په حال کښې په يوبل به چکرې وهی او ګرځی به.

**قوله: كَالْعِهْنِ: كَأَلْوَانِ الْعِهْنِ:** آيت کښې دی (وَتَكُونُ الْجِبَالُ كَالْعِهْنِ الْمَنْفُوشِ) اوغرونه به دَ ويشلې شوی رنګينې وړئی په شان شی. فرمائی كَالْعِهْنِ نه الوان عهن کښې تشبيه ورکول مقصود دی، عهن رنګينه وړئی ته وائی. دَ غرونورنګ هم مختلف وی په دې وجه دَ رنګينې وړئی سره تشبيه ورکړيده. علامه شبيراحمد عثمانی رحمه الله ليکی: لکه څنګه چه وړئی ويشونکې وړئی ويشلوسره يوه يوه جدا کوی الوزوی دغه شان به غرونه جدا شی الوزی به.

## [۴۵۵] باب: تفسير سورة أَلْهَاكُمُ التَّكَاثُرُ

وَقَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ التَّكَاثُرُ مِنَ الْأَمْوَالِ وَالْأَوْلَادِ

آيت کښې دی (أَلْهَاكُمُ التَّكَاثُرُ) (دنياوی سامان باندې) فخرکول به تا(دَ آخرت) نه غافله ساتی، حضرت ابن عباس رضی الله عنه فرمائی چه تکاثر معنی مال دولت ډيروالې.

## [۴۵۶] باب: تفسير سورة وَالْعَصْرِ

وَقَالَ يَحْيَى الْعَصْرُ الدَّهْرُ أَقْسَمَ بِهِ

## [۴۵۷] باب: تفسير سورة وَيْلٌ لِكُلِّ هُمَزَةٍ

الْحُطَمَةُ اسْمُ النَّارِ مِثْلُ سَقَرَ وَلَظَى

آيت کښې دی (كَلَّا لَيُنْبَذَنَّ فِي الْحُطَمَةِ) هيڅ کله نه هغه خوبه دَ چقنړی کولو ځائ غورزولې شی. فرمائی حطمة دَ دوزخ يونوم دې لکه چه سقر او لظی نومونه دی.

## [۴۵۸] باب: تفسير سورة أَلَمْ تَرَ (الفيل) أَلَمْ تَعْلَمْ

قَالَ مُجَاهِدٌ أَبَابِيلَ مُتَتَابِعَةً مُجْتَمِعَةً وَقَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ مِنْ سِجِّيلٍ هِيَ سَنْكِ وَكِلْ

**د سجيل مختلف معنی:** مجاهد رحمه الله فرمائی چه "ابابيل" معنی وار په وار راتلونکی، ډلې ډلې راتلونکې مرغئی متتابعة "طير" صفت دې. "ابابيل" دا اسم جمع ده اودَ دې هيڅ واحد نشته، بعضوويلی دی دا دَ "ابول" جمع ده لکه "عجول" جمع چه عجاجيل راځی او بعضو وئيلی

دی دا د "ابالة" جمع ده. (١) روميې قول مشهور دې. حضرت ابن عباس رضي الله عنهما فرمائي چه دا يو خاص قسم مرغئی دی د کوموچه د هاتهی غوندې خرټم وی او لاسونه ئی هم وی. (٢)

**قوله: وَقَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ مِنْ سِجِّيلٍ هِيَ سَنْكِ وَكِلٍ:** حضرت ابن عباس رضي الله عنهما فرمائي "سجيل"هم هغه د فارسئی سنګ وګل دې مطلب دا دې چه دا لفظ د فارسی ژبې "سنګ ګل" نه معرب دې سنګ کاڼړی ته وائی او ګل خاورې ته. "سنګ ګل" هغه قوت کاڼړوته وائی چه لمدې خاورې نه په اور کښې پخولوسره جوړېږی.

بعض حضراتووئيلی دی چه د سجيل نه هغه دفتراورجسټر مراد دې په کوم کښې چه د معذبينو د عذاب قسمونه درج دی.(٣)

بعضووئيلی دی چه دا د دنياد آسمان نوم دې. (٤)

بعضو وئيلی چه دا د جهنم په اور باندې پوخ شوی يوخاص قسم کاڼړی نوم دې.(٥)
بعضو دې ترجمه سخت او شديد سره کړېده. (٦)

## [٤٥٩] باب: تفسير سُورَةُ لِإِيلَافِ قُرَيْشٍ

**وَقَالَ مُجَاهِدٌ لِإِيلَافِ أَلِفُوا ذَلِكَ فَلَا يَشُقُّ عَلَيْهِمْ فِي الشِّتَاءِ وَالصَّيْفِ وَآمَنَهُمْ مِنْ كُلِّ عَدُوِّهِمْ فِي حَرَمِهِمْ قَالَ ابْنُ عُيَيْنَةَ لِإِيلَافِ لِنِعْمَتِي عَلَى قُرَيْشٍ**

**قوله: قَالَ ابْنُ عُيَيْنَةَ لِإِيلَافِ لِنِعْمَتِي عَلَى قُرَيْشٍ:** دا "لايلاف" "فليعبدوا" سره متعلق دې.(٧) هغوی له پکار دی چه د دې بيت الله د رب عبادت اوکړی ځکه چه هغه په دوی باندې انعام کړې دې چه د رحلة الشتاء او رحلة الصيف د هغوی په زړونوکښې محبت پيدا کړېدې او دا سفر دهغوی د پاره سهل او آسان کړېدې. مطلب دا چه زمونږ د نورو احسانونو په وجه که چرې دوی عبادت کولو د پاره نه تياريږی نو کم نه کم په دې وجه خو دوی له زمونږ عبادت کول پکار دی چه مونږ د هغوی په زړونوکښې په ګرمئی او يخنئی کښې سفر کولومينه پيدا کړه.

---

(١) عمدة القاری ١٩/٣١٤:وقال الراغب فی المفردات ٨:الواحد ابيل
(٢) عمدة القاری ١٩/٣١٤:ومعالم التنزيل للبغوی-٤/٥٢٨:
(٣) وفی الکشاف ٤/٧٩٩:وسجيل :کانه علم للديوان الذی کتب فيه عذاب الکفار ....کانه قيل :بحجارة من جملة العذاب المکتوب المدون. واشتقاقه من الاسجال وهوالارسال، لان العذاب موصوف بذلک-
(٤) الجامع لاحکام القران-٢٠/١٩٨:
(٥) الجامع لاحکام القران-٢٠/١٩٨:
(٦) الکشاف-٤/٨٠٠:
(٧) روح المعانی ٣٠/٢٨٦:وتفسيرقرطبی-٢٠/٢١٠:

بعض حضراتو وئیلی چه "لایلاف" تعلق دَ سورة الفیل آخری آیت (فَجَعَلَهُمْ كَعَصْفٍ مَّأْكُولٍ) نه دې. اودَ حضرت ابی بن کعب رضی الله عنه په مصحف کښې دا دواړه سورتونه یوځائ کړې ليکلي دي.(١)په دې صورت کښې به مطلب دا وي چه الله تعالی اصحاب فيل ته "عصف ماکول" په شان هغوی جوړ کړل چه الله تعالی قريشوته په رحلة الشتاء والصيف مينه ورکړه دَ څه په ذريعه چه هغوی دَ خپل ځان دَ پاره دَ خوراك څښاك سامان راحت او آسائش انتظامات اوکړل. الله تعالی اصحاب فيل هلاك کړل قريش محفوظ، مامون او باقي پاتې کړل.(٢) - قريشو به په کال کښې دَ تجارت په غرض دوه سفرې کولې. يخنئ کښې دَ يمن طرف ته او ګرمئ کښې دَ شام طرف ته.(٣)علامه شبيراحمد عثمانی رحمه الله ليکی: " مکه کښې غله وغيره نه پيدا کيده په دې وجه دَقريشوعادت وو چه په کال کښې به ئې دَ تجارت په غرض دوه سفرې کولې. په يخنئ کښې دَ يمن طرف ته چه ګرم ملك دې او په ګرمئ کښې دَ شام ملك ته چه يخ او آباد ملك دې. خلقو به دوی اهل حرم او خادم بيت الله ګڼړل او ډير په درنه او دَعزت او احترام په سترګه به ئې ورته کتل. دَ دوی خدمت به ئې کولو اودَ هغوی جان ومال سره به ئې هيڅ غرض نه لرلو. دغه شان به هغوی ته زړه پورې نفع کيدله. بيا به ښه په آرام او امن سره کور ناست وو پخپله به ئې هم خوړله او په نوروبه ئې هم خوړله.دَ حرم شريف څلورو واړو طرفونوته به دَ شوکې غلا ډاکې بازار ګرم وو ليکن دَ کعبې دَ ادب دَ وجه به يو ډاکو او غل په قريشو لاس نه صفاکولو. همدغه انعام دلته کښې يادکړلې شو چه دَ دې کور په خاطر تاسوته رزق درکړو او امن او آرام درکړو، دَ اصحاب فيل دَ مقابلې نه محفوظ کړيشوئ. نو بيا دَ دې کور دَ خاوند بندګی ولې نه کوئ او دَ هغه رسول ولې تنګوئ، دا ډيره ناشکری او احسان فراموشي ده. که په نورو خبرو نه پوهيږئ نو داسې کولاؤ حقيقت باندې خان پوهه کول څه ګران دی." (٤)

## [۴۶۰]باب: تفسير سُورَةُ أَرَأَيْتَ (الماعون)

وَقَالَ مُجَاهِدٌ يَدُعُّ يَدْفَعُ عَنْ حَقِّهِ يُقَالُ هُوَ مِنْ دَعَعْتُ يُدَعُّونَ يُدْفَعُونَ سَاهُونَ لَاهُونَ وَالْمَاعُونَ الْمَعْرُوفُ كُلُّهُ وَقَالَ بَعْضُ الْعَرَبِ الْمَاعُونُ الْمَاءُ وَقَالَ عِكْرِمَةُ أَعْلَاهَا

---

[١]) الجامع لاحكام القران-٢٠٠/٢٠:

[٢]) قال الرازی فی التفسیرالکبیر " ٢٠/١٠٢:فجعلهم کعصف ماکول "لالف قریش، ای اهلک الله اصحاب الفیل لتبقی قریش وما قد الفوا من رحلة الشتاء والصیف فان قیل :هذاضعیف، لانهم انما جعلوا کعصف ماکول، لکفرهم، ولم یجعلو کذلک لتالیف قریش، قلنا :هذاالسؤال ضعیف...لا نالانسلم ان الله تعالی انما فعل بهم ذلک لکفر هم فان الجزاء علی الکفر مؤخرللقیامة ....ولانه تعالی لوفعل بهم ذلک لکفر هم لکان قد فعل ذلک بجمیع الکفار بل انما فعل ذلک بهم لایلاف قریش ولتعظیم منصبهم واظهارقدرهم

[٣])روح المعانی-٣٠/٢٧٧:

[٤]) تفسیرعثمانی ٨٠٣:فائده نمبر-٥

الزَّكَاةُ الْمَفْرُوضَةُ وَأَدْنَاهَا عَارِيَّةُ الْمَتَاعِ
آیت کښې دی ﴿فَذٰلِكَ الَّذِيْ يَدُعُّ الْيَتِيْمَ﴾ نو هغه سړې چه یتیم ته دیکې ورکوی. مجاهد رحمه الله
فرمائی د یدع معنی یدفع ده. هغه منع کوی. یعنی یتیم د هغه د حق اخستلونه اخوا کوی. دا
د دعمت نه ماخوذ دې د کوم معنی دیکه کول دی او د سورة الطور آیت ﴿يَوْمَ يُدَعُّوْنَ اِلٰى نَارِ جَهَنَّمَ
دَعًّا﴾ کښې یدعون په معنی یدفعون دې. په کومه ورځ چه به کافران په دوزخ طرف ته دیکه
کړیشی.

**قوله: سَاهُوْنَ: لَاهُوْنَ:** ﴿فَوَيْلٌ لِّلْمُصَلِّيْنَ ۝ الَّذِيْنَ هُمْ عَنْ صَلَاتِهِمْ سَاهُوْنَ﴾ نو د داسې مونځ
گذارو د پاره خرابی ده چه خپل مونځونه هیر کړی، ساهون په معنی د لاهون یعنی غافل بې
خبره. او په آیت مبارك کښې دی ﴿وَيَمْنَعُوْنَ الْمَاعُوْنَ﴾ فرمائی ماعون اطلاق په هریو ښه کار
باندې کیږی. بعضوئیلی دی ماعون اوبوته وائی او حضرت عکرمه رحمه الله فرمائی ماعون
اعلی قسم فرض زکوة دې او ادنی قسم د کور د عام سامان قرض ورکول دی.) لکه لوټا،
پیاله ماچس وغیره) علامه شبیراحمدعثمانی رحمه الله د دې آیت لاندې لیکی: "یعنی زکوة او
صدقات خو به څه ادا کوی معمولی لوښی مثلاً لوټه، رسې، کتوئی ستن اوتار وغیره چه
څوك غواړی نو نه ورکوی د کوم چه په دنیاکښې د ورکولو عام رواج دې. چه د بخل اوفسق
دا حال وی نو د ځان خودنې د مانځه به څه فائده وی. که یو سړې خپل ځان ته مسلمان مونځ
گذار وائی ولې الله تعالی سره اخلاص او مخلوق سره همدردی نه ساتی نو د هغه اسلام لفظ
بې معنی دې او د هغه مونځ د حقیقت نه ډیر لرې دې، دا ریاکاری اوبدبختی خود دې
بدبختانو طریقه کیدل پکار دی چه د الله تعالی په دین او جزاء په ورځ هیڅ عقیده نه لری.

## [۴۶۱] باب: تفسیر سورة إِنَّا أَعْطَيْنَاكَ الْكَوْثَرَ

وَقَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ شَانِئَكَ عَدُوَّكَ

[۴۶۸۰] (۱) حَدَّثَنَا آدَمُ حَدَّثَنَا شَيْبَانُ حَدَّثَنَا قَتَادَةُ عَنْ أَنَسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ لَمَّا عُرِجَ بِالنَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِلَى السَّمَاءِ قَالَ أَتَيْتُ عَلَى نَهَرٍ حَافَتَاهُ قِبَابُ اللُّؤْلُؤِ مُجَوَّفًا فَقُلْتُ مَا هٰذَا يَا جِبْرِيلُ قَالَ هٰذَا الْكَوْثَرُ

[۴۶۸۱] (۲)۔ حَدَّثَنَا خَالِدُ بْنُ يَزِيدَ الْكَاهِلِيُّ حَدَّثَنَا إِسْرَائِيلُ عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ عَنْ أَبِي عُبَيْدَةَ عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا قَالَ سَأَلْتُهَا عَنْ قَوْلِهِ تَعَالَى إِنَّا أَعْطَيْنَاكَ الْكَوْثَرَ قَالَتْ نَهَرٌ أُعْطِيَهُ نَبِيُّكُمْ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ شَاطِئَاهُ عَلَيْهِ دُرٌّ مُجَوَّفٌ آنِيَتُهُ كَعَدَدِ النُّجُومِ رَوَاهُ زَكَرِيَّاءُ وَأَبُو الْأَحْوَصِ وَمُطَرِّفٌ عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ

---

[1]) واخرجه ابوداؤد فی کتاب السنة باب الحوض رقم الحدیث-۴۷۴۸:

[2]) واخرجه النسائی فی السنن الکبری فی التفسیر رقم الحدیث۱۱۷۰۵/۳:)حافتاه قباب اللؤلؤ(ای علی خافتیه)مجوفاً (ای القبة کلها من لؤلؤمجوفة واللؤلؤجوهر نفیس معروف

[۴۶۸۲] (۱) حَدَّثَنَا يَعْقُوبُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ حَدَّثَنَا هُشَيْمٌ حَدَّثَنَا أَبُو بِشْرٍ عَنْ سَعِيدِ بْنِ جُبَيْرٍ عَنْ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا أَنَّهُ قَالَ فِي الْكَوْثَرِ هُوَ الْخَيْرُ الَّذِي أَعْطَاهُ اللَّهُ إِيَّاهُ قَالَ أَبُو بِشْرٍ قُلْتُ لِسَعِيدِ بْنِ جُبَيْرٍ فَإِنَّ النَّاسَ يَزْعُمُونَ أَنَّهُ نَهَرٌ فِي الْجَنَّةِ فَقَالَ سَعِيدٌ النَّهَرُ الَّذِي فِي الْجَنَّةِ مِنْ الْخَيْرِ الَّذِي أَعْطَاهُ اللَّهُ إِيَّاهُ

**قوله: شَانِئَكَ: عَدُوَّكَ:** آيت كښې دی (إِنَّ شَانِئَكَ هُوَ الْأَبْتَرُ) يقينى هم ستادښمن بې نوم او نښې دې. حضرت ابن عباس رضی الله عنهما فرمائی شانئك نه دښمن مراد دې.

**قوله: أَتَيْتُ عَلَى نَهَرٍ حَافَتَاهُ قِبَابُ اللُّؤْلُؤِ مُجَوَّفًا:** حافتا نه دَ هغه دواړه اړخه مراد دی، قباب دَ قبة جمع ده گنبد ته وائی يعنی دَ هغه نهر په دواړو غاړو باندې دَ ډودمرغلرو گنبد وو.

**دَ كوثر مصداق څه دې؟:** په دې روايت كښې هم دغه دی چه دَ كوثرمصداق يو نهر دې چه په جنت كښې دې او دَ مسلم په روايت كښې هم دغه شان نقل كړی دی.(۲) - او په وړاندې روايت كښې حضرت ابن عباس رضی الله عنهما دَ كوثر تفسير "خير" سره كړيدې. علامه ابن تيميه رحمه الله خپله فتاوی كښې هم دې تفسيرته ترجيح وركړيده.(۳)-علامه عينی رحمه الله فرمائی دَ نهرتفسير په حديث كښې دَ نبی كريم صلی الله عليه وسلم نه منصوص دې په دې وجه به دا راجح گرځولې شی.(۴)

دَ كوثر په تفسيركښې دَ علماؤ ډير اقوال دی توحيد، اسلام، قرآن، نبوت وغيره ډير اقوال دی. تفسير بحرمحيط كښې دی چه دَ كوثر متعلق شپږويشت(۲۶) اقوال بعض علماؤ ذكر كړی دی.(۵) ليكن راجح دا دی چه دَ دې لفظ لاندې دَ هرقسم دينی او دنياوی دولتونه او حسی او معنوی نعمتونه داخل دی. چه هغوی صلی الله عليه وسلم ته يا دَ هغوی په بركت امت مرحومه ته ملاويدونكې وو، دې نعمتونونه يو ډير لوئ نعمت حوض كوثر هم دې چه هم په دې نوم مسلمانانو كښې مشهور دې اودَ كوم په اوبوبه چه نبی كريم صلی الله عليه وسلم دَ محشر په ورځ خپل اومت خړوبوی.(۶) دَ بعض رواياتونه دَ دې محشر كښې كيدل او اكثرو رواياتونه په جنت كښې كيدل ثابتيږی. اكثرو علماؤ داسې تطبيق وركړيدې چه اصل نهر به په جنت كښې وی او دَ دې اوبه به ميدان محشرته راوړلې شی او په يوحوض كښې به جمع كولې شی او

(۱) وايضا اخرجخ فی الرقاق باب فی الحوض وقوله تعالی :انااعطيناک الكوثر رقم الحديث۶۵۷۸ :)مع الفتح (واخرجه النسائی فی السنن الكبری فی التفسير باب سورة الكوثر رقم الحدث-۱۱۷۰۴ ۳/:

(۲)صحيح مسلم ۲/۲۵۱:باب اثبات حوض نبينا وصفاته

(۳)مجموع فتاوی ابن تيميه كتاب التفسير ۵۲۸-۱۶/۵۲۷:سورة الكوثر

(۴)عمدة القاری-۱۹/۷۳۲:

(۵)تفسيربحر المحيط-۸/۵۱۹:

(۶) تفسيرعثمانی ۸۰۴:فائده نمبر-۷

دوا روته به کوثر ونیلې شي.(١)والله اعلم بالصواب.

**تنبیه:** مولاناشبیراحمدعثماني رحمه الله دَ کوثر متعلق تفسیر دَ بحر محیط په حواله سره اولیکل چه په دې کښې کوثر متعلق شپږویشت(٢٦) اقوال ذکر کړی دی او په آخره کښې ترجیح هم دې ته ورکړیده چه دَ دې لفظ لاندې دَ هرقسم دنیاوی او اخروی نعمتونه داخل دی. لیکن تفسیر بحرمحیط کښې دَ کوثر متعلق تقریباً نهه اقوال ذکر دی او "نهرفی الجنة" تفسیر هغوی صحیح ګرځولې البته هغوی لیکلی دی چه په "تحریر" کښې کوثر متعلق شپږویشت اقوال ذکر دی.(٢)والله اعلم

## [۴۶۲]باب: تفسیرسُورَةُ قُلْ یَاأَیُّهَا الْکَافِرُونَ (الکافرون)

یُقَالُ لَکُمْ دِینُکُمُ الْکُفْرُ وَلِیَ دِینِ الْإِسْلَامُ وَلَمْ یَقُلْ دِینِي لِأَنَّ الْآیَاتِ بِالنُّونِ فَحُذِفَتْ الْیَاءُ کَمَا قَالَ یَهْدِینِ وَیَشْفِینِ وَقَالَ غَیْرُهُ لَا أَعْبُدُ مَا تَعْبُدُونَ الْآنَ وَلَا أُجِیبُکُمْ فِیمَا بَقِيَ مِنْ عُمُرِي وَلَا أَنْتُمْ عَابِدُونَ مَا أَعْبُدُ وَهُمُ الَّذِینَ قَالَ وَلَیَزِیدَنَّ کَثِیرًا مِنْهُمْ مَا أُنْزِلَ إِلَیْکَ مِنْ رَبِّکَ طُغْیَانًا وَکُفْرًا

**قوله:** لَا أَعْبُدُ مَا تَعْبُدُونَ الْآنَ وَلَا أُجِیبُکُمْ فِیمَا بَقِيَ مِنْ عُمُرِي: دلته دا خودل غواړی چه ﴿لَآ أَعْبُدُ مَا تَعْبُدُونَ ۝ وَلَآ أَنْتُمْ عٰبِدُونَ مَآ أَعْبُدُ ۝ وَلَآ أَنَا عَابِدٌ مَّا عَبَدْتُّمْ ۝ وَلَآ أَنْتُمْ عٰبِدُونَ مَآ أَعْبُدُ﴾ په دې جملوکښې په ظاهره تکرار دې. دَ دې تکرار وجه امام بخاري رحمه الله فرمائی ﴿لَآ أَعْبُدُ مَا تَعْبُدُونَ ۝ وَلَآ أَنْتُمْ عٰبِدُونَ مَآ أَعْبُدُ﴾ دا دَ حال زمانې سره متعلق دې او وړاندې دَ دوو آیاتونو تعلق دَ مستقبل زمانې سره دې. "ولااجیبکم فیما بقی من عمری" نه دې طرف ته اشاره ده. لیکن اشکال دا پیداکیږی چه نبی کریم ﷺ دَ هغوی دَ معبودانو عبادت په مستقبل کښې نه کوی، داخوصحیح ده لیکن کفارو نه ډیرو خلقوایمان قبول کړې او ستا دَ معبود یعنی الله تعالی عبادت اوکړو نو دَ هغوی په حق کښې دا وینا کول چه تاسو به هم زما دَ معبود عبادت نه کونی څنګه صحیح کیدیشی. امام بخاري رحمه الله دَ دې جواب ورکړیدې "وهم الذین قال: ولیزیدن کثیرا منهم ما انزل الیك من ربك طغیانا وکفرا" یعنی ﴿وَلَآ أَنْتُمْ عٰبِدُونَ مَآ أَعْبُدُ﴾ نه هغه کافران مراد دی دَ چا باره کښې چه فیصله شوې وه چه دَ هغوی په حق کښې دَ قرآن پاك دَ آیات نازلیدل به دَ طغیان او کفر دَ اضافې ذریعه شی دَ هغوی باره کښې ﴿وَلَآ أَنْتُمْ عٰبِدُونَ مَآ أَعْبُدُ﴾ اوفرمائیلې شودَ ټولو باره کښې نه دې فرمائیلې شوې.

---

(١) تفسیرعثمانی ٨٠٤: فائده نمبر-٧

(٢) البحرالمحیط-٥١٩/٨:

